حنفی شافعی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند ، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب و غیرہ۔


کفایت اللہ ابن صدیق

easypaisa

+923052488551
+923247442395





مالکی حنبلی

# فوز المبتدي

## بشرح
## مختصر القدري
## اول جلد

تاليف:- مولانا شاه فيصل

فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، دار العلوم اسلاميه چارسده

### خصوصيات

① جملة ترجمه يعنى هرې جملې سره متصل د هغې ترجمه
② هره مسئله به مستقل متن کښې ذکر کول
③ دمتن د هرې مسئلې دباره نقلي عقلي يا دواړه قسمه دلائل ذکر کول
④ د احاديثو تخريج کول
⑤ د حنفيانو په خپل مينځ کښې د اختلاف ذکر مع دلائل
⑥ د حنفيانو په خپل مينځ کښې د اختلاف په صورت کښې د قول راجح تعين کول
⑦ د نورو امامانو مذاهب بغير د دلائلو نه لاندې په حاشيه کښې ذکر کول
⑧ د کتاب په اول کښې د فقه سره متعلق تاريخي مقدمه ذکر کول
⑨ د گرانو لغاتو حل
⑩ د قوسينو په مينځ کښې د تندهارى ټکو اضافه کول

فيصل كتب خانه

بالمقابل مكتبه حقانيه محله جنگى پيښور قصه خوانئ پيښور

موبائيل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

د چھاپ حقوق صرف ناشر سره محفوظ دي

دکتاب نوم:- فوز المبتدی بشرح مختصر القدوری
مؤلف: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس
خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنگی

دملاویدو پتې :

د فیصل کتب خانې نه علاوه

① مکتبه رشیدیه سرکی روډ کوئټه
② مکتبه عمریه چمن بلوچستان
③ صداقت کتب خانه قندهار افغانستان
④ امیرحمزه کتب خانه قندهار
⑤ دینی کتب خانه تیمرگره (پښتونخواه)
⑥ قدرت کتاب فروشی کابل ښار
⑦ انصاف کتب خانه جلال آباد
⑧ اخون زاده کتب خانه ټل

خپرونکی

فیصل کتب خانه
بالمقابل مکتبه حقانیه محله جنگی پیښور قصه خوانۍ پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# مقدمة د مؤلف

الحمدلله رب العالمين والصلاة والسلام على سيد العرب والعجم وأفضل المرسلين وعلى آله وصحبه أجمعين.

اما بعد! زمونږ په مدارسو كښې مختصر القدوري شامل نصاب كتاب دې.دا د ابتدائي طالبانو دپاره دې.اوبيا هدايه چې د جامع الصغير او مختصر القدوري د متونو شرح ده.هغه هم په نصاب كښې شامل يو جامع كتاب دې.اوڅه وخت چې د هدايه د حل دپاره ما احقرشاه فيصل د تسهيل الهدايه په نوم په اته جلدونو مشتمل شرح تكميل ته اورسوله.نودهغه وخت نه زما په ذهن كښې دا خبره راغله چې هدايه چونكه د قدوري اوجامع صغير د متونو شرح ده.نود تسهيل الهدايه ځخه به دمختصرالقدوري شرح هم تياره كړم.دهغه وخت نه مې اراده اوكړه بلكه شروع مې پرې هم كړې وه. اوباقاعده په خپلو تاليفاتو كښې مې دهغې تشهير هم د ،،فوزالمبتدى بشرح مختصر القدوري،، په نوم باندې چلولو.په مينځ كښې د مختلفو عوارضو په وجه دا شرح په التواى كښې پرته وه.خو الحمد لله هغه ورځ هم راغله چې دې ته الله تعالى د تكميل موقع وركړه او اوس ستاسو په لاسونو كښې د قدوري شرح ,,فوز المبتدى شرح مختصر القدوري،، موجود ده.د دې په تاليف كښې چې ما كومه طريقه اختيار كړې ده.د هغې تفصيل دا دې.

① دهر متن دپاره مناسب عنوان> په موجوده وخت كښې عنواناتو ته هغه مقام او حيثيت حاصل دې.كوم چې د چا نه پټ پناه نه دې.نوما دهر متن نه وړاندې هغې ته مناسب عنوان وركړو.

② دترجمې يو نوې ترتيب> په عامو كتابونو كښې زمونږ په ملك كښې د ترجمې دوه قسمونه رائج دي يودا چه اول تول عربي عبارت نقل كړې شي او بيا وروستو د هغې ترجمه اوكړې شي. خو په دې ترجمه كښې يومبتدى طالب ته دا پته نه لګي چه دا ترجمه په متن كښې د كومې جملې ده اومنتهى طالب ته اګرچه پته لګى خو هغه به ضرور دا تكيلف برداشت كوى چه د متن په عبارت به نظراچوى او د هغې نه به معلوموى چه دا ترجمه د دې جملې ده.د ترجمې دوه طريقې دا رائج دى چه اوله كړښه كښې عبارت وى او لاندې دويمه كړښه كښې د هغې ترجمه وى اګرچه كوشش دا كولې شى چه هرلفظ ته مخامخ د هغې ترجمه راشى. خو دا كار د ېرګران دې نو ددې وجې اګرچه په لاندينۍ كړښه كښې ترجمه وى اوپه سرسرى نظر سره دا ښكارى چه په دې لاندې كړښه كښې هم د پورتنى عبارت پوره ترجمه ده خوبيا هم ضرور داسې كيږى چه د اولنۍ كړښې د عبارت ترجمه د دويمې كړښې دعبارت د ترجمې لاندې ليكلى شى يقينى خبره ده چه يومبتدى طالب دپاره دا د تشويش او پريشانۍ باعث دې.ددې وجې ما په تسهيل الهدايه كښې د ترجمې يو نوې طرز اختيار كړو.هغه دا چه د عربۍ هره يوه جمله او وروسته سمدستى متصل هم د هغې ترجمه يعنى ما د هرې جملې ترجمه په هغې پسې كړې ده نه مې اوله طريقه اختيار كړې ده او نه مې دويمه طريقه اختيار كړې ده په دې كښې فائده دا ده چه هريوكتونكى ته په آسانتيا سره دا معلوميږى چه دا ترجمه د عربۍ ددې جملې ده.

③ د عبارتونو تقسیم: د متن د هرې یوې مسئلې په جدا جدا شرحې سره وضاحت مې کړې دې.دا نه چې دوه درې مسئلې مې په یو متن کښې جمع کړې دی اوبیا مې د هغې تشریح کړې ده.په دې طریقه کښې طالب علم ته یقینا آسانتیا ده.چې هغه د مطلوبه مسئلې د تشریح دپاره لټون نه کوی.بلکه په آسانتیا ورته خپله مطلوبه مسئله په تشریحی شکل کښې ملاویږی.

④ د لفظونو حل:د هرمتن نه پس چه په هغې کښې کوم لغات وی د ,,حل اللغة،، په نوم مو دهغې معنی کړې ده خوپه معنی کښې مونږ اکثر د فعل هغه معنی کړې ده کومه چه په متن کښې مراد وی.یعنی که ماضی وی نو د ماضی معنی مو کړې ده اوکه مضارع وی نو د مضارع معنی مو کړې ده او که امر وی نو د امر معنی موکړې ده اومصدری معنی مو هم کړې ده البته دا ده چه د افعالو یا اسماؤ سره کوم ضمائرراغلی دی یا په فعل باندې حرف نفی داخل شوې وی نواکثر مو صرف د فعل او اسم معنی کړې ده د ضمائرمرجع مو نه ده ذکر کړې اوکه په اسماؤ کښې تثنیه یا جمع راغلی وی نو د هغې مفرد مو خودلې دې او بیا مو د مفرد معنی کړې ده.

⑤ عربي عنوانات:د متن نه پس د تشریح په نوم باندې د متن د عبارت وضاحت شوې دې او په دې تشریح کښې چه کوم مباحث بیانولی شی نو په عربی ژبه کښې هرې یوې خبرې ته عنوان ورکړې شوې دې په عربی کښې مو د عنوان انتخاب خکه اوکړو چه عربی یوه جامع ژبه ده په مختصرو الفاظو کښې ډیرمطلب راګیروی ګنی پکاردا وه چه دا شرح په پښتو ژبه کښې ده اوعنوانات هم په پښتو کښې وې.خوصرف د عربی د جامعیت د وجې مو عنوانات په عربی کښې ورکړل.

⑥ الأقوال الراجحه في مسائل الهدايه: ما په اول کښې د دې خبرې وضاحت اوکړو.چې فوز المبتدی د تسهیل الهدایه څخه تیاره کړې شوې ده.اوپه تسهیل الهدایه کښې د حنفیانو عالمانو چې په خپل مینځ کښې چې کوم مسائل مختلف فیها دی.په هغې کښې ما د راجح قول تعین کړې دې.دغه شان په فوز المبتدی کښې هم لاندې په حاشیه کښې د راجح قول تعین شوې دې.چې په دې مسئله کښې حنفیان په خپل مینځ کښې مختلف دی.خو راجح قول په کښې دا دې. اود أقوال راجحه د تعین ماخذ زمونږ د وطن یو نامور او مایه نازعالم مفتی غلام قادر دارالعلوم اکوړه ختک د «ترجيح الراجح بالرواية في مسائل الهداية يعني بيان القول الراجح في المسائل الإختلافية في المذهب الحنفي التي ذكرها الشيخ برهان الدين المرغيناني في كتابه المسمى بالهداية» دې.د دې نه تیاره کړې ده.او د دې څخه د انتخاب طریقه دا ده چې چه مفتی غلام قادر مدظله العالی په خپل کتاب کښې اول د هدایه متن نقل کړی او بیا په هغې کښې د اختلاف وضاحت لوکړی او په دریم نمبر په هغې کښې د راجح قول تعین اوکړی او د راجح قول د تعین دپاره اکثر دا عنوان راوړی مثلاً «القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله»او د هغې څخه پس د کوموکتابونو نه چې دا معلومیږی چه هغوی په ذکرشوې اختلافی مسئله کښې دغه قول ته ترجیح ورکړې ده دهغه کتابونوعبارتونه نقل کوی او لاندې په حاشیه کښې د هغې کتاب د جلداو صفحې نمبرې ورکوی نوماد ,,القول الراجح،، خلاصه په مختصرو الفاظو کښې پیش کړې ده هغه داسې چه په اختلافی مسئله کښې کوم قول یا روایت راجح وی د هغې خودنه کوم اودهغې نه پس د کوموکتابونونه چه دهغې راجحیت معلومیږی دهغې دجلد او صفحې حواله ورکوم امید دې چه زما دې سعی او کوشش ته به عالمان او طالبان د قدر په نظر سره اوګوری او دالله نه سوال کوم چه زما دا کوشش په خپل دربار کښې قبول کړی آمین

⑦ صرف د فيما بين الاحناف اختلاف ذکر کول: چونکه مختصر القدوری د مبتدیانو طالبانو کتاب دې.د دې وجې ما په دې کښې صرف هغه اختلاف ذکر کړې دې.کوم چې د حنفیانو عالمانو په خپل مینځ کښې

واقع شوي دي.کله خو مې د مرجوح مذهب د دلائلو ځخه جواب هم کړي دي اوکله مې صرف دلائل ذکر کړي دی د جوابونو ځخه مې قصدا تعرض کړي دي.ځکه چې د متبديانو کتاب دي.

⑧ **د ائمه ثلاثه سره فقط د اختلاف بيان**> په کومو مسائلو کښې چې په ائمه ثلاثه کښې د چا سره اختلاف دي.نولاندي په حاشيه کښې مې صرف اختلاف ذکر کړي دي.دلائلوته مې څه تعرض ځکه نه دي کړي چې دا د مبتديانو طالبانو کتاب دي.اوبله دا چې په هدايه کښې د امامانو اختلاف مع دلائل هسې هم ذکر شوي دي.هلته به ئې بيا په تفصيل سره مطالعه اوکړي شي.

⑨ **د فوز المبتدی د احاديثو تخريج** > ما احقرشاه فيصل په خپله شرح ،،تسهيل الهدايه ،، کښې د ((المرآة الصافيه لتخريج أحاديث الهدايه)) په نوم د هدايه د احاديثوتخريج کړي دي.نود کومو احاديثو تخريج چې ما په تسهيل کښې کړي دي.اوهغه احاديث مې په فوز المبتدی کښې هم نقل کړي دی نو هم هغه تخريج مې په فوز البمتدی کښې هم لاندي په حاشيه کښې ذکر کړي دي.اودهدايه د احاديثو د تخريج دپاره ما خپل مصدراوماخذ د ،،نصب الرايه في تخريج احاديث الهدايه،، تاليف دامام زيلعی رحمه الله جوړ کړي دي اود تخريج طريقه مې داوه چې ماخان ته نصب الرايه مخامخ کيخوده.اود نصب الرايه په مدد سره مې مختصر تخريج شروع کړلو. چه تفصيل ئې دادي.

① امام زيلعی رحمه الله د يو حديث مختلف طرق اواسناد بيان کړي دی.خوما د دغه مختلفو اسنادو اوطرقو نه صرف د يو صحابی رضي الله عنه د روايت په ذکرکولو اکتفاء کړي ده.مثلاً يو حديث د حضرت ابوهريره،حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په رواياتو سره امام زيلعی رحمه الله ذکرکړي وی.نوماصرف د يو صحابی رضي الله عنه د روايت حواله ورکړي ده.

② صاحب دهدايه رحمه الله دخپلې مدعا دپاره پوره حديث نه ذکر کوی.بلکه د هغې نه مختصره جمله راخلی.او امام زيلعی رحمه الله هغه حديث پوره د سند سره ذکرکوی.ماد اختصار د وجې دحديث په تخريج کښې د دوو خبرو التزام کړي دي.يود راوی خودنه چه دا روايت فلانی راوی نقل کړي دي.اوبل د مصدر ذکرچه دا روايت د احاديثو فلانی مصدر اوکتاب ذکرکړي دي. دحديث د الفاظو نقل کولو التزام مې نه دي کړي.

③ کوم احاديث چه صاحب دهدايه په داسې الفاظو سره ذکرکړي وی.چه هغه الفاظ امام زيلعی رحمه الله ته نه وی ملاؤ شوي.نودوی د هغې په تخريج کښې فرمائی.((قلت غريب بهذا اللفظ)) يعنی دا روايت په دې الفاظو ناشنا اونادردي.اودا مراد نه وی.چه دا حديث د مصطلح الحديث د امامانو په نيز غريب دي.اوبيا امام زيلعی رحمه الله داسې روايت ذکر کوی.چه د هغې نه د علامه مرغينانی رحمه الله د دعوې تائيد کيږی.

④ په داسې مقاماتوکښې چه امام زيلعی رحمه الله دهدايه د روايت د تخريج په ځائې خپل روايت ذکرکوی. نوما د خپل عربۍ تاليف ((صلاة الحنفی فی ضوء احاديث النبوي))نه د دغه مسئلې دپاره د احنافومستدل رانقل کړي دي.دا کتاب احقرډيرد عرق ريزۍ نه پس تاليف کړي دي.په دې کښې ئې د صلاة سره متعلق د فقه حنفی د هرې مسئلې دپاره د فقه په ترتيب احاديث سره د تخريج اوتحقيق سره راجمع کړي دی.

⑤ په نصب الرايه باندې لاندې يومحقق احمد شمس ا لدين دا خدمت کړي دي.چه د هغه بابونو ،د کتابونود صفحاتو اود د احاديثو د ارقامو خودنه ئې کړي ده.دکومو مصادرو چه امام زيلعی رحمه الله حوالې ورکړي دی.اوبل خدمت ئې دا کړي دي.چه د هغې مصادرو نه علاوه که دغه حديث ورته په بل

کتاب کښې ملاؤ شوی دی.نودهغې حواله ئې هم ورکړې ده.ما دا خدمت غنیمت اوګنړلو.اودوی چه د کتابونو ،صفحاتو، جلدونو اود احادیثو د ارقامو حوالې ورکړې دی.هغه مې په خپل تخریج کښې ذکرکړل.نو په دې کار کښې زه صرف ناقل محض یم.اصل تحقیق اوکوشش د محقق شمس الدین صاحب دې.که ژوندې وی الله دې ورته عمردراز ورکړی.اوکه وفات وی.نوالله دې ورته قبردنور نه ډک کړی.آمین

**نوټ>** په فوز المبتدی کښې چې ما چرته وئیلی دی چې صاحب د هدیه یا علامه مرغینانی فرمائیلی دی نو ددې مطلب به دا وی چې په هدایه کښې ئې فرمائیی دی دی. دویمه ضروری خبره دا ده چې فوز المبتدی د تسهیل الهدایه څخه ماخوذ دې نو د دې مطلب دا نه دې چې چا سره تسهیل الهدایه موجود وی نو هغه ته د فوز المبتدی ضرورت نشته.څکه چې په هدایه کښې د جامع الصغیر متون هم شته.د دې څخه علاوه په ډیرو مقاماتو کښې داسې عبارتونه او متون هم شته چې هغه په هدایه کښې نشته دغه شان تقریبا پنځوس فیصده مباحث داسې دی چې هغه په تسهیل کښې شته او په فوز المبتدی کښې نشته.څکه چې د هغې تعلق د هدایه د متن سره دې د قدوری د متن سره نه دې. نود دې وجې د فوز المبتدی د مطالعې څخه غافله کیږئ مه بلکه تاسو ته به په فوز المبتدی کښې د مختصر القدوری د متن شرح په آسانه او لنډه طریقه ملاویږی.

**د مدرسینو په خدمت کښې درخواست>** په فوز المبتدی کښې چې ما کوم اختلافات ذکر کړی دی.یا د هغې دلائل نوهغه په درې قسمه دی.

① **اول قسم** هغه اختلاف دې کوم چې د حنفیانو عالمانو په خپل مینځ کښې وی.اوصاحب د قدوریؒ ذکر کړی وی.لکه په اول کښې چې د دخول مرفقین اوکعبین في الیدین والرجلین کښې د امام زفر رحمه الله اختلاف صاحب د قدوری ذکر کړې دې.نوداسې اختلاف چونکه صاحب د قدوریؒ ذکر کړې دې.د دې ذکر کول او په دې کښې د دلائلو ذکر کول مناسب دی.

② **دویم قسم** هغه اختلاف دې کوم چې د حنفیانو په مینځ کښې شته خو صاحب د قدوریؒ نه دې ذکر کړې.او ما په شرح کښې د هغې ذکر کړې دې.نومدرسینوورونړو ته پکار دی چې د دې مطالعه په خپله کوی خو طالبانو ته دا نه بیانوی.څکه چې دا د هغوی د استعداد نه زیاتی بوج په هغوی باندې اچول دی.کوم چې مناسب نه دې.

③ **دریم قسم** د نورو امامانو سره اختلاف کوم چې ما لاندې په حاشیه کښې ذکر کړې دې.د داسې اختلافاتو ذکر کول هم نه دی پکار.څکه چې روسته په هدایه وغیره کښې دغه اختلافات مع دلائل او جوابات راځی. نو د وخت نه وړاندې خامخا یو څیز بیانول مناسب نه دی.څکه چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی کلم الناس علی قدر عقلوهم .زه د خپلو مدرسینو ورنړو نه په دې باندې ګیله مند یم.چې هغوی مبتدی طالبانو ته هم د کتاب نه خارجی دومره اوږده مباحث بیانوی.کوم چې د هغوی د استعداد نه بهر وی.د دې وجې په نفس کتاب باندې هم پوهه نشی اوخارجی خبرې ورته هم یادې نشی.اود دې شعر مصداق ګرځی.

نویکار ده چې د خارجي مباحثو په ځانې نفس کتاب حل شي.او د بې ځایه طوالت نه پرهيز اوکړې شي.
د غلطئ اقرار> زه دا دعوی نه کوم چې د دې کتاب په تاليف کښې به څه غلطي نه وی بلکه انسان د غلطئ او خطائې نه مرکب دي.نوکه تاسو ته په دې کښې څه کمپوزری یا علمی غلطی مخې ته راشي.نو مهرباني اوکړئ مونږ ته د هغې خبر راکړئ چې په راروان چهاپ کښې د هغې اصلاح اوکړو.
واجرکم علی الله

بنده شاه فيصل

دویم سیتنك ۲۰۱۶-۲-۹

# مقدمة الكتاب

بسم الله الرحمن الرحیم

## دفقه تاریخی پس منظر

په ټوله دنیـا کښې چه تر ننه پورې څومره مذاهب راغلی دی په دې کښې اسلام دټولو نه زیات جامع،واضح او مکمل قوانین راوړی دی.چه د انسانی فطرت سره دموافقت دوجې آسان اوقابل عمل (د عمل وړ) دی.ددې قوانینو مجموعه داسلامی فقه په نوم سره یادیږی. دعلم فقه د شروع کیدو نه وړاندې دڅوخبرو پیژندل ضروری دی.د هغې نه مونږ په مبادی سره تعبیر کوو.

## دعلم فقه لغوی او اصطلاحی تعریف

فقه مصدر دې.او د باب سمع او کرم نه راځی.دسمع نه ئې معنا دا ده. چه دیو څیز پیژندل اوپه هغې پوهیدل.دیو څیز پرانیستل او وضاحت کول.اود باب کرم نه معنا دا ده.چه فقیه ګرځیدل، په علم کښې پورته کیدل.فقه بکسر القاف پیژندل او بفتح القاف پوهول اوبضم القاف په فقه کښې کمال پیدا کول او مهارت حاصلولو ته وائی.علامه زمحشری په کتاب الفائق کښې لیکی (الفقه حقیقة الشق والفتح والفقیه العالم الذی یشق الاحکام ویفتش عن حقائقها ویفتح ما استغلق منها)

## د فقه لغوی معنی

دیو څیز پرانیستل اوښکاره کول دی.اوفقیه هغه عالم ته وائی.چه هغه د احکامو (شرعیو) وضاحت کوی.اوددې د حقائقو پته لګوی.اود مغلق او ګرانو مسائلو وضاحت کوی.

## اصطلاحی معنی

ددې مشهور تعریف دادې (هوالعلم بالاحکام الشرعیة الفرعیة من ادلتها التفصیلیة)فقه په احکام شرعیه کښې هغه احکامو ته وائی.چه هغه د تفصیلی دلائلو نه حاصل شوی وی.دکومو احکامو تعلق چه عمل سره وی. هغې ته احکام فروعی وائی.اودکومو تعلق چه اعتقاد یاتو سره وی.هغې ته احکام اصول وائی .ابن خلدون په خپله مقدمه کښې لیکی" په کوم علم سره چه د مکلفینو د افعالو په باره کښې دالله پاك د احکاماتو معرفت حاصلیږی.پدې حیثیت چه هغه واجب یا ممنوع یا مندوب یا مکروه یا مباح وی نو هغې ته علم فقه وائی.

## د فقه غرض او غایت

د غرض او غایت نه څه مراد دې؟غرض هغې ارادې ته وائی دکومې دپاره چه یوکار کولې شی.او غایت هغه نتیجه ده.چه په هغې باندې مرتب وی.لکه دقلم اخستلو دپاره بازار ته تګ غرض دې. او قلم اخستل غایت دې.نو غرض او غایت دواړه د مصداق په اعتبار سره یو څیز دې.خو دابتداء او انتها فرق دې.عام طور غرض او غایت یوځیزته ونیلې شی.څکه که صحیح طریقه اختیار کړې شی نوپه غرض باندې غایت مرتب کیږی.

## دعلم فقه موضوع

دمکلف فعل دې.لیکن داخیال پکار دې چه موضوع مطلقه نه وی.بلکه دڅه نه څه قید سره مقیده

وی.لکه دنحو موضوع کلمه او کلام دي.اود ،،من حیث الاعراب والبناء"په قید سره مقید دي. دغه شان دعلم طب موضوع د انسان بدن ده.اود (من حیث الصحة والمرض)په قید سره مقید دي.اودعلم صرف موضوع کلمه ده.او د "من حیث التصریف" په قید سره مقید دي.نو دغه شان دمکلف فعل په "من حیث الحلال والحرام" مقید دي.

**دفقه ماخذ:**

هغه ذرائع چه دکومو نه قانون جوړولي شي.دکوم څائي نه قوانین د دلائلو سره حاصلولي شي. اوپه کوم فن کښې چه ددغه ذرائع او مقاماتو نه بحث کولي شي.هغې ته اصول فقه وائي. چه تعریف ئې دادې. (هوعلم بقواعد يتوصل بها الى استنباط الاحكام الفقهية عن دلائلها) اصول فقه دیو څو داسې کلی اصولو نوم دي.چه دکومو په ذریعه د دلائلو نه د قوانینو د استنباط طریقه معلومولي شي.

**بنیادي ماخذ**

د اسلامی قانون بنیادی مآخذ لاندې ذکر کولي شي.(ا) قرآن (ب)سنت (ج) قیاس (د) اجماع.

**د فقه اسلامي اولني ماخذ قران**

د اسلامی قانون اولنې بنیادی او اساسی مآخذ او مصدر قران حکیم دي.

قران کریم د بنی نوع انسان د راهنمائی دپاره نازل شوي دي.دا د اسلامی قانون اولنئ او حقیقي سرچشمه ده.داپه نقل متواتر سره مونږ ته رارسیدلي دي .اوپه دي کښې هیڅ شك نشته.چه دا دالله تعالى کلام ،مصدر او قانون دي.

**د قرآني احکامو دوه قسمونه**

قرآنی احکام په دوو قسمونو تقسیمولي شي .

① **عبادات**>دا بغیر د نیت نه نه صحیح کیږی.لکه مونځ او روژه خالص عبادتونه دی.او بعضې مالی اوتمدنی عبادتونه دی.لکه زکاة شو.او بعضې بدنی او تمدنی دی.لکه حج شو. داڅلور عبادتونه دایمان نه پس داسلام بنیاد ګڼړلي شوي دي.

② **معاملات**> ددې څلور قسمونه دی.

(ا) قوانین تحفظ دعوت اسلام یعنی جهاد

(ب) قوانین استقلال خاندان یعنی هغه احکام چه نکاح،طلاق،نسب اووراثت سره تعلق ساتي.

(ج) قوانین معاملات باهمی یعنی بیع او اجاره وغیره.

(د) قوانین تحریری یعنی حدود او قصاص.

**دفقه اسلامي دويم مآخذ سنت**

د سنت لغوی معنی عادت، طریقه اوخوښه لاره ده.خوپه فقهی اصطلاح کښې د سنت نه مراد د نبیﷺ اقوال،افعال او تقریرات (دتقریر مفهوم دادې چه نبی ﷺ یو صحابی په کار لیدلي وی.یائې ترې څه خبره اوریدلي وی.او په هغې چپ پاتې شوي وی.نو دا خبره په سنت کښې داخله ده.څکه چه د نبی ﷺ خاموشی ددې فعل په تائید کښې کافی ده.د نبی ﷺ د ذات نه داخبره لرې ده.چه نبی ﷺ په یو ناروا کار باندې خاموشی اوکړی) اود دصحابه کرامو رضي الله عنهم اقوال سنت دی.پدې کښې شك نشته.چه د فقه اولنې مآخذ قران دی.لیکن قران احکام اجمالاً طور بیانوی.ددې تفصیل مونږ ته په سنتو کښې ملاویږی ډاکټر حمیدالله لیکي چه په حدیث نبوی کښې دفقهی ضوابطو تعداد دقران دضوابطو نه زیات دي. حدیث په قران پاك پسې په دویمه درجه کښې ساتلي شوی دی.ددې اصل وجه د احادیثو دصحت په ثبوت کښې مشکلات دی.لیکن پدې کښې شك نشته چه قران پاك ښکاره او غیرمشروط

طور سره دنبي ﷺ فرمان ته دقران پاك برابر درجه ورکړې ده.څکه چه د رسول ﷺ امر،قول د مرسل دطرفه ګڼلې شي.

## قرآن کريم کښې د سنت بنياد

په قران کريم کښې دالله پاك ارشاد دې چه ﴿وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ ﴿إِنَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ﴾پدې آيتونو کښې ښکاره نبي ﷺ دقران کريم شارح او موضح ګرځولې شوې دې.نبي ﷺ به په خپلو اقوالو او افعالو کښې د قران د مطلبونو او مقاصدو وضاحت کولو.په کتاب الميزان کښې دحضرت عمر ﷺ يو قول نقل شوې دې.چه هغوی فرمائيل (سياتي قوم يجادلونکم في شبهات القران فخذوهم بالسنن فان اصحاب السنن اعلم بکتاب الله).روستو به داسې خلق پيدا شي چه هغوی به په قرانی متشابهاتو کښې تاسو سره جګړې کوی نو تاسو په هغوی باندې دسنت په ذريعه حجت قائم کړئی څکه چه اصحاب السنن په کتاب الله ښه پوهيږی.

## د سنت تشريعي حيثيت

نبي ﷺ دمجمل آيتونو تشريح دمشکلو آيتونو تفسير اومطلق آيتونو نه د موقع اومحل په لحاظ سره مقيد اوګرځول.د مجمل احکامو دعمل کيفيت،اسباب اوشرطونو او لوازماتو وغيره تفصيل ئې اوکړلو.د مونځ او زکاة کوم تفصيلات چه په سنتو کښې ذکر دی.هغه ټول هم دقران وضاحت دې.دقرآنی حکمونو وجوهات ،اسباب ،حکمت او مصلحت ئې بيان کړلو.د هغې نه ډير اصول او قواعد مستنبط شو.

**داحاديثو دوه قسمونه**> حضرت شاه ولی الله ﷫ دنبی ﷺ دفرموداتو په مجموعی حيثيت سره دوه قسمونه بيان کړی دی.

① اول هغه چه دهغې تعلق دپغمبرانه فرائضو، تبليغ او رسالت سره دې .آيت ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا﴾تعلق هم ددې حصې سره دې.پدې کښې عقائد ، عبادات، اخلاق، معاملات او دآخرت وغيره سره متعلق تفصيلات دی.

② دويم هغه چه دهغې تعلق د مشورې او رائې سره دې.دنبی ﷺ ارشاد دې. ﴿انما انا بشر اذا امرتکم بشئ من دينکم فخذوه واذا امرتکم بشئ من رائي فانما انا بشر﴾زه انسان يم کله چه ستاسو ددين په باره کښې څه حکم اوکړم نو په هغې عمل کوئی.او کله چه په خپله رائې سره دڅه حکم اوکړم نو ښکاره خبره ده.چه زه انسان يم.پدې کښې دا لاندينی تشريحات شامل دی.

① هغه احکام چه په عارضی مصلحت يا سياست باندې مبنی وی.هغه چه دطريقه کارمتعلق وی.او د زمانې تيريدو سره بدليږی رابدليږی ② هغه کارونه چه هغه دملکی عادتونو او رواج مطابق اختيار شوی وی. ③ دعربو د بعضې تجربو،علاج،زراعت او باغبانۍ وغيره سره متعلق څيزونو باره کښې چه ئې څه فرمائيلی وی.

## دفقه اسلامی دريم ماخذ اجماع

دقران او سنت نه پس داسلامی قانون دريم مآخذ اجماع ده. په لغوی معنی کښې ددې مطلب عزم او اتفاق دې.اوپه شرعی اصطلاح کښې ددې تعريف په دې لاندينو الفاظو کښې کولې شي.

،،په يوه زمانه کښې دټولو مجتهدينو او عالمانو په يوه فيصله باندې متفق کيدلو ته اجماع وئيلې شي.

قاضی بيضاوی ﷫ ليکی چه (وهو اتفاق اهل الحل والعقد من امة محمد ﷺ على أمر من الأمور)د رسول الله ﷺ

دامت اهل حل وعقد په یوه فیصله باندې داتفاق کولو نوم اجماع ده.

## د فقه اسلامی دریم ماخذ اجماع

دقران او سنت نه پس داسلامی قانون دریم مآخذ اجماع ده. په لغوی معنی کښې ددې مطلب عزم او اتفاق دې.اوپه شرعی اصطلاح کښې ددې تعریف په دې لاندینو الفاظو کښې کولې شی.
،په یوه زمانه کښې دټولو مجتهدینو او عالمانو په یوه فیصله باندې متفق کیدلو ته اجماع ونیلې شی. قاضی بیضاوی لیکی چه (وهواتفاق اهل الحل والعقد من امة محمد ﷺ علی أمر من الأمور) د رسول الله ﷺ دامت اهل حل وعقد په یوه فیصله باندې داتفاق کولو نوم اجماع ده.

## په اجماع باندې قرآنی دلائل

داجماع په تائید کښې په قران او حدیث کښې دلائل موجود دی.
① ﴿وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا﴾ (نساء)
اوڅوك چه مخالفت د پیغمبر کوی.پس ددې نه چه ښکاره شوې وی ورته هدایت او تابعداری کوی سوا د لارې د مسلمانانو.نومونږ به دې واړوو.هغه طرف ته چه دې ورته اوړیدلې دې.اوداخل به کړو جهنم ته.اودیر بد ځائی دی.
② ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ﴾ (نساء)اې د ایمان خاوندانو! تابعداری دالله کوئ.اوتابعداری د پیغمبر کوئ.او د حاکمانو په تاسو کښې.ددې آیت نه ضمناً دا هم معلومه شوه.چه د اتفاق په صورت کښې اجماع د امت د شرعی دلیل په حیثیت سره قابل قبول ده.

## د فقه اسلامی څلورم مآخذ قیاس

داسلامی قانون څلورم مآخذ قیاس دې.ددې لغوی معنی اندازه کول دی.دفقهاؤ په اصطلاح کښې قیاس په علت او حکم کښې فرع داصل سره د برابرولو نوم دې.داصول فقه په کتابونوکښې چه دقیاس کوم تعریف شوې دې.د هغې حاصل دا دې.په نورالانوار کښې نقل شوی دی چه (تقدیرالفرع بالاصل فی الحکم والعلة) په حکم او علت کښې فرع داصل مطابق ګرځول.قیاس پدې حیثیت چه دا د اسلامی قانون مآخذ دې.د دې په باره کښې فقهائې کرامو دا لاندینی دلائل پیش کړی دی.
**دقیاس دلائل>** دالله ﷻ ارشاد دې چه ﴿فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ﴾ (حشر)اعتبار اوکړئې اې د نظر خاوندانو.د اعتبار معنی قیاس ده.ونیلې شی (اعتبرت الشئ بالشئ) چه یویه بل باندې قیاس کړی.په تلویح توضیح کښې د اعتبار مطلب داسې بیان شوې دې (ردالشئ الی نظیره ای الحکم علی الشئ بما هوثابت لنظیره) یو څیز دهغې نظیر طرف ته اړول یعنی کوم حکم چه دهغې د نظیر وی هم هغه حکم ددې څیز ګرځول.

## په شرعی لحاظ سره د قیاس سند حیثیت

کوم احکام چه په قیاس سره مستنبط وی هغه د مستند کیدو په لحاظ سره داسې نه وی.کوم چه په قران حدیث یا اجماع سره ثابت وی.داهل سنت داصول فقه مسئله ده.چه دیو فقیه رائې غلطه هم کیدې شی او صحیح هم.نو ځکه د مقدماتو د فیصلې په وخت کښې دا ضروری نه ده.چه هغه صرف د دې وجې د یوې خاص قاعدې پابند وی.چه هغه بعضې فقهاو خوښه کړې وی بلکه هغه ته دخپلې رائې مطابق د فیصلې کولو اجازت شته.که په قیاس باندې دعلماء اجماع اوشی. نود هغې شرعی حیثیت بدل شی.ددې تبدیلئ وجه اجماع وی دعالمانو قیاس نه وی.یو قیاس بل قیاس نشی باطلولې.که دوه قیاسونه د یوبل نه خلاف وی.نو فقیه ته اختیاردې.چه په دواړو کښې کوم یو اختیار وی.ددې وجه دا

ده.چه دقیاس انحصار د مجتهد په استعداد اوپه علم باندې وی.

## دعلم فقه شرعی حکم

دعلم فقه زده کول فرض عین هم دی او فرض کفایه هم.دهر یو کس دپاره ضروری ده.چه دومره علم حاصل کړی.چه دهغې ضرورت په دین کښې پیښیږی .نو دا فرض دې.اوکه دضرورت نه زیات دنورو فائدو دپاره وی.نو د هغې حصول فرض کفایه دی.چه نور خلق هم د مهلکاتو نه بچ کړی.په علم فقه کښې کمال حاصلول مستحب دې.خو په مالدار باندې د زکاة او حج مسائل، په وادهٔ کونکی د نکاح مسائل،په طلاق ورکونکی د طلاق مسائل،په سوداگر د سوداگرئ مسائل،په زمیندار د زمیندارئ مسائل.خلاصه دا چه هریو کس دکوم څیز شغل او کسب کوی.په هغه باندې دهغې مسائلو زده کول ضروری دی.چه دحرام د ارتکاب نه په کښې محفوظ شی.

## دعلم فقه دائره کار

په تجریدی عمل کښې دفقه په صفت کښې د تبدیلئ دوجې اوس دفقه تعلق ددې لاندینو مباحثو سره دې.

① **عبادات>** هغه امور چه دالله ﷻ اودبنده په مینځ کښې د تعلق ساتلو دپاره دی.اود ژوند په میدان کښې دخاص قسم پالسئ اود زاویه نګاه تعین کوی.

② **معاملات>** معاشرتی او مالیاتی قوانین،کوم چه د تعاون او باهمی اشتراك عمل دپاره مقرر دی.مثلاً اخستل خرڅول،عاریت او امانت او ضمانت وغیره.

③ **مناکحات>** دنسل انسانی متعلق قوانین چه په هغې کښې نکاح طلاق، عدت ، نسب، دیت،وراثت وغیره ټول شامل دی.

④ **عقوبات>** په دې کښې د جرمونو او ددے دسزا نه بحث کیږی.قتل،غلا ، تهمت وغیره. دغه شان قصاص ،تعزیرات او خون بها وغیره.

⑤ **مخاصمات>** په دې کښې عدالتی مسائل،قانون او مدافعه او اصول محاکمه بیانولې شی.

⑥ **حکومت او خلافت>** پدې کښې قومی او بین الاقوامی معاملات، دصلحې اودجنګ احکام، وزارت ،محاصل وغیره تفصیلات بیانولې شی.د دې تفصیل نه معلومیږی.چه داسلامی فقه دائره کار څومره وسیع دې. ددې د قانونی ګرفت یا اخلاقی احساس نه خو د ژوند انفرادی اعمال خالی دی.اونه اجتماعی. د دې نه دا اندازه هم کیدې شی.چه زمونږ د اسلافو او قدیم فقهاؤ نظر څومره ژور وو.چه هغوی په وړه وړه مسئله کښې دقران او حدیث نه رهنمائی حاصله کړې ده.او یائې اجتهاد او استنباط کړې دې. اودهغې شرعی حل اوصورت نې راویستې دې.

## په احادیثو کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله طریقه کار

① د حدیث متواتر علم قطعی وی.او دخبر واحد ظنی.ځکه امام اعظم رحمه الله صرف خبر متواتر د ایمان مدار ګرځولو. ② اوپه خبر واحد باندې ئې عمل واجب ګڼرلو.خو دا ئې په ایمانیاتو کښې حجت نه ګڼرلو.امام اعظم رحمه الله خبرواحد ته هغه درجه نه ورکوله.کومه چه ورته په شافعی یا حنبلی مسلك کښې حاصله ده.خو دوی خبر مشهور د خبرمتواترسره نزدې مرتبه ورکړې وه.مشهور احادیث ډیر دی. ③ د خبر واحد د قبول معیار دامام اعظم رحمه الله په نیز ډیر سخت وو.هغوی به هغه روایت نه منل چه د هغې تصادم به دقران یاحدیث سره وو. ④ که دوه روایتونه په ظاهره مختلف وو.چه یو صرف ظاهری معنی لرله.او بل کښې تاویل ګنجائش هم وو.نو هغوی به ددغه تاویل د وجې تطبیق کولو. ⑤که په دوو احادیثو کښې به داسې تعارض وو .چه د موافقت څه صورت په کښې په نظر نه راتلو.نو په هغې کښې

به ئې هغه اختیارولو. دکوم تائید چه به د صحابه کرامو ﷢ په عمل سره ثابت وو.یا دکوم راوی چه به په ضبط عدالت او فهم کښې اوچت وو. ⑥ که دخبر واحد موازنه به دقیاس سره اوشوه.نو امام ﷫ ترجیح خبر واحد ته ورکوله.داسې روایت ته احناف ﷭ (غیر شناس) وائي. یعنې دعقل نظر ددې د ادراك نه عاجزدې.امام اعظم ﷫ په بعضې اخباراحاد باندې عمل نه کولو. خود هغې سبب به یو مخفی سقم یا بل څه دلیل وو.ګنې اصولی طور د امام اعظم ﷫ په نظر کښې خبر واحد ته په قیاس باندې ترجیح حاصله وه. امام اعظم ﷫ به خبر مرسل ته هم په قیاس باندې ترجیح ورکوله.

## په اجماع د صحابه کرامو ﷢ کښې د ابوحنیفه ﷫ طریقه کار

د امام اعظم ﷫ په نیز دقران او سنت نه پس د صحابه کرامو اجماع ده. دصحابه کرامو﷢ اجماع دنبی ﷺ دسنتو وضاحت دې.

①که په یوه مسئله کښې صرف دیو صحابی قول ملاوشي.اود بل صحابی د فتوې سره متضاد نه وی.نو احناف هغه هم یو قسم اجماع یعنی اجماع سکوتی ګڼړی.خوېدې شرط چه د قران اوسنت نه خلاف نه وی.②که دصحابه کرامو ﷢ په رائې کښې اختلاف وی.نو امام اعظم ﷫ هغه قول اخلي.کوم چه قران او سنت ته نزدې وی. ③کوم عمل چه په صحابه کرامو او تابعینوکښې مسلسل راروان وی.نو امام اعظم ﷫ هغه حجت ګڼړی.څکه چه په صحابه کرامو﷢ او تابعینو دا ګمان کول فضول خبره ده.چه هغوی به په تواتر سره (همیشه) د سنت نه خلاف کړې وی. ④ امام اعظم ﷫ پخپله هم تابعي وو او دتابعینو د انفرادی اقوالو پابند نه وو.بلکه په هغې کښې به ئې اجتهاد کولو.امام اعظم ﷫ په نظری لحاظ سره په هر دور کښې د اجماع قائل وو.

## په قیاس کښې د امام ابوحنیفه ﷫ طریقه کار

په فقه حنفی کښې په قیاس باندې عمل په هغه وخت کښې جائز دې کله چه ددې نه سوا بل څه دلیل ملاونشي.دقیاس بنیاد په علت منضبطه باندې دې. یعنی په اصل فرع کښې د اشتراك هغه وجه کومه چه دا دواړه په حکم کښې برابروی.امام اعظم ﷫ د قیاس په کولو کښې ډیر محتاط وو.خو هغوی نه یواځې د پیښو شوو مسائلو حل تلاش کړې وو.بلکه په فرعی مسائلو کښې ئې هم غور او فکر کړې وو.څکه د دوی سره د قیاسی فتوو ډیر تعداد موجود وو.دملك او تمدن وسعت ورځ په ورځ زیاتیدلونو امام اعظم ﷫ ضروری اوګڼړلو.چه د فقه د تدبر لمن هم وسیعه شي.لیکن ورسره داهم ضروری وه.چه رائې هم بې لارې نشي.ددې د حدودو تعین لازمی وو.دوی دفکر او نظر دپاره قاعدې اوضوابط مقررکړل اوقیاس ته ئې د یو فن شکل ورکړلو.چه په دې کښې په هیڅ صورت کښې د غلو صورت پیدا نشي.د مسئلو دکثرت باوجود د دوی مسلك د نقل او عقل په اعتبارسره یو ښکلې امتزاج او ګډون پیش کوی.امام اعظم ﷫ چه کومه ذمه واری اخستې وه. هغه ډیره ګرانه او مشکله وه.په هغه وخت کښې بعضې ائمه کرام ددې طریقې خلاف وو.او فرضی مسائل ئې یو طرف ته کړه.چه په پیښو شوو واقعاتو کښې به هم ترڅو پورې هغوی ته سابقه نظیر وراندې وو.نو هغوی به د رائې ورکولو نه پرهیز کولو.دامام اعظم ﷫ رائې مختلفه وه.اګرچه علم دین یوه نازکه مرحله ده.لیکن په دوی کښې ددې ذمه دارئ اهلیت وو.که د اهلیت باوجود نې ددې نه پرهیز کول جرم ګڼړلو.د دوی قول دې.که ماسره د علم ضائع کیدو ویره نه وه.نو د فتوو ورکولو ذمه واری به مې نه وه قبوله کړې.

## امام ابو حنیفه ﷫ او د فقه تدوین

د فقه شروع خو دنبی ﷺ د زمانې نه شوې وه.دالله ﷻ ارشاد دې.﴿لِيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ﴾ په دې کښې د تفقه تاکید دې.نبی ﷺ ترغیب هم ورکړې دې.اوفضیلت ئې بیان کړې دې. ارشاد دې. (من یرد الله به خیرا

يفقه فى الدين) يعنى چاسره چه الله پاك د خيگړې اراده اوكړي.نو هغه ته په دين كښې پوهه وركړي.

## په عهد نبوى ﷺ كښې فقه

دصحابوؓ په دور كښې په مسائلو كښې د فرض ،واجب وغيره تفصيل نه وو، صحابه كرامو ﷺ به دنبى ﷺ نه تفقه هم حاصلولو.او ډېر صحابه كرامو ﷺ په دې كښې د ممتاز حيثيت مالكان وو. ليكن دهغوى په زمانه كښې د احكامو قسمونه پيدا شوى نه وو.نبى ﷺ به دصحابه كرامو ﷺ مخامخ اودس كولو.ليكن دا ئې نه وو فرمائيلى.چه دا ركن دې. او دا فرض دې.او دا سنت دې. او دا مستحب دې. صحابه كرامو ﷺ به نبى ﷺ ليدلو.اوهغه شان اودس به ئې كولو.نبى ﷺ به كله يو يو خل د اودس اندامونه اووينځل .اوكله دوه دوه خله.او كله به ئې درې درې خله.او په دے به ئې زيادت نه كولو.د دے نه خو دا اندازه شوې وه .چه كم ازكم يو خل وينځل ضرورى دى.او د دے نه زيات وينځلو نه ئې منع كړې وه.ليكن دائې نه وو فرمائيلى .چه دا فرض دى او داسنت دى اودا مستحب دى. دغه شان حضرت عثمان ﷺ او حضرت على ﷺ د نبى ﷺ د اودس د طريقے تعليم وركولو.دے حضراتو هم څه تفصيل نه وو بيان كړې.دمونځ هم دا حال وو .صحابه كرامو ﷺ د فرضو، واجبو،سنتو او مستحبو څه تحقيق نه كولو. ځكه چه ئې نبى ﷺ په مانځه ليدلے وو.هم هغه شان مونځ به ئې كولو.د نبى ﷺ ارشاد دې.چه (صلوا كما رائيتموني اصلي) دهغه وخت په حالاتو كښې هم دا سادګى مناسب وه.هغوى ته خو د نبى ﷺ په هره ادا باندې خان قربانولو كښې خوند ملاويدلو.خو په بعضې وختونو كښې نبى ﷺ دا ارشاد هم فرمائيلے وو. (قم فصل فانك لم تصل) يعنى پاسه مونځ اوكړه.مونځ دے اونه شو.

## په نبى ﷺ د هيرې راتللو حكمت

دغه شان تكوينى طور په نبى ﷺ باندې هيره هم راتله.چه خلقو ته په داسې صورت كښې مسئله معلومه شى.فرمائى چه (لا انسى ولكن انسى لاسن) يعنى زه په نه هيروم بلكه زما نه هيرول كولې شى.ددے دپاره چه په ماپسې په دغه هيره كښے اقتدار اوشى.(يعنى كه د نبى ﷺ نه هيره نه وه شوې.حالانكه دامت نه هيره كيږى.نوكه امت ته د هيرے د وجې څه مسئله پيښه شوې وه.څه به ئې كولو.د داسې صورت پيدا كيدو دپاره الله تعالى په خپل پيغمبر ﷺ باندې بعضې وخت هيره راوستے ده.چه امت ته د هيرے په صورت كښے هم د نبى ﷺ طريقه معلومه شى.)

## د اجتهاد د ضرورت پيښيدو وجه

بهرحال دنبى د وفات نه پس د اسلامى فتوحاتو سلسله وسيع شوه.او دتمدن دائره وسيع شوه. واقعات دومره زيات شول.چه داجتهاد او استنباط ضرورت پيښ شو.اود اجمالى احكامو تفصيل ضرورى شو.مثلاً كه چا به په غلطئ سره په مونځ كښې څه عمل پرېخودلونو اوس سوال داپيدا شو.چه مونځ اوشو او كه نه؟بيا دا خوممكنه نه وه.چه ټول اعمال دے فرض شى.دغه شان دابه هم غلطى وه.چه ټول اعمال دے مستحب شى.چه دهغې په پرېخودلو څه نقصان نه راځى.ځكه چه په بعضې موقعو باندې دنبى ﷺ نه سجده سهوه نقل ده.ځكه ددے تحقيق ضرورت پيښ شو.چه په مانځه كښې څومره څيزونه فرض دى او څومره واجب؟ څومره سنت دى او څومره مستحب دى؟

## په اصولو كښې داختلاف وجه

او ددے امتياز دپاره چه كوم اصول مقرر كولى شى.او كوم معيار ګرځولې شى.په هغه اصولو كښې د ټولو اتفاق هم ګران وو.ځكه چه داسلامى فتوحاتو د وجه صحابه كرام ﷺ دجهاد ،تبليغ او تعليمى مصلحتونو دپاره په ملكونو اواطرافو كښې خواره شوى وو.بيا دټولو په طريقو د استنباط كښې يو

شان والي هم نشو کيدي.نوځکه په مسائلو کښې اختلاف پيدا کيدل هم لازمی وو.ډير داسې واقعات پيښ شول.چه دهغې نظائر دنبی ﷺ په زمانه کښې موجود نه وو.صحابه کرامو رضی الله عنهم په هغه صورتونو کښې داستنباط تفريع، اود حمل النظير علی النظير نه کار اخستلو.غرض داچه دصحابه کرامو رضی الله عنهم په زمانه کښې د احکامو اومسائلو يوه لويه ذخيره تياره شوې وه .

**د فقه په تدوين کښې دامام ابو حنيفه رحمه الله اود هغوی د شاګردانو کردار**

دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دفتاوو زياته ذخيره وه.ليکن مرتبه نه وه.چه چا به ترې څه تپوس اوکړو . هغوی به جواب ورکړلو. اوشاګردانو به اوليکلو .هغه ذخيره حضرت علقمه رحمه الله ته رارسيدلې وه.هغوی دهغې وضاحت او تشريح اوکړله . هغه ئې ښه واضحه او تازه کړې.او هغې ته ئې قوت ورکړو.بيا حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله دهغه په ګډنې کيناستلو.هغوی دد ے سلسلې تولې فائد ے اونوادر جمع کړل.اودد ے قابلې ئې جوړ ے کړې.چه دهغې نه فائده اخستل آسان شو.بيا چه کله دهغوی په ګدئ سليمان رحمه الله کيناستلو.نو هغوی دد ے ښه وضاحت اوکړلو.لکه څنګه چه غله د بوس وغيره نه صفا شي. حضرت حماد رحمه الله چه کله په کال ۱۲۰ھ کښې وفات شو.نو خلقو حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله ته منت اوکړلو. او دوی ئې دهغوی په ګدئی باندې کينولو.دامام اعظم رحمه الله د زمانې پورې اګر چه د فقه کافی مسئلې مدون شوې وې.ليکن بې ترتيبه وے اوهغې ته فنی حيثيت حاصل نه وو.نه خو داستنباط او استدلال قواعد وو.او نه دمسائلو د تفريع اصول مقرر وو.نه په حديثو کښې امتياز د مرتبو وو.اونه د قياس اواستحسان او الحاق النظير بالنظير قواعد مقرر وو.خلاصه داچه فقه تراوسه پورې دجزوی مسائلو نوم وو .دا قانونی مرتبې ته رسولو کښې ډير محنت پکار وو.

**دامام اعظم رحمه الله اوچت اوصاف**

دالله ﷻ احسان ووچه امام ابوحنيفه رحمه الله ته ئې ډيره اوچته حافظه ورکړې وه.دناسخ او منسوخ په تحقيق کښې ورته کمال حاصل وو.دلغت اود عربيت تدوين په کوفه کښې پيدا شوې وو. الله ﷻ ورته مناسب طبيعت او اوچت فهم ورکړې وو.دسوداګرئی وسعت اوملکی تعلقاتو هغوی د معاملاتو دضرورت نه خبرکړې وو.هغوی ښه پوهيدل چه لين دين معاشرت او معاملاتو کښې خلق څه کوی .په دې کښې کوم کوم خرابئ دی.او د د ے اصلاح به څنګه اوکړې شي؟د اطرافو نه به دکوفے مرکزی دارالعلوم ته په سوونو استفتاګانې راتلې. ددے نه ورته هم ښه تجربه حاصله شوې وه.الله ﷻ په کښې د فقه د تدوين جذبه پيداکړله.په دې سلسله کښې د دوی خوبونه او زيری ډير مشهور دی. طبيعت ئې د اجتهاد اودغير معمولی تقوی په صفت موصوف وو.بيا

**دامام ابوحنيفه رحمه الله د تدوين محتاطه طريقه**

چه امام ابو حنيفه رحمه الله په کومه طريقه د فقه د تدوين اراداه کړې وه.هغه ډيره وسيع اود خطرو نه ډک او د ذمه وارئ کار وو.دوی دا غوښتل چه دا شريعت مکمل او دائمی دې.نو دد ے په رڼرا کښے چه کوم کار وی هغه به هم په دائمی ضروررياتوحاوی او مشتمل وی. نوځکه دومره لوئې کار دوی صرف په خپلو ذاتی معلوماتو باندې کولو.بلکه په خپلو نامتو شاګردانو کښې چه څوك د فن ماهران اوصاحب دکمال وو.هغوی ئې منتخب کړل.لکه يحيی بن ابی زائده، حفص بن غياث، قاضی ابويوسف،داود طائی، حبان مندل.دوی په آثارو احاديثو کښې ډير مهارت لرلو. امام زفر په قوت استنباط کښې زيات مشهور وو. قاسم بن معن او امام محمد ته په ادب او عربيت کښې کمال حاصل وو.بيان شوې دې.چه دامام ابو حنيفه رحمه الله د تدوينی بورډ شريکان او ممبران ځلويښت لوئې لوئې عالمان او د فن ماهرين وو.

## دامام ابو حنیفه رحمه الله د تحقیق او تدوین طریقه

دامام ابو حنیفه رحمه الله په شاګردانو کښې لس کسان ممتاز او وړاندې وو.په دوی کښې امام ابو یوسف رحمه الله ، امام زفر رحمه الله ، داود طائي رحمه الله ، اسد بن عمر رحمه الله یوسف بن خالد رحمه الله ،یحیی بن زکریا بن ابی زائده رحمه الله ، حفص بن غیاث رحمه الله ، صبان بن مندل رحمه الله ، قاسم بن معن رحمه الله، امام محمد وو. یحیی بن زکریابن ابی زائده رحمه الله تر دیرشو کالو پورې لیکل کول.د اسد بن فرات په یو روایت کښې داهم دی.چه په بعضو مسائلو کښې به نې درې درې ورځې سوچ او فکرکولو.په کتابت کښې به نې توندی نه کوله.کله چه به مسئله واضحه شوه او اطمینان به ورته حاصل شو.نو بیا به نې هغه لیکله .یحیی بن معین رحمه الله په تاریخ او علل کښې لیکلي دی. ، امام زفر رحمه الله فرمائی.چه مونږ به امام ابوحنیفه رحمه الله ته تلو راتلو . مونږ سره به امام ابو یوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله وو. مونږ به دامام ابو حنیفه رحمه الله خبرې اوریدلې.یوه ورځ امام ابو حنیفه رحمه الله امام ابویوسف رحمه الله ته اوفرمائیل:چه زما هره خبره مه لیکه.ځکه چه په یوه مسئله کښې زما یو ورځ یو رائې وی.خو په بله ورځ هغه پریږدم. ددې حاصل هم دا دې.چه تر څوپورې یوه مسئله د بحث او مباحثې نه پس محققه شوې نه وی.ترهغه وخته پورې لیکل مه کوه.دا د تقوی اواحتیاط، خوف او ویرې د احساس او د ذمه وارئ کمال وو.الله اکبر.

موفق مکی فرمائی.چه امام ابو حنیفه رحمه الله دخپل مذهب په متعین کولو کښې صرف په خپله ذاتی رائې اکتفا نه ده کړې.بلکه دالله ﷻ اود رسول اکرم ﷺ د اوچت مقام خیال نې ساتلو.او دمسلمانانو سره نې د اخلاص اوخیرخواهئ پوره کوشش کولو.اود دین په باره کښې نې د پوره کوشش او احتیاط نه کار اخستې وو.مجلس شورئ نې مقرر کړې وه.بیا به یوه یوه مسئله وړاندې کیدله.اود ټولو دلائل او نظریات به اوریدې شول.او خپله رائې به نې هم ښکاره کوله.کله کله به په اهمو مسئلوکښې تر یوې میاشتې بلکه ددې نه هم زیات مباحثه روانه وه. تر دې چه په یو قول به فیصله اوشوه.نو امام ابویوسف رحمه الله به هغه په اصولو کښې اولیکله.تر دې چه ټول اصول هم د پوره تحقیق نه پس اولیکلی شوه.

صمیری رحمه الله د خپل مسند نه نقل کړی دی.که د امام ابو حنیفه رحمه الله شاګردانو په یوه مسئله کښې خبرې کولې او قاضی عافیه بن یزید به موجود نه وو.نوامام ابو حنیفه رحمه الله به اوفرمائیل.د عافیه تر راتلو پورې صبر اوکړئ.کله چه به هغه راغلو.او اتفاق به نې ورسره اوکړلو.نو مسئله به اولیکلې شوه.خلاصه دا چه دیو خاص باب یوه مسئله به نې وړاندې کړه.او خلق به په هغې باندې متفق شو.نو په هغه وخت به اولیکلې شوه.او ډیر په آزادئ سره به بحث شروع شو.امام اعظم رحمه الله به ټول دلائل ډیر په توجه اوسوچ سره اوریدل.اوبه آخر کښې به نې فیصله کوله.اکثر به ددوی په محققه فیصله باندې متفق شو.او هغه به نې اولیکله.خو که خلق به په خپلو رائې ګانو قائم وو.نوبه هغه وخت کښې به ټول اقوال لیکلې شو.او دغه شان دا عظیم الشان کار د دیرشو کالو په اوږده موده کښې پوره شو.

## دمدون مسائلو تعداد

دا مجموعه ډیره لویه علمی ذخیره وه.په مقدمه د نصب الرایه کښې دی.چه (واقل مایقال فی مسائله انها تبلغ ثلاثا وثمانین الفا).یعنی کم ازکم ددوی علمی مسائل درې اتیا زره ته رسیدلې وې. بعضې حضراتو لیکلی دی.چه حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله چه څومره مسائل مدون کړی دی.دهغې تعداد نې لیکلې دې. دا مسائل شپږ لکهه وې.د امام محمد رحمه الله دتصنیفانو نه دومره اندازه کیږی.چه هغه مسائل ډیر زیات وو.دصحیح تعداد متعلق فیصله کول ګران دی.دحافظ ابو المحاسن رحمه الله دبیان مطابق نې ترتیب داسې وو.باب الطهارت،باب الصلوة، باب الصوم او بیاد عبادتونو بابونه.ددې پس په معاملاتو کښې په ټولو کښې آخری باب باب المیراث وو.بهر حال دامام اعظم رحمه الله داکار یو نوې کار وو.دحضرت امام اعظم رحمه الله داکار من حیث المجموع په اسلامی تاریخ کښې بلکه په دنیاوی تاریخ کښې بې نظیره

دي.په دنیا کښې نور قومونه هم شته.اود آسماني کتابونو دعویدار هم دی.لیکن هیڅ یو قوم نه دعوی کولې شي.او نه ثابتولے شي.چه دوی د مسائلو د استنباط دپاره اصول او ضوابط مقرر کړی دی.اودیو مستقل فن نقشه ئې دنیا ته پیش کړې ده.

علامه سیوطی رحمه الله په خپل کتاب "تبیض الصحیفه" کښې لیکلي دي چه دامام اعظم رحمه الله په مناقبو کښې يو داهم دې.چه علم شریعت دټولو نه وړاندې دوی مدون کړې دې.په دې موقع هغه مشهوره لطیفه ذکر کول هم مناسب دی.چه ابن مسعود رضي الله عنه د فقه پټے کرلے وو.او علقمه ورته اوبه ورکړې وې.اوسیراب کړې ئې وو. اوابراهیم نخعي رحمه الله هغه کټ کړلو او حماد رحمه الله هغه غویل کړلو.او امام محمد دهغې نه روټۍ پخې کړې چه نن ئې ټول خلق خوري.

**دعلامه زاهد کوثري په ژبه دفقه حنفي اصول**

علامه زاهد کوثری په«تأنيث الخطيب على ماساقه في ترجمة أبي حنيفه من الأكاذيب» کښې شپږ رس اهم اصول ذکرکړی دی.د هغې خلاصه دا ده.

① د ثقه راویانو مرسل روایتونه قبلول خوچه هغې سره قوی روایت معارض نه وی.

② امام اعظم رحمه الله به ،،اخبار احاد،، په هغه اصولو باندې تلل.کوم چه د شرع د مواردو لټولونه پس هغوی سره جمع شوی وو.نوکه یو خبر واحد به د هغو د اصولو نه مخالف وو.د هغې په مقابله کښې به ئې اصل اختیارولو.چه په قوي دلیل باندې عمل اوشي.اوهغه خبرچه د اصل نه به مخالف وو.هغه به ئې شاذ ګرځولو. په معاني الآثارکښې ددے مثالونه زیات موجود دی.

③اخبار احاد به ئې دکتاب په ظواهرو او عموماتو ټولو باندې تلل.نوکه یو خبر به دکتاب د عموم یا ظاهر نه خلاف وو.امام اعظم رحمه الله به قوی دلیل باندې عمل کولو دپاره دخبر په ځاني په کتاب الله عمل کولو.ځکه چه لکه څنګه کتاب الله قطعي الثبوت دی.دامام اعظم رحمه الله په نیز دغه شان ددے ظواهر او عمومات هم قطعي الدلاة دی.لکه چه داصولو په کتابونو کښې تفصیلي دلائل دی.اوکله چه به یو خبر دکتاب الله د عموم یا ظاهر نه مخالف وو.بلکه د هغې د اجمال بیان به وو.نو هغه به ئې قبلولو.ځکه چه په هغې کښې د بیان نه بغیر دلالت نه وی.

④ په خبر واحد به هله عمل کولې شی.تر څوچه هغه دسنت مشهوره نه خلاف نه وی.که هغه سنت فعلیه وی اوکه قولیه وی.

⑤ دغه شان دا هم شرط دې.چه هغه دخپل ځان په شان خبر نه سره هم معارض نه وی.که معارض وی.نود تعارض په وخت کښې به یو ته په بل باندې ترجیح ورکولےشی.اووجوه د ترجیح د مجتهدینو د افکارو د اختلاف د وجې مختلف دی.

⑥ چه د راوی عمل د حدیث نه مخالف وی.لکه دحضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت چه کله سپے په لوښې کښې خوله اووهی.نو هغه اووه ځله وینځی.دا د اووه ځله وینځلو روایت د ابو هریره رضي الله عنه دفتوی نه خلاف دې.

⑦ دکوم خبر په متن یا سند کښې چه زیاتې وی.نو په دین کښې د احتیاط په نقطه نظر سره به دغه زیات روایت په هغه روایت عمل کولې شی.په کوم کښې چه کمے اونقص وی.

⑧ چه دخبر واحد تعلق عام او زیات پیښیدونکې واقعې سره نه وی.ځکه چه په داسې عمل باندې دحکم ثبوت دشهرت یا تواتر نه بغیر نشی منلې.په دې کښې حدود او کفارات هم شامل دی کوم چه دشهبې د وجه ساقطیږی.

⑨که د یوے مسئله په حکم کښې دصحابه کرامو رضی الله عنهم اختلاف پاتې شوې وی.اوچه کوم صحابی په کښې اختلاف کړې وی خوهغه نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته په استدلال او احتجاج کښې خبر واحد نه وی پیش کړې.بلکه په هغې ئې استدلال پریخودے وی .نو په داسې صورت کښې به هم هغه خبر واحد معمول به نشی جوړولې.

⑩ که په خبر واحد باندې په سلفو کښې چا طعن کړې وی.نوپه دے صورت کښې به هم خبر واحد نشی قبلولې.

⑪ چه مختلف روایات موجود وی.نو په دې صورت کښې به هم حدود او عقوباتو کښې په آسان روایت عمل کولې شی.

⑫چه راوی دکوم وخت نه دخپل استاد نه روایت اوریدلے وی.او په کوم وخت کښې بیا د هغې روایت کوی.نو دا ضروری ده.چه دغه روایت ورته په دې موده کښې یاد وی.او ددے په مینځ کښې ترے هیڅ وخت کښې هیر شوې نه وی.اوکه داسې نه وی.نودهغه په روایت باندې استدلال صحیح نه دې.حالانکه باقی ټول محدثین دا شرط لازمی نه ګڼړی.او د بار بار هیرولو باوجود په روایت باندې استدلال کول صحیح ګڼړی.

⑬که دحدیث راوی ته خپل حدیث یاد نه وی.او هغه په خپلو لیکلو باندې اعتماد اوکړلو. او روایت ئې اوکړلو.نو په داسې صورت کښې هم دامام اعظم رحمه الله په نیزے قابل حجت پاتې نشو.حالانکه نور محدثین داهم حجت ګڼړی.

⑭ کوم حدود چه د شبهاتو په وجه ساقطیږی.که د هغې په باره کښې روایات مختلف وی.نو امام اعظم رحمه الله احوط روایت باندې عمل کوی.لکه په دے روایت کښے چه راغلی دی.چه لاس به د هغه څیزپه غلا کښې کټ کولې شی.چه هغه د دینار د څلورمے حصې برابر وی.خو امام اعظم رحمه الله ددے په مقابله کښې هغه روایت معمول بها جوړ وی.چه په هغې کښې دلسو دراهمو په برابر د څیز په غلا باندې د لاس کټ کولو حکم راغلے دې.څکه چه د دراهمو په روایت باندې عمل کولوکښې زیات احتیاط دې.خو چه په دواړو روایاتو کښې د یو تقدم او تاخیر معلوم نه وی.څکه که داسې وی نو چه کوم موخروی هغه به د مقدم دپاره ناسخ وی.

⑮امام اعظم رحمه الله په داسې حدیث باندې عمل کوی.چه د هغې په تائید کښې آثار زیات وی.

⑯ چه خبر دصحابو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله دعمل متواتر نه مخالف نه وی.که دغه حضرات دکوم یوبنا رتعلق ساتی.د دوی په نیز د یو بنارتخصیص نشته.

د پاکو (د احکامو) بیان

## كِتَابُ الطَّهَارَةِ

ترجمه> (دا) کتاب د پاکوالی (د احکامو په بیان کښې) دې.

تشریح> المباحث الثلاثة في الجملة> په دې جمله کښې درې مباحث دی.

① دکتاب د لفظ سره متعلق ② ترکیب نحوی ③ د طهارت د لفظ سره متعلق،

معني الكتاب لغةً> د اول بحث حاصل دا دې.چه دکتاب اوکتابت لغوی معنی ده. د یو څیز جمع کیدل،اود کتاب نوم کتاب ځکه کیخودې شوې دې. چه په دې کښې حروف جمع کیږی.او کتاب دمکتوب په معنی کښې هم استعمالیږی.لکه خلق چه د مخلوق په معنی کښې استعمالیږی.

معني الكتاب شرعاً> په اصطلاح کښې کتاب دمسائلو هغه مجموعه ته وائی.چه مستقلا معتبره وی.او په مختلفو انواعو مشتمله وی.یا په مختلفو انواعو مشتمله نه وی.

تركيب كتاب الطهارة> د نحوی ترکیب په اعتبار سره درې احتمالات دی.

① دا چه کتاب الطهارة خبردے د مبتدا محذوف چه "هذا"دې.یعنی [هذا كتاب الطهارة]

② دویم دا چه دا مبتدا وی.او خبر ئې محذوف وی.یعنی [كتاب الطهارة هذا]

③ دریم دا چه دا مفعول وی د فعل محذوف یعنی [خذ كتاب الطهارة يا اقرأ كتاب الطهارة]

معني الطهارة لغة> د دریم بحث حاصل دا دې.چه په لغت کښې طهارت بضم الطاء دهغې اوبو نوم دې. چه په هغې سره پاکی حاصلولې شی.او بکسر الطاء د آله نظافت نوم دې.او بفتح الطاء مصدر دې.دنظافت په معنی،

معني الطهارة شرعا> په شریعت کښې طهارت د حدث (نجاست حکمی)یا خبث (نجاست حقیقی) نه پاکیدو ته وائی.او بعضې عالمانو فرمائیلی دی.چه طهارت د درې اندامونو وینځلو او په سر د مسح کولو نوم دې.

سبب وجوب الطهارة وحكمها> د وجوب طهارت سبب حدث (نجاست حکمی) یا خبث (نجاست حقیقی) موجودگی ده.اودطهارت حکم دهغه څیز اباحت دې. چه بغیردطهارت نه حلال نه وی.

وجه تقديم الطهارة> پاتې شوه دا خبره چه کتاب الطهارة ولے مقدم کړې شو؟ نو ددې وجه دا ده.چه مشروعات څلور دی.

① خالص حقوق الله ② خالص حقوق العباد ③ چه دواړه جمع شی.مگر حق الله غالب وی.

④ چه دواړه جمع شی.مگر حق العبد غالب وی. امام قدوری په ترتیب کښې حقوق الله (عبادات) ددې د عظمت د وجه مقدم کړلو.بیا په عباداتو کښې مونځ وړاندې بیان شو.ځکه چه مونځ دایمان نه پس په اسلامی ارکانوکښې د ټولو نه اهم دې.الله تعالی فرمائی ﴿فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ﴾ اونبی علیه السلام فرمائیلی دی.[الصلاة عماد الدين من أقامها فقد أقام الدين ومن هدمها فقد هدم الدين] دغه شان په ارکان اسلام کښې د توحید نه پس د ټولو نه وړاندې هم مونځ فرض شوې دې.او طهارت

چونکه د مونځ شرط دي.ارشاد دي. [مفتاح الصلاة الطهور] او دا قانون دي.چه شرط د يو څيز مقدم وی په هغه څيز باندې نوځکه طهارت په مونځ باندې مقدم کړې شو.

## د اودس د فرضيت دليل اواصل

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ اے دايمان خاوندانو﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ﴾کله چه تاسو د مونځ دپاره د اودريدو (اراده) اوکړئ . ﴿فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ﴾ نو خپل مخونه اووينځئ﴿وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ﴾اولاسونه خپل تر څنګلوپورې ﴿وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ﴾ اومسح اوکړئ په سرونو خپلو ﴿وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾اواووينځئ پښې خپلې ترګيټو پورې

تشريح> وجه إبتداء كتاب الطهارة بالآية > امام قدوری رحمه الله د اودس شروع په آيت باندې کړې ده.حالانکه قاعده دا ده.چه دعوٰ کښې دعوی مقدم وی.او دهغې دليل روستو ذکر کولې شی.ليکن دلته کښې ئې دالله تعالى کلام تبرکاً او تيمناً مقدم کړې دې.اګرچه د مروجې قاعدې نه خلاف کار دې.

فرضية الطهارة للصلاة قبل نزول هذه الآية > دلته يو خبره دا ده.چه دا آيت په اجماع سره مدنی دې.څکه چه په بخاری کښې دی.چه د حضرت عائشې رضي الله عنها دهار ورکيدو واقعه بيانولو نه پس فرمائی: فنزلت﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ إلى قوله لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ او دا واقعه په اتفاق سره دهجرت نه څه موده پس پيښه شوې وه.نوثابته شوه.چه آيت مدنی دې.او دا خبره هم مسلمه ده.چه د مونځ د فرضيت په وخت کښې هم په مکه کښې اودس فرض شوې وو.حضرت ابن عبدالبر رحمه الله فرمائيلی دی.چه ټول اهل مغازيو ته دا خبره معلومه ده.چه نبی عليه السلام د مونځ فرض کيدو نه پس هيڅ يومونځ هم بغير د طهارت نه ندے کړې.او ددې نه انکار جاهل يا عنادی سړې کولې شي.

ما الحكمة في نزول آية الوضوء؟> اوس پاتې شوه دا خبره چه کله په اودس باندې د وړاندې نه عمل موجود وو.نو د آيت په نازلولوکښې څه حکمت دے؟

① حضرت مولانا عبدالحی رحمه الله په سعايه کښې ليکلی دی چه ددې حکمت دا دې چه د اودس فرضيت متلو بالقرآن شي.

② دا هم احتمال شته چه اول دا آيت چه په هغې کښې د اودس ذکر دې.په مکه کښې نازل شوی وی. اود فرضيت د مانځه سره نازل شوی وی.او باقی آيت چه په هغې کښې د تيمم ذکر دې.په مدينه منوره کښې نازل شوې وی.(كذا في الاتقان)

## په اودس کښې دمخ وينځلو فرضيت

فَفَرْضُ الطَّهَارَةِ نو داودس فرض غَسْلُ الْأَعْضَاءِ الثَّلَاثَةِ د درې اندامونو وينځل وَمَسْحُ الرَّأْسِ او د سر مسح کول دی

تشريح> الوجوه الثلاثة لتقديم الوضوء > صاحب دقدوری د اودس احکام مقدم کړل.

① دکثرت حاجت د وجې

② دويمه وجه داده.چه د اودس محل د غسل د محل جزء دې.او جزء مقدم وی په کل باندې

③ دريمه وجه دا ده.چه الله تعالی هم اودس په غسل باندې مقدم کړې دې.اول ئې دا فرمائيلی دی ﴿فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ﴾ او ددې نه پس ئې فرمائيلی دی.﴿وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾

**فرائض الوضوء** > علامه قدوری رحمه الله فرمائی.چه په اودس کښې څلور فرض دی د درې اندامونو وینځل او دسر مسح کول او د درې وارو د فرضیت ثبوت ئې په اول کښې ذکرشوی آیت سره کړې دې.

**معاني الفرض لغة** > فرض په ډیرو معانیو کښې مستعمل دې.

① قطع، وئیلی شی. [فرض الخیاط الثوب] درزی جامه کټ کړه.

② بیان، الله تعالی فرمائیلی دی.﴿قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ يعني بين لكم كفارة أيمانكم﴾

③ تقدیر، الله تعالی فرمائیلی دی.﴿فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ يعني قدرتم﴾

④ حد، الله تعالی فرمائیلی دی ﴿تلك حدود الله﴾

⑤ تفضیل،الله تعالی فرمائیلی دی.﴿سُورَةٌ أَنْزَلْنَاهَا وَفَرَضْنَاهَا يعني فصلناها﴾

**تعريف الفرض وحكمه** > فرض هغه حکم ته وائی.چه په داسې یقینی دلیل سره ثابت شوې وی.چه په هغې کښې څه شك نه وی.او ددې حکم دا دې.چه کونکې ئې مستحق د ثواب اوپریخودونکے ئې مستحق د عذاب دې.(او منکر ئې کافر اومرتد دے)

**الوجوه الثلاثة في حركات الغسل** > غسل" په پیښ سره هغه اوبو ته وائی چه غسل پرے کولې شی. او د ټول بدن د وینځلو نوم هم غسل دې.اوغسل "په زیر سره هغه څیزدې چه وینځل پرے کولې شی.یعنی خطمی وغیره او غسل ، په زور سره مصدر دې.یعنی وینځل

**حد الوجه طولاً وعرضاً** > علامه مرغینانی رحمه الله په هدایه کښې دمخ د اوږدوالی او پلنوالی حد بندی داسې کړې ده.چه د سر د ویختو راټوکیدو د ځائې نه واخله تر د زنې لاندې حصې پورې او د غوږ د پوسکۍ نه واخله تر دبل غوږ پوسکۍ پورې د مخ وینځل فرض دی.

**دليله** > دلیل دا دې.چه وجه د مواجهت نه مشتق ده.او مواجهت(مخامخ کیدل په دې ټوله حصه باندې کیږی.نو څکه ددې ټولې حصې وینځل فرض دی.

**د څنګلو او ګیټو د وینځلو په فرضیت کښې اختلاف**

| وَالْمِرْفَقَانِ دواړه څنګلے وَالْكَعْبَانِ يَدْخُلَانِ فِي الْغَسْلِ او دواړه ګیټۍ په وینځلو کښې داخل دی عِنْدَ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ (۱)په نزد دعالمانو زمونږ درې وارو۔ |
|---|

**حل اللغة** > ① **مرفقان**: دمرفق تثنیه زنګون ② **كعبان**: دکعب تثنیه ګیټۍ

**تشريح** > **تحقيق المرفق والكعب** > دمیم په کسرې او فاء په فتحے سره او ددې په عکس هم جائز دې.یعنی دمیم فتحه او فاء کسره،د مټ او مروند جوړ ته مرفق وائی .کعب دامام محمد په نزد د قدم په ظاهر باندې د تسمے ترلو ځائې ته وائی.لیکن دا صحیح نه ده. صحیح دا ده.چه د پنډۍ نه ښکته د راپورته هډوکی نوم کعب دې.ددې نه کاعب مشتق دې.چه جمع ئې کواعب راځی. کواعب هغه ځوانے جینکۍ دی.چه سینے ئې راوتی وی.

---

(۱) القول الراجح هو قول علمائنا الثلاثة من دخول المرفقين والكعبين في غسل اليدين والرجلين وقال زفر انما يدخلان في المفروض كذا في فتح القدير(۱/۱۳) وردالمحتار(۱/۷۳) والهندية (۱/٤) نقلا عن القول الراجح (۱/۱)۔

**المذهبان في دخول المرفقين والكعبين في الغسل** > په دې باره کښې اختلاف دې.چه مرفقين په غسل يدين او کعبين په غسل رجلين کښې داخل دی.که خارج دی.يعنی د لاسونوپشان د څنګلو او دپښو پشان د ګيټو وينځل هم شرط دی که نه؟

① دائمه ثلاثه يعنی امام صاحب اود صاحبينو مذهب دا دې.چه دلاسونوسره د څنګلو او د پښو سره د ګيټو وينځل هم فرض دی.هم دا قول دامام شافعي او امام احمد هم دې.اوهم دا د امام مالك نه هم يو روايت دې[1]

| خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او خلاف دے د زفر (هغوی فرمائی چه ګيټې او څنګلې په فرض محل کښې داخلې نه دی) |
|---|

**تشريح** > اوامام زفر فرمائي.چه مرفقين او کعبين په وينځلو کښې داخل نه دی.يعنی د څنګلو او ګيټو وينځل فرض نه دی.دا د امام مالك نه يو روايت دے

**دليل زفر** >د امام زفر دليل دا دې.چه په آيت کښې مرافق او کعبين غايت دې.او غايت مطلقاً د مغيا په حکم کښې داخل نه وی. لکه په ﴿اتموا الصيام الى الليل﴾ کښې چه شپه د روژې په حکم کښې داخله نه ده.دغه شان به مرافق د يدينو او کعبين او رجلينو په حکم کښې داخل نه وی.

**دليل جمهورالأحناف** > زمونږ دليل دا دې.چه د امام زفر دا وينا چه غايت دمغيا په حکم کښې مطلقاً داخل نه وی.دا نه منو.بلکه د غايت دوه قسمونه دی.

① يو دا چه غايت د ما قبل يعنی مغيا د جنس څخه وی.يعنی که غايت لرے کړې شی.نو صدر دکلام يعنی مغيا به غايت او ماوراء غايت ټولو ته شامل وی.

② دويم داچه غايت دماقبل يعنی مغيا دجنس څخه نه وی.يعنی د غايت په لرے کولو سره به صدر دکلام يعنی مغيا غايت او ما وراء غايت ته نه شامليږی.اوکه د قسم اول څخه وی.نوغايت په مغيا کښې داخليږی. او که دقسم ثانی څخه وی.نو غايت د مغيا په حکم کښې نه داخليږی

**الجواب عن دليل زفر** > نو دليل د روژې دجنس څخه نه دې. ځکه به ليل د روژې په حکم کښې داخل نه وی.او مرفقين او يدين او کعبين د رجلينو دجنس څخه دی.نو ځکه به دا دواړه غايتين دخپلے مغيا په حکم کښې داخل وی.يعنی څنګلے به د لاسونو په وينځلو کښې او ګيټې د پښو په وينځلو کښې داخل وی.

**توضيع العوام** > د دليل حاصل دا دې.چه غايت کله ددې دپاره ذکر کولې شی.چه حکم رابنکی.او مغيا ته ئې اورسوی . اوکله د ما وراء غايت داسقاط دپاره ذکرکولې شی.حاصل دا چه دغايت دوه قسمونه دی.غايت اثبات او غايت اسقاط او په دې دواړو کښې ما به الامتياز دا دې.که صدر کلام يعنی غايت په مغيا کښې شامل وی.نودا به غايت اسقاط وی. اوکه شامل نه وی.نو دا به غايت اثبات وی.اوغايت اثبات د مغيا په حکم کښې داخل نه وی.لکه په ﴿اتموا الصيام الى الليل﴾ کښې ليل دصوم په حکم کښې داخل نه ده.اوپه غايت اسقاط کښې ما وراء غايت ساقط کولې شی.نوغايت به د مغيا په

---

[1] )القول الراجح هو قول علمائنا الثلاثة كذا في فتح القدير(١\١٣) وردالمحتار(١\٧٣) والهندية (١\٤) نقلاً عن القول الراجح (١\١)_

حکم کښې داخل وی. لکه په ﴿ایدیکم الی المرافق﴾ کښې غایت یعنی مرافق ذکر شوی دی.د ما وراء غایت د ویستلو دپاره نو د وینځلو حکم به په مرفق کښې باقی وی.

..........

**د سرد مسح په مقدار کښې خلورمذاهب**

وَالْمَفْرُوْضُ فِي مَسْحِ الرَّأْسِ مِقْدَارُ النَّاصِيَةِ او په مسح د سر کښې فرض مقدار دناصیه دې وَهُوَرُبُعُ الرَّأْسِ او دا څلورمه حصه د سر ده.

**حل اللغة** ﴿١﴾ **ناصية**: تندي

**تشریح** مسح وائی لوند لاس راښکلوته که د اوبو لوندوالې د لوښی وی او که د مغسول اندام د وینځلو نه پس پاتې شوې وی.د سر مسح کول په اتفاق سره فرض ده.ځکه چه ذدې ثبوت په نص صریحی سره دې.اود سر د څلورمې حصې مسح کول فرض ده.که د سر د مخکنۍ حصې وی اوکه د روستنۍ اوکه د ښی طرف څلورمې حصې وی اوکه د ګس طرف

لِمَارَوَى الْمُغِيْرَةُ بْنُ شُعْبَةَ رضی الله عنه دهغه حدیث د وجې چه مغیره بن شعبه رضی الله عنه روایت کړې دې. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ أَتَى سُبَاطَةَ قَوْمٍ چه رسول صلی الله علیه وسلم د یو قوم ډیران ته تشریف یوړلو فَبَالَ نونبی علیه السلام متیازې اوکړلې وَتَوَضَّأَ اواودس نې اوکړلو وَمَسَحَ عَلَى نَاصِيَتِهِ وَخُفَّيْهِ [1] اومسح نې اوکړله.په څپله ناصیه اودواړو موزو باندې

**حل اللغة** ﴿١﴾ **سباطة**: ګند خځله ﴿٢﴾ **خفيه**: دَخف تثنیه موزه

**تشریح** **إستدلال الأحناف** رحمهم الله احناف عالمان فرمائی.چه د مسح د مقدار په سلسله کښې آیت. ﴿وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ﴾ مجمل دې. او مجمل دبیان محتاج وی.

دلته د حضرت مغیره رضی الله عنه حدیث دې.مغیره بن شعبه رضی الله عنه فرمائی[أن النبی صلی الله علیه وسلم أتی سباطة قوم فبال وتوضأ ومسح علی ناصيته وخفيه] صاحب دقدورۍ چه کوم حدیث ذکر کړې دې.نو دا حدیث دحضرت مغیره رضی الله عنه او حضرت حذیفه رضی الله عنه د حدیث نه مرکب دې.

① دمغیره رضی الله عنه حدیث کوم چه امام مسلم رحمه الله نقل کړې دې.دهغې الفاظ دا دی.[أن النبی صلی الله علیه وسلم توضأ فمسح بناصيته وعلى العمامة وعلى خفيه]

② اود حدیث د حذیفه رضی الله عنه چه شیخینو روایت کړې دې. د هغې الفاظ دا دی.[أتى النبی صلی الله علیه وسلم سباطة قوم فبال قائما ثم دعا بماء فجئته بماء فتوضأ] ددې احادیثو خلاصه دا ده.چه نبی علیه السلام د

---

[1] ) قال الزيلعي رحمه الله هذا حديث مركب من حديثين جعلهما المصنف حديثا واحدا فحديث المسح على الناصية والخفين اخرجه مسلم (اى في الطهارة رقم ٨٣) عن عروة بن المغيرة عن ابيه المغيرة رضی الله عنه بن شعبة :ان النبي صلی الله علیه وسلم توضا ومسح بناصيته وعلى العمامة وعلى الخفين .....وحديث السباطة رواه ابن ماجه (اى في الطهارة باب ١٣) وفيه عن المغيرة بن شعبة رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم اتى سباطة قوم فبال قائما (نصب:١\٤٠)_ ٤٠)_

متيازو كولونه پس اودس اوكړلو.او په مقدار د ناصيه باندې ئې مسح اوكړله.اومقدار د ناصيه او څلورمه حصه يو خبره ده.نوځكه احناف عالمان رحمهم الله په دې ايت استدلال كوى. او فرمائى .چه دسر څلورمه حصه مسح فرض ده.

**تقديرالناصية بثلاث أصابع ودليله** ‹ داحنافو بعضې عالمانو د ناصيه د مقدار اندازه د دريو ګوتو سره كړې ده.اودليل ئې دا دې. چه مسح په لاس باندې كيږى.او په لاس كښې اصل ګوتې دى.او درې ګوتې اكثر دى. او دا قاعده ده.چه [للأكثرحكم الكل] ددې وجې نې درې ګوتې قائم مقام د كل اوګرځولې.او حكم ئې وركړلو .كه د درې ګوتو په مقدار باندې ئې مسح اوكړه. نو شرعاً به كافى وى

**په اودس كښې د دواړو لاسونو وينځلو مسنونيت**

| وَسُنَنُ الطَّهَارَةِ اود اودس سنت غَسْلُ الْيَدَيْنِ وينځل د دواړو لاسونو دى قَبْلَ إِدْخَالِهِمَا الْإِنَاءَ دوراندې د داخلولو د ددې دواړو په لوښى كښې إِذَا اسْتَيْقَظَ الْمُتَوَضِّئُ مِنْ نَوْمِهِ كله چه رابيدار شى اودس كونكې دخوب خپل نه |
|---|

**حل اللغة** ‹ ① **استيقظ: استيقاظًا**: بيداريدل ② **ادخال**: داخلول ③ **المتوضي**: اودس كونكې

**تشريح** ‹ **تعريف السنة وحكمها** ‹ سنن ، د سنت جمع ده.سنت په دين كښې داسې رائجې طريقې ته وائى.چه هغه نه فرض وى اونه واجب.او دهغې ادا كونكې مستحق د ثواب او نه ادا كونكې مستحق د ملامتيا او عذاب وى.علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائيلى دى.سنت هغه دې.چه نبى عليه السلام كله كله د پريخودو سره په هغې هميشوالې كړې وى.

**وجه جمع صيغة السنة** ‹ باقى پاتې شوه دا خبره چه امام قدورى فرض په صيغه د واحد او سنت په صيغه د جمع ولې ذكر كړل.نوددې جواب دا دې.چه "فرض" په اصل كښې مصدر دې.او مصادر د تثنيې اوجمعې نه مستثنى وى.او ددې په خلاف سنت مصدر نه دې.نو ځكه ئې دا په صيغه دجمعې سره راوړلو.

**طرق غسل اليدين للمستيقظ** ‹ په هر حال په اودس كښې د ټولو نه رومبې سنت دا دې.چه كله متوضى دخوب نه رابيدار شى.نو هغه دې دواړه لاسونو په لوښى كښې د داخلولونه وړاندې درې خله اووينځى .اود وينځلوطريقه دا ده.

① كه اوبه ئې په وړوكى لوښى كښې ايخې وى.نوپه ګس لاس دې راپورته كړى.او په ښى لاس دې واچوى.اوبيا دے په ښى لاس سره په ګس باندې اوبه واچوى

② كه لوښے دومره غټ وو.چه د هغې پورته كول ممكن نه وو.نو وړوكے لوښے دے واخلى.او په هغې دے ترے اوبه راوباسى.او بيا دے په خپل ګس لاس سره په ښى لاس اوبه واچوى.او په ښى لاس سره دے په ګس لاس اوبه واچوى.

③ كه وړوكے لوښے نه وى.نود ګس لاس ګوتې دے جوختې كړى.او د غټ لوښى نه دے اوبه راواخلى.په ښى لاس دې واچوى.تلے به په اوبوكښې نه داخلوى.او بيا دے په ښى لاس سره اوبه راواخلى.او ګس لاس دې اووينځى.

**دليله** ‹ ① نقلى دليل دحضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث دې.كوم چه شيخينو روايت كړې دې.[إذا استيقظ أحدكم من منامه فلايغمسن يده في الإناء حتى يغسلها فإنه لايدرى أين باتت يده] اود مسلم الفاظ دا دى.[حتى

يغسلها ثلاثا] اوپه بعضې رواياتوکښې دی.[فلا يغمسن] په نون تاکيد سره دې.حاصل دا دې.چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی.کله چه په تاسو کښې څوك د خوب نه رابيدار شی.نوخپل لاس دې په لوښی کښې د ډوبه کولو نه وړاندې درې ځله اووينځی .ځکه چه ده ته پته نه لګی.چه دده لاس په کومه حصه پاتې شوې دې.

إطلاق غسل اليدين في ا لوضوء> په مبسوط کښې دی.چه اودس نه وړاندې د دواړو لاسونو وينځل مطلقاً سنت دی.که دخوب نه راپاسيدلے وی اوکه نه وی.ځکه چه د لاس وينځلوعلت په بيدار سړی کښې هم موجود دې.يعنی کيدے شی.چه هغه په خپل لاس سره د خپل بدن رګونه مسح کړی وی.حاصل دا دې.چه د لاس وينځلوعلت ګمان د نجاست دې.او ګمان د نجاست په دواړو صورتونو کښې دې.که د خوب نه رابيدار شوې وی.اوکه د وړاندې نه ويخ وی.اودا وينځل دهغه وخته پورې سنت دی.چه نجاست ښکاره نه وی.ګنی نجاست لرے کول به فرض وی.

② عقلی دليل دا دې.چه لاس د پاکولو آله ده.نواول به ددې پاکول مسنون وی.او وينځل د مروندونو پورې مسنون دی.ځکه چه د پاکۍ په حاصلولوکښې دومره مقدار کافی کيږی.او "رسغ" د راء په پيښ اوسين په سکون سره دې.

## په اودس کښې د بسم الله مسنونيت

| وَتَسْمِيَةُ اللّٰهِ تَعَالٰى اونوم اخستل د الله تعالى (سنت دی) فِي ابْتِدَاءِ الْوُضُوءِ په اول د اودس کښې |
|---|

تشريح> صيغ التسمية > صاحب دقدوری رحمه الله فرمائيلی دی.چه د دواړو لاسونو تر مروندونو پورې وينځل خوپه اودس باندې وړاندې دی.خوچه کله اودس شروع کوی.

① نود الله په نوم دے شروع کوی.او د تسميه ادنی درجه دا ده.چه بسم الله اووائی.اوشروع اوکړی. ② اعلی درجه ئې دا ده.چه بسم الله الرحمن الرحيم اووائی.

③اوعلامه ابن الهمام (ح) فرمائيلی دی.چه امام طحاوی رحمه الله فرمائيلی دی.چه [بسم الله العظيم والحمدلله على دين الإسلام] دے وائی.هم دا د سلفو نه منقول ده.او بعضو فرمائيلی دی.چه دا د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه مرفوعا نقل دی.

دليله> ① نبی عليه السلام فرمائيلی دی لاوضوء لمن لم يسم الله چه دهغه سړی اودس نه کيږی چا چه بسم الله اونه وئيله [1] او ددې نه مراد دفضيلت نفی ده

② د علی بن يحی بن خلاد حديث دا دې.[أن النبی صلی الله عليه وسلم قال للمسئ صلاته إذا قمت فتوضأ كما أمرك الله] يعنی نبی عليه السلام هغه کس ته اوفرمائيل.چه د مونځ ارکان ئې په صحيح طريقه نه ادا کول. چه کله ته د مونځ ادا کولو اراده اوکړې.نو داسې اودس کوه. څنګه چه درته الله تعالى حکم کړې دې.او الله تعالى چه د کوم اودس حکم کړې دې.په هغې کښې تسميه نشته.

③دارقطنی روايت کړې دې.[من توضأ وذكر الله فإنه يطهر جسده ومن توضأ ولم يذكر الله لم يطهر إلا موضع الوضوء] يعنی کوم کس چه د اودس په شروع کښې دالله نوم ياد کړی.نودهغه ټول بدن پاك شی.او چا چه د الله

[1] ) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الطهارة باب ٤٨ رقم ١٠١)۔

نوم ياد نکړلو.نو داودس د اندامونو نه سوا نور څه نه پاکيږي. ددې دواړو حديثونو نه معلومه شوه.چه تسميه په اودس کښې شرط نه ده.

**محل التسمية في الإستنجاء>** ① علامه مرغيناني په هدايه کښې فرمائي.چه تسميه به د استنجاء نه وړاندې هم وائي.او روستو هم.دا صحيح قول دې.دليل دا دې.چه استنجاء د اودس په سنتو کښې يو سنت دې. نو ددې نه وړاندې دے بسم الله وائي.ددې دپاره چه د اودس ټول افعال که فرض وي يا سنت وي.په بسم الله سره اوشي.

② د بعضې راويانو رائې دا ده.چه صرف د استنجاء نه وړاندې دے تسميه وائي دليل دا دې. چه د استنجاء نه وړاندې د عورت د ښکاره والي حالت وي.او د عورت ښکاره والي په وخت کښې دالله نوم اخستل مناسب نه دي.نوځکه دے د استنجاء نه وړاندې بسم الله وائي.

③ د بعضوخيال دې.چه صرف د استنجاء نه پس دے وائي.دليل دا دې.چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي [كل أمرذي بال لم يبدأ فيه بذكر الله] دا ددې خبرے مقتضي دې. چه د اودس په اول کښې دے د الله نوم ياد کړې شي.اوچونکه استنجاء هم د اودس د ملحقاتو نه ده.نوځکه د استنجاء کولو نه وړاندې هم بسم الله ونيل مستحب دي.

**په اودس کښې د مسواك مسنونيت**

| **وَالسِّوَاكُ**([1]) اومسواك (سنت دے) |
|---|

**تشريح> فضل السواك>** په احاديثوکښې د مسواك ډير فضيلت راغلے دې.په مسند احمد کښې روايت دې.[أنه عليه الصلاة والسلام قال: صلاة بسواك أفضل من سبعين صلاة بغير سواك] مسواك سره يو مونځ د بے مسواکه مونځ نه يو په اويا درجے زيات ثواب لري.

**مواضع إستحباب السواك>** په لټون اوتتبع سره په پنځو ځايونوکښې د مسواك استحباب ثابت دې. ① چه غاښونه زيړوي. ② دخولے بوئې خراب وي.
③ چه د خوب نه رابيدارشي ④ چه اقامت اوشي ⑤ د اودس په وخت.

**صفات السواك>** پکار ده چه :
① چه مسواك نرم وي. ② او د ګوتے په اندازه غټ وي.
③ يو لويشت اوږد وي. ④ نيغ وي.
⑤ چه غوټے په کښې کمے وي ⑥ دترښے ونے وي.چه بلغم ختموي.
⑦ سينه صفا کونکې وي. ⑧ خوراك زر هضم کوي.

**كيفية السواك>** اود مسواك کولو طريقه دا ده.چه مسواك به په پلنوالي هم کوي.او په اوږدوالي هم.اوکه په يو اکتفا کول غواړي.نو صرف په اوږدو دے اوکړي.دا خبره ياد ساتئ چه د غاښونو پلنوالے د خولے اوږدوالے دې.(شرح نقايه )

[1] ) فيه احاديث منها حديث حذيفة ﷺ ان النبي ﷺ كان إذا قام من الليل يشوص فاه بالسواك اخرجه البخاري في الوضوء باب ٧٣ )_

**سنیة السواک**> فرمائی چه مسواک کول سنت دی.دلیل دا دي.چه نبی علیه السلام د مسواک په استعمال باندې همیشوالي کړې دې.البته کله کله ئې پریخې دي.اوکه مسواک نه وی.نود ښی لاس په ګوته دے غابنونه اومګی.ځکه چه دا هم د نبی علیه السلام نه ثابت دی.

**عدم وجوب السواک ودلیله**>او مواظبت مع الترک د سنتیت دلیل دې.او بغیر دترک نه مواظبت دلیل د وجوب دې.او په ترک د مسواک باندې دلیل دا دې.چه نبی علیه السلام د یوکلی خلقوته د اودس اود مونځ تعلیم ورکړې وو.خوپه هغې کښې د مسواک استعمال منقول نه دې.که دمسواک استعمال واجب وے. نو نبی علیه السلام به ورته خامخا تعلیم ورکړې وو.(عنایه)

**السواک سنة الوضوء**> مسواک سنت داودس دې. ① نسائی دحضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث [لولا أن أشق على أمتي لأمرتهم بالسواك عند كل وضوء] یعنی که زما په امت ګرانه نه وه.نو ما به ورته دهر اودس سره د مسواک حکم کړې وو۔

② ابوداود د حضرت عائشې رضی الله عنها نه روایت کړې دې.[أنه عليه السلام كان لا يرقد من ليل ولا نهار فيستيقظ إلا تسوك قبل أن يتوضأ] یعنی نبی ﷺ چه به په شپه یا ورځ کښې کله هم اوده شو.او رابیدار به شو.نو داودس کولو نه وړاندې به ئې مسواک استعمالو.

**السواک سنة الصلاة ودلیله**>دویمه دا چه مسواک د مونځ سنت دې.دا دامام شافعی رحمه الله قول دې

① دلیل د حضرت ابوهریره رضی الله عنه دا حدیث دې.[لولا أن أشق على أمتي لأمرتهم بالسواك عند كل صلاة يا مع كل صلاة](رواه الستة)

**السواک سنة الدین**> دریم دا چه ددین سنت دې.دا قول زیات قوی دې.اوامام ابوحنیفه رحمه الله نه هم منقول دې.

① دابوایوب انصاری رضی الله عنه حدیث دې.کوم چه ترمذی ذکرکړې دې.[أربع من سنن المرسلين الختان والتعطر والسواك والنكاح] یعنی څلورځیزونه د پیغمبرانو علیهم السلام سنت دی.ختنه ،عطرلګول ، مسواک او نکاح کول،

② دحضرت عائشې رضی الله عنها حدیث دې.چه لس ځیزونه دُ فطرت څنې دی.او په هغې کښې ئې مسواک شمار کړې دې.

**إستعمال الإصبع عند فقده**> اوچه مسواک نه وی.نوګوته به د مسواک قائم مقام وی.

**دلیله**> دلیل دا دې.چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی.[يجزئ من السواك الأصابع رواه البيهقي عن أنس] یعنی ګوتې د مسواک کار ورکوی.او امام طبرانی رحمه الله د عائشې رضی الله عنها نه روایت کړې دې. چه [قلت يا رسول الله الرجل يذهب فوه يستاك قال نعم قلت كيف يصنع قال يدخل أصبعه في فيه] یعنی حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چه ما عرض اوکړلو.یارسول الله چه دکوم سړی په خوله کښې غابنونه نه وی.هغه به هم مسواک کوی.نبی علیه السلام اوفرمائیل آو.ماتپوس اوکړلو. څنګه به کوی.نونبی ﷺ اوفرمائیل.خپله ګوته دے په خوله کښې داخله کړی.

(فتح القدیر، شرح نقایه)

## په خوله اوپوزه کښې داوبو اچولو مسنونیت

وَالْمَضْمَضَةُ په خوله کښې اوبه اچول(سنت دی)وَالِاسْتِنْشَاقُ او په پوزه کښې اوبه اچول(هم سنت دی)

**حل اللغة** ﴿١﴾ **مضمضة**: غرغرې کول ﴿٢﴾**استنشاق**: پوزه کښې اوبه اچول]

**تشریح** ﴿ **ثبوتهما من الأحاديث والكيفيتان فيهما** ﴾ د مضمضه او استنشاق په مسنونیت باندې دلیل دا دې.چه نبی علیه السلام په دې دواړو همیشوالې کړې دې.او ۲۲صحابه کرامو ﷺ د نبی علیه السلام د اودس کولو حکایت کړې دې.او ټولو په کښې مضمضه او استنشاق ذکر کړې دې.

**عدد المضمضة والإستنشاق** ﴿ ①د شمار په باره کښې بعضو چپوالې اختیار کړې دې.

② بعضوذکر کړې دې.چه نبی علیه السلام یوځل مضمضه کړې ده.او په پوزه کښې ئې اوبه اچولی دی.

③ بعضو د درې کرته ذکر کړې دې.

**عدم فرضيتهما في الوضوء** ﴿ په اودس کښې د مضمضې او استنشاق ترک ثابت دې.اوهرکله چه ترک ثابت شونو مضمضه او استنشاق فرض نه شو بلکه سنت دی

**دلائله** ﴿ ① نبی علیه السلام یو باندیچی ته د اودس خودنه کړې وه.لیکن په هغې کښې ئې د مضمضه او استنشاق ذکر نه دے کړې.

② دغه شان حضرت عائشې ﷺ د نبی علیه السلام د اودس حکایت کړې دې.لیکن دوی د مضمضه او استنشاق ذکر نه دےکړې.هرکله چه په بعضې وختونو کښې ددې دواړو ترک ثابت دې.نودا دواړه کارونه به په اودس کښې سنت وی.فرض اوواجب به نه وی.لکه اهل حدیث چه د نبی علیه السلام په مواظبت باندې استدلال کوی.او دا دواړه په اودس او غسل کښې فرض گرځوی.

③ ابن عباس ﷺ نه موقوفاً او مرفوعاً حدیث نقل دې.چه [هما سنتان في الوضوء واجبتان في الغسل] یعنی په خوله کښې اوبه اچول اوپه پوزه کښې اوبه اچول په اودس کښې سنت دی.او په غسل کښې واجب دی.(عنایه،کفایه)

**كيفية المضمضة والاستنشاق** ﴿صاحب دهدایه د مضمضه او په پوزه کښې د اوبو اچولو طریقه دا بیان کړې ده چه اول به درې خله مضمضه اوکړی.او هر ځل به نوے اوبه استعمالوی.ځکه چه د نبی علیه السلام داسې اودس کول منقول دی.

**الأقوال الأربعة في كيفية المبالغة** ﴿په خوله او پوزه کښې اوبه اچولوکښې مبالغه هم سنت دی. او په دې دواړو کښې دې مبالغه کوی.

① نو په مضمضه کښې مبالغه دا ده.چه ټولې خولې ته اوبه اورسی

② شیخ الاسلام ﷫ فرمائیلی دی.چه په مضمضه کښې مبالغه دا ده.چه غرغره اوکړی.یعنی د حلق آخری حصې ته اوبه اورسوی.خوپه دې شرط چه دا کس روژه دار نه وی.

③ شمس ایمه حلوانی ﷫ فرمائی.چه مبالغه دا ده.چه اوبه په خولې کښې د یوطرف نه بل طرف ته اوباسی.اواستنشاق کښې مبالغه دا ده.چه اوبه د پوزے تیر ته اورسوی.

④ وئیلی شوی دی.چه په پوزه کښې اوبه واچوه.او ساه پوره واخله.چه اوبه پورته اوخیژی.

**الترتيب فيهما واستعمال اليدين>** صاحب دنقايه ليكلي دي.چه لكه څنګه مضمضه او استنشاق سنت دي.نودغه شان مضمضه په استنشاق باندې وړاندې كول هم سنت دي.اودا ئې هم ليكلي دي.چه په مضمضه او استنشاق كښې به هر يو په خپل ګس لاس باندې كوي.او بعضو وئيلي دي.چه استنشاق دې په ګس لاس كوي.خوصحيح دا ده.چه په پوزه كښې اوبه خو به په ښى لاس اچوي.ليكن دا به په ګس لاس سونړوي.

**د غوږونود مسح مسنونيت**

| وَمَسْحُ الْأُذُنَيْنِ اود دواړو غوږونومسح كول (سنت) ده |
|---|

**تشريح> كيفية مسح الأذنين>** داودس په سنتوكښې د دواړو غوږونومسح كول هم ده. د غوږونود مسح كولو طريقه علامه حلواني اود شيخ الاسلام رحمه الله دقول مطابق دا ده.چه خپله كچۍ ګوته به په غوږونو كښې ورداخله كړي.اوحركت به وركړي.اوفرمائيلي ئې دي.چه نبى ﷺ هم داسې كړى دي.

**دليله>** ابن ماجه كښې په صحيح سند سره دابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دي.[أنه عليه الصلاة والسلام مسح أذنيه فأدخلهما السبابتين وخالف إبهاميه إلى ظاهر أذنيه فمسح ظاهرهما وباطنهما] يعنى نبى عليه السلام د خپلو دواړو غوږونو مسح اوكړله. نو خپلې دواړه د شهادت ګوتې ئې په غوږونو كښې ورداخلې كړې.او دواړه متې ګوتې ئې د غوږونودپاسه تيرې كړې.نود غوږونودظاهرى او باطنى حصې مسح ئې اوكړله . او فرمائيلې ئې هم دا بهتره ده.(فتح القدير)

**ماء مسح الأذنين>** ① دغوږونومسح د سر په اوبو باندې مسنون ده.

**دلائله>** ①دليل دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث دې. [أن النبى صلى الله عليه وسلم قال الأذنان من الرأس][1]
او ددې حديث نه مراد د حكم بيانول دي.يعنى دسر او غوږونو دواړو حكم يودې.د خلقت بيانول مقصود نه دي.څكه چه نبى عليه السلام د احكامو بيانولو دپاره راليږلې شوې دې.د موجوداتود حقائقو بيانولو دپاره نه دې راليږلې شوې.

② دويم دليل هغه حديث دې.كوم چه حاكم، ابن خزيمه او ابن حبان د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل كړې دې.[أنه قال ألا أخبركم بوضوء رسول الله صلى الله عليه وسلم وفيه ثم غرف غرفة فمسح بها رأسه وأذنيه] يعنى ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل.آيا تاسو د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اودس نه خبرنكړم.(بيا ئې تول اودس بيان كړو) يو په هغې كښې دا وو.چه بيا ئې يوه لپه اوبه راواخستې.په هغې باندې ئې د سر او د دواړو غوږونو مسح اوكړله.ددې حديث نه هم ښكاره شوه.چه د غوږونو مسح كولو دپاره د نوې اوبه راخستلو ضرورت نشته.

**د ږيرې د خلال مسنونيت**

| وَتَخْلِيلُ اللِّحْيَةِ اود ږيرې خلال كول |
|---|

**حل اللغة >** ① **تخليل:** خلال كول

**تشريح> سنية خلال اللحية>** ①امام قدورى رحمه الله فرمائيلي دي.چه د ږيرې خلال كول هم سنت دي.

[1] ) من حديث أبي امامة رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى الطهارة باب ۵۱ والترمذى فى الطهارة باب ۲۹ وابن ماجه فى الطهارة باب۵۳)

دلائل> ① جبرئیل علیه السلام نبی علیه السلام ته د ږیرے دخلال حکم کړې وو.صاحب دعنایه دا الفاظ نقل کړی دی.[قال علیه السلام نزل علی جبرئیل علیه السلام وأمرني أن أخلل لحيتي إذا توضأت] نبی علیه السلام فرمائی.چه جبرئیل علیه السلام ماته راغلو.اووے فرمائیل:کله چه اودس کوې.نو دخپلے ږیرے خلال کوه! ([1])

② ترمذی او ابن ماجه دحضرت عثمان رضی الله عنه نه روایت کړې دې.[كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يخلل لحيته] یعنی نبی علیه السلام به دخپلے ږیرے خلال کولو.

③ دحضرت انس رضی الله عنه حدیث دې.[قال كان عليه الصلاة والسلام إذا توضأ خلل لحيته] یعنی حضرت انس رضی الله عنه فرمائی.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله اودس کولو.نو د خپلے ږیرے خلال به ئې کولو.

إختلاف الطرفين في حكم خلال اللحية>بعضې عالمانوفرمائیلی دی.چه د ږیرے خلال کول دامام ابویوسف رحمه الله په نزد سنت دې.❷ او دطرفینو رحمهما الله په نزد جائز دې.

دليلهما رحمهما الله>د طرفینو دلیل دا دې.چه په اودس کښې سنت هغه وی.چه د فرضو محل پرے پوره شی. او د ږیرے دننه حصه دفرضو محل نه دې.ځکه چه په اتفاق سره دننه حصې ته اوبه رسول واجب نه دی .نوچه د ږیرے دننه حصه دفرضو محل نه دې.نو ددې کول به هم سنت نه وی.اوچونکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه خلال کول ثابت دی.نوځکه بدعت هم نه دې.حاصل دا چه هرکله نه سنت دې.او نه بدعت دې. نو جائز به وی.

**دګوتې دخلال مسنونیت**

| وَتَخْلِيلُ الْأَصَابِعِ او د ګوتو خلال کول (سنت دې) |
|---|

حل اللغة >① اصابع: دَ اصبع جمع ده،ګوته

تشريح> كيفية خلال أصابع اليدين> د اودس په سنتو کښې دلاسونو او پښو د ګوتو خلال کول هم دې. دلاسونوپه ګوتوکښې د خلال کولو بهترینه طریقه دا ده.چه د یولاس ګوتے دے د بل لاس په ګوتوکښې د پنجے په صورت کښې واچوی.او په شرح نقایه کښې ئې لیکلی دی.چه غوره دا ده.چه د ښی لاس دتلی باطن د ګس لاس د تلی په شاه باندې کیږدی.او بیا د ګس لاس دتلی باطن د ښی لاس د تلی په شاه باندې کیږدی.

كيفية خلال أصابع الرجلين>اود پښو په ګوتو کښې دخلال کولو طریقه دا ده .چه خپل ګس لاس د خپلے ښۍ پښے لاندې کیږدی.اوکچه ګوته د ګوتوپه مینځ کښې ورداخله کړی.د ښۍ پښے د کچۍ ګوتے نه دې شروع اوکړی.او د ګسے پښے په کچۍ ګوته دې ختم کړی.(شرح نقایه)

---

[1] من حديث انس رضی الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم قال أتاني جبرئيل عليه السلام فقال: إذا توضأت فخلل لحيتك أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه ورواه ابن عدى في الكامل (نصب: ٦٦/١)۔

**دلائل خلال الأصابع** ﴿ ①قال النبی علیه الصلاة والسلام خللوا أصابعکم.کی لا تتخللها نار جهنم[1] یعنی نبی علیه السلام فرمائیلی دی تا سودخپلو گوتو خلال کوئ چه د جهنم د اور د خلال نه بچ شئ.

②په طبرانی کښې دی.چه [من لم یخلل أصابعه بالماء خللها الله بالنار یوم القیامة] یعنی کوم کس چه په خپلو گروتونو کښې اوبه داخلے نکړې.نوالله تعالی به د قیامت په ورځ ددې په مینځ کښې اور ورداخل کړی.

③ د ابن عباس رضی الله عنهما حدیث دې.[قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم إذا توضأت فخلل بین أصابع یدیك و رجلیك] ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی.چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل.کله چه ته اودس کوې.نود خپلولاسونو د پښو د گوتو خلال کوه.

④ علامه ابن الهمام صاحب د فتح القدیر رحمه الله فرمائی .چه د تخلیل په احادیثوکښې د ټولو نه زیات مناسب هغه حدیث دې.کوم چه لقیط بن صبره رضی الله عنه په سنن اربعه کښې نقل کړې دې.[قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم إذا توضأت فاسبغ الوضوء وخلل بین الأصابع] یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.کله چه ته اودس کوې.نوپوره اودس کوه.او د گوتو په مینځ کښې خلال کوه.

**الإعتراض**﴿دلته کښې یو سوال دې.هغه دا چه په دې ټولو احادیثوکښې دخلال کولو ذکر د امر په صیغه سره شوې دې.او امر د وجوب دپاره راځی.نو د گوتو خلال پکار دا وه.چه واجب وو.سنت نه وو؟

**الأجوبة**① ﴿که د گوتومینځ ته اوبه اونه رسی.نو د گوتوپه مینځ کښې خلال کول او اوبه رسول واجب دی.اوکه د گوتومینځ ته اوبه اورسیدلې.نوخلال کول سنت دی.

② عقلی جواب دا دې.چه د لاسونو او د پښووینځل فرض دی.اوپه خلال کولو سره دفرضو په محل کښې اکمال راځی.اوپه اودس کښې چه په کوم ځیز سره چه د فرضو اکمال د هغې په محل کښې وی.نو هغه ځیزسنت وی.نوځکه به تخلیل د گوتو سنت وی.

③ حضرت مولانا عبدالحی رحمه الله جواب ورکړې دې.چه د امر د صیغے د وجې د گوتو خلال کول پکار ده چه واجب وو.لیکن په اودس کښې واجب نشته.نو ځکه به خلال واجب نه وی.او په اودس کښې واجب ددې وجې نشته.چه اودس د مونځ دپاره شرط دې.نو اودس به د مانځه تابع وی.نو که په اودس کښې هم واجب اومنلے شی.نو په دې به تابع د اصل سره برابر شی.او دا په هیڅ صورت کښې مناسب نه ده.

**د درې ځله وینځلو سنتیت**

| وَتَكْرَارُ الْغَسْلِ إِلَى الثَّلَاثِ اود وینځلو درې کرته مکرر کول |
|---|

**تشریح**﴿ **الأقوال الشتی في حکم کل واحد من الفصلات**﴿ داودس په سنتو کښې اعضاء مغسوله درې درې ځله وینځل هم دی.چه دوینځلوقید ئې اولګولو.نودے طرف ته ئې اشاره اوکړه.چه د مسح تکرار مسنون نه دې.

---

[1] قال الزیلعی رحمه الله غریب بهذا اللفظ واخرج الدارقطنی فی سننه (أی فی ۹۵\۱) عن أبی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ خللوا أصابعکم لایتخللها الله النار یوم القیامة.نصب: ۷۰\۱)۔

① ياد ساتئ چه دبعضې فقهاؤ قول دا دې.چه يو خل وينځل فرض دی.او په دويم خل وينځل سنت دی.او دريم خل وينځل د سنت اكمال (پوره كول) دی.اوهم دا قول راجح دې
② بعضو وئيلي دی.چه دويم اودريم خل وينځل سنت دی.
③ بعضوئيلي دی.چه دويم سنت اودريم نفل دی
④ بعضو وئيلي دی.چه په دويم خل وينځل نفل او په دريم خل وينځل سنت دی.

**دنيت استحباب**

| وَيُسْتَحَبُّ لِلْمُتَوَضِّئِ عِنْدَنَا اود مستحب دی دپاره د اودس كونكی أَنْ يَنْوِيَ الطَّهَارَةَ چه د نيت اوكړی د پاكئ |
|---|

**تشريح > شروط صحة النية >** ① يا د يے اودسئ لرے كولو اراده اوكړی
② نيت دا دې.چه په زړه سره د اودس اراده اوكړی.
③ يا د داسې عبادت قصد اوكړی.چه هغه بغيرد طهارت نه نه صحيح كيږی.
**حكم النية في الوضوء >** د اودس د نيت په حكم كښې د عالمانو اختلاف دې.
① داحنافو عالمانو ﷺ په نزد په اودس كښې نيت كول سنت دې.
**دلائله** ① زمونږ دليل دا دې.چه يو سړی د نبی عليه السلام نه داودس په باره كښې تپوس اوكړلو. نونبی عليه السلام هغه ته د نيت تعليم ورنكړلو . (شرح نقايه) ددې نه معلومه شوه.چه نيت په اودس كښې فرض نه دې.كنی نبی عليه السلام به هغه ته د نيت تعليم ضرور وركړې وې.
② دويم دليل دا دې.چه اودس د مونځ شرط دې.او د مانځه نور شرطونه د نيت محتاج نه دی.نو اودس به هم محتاج نه وی.[1]

**د ټول سر د مسحې مسنونيت**

| وَيَسْتَوْعِبُ رَأْسَهُ بِالْمَسْحِ اوچه راګيركړی خپل ټول سر په مسحې سره(دا سنت دې) |
|---|

**تشريح > كيفية مسح الرأس >** صاحب دهدايه په هدايه كښې فرمائيلي دی چه د ټول سر مسح هم مسنون ده.د ټول سر د مسح كولو طريقه دا ده.چه دواړه تلی او د دواړو لاسونوګوتے دے اول لوندےكړی.بيا دے د دواړو لاسونو دريې دريې ګوتے د سر په مخكښئ حصه كيږدی.او دواړه قتے او مسواكے ګوتے او تلی دےجدا ساتی.بيا دے دا راكاږی.او روستو طرفته دے راولی. او بيا دے دواړه تلی د سر د دواړو طرفونو نه مخے طرف ته بوځی.بيا دے په دواړو متو ګوتو د دواړو غوږونو په ظاهری حصه او په دواړو مسواكو ګوتو د دواړو غوږونو باطنی حصه مسح كړی.(فتح القدير) او په ،،نهايه،، كښې دومره زيادت دې.چه د دواړو لاسونو په ظاهر دے د خپل څټ مسح اوكړی.
**عدد المسح على الرأس >** يو خل د ټول سر مسح كول سنت ده.
**دلائله >** ①دليل دا دے چه حضرت انس ﷺ اودس اوكړلو .دريې دريې خله.او مسح ئې اوكړله يو خل.او وے فرمائيل دا د رسول الله صلى الله عليه وسلم اودس دې.[1]

[1] ) **اختلاف الائمة** :- په دې مسئله كښې د امام مالك او شافعی او احمد ﷺ په نزد په اودس كښې نيت فرض دې.

② دويم دليل دا دي.چه فرض خومسح ده.او د تکرار په وجه به مسح وينځل شي.او دا دکتاب ،سنت او اجماع ټولو نه خلاف خبره ده.نوځکه په مسح کښې تکرار سنت نه دې.

③ نو د سر مسح د موزے د مسحے پشان شوه. يعنى لکه څنګه چه د موزے په مسح کښې تکرار مسنون نه دې.نودغه شان به د سر په مسح کښې هم تکرار سنت نه وى.

**د ترتيب مسنونيت**

| وَيُرَتِّبُ الْوُضُوْءَ او په ترتيب سره به کوى اودس فَيَبْدَأُ نوشروع به کوى بِمَا بَدَأَ اللّٰهُ تَعَالٰى بِذِكْرِهٖ دهغه اندام نه.چه د کوم نه چه شروع کړې ده الله تعالى وَبِالْمَيَامِنِ (اوشروع دے کوى) دښيى طرف نه، |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **يرتب، ترتيبًا**: په ترتيب سره کول ② **بدءًا، بدأ (ن)**: شروع کول ③ **ميامن**: دَ ميمنة جمع: ښي طرف

**تشريح** ﴿ **بحث المسئلتين** ﴾ په دې عبارت کښې دوه مسئلې زيربحث دى.① مسئله دترتيب ② ابتداء بالتيامن،

**حكم الترتيب في الوضوء** ﴾ داحنافو عالمانو ﷺ په نزد د اودس په فرض اندامونوکښې ترتيب سنت دې.

**دليله** ﴾ دليل دا دې.چه د اودس دفرض اندامونوپه مينځ کښې "واو" ذکر دې.او داهل لغت په دې اجماع ده.چه واؤ د مطلق جمع دپاره راځي.نوکه مونږ دا هم تسليم کړو.چه فاء دپاره د تعقيب راځي.نوددې مطلب به دا وى.چه د څلورواندامو د مجموعے وينځل به مانځه ته په اودريدوباندې مرتب وى. داسې نه چه په څلورواندامونوکښې به ترتيب وى. حالانکه کلام دڅلورواندامو په ترتيب کښې دې.اوپه څلورو اندامونوباندې واو داخل دې.او هغه د ترتيب فائده نه ورکوى.نوځکه مونږ وايو.چه د اودس په فرض اندامونو کښې ترتيب فرض نه دې.خو چه نبى عليه السلام د قرآن پاك د ذکرکړې ترتيب موافق اودس کړې دې.نوځکه به په اودس کښې ترتيب سنت وى فرض نه.

| وَالْبُدَاءَةُ بِالْمَيَامِنِ فَضِيلَةٌ او شروع د ښى طرف نه غوره ده |
|---|

**تشريح** ﴾ **حكم التيامن في الوضوء** ﴾.① دويمه مسئله ابتداء د ښى طرفه ده.د لاسونواوپښو په وينځلو کښې د ښى طرف نه شروع کول افضل او مستحب دى.خوصاحب د شرح نقايه ليکلى دى.چه اصح دا ده.چه دا سنت دې.

**دلائل ترجيح سنية التيامن** ﴾ ① په تحفه کښې دى.چه د ښى طرف نه په شروع باندې نبى عليه السلام هميشوالې کړې دې.

② دغه شان نبى عليه السلام فرمائيلى دى. [اذا توضأتم فابدءوا بميامنكم] (رواه ابوداود وابن ماجه وابن خزيمه وابن حبان) يعنى کله چه تاسو اودس کوئ.نو د ښى طرف نه شروع کوئ.

---

[1] ، قال الزيلعي رحمه الله غريب من حديث انس والحديث في الصحيحين (أى البخارى في الوضوء باب ۳۸ ومسلم في الطهارة رقم ۱۸) من رواية عبدالله بن زيد رضي الله عنه انه مسح رأسه فأقبل بهما وادبرمرة واحدة(نصب: ۱\۷۵)_

③دغه شان نبی علیه السلام فرمائیلی دی.[إن الله يحب التيامن في كل شئ حتى التنعل والترجل][1]

④ په یو حدیث کښې دی.[حتى في طهوره وتنعله وترجله وشأنه كله] یعنی الله تعالی په هر څیز کښې شروع

دښی طرفه خوښوی.تردے چه په اودس کښې او څپلئ په پښو کولو کښې اوپه ګومنځلو کښې او په هر څیز کښې.( چه د خیروی)

| وَالتَّوَالِيْ اوپرله پسې والې سنت دې |
|---|

**تشریح**> اودس په داسې طریقه کول چې یو اندام اووینځی او بل ورپسې هم اوونيځی چې د دواړو په مینځ کښې دومره فاصله او وقفه نه وی چې دویم وینځی او اولنې وچ شوې وې دې ته توالی وائی او دا سنت ده ([2])

**دلیل عدم الفرضية**> ان ابن عمر توضأ في السوق فغسل وجهه ويديه ومسح برأسه ثم دعي الى جنازة فدخل المسجد ثم مسح على خفيه) ([3])

یعنی یوځل حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په بازار کښې اودس کولو په دې کښې ورته چا د جنازې دعوت ورکړو نو دوی جمات ته داخل شو هلته ئې په موزو باندې مسح اوکړه

**الاستدلال**> (حالانکه اندامونه ئې وچ شوی وواوخلقو پرې څه انکار اونکړوکه پرله پسې والې فرض وو.نو عبدالله بن عمر به ولې داسې کولو.

| وَمَسْحُ الرَّقَبَةِ او مسح د څټ سنت ده |
|---|

**تشریح**> د څټ مسح کول سنت ده او د حنفیانو په بعضې کتابونو کښې د څټ مسحې ته مستحب وئیلی شوی دی

**دلیله**- په طحاوی کښې امام طحاوی یو حدیث نقل کړې دې دهغې نه په اودس کښې د څټ د مسحې سنتیت یا استحباب معلومیږی.دغه حدیث په ما خپل کتاب سنن الصلاة في فقه الاحناف کښې ذکر کړې دې.

**د سبیلینو نه په خروج د اودس ماتیدل**

| اَلْمَعَانِي النَّاقِضَةُ لِلْوُضُوْءِ کوم اسباب چه د اودس ماتونکی وی كُلُّ مَا يَخْرُجُ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ هر هغه څیزچه د سبیلینونه اوځی(یعنی د قبل اودبر نه) |
|---|

---

[1] ) قال الزيلعي رحمه الله غريب بهذا اللفظ وروى الأئمة الستة في كتبهم من حديث مسروق عن عائشة رضي الله عنها قالت قالت:كان رسول الله ﷺ يحب التيامن في كل شئ حتى في طهوره وتنعله وترجله وشأنه كله (وهو في البخاري في الصلاة باب ٤٧ ومسلم في الطهارة رقم ٦٦)۔

[2] ) **مسلک مالک**:- دامام مالک رحمه الله مسلک دا دې چې په اودس کښې توالی فرض ده

[3] ) (اعلاء السنن (١/٦٥)۔

**تشریح** نسبة النقض إلی الأجسام والمعاني > نواقض د ناقضة جمع ده.اونقض که اجسامو طرف ته منسوب وی.نو ددې معنی د هغې تالیف اوترکیب باطلول وی.اوکه معانیو ته منسوب شی.نومعنی به ئې دا وی.چه د مطلوب حاصلولو نه ئې خارجوی.اودلته کښې د اودس مطلوب د مونځ اباحت دې.او دمعانیو نه مراد اودس ماتونکی علتونه او اسباب دی.په حدیث کښې دی.[لا یحل دم امرئ مسلم إلا بإحدیٰ ثلاث] یعنی د یو مسلمان وینه نه حلالیږی.مگر په درې علتونو کښې د یو په وجه.

**الخروج من أحد السبیلین معتاداً وغیر معتاد** > د اودس په نواقضوکښې هر هغه څیز دې.کوم چه د متیازو یا غټو بولو د لارے نه راوځی.

**دلائله** > ① دلیل دا دې.چه الله تعالی فرمائیلی دی.﴿أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ﴾ اوغائط هغه ښکته زمکے ته وائی.کومے ته چه انسان دخپل قضاء حاجت دپاره ځی.حاصل دا دې.چه الله تعالی فرمائیلی دی.که په تاسوکښې څوك د قضاء حاجت نه واپس راشی.او اوبه نه وی.نو تیمم دے اوکړی.نوثابته شوه.چه په خروج من السبیلین سره اودس ماتیږی.ځکه که اودس نه ماتیدلو.نود اوبو د نشتوالی په صورت کښې به د تیمم حکم ولے ورکولے شو.

②دویم دلیل دا دې.چه درسول الله ﷺ نه تپوس اوشو اې دالله پیغمبره ﷺ حدث څه څیز دې.نونبی علیه السلام ورته اوفرمائیل [مایخرج من السبیلین][1]کوم څیز چه د میتازو یا غټو بولو د لارے نه اوځی. په دې حدیث کښې کلمه د "ما" عامه ده.چه معتاد او غیر معتاد ټولو ته شامله ده.یعنی معتاد څیز لکه متیازې اوغټ بول شو.اوغیر معتاد لکه چینجے او ګټکے اود استحاضه وینه ده.دا ټول ناقض د اودس دی

## د غیرسبیلینو نه په خروج اودس ماتیدل

| وَالدَّمُ او وینه وَالْقَيْحُ او پیپ (نوه) وَالصَّدِيْدِ إِذَا خَرَجَا مِنَ الْبَدَنِ اوکچه وینه کله چه دواړه دبدن نه ووځی فَتَجَاوَزَا إِلَى مَوْضِعٍ اواورسی هغه ځائې ته يَلْحَقُهُ حُكْمُ التَّطْهِيْرِ نو ملحق کیږی ورپورې حکم د پاکولو (نو دا اودس ماتوی) |
|---|

**تشریح** > نقض الوضوء بخروج الدم والقیح من البدن > ①اوپه نواقضو د اودس کښې دا هم ده.چه د ژوندی سړی د بدن نه وینه یاپیپ(زوه) اوځی.او بیا ښکاره شی.په داسې ځائې کښې په تجاوز کولو سره.چه په غسل یا په اودس کښې دکوم د پاکولو حکم شوې وی.یعنی دسبیلینونه علاوه د بل ځائې نه په خروج کښې صرف د پلیتئ ښکاره کیدل کافی نه دی.بلکه بهیدل شرط دې. نوکه وینه د زخم دپاسه شوه.لیکن بهیدلے نه وی.نو په دې باندې اودس نه ماتیږی. اوپه نواقضو د اودس کښې په ډکه خوله قئ کول دی.اوپه ډکه خوله قئ دا دې.چه هغه بغیر د مشقت اوتکلیف نه بندولے شی.

**دلائله** > ① دلیل دا دې.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی. اودس (واجب) دې.د هر هغه وینے د وجې چه د بدن نه اوځی. اواوبهیږی. په دې حدیث باندې داسې استدلال کیږی.چه د داسې ترکیب نه هم وجوب

---

[1] قال الزیلعی رحمه الله غریب وروی الدارقطنی فی کتابه غرائب مالك .... عن ابن عمر رضی الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ لاینقض الوضوء إلا ما خرج من قبل أودبر(نصب: ۱\۸۳)۔

معلومیږي. لکه د نبی ﷺ قول [الی خمس من الابل شاة]په اتفاق سره فرضیت ثابت دي.او په [انما الماء من الماء]کښې د خروج د منئ د وجې په اتفاق سره په وجوب د غسل دلالت کوی.نو ددې حدیث معنی به دا وی.چه [توضؤ من کل دم سائل من البدن] یعنی دهر هغه وینې نه اودس کوئ.چه د بدن نه اوځی.او اوبهیږي

② دویم دلیل دا دي.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.کوم کس چه قئ اوکړي.یا نې په مانځه کښې پوزه ماته شي.(وینه ترے روانه شوه.) نو داسې کس دے بیا لاړشی.او اودس دے اوکړي.او په خپل مونځ دے بنا اوکړي. ترڅو چه نې خبرے نه وی کړې.حاصل د استدلال دا شو.چه په حدیث کښې د اودس حکم شوي دي.اوامر دپاره د وجوب وی.نو معلومه شوه. چه په قی کولو او پوزے ماتیدو باندې اودس واجبیږي.(١)

په قي کښې د امام زفر رحمه الله خلاف

| وَالْقَيْءُ اوقئ په ډکه خوله (اودس ماتوی ) اِذَاكَانَ مِلْءَ الْفَمِ چه وی په ډکه خوله |
|---|

تشریح > نقض الوضوء بالقئ> ①اوپه قی کښې به خروج په هغه وخت کښې متحقق وی.چه په ډکه خوله وی.اوډکه خوله دا ده.چه بغیر د مشقت نه د هغې ایسارول ممکن نه وی.

دلائله > ① په دې باندې زمونږ دلیل چه د خارج من غیر سبیلین د نقض وضوء دپاره سیلان شرط دي.دنبی ﷺ قول دي.چه د وینے په یو ځاځکی او دووځاځکو اودس نه واجبیږي. مگر دا چه وینه بهیدونکې وی.(٢)

② او په کم قئ د اودس نه ماتیدو دپاره د نبی ﷺ دا قول شاهد عدل دي.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.[یعاد الوضؤ من سبع من اقطار البول والدم السائل والقیئ ومن دسعة تملأ الفم ونوم مضطجع وقهقهة الرجل فی الصلاة و خروج الدم] یعنی اودس به د اووه څیزونو په وجه دوباره کولےشی.د متیازو څڅیدلوسره.اود بهیدونکې وینے سره.او پیپ اوقئ سره،چه په ډکه خوله وی.او په ډډه خوب کولوسره.اود سړی په مانځه کښې په خندانې قهقهه سره.او د وینے په وتلو سره.(٣)

③ عقلی دلیل ددې دا دي.چه د خولے د دننه حصې دوه حیثیتونه دی.ظاهر اوباطن.ځکه که خوله کهولاو کړی .نود ظاهر سره مشابه وی.اوکه خوله بنده کړی.نودباطن سره مشابه وی.نومونږ د دواړو مشابهتونو لحاظ ساتلې دي.واني که قئ په ډکه خوله نه وی.نو د باطن د مشابهت خیال به ساتلی شی.او دا به وئیلی شی.چه خروج نه دے واقع شوي.ځکه چه په دې صورت کښې عدم خروج غالب دي.نو په دې صورت کښې به اودس نه ماتیږي.اوکه قئ په ډکه خوله وی.نو د ظاهر د مشابهت

---

١ ، من حدیث عائشة رضی الله عنها اخرجه ابن ماجه فی الاقامة باب ١٣٧)۔

٢ ، من حدیث حسن بن علی الرزاز اخرجه الدارقطنی فی سننه (١\١٥٧)

٣ ، قال الزیلعی رحمه الله اخرج البیهقی فی الخلافیات عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ یعاد الوضوء من سبع من اقطارالبول والدم السائل والقیئ ومن دسعة تملأ الفم ونوم المضطجع وقهقهة الرجل فی الصلاة وخروج الدم (نصب الرایة:١\٩١)۔

اعتبار به کولې شی.ځکه چه په دې صورت کښې ظاهر غالب دې.نو په دې صورت کښې به اودس ماتیږی.

**خلاف زفر** ﷫ >د ډکې خولې او د سیلان په شرط کښې مونږ سره دامام زفر ﷫ اختلاف دې د هغوی مذهب دا دې چه د هغوی په نزد خارج من غیر سبیلین مطلقاً ناقض د اودس دې.کم او ډیر قے د اودس په ماتولو کښې دواړه برابر دی.دغه شان دهغوی په نزد سیلان هم شرط نه دې.

**کوم خوب د اودس ماتونکې دې**

| وَالنَّوْمُ مُضْطَجِعًا اوخوب په داسې حالت کښې چه په ډډه وی أَوْمُتَّكِئًا یا ئې تکیه وهلی وی أَوْمُسْتَنِدًا إِلَى شَيْءٍ یا ئې یوځیز اډانه کړې وی لَوْأُزِيلَ عَنْهُ که هغه ځیز ترے لرے کړې شی لَسَقَطَ نودا سړې راپریوځی. |
| --- |

**حل اللغة** > ① **اضطجاع**: په اړخ سملاستل ② **متکا**: تکیه وهلې ③ **سقط**:د سقوط نه دې راپریوتل ]

**تشریح** > **صورالنقض وعدمه** > داودس په نواقضو کښې د خوب دا صورتونه هم دی.

① چه متوضی په ډډه باندې اوده شی.② یا ئې تکیه لګولې وی.اوده شی

③ یا ئې یو ځیز اډانه کړې وی.اواوده شی.که هغه ځیز ترے لرے کړې شی.نو راغورزیږی.

**دلیل النقض أی إسترخاء المفاصل** > په اضطجاع سره د اودس ماتیدو دلیل دا دې.چه په اضطجاع یعنی ډډه باندې اوده کیدل د جوړونود سستیدو سبب دې. او په ډډه باندې اوده کیدل په عادت کښې د څه ځیز د وتلونه خالی نه وی. (یعنی چه سړې په ډډه اوده شی.نومشاهده ده.او تجربه ده.چه دده نه باد اوځی.) اوکوم ځیز چه په عادت سره ثابت وی.هغه د یقین درجه لری.نو ثابته شوه.چه په ډډه اوده کیدوسره باد وغیره وتلی دی.اود باد په وتلو سره اودس یقیناً ماتیږی .نوځکه په داسې خوب سره اودس مات شو.

**النوم غیر ناقض في نفسه** > ددې دلیل مقتضی دا ده.چه خوب د خپل ذات په اعتبار سره حدث نه دې.اود بعضورانې ده.چه خوب دخپل ذات په اعتبار سره حدث دې.اوباقی پاتې شوه.په تکیه لګولو سره خوب کول نو دا داسې ځیز دې.چه د بیدارئ رکاوټ ختموی.ځکه چه په دغه صورت کښې مقعد د زمکے نه اوچتیږی.نو په حالت د خوب کښې به د اندامونو کلك والے په طریقه اولی سره سستیږی.

**نقض الوضوء بالنوم مستنداً** >ځیزته تکیه لګولو اوخوب کولوکښې استرخاء د مفاصلوپوره کیږی.او خپل آخری حد ته رسی.صرف دومره خبره ده.چه تکیه دے د غورځولو نه منع کړې دې.که تکیه ترے لرے شی.نودے راغورځیږی.

**عدم النقض في حالة القيام والركوع والسجود** > ددې په خلاف که دقیام په حالت اوده شی. یا د قعود یا د رکوع اوسجدے په حالت کښې.نواودس نه ماتیږی.که دا کیفیت په مانځه کښې وی اوکه د مانځه نه بهر وی.هم دا صحیح قول دې.یعنی ظاهرروایت هم دا دې.

**دلائله** ① په دې باب کښې دا حدیث اصل دې.چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی.کوم کس چه د قیام په حالت کښې اوده شو.یا د قعود یا د رکوع یا د سجدے په حالت کښې.نوپه هغه اودس واجب نه

وی. بلکه اودس په هغه کس واجب دي.چه په ډډه اوده شي.ځکه چه کله څوك په ډډه اوده شي . نو د هغه جوړونه سست شي.(١)

③ عقلي دليل دا دي.چه په دې حالتونوکښې څه نه څه استمساك (رکاوټ) باقي وی.ځکه که بيخې استمساك ختم شوې وو.نو دا کس به خامخا راغورځيدلے وو.نو معلومه شوه.چه په دې حالتونو کښې کامله استرخاء نشته.اوچه کامله استرخاء نشته.نو اودس هم نه ماتوی.ځکه چه نقض د اودس په کمال استرخاء باندې مبنی دې.

## په بې هوشئ او ليونتوب سره د اودس ماتيدل

| وَالْغَلَبَةُ عَلَى الْعَقْلِ بِالْإِغْمَاءِ اود بے هوشئ دوجې په عقل باندې غلبه وَالْجُنُونُ او ليونتوب |
|---|

**حل اللغة** ﴿①اغماء: بې هوشی ② جنون: ليونتوب

**تشريح** ﴿ **نقض الوضوء بالإغماء والجنون والفرق بينهما**﴾اغماء يو قسم مرض دې.چه انساني قوتونه کمزوري کوی. او مراد ددې نه دا دې.چه عقل مغلوبه شي.اګرچه هرڅه موجود وی.(په ظاهره نور ټول اندامونه ښه برابر وی) اوجنون داسې مرض دې.چه عقل زائله کوی او سلب کوی .حاصل دا چه داغماء په حالت کښې عقل مغلوب وی.او د جنون په حالت کښې عقل مسلوب وی.هم دا وجه ده.چه د پيغمبرانو عليهم السلام په حق کښې اغماء خوجائز ده.(يعنی په دوی باندې اغماء راتلے شی.) ليکن جنون جائز نه دې.بهر حال د اغماء اوجنون حالت ناقض د اودس دې.

**دليله العقلي**﴾ ددې دليل دا دې.چه په دې دواړو کښې په هر يوکښې استرخاء د مفاصلو په ډډه د خوب کولو نه زياته ده.اواغماء په ټولوحالتونوکښې ناقض د اودس ده.يعنی دقيام قعود وغيره په حالت کښې هم.دقياس تقاضا خو په خوب کښې هم دا وه.چه خوب دے په ټولو حالتونوکښې ناقض د اودس وی.

**ترک القياس بالحديث**﴾خود نبی ﷺ د حديث د وجې مونږ قياس پريخودلو.او چونکه اغماء د خوب نه قوی ده. نو ځکه اغماء په خوب باندې نشی قياس کولې.اود اغماء د قوت دليل دا دې.چه په چا باندې اغماء جاری وی.هغه په تنبيه ورکولو سره نه بيدارېږی.په خلاف د اوده ځکه چه هغه په تنبيه ورکولو سره بيدارېږی.اوجنون چونکه داغماء نه هم قوی دې. نو ځکه به جنون په طريقه اولی سره ناقض د اودس وی.

## په قهقهه داودس ماتيدل

| وَالْقَهْقَهَةُ فِي كُلِّ صَلَاةٍ ذَاتِ رُكُوعٍ وَسُجُودٍ اوقهقهه اودس ماتوی په هرهغه مونځ کښې چه رکوع اوسجده په کښې وی |
|---|

**تشريح**﴾ **الأقسام الثلاثة للضحک**﴾ ①قهقهه دا ده.چه سرې ئې پخپله اوری.او هغه سره چه نزدے څوك وی هغوی ئې هم اوری.که غاښونه ئې ښکاره شوی وی او که نه وی

---

(١) قال الزيلعي رحمه الله غريب بهذا اللفظ واخرج ابوداود(اى فى الطهارة باب ٧٩) والترمذى (اى فى الطهارة باب ٥٧ رقم ٧٧) من حديث ....ابن عباس رضي الله عنهما انه رأى النبى ﷺ نام وهو ساجد حتى غط اونفخ ثم قام يصلى فقلت يارسول الله إنك قد نمت قال إن الوضوء لا يجب إلا على من نام مضطجعاً فإنه إذا اضطجع استرخت مفاصله (نصب:١\٩١)۔

② ضحك هغه دي.چه سړې ئې په خپله اوري.خو ورسره ناست کسان ئې نه اوري.
③ تبسم دا دي.چه څوك ئې واونري.په تبسم نه مونځ ماتيږي او نه اودس.او په ضحك باندې مونځ خوماتيږي.ليکن اودس نه.
**حکم القهقهة في الصلاة**> ①او د عاقل بالغ د قهقهې حکم دا دې. چه هغه د رکوع اوسجدے په مانځه کښې موجوده شي.يا د رکوع او سجدے مونځ په اشارے سره کوی.او په دې کښې قهقهه موجوده شي.نودا د مونځ ماتونکې هم ده.او داودس ناقضه هم.
**دليله** >زمونږ دليل دا دې.چه يوځل نبی ﷺ مونځ کولو.يو باندېچی چه نظر ئې کمزورے وو.راغلو او راپريوتلو.صحابه کرامو ﷺ چه په مانځه کښې شريك وو.هغوی اوخاندل.نبی ﷺ د مانځه د فراغت نه پس اوفرمائيل: واورئ په تاسو کښې چه کوم کس په خنداء قهقهه سره خاندلی وی.هغه دے خپل مونځ اواودس راوګرځوی. (١)اودا حديث مشهور دې.او دحديث مشهور د وجې قياس پريخودے شي.چونکه دا حديث په کامل مونځ يعنی د رکوع اوسجدے په مونځ کښې وارد شوې دې.نوهم په دې پورې به خاص کولې شي.او ددې نه علاوه که د جنازے مونځ اوسجده دتلاوت او دمانځه نه بهر ته تجاوز اوکړی.نواودس به نه ماتوی.ځکه چه خلاف قياس حکم دخپل مورد نه تجاوز نشی کولې.

**دغسل فرائض**

| وَفَرْضُ الْغُسْلِ دغسل فرض الْمَضْمَضَةُ خوله کښې اوبه اچول وَالإِسْتِنْشَاقُ پوزه کښې اوبه اچول وَغَسْلُ سَائِرِالْبَدَنِ او د ټول بدن وينځل دی |
|---|

**حل اللغة** >①**مضمضة**: غړغړې کول ②**استنشاق**: پوزه کښې اوبه اچول ③ **سائر**: ټول
**تشريح**> **وجوه تقديم الوضوء علي الغسل**> امام قدوری رحمه الله د غسل احکام د اودس د احکامو نه پس بيان کړل.
① **الوجه الاولي**> د اودس محل د بدن جزء دې.او د غسل محل کل بدن دې.او جزء مقدم وی په کل باندې.ځکه ئې د اودس احکام وړاندې او دغسل احکام روستو بيان کړل.
② **الوجه الثانية**> دا ده. چه د کتاب الله اقتداء مقصود ده.ځکه چه په قرآن پاك کښې اودس اوغسل په دې ترتيب بيان شوی دی. او غسل د غين په پيښ سره په معنی د اغتسال راځی.يعنی د ټول بدن وينځل.
③ **الوجه الثالثة**> دا ده. چه د غسل په نسبت د اودس حاجت زيات دې.
**حکم المضمضة والإستنشاق**> ①داحنافو فقهاؤ رحمهم الله په نزد په غسل کښې درې فرض دی.
① خوله کښې اوبه اچول.② پوزه کښې اوبه اچول.③ دټول بدن وينځل.
**دليله** > ① دليل دا دې.چه الله تعالی فرمائيلی دی.که تاسو په حالت دجنابت کښې ئې.نوښه ځان پاك کړئ.يعنی الله رب العزت مکلفينو ته په طريقے د مبالغے د ټول بدن د وينځلو حکم کړې دې.ځکه چه ﴿فَاطَّهَّرُوا﴾ ئې فرمائيلی دی.او تطهير په مبالغے سره د ټول بدن وينځلو ته وائی.مګر دا چه يو ځائې ته اوبه رسول ممکن نه وی.نوهغه ددې حکم نه خارج دې.لکه د سترګو دننه حصه شوه.او کوم ځائې ته

(١) من حديث أبي موسى رضي الله عنه اخرجه الطبراني في معجمه ذکره الهيثمي في مجمع الزوائد (١١٦٤٢)۔

چه په اوبو رسولو کښې څه حرج نه وي.هغه به ددې حکم د لاندې باقي وي.نوخولې او پوزې ته اوبه رسولوکښې څه تکليف نشته . نو ځکه ددې دواړو وينځل د کتاب الله په حکم باندې فرض شو.

### د غسل مسنون طريقه

| وَسُنَّةُ الْغُسْلِ اود غسل سنت دا دی أَنْ يَبْدَأَ الْمُغْتَسِلُ چه غسل کونکي شروع اوکړی فَيَغْسِلَ يَدَيْهِ وَفَرْجَهُ نو خپل دواړه لاسونه اوخپله شرمګاه اووينځی وَيُزِيلَ نَجَاسَةً اونجاست لرې کړی إِنْ كَانَتْ عَلَى بَدَنِهِ که دهغه په بدن باندې وی ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ بيا دې اودس اوکړی.(لکه څنګه چه د خپل) مونځ دپاره کوی إِلَّا رِجْلَيْهِ بغير د دواړو پښو نه ثُمَّ يُفِيضُ الْمَاءَ عَلَى رَأْسِهِ بيا دې په خپل سر اوبه واچوی وَسَائِرِ جَسَدِهِ ثَلَاثًا اوپه خپل ټول بدن درې ځله ثُمَّ يَتَنَحَّى عَنْ ذَلِكَ الْمَكَانِ بيا دې د هغه ځائې نه اخوا شی فَيَغْسِلَ رِجْلَيْهِ او خپلې پښې دې اووينځی |
|---|

**حل اللغة** > ① ان يبداء، بدأ، بدا (ن،ف) شروع کول ② **مغتسل**: غسل کونکي ③ **فرج**: شرمګاه ④ **يزيل ازالة**: زائل کول ⑤ **يتوضا، توضأ**: اودس کول ⑥ **يفيض، افاضة**: بيول

⑦ **بدن**: وجود ⑧ **يتنحي**: لرې کيدل، جدا کيدل ⑨ **يؤخر، تاخيرًا**: ناوخته کول ]

**تشريح** > **كيفية الغسل** > په غسل کښې سنت طريقه دا ده.چه دټولو نه رومبې خپل دواړه لاسونه تر مرونډونو پورې اووينځی.ځکه چه دا دواړه د پاکولو آله ده. اوخپله شرمګاه اووينځی. ځکه چه هغه محل د نجاست دې.نواحتمال شته.چه نجاست وربورې لګيدلې وی.اوکه په بدن پورې نجاست حقيقی لګيدلې وی.نو هغه دې هم لرې کړی.چه د اوبو په لګيدو سره زيات نشی.بيادې داسې اودس اوکړی.لکه څنګه چه دمانځه دپاره کوی.خوخپلې پښې به نه وينځی.بيادې په سر باندې درې ځله اوبه اوبيوی.اودرې ځله دې په ټول بدن اوبه تيرې کړی.

**دليل هذه الكيفية المسنونة** > روى الجماعة عن ميمونة رضى الله عنها قالت وضعت للنبى ﷺ ماء يغتسل به فأفرغ على يديه فغسلهما مرتين أوثلاثا ثم أفرغ بيمينه على شماله، فغسل مذاكيره، ثم دلكه بيده الأرض ثم تمضمض واستنشق ثم غسل وجهه ويديه، ثم غسل رأسه ثلاثا، ثم أفرغ على جسده ثم تنحى عن مقامه فغسل قدميه ] [1]

دميمونې رضى الله عنها نه يوې ډلې (دمحدثينو) روايت کړې دې.چه حضرت ميمونې ﷺ فرمائيلی دی.ما د رسول الله ﷺ د غسل دپاره اوبه کيخودې.نو نبی ﷺ په خپلو دواړو لاسونو باندې راواچولې. دوه يا درې ځله ئې خپل لاسونه اووينځل.بيا نبی ﷺ په خپل ګس لاس د ښی لاس نه اوبه واچولې.بيا نبی ﷺ خپله شرمګاه اووينځله.بيا ئې خپله لاس په زمکه باندې اومګلو.بيا ئې په خوله کښې اوبه واچولې. اوبه پوزه کښې ئې اوبه واچولې.بيا ئې خپل مخ او لاسونه اووينځل.بيا ئې درې ځله خپل سر اووينځلو.بيا ئې په خپل بدن باندې اوبه اوبيولې.بيا دهغه ځائې نه اخوا شو.او قدمونه ئې اووينځل.

---

[1] ) أخرجه البخارى فى الغسل باب ٨ ومسلم فى الحيض رقم ٣٧ وأبوداود فى الطهارة باب ٩٧ والترمذى فى الطهارة باب ٧٦ والنسائى فى الغسل باب ٢٢ وابن ماجه فى الطهارة باب ٩٤ )_

**وجه تاخير غسل القدمين** > پښې به ددې وجې روستو کوي.چه هغه د مستعملو اوبو په ځائې کښې جمع کيږي.نوکه په اوچت ځائې لکه تخته وغيره باندې ولاړ وي.اوغسل کوي.نود پښو دوينځلو روستو کولو ته څه ضرورت نشته.

**په غسل کښې د کوڼسو او وېښتو وينځلو حکم**

| وَلَيْسَ عَلَى الْمَرْأَةِ أَنْ تَنْقُضَ ضَفَائِرَهَا فِي الْغُسْلِ او په ښځه باندې دخپلے کونسو پرانستل واجب نه دی په غسل کښې إِذَا بَلَغَ الْمَاءُ أُصُولَ الشَّعْرِ چه اوبه د ويختو جرړوته رسيږي |
|---|

**حل اللغة** > ① ضفائر، دَ ضفيرة واحد، کونسئ شوی ويښته ② بلغ، بلوغًا (ن) اورسيدلو ③ اصول: جرړې

**تشريح** > **عدم نقض الضفائر** > مسئله دا ده.چه د ښځې د کونسود ويختو بيخونو ته اوبه رسي. نو په هغې باندې د خپلو کونسو پرانستل واجب نه دی.

**دليله** > دليل په صحيح مسلم وغيره کښې دحضرت ام سلمیٰ ﷺ حديث دې. [قلت يا رسول الله إني امرأة أشد ضفر رأسي أفأنقضه في غسل الجنابة فقال لا إنما يكفيك أن تحثي على رأسك ثلاث حثيات ثم تفيض عليك الماء فتطهرين] (فتح القدير) يعني حضرت ام سلمیٰ ﷺ عرض اوکړو.يا رسول الله ﷺ زه داسې ښځه يم.چه د خپلو ويختو کونسئ سختے ترم.نو آيا د جنابت په غسل کښې دا پرانيزم؟ نو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل:ته، ستا دپاره بس دا کافی ده.چه ته په خپل سر درې لپے واچوې.اوبيا په خپل بدن اوبه اوبيوې.نوپاکه به شې. ددې حديث نه معلومه شوه .چه په هغه ښځه باندې د ويختو لوندول واجب نه دی.چه کونسئ ئې جوړے کړې وی.

**عدم وجوب إيصال الماء إلي تحت الضفائر** > صاحب دهدايه ﷺ فرمائيلی دی.چه په دې ښځه باندې د کونسو لوندول هم واجب نه دی.هم دا صحيح قول دې.ځکه چه د کونسو په لوندولو کښې دښځې دپاره تکليف دې.

**غسل واجبونکی اسباب**

| وَالْمَعَانِي الْمُوجِبَةُ لِلْغُسْلِ اوهغه اسباب کوم چه غسل واجبوی إِنْزَالُ الْمَنِيِّ انزال د منئ عَلَى وَجْهِ الدَّفْقِ وَالشَّهْوَةِ په طريقه د ټوپ اوشهوت سره مِنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ که دسړی نه وی اوکه د ښځې نه (غسل واجبوی) |
|---|

**حل اللغة** > ① معاني: څيزونه ، ② دفق: ټوپ کول، وردانګل

**تشريح** > **حکم المني والمذی والودی وحکمها** > انزال د باب افعال مصدر دې.نزاله (دنون سره) نه ماخوذ دې.معنی ئې ده د سړی اوبه.دلته کښې درې الفاظ قابل ذکر دی.منی ،مذی او ودی.اول موجب دغسل ده.اودويمه او دريمه موجب د اودس دی.

**تعريف الأشياء الثلاثة** > ① د دې درې واړو په مينځ کښې فرق کښې د عالمانو مختلف اقوال دی مصنف عبدالرزاق په خپل مصنف کښې د حضرت قتاده.او عکرمه ﷺ نه نقل کړې دې.فرمائی چه منی هغه د ټوپ اوبه دی.چه شهوت ورسره وی.او دهغې نه بچے پيدا کيدے شی.اومذی هغه اوبه دی.چه د لوبو په وخت کښې اوځی.او ودی هغه اوبه دی.چه د متيازو نه پس اوځی.(عينی)

② شیخ ابن الهمام په فتح ا لقدیر کښې لیکلی دی.چه بوے ښځې د حضرت عائشې رضی الله عنها نه د مذئ په باره کښې تپوس اوکړلو.نوهغوی ورته اوفرمائیل .دهر سړی نه مذی خی.او دا په حقیقت کښې درې څیزونه دی. مذی ودی اومنی.نومذی خودا ده.چه سړې د خپلے بی بی سره لوبے کوی.اود هغه په عضو تناسل باندې یوڅیزښکاره شی.نوهغه دے خپل ذکر او خصیتین اووینځی.او اودس دے اوکړی.غسل دے نه کوی.او.ودی هغه ده.چه کومه د متیازونه پس راځی.دلته کښې هم د خپل ذکر او خصیتینو وینځل اواودس کول واجب دی. اوغسل نه دې.او منی هغه ټینګے اوبه دی.چه په شهوت سره اوځی. په دې کښې غسل دې.

③ علامه نووی رحمه الله فرمائی.چه مذی سپینے نرمے او ځلیځناکے اوبه وی.کومے چه د لوبو په وخت په شهوت سره اوځی.لیکن ددې نه پس په طبعیت کښې فتورنه راځی.

④ امام قدوری فرمائی.چه مذی هغه اوبه دی.چه نرمے اوسپین والی ته مائلے وی.د لوبو په وخت کښې اوځی.

**شرطیة الشهوة لوجوب الغسل** > امام قدوری رحمه الله په دې عبارت کښې دغسل موجبات بیانوی.
اول سبب په شهوت او توپ سره د منئ وتل دی .که انزال د منئ د سړی نه وی اوکه د ښځې نه.اوکه دخوب په حالت کښې وی اوکه د ویښے په حالت کښې.په هر صورت کښې غسل واجب دې.

**دلیله** > دلیل دا دې.چه الله تعالی فرمائیلی دی.﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾آیت کښې د تطهیر حکم جنب ته هم شامل دې.او په لغت کښې جنابت وائی.په شهوت سره د منئ وتلو ته.کله چه سړې د ښځې نه خپل شهوت پوره کړی.نو عرب وائی.[أجنب الرجل] نومعلومه شوه.چه د منئ په شهوت سره وتل جنابت دې.نو چه انزال د منئ په شهوت سره اوشی.نو غسل به واجب وی.

**وجوب دغسل په التقاء دختانینو**

| وَالْتِقَاءُ الْخِتَانَيْنِ مِنْ غَيْرِ إِنْزَالٍ اوپه خپلو کښې د ختانینو جنګیدل بغیر د انزال نه(غسل واجبوی) |
|---|

**حل اللغة** > ① **التقاء**: ملاویدل ② **ختانین**: دواړه شرمګاهونه

**تشریح** > **حکم الختان للرجل والمرأة** > ختان د ښځې او سړی د ختنه (کټ کولو)ځائې دې.دعربو عادت وو.چه هغوی به د هلکانوپه شان د جینکو ختنه هم کوله.ابن الهمام رحمه الله لیکی.چه ختنه د سړو دپاره سنت ده.اودښځو دپاره عزت .ځکه چه د مختونے ښځې سره په جماع کولو کښې زیات خوند وی.سړې که ختنه پریږدی.نوهغه به مجبوروله شی.البته که په ختنه کښې دهلاکت غالب ګمان وی. نو بیا به نشی مجبورولے.(مثلا د شوګر مریض وی.چه زخم ئې نه جوړیږی.)

**وجوب الغسل بإلتقاء الختانین** > مسئله ده.که ختانین دواړه ملاؤشی.او خشفه (دذکر سر) دښځې په شرمګاه کښې پټ شی.نوپه دواړو به غسل واجب وی.که انزال شوې وی اوکه نه وی.

**دلائله** > ① دلیل دا حدیث دې. [إذا التقى الختان الختان وغابت الحشفة وجب الغسل أنزل اولم ينزل] یعنی کله چه دواړه ختان په خپل مینځ کښې یوځائې شی.نوغسل واجبیږی.که انزال شوې وی اوکه نه وی.
② دویم دلیل دا دې.چه په کوم څیز حکم مرتب کیږی.هغه مخفی وی.اودهغې سبب ښکاره وی.نو هغه ظاهری سبب به د پټ څیز قائم مقام وی.او حکم به په دغه سبب باندې مرتب وی.نودلته کښې

التقاء د ختانینوسبب د انزال دي.او په نفس انزال باندي دغسل ترتب دي.او هغه پوښ خیز دي. ځکه چه د سترګو نه پټ وی.اوکله د منی د قلت دوجې دا پته هم نه لږی.چه انزال شوې دے اوکه نه دې.نوځکه به التقاء د انزال قائم مقام وی.او دغسل ترتب به په التقاء وی په انزال به نه وی.

**وجوب دغسل په حیض اونفاس**

| وَالْحَيْضِ اوحیض(غسل واجبوی) |
|---|

**حل اللغة** ◁ ① **حیض**: ماهواری بیماری

**تشریح** ◁ **وجوب الغسل بالحیض والنفاس** ◁ دغسل په موجباتوکښې نفاس اوحیض دی. او بعضو وئیلی دی.چه انقطاع دحیض موجب دغسل دې.

**دلیل وجوب الغسل بانقطاع دم الحیض** ◁ دلیل دالله تعالی ارشاد دې.﴿حَتَّىٰ يَطَّهَّرْنَ﴾ (په تشدید سره) یعنی حائضوښځو ته نژدې مه ورځئ .تردے چه هغوی ښه پاکې شی.اودا ښه پاکیدل په هغه وخت کښې راځی.چه د وینې د انقطاع نه پس غسل هم اوکړی.

**دلیل وجوب الغسل عقیب النفاس**= دحضرت معاذ رضی الله عنه نه مرفوع روایت دې.که په نفاسه ښځه باندې اووه ورځې تیرے شی.اوبیائې وینه اولیدله. نوغسل دے کوی.اومونځ دے کوی.

**د غسل مسنون مواقع**

| وَسَنَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغُسْلَ لِلْجُمُعَةِ وَالْعِيْدَيْنِ وَعَرَفَةَ وَالْإِحْرَامِ او رسول الله ﷺ د جمعې اخترونو،احرام اوعرفې دپاره غسل سنت ګرځولې دې |
|---|

**حل اللغة** ◁ ① **سن،سناً**: طریقه مقرر کول

**تشریح** ◁ **مواقع الغسل المسنون** ◁ په دې عبارت کښې د مسنون غسل بیان دې. امام قدوری رحمه الله په دې صورتونو کښې د مسنون غسل صراحت کړې دې.

① جمعه ② اخترونه ③ عرفه ④ احرام

**دلیله** ◁ نبی ﷺ فرمائیلی دی.چا چه د جمعې په ورځ اودس اوکړو.نو ښه ده.او چاچه غسل اوکړو.نودا غوره ده.[1] ددې حدیث نه د جمعې د ورځې دغسل سنتیت ثابتیږی.

**مسنونیة غسل یوم العیدین** ◁ صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه عیدین هم په منزله د جمعې دی.ځکه چه په دې دواړو کښې هم خلق راجمع کیږی.نوغسل کول به مستحب وی.چه د خولې وغیره د وجې بدبوئی نه وی.

**دلیله** ◁ د عیدینو د مونځ دپاره غسل کول د احادیثو نه هم ثابت دې.دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې. چه [**أنه ﷺ کان یغتسل یوم العیدین**] یعنی نبی ﷺ به د اخترونو په ورځ غسل کولو. اودعرفې او احرام دپاره دغسل بیان به په باب المناسك کښې راشی.﴿فَانْتَظِرُوْا إِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ﴾

---

[1] ) من حدیث سمرة بن جندب رضی الله عنه أخرجه أبوداود فی الطهارة باب ۱۲۸ والترمذی فی الجمعة باب ۵ والنسائی فی الجمعة باب ۹ وابن ماجه فی الإقامة باب ۸۱ والدارمی فی الصلاة باب ۱۹)_

**عدد الغسل الفرض** ﴿د غسل یوولس انواع دی. په دې کښې پنځه فرض دی.① د انزال د منئ د وجې ② د التقاء ختانینو د وجې ③ د احتلام دوجې ④ دحیض د وجې ⑤ د نفاس د وجې.

**عدد الغسل المسنون** ﴿څلور سنت دی.① د جمعې د ورځې غسل ② دعرفې د ورځې ③ د اخترونود ورځې ④ داحرام په وخت. او یو واجب دې.یعنی د مړی غسل.

**الغسل المستحب** ﴿یو مستحب دې.یعنی کله چه کافر مسلمان شی.او جنب نه وی.نو دهغه دپاره غسل کول مستحب دې.

### د مذئ اوودئ په وتلو د اودس وجوب

| وَلَيْسَ فِي الْمَذْيِ وَالْوَدْيِ غُسْلٌ اوپه مذی اوودی کښې غسل نشته وَفِيهِمَا الْوُضُوءُ په دې دواړو کښې اودس دې |
|---|

**حل اللغة** ﴿① **مذی**: هغه نرئ اوبه چه دَ ملاعبت یا ښکلولو وخت کښې اوځی ② **ودی**: هغه ټینګې اوبه چه دَ متیازو نه پس اوځی

**تشریح** ﴿ **تعریف الودی** ﴿ ودی ټینګې متیازې وی‌چه د نرمو متیازو پسې راوځی‌نودا به په هغې باندې قیاس کولې شی

**تعریف المذی** ﴿مذی نرئ او زیړے اوبه وی.سپینوالی ته مائله وی‌دسړی دخپلې ښځې سره د لوبوکولو دوجې اوځی‌دا تفسیر دحضرت عائشې ﷺ نه منقول دې.

**وجوب الوضوء في المذی والودی** ﴿صاحب دکتاب فرمائی.چه د ودئ او مذئ د وتلو په صورت کښې غسل واجب نه دې.بلکه اودس واجب دې.

**دلیله** ﴿ دلیل د نبی ﷺ ارشاد دې.چه [كل فحل يمذی وفيه الوضوء][1]

**لم ذکر المذی والودی في باب الغسل؟** ﴿ دلته کښې یوسوال دې.اوهغه داچه کله د مذئ او ودئ په وتلو سره اودس واجبیږی.اوغسل نه.نو دا دواړه پکار وو.چه په [فصل في الوضوء] کښې ئې ذکر کړې وې.په [فصل في الغسل] کښې نه وے ذکر کړې.

**التوجیهان لذکرهما في الغسل** ﴿ ①ددې جواب دا دې.چه دا دواړه چونکه د منئ سره مشابه دی.څکه په [فصل في الغسل] کښې ذکر کړې شو.

② دلته بهتره توجیه دا ده.چه دلته کښې ئې د دواړو ذکر څکه اوکړلو.چه امام احمد رحمه الله په یو روایت کښې په دې دواړو د غسل د وجوب قائل دې.نو دلته کښې ددې دواړو ذکر د امام احمد رحمه الله د قول د تردید دپاره ذکر شوې دې.

### د اوبو احکام

| وَالطَّهَارَةُ مِنَ الْأَحْدَاثِ جَائِزَةٌ او د بےاودسو نه پاکی حاصلول جائز دی بِمَاءِ السَّمَاءِ د آسمان په اوبو وَالْأَوْدِيَةِ د خوړونو په اوبو وَالْعُيُونِ د چینوپه اوبو، وَالْآبَارِ د کوهیانو په اوبو وَالْبِحَارِ اود دریابونو په اوبوسره |
|---|

**حل اللغة** ﴿① **اودیه**: چینې ② **آبار**: کوهیان ③ **بحار**: سمندر

[1] من حدیث عبدالله بن سعد رضي الله عنه اخرجه ابوداود في الطهارة باب ۸۲)_

**تشریح> الربط بماقبله>** کله چه امام قدوری رحمه الله د طهارتینو یعنی اودس او غسل د بیان نه فارغ شو،نو ددې ځائې نه دهغه څیز بیان کوی.په کوم چه طهارت حاصلیږی.یعنی اوبه مطلق، د مطلقو اوبو نه مراد د باران ،خوړونو، چینو اوبه،او د کوهیانو اوبه او د دریابونو اوبه ،

**نوعي الحدث>** احداث دحدث جمع ده.اود حدث دوه قسمونه دی. حدث اصغر اوحدث اکبر، یا داسې وئیلې شی.چه د حدث دوه قسمونه دی.حدث غلیظه او حدث خفیفه، بهرحال د احداثونه پاکی حاصلول جائزدی.دآسمان په اوبو د خوړونو په اوبو ،د چینوپه اوبو ،د کوهیانو او دریابونو په اوبو،

**دلائل طهورية الماء المطلق>** ① دلیل دالله تعالی دا ارشاد دې.﴿وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً﴾

② نبی ﷺ فرمائیلی دی.[الماء طهور لاینجسه شئ إلا ما غیر لونه أوطعمه أو ریحه] ([1]) یعنی مونږ د آسمان نه پاکې اوبه نازل کړې دی.اود نبی ﷺ ارشاد چه دا اوبه پاکې دی.څه څیز دانشی پلیتولې.مګرداچه ددې رنګ ،خوند او بوئی بدل شی.

③ د سنن اربعه صاحبانود حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت کړې دې.چه [إن رجلا سأل رسول الله ﷺ فقال یا رسول الله إنا نرکب البحر ونحمل معنا القلیل من الماء فإن توضأنا به عطشنا أفنتوضأ من البحر، فقال ﷺ هو الطهور ماءه والحل میتته]([2])یعنی د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې. چه یوسړی دنبی ﷺ نه تپوس اوکړلو.یارسول ﷺ مونږ په دریابونوکښې سفر کوو. او مونږ سره لږے غوندې اوبه وی.که مونږ په هغې باندې اودس اوکړو.نو تګی پاتې کیږو.نوآیا مونږ د دریاب په اوبوباندې اودس کولے شو.نبی ﷺاوفرمائیل: ددې اوبه پاکې اومرداره حلاله ده.

## د ونې اومیوې په نچوړ شوو اوبو د اودس حکم

| وَلَا يَجُوزُ الطَّهَارَةُاو اودس جائزنه دې بِمَا اُعْتُصِرَبه داسے څیز چه په نچوړولو سره حاصل شوې وی مِنَ الشَّجَرِ (برابره ده) که د ونې وی وَالثَّمَرِاو که د میوے وی |
|---|

**حل اللغة>** ① لایجوز، جاز جوازاً:جائز کیدل ② اعتصر، اعتصار: نچوړی کول ③ شجر: ونه ④ ثمر: میوه

**تشریح> الماء المعتصر لیس بماء مطلق>** مسئله دا ده.چه کومې اوبه د ونې یا میوے نه په نچوړ کولو سره اووتلې شی.نو په دې باندې اودس کول جائزنه دې.ځکه چه دا اوبه مطلق نه دې.

**دلیله>**اوددې دلیل دا دې.که د یوانسان په کور کښې د دریاب او د کوهی اوبه وی. اوپه هغې کښې نچوړ شوې اوبه هم وی.او بیا چاته اووائې.چه اوبه راوړه.نواول قسم ته به ئې ذهن ځی.دویم قسم ته به نه ځی .نومعلومه شوه.چه نچوړ شوې اوبه ، مطلق اوبهٔ نهٔ دی. اوداوبو د نشتوالی په صورت کښې حکم تیمم طرف ته منتقل کړې شوې دې. الله تعالی فرمائیلی دی.﴿فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا﴾ نومعلومه شوه.چه د ونې یا میوے نه نچوړ شوې اوبه د اودس قابلې نه دی.

---

[1] ، من حدیث عبدالله بن سعد رضی الله عنه أخرجه أبوداود فی الطهارة باب ۸۲)_

[2] ، قال الزیلعی رحمه الله غریب ورواه عبدالرزاق فی مصنفه (۱۵۹\۱) عن قتادة وعکرمة قالا هی ثلاثة :المنی والمذی والودي أما المنی فهو الماء الدافق الذي یکون فیه الشهوة ومنه یکون الولد ففیه الغسل وأما المذی فهوالذي یخرج إذا لاعب الرجل إمرأته ففیه غسل الفرج والوضوء وأما الودی فهو الذي یکون مع البول وبعده فیه غسل الفرج والوضوء (نصب:۱\۱۰٤)_

**الفرق بین العروج والإخراج** ﴿باقي پاتې شوې هغه اوبه چه د انګور د ونې نه په خپله راوځي.نو په هغې باندې اودس کول جائز دې.ځکه چه دا داسې اوبه دی.چه بغیر د عمل نه راوتلی دی.دا مسئله په جوامع ابی یوسف کښې ذکر ده.او قدوری رحمه الله دے طرف ته اشاره کړې ده.ځکه چه په متن کښې ئې د اعتصار (نچوړولو) شرط لګولې دی. یعنی دا ئې ونیلی دی.چه اوبه د ونې یا میوے نه نچوړ شوې وی.دا ئې نه دی ونیلے چه په خپله راووتلے وی.نوحاصل د خبرے دا شو.که په نچوړولو سره ئې اوبه راویستے وی.نو په دې باندې اودس جائز نه دې. او که په خپله راوتلے وې. نو په دې اودس جائز دې.(فتح القدیر)

## په مغلوبه اوبو د طهارت حکم

وَلَا يَجُوزُ او اودس جائز نه دی بِمَاءٍ غَلَبَ عَلَيْهِ غَيْرُهُ په داسې اوبو سره چه په هغې باندې د اوبو نه علاوه (بل څیز) غلبه کړې وی. فَأَخْرَجَهُ عَنْ طَبْعِ الْمَاءِ نوهغې اوبه ئې د خپل طبعیت نه ویستے وی كَالْأَشْرِبَةِ وَالْخَلِّ لکه شربت ،سرکه وَالْمَرَقِ خوروا وَمَاءِ الْبَاقِلَّا او د لوبیا اوبه وَمَاءِ الْوَرْدِ او د ګلاب اوبه وَمَاءِ الزَّرْدَجِ او د ګازرے اوبه،

**حل اللغة** ﴿① غلب غلبه(ض): غلبه موندل، برې موندل ② فاخرجه، اخرج، اخراجًا: وتل ③اشربه، واحد شراب: د څکلو څیز ④خل: سرکه ⑤ماءالورد: عرق ګلاب ⑥ مرق: خوروه

**تشریح**﴿ **حکم الماء المغلوب**﴾ مسئله دا ده.که د اوبو سره بل څیز ګډ شی.او په اوبو باندې غالب شی.تردے چه دا اوبه دخپل طبعیت نه اوباسی.او د اوبو طبعیت نرموالے اوبهیدل دی.نو په داسې اوبو باندې شرعاً اودس کول معتبر نه دې.لکه شربت، سرکه ، د ګلاب عرق،د لوبیا اوبه، خوروا او د ګازرے اوبه.

**المراد من الأشربة المعصورات** ﴿ابن الهمام لیکلی دی.که د شربتونونه مراد هغه وی.کوم چه د ونې نه راویستے شوی وی.لکه د انار شربت،د اننناس شربت، او د سرکې نه خالصه سرکه مراد وی.نو دا دواړه به دهغه اوبو نظیر وی.کومې چه د ونې یا میوے نه نچوړ شوې وی.او د لوبیااوبه او خوروا به دهغه اوبو نظیر وی.په کوم چه بل څیز غالب شوې وی.او په عبارت کښې به لف نشرمرتب وی.یعنی د [بما اعتصر من الشجروالثمر] مثالونه به مقدم وی.او [بما غلب علیه غیره] مثالونه به مؤخر وی.لکه چه دالله تعالی ارشاد دې.﴿وَمِن رَّحْمَتِهِ جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَلِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ﴾ په دې کښې د لف نشر مرتب خیال ساتلې شوې دې.

**المراد من الأشربة المیاه العذبة وتوضیحها**﴿او که د شربتونونه هغه اوبه مراد وی.چه په هغې کښې خوږوالے ملاوشوې وی.لکه ګوړه ئې په کښې ګډه کړې وی.یا شهد ئې په کښې ګډ کړې وی.او دسرکې نه مراد هغه سرکه وی.کومه چه د اوبوسره ګډه شوې وی.نو په دې صورت کښې به دا ټول د هغه اوبو نظیر وی.چه په هغې باندې بل څیزغالب شوې وی.

**دلیل عدم جواز الطهارة** ﴿ او په دې اوبو باندې داودس د عدم جواز دلیل دا دې.چه دے ته اوبه مطلق نه وائی .یعنی د اوبو په لفظ سره دے څیزونو ته ذهن نه ځی.هم دا وجه ده.چه ددې اوبو نه د اوبو نوم لرے کول ټیک دی.هر سړې چه اووائی.چه ما اوبه نه دی څکلې.حالانکه ده د لوبیا اوبه یا خوروا څکلے وی

.نو داسې کس ته دروغژن نشي ونیلې.که دا په حقیقت کښې اوبه وې.نوددې نه به د اوبو د صفت نفی کول ټیك نه وو .ځکه چه حقیقت د مسمی نه نه جدا کیږی.

**الحکمان لماء الباقلاء** ﴿ صاحب دهدایه ﷫ فرمائیلی دی.① چه د لوبیا نه هغه اوبه مراد دی. چه په اوبوکښې لوبیا واچولې شی.او پخې شی.او دے سره هغه اوبه متغیرے شی.نوپه هغې باندې اودس کول جائز نه دې.

②که بغیر د پخولو نه مغیرے شی.نواودس پرے جائزدې.

**په دوه صفته اوبو د طهارت حکم**

| وَتَجُوزُ الطَّهَارَةُ اوپاکي حاصلول جائزدی بِمَاءٍ خَالَطَهُ شَيْءٌ طَاهِرٌ.په داسې اوبو چه هغې سره څه پاك څیزګډ شوې وی فَغَيَّرَ أَحَدَ أَوْصَافِهِ نوهغې د اوبو په صفتونو کښې یوصفت بدل کړې وی كَمَاءِ الْمَدِّ لکه دسیلاب وَالْمَاءِ الَّذِي اخْتَلَطَ بِهِ اللَّبَنُ أَوِ الزَّعْفَرَانُ أَوِ الصَّابُونُ أَوِ الْأُشْنَانُ اوهغه اوبه چه هغې سره پې زعفران، صابون او اشنان ګډ شوې وی. |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①**لاتجوز، جاز جوازاً(ن)**: جائز کیدل② **خالطه، خالط مخالطه**: ګډوډ کیدل③ **اشنان**: یوقسم جاړی بوټی دې ④ **اشباه**: یوشان کیدل ⑤ **بیر**: کوهې ⑥ **عین**: چینه ⑦ **خلط**: یوځائ کیدل ⑧ **احتراز**: ډډه کول ⑨ **لون**: رنګ ]

**تشریح** ﴿ **حکم الطهارة بما غیروصفه الواحد**﴿ مسئله دا ده.که په اوبوکښې څه پاك څیز ګډ شی.اوهغې د اوبو درې صفتونه (رنګ،خوند او بوئی)کښې یوبدل کړلو.نو په دې اوبو باندې اودس کول جائز دې.لکه د سیلاب اوبه یا د زعفران،صابون او اشنان سره ګډے شوې اوبه .اشنان یوه ترخه ګیاه ده.او دصابون پشان جامې پاکوی.(بعضې خلق ورته زمئ وائی.)

**روایة جواز الطهارة بالماء الذی تغیربکثرة الأوراق**﴿ د قدوری دمصنف ﷫ عبارت دے طرف ته اشاره کوی.که د اوبو دوه صفتونه یا درې صفتونه بدل شو.نو په هغې باندې اودس کول جائز نه دې.اوپه نهایه کښې ئې لیکلی دی. چه د استاذانو نه نقل دی .چه په دې باندې اودس جائز دې.تردے چه د خزان په موسم کښې کله د ونو نه پانړے غورځیږی.او په هغې باندې د اوبو درې واړه صفتونه (رنګ خوند او بوئی) بدل شی. په شرح طحاوی کښې هم دے طرف ته اشاره ده.مګردا شرط دې.چه د اوبو رقت باقی پاتې شی.نوکه د یو څیز په ګډون سره اوبه ټینګې شی.نوددې حضراتو په نزد هم په هغې باندې اودس کول جائز نه دې.

**روایة عدم جواز الطهارة بالماء الذی تغیربکثرة الأوراق** ﴿علامه ابن ا لهمام په فتح القدیر کښې لیکلی دی.چه د فقیه احمد بن ابراهیم المیدانی ﷫ نه ددې اوبو په باره کښې تپوس اوشو.چه دهغې رنګ د زیاتو پانړو د وجې بدل شوې وی.چه کله هم په لاس کښې اوبه راواخستلې شی.نود پانړو رنګ په کښې ښکاره کیږی .نوهغوی ورته اوفرمائیل: په داسې اوبو اودس کول جائز نه دې.لیکن دد ے څکل او نور څیزونه په دې باندې وینځل جائز دی.ځکه چه دا پاکې دی.او اودس پرےځکه جائز نه دې.چه کله په

اوبو باندې د پانړو رنګ غالب شي. نو هغه مقيد اوبه شوې.لکه د لوبيا اوبه او وراندې تيرشو.چه په مقيدو اوبو اودس کول جائز نه دي. (۱)

**الغلبة باللون اوالأجزاء ؟**> باقي پاتې شوه دا خبره چه غلبه به څنګه معتبروی.د اجزاء په اعتبار سره که د رنګ په اعتبار سره؟نو وے فرمائيل:چه غلبه به د رنګ په اعتبار سره معتبره وی.هم دا صحيح قول دې.

## په اوبو کښې دنجاست د پريوتو حکم

وَكُلُّ مَاءٍ دَائِمٍ وَقَعَتْ فِيهِ النَّجَاسَةُ اوهرهغه اوبه ولاړې چه په هغې کښې نجاست پريوځی لَمْ يَجُزِ الْوُضُوءُ بِهِ نوپه هغه اوبو اودس جائز نه دې قَلِيلًا كَانَتِ النَّجَاسَةُ أَوْ كَثِيرًا برابره ده) که نجاست کم وی اوکه زيات وی لِأَنَّ النَّبِيَّ ﷺ أَمَرَ بِحِفْظِ الْمَاءِ مِنَ النَّجَاسَةِ فَقَالَ څکه چه نبی ﷺ حکم کړې دې په حفاظت د اوبو د پليتئ نه نوفرمائيلی ئې دی لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ چه په تاسو کښې دے څوك په ولاړو اوبو کښې متيازې نه کوی وَلَا يَغْتَسِلَنَّ فِيهِ مِنَ الْجَنَابَةِ اونه دے په دې کښې د جنابت نه غسل کوی وَقَالَ ﷺ اوفرمائيلی دی نبیﷺ إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ کله چه رابيدار شی يو کس په تاسو کښې مِنْ مَنَامِهِ د خوب خپل نه فَلَا يَغْمِسَنَّ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ نو نه دې غوپه کوی لاس خپل په لوښی کښې حَتَّى يَغْسِلَهَا ثَلَاثًا تردې چه اووينځی دا درې ځله فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ (۲) څکه چه ده ته علم نشته چه کوم ځائې کښې شپه تيره کړې وه لاس د ده (په بدن د ده)

**حل اللغة** > ① **وقعت، وقع، وقوعا (ف)**: واقع کيدل،پريوتل ② **نجاسه**: ناپاکی ③ **باتت**: د شپې تيرول ④ **يغمسن**: داغماس نه دې په اوبو کښې غوپه کول

**تشريح** > **المراد من الماء** > په عبارت کښې د ماء دائم نه هغه ولاړې اوبه مراد دی.کومې چه د جاری اوبو په حکم کښې هم نه وی.څکه چه د جاری اوبو اود هغه اوبو چه دجاری په حکم کښې وی نو د هغې حکم په روستنئ مسئله کښې ذکر دې.

**دلائله** > ① دليل د نبی ﷺ قول دې.چه [إذا إستيقظ أحدكم من منامه فلا يغمسن يده فى الإناء حتى يغسلها ثلاثا] (۲)په دې حديث باندې استدلال داسې کيږی.چه کله چه دنجاست داحتمال د وجې لاس په لوښی کښې د داخلولو نه منع شوې دې.نو دحقيقی نجاست په صورت کښې خو به په طريقه اولی سره اوبه پليتيږی.

---

۱) امام شافعی ﷫ فرمائی چه په زعفران او ددې پشان نورو څيزونو چه د جنس د زمکې څنې نه وی د هغې په اوبو باندې اودس کول جائز نه دې

۱) من حديث ابي هريرة ﷜ اخرجه البخاری فی الوضوء باب ۱۶ ومسلم فی الطهارة رقم ۸۷)۔

۲) تقدم تخريجه)۔

② دويم دليل د نبی ﷺ ارشاد دي.چه [لا يبولن أحدكم في الماء الدائم ولا يغتسلن فيه من الجنابة] (۱) ددې حديث نه معلومه شوه که ولاړې اوبه د نجاست په پرېوتو نه پليتيدې نبی ﷺ به ولې په دې کښې د بولو کولونه منع کوله

## په روانو اوبو کښې د نجاست پرېوتل

| وَاَمَّا الْمَاءُ الْجَارِيْ اِذَا وَقَعَتْ فِيْهِ نَجَاسَةٌ اوهرچې اوبه رواني دی کله چه نجاست پرېوځی جَازَ الْوُضُوْءُ مِنْهُ نو د هغې نه اودس کول جائز دې. اِذَا لَمْ يُرَ لَهَا اَثَرٌ ترڅو چه ددغه نجاست څه اثر ښکاره شوې نه وی لِاَنَّهَا لَا تَسْتَقِرُّ مَعَ جَرَيَانِ الْمَاءِ ځکه چه دا پليتی نه ايساريږی په يوځائي سره د جاري والو د اوبو نه |
| --- |

**حل اللغة** > ①وقعت، وقع، وقوعًا (ف) واقع کيدل، پرېوتل

**تشريح> عدم نجاسة الماء الجاري بوقوع النجاسة** >مسئله دا ده.که په جاري اوبو کښې نجاست پرېوځی.نو دهغې نه اودس جائز دې.خو په دې شرط چه د نجاست څه اثر نه ښکاري.برابره ده که نجاست مرئی وی اوکه غير مرئی وی.

**دليله**>دليل دا دې.چه نجاست د اوبو دجاري والی سره ايساريدے نشی. نوځکه د نجاست غورځيدو باوجود جاري اوبه پاکې وی.او د نجاست داثر نه مراد ددې خوند يا بوئی يا رنګ دې.

**تعريفات الماء الجاري**> ① دجاري اوبو په تعريف کښې د فقهاؤ اختلاف دې.بعضې فقهاؤ فرمائيلی دی.چه جاري اوبه هغه دی.چه دهغې استعمال مکرر نه وی.ددې صورت دا دې.چه د نهر نه اوبه راواخلی.او لاس اووينځی.او هغه اوبه په نهر کښې اوغورځيږی.نو کله په دويم ځل د نهر نه اوبه راخستے شی.نو د اولنو اوبو نه څه باقی نه وی.بلکه اولنۍ اوبه بهيدلے وی او وړاندې تلے وی.

② بعضو وئيلی دی.چه جاري اوبه هغه دی.که يو کس په پلنوالی خپل لاس په اوبو کښې کيږدی.نو د اوبو بهيدل نه اودريږی.

③ د بعضو عالمانو ﷺ خيال دې.چه جاري اوبه هغه دی.چه اوچ ډکے اوړی.

④ د بعضو رائې دا ده.چه خلق کومو اوبو ته جاري وائی.هغه جاري دی.

**تائيد مسئلة المتن برواية محمد** رحمه الله > امام محمد رحمه الله فرمائی.که په دريائې فرات کښې چا د شرابو منګے مات کړلو.او دهغې نه ښکته چه کوم طرف ته اوبه روانے وی.يو سړې اودس کوی.نو ترڅو چه په اوبو کښې د شرابو خوند يا بو يا رنګ محسوس شوې نه وی. نو اودس جائز دې.دامام محمد رحمه الله په روايت د متن د مسئلې تائيد کيږی.(فتح القدير)

## په لوئی حوض کښې د نجاست پرېوتل

| وَالْغَدِيْرُ الْعَظِيْمُ اولوئی حوض هغه دې اَلَّذِيْ لَا يَتَحَرَّكُ اَحَدُ طَرَفَيْهِ بِتَحْرِيْكِ الطَّرَفِ الْاٰخَرِ چه دهغې يواړخ نه خوزی په خوزلو دبل طرف اِذَا وَقَعَتْ نَجَاسَةٌ فِيْ اَحَدِ جَانِبَيْهِ چه ددې يو طرف ته نجاست وی جَازَ الْوُضُوْءُ مِنَ الْجَانِبِ الْاٰخَرِ نوچه د بل طرف نه اودس جائز دې لِاَنَّ الظَّاهِرَ ځکه چه ظاهر دا دې اَنَّ النَّجَاسَةَ لَا تَصِلُ اِلَيْهِ چه نجاست بل طرف ته نه رسی |
| --- |

(۱) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الطهارة باب ۳۶ وابن ماجه في الطهارة باب ۲۵)۔

**حل اللغة** >①**غدیر**: تالاب ② **تحريك**: راغوښتل

**تشريح**> **رأي المتاخرين في إيصال الماء**>داحنافو عالمانو ﷺ په دې باندې اتفاق دې.که د اوبو يوه حصه بلې حصې ته رسی.نوهغه اوبه قليل دی.اوکه نه رسی.نوهغه ماء کثير دی.

**الروايات الثلاث في سبب التحريك**> بيا متقدمين حضرات د تحريك په سبب کښې مختلف شوی دی.①امام ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت کړې دې.چه دغسل کولو حرکت معتبر دې.يعنی چه د حوض په يوارخ يوکس په مناسب انداز کښې غسل کوی.نو بل طرف نه خوزی.نودا لوئې حوض دې.او که بل طرف خوزيدلو.نودا لوئې حوض نه دې.امام ابويوسف رحمه الله دا روايت غوره کړې دې.

② امام ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دا روايت هم کړې دې.چه صرف په لاس باندې خوزيدل معتبر دی.

③ دامام محمد رحمه الله نه روايت دې.چه د اودس کولو حرکت معتبر دې.[1]

**توجيه الرواية الأولى**> داولنی روايت دليل دا دې.چه په حوضونو او تالابونو کښې داودس په نسبت غسل کولو ضرورت زيات پيښيږی.ځکه چه عام طور اودس په کورونو کښې کيږی. نو ځکه به د تحريك بالاغتسال اعتبار وی.

**التقدير بالمساحة** > ①ابوسليمان جوزجانی رحمه الله دمساحت خيال ساتلې دې.يعنی که هغه ده در ده (چه لس گزه اوږد او لس گزه پلن) وی.نوهغه ماء کثير دی.اوکه د هغې نه کم وی.نودا ماء قليل دی.دامام محمد رحمه الله نه روايت دې.په کوم وخت کښې چه د دوی نه ددې په باره کښې تپوس اوشو.نوهغوی اوفرمائيل:که زما د جمات د حوض برابر وی.نوهغه ماء کثير دی.او که برابر نه وی.نوهغه ماء قليل دی.کله چه د امام محمد رحمه الله د جمات د حوض پيمائش اوشو.نود يو روايت مطابق هغه هشت در هشت ( يعنی اته گزه اوږده او اته گزه پلن وو.) او دبل روايت مطابق هغه ده در ده وو.②او بعضې حضراتو فرمائيلی دی.چه دننه حصه ئې هشت درهشت (۸ضرب ۸) وه.اود بهر نه چه ئې پيمائش اوکړلو.نو ده در ده (۱۰ضرب۱۰) وو.بهر حال عامو مشائخو د ابوسليمان جوزجانی رحمه الله قول اختيارکړې دې.

**القولان في الزراع**>باقی پاتې شوه دا خبره چه کوم گزمعتبر دې.①نوپه فتاوی قاضی خان کښې دی.چه د مساحت (پيمائش) گز معتبر دې.او د مساحت گز دا دې.چه اووه موټی وی.اوپه هر موټی باندې يوه ولاړه گوته زياتی وی.

② د جامو د گزاعتبار کړې دې.اود جاموگز اووه موټی وی.اوپه موټی باندې ولاړه گوته زياتی نه وی. علامه مرغينانی فرمائيلی دی.چه په ماء کثير کښې د جامو دگز اعتبار د خلقو دآسانتيا دپاره شوې دې.او فتوی هم په دې باندې ده.

**الأقوال الأربعة في عمق الغدير**> ① د ژوروالی په باره کښې معتبره دا ده.چه بس دومره ژوروالې کافی دې.چه په لپه راخستلو سره زمکه نه ښکاره کيږی.اودا صحيح ده.② د بعضو رائې دا ده.چه کم از کم يوگز وی.③ بعضو د دوو گزود مقدار اعتبار کړې دې.④ بعضو د يو لويشت اعتبار کړې دې.

---

[1] )القول الراجح هوقول محمد من اعتبارحركة الوضوءكذا في السعاية (۲۷۷\۱) والكفاية (۷۱\۱) وردالمحتار (۱٤۱\۱) نقلاً عن القول الراجح (۱۱\۱)–

**حكم الموضع الذي وقعت فيه النجاسة في الغدير** ﴿ علامه مرغیناني فرمائیلي دي .چه داکوم څه په قدوري کښې ونیلي شوي دي.چه دغدیر عظیم د بل طرف نه اودس جائز دې. په دې کښې دے طرف ته اشاره ده.چه په کوم ځائې کښې نجاست غورځیدلے وي.هغه د نجاست غورځیدو ځائې به پلیت وي.برابره ده که نجاست مرئي وي اوکه غیر مرئي وي.اودامام ابویوسف ﷫ نه روایت دې.چه د نجاست غورځیدو مقام به هم پلیت نه وي. مګر په دې صورت کښې چه هلته نجاست ښکاره شي.لکه څنګه چه د جاري اوبو حکم دې.[1]

## په اوبو کښې د بې وینې څیز دمرګ حکم

| وَمَوْتُ مَا لَيْسَ لَهُ نَفْسٌ سَائِلَةٌ فِي الْمَاءِ او په اوبوکښې د داسے څیز مرګ چه په هغې کښې وینه نه وي. لَا يُنَجِّسُهُ نو هغه اوبهٔ نه پلیتوي كَالْبَقِّ لکه ماشے وَالذُّبَابِ، مچ، وَالزَّنَابِيرِ مچې وَالْعَقْرَبِ او لړمان |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① بق: ماشې ② ذباب:مچ ③ زنابیر: مچۍ ④ عقرب: لړم ⑤ یفسد، افسد، **افسادًا**: فاسد کول، خرابول

**تشریح** ﴿ **نجاسة الماء بموت ما ليس فيه دم سائلة** ① ﴿ مسئله دا ده.که په اوبو کښې داسې ځناور مړ شي.چه په هغې کښې بهیدونکې وینه نه وي.نو دهغې په مرګ سره اوبه نه پلیتیږي.لکه مچ، ماشے مچۍ او لړم وغیره،

**دلائله** ﴿ ①دلیل دحضرت سلمان فارسي ﷛ حدیث دې.[**أن النبي ﷺ سئل عن إناء فيه طعام أو شراب يموت فيه ما ليس له دم سائل فقال ﷺ هذا هو الحلال أكله وشربه والوضوء منه**] کفایه) یعنی د نبي ﷺ نه د هغه لوښي په باره کښې تپوس اوشو.چه په هغې کښې د خوراك څکاك څيز وي.او په دې کښې هغه ځناور مړ شي.چه په هغه کښې بهیدونکې وینه نه وي؟ نبي ﷺ اوفرمائیل:ددې خوراك څکاك حلال دې.او ددې نه اودس کول جائز دې.او په دارقطني کښې دا حدیث داسې دې. [**ياسلمان كل طعام وشراب وقعت فيه دابة ليس لها دم سائل فمات فيه فهو حلال أكله وشربه ووضوئه**] ([2]) اے سلمان د خوراك څکاك هر هغه څیز چه په هغې کښې داسې ځناور پریوځي.چه په هغې کښې وینه نه وي.او په هغې کښې مړ شي.نودا څیز حلال دې.ددې خوراك او څکاك او ددې نه اودس کول.دارقطني دا حدیث روایت کړې دې.اوفرمائیلي ئې دي.چه د بقیه راوي نه سوا بل هیڅ چا دے ته مرفوع نه دي ونیلي.اوهغه د سعید بن ابي سعید الزبیدي نه روایت کړې دې. اوهغه ضعیف دې.

② دلیل عقلي دا دې.چه د کوم ځناور په مرګ باندې اوبه پلیتیږي.نودمرګ په وخت کښې دهغه د دم مسفوح اجزاء د اوبو سره ګډیږي.(نوځکه دغه اوبه پلیتیږي.) چه کوم ځناور ذبح شوې وي.نوهغه حلال او پاك وي.ځکه چه په هغه کښې دم مسفوح نه وي.اودا ځناور چه پورته ئې ذکر اوشو. داسې دي.چه په دوی کښې داسې وینه نشته.یعنی په دې ځناورو کښې دم سائل نشته.اوچه اوبه پلیتوي.نو هغه

---

[1] ) القول الراجح هو قول ابي يوسف ﷫ من عدم نجاسة موضع الوقوع كذا في فتح القدير(١\٧٢) والدرالمختار (١\١٤٠) وردالمحتار(١\١٤٠) نقلاً عن القول الراجح (١\١٢)–

[2] ) من حديث سلمان ﷛ اخرجه الدارقطني في سننه (١\٣٧)–

هم دا دم سائل وی.کومه چه د ځناور د مرګ په وخت کښې داوبو د اجزاؤ سره ګډه شی. ددې ځناورو په مرګ سره دا وینه په اوبو کښې نه ګډیږی. ددې وجې په دې باندې اوبه نه پلیتیږی

**په اوبو کښې داوسیدونکې ځیز په مرګ د اوبو حکم**

| وَمَوْتُ مَا يَعِيشُ فِي الْمَاءِ فِيهِ اوبه اوبوکښې د داسې ځیزمرګ چه په اوبو کښې ژوند تیروی اذامات فی الماء کله چه مړ شی په اوبو کښې لَا يُفْسِدُهُ نه پلیتوی دې لره كَالسَّمَكِ لکه کب وَالضِّفْدَعِ چیندخه وَالسَّرَطَانِ اوشمشتی؛ (کونږکب) |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **یعیش، عاش-عیشًا(ض)** ژوندې اوسیدل ② **سمک**: کب ③ **ضفدع**: چیندخه

**تشریح** ﴿ **حکم موت حیوان البحر فیه** ﴿ ① مسئله دا ده.که په اوبوکښې هم د اوبو ځناور مړ شی.نو اوبه که قلیل وی او که کثیر ددې په مرګ اوبه نه پلیتیږی

**دلائله الأحناف** ﴿ ① دلیل دا دې.که د اوبوځناور په اوبو کښې مړ شی.نوهغه په خپل معدن کښې مړ شو.اوکوم ځیزچه په خپل معدن کښې مړ شی.نوهغه به په خپل معدن کښې نجس وی.او کوم ځیزچه په خپل معدن کښې اوسیږی.او نجس وی.نو هغې ته د نجاست حکم نشی ورکولې.ځکه که نجاست ته په خپل معدن کښې دنجاست حکم ورکړې شی.نو هیڅ یو سړې پاك نشی پاتې کیدې.ځکه چه د ټولو رګونه د وینې نه ډك دی.نومعلومه شوه.چه نجاست چه ترڅو په خپل معدن کښې وی.هغې ته د نجاست حکم نشی ورکولې.لکه هغه اګئ چه زیړ ئې وینه شوې وی.نو څو چه دننه وی.نو اګئ پلیته نه ده. تردے که داسې اګئ ئې په جیب کښې وی.او مونځ اوکړی.نودے سره مونځ جائز دې.ددې په خلاف که نجاست په خپل معدن کښې نه وی.نوهغې ته به د نجاست حکم ورکولې شی.نو که شیشه د وینې نه ډکه کړې شی.اوبه جیب کښې ئې کیږدی.اومونځ کوی.نو مونځ جائزنه دې.ځکه چه شیشه دهغې وینې معدن نه دې.نومعلومه شوه.که آبی ځناور په اوبو کښې مړ شی. نوهغه به نجس نه وی.ځکه چه اوبه دهغه معدن دې.اونجاست چه تر کومې په خپل معدن کښې وی.هغې ته دنجاست حکم نشی ورکولې.

② دویم دلیل دا دې.چه نجس په اصل کښې بهیدونکې وینه وی.او د وینې مزاج ګرم دې.او اوبه یخې وی. په دواړو کښې تغائر دې.نو چه په کوم ځناور کښې وینه وی.هغه د اوبو اوځیدونکې نه دې.او چه کوم ځناور د اوبو وی.په هغې کښې وینه نه وی.

③ ددې نه علاوه وینه په نمر کښې توریږی. او په دې ځناورو کښې چه کوم ځیز وی.هغه اوبهیږی. نوهغه په نمر کښې سپینیږی.نومعلومه شوه.چه په دې ځناورو کښې وینه نشته. هرکله چه په دې کښې وینه نشته. نو زمونږ په نیز په اتفاق سره ددې ځناورو په مرګ سره اوبه نه پلیتیږی.که اوبه لږې وی او که زیاتې وی.

**الروایتان فی حکم موت حیوان الماء فی المائع** ﴿ اوکه د اوبو دځناورونه یوځناورد اوبونه علاوه په بل بهیدونکی ځیزکښې مړ شی.لکه سرکه ،شربت، اوږې وغیره شو.نو په دې کښې اختلاف دې.

① بعضې فقهاء فرمائی .چه د کب نه علاوه نور آبی ځناور دا ځیزونه پلیتوی.ځکه چه په خپل معدن کښې نه دی مړا شوی.

② د بعضو خیال دې چه دا څیزونه نه پلیتوی.ځکه چه په آبی ځناورو کښې وینه نه وی.حالانکه په وینه باندې پلیتیږی.

**الروايتان في حكم موت الضفدع في المائع>** ① دعلامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.که چیندخ د اوچې وی.او که داوبو.دواړه په دې حکم کښې برابر دی.یعنی د دواړو په مرګ سره اوبه نه پلیتیږی.او د اوبو او د اوچې د چیندخ په مینځ کښې فرق دا دې.چه د اوبود چیندخ د ګروتونوپه مینځ کښې د بطے د ګوتو پشان پرده وی.اود اوچې په چیندخ کښې نه وی.

② بعضې فقهاء فرمائی.چه د اوچې د چیندخ په اوبو کښې مرګ سره اوبه پلیتیږی.ځکه چه د اوچې په چیندخ کښې وینه موجود وی.نو دنجاست علت موجود شو.او باقی دا خبره چه دغه سیال څیز ئې معدن نه دې.نودا د نجاست دحکم ښکاره کولودپاره دې.(یعنی کله چه یوځناور د خپل معدن نه علاوه په بل ځائې کښې مړ شی.نودهغه څیزد نجاست حکم ښکاره کیږی.اوکه په خپل معدن کښې مړ شی.نواګرچه پلیت وی.لیکن د نجاست حکم ئې نه ښکاره کیږی.)

**الصفتان لحيوان الماء>** باقی پاتې شوه دا خبره.چه داوبو ځناور څه ته وائی. نوصاحب دهدایه رحمه الله فرمائی. چه داوبو په ځناور کښې دوه صفتونه وی.①یو دا چه اوبه ئې مسکن وی.

② دویم دا چه ددې پیدائش په اوبو کښې وی.یعنی اګۍ او بچی ئې په اوبو کښې وی.او هغه ځناور چه مسکن ئې اوبه وی.لیکن د پیدائش ځائې ئې هغه نه وی.نودهغې په مرګ سره اوبه پلیتیږی.

**د مستعملو اوبو حکم**

| وَالْمَاءُالْمُسْتَعْمَلُ لَايطهربه الْأَحْدَاثِ اومستعملے اوبه احداث نه پاکوی. |
|---|

**تشریح> أقسام الماء المستعمل>** اوبه مستعملے په درې قسمه دی.①یوداچه دپاك څیز وینځلو دپاره استعمال شوې وی.مثلا غلے، او سبزیانے او پاکې جامې.دا په اتفاق سره پاکې دی.

② دویم دا چه د نجاست حقیقی لرے کولو دپاره استعمال شوې وی.لکه داستنجاء اوبه او د پلیتو جامو اوبه ، دا په اتفاق سره نجسے دی.

③ دریم قسم دا دې چه دنجاست حکمی دلرے کولودپاره استعمال شوې وی.یا دقربت اوثواب په اراده استعمال شوې وی.نوداسې مستعملې اوبه په خپله پاکې دی او نورې بې اودسۍ نه لرې کوی لکه څنګه چه په متن کښې ذکر دی او دا د امام محمد رحمه الله قول دې اودا مفتی به اوراجح قول دې

**دلیله>** دامام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چه د اودس کونکی اندامونه هم پاك دی.اواوبه هم پاکې دی.او دپاك څیز دپاك سره لګیدل موجب د نجاست نشے کیدې.خو که په اوبو باندې قربت او عبادت ادا شوې وی. نو ددې وجې د اوبو وصف متغیر شو.لکه څنګه چه د صدقے او زکاة مال دې.ځکه چه مال في نفسه مطهر دې.الله تعالی فرمائی.(خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا)نود کوم مال سره چه زکاة ورکړې شی . شریعت هغې ته خیرے وئیلی دې.ځکه د زکاة مال په نبیؑ علیه السلام او ددوی په اولاد باندې په شریعت کښې حرام دې.نودغه شان ماء مستعمل چه په دې باندې قربت ادا شوې وی.یا حدث زائله شوې وی.نودا د نجاست حکمیه د وجې خیرنیږی.او د خپلے اصلی مرتبے نه

غورځيږي.نوځکه هغه د مطهر د فهرست نه ويستلے شي.اګرچه په طهارت باندې باقی دې.نوثابته شوه.چه ماء مستعمل طاهرے غير مطهرے دی. نجس نه دی.[1]

### د اوبو د مستعملو ګرځيدو سبب

| |
|---|
| وَالْمَاءُالْمُسْتَعْمَلُ اواوبه مستعمل هر هغه اوبه دی هُوَمَا اُزِيلَ بِهٖحَدَثٌ چه په هغې سره لرے کړې شوې وی.څه حدث اَوْاُسْتُعْمِلَ فِي الْبَدَنِ عَلٰى وَجْهِ الْقُرْبَةِ يا هغه د تقرب په طور په بدن کښې استعمال شوې وی |

**حل اللغة** < ①**استعمل، استعمالاً**: استعمالول ②**قربه**: نزديکت

**تشريح**< **المذهبان في سبب الإستعمال** >په دې عبارت کښې د ماء مستعمل حقيقت اوددې په سبب کښې کلام دې.① د اوبو داستعمال سبب دوه څيزونه دی.①حدث لرے کول ②د قربت اوثواب نيت کول.چه دا دواړه خبرے موجود شی.يا په دې کښې يوه موجود شی.نو په دواړو صورتونوکښې اوبه مستعملے ګرځی. دا د شيخينو ﷭ مذهب دې[2]

**المذهبان في صيرورة الماء مستعملاً**< دلته کښې دريم بحث د ماء مستعمل د وخت متعلق هم شوې دې.ددې حاصل دا دې.چه اوبه ترڅو پورې په اندام پورې وی.نوهغے ته د استعمال حکم نشی ورکولې.ليکن کله چه د اندام نه جدا شی.خو په بل ځائې يا لوښی کښې ايسارے شوې نه وی.نوددې په مستعملو ګرځيدوکښې اختلاف دې مفتی به قول دا دې چه اوبه کله د اندام نه جدا شوې.نوهغه مستعملے شوې. د هغې په يوځائې کښې ايساريدل د استعمال دپاره شرط نه دې.

**دليله**> دليل دا دې چه د بدن نه د جدا کيدو نه وړاندې اوبو ته د استعمال حکم د ضرورت په وجه نه دې ورکړې شوې خو د جدا کيدو نه پس ضرورت باقی پاتې نشو د دې وجې چه څنګه د بدن نه جدا شی نو د استعمال حکم به ورکولې شی

### په دباغت باندې د څرمن طهارت

| |
|---|
| وَكُلُّ إِهَابٍ دُبِغَ اوهره کچه څرمن چه رنګ کړې شی فَقَدْطَهُرَ نوهغه پاکه شوه وَجَازَتِ الصَّلَاةُ فِيهِ په دغه رنګ شوې څرمن کښې مونځ جائز دې وَالْوُضُوءُ مِنْهُ اوددې نه اودس کول (هم جائز دے إِلَّا جِلْدَالْخِنْزِيرِ وَالْآدَمِيِّ سوا د خنزيراوبنی آدم د څرمنے نه) |

**حل اللغة** >①**اهاب**: څرمن ② دبغ دباغة (ض،ن،ف) څرمن پخول ③ **طهر، طهوراً(ن)**: پاکيدل ④ **جازت، جاز جوزاً(ن)**: جائزکيدل⑤ **انتفاع**: فائده اوچتول ⑥ **ميته**: مرداره ⑦**جلد**: څرمن

**تشريح**> **تعريف الدباغة**> علامه مرغينانی په هدايه کښې د دباغت تعريف کړې دې چه د څرمنے بدبوئی اود خرابيدو لرے کولو نوم دباغت دې.امام محمد﵀ په کتاب الآثار کښې ليکلی دی.چه

---

[1]) القول الراجح هو قول محمد﵀ من طهارة ماء المستعمل وعدم طهوريته كذا في فتح القدير(٧٥\١) والكفاية (٧٥\١) وردالمحتار(١٤٧\١) نقلاً عن القول الراجح (١٣\١)۔

[2])القول الراجح هو قول الشيخين ﵄ من ازالة الحدث ونية القربة كذا في الخانية (١٥\١) وتبيين الحقائق (٢٤\١) والهندية (٢٢\١) نقلاً عن القول الراجح (١٥\١)۔

[أخبرنا ابوحنيفه عن حماد عن إبراهيم قال كل شئ يمنع الجلد من الفساد فهو دباغ] يعنى كوم څيز چه څرمن د خرابيدو نه بچ كوى.هغه دباغت دې.كه په نمر سره ئې اوچه كړې وى.اوكه يا ئې په خاوره كښې اچولې وى.ځكه چه د نجس رطوبتونو لرے كولو چه كوم مقصد دې.هغه په دې طريقو باندې حاصليږى . نو ددې نه علاوه د بل څيز قيد لګول څه معنى نه لرى.لكه څنګه چه امام شافعى رحمه الله د سلم د اونړے (يوه ازغيداره اونه ده.چه دباغت پرے كولې شى.) دهغې په پاڼړو او شث ( د وړو سيوانو پشان يوخوشبودار تريخ اومزيداره ميوه ده.دهغې اونه ده.په هغې كښې ازغى نه وى.اوهغه د څرمن په دباغت كښې استعماليږى.) اود مازو د اونړے شرط لګولے دې.

**معنى الاهاب**> "إهاب" دهمزة په كسرة سره دې.ددې جمع أهب او أُهُب راځى.صاحب د بنايه ذكر كړى دى.چه د دباغت نه پس څرمن ته اديم وائى.او د دباغت نه وړاندې اهاب وائى.او لفظ د جلد دواړو ته شامل دې.

**تعلق الجلد بالأحكام الثلاثة**>صاحب د عنايه ليكلى دى.چه د څرمنے د دباغت سره درې مسئلې متعلق دى. ①يوخو په خپله ددغه څرمن پاكيدل.

② دويم ددې نه لباس جوړول او اوغوستل اودهغې نه مصلى جوړول

③ دريم دهغې نه مشكيزه جوړول اودهغې نه اودس كول..د اول تعلق د كتاب الصيد سره دې.اود دويم تعلق د كتاب الصلاة سره دې.او د دريم تعلق ددې باب سره دې.

**وجه تاخير ذكر الآدمي**>په عبارت كښې چه ئې خنزير په بنيادم باندې مقدم كړې دې.ددې وجه دا ده.چه دا مقام د اهانت دې.ځكه چه دلته د نجاست بيان كيږى.او په مقام د اهانت كښې په مؤخر كولو كښې تعظيم وى.په مقدم كولوكښې نه وى.لكه د الله تعالى په دې ارشاد ﴿لَهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ﴾ كښې د جماتونوذكر روستو دې.

**النكتة في "والصلاة فيه"** >شيخ قدورى فرمائى.چه [والصلاة فيه] يعنى چه كومه څرمن رنګ شوې وى.نوچه هغه واغوندى.په هغې كښې مونځ كول جائز دى .او داسې ئې نه دى وئيلى [والصلاة عليه] يعنى چه ددې نه مصلى جوړه كړى . او مونځ پرے كوى. اګرچه د دواړو حكم يو شان دې.ددې وجه دا ده.چه د جامو طهارت منصوص عليه دې.ځكه چه الله تعالى فرمائيلى دى.﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ او د مانځه د ځائې طهارت په دلالت النص ثابت دې.

**طهارة الجلد بالدباغة** > صورت د مسئلې دا دې. چه د خنزيراوبنى آدم نه علاوه دهر څيزڅرمن په دباغت سره پاكيږى.كه هرڅنګه وى.نو د رنګ شوې څرمن نه جامے جوړول او په هغې كښې مونځ كول جائز دې.اودهغې نه په جوړه شوى مشكيزه كښې اوبه اچول اودهغې نه اودس كول جائز دې. (1)

---

1) په دې مسئله كښې امام مالک رحمه الله مونږ سره اختلاف كوى ځكه چه امام مالک رحمه الله فرمائى.چه دمردارے څرمن په دباغت سره نه پاكيږى. دغه شان امام شافعى رحمه الله هم مونږ سره د سپى په څرمن كښې اختلاف كوى ځكه چه دوى فرمائى.چه د سپى څرمن په دباغت سره نه پاكيږى.په مبسوط كښې ذكر دى.چه دامام شافعى رحمه الله په نيز د غير ماكول اللحم څرمن هم په دباغت سره نه پاكيږى.

**دليله** > دليل د نبی ﷺ ارشاد دې.چه [كل إهاب دبغ فقد طهر] يعنی هرهغه څرمن چه دباغت شوه.نو پاکه شوه ([1])

**تطهير الجلد بالذكاة الشرعي**> دا خبره ياده ساتئ:چه د کوم څناور څرمن په دباغت سره پاکيږي.د هغه څرمن په ذبحے سره هم پاکيږي.خو په دې شرط چه دا ذبح د داسې سړی په لاس وی.چه هغه د ذبحے اهل وی.نودمجوسي ذبح دا نه پاکوی.دليل دا دې.چه ذبح د دباغت کار ورکوی. په دې معنی چه نجس رطوبيات زائله کوی.اوهم دغه شان ذبح د دغه څناور غوښه هم پاکوی.او د وينے نه سوا باقی ټول اجزاء پاکوی.دا صحيح مذهب دې.اګرچه هغه څناور داسې وی.چه دهغې غوښه نشی خوړلې.يعنی په ذبح کولو سره د غير ماكول اللحم غوښه هم پاکيږي.(خوياد ساتئ:چه ددې د غوښے پاکيدل ددې دخوراك د جواز دليل نشی کيدې.ځکه چه يو څيزبه پاك وی.مونږ به ورسره کيږي.خوخوراك به ئې ناجائزوی.لکه خاوره شوه.)

## دمردارې د ويښته او هډوکی حکم

وَشَعْرُ الْمَيْتَةِاود مردار څناور ويښته وَعَظْمُهَااو دهغه هډوکے طَاهِرٌپاك دی

**حل اللغة** >①**شعر**: ويښته ② **ميتة**: مرداره ③ **عظم**: هډوکې

**تشريح**> **حكم الشعر والعظم**> مسئله دا ده. چه دمردار ويښته اوددې هډوکے پاك دی.يعنی که په اوبوکښې اوغورځيږی.نوپه هغې باندې اودس جائز دې.اوهم دا حکم د پښے دې.سم، خکر، وړئ ، پنړه ،نوك، او مخوکه ،

**دليله** > دليل دا دې.چه د مردارے ټول اجزاء پليت نه دی.بلکه صرف هغه اندامونه ناپاك دی.په کومو کښې چه ژوند وی.اود مرګ په وجه زائله شی.اودا کوم څيزونه چه پورته بيان شو. په دې کښې حيات نشته.ځکه که په دې کښې يو څيزکټ کړې شی.نو څناور تکليف نه محسوسوی. نوهرکله چه په دې کښې حيات نشته.نو مرګ په کښې حلول هم نه کوی.ځکه چه مرګ خو د ژوند د زوال نوم دې.

**الموت زوال الحياة**>که دلته کښې د موت اوحيات مسئله راغلے ده.نوځکه ددې دواړو په باره کښې لږ غوندې کلام کولے شی.صاحب د عنايه د مرګ دوه تعريفونه کړی دی.يوزوال د حيات دې.يعنی د ژوند فنا کيدل.دهغه کس د ژوند لرے کيدل چه دهغه شان د ژوند وو. په دې تعريف کښې مرګ يو عدمی څيز دې.او په دې او د مرګ په مينځ کښې د عدم او ملکه تقابل دې.

**حكم شعر الانسان وعظمه**> شيخ قدوری دويمه مسئله دا بيان کړې ده. چه د انسان ويښته او هډوکے پاك دی.

**دليله** > دليل دا دې. ①چه ددې دواړو نه انتفاع اخستلو اود خرڅولو حرمت د بنی آدم دکرامت دوجے دې.د نجاست دوجے نه دې.

②دغه شان په صحت سره دا خبره ثابته شوې ده.چه نبی ﷺ دخپل سر ويښته خريولی وو.او په صحابه کرامو ﷺ کښې ئې تقسيم کړی وو.دا هم د پاکئ دليل دې.

[1]) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه الترمذی فی اللباس باب ۷ والنسائی فی الفرع والعتيرة باب ٤ وابن ماجه فی اللباس باب ۲۵ رقم ۳٦۰۹)_

## په کوهی کښې دنجاست پریوتو احکام

وَإِذَاوَقَعَتْ فِي الْبِئْرِنَجَاسَةٌ کله چه په کوهی کښې څه نجاست پریوځی نُزِحَتْ نوهغه کوهی به تشولے شی وَكَانَ نَزْحُ مَا فِيهَا اودهغه څیز ویستل کوم چه په کوهی کښې وی مِنَ الْمَاءِ یعنی اوبه طَهَارَةً لَهَا دا به د کوهی د دپاره پاکوالے وی. د سلفو د اجماع په وجه

**حل اللغة** ⟨ ① **وقعت، وقع وقوعا(ف)**: واقع کیدل پریوتل ② **بیر**: کوهی ③ **نزحت، نزح نزحا(ف)**: وتل

**تشریح** ⟨ **مخالفة القیاس في مسائل الآبار** ⟨ علامه مرغینانی رحمه الله په هدایه کښې فرمائیلی دی.چه دکوهی مسائل دآثارو په اتباع باندې مبنی دی.قیاس ته په کښې څه دخل نشته.یعنی د قیاس په رنړا کښې د اوبو څه مقدار نشی راویستلې ..اوقیاس په دې باب کښې ددې وجې هم معتبر نه دې.چه د کوهی په اوبو کښې دوه قیاسونه متضاد دی.

**عدم نجاسة البیرقیاساً** ⟨ د یو قیاس تقاضا خو دا ده.چه اوبه دے هډو پلیتے نه وی.ځکه چه په کوهی کښې د لاندې نه مسلسل اوبه راوځی.نود کوهی اوبه د جاری اوبو په حکم کښې دی. او جاری اوبه د نجاست په پریوتو نه پلیتیږی.

**نجاسة البیرقیاساً** ⟨ اودویم قیاس دا دې.چه اوبه هډو پاکیږی نه.ځکه' چه نجاست په کوهی کښې پریوتلو.نو اوبه پلیتے شوې. او دیوالونه پلیت شو.اوددې ختمه پلیته شوه.او حال دا دې.چه څومره اوبه راویستلے شی.نو هغه هومره د لاندې نه راوځی.اوهغه پلیتے اوبو، پلیتے ختے، او پلیتو دیوالونوسره ملاویږی.نوهغه هم پلیتیږی .نودا سلسله ترقیامته پورې نه ختمیږی.او د کوهی اوبه به نه پاکیږی.

## په کوهی کښې دحیواناتود مرګ حکم

وَإِنْ مَاتَتْ اوکه مړه شوه فِيهَا فَأْرَةٌ په دې کښې مږه أَوْعُصْفُورَةٌ یا مرغۍ أَوْصَعْوَةٌ یا تورارنکه أَوْسُودَانِيَّةٌ یا چنه أَوْسَامٌ أَبْرَصُ یا کربوړے نُزِحَ مِنْهَا مَا بَيْنَ عِشْرِينَ دَلْوًا نود کوهی نه به شل بوکے راویستلے شی إِلَى ثَلَاثِينَ تر دیرش بوکو پورې بِحَسَبِ كِبَرِالدَّلْوِوَصِغَرِهَا) د غټے او وړے بوکے په اعتبار سره (یعنی پس د راویستلو د مړې نه)

**حل اللغة** ⟨ ① **ماتت، مات، موتا(ن)**: مړه کیدل ② **فارة**: مږه ③ **عصفورة**: چنچڼه ④ **صعوة**: تورانړکه (تکه توره مرغۍ) ⑤ **سودانیة**: معمولا(وړه غونډې مرغۍ ده چه په خیټه ئې کرښې وی) ⑥ **سام ابرص**:لویه چمچورکئی ⑦ **دلو**: ډولچه ⑧ اخرجت، اخرج اخراجا. ویستل

**تشریح** ⟨ **صورسقوط الحیوان في البیر** ⟨ که په کوهی کښې د دې ځناورو څه مړ شو کوم چه په متن کښې ذکر دی نو د شلو بوقو نه واخله تر دیرشو بوقو پورې به ترې راویستې شی

**دلیلاه والتوافق بینهما** ⟨ دلیل دا دې.چه د حضرت انس رضي الله عنه روایت دې.کله چه په کوهی کښې مګه پریوځی.اوهم هغه وخت راوویستلے شی.نو په دې باره کښې دوی فرمائیلی دی.چه شل بوقے به راوویستلے شی.اود ابن عباس رضي الله عنه حدیث دې.چه دوی د دیرشو بوقو راویستلو حکم کړې دې.([1]) نو په

[1]) قال مصنف ،،فیما فات الزیلعی منیة الألمعی،، رواه ابوزید الدبوسی باسناده فی کتاب الأسرارمرفوعاً وحدیث أنس رضي الله عنه قال رفعه شاذ والصحیح انه موقوف وخرجت أنا العبد الضعیف شاه فیصل فی تالیفی سنن الصلاة فی فقه الأحناف لثبوت إخراج العشرین من البئریموت الفارة فیها أثر عطاء قال إذا وقع الجراد(نوع من الفارة) فی البئرنزح منها عشرون دلواً فإن تفسخ

دوارو حديثونو کښې د موافقت دپاره به د حضرت انس رضی الله عنه حديث په وجوب باندې حمل کړې شي.او دحضرت ابن عباس رضی الله عنه به په استحباب باندې حمل کړې شي.

**په کوهی کښې د کونترې وغیره د مرګ حکم**

| وَإِنْ مَاتَتْ فِيهَا حَمَامَةٌ که په کوهی کښې کونتره مړه شوه أَوْ دَجَاجَةٌ وَالسِّنَّوْرُ یا چرګه او پیشو نُزِحَ مِنْهَا مَا بَيْنَ أَرْبَعِيْنَ دَلْوًا نو دکوهی نه به څلوېښت بوقی إِلَى خَمْسِيْنَ پنځوسو بوقو پورې راوویستلې شي |
| --- |

**حل اللغة** ﴿۱﴾**حمامه**: کونتره ﴿۲﴾**دجاجه**: چرګه ﴿۳﴾**سنور**: پیشو .

**تشریح** ﴿ **القولان في حكم موت الحمام ونحوه في البير** ﴿۱﴾دويم صورت دا دې.چه په کوهی کښې د کونترے یا ددې پشان څه ځناور مړ شي.مثلا چرګه او پیشو .نو ددې حکم دا دې.چه د کوهی نه به د څلویښتو بوقو نه تر شپیتو پورې راوویستلې شي.یعنی د څلویښتو بوقو راوویستل واجب دی.او د شپیتو راوویستل مستحب دی.

﴿۲﴾اوامام محمد رحمه الله په جامع صغیر کښې بیان کړی دی.چه څلویښت یا پنځوس.یعنی څلویښت واجب دی.او پنځوس مستحب دی. علامه مرغیناني رحمه الله په هدایه کښې دے قول ته اظهر وئیلے دې.ځکه چه جامع صغیر د امام محمد رحمه الله آخری تصنیف دې.نوچه په دې کښې څه ذکر وی.هغه به دامام محمد رحمه الله مرجوع اليه قول وی.

**دليل إخراج أربعين دلوا** ﴿ دلیل دا دې.چه دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې.چه دوی دهغه چرګے په باره کښې فرمائیلی دی.کومه چه په کوهی کښې مړه شوې وی.چه د هغې نه څلویښت بوقے راوویستلے شی.(۱)

**په کوهی کښې د چیلئ وغیره په مرګ داوبو حکم**

| وَإِنْ مَاتَتْ فِيهَا شَاةٌ أَوْ كَلْبٌ أَوْ آدَمِيٌّ اوکه په کوهی کښې سپې یاچیلئ یا بنی آدم یا سپے مړشو.نُزِحَ جَمِيعُ مَا فِيهَا مِنَ الْمَاءِ نو کومې اوبه چه په هغې کښې وی.هغه ټولې به راوویستلے شي |
| --- |

**حل اللغة** ﴿۱﴾**شاة**: چیلئ ﴿۲﴾**كلب**: سپې

**تشریح** ﴿ **نزح البير بموت الآدمي وغيره في البير** ﴿دریم صورت دا دې.که په کوهی کښې چیلئ یا بنی آدم یا سپے مړ شي.نود کوهی ټولې اوبه راوویستل واجب دی.

**دليله** ﴿دلیل دا دې.چه کله یو حبشی د آب زمزم په کوهی کښې مړ شو. نو ابن عباس رضی الله عنه او ابن زبیر رضی الله عنه د ټولو اوبو راوویستلوفتوی ورکړې وه. (۱)

---

فأربعون دلواً فإذا وقعت الشاة نزح منها أربعون دلواً فإن تفسخت نزحت كلها أو مائة دلواً ناقلاً عن شرح معجم الآثار في الطهارة باب الماء يقع فيه النجاسة رقم ١٧١٤ (١٧\١)_

(۱) نقل الزيلعي رحمه الله قول شيخه علاء الدين رحمه الله أن هذه الرواية رواه الطحاوي رحمه الله ثم قال الزيلعي رحمه الله لكن لم أجده في شرح معاني الآثار للطحاوي ثم قال و لكن الطحاوي رحمه الله اخرج عن .....عن حماد بن أبي سليمان أنه قال في دجاجة وقعت في البئر فماتت قال ينزح منها قدر أربعين دلواً أو خمسين (نصب:١\١٨١)_

## په کوهی کښې د حیوان پړسیدل او زړیدل

قَإِنِ انْتَفَخَ الْحَيَوَانُ فِيهَا كه په دې كښې خناور اوپړسيدلو أَوْتَفَسَّخَ يا اورژيدلو نُزِحَ جَمِيعُ مَا فِيهَا نو په دې كښې چه كومې اوبه وي.هغه ټولې به راوويستلې شي صَغُرَ الْحَيَوَانُ أَوْكَبُرَ (برابره ده) كه خناور وركوټې وي اوكه غټ وي

**حل اللغة** ⟨ ①انتفخ، انتفاخا: پړسيدل ②تفسخ، تفسخا: شليدل ③صغر: صغرا (ن) وروكې كيدل

**تشريح** ⟨ **نزح البير بإنتفاخ الحيوان وتفسخه في البير** ⟨ مسئله دا ده.چه په كوهى كښې يوخناور پريوځى.او مړشى.او اوپړسيږى يا اورژى.نوكه ممكن وى.دكوهى ټولې اوبه دے راوويستلې شى.كه خناور وركوټې وى او كه غټ وى.

**دليله** ⟨ دليل دا دې.چه د رژيدلى خناور نجس اجزاء لوندوالے په اوبو كښې خور شى. نوځكه ټولې اوبه پليتيږى .لكه څنگه چه په اوبو كښې د وينې يا شرابو يو څاڅكے پريوځى.نوپه ټولو اوبو كښې خور شى.او هغه پليتوى.نودغه شان دا هم.

## كومه بوقه معتبر ده؟

وَعَدَدُ الدِّلَاءِ اوشمار د بوقو يُعْتَبَرُ بِالدَّلْوِ الْوَسَطِ معتبر دې د درميانه بوقې الْمُسْتَعْمَلِ فِي الْبُلْدَانِ كومه چه په ښارونو كښې استعماليږى وَلَوْنُزِحَ مِنْهَا بِدَلْوٍ عَظِيمٍ كه د دې نه په لويه بوقه ويستل اوشى قَدْرَمَا يَسَعُ مِنَ الدِّلَاءِ الْوَسَطِ په اندازه دهغه هومره اوبو چه ځائيږى په درميانه بوقه كښې اِحْتُسِبَ بِهِ نود هغې مطابق به حسابولې شى

**تشريح** ⟨ **المراد من الدلو** ⟨ اودلته درميانه بوقه مراد ده.او د درميانه بوقې نه مراد هغه بوقه ده. چه په ښارونو كښې عام طوراستعماليږى.يا په دغه كوهى باندې په عامه طريقه استعماليږى. نوكه په غټه بوقه باندې اوبه راوويستلې شوې.نو په دې حساب سره به د شلو بوقونه كمې بوقې راوويستلې‌شى.اوكه په وړه بوقه باندې اوبه راوويستلې شى.نو په دې حساب سره به په شلو بوقو زيادت كولې شى.

**القولان في الدلو المعتبر** ⟨ بيا دے دا خبره واضحه وى. ①چه په هر كوهى كښې هم د هغې بوقه معتبر ده.يعنى چه په كومه بوقه اوبه راوويستلې شى.نودكوهى په پاكولو كښې به هم هغه بوقه معتبره وى.

②اويو ضعيف قول دا دې.چه هغه بوقه معتبرده.چه په هغې كښې يوصاع اوبه راځى.

**العبرة للقدر دون الدلو** ⟨ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائى.چه د كوهى په پاكولو كښې د بوقو شمار معتبر نه دې.بلكه په دغه اندازه باندې اوبه راوويستل معتبر دى.نوكه د يوكوهى نه د غټې بوقې په ذريعه په يوځل د شلويښتو بوقو برابر اوبه راوويستلے شى.نودا جائزده.ځكه چه مقصود حاصل شو.ځكه چه كوم مقدار مقرر وو.هغه راوويستلے شو.

## د دريابى كوهى د پاكئ حكم

وَإِنْ كَانَتِ الْبِئْرُ مَعِينًا اوكه كوهې دريابى وى.لايمكن نزح ما فيها داسې چه دهغې ټولې اوبه راوويستلې نشى اوواجب شوى وى راويستل دهغې اوبو چه په هغې كښې وى أُخْرِجُوا مِقْدَارَ مَا

---

[1] خرجته في تاليفي سنن الصلاة في فقه الأحناف ناقلاً عن شرح معاني الآثار في الطهارة (١٧\١)۔

كَانَ فِيهَا مِنَ الْمَاءِ نوكومے اوبه چه په هغې كښې (د پريوتو په وخت ) موجود وی.هغه مقدار دے اوويستلے شی

**حل اللغة ﴿①معينة**: جاری ②**نزح**: ويستل

**تشريح﴾ توضيح المسئلة﴾** مسئله دا ده.كه كوهے دريابی وی يعنی دهغې اوبه نه ختميږی .نوپه داسې صورت كښې حكم دا دې.چه د نجاست د واقع كيدوپه وخت كښې په هغې كښې څومره اوبه موجود وی.هغه دے راوويستلے شی.

وَطَرِيْقُ مَعْرِفَتِهٖ اوددې د پيژندګلو طريقه دا ده أَنْ تُحْفَرَ حُفْرَةٌ مِثْلُ مَوْضِعِ الْمَاءِ مِنَ الْبِئْرِ چه په كوهی كښې تركومے پورې اوبه وی. د هغې په مقدار دے يوه كنده اوكنستلے شی وَيُصَبُّ فِيهَا مَا يُنْزَحُ مِنْهَا چه كومے اوبه د كوهی نه راويستلے شی.هغه دے په دې كنده كښې اچولے شی إِلَى أَنْ تَمْتَلِئَ تردے چه هغه كنده ډكه شی

**تشريح﴾ طريق نزح البير عند ابي يوسف رحمه الله ﴾** اود موجوده اوبو د پيژندګلو دامام ابويوسف رحمه الله نه دوه طريقې منقول دی.① يوه دا چه په كوهی كښې تركوم ځائې پورې اوبه وی.نو په اوګودوالی پلنوالی اوژوروالی دے دهغې پشان يوه كنده اوكنستلے شی.اود كوهی نه دے اوبه راوباسی.اوبه دغه كنده كښې دے اچوی.كله چه دغه كنده ډكه شی.نو داسې دے اوګنړلې شی.چه د كوهی ټولې اوبه راوويستلے شوې.اوكوهے پاك شو.

②دويمه طريقه دا چه په كوهی كښې يودرمه (بانډس وربنكته كړې شی.يا دے درون كانړے په رسئ پورې اوتړلے شی.اوپه اوبوكښې دے وربنكته كړې شی.كله چه هغه ويخ ته اورسی. نو واپس دے راوباسی.او اودے كتلې شی.چه اوبه تركومے پورې رسيدلے دی.هلته دے نښه اولګوی.بيا دے د كوهی نه په يو خل لس بوقے راوباسی.او تونې دے كړی.بيا دے دغه درمه (بانډس يا رسئ دوباره كوهی ته وربنكته كړی.او اودے ګوری.چه څومره اوبه كمے شوې دی.مثلا په كوهی كښې لس فته اوبه دی.او په يوخل په لس بوقوراوويستلو سره يو فټ اوبه كمے شوې.نو معلومه شوه.چه ټولې اوبه ئې سل بوقے دی.نو لس كم سل بوقے دے نورے راوويستلے شی.چه پوره سل بوقے شی.نوچه سل بوقے راوويستلے شی. داسې به ګنړلې شی. چه د نجاست پريوتو په وخت كښې څومره اوبه په كوهے كښې وې.هغه ټولې راوويستلے شوې.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ تعالى اودامام محمد رحمه الله نه نقل دی نُزِحَ مِائَتَا دَلْوٍ إِلَى ثَلَثِمِائَةٍ ()چه دوی فرمائيلی دی د دوو سوو نه تر درې سوو پورې بوقے دے راوويستلے شی(كيدے شی چه امام محمد رحمه الله په خپل ښاركښې كومه مشاهده كړې وه.په هغې باندې ئې خپل قول مبنی كړې وی)

**تشريح﴾ مذهب محمد رحمه الله في نزح البير﴾** اودامام محمد رحمه الله نه روايت دې.چه د كوهی نه دے د دوو سوو نه تر درې سوو پورې بوقے راوويستلے شی[1]. علامه مرغينانی رحمه الله په هدايه كښې فرمائيلی دی.چه

[1] ) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في ردالمحتار(١\١٥٨) نقلا عن القول الراجح(١\١٩)ــ

دامام محمد رحمه الله دقول بنیاد دهغه په مشاهده باندې دې.څکه چه دامام محمد رحمه الله د ښار بغداد د کوهو اوبو عام طور د دوو سوو نه تر درې سوو په مینځ کښې وې.لیکن ددې اندازې په هرځائې کښې ټیک کېدل ضروری نه دی.څکه چه په کومو ځایونو کښې اوبه زیاتې وی.نوهلته دهغې په مقدار تولې اوبه راویستلې شی.

**د مړ ښناور په موندو دکوهی داوبو دنجاست حکم**

| |
|---|
| وَإِنْ وَجَدُوا فِي الْبِئْرِ فَأْرَةً أَوْ غَيْرَهَا اوکه اوموندې شوه په کوهی کښې مږه یا بل ښناور (مړ) وَلَا يُدْرَى اوخلقو ته معلومه نه وه مَتَى وَقَعَتْ چه کله پریوتې ده وَلَمْ تَنْتَفِخْ وَلَمْ تَنْفَسِخْ او هغه تراوسه پورې پړسیدلې نه وی أَعَادُوا صَلَاةَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ نودا خلق دې خپل د یوې ورځې او شپې مونځونه راوګرځوی إِذَا كَانُوا تَوَضَّئُوا مِنْهَا که په دغه اوبو ئې اودسونه کړی وی.(اومونځونه ئې پرې کړی وی) وَغَسَلُوا كُلَّ شَيْءٍ أَصَابَهُ مَاؤُهَا او هر هغه څیز دې اووینځی.چه د دغه کوهی اوبه ورته رسیدلې وی وَإِنْ كَانَتْ قَدْ انْتَفَخَتْ أَوْ تَفَسَّخَتْ اوکه وه پړسیدلې یا رژیدلې أَعَادُوا صَلَاةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا،راګرځوی به مونځونه د درې ورځو اوشپو وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ.(١) رحمه الله په قول د امام ابوحنیفه رحمه الله کښې |

**حل اللغة** ﴿①**وجد، وجدو، وجدانًا**(ض) موندل ②**فاره**: مږه ③ **وقعت، وقع وقوعًا**(ف): واقع غورزیدل ④**اعادوا، عاد، اعادةً**: واپس کول⑤ **لایدرون، دری، درایةً**: پیژندل ⑥**اصابه، اصاب، اصابةً**: رسیدل ⑦**انتفاخ**: پړسیدل ⑧**تفسخ**: شلیدل أوبدلیدل ]

**تشریح**﴿ **حكم وجود الحيوان ميتاً في البير**﴾مسئله دا ده.چه خلقو په یو کوهی کښې مړ ښناور بیا موندلو.اودا نشوه معلومیدې.چه کله پریوتې دې. او تراوسه پورې پړسیدلې او رژیدلې هم نه وی.نو په دې صورت کښې حکم دا دې.چه د دغه کوهی په اوبو باندې ئې اودسونه کړی وی.او مونځ ئې پرې اداکړې وی. نو د یوې ورځې او شپې مونځونه دې راوګرځوی.اوکومو څیزونو ته چه د دغه کوهی اوبه رسیدلې وی.هغه دې اووینځی.(٢) اوکه هغه ښناور پړسیدلې وو.اویا رژیدلې وو.نود درې ورځو او شپو مونځونه به راګرځوی.① دا حکم د حضرت امام اعظم رحمه الله په نزد دې.[٣]

---

[١] )القول الراجح هو قول محمد رحمه الله من اخراج مائتي دلو الى ثلاث ماة كذا في ردالمحتار(١\١٥٨) نقلاً عن القول الراجح(١\١٩)

[٢] ) القول الراجح هو قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(١\١٦١) والبحر(١\١٦١) ومجموعة الرسائل (١\٣٥) وردالمحتار(١\١٦١) والدرالمختار وقال المفتي غلام قادر مدظله في اخر هذا البحث ،،فالحاصل انه قول الامام مبنى على الاحتياط وقول الصاحبين رحمهما الله مبنى على التيسير وقولهما ارفق بالناس فالاولى ان يفتى بقولهما نقلا عن القول الراجح (١\٢٠)۔

[٣] )القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(١\١٦١) والبحر(١\١٦١) ومجموعة الرسائل (١\٣٥) وردالمحتار(١\١٦١) والدرالمختار وقال المفتي غلام قادر مدظله في آخر هذا البحث ،،فالحاصل انه قول الإمام مبنى على الإحتياط وقول الصاحبين رحمهما الله مبنى على التيسير وقولهما أرفق بالناس فالأولى أن يفتى بقولهما نقلاً عن القول الراجح (١\٢٠)۔

**دليله أبي حنيفة** رحمه الله > او دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي.چه په اوبو کښې د ښناور غورخيدل د مرګ ظاهري سبب دي.اوقاعده دا ده.که مسبب خفي وي.نو په ظاهري سبب به حکم لګول واجب وي.نو ددې ښناور د مرګ نسبت به اوبو کښې غورخيدلو ته کولې شي.يعنی دا به ونيلی شي.چه دا ښناور هم په اوبو کښې مړ شوې دې.اګرچه دا احتمال هم شته.چه په څه بل سبب مړ شوې وي.او په اوبو کښې غورخيدلې وي. ليکن دا احتمال يووهمی څيز دې.او وهمی څيز ښکاره خبره ده چه د ظاهرپه مقابله کښې معتبر نه وي. نو ځکه به دا احتمال هم د اعتبار لائق نه وي.

**نظيره** >او دا داسې ده.لکه چه يو سړی بل سړې زخمی کړلو. اوهغه د دغه زخم د وجې صاحب فراش شو .تردے چه مړ شو.نوهم دا به ونيلی شي.چه دده مرګ دهغه زخم د وجې واقع شو.اګرچه ددې نه علاوه د بل څيز احتمال هم کيدے شي.چه دهغې د وجې مړ شوې وي.اوس په دې مسئله کښې د ښناور پړسيدل او رژيدل ددې خبرے دليل دې.چه ددې ښناور د مرګ وخت شوې دې.او د تقادم روستوالی ادنی موده درې ورځې ده.

| وَقَالَ أبويوسف ومحمداو صاحبين رحمهما الله فرمائی لَيْسَ عَلَيْهِمْ إِعَادَةُ شَيْءٍ چه په دوی باندې د څه څيز راګرځول واجب نه دی حَتَّى يَتَحَقَّقُوا تردے چه دوی ته متحقق شی مَتَى وَقَعَتْ چه دا کله پريوتے ده |
|---|

**تشريح**> دصاحبينو رحمهما الله مذهب دا دې.چه په دغه خلقود څه څيز راګرځول نشته.تردے چه په تحقيق سره معلومه شی.چه دا ښناور کله پريوتے دې.

**دليلهما** > ①د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه کوهې په يقين سره پاك وو.ليکن په هغې کښې مړ شوې ښناور موندلو سره په تيرو شوو ورځو کښې ددې د نجاست شك پيدا شو.ځکه چه دا احتمال هم شته.چه دا ښناور په اوبو کښې لږ غوندې وړاندې غورخيدلے وی.اوتراوسه پورې ددغه اوبو استعمال نه وی شوې.اودا هم احتمال شته.چه څو ورځې وړاندې غورخيدلی وی.او ددې په اوبو باندې اودسونه اومونځونه شوی وی. بهرصورت په تيرو شوو ورځو کښې په دې کښې د ښناور دپريوتو شك پيدا شو.او يقين د شك په وجې سره نشی زائله کيدې.نوتر څو پورې چه دا ثابته شوې نه وی.چه دا کله پريوتے دې.نو په تيرو شوو ورځو کښې به ددې د نجاست حکم نشی ورکولې.البته که ددې د غورخيدو وخت معلوم وی.نو د کوم وخت نه چه غورخيدلے وی.دهغه وخت نه به نجس ګڼرلې شی.ځکه چه يو يقين په بل يقين سره زائله کيږی.

**نظيره**>② د صاحبينو دويم دليل قياس دې يعنی دا حکم داسې دې.لکه چه يو سړی په خپلو جامو باندې نجاست اوليدلو.اودا نشوه معلوميدې.چه دا ورپورې کله لګيدلے دې.

نوپه دغه کس د مونځ وغيره راګرځول واجب نه دی.

**الأجوبة عنه**> ①او باقی پاتې شود نجاست په مسئله کښې د صاحبينو رحمهما الله د قياس نه جواب نوصاحب دهدايه دوه جوابونه ورکړی دی. اول خو دا چه په جامو باندې د نجاست دلګيدو مسئله هم اتفاقی نه ده.بلکه مختلف فيه ده.فقيه عصر او محدث ېے مثال حضرت معلی بن منصور رحمه الله فرمائيلی دی .چه دا مسئله هم اختلافی ده.نو د امام رحمه الله په نيز به د زوړ نجاست په صورت کښې د درې ورځو او شپو په مقدار موده مقرر کولې شی.او د تازه نجاست په صورت کښې به د يوے ورځې اوشپې په مقدار موده مقرر کولې شی.تردے که په دغه پليته جامه کښې ئې مونځونه کړی وی.نو د هغې راګرځول هم واجب دی.

⑵ دويم جواب دا دې.كه دا اومنلے شي. چه دا مسئله اتفاقي ده. په دې كښې اختلاف نشته.نو بيا هم په هغه جامه چه نجاست وربورې لګيدلے وي.قياس ټيك نه دې.ځكه چه جامے دده په بدن پورې وي.نوهر وخت دده د نظر وړاندې وي.كه نجاست د وړاندې نه لګيدلے وو. نوپه هغه وخت كښې به نې ليدلے وو.اوچه ده اوس اوليدلو.نودا ددې خبرے دليل دې.چه دا نجاست وربورې اوس لګيدلے دې.اوكوهے د ده د نظر نه غائب وي.كيدے شي. چه ځناور د وړاندې نه مړ شوې وي.ليكن ده ته علم نه وي.حاصل دا چه په دې دوارو صورتونو كښې فرق دې.ددې وجے د كوهي مسئله د جامو په مسئله نشي قياس كولې.ځكه چه دا قياس مع ا لفارق دې.او قياس مع الفارق صحيح نه دې.

## د جوټو احكام

**تشريح> الربط بما قبلها>** كله چه امام قدوري رحمه الله په اوبوكښې دځناور د غورځيدو د وجے داوبو د پليتيدو اونه پليتيدو د بيان نه فارغ شو.نو اوس په دې فصل كښې د اوبو سره د لاړو يوځائې كيدو په وجه د اوبو د نجاست او عدم نجاست بيان كوي.

**الأقسام الأربعة للسؤر>** آسار جمع د سور ده.معنى ئې ده.پاتې شوې خوراك او اوبه.چه په عرف كښې ورته جوټه وائي.زمونږ په نيز د جوټې څلورقسمونه دي.

① پاكه لكه د بنى آدم او ماكول اللحم جوټه ⑵ مكروه لكه د پيشو جوټه.

③ پليته لكه د خنزيراو ماتونكوځناورو جوټه ④ مشكوك فيه لكه د خر او قچر جوټه.

## دهر ځناور خوله دهغې د جوټې حكم لرى

**إتحاد حكم العرق واللعاب>** مسئله دا ده.چه د هر ځناور خوله به دهغه په جوټه باندې قياس كولې شي.كوم حكم چه د جوټې وي.هم هغه حكم به د خولے وي.

**وجه الإتحاد>** دليل دا دې.چه خولهٔ او جوټهٔ يعنى لاړے دواړه د غوښے نه پيدا كيږي.نود دوارو حكم به يو شان وي.

**الإعتراض>** ليكن په دې باندې دا اعتراض كيدے شي.چه د خر جوټه مشكوكه ده.حالانكه خوله ئې پاكه ده.نو قياس څه شو؟

**الجواب>** جواب دا دې.چه په پاكوالى كښې ئې شك نشته.بلكه په پاكولو كښې ئې شك دې.يعنى په دې كښې شك دې.چه آيا د خر جوټه شوې اوبه ددې قابلے پاتې شوې دي.چه په دې باندې طهارت حاصل كړې شي.كه نه؟ او په دې باندې د ټولو اتفاق دې.چه دا په خپله پاكې دي.نوددې خوله به هم پاكه وي.

## د پاكې جوټې بيان

| وَسُؤْرُ الْآدَمِيِّ د بنى آدم جوټه وَمَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ او دكوم ځناور غوښه چه خوړلې شي طَاهِرٌ پاكه ده |
|---|

**حل اللغة >** ① يؤكل، اكل، اكلاً (ن) خوراك ⑵ طاهر: پاك

**تشريح> طهارة سور الآدمي ومايؤكل لحمه>** په دې عبارت كښې د جوټې په څلورو قسمونو كښې د اولنى قسم بيان دې.يعنى د بنى آدم جوټه پاكه ده.كه هغه مسلمان وي اوكه كافر.او كه جنب وي اوكه حائضه وي.يا نفاسه وي.

**دلائله>** ① د بنى آدم د جوټې په پاكوالى باندې د رسول الله ﷺ حديث شاهد عدل دې.[أن النبى ﷺ أتى بقدح من لبن فشرب وناول الباقي أعرابياً كان من يمينه فشربه ثم ناول أبابكر فشربه] يعنى نبى ﷺ ته د پيو يوه

پیالۍ راوړلے شوه.نبی ﷺ ترے اوڅکل.او بنی طرف ته ئې یو باندیچی وو.هغه ته ئې ورکړل.او بیا ئې حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته ورکړل.نوهغوی هم اوڅکل.ددې حدیث نه ثابته شوه.چه د بنی آدم جوټه پاکه ده.

② عقلی دلیل دا دې.چه د بنی آدم ذات پاك دې.نو دده جوټه به هم پاکه وی.باقی پاتې شوه دا خبره چه د بنی آدم غوښه نشی خوړلې.نو د بنی آدم غوښه چه نشی خوړلې.دا د ده د کرامت دوجے ده ،د نجاست دوجے نه ده.

③ دجنب سړی د جوټې طهارت هم د حدیث نه ثابت دې.[روی أن النبی ﷺ لقی حذیفة رضی الله عنه فمد یده لیصافحه فقبض یده وقال إنی جنب فقال ﷺ المومن لاینجس] روایت دې.چه نبی ﷺ د حضرت حذیفه رضی الله عنه سره ملاقات اوکړلو.نبی علیه السلام ورته د مصافحے دپاره لاس وروړاندې کړلو.نو هغوی خپل لاس بند کړلو.او عرض ئې اوکړلو.حضرت زه جنب یم.(نو پلیت یم.تاسو سره د لاس ملاوهلوقابل نه یم)نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل:مومن نه پلیتیږی.(یعنی په جنابت سره نجس العین نه ګرځی.)

④ دحائضے دجوټې طهارت باندې د حضرت عائشې رضی الله عنها په حدث باندې استدلال کړې شوې دې.[أن عائشة رضی الله عنها شربت من إناء فی حال حیضها فوضع رسول الله ﷺ فمه علی موضع فمها وشرب] یعنی حضرت عائشې رضی الله عنها د حیض په حالت کښې د لوښی نه اوبه اوڅکلې.نو نبی ﷺ دهغې د خولے په خائې خوله کیخودله.او اوبه ئې اوڅکلې.نوکه د حائضے جوټه پلیته وه.نبی ﷺ به ولے دحضرت عائشې رضی الله عنها جوټه اوبه څکلې. حالانکه هغه په حالت دحیض کښې وه.

⑤ د کافر او مشرك د جوټې د طهارت دپاره زه دخپل کتاب " سنن الصلاة فی فقه الأحناف" عربی تالیف نه دلیل نقل کوم. حضرت ابوعبیده د خپل پلار عبدالله رضی الله عنه نه روایت کوی .فرمانی رسول الله علیه السلام فرمائیلی دی. شیطان ما سره تیریدلو.نوما راونیولو.او مرئ مے ورته خفه کړله. زه د هغه د ژبے لوندالے اوس هم محسوسوم نو شیطان راته اوےچه اودے دردولم. اودے دردولم.[1]

**وجه الاستدلال.** > امام هیثمی رحمه الله په دې حدیث باندې استدلال کړې دې.چه د کافر جوټه پاکه ده. ځکه چه نبی علیه السلام ددې بیان اونکړوچه ما د شیطان د ژبےد لوندوالی نه خپل لاس اووینځلو.حالانکه نبی علیه السلام د احکامو په بیانولو باندې مکلف وو.نو معلومه شوه چه د کافر جوټه پاکه ده.

**طهارة سور ماکول اللحم**> په دې متن کښې دویمه مسئله د حلالو ځناورو د جوټې طهارت دې یعنی دهغه ځناورو جوټه پاکه ده.چه دهغې غوښه خوړلې شی.لکه غوا، چیلۍ،اوښ وغیره

**دلیله** > دلیل دا دې.چه اوبه د خولے د لاړو دوجے جوټه کیږی.او لعاب پیدا کیږی.د غوښے نه.او ددې ځناورو غوښه پاکه ده.نو لعاب به ئې هم پاك وی.اوهرکله چه ئې لعاب پاك شو. نو چه په کوم څیز کښې لعاب خلط شی.هغه به هم پاك وی.

---

[1] ، مجمع الزوائد فی الطهارة باب سور الکافر قال الهیثمی بعد ذکر هذا الحدیث رواه احمد وابو عبیده.لم یسمع من ابیه وبقیة رجاله رجال الصحیح)

## د سپي د جوټې حکم

وَسُؤْرُ الْكَلْبِ او د سپي جوټه وَالْخِنْزِيرِ اود خنزير جوټه وَسُؤْرُ سِبَاعِ الْبَهَائِمِ نَجِسٌ اود ماتونکي ځناورو جوټه پليته ده.

**حل اللغة** > ① **يغسل غسلاً** (ض) وينځل ② **ولوغ**: څټل ③ **سبع**: اوره]

**تشريح** > **سؤرالكلب** > په دې عبارت کښې د سپي خنزيراو ماتونکو ځناورو د جوټه شوي اوبو حکم ذکردې.اول د سپي د جوټې په باره کښې تفصيل ته متوجه شو:

دسپي جوټه پليته ده.که سپے په لوښي کښې خوله اووهي.نو په دې باندې درې ځله د لوښي وينځل واجب دي.

**دليله** > ددې دپاره د نبي ﷺ په قول باندې استدلال کولې شي.نبي ﷺ فرمائيلي دي.که سپے په لوښي کښې خوله اووهي.نو هغه دې درې ځله اووينځلې شي.[1]

وجه داستدلال دا ده.چه ژبه د اوبو سره لګي د لوښي سره نه لګي. نوهرکله چه د سپي په لوښي کښې خوله لګولو سره لوښے پليت شو. نو اوبه خو به په طريقه اولي سره پليتيږي.

**الإعتراض** > بعضې حضراتواعتراض کړې دې.چه کيدے شي.په حديث کښې د ولوغ نه مراد څټل وي. نو په دې صورت کښې خو ژبه د لوښي سره لګيدلے وي.اوبوسره نه.نوددې حديث نه استدلال بالاولويت پوره نه دې.

**الجواب** > ددې جواب دا دې.چه د ولوغ حقيقي معنی د سپي د ژبې په سر اوبه وغيره څکل دي.او قاعده دا ده.چه ترڅو پورې د معنی حقيقي خلاف قرينه موجود نه وي.نوحقيقي معنی به مراد وي.

**حکم سور البهائم** > په متن کښې دريمه مسئله دا ده چه د ماتونکو ځناورو (شرمخ، زمری، پړانګ وغيره)جوټه پليته ده.

**دلائله** > ① دليل دا دې.چه [أن عمر رضي الله عنه او عمروبن العاص رضي الله عنه وردو حوضاً فقال عمروبن العاص رضي الله عنه ياصاحب الحوض أتردد السباع ماءك فقال عمر رضي الله عنه يا صاحب الحوض لا تخبرنا فلولا أنه أخبر بورود السباع يتعذر عليهما إستعماله لمانهاه عن ذلك]

حضرت عمر رضي الله عنه اوحضرت عمروبن ا لعاص رضي الله عنه دواړه يو حوض ته ورغلل.نو حضرت عمروبن ا لعاص رضي الله عنه د حوض دمالك نه تپوس اوکړو.چه ته مونږ ته دا خبر راکړه .چه ستا دے حوض ته درندګان راځي؟ نوحضرت عمر رضي الله عنه ورته اوفرمائيل: اے دحوض مالکه مونږ ته دا خبر مه راکوه.ځکه که د درندګانو د راتلو خبر راته راکړې. نو په مونږ دواړو به ددې استعمال منع شي.ځکه چه نبي ﷺ ددې نه منع کړې ده. ددې واقعه نه معلومه شوه.چه د درندګانو جوټه پليته ده.

② عقلي دليل دا دے چه د درندګانو غوښه پليته وي.اولعاب ددې نه پيدا کيږي.اود لعابو په نجاست او طهارت کښې هم غوښه معتبره ده.يعنی که غوښه نجسه وي.نو لعاب به هم نجس وي.او که غوښه پاکه وي.نو لعاب به هم پاك وي.

---

[1] من حديث أبي هريرة رضي الله عنه اخرجه الدارقطني ق سننه(١٦٦/١)_

## د پیشو دجوټي حکم

وَسُؤْرُالْهِرَّةِاود پیشوجوټه الدَّجَاجَةِ الْمُخَلَّاةِاوپه ګندګی ګرځیدونکی چرګې جوټه مکروه ده لِأَنَّهَا تُخَالِطُ النَّجَاسَةَخکه چه مخلاته چرګه ګندګی سره ګرځي وَسِبَاعِ الطَّيْرِاو د ښکاری مارغانو جوټه وَمَا يَسْكُنُ الْبُيُوتَاودهغه ځناوروجوټه چه په کورونوکښې اوسیږی كَالْحَيَّةِ وَالْفَأْرَةِلکه د مار، مږې جوټه مَكْرُوهٌ مکروه ده.

**حل اللغة**> ①هرة: پیشو ② الدجاجة المخلاة: آزاده چرګه، بهرګرځیدونکې چرګه ③یسکن، سکن سکونًا(ن): اوسیدل ④بیوت واحد بیت: کور ⑤حیة: مار⑥ الفارة: مږه

**تشریح**> **بیان حکم سور الاقسام الاربعة من الحیوانات**> په دې متن کښې د څلور قسمه ځناورو د جوټې حکم بیان شوې دې ①یو د پیشو جوټه ②دویم د کوځه ګشتې چرګی جوټه ③دریم د ماتونکو مارغانو جوټه ④څلورم د هغه ځناورو جوټه چه په کورونوکښې اوسیږی

**حکم فی سؤرالهرة**> دپیشو جوټه پاکه ده.خومکروه ده.

**دلیله**> د طرفینو ﷫ دلیل دا دې.چه نبی ﷺ فرمانیلی دی. [الهرة سبع][1] چه پیشو درنده دې.ددې قول نه د الله ﷻ د پیغمبرﷺ مقصد د پیدائش او صورت بیان نه دې.بلکه د حکم بیانول ئې مقصود دې.خکه چه نبی ﷺ د شریعت داحکامو بیانولو دپاره رالیږلے شوې وو.د خلقت او صورت بیانولو دپاره نه وو.نوهرکله چه د پیشوحکم هغه شو.کوم چه د درنده دې.نو د درنده د جوټې پشان به ددې جوټه هم پلیته وی.حالانکه ته ددې د نجاست قائل نه ئې.[2]

**نجاسة سؤر الدجاجة المخلاة وعلتها**> په متن کښې دویم د چرګی دجوټې حکم بیان شوې دې چه په نجاساتواوغلاظونو باندې د ګرځیدونکې چرګې جوټه مکروه ده.دلیل دا دې.چه مخلات چرګه د نجاست سره مخلوطه اوسی. نوځکه ددې جوټه د کراهت نه خالی نه ده.

**طهارة سؤر الدجاجة المخلاة وعلتها**>اوکه چرګه په پنجره وغیره کښې بنده شوې وی.په داسې طریقه چه دهغې مخوکه د پنجو نه لاندې نه رسی.نودهغې جوټه مکروه نه ده.دلیل دا دې.چه اختلاط د نجاست دوجې وو.او په ترلو سره د اختلاط نه امن راغلو.نوځکه به ئې جوټه مکروه نه وی.

**حکم سؤر سباع الطیور**> په متن کښې دریم د ماتونکو مارغانود جوټې حکم بیان شوې دې دغه حکم د ښکاری مارغهٔ هم دې.یعنی د ښکاری مارغانو جوټه به هم مکروه وی.دلیل دا دې.چه ښکاری مارغان مردارے خوری. نودا به هم د مخلات چرګې پشان وی.

**علة طهارة سؤرسباع الطیور**>صاحب دعنایه لیکی.چه د درندګانو په جوټه باندې قیاس کولو تقاضا خو دا وه. چه د ښکاری مارغانو جوټه دے هم پلیته وی.لیکن استحساناً دے نه نجس نشی ونیلې.وجه داستحسان دا ده.چه مارغان په خپلومخوکو اوبه څکی.اوهغه اوچ هډوکی دی.

---

[1] ، من حدیث أبي هريرةﷺ اخرجه الحاكم في المستدرك (١\١٨٣)۔

[2] ، القول الراجح هو قول الطرفين ﷫ كذا في العناية (١\٩٧) والدرالمختار(١\١٦٥) والنهاية (١\٤٥) نقلاً عن القول الراجح (١\٢١)۔

**علة نجاسة سؤر سباع البهائم**> ددې په خلاف د درنګانو جوټه پليته ده.ځکه چه هغوی په خپله ژبه باندې ځکاك کوی.او هغه د لعابو د وجې لونده وی.نودرنده ځناور چه کله په اوبو کښې خوله اووهی.نودهغې د خولې نجس لعاب داوبو سره ګډ شی.اوددې د وجې اوبه پليتې شی.

**علة كراهة سؤرما يسكن البيوت**> په متن کښې څلورم قسم يعنی په کورونوکښې داوسيدونکو ځناورو لکه مار،مږه وغيره ددې د جوټه شوې اوبه حکم بيان شوې دې چه دا هم مکروه دی.

**دليله**> دليل دا دې.چه ددې دغوښې حرمت خو ددې خبرې مقتضی وو.چه ددې جوټه دې هم پليته وې. د طواف (ګرځيدو راګرځيدو) د وجې نجاست ساقط شو.خوکراهت باقی پاتې شو.

**دخر اوقچر د جوټې حکم**

| وَسُؤْرُ الْحِمَارِ وَالْبَغْلِ مَشْكُوكٌ فِيهِ اود خر او د قچر جوټه مشکوکه ده |
|---|

**حل اللغة**> ①حمار: خر ②بغل: قچر

**تشريح**> **وجود الشك في طهورية سؤر الحمار الأهلية والبغل**> په عبارت کښې کورنې خر مراد دې.او د قچر نه هغه قچر مراد دې.چه مور ئې خره وی.اوکه دده مور غوا يا اسپه وه.نوددې جوټه پاکه ده.(شرح نقايه) اوس حاصل د مسئلې دا دې.چه کورنې خر او هغه قچر چه د خرې د خيټې نه پيدا شوې وی.ددې دواړوجوټه مشکوکه ده.داحکم داکثرو مشائخو ﷺ په نيزدې.

**وجود الشك في طهارته**> باقی پاتې شوه دا خبره چه د اکثرو مشائخو په نيز شك ددې په طهارت (پاك والی) کښې دې.او که ددې په مطهر (د بل پاکونکی) کښې دې.نو په دې باره کښې اختلاف دې.بعضو فرمائيلی دی.چه د خر دلعابو په طهارت کښې شك دې.يعنی چه ددې لعاب پاك دی اوکه نه؟

**دليله**>دليل دا دې.که چرته د خرلعاب پاك وو.نو چه په کومو اوبو کښې هغه ګډيدلو.هغه به مطهر باقی پاتې وو،ترهغه وخته پورې چه لعاب په اوبه باندې غالب شوې وو.لکه څنګه چه په اوبوکښې د پاکو څيزونو د ګډيدو حکم دې.حالانکه بغير د غلبې نه هم په دې سره پاکی حاصلول کافی نه ده.نومعلومه شوه.چه شك ددې په طهارت کښې دې.

**الشك في طهوريته**> اود بعضې مشائخو ﷺ دا رائې ده.چه شك ددې په مطهر اوطهور کيدو کښې دې.يعنی دخر لعاب په خپله خو پاکې دی.ليکن په دې کښې شك دې.چه دا بل څيز پاکوی که نه؟

**دليله**>دليل دا دې.که يو سړی اول د خر په جوټه باندې د سرمسح اوکړله.او بيا ورته اوبه مطلق ملاؤ شوې.نوبه ده باندې د سر وينځل واجب نه دی.که د خردجوټې په طهارت کښې شك وو.نو په ده باندې به د سروينځل واجب وو.نو معلومه شوه.چه دخر جوټه په خپله خو پاکه ده.ليکن بل څيز پاکولې شی که نه ؟ په دې کښې شك دې.

**تحكيم صاحب الهداية**> صاحب دهدايه رحمه الله په هدايه کښې فرمائی.چه دا صحيح ده.چه شك د خر دجوټې په طهوريت کښې دې. ددې په طهارت کښې نه دې.حضرت محمد رحمه الله هم دخر د جوټې په طهارت باندې صراحت کړې دې. دامام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه په څلورو څيزونوکښې جامې غوپه شی.نوهغه نه پليتيږی. اوهغه څلور څيزونه دا دی.① دخر جوټه ② ماء مستعمل ③ د خرې پې:④ د ماکول اللحم ځناورو متيازې.

**تعارض الأحاديث في لحم الحمر** > صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه دجوتې په طهارت کښې د شك دوه اسباب دی.① يودا چه ددې په اباحت او حرمت کښې دلائل مختلف دی.

**رواية طهارة لحوم الحمر** > روايت دې.چه [أن غالب بن ابجر رضي الله عنه سأل رسول الله ﷺ وقال لم يبق لي مال إلا حميرات فقال ﷺ كل من سمين مالك] غالب بن ابجر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړلو.چه زما په مال کښې صرف خرے پاتې شوی دی.نبی ﷺ ورته وفرمائيل چه ستا په مال کښې کوم غټ او تازه وی.هغه خوره.دا حديث د خر دغوښے په طهارت باندې دلالت کوی.

**رواية حرمة لحوم الحمر** > اوروايت شوې دې.چه [أن رسول الله ﷺ حرم لحوم الحمر الأهلية يوم خيبر] چه رسول الله ﷺ د خيبر په ورځ د خرو غوښه حرامه کړې وه.ددې نه ښکاره معلومه شوه.چه دخرو غوښه حرامه ده.

② **إختلاف الصحابة في حكم الحمر** > دويم سبب دا دې.چه د خرد جوتې په پاکوالی او نجاست کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم اختلاف دې.دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه ددې نجاست منقول دې.اود حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه ددې طهارت منقول دې.

**په ماء مشکوك د اودس حکم**

| فَإِنْ لَمْ يَجِدِ الْإِنْسَانُ غَيْرَهَا که انسان ددې دواړونه علاوه نورے نه موندلې تَوَضَّأَ بِهِ نو په دې جوته اوبو دے اودس اوکړی وَتَيَمَّمَ او تيمم دے اوکړی وَبِأَيِّهِمَا بَدَءَ جَازَ اوچه په دې دواړوکښې ئې په کوم يو شروع اوکړه جائز ده |
| --- |

**حل اللغة** > ①لم يجد، وجد وجدانًا (ض) : موندل ② توضا، توضا توضأ: اودس کول ③ تيمم، تيمم تيممًا: تيمم کول ④ يجوز، جاز جوازًا(ن): جائز کيدل

**تشريح** > **تقديم الوضوء اوالتيمم بالماء المشكوك** > مسئله دا ده.که متوضی سره د مشکوکو اوبو نه علاوه نورے اوبه نه وی.نوحکم دا دې.چه په آب مشکوك دےاودس اوکړی.او تيمم دے اوکړی. او په دواړو کښې چه ئې کوم يو خوښ وی.مقدم دے کړی.او چه کوم ئې خوښ وی.موخر دے کړی.

**دليله** > دليل دا دې. چه د ماء مشکوك نه اودس کول او تيمم کول په دواړو کښې يو څيز پاکونکې دې.يعنی په دواړو کښې په يو باندې طهارت راځی.نوکه په آب مشکوك باندې طهارت حاصل شو.نود خاورے په استعمال کښې څه فائده نشته.که وراندې ئې کړی او که روستو.او که پاکونکې خاوره وی.نو په تقديم او تاخير کښې څه نقصان نشته.حاصل دا چه کله په دې دواړو کښې يو مطهر دې.نو دواړه جمع کول مفيد دی.ترتيب مفيد نه دې.

# بَابُ التَّيَمُّمِ

**ترجمه:** (دا) باب د تيمم (په بيان کښې) دې.

**تشريح** > **الوجهان لتاخير التيمم عن الوضوء** > ①چونکه په اوبو باندې طهارت حاصلول اصل دې.او په خاوره باندې طهارت حاصلول ددې خليفه دې.اوخليفه د اصل نه پس وی.نوځکه امام قدوری دتيمم باب داودس نه پس ذکر کړلو.

④ددې ترتیب دویمه وجه د قرآن کریم اتباع ده.ځکه چه د قرآن کریم په آیت ﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ الخ﴾ کښې اودس غسل او تیمم په دې ترتیب سره ذکر شوی دی.

**تعریف التیمم لغة وشرعاً** ﴿ دتیمم لغوی معنی مطلقاً اراده کول دی.اود حج لغوی معنی د څه معظم او لوئې څیز ارده کول.او د شریعت په اصطلاح کښې د تیمم معنی ده.د طهارت حاصلولو دپاره د پاکې خاورے اراده کول. حضرت شیخ الادب په حاشیه دشرح نقایه کښې د علامه ابن الهمام رحمه الله په حوالې سره ذکرکړې دی.چه د تیمم شرعی تعریف د مخ او دواړو لاسونوپه پاکه خاوره باندې مسح کول دی.

**تاریخ آیة التیمم ومقامها** ﴿ اودحضرت عائشې رضی الله عنها قصه چه په هغې کښې د تیمم آیت نازل شوې وو.ددې په ځائې اووخت کښې اختلاف دې. د وخت په باره کښې درې اقوال دی.

① څلورمه هجری ② پنځمه هجری ③ شپږمه هجری

د ځائې په باره کښې دوه اقوال دی.① غزوه مریسیع چه هغې ته غزوه بنی مصطلق هم وائی.② غزوه ذات الرقاع

**واقعة نزول آیة التیمم** ﴿ دحضرت عائشې رضی الله عنها دهار ورکیدو قصه په ګڼړو احادیثو کښې په مختلفوالفاظو سره راغلې ده.د هغې بیان دا دې چه دحضرت عائشې رضی الله عنها د نبی ﷺ دبی بی نه روایت دې. دوی بیان کوی.چه یوځل زه د رسول الله ﷺ سره په سفرباندې تلې وم.کله چه مونږ مقام بیداء یا مقام ذات الجیش ته اورسیدو.نوزما هار ورك شو. رسول الله ﷺ هم په هغه ځائې کښې ایسار شو.اوخلقو دهار تلاش کولو.اودلته کښې اوبه نه وې.اودوی سره هم اوبه نهٔ وې.څه خلق حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته ورغلل.او ورته ئې اووئیل:دا عجیبه خبره اوشوه.چه د حضرت عائشې رضی الله عنها د وجے نبی ﷺ او نور خلق ایسار شو . نهٔ خو دوی د اوبو سره دی.او نهٔ ورسره اوبه شته.په دغه وخت کښې رسول الله ﷺ زما په پتون باندې سرمبارك ایخودے وو.او اوده وو. په دې کښې حضرت ابوبکر رضی الله عنه راغلو. او وئیل ئې اے عائشې تا رسول الله ﷺ او خلق په داسې ځائې کښې ایسار کړل.چه نه دلته اوبه شته.او نه دوی سره اوبه شته.اوهغه ماته سختې خبرے اوکړې .اوچه څه ئې خوښ وو.هغه ئې راته اووئیل: او هغه ماته په تشی کښې تونګے راکولے .خو زه ددې وجې نه خوزیدم. چه د رسول الله ﷺ سر زما په زنګون باندې پروت وو . آخردا چه صبا شو.نورسول الله ﷺ رابیدار شو.خواوبه نه وې.په هغه وخت کښې الله ﷺ دا آیت (یعنی د تیمم آیت) نازل کړلو.حضرت سعید بن حضیر رضی الله عنه اوفرمائیل: اے دابوبکر اولاده دا ستاسو اولنۍ بزرګی نه ده.حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.کله چه زما اوښ اودریدلو.نو دهغې دلاندې هار پیدا شو.او ماته ملاؤ شو.

## دتیمم د جواز شرطونه

| وَمَنْ لَمْ يَجِدْ مَاءً اوخوك چه اوبه نه مومی وَهُوَ مُسَافِرٌ خودا سړې مسافر وی أَوْ خَارِجَ الْمِصْرِ یا د ښار نه بهر وی بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمِصْرِ نَحْوُ مِيلٍ أَوْ أَكْثَرُ او د ده اود ښار په مینځ کښې یو میل یا زیاته فاصله وی(نود داسې کس دپاره جائز ده.چه په پاکه خاوره تیمم اوکړی |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①لم یجد ، وجد وجدانًا(ض): موندل ② مصر: ښار

**تشریح** ﴿ **جوازالتیمم عند فقد الماء** ﴿ صورت د مسئلې دا دې.چه د کوم سړی سره دومره اوبه نه وی.چه د حدث د لرے کولو دپاره کافی وی.په داسې حال کښې چه دے مسافر وی.یا مسافر نه وی.لیکن د ښار

نه بهر وي.اود ده او د ښار په مينځ کښې د يو ميل فاصله وي.يا د يوميل نه زياته وي.نود داسې کس دپاره جائز دی.چه هغه په پاکه خاوره باندې تيمم اوکړی.

**دلائله** > ① ددې دوه دليلونه دی.اول دالله ﷻ قول چه ﴿فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا﴾ يعنی که اوبه موجود نه وی.نوبه پاکه خاوره تيمم اوکړئ.

② دويم دليل د نبی ﷺ ارشاد دې.چه خاوره دمسلمان دپاره پاکوالې دې.اګرکه لس کالو پورې داوبو په استعمال قادر نه وی.(ددې حديث شان ورود دا دې..) دحضرت ابوذر غفاری ﷺ نه روايت دې.چه دوی به په سفر باندې تلو.اوخپل اهل ته به (د سفر په دوران کښې) ورتلو.اوبه هغه به جنابت راتلو.(يعنی د خپلې بی بی سره د صحبت کولو نه پس به جنب شو.او اوبه به نۀ وې.خکه چه سفر به وو.) نوهغوی نبی ﷺ ته خبر ورکړلو.نبی ﷺ ورته اوفرمائيل: [الصعيد الطيب طهور المسلم ولو الى عشر سنين مالم يجد الماء فإذا وجدا لماء فليمسه بشرة] ([1]) يعنی پاکه زمکه د مسلمان دپاره پاکونکې ده. اګر چه لسو کالوپورې اوبه نه مومی. بيا چه کله اوبه اومومی.نوپه خپل ظاهری بدن دې اوبيوی

**د مرض د وجې د تيمم اباحت**

| أَوْكَانَ يَجِدُ الْمَاءَ اوکه ده سره اوبه وی إِلَّا أَنَّهُ مَرِيضٌ ليکن بيماروی فَخَافَ اوده سره ويره وی إِنْ اسْتَعْمَلَ الْمَاءَ که اوبه استعمال کړی اشْتَدَّ مَرَضُهُ نومرض ئې زياتيږی(توهغه دې تيمم کوی) |
|---|

**حل اللغة** >① يجد، وجد وجدانا(ض): موندل ②مريض: ناجوړه ③فخاف، خاف خوفا(س): ويريدل ④ استعمل استعمالاً: استعمالول

**تشريح** > **جواز التيمم عند خوف المرض** > مسئله دا ده.که د يو کس سره اوبه موجود وی.ليکن هغه ناجوړه وی.او د اوبو په استعمال د مرض زياتيدو ويره وی. يا د شفا په حاصليدو کښې د تاخير امکان وی.نو په داسې صورت کښې د داسې کس دپاره تيمم کول جائز دې.

**دلائله** > ① دليل دالله ﷻ قول دې.﴿وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَى أَوْ عَلَى سَفَرٍ... الآية﴾

**د يخنئ د وجې د تيمم جواز**

| أَوْخَافَ الْجُنُبُ اوکه جنب سره دا ويره وی إِنْ اغْتَسَلَ که غسل مې اوکړلو يَقْتُلَهُ الْبَرْدُ نود يخنئ نه به مړ شی أَوْ يُمْرِضَهُ يا به ناجوړه شی فَإِنَّهُ يَتَيَمَّمُ بِالصَّعِيدِ نو دې د په پاکه خاوره تيمم اوکړی . |
|---|

**حل اللغة** > ①جنب: جنبی ② يقتله، قتل قتلاً (ن) قتل کول، وژل ③ يمرض، مرض تمريضاً: ناجوړه کول

**تشريح** > **جواز التيمم للجنب عند خوف الهلاک خارج المصر** > مسئله دا ده.که جنب ته دا ويره وی.که دې غسل اوکړی .نو ديخنئ د وجې هلاکيږی.يا ناجوړه کيږی. نو ده دپاره تيمم جائز دې. علامه مرغينانی فرمائيلی دی.که دا واقعه د ښار نه بهر پيښه شوې وی.نوپه اتفاق سره د تيمم اجازت دې.دليل وړاندې تير شوې دې.چه ښارته په واپس تلوکښې حرج دې.

[1]) من حديث ابی ذر ﷺ اخرجه ابوداود فی الطهارة باب ۱۲۳ والترمذی فی الطهارة باب ۹۲ والنسائی فی الطهارة باب ۲۰۳)

**جوازالتيمم عند خوف الهلاک في المصر** ﴿ که جنب ته په ښار کښې دننه دا ويره پيدا شي .نوبياهم د امام ابوحنيفه ﷫ په نيز دا حکم دې.يعنی دهغه دپاره تيمم جائز دې.

**دليله** ﴿ اود امام ابوحنيفه ﷫ دليل دا دې.چه د داسې ويريدونکی په حق کښې چه د غسل نه ويريږي.عجز ثابت شوې دې.نوځکه به ددې عجز اعتبار کولې شي.

**دتيمم طريقه**

| وَالتَّيَمُّمُ ضَرْبَتَانِ اوتيمم دوه ضربه دي يَمْسَحُ بِإِحْدَاهُمَا وَجْهَهُ.مسح به کوی په يو ضرب په مخ باندې وَبِالْأُخْرَى يَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ اوپه دويم ضرب دخپلو دواړو لاسونود څنګلو سره |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①يمسح، مسح مسحًا (ف): راښکل، ګرخول ②مرفقين: کونډنې

**تشريح**﴿ **محل المسح** ﴿ په دې عبارت کښې دتيمم دکيفيت بيان دے فرمائی .چه تيمم دوه ضربه دي.
① په يو ضرب به د مخ مسح اوکړی.اوپه بل ضرب په د دواړو لاسونو ترڅنګلو پورې مسح اوکړی.

**دليله**﴿ نبی ﷺ فرمائيلی دی((التيمم ضربتان ضربة للوجه وضربة لليدين))[1]چه تيمم دوه ضربه دې يوضرب د مخ دپاره او بل ضرب د دواړو لاسونودپاره

**تناثرالتراب وعلته**﴿ صاحب دهدايه فرمائيلی دی.چه په زمکه به دواړه لاسونه راپريږدی .اودومره به ئې اوسنډی. چه د هغې نه خاوره لرے شی.چه مثله (يعنی بدشکله) نشی.يعنی لکه څنګه چه په مثله سره سرې بد صورته کيږی . دغه شان په خاورے سره هم مخ ککړيږی.

**دليله** ﴿دعمار بن ياسر ﷜ نه روايت دې.چه [أن النبی ﷺ ضرب بکفيه الأرض ونفخ فيهما ثم مسح بهما وجهه وکفيه] يعنی نبی ﷺ خپل دواړه لاسونه زمکے ته راپريخودل.او په هغې کښې ئې پوك اووهلو.او بيا ئې په هغې باندې خپل مخ مسح کړلو.

**کيفية تيمم النبوی ﷺ** ﴿او د ابن عمر ﷜ اوجابر ﷜ دنبی ﷺ تيمم نقل کړې دې.او فرمائی. ددې طريقه دا دہ. چه دواړه لاسونه به زمکے ته راپريږدی.بيا به دا دومره اوسنډی.چه خاوره ترے لرے شی.بيا دےپه هغې باندې مخ مسح کړی.بيا دے په دويم ځل زمکه اووهی.او دا دے اوسنډی.اودخپل ګس لاس د خلورو ګوتو په باطن دے دخپل ښی لاس ظاهر په دې طريقه مسح کړی.چه د ګوتو د سوکو نه به شروع اوکړی.او ترڅنګلو پورې به اورسی.او بيا دے د خپل ګس تلی په باطن باندې دخپل ښی لاس باطن د مرونډه پورې مسح کړی . اودخپل ګس لاس د ګوتے په باطن دے دخپل ښی لاس د ګوتے په ظاهر باندې راکاږی.اوبيا دے دغه شان د ګس لاس مسح اوکړی.

**په تيمم کښې دحدث اصغر او اکبر برابری**

| وَالتَّيَمُّمُ فِي الْحَدَثِ وَالْجَنَابَةِ فِيهِ سَوَاءٌ اوتيمم په حدث او جنابت کښې برابر دې |
|---|

**تشريح**﴿ **جوازالتيمم في الحدث الأکبر**﴿ امام قدوری ﷫ فرمائی. ① چه دتيمم په جواز او کيفيت اوآله کښې حدث (بے اودسی) او جنابت دواړه برابر دی .يعنی لکه څنګه چه په حدث اصغر کښې تيمم

[1] ) من حديث حديث ابن عمر ﷜ اخرجه الحاکم فی المستدرک (۱\۱۷۹)_

مشروع دي.دغه شان په حدث اکبر کښې هم مشروع دي.اوکومه طريقه چه د حدث اصغر دتيمم ده. هم هغه طريقه دحدث اکبر د تيمم ده.او هم دا حکم د حائضې او نفاسې ښځې دې.

**دليله** >دالله تعالی رسول ﷺ د جنب دپاره هم مشروع کړې دې. روايت دې.چه د نبی ﷺ په خدمت کښې څه خلق حاضر شو.او عرض ئې اوکړلو.چه مونږ په دې شګلنه زمکه‌کښې اوسيږو.او د يو‌ے او دوو مياشتو پورې اوبه نه مومو.حالانکه په مونږ کښې جنب هم وی.او حائضه اونفاسه ښځې هم وی.چه دا ئې واوريدلو.نو نبی ﷺ اوفرمائيل: [عليكم بالأرض][1] يعنی په تاسو ستاسو زمکه لازم ده.يعنی تاسو په خاوره باندې تيمم کوئ.ددې حديث نه معلومه شوه.چه د حدث اکبر دپاره هم تيمم جائز دې.

**په کومو څيزونو تيمم جائز دی؟**

| وَيَجُوزُ التَّيَمُّمُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله ([2])اود امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله په نيز تيمم جائزدې بِكُلِّ مَا كَانَ مِنْ جِنْسِ الْأَرْضِ په هر هغه څيز چه د زمکې دجنس څخه وی كَالتُّرَابِ وَالرَّمْلِ لکه خاوره ،شګه وَالْحَجَرِ وَالْجِصِّ کانړے ، دآبادئ چونه وَالنُّورَةِ وَالْكُحْلِ سپينه چونه ،رانجه، وَالزِّرْنِيخِ او هرتال |
|---|

**حل اللغة** >①الارض: زمکه ② تراب: خاوره ③رمل: شګه ④ حجر جمع احجار: کانړې ⑤ جص: سيمنټ ⑥ نوره: چونه ⑦ زرنيخ:ګوګړ

**تشريح> مذهب الطرفين** رحمهما الله > ددې خائې نه دهغه څيزونوبيان کوی.په کوموچه تيمم جائز دې. نو فرمائی.چه هرهغه څيزچه دزمکې د جنس څخه وی.په هغې باندې تيمم جائز دې.اوچه د زمکې د جنس څخه وی.نوددې شناخت دا دې.چه کوم څيز په سوزيدو سره هيره کيږی.لکه اونه اوچه کوم څيز ويلی شی او نرم شی.اود بدلولوقابل شی.لکه اوسپنه.نودا د زمکې د جنس څخه نهٔ دی.او ددې نه علاوه چه کوم څيزونه د زمکې د جنس څخه دی.لکه خاوره، شګه ، کانړے ، د تعمير چونه ، سپينه چونه ، رانجه هرتال ، د غريزه مالګه ، ياقوت، زمرد ، زبرجد ، وغيره دا د طرفينو رحمهما الله مذهب دې.

**دليله** > دليل دا دې.چه صعيد دمخ دزمکې نوم دې. يعنی د زمکې د پورتنئ حصې.اوچونکه اوچته حصه پورته او پاکه وی. نو څکه ددې نوم صعيد کيخودې شو.حاصل دا چه هرهغه څيزچه صعيد وی.يعنی د زمکې د جنس څخه وی.نوپه هغې تيمم جائز دې.

**مذهب ابي يوسف** رحمه الله > په دې مسئله کښې حضرت امام ابويوسف رحمه الله فرمائی چه صرف په خاوره او په شګه باندې تيمم جائز دې.

**د تيمم دپاره د نيت شرطيت**

| وَالنِّيَّةُ فَرْضٌ فِي التَّيَمُّمِ اوپه تيمم کښې نيت فرض دې وَمُسْتَحَبَّةٌ فِي الْوُضُوءِ او مستحب دې په اودس کښې |
|---|

**تشريح> فرضية النية** >زمونږ په نيز په تيمم کښې نيت فرض دې.

[1] ) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه اخرجه احمد في مسنده (۲\۲۷۸) والبيهقي في سننه الكبرى (۱\۲۲۳)

[2] ) القول الراجح هو قولهما كذا في فتح القدير(۱\۱۱۲) والخانية (۱\۶۱) والهندية (۱\۲۶) نقلا عن القول الراجح (۱\۲۷)

**دلائله** ◄ ①دلیل دا دي.چه د تیمم معنی په لغت کښې د قصد او ارادے راځي.اوقصد نوم دے د ارادې.اودا قاعده ده.چه په اسماء شرعیه کښې د لغوی معانیواعتبار کولې شی.نوځکه مونږ ددې قائل شو. چه په تیمم کښې نیت ضروری دې.اوپه تیمم کښې د نیت تفسیر دا دې.چه د طهارت نیت اوکړی.یا دجنابت لرے کولو اویا د مونځ د اباحت نیت اوکړی. (یعنی چه په دې تیمم راته مونځ کول جائزاو مباح شی.)

② خاوره په شرطونوسره پاکونکې ده.یوشرط دا چه اوبه نه وی.اودویم شرط دا چه تیمم د مانځه د اباحت دپاره وی.ځکه چه الله ﷻ فرمائیلی دی.چه ﴿فتیمموا﴾ اودا قول مبنی دے دالله ﷻ په قول چه ﴿اذا قمتم الی الصلاة فاغسلوا وجوهکم﴾ او ددې نه مراد ﴿فاغسلوا للصلاة﴾ دې.نودلته به هم ﴿فتیمموا للصلاة﴾ مراد وی.نو لکه څنګه چه د اوبو د وجود په وخت کښې تیمم مفید دطهارت نه دې.دغه شان به د عدم نیت په صورت کښې هم مفید د طهارت نه وی.

**الإعتوض** ◄ دلته یواعتراض واردیږی چه په آیت کښې اوبه هم په مخصوص حالت کښې پاکونکې ګرځولې شوی دی.(چه کله اراده د مانځه کوی.) نو په اودس کښې هم نیت شرط ګرځول پکار دی.

**الجواب** ◄ددې نه جواب دا دې.چه اوبهٔ دخپل ذات په اعتبار سره پاکونکې دی.یعنی ددې په طبیعت کښې د پاکولو عمل شته.نوځکه نیت ته محتاجه نه دی.لکه چه کوم نجاست عینی وی.(یعنی په سترګو ښکاری.) نودهغې په لرے کولو کښې د نیت ضرورت نشته.(یعنی چه کوم نجاست په نظر راځي.لکه لونې بول راواخله .او دا په اوبو باندې اووینځلی شی.نو هغه محل پاکیږی.اګرچه د پاکولو نیت په کښې نه وی.نودغه شان حکم به په نجاست حکمی کښې وی.چه اودس دې.)

### تیمم ماتونکې څیزونه

| وَيَنْقُضُ التَّيَمُّمَ كُلُّ شَيْءٍ اوتیمم په هرهغه څیزماتیږی يَنْقُضُ الْوُضُوْءَ چه اودس پرے ماتیږی |
|---|

**حل اللغة** ◄①ینقض، نقض نقضا (ن): ماتول

**تشریح** ◄ **وجه الإشتراک بین ناقض الوضوء والتیمم** ◄ شیخ قدوری فرمائیلی دی.چه کوم څیزونه ناقض د اودس دی . هغه ناقض د تیمم هم دی.دلیل دا دې.چه تیمم داودس خلیفه دې.او په دې کښې څه شك نشته.چه اصل د خلیفه په نسبت اقوی وی.نوکوم څیز چه د اقوی دپاره ناقض وی.هغه به د اضعف دپاره په په طریقه اولی سره ناقض وی.نوهرهغه څیزچه ناقض د اودس وی.هغه به ناقض د تیمم ضرور وی.

| وَيَنْقُضُهُ أَيْضًا رُؤْيَةُ الْمَاءِ اوماتوی تیمم لره د اوبو لیدل إِذَا قَدَرَ عَلَى اسْتِعْمَالِهِ خو په دې شرط چه دے د اوبو په استعمال قادر وی |
|---|

**تشریح** ◄ **نقض التیمم بالقدرة علی إستعمال الماء** ◄ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه بعضې څیزونه داسې دی.چه په هغې باندې اودس خو نه ماتیږی.لیکن تیمم ماتیږی.نوکه متیمم اوبه اولیدلې او دے دهغې په استعمال قادر هم وو.نود اوبو لیدل دهغه د تیمم دپاره ناقض دی.اواستعمال سره د قدرت شرط ځکه اولګولې شو.چه آیت ﴿أولامستم النساء فلم تجدوا ماء﴾ اوحدیث [التراب طهور المسلم ولوالی عشر حجج مالم یجدالماء] په دې کښې د وجود داوبو نه مراد قدرت علی استعمال الماء دې.

**د تیمم دپاره د متیمم به د طهارت شرط**

| وَلَايُتَيَمَّمُ اوتیمم به نه کوی اِلَّا بِصَعِيدٍ طَاهِرٍ مګرپه پاکه زمکه |
|---|

**تشریح> شرط طهارة المتیمم به>** تیمم به صرف په پاکه خاوره باندې کوی.په پلیته خاوره تیمم کول جائزنه دی

**دلائله >** ① ځکه چه په آیت د تیمم کښې د ﴿فتیمموا صعیدا طیبا﴾نه په اجماع سره مراد طاهر دې.②بل دلیل دا دې.چه خاوره د پاکولو آله ده.نوځکه ذدې په خپله پاکوالے ضروری دې.لکه څنګه چه د اوبو طهارت ضروری دې.

**داوبو موندلو په صورت کښې دتیمم حکم**

| وَيُسْتَحَبُّ لِمَنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ اوچه اوبه نه مومی.نوهغه دپاره مستحب دی وَهُوَ يَرْجُوهُ أَنْ يَجِدَهُ فِي آخِرِ الْوَقْتِ په داسې حالت کښې چه هغه دا امید ساتی چه په آخر وخت کښې به ئې اوموميِ أَنْ يُؤَخِّرَ الصَّلَاةَ إِلَى آخِرِ الْوَقْتِ چه مونځ آخر وخت ته روستو کړی فَإِنْ وَجَدَ الْمَاءَ نوکه اوبه ئې اوموندے تَوَضَّأَ نواودس دے اوکړی وَصَلَّى او مونځ دې اوکړی وَإِلَّا تَيَمَّمَ کنی تیمم دے اوکړی |
|---|

**حل اللغة >**① یرجوه، رجایرجو رجاء (ن) امیدکیدل ② ان یؤخر، اخر تاخیرا: روستوکول ③ وجد وجدانًا (ض) موندل

**تشریح> تاخیر الصلاة عند رجاء الماء >** ① مسئله دا ده.که اوبه موجود نه وی.او سړی دا امید کوی .چه په آخروخت کښې به اوبه اوموميِ.نومونځ آخری وخت ته روستو کول مستحب دې.اوکه دا امید ئې نه وی. نوخامخا دے مونځ نه روستو کوی.که ده ته اوبه ملاو شی.نواودس دے اوکړی.او مونځ دے اوکړی.اوکه ملاو ورته نشوې.نوتیمم دے اوکړی.او مونځ دے اوکړی.او داوبو ملاویدو دامید په صورت کښې مونځ روستوکول ځکه مستحب دی.چه دا په دوو طهارتینو کښې په اکمل طهارت چه اودس دے په هغې باندې ادا شی .نو داداسې ده.لکه چه د جمعې مونځ کولو دپاره انتظار کولې شی.اوانتظار کول مستحب دې.

**دلیله >**دلیل دا دې.چه چونکه اوبه موجود نه دی.نوحقیقتاً عجزثابت شو .او ددې عجز حکم تیمم دې. نوددې عجزحکم یعنی جوازتیمم به په هغه وخت کښې زائله کیږی.چه د اوبو د وجود یقین وی.اوچونکه د اوبو دوجود یقین نشته.نوځکه دمونځ روستوکول هم واجب نه دی.

**په یوتیمم باندې دګڼرو مونځونو ادا کولو حکم**

| وَيُصَلِّي بِتَيَمُّمِهِ مَا شَاءَ اوپه خپل تیمم چه ئې کوم مونځ خوښ وی کوی دې مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ (برابره ده) که فرض وی او که نفل وی |
|---|

**حل اللغة >**①یصلی، صلی تصلیة: مونځ کول

**تشریح> أداء الفرائض بتیمم واحد>** مسئله دا ده.چه زمونږ په نیز په یوتیمم باندې د یو نه زیات مونځونه ادا کولی شی.که هغه فرض مونځونه وی اوکه نفلی وی.که په یو وخت کښې ئے ادا کوی اوکه په مختلفو وختونو کښې ترڅوچه د تیمم ناقض موجود شوې نه وی.

**دلیله** > دلیل دا دې.چه خاوره د اوبو د نشتوالی په وخت کښې په نص سره مطهر ثابته شوې ده.نبی ﷺ فرمائیلی دی.[التراب طهورالمسلم] او فرمائیلی ني دی.[جعلت لی الأرض مسجدا وطهورا] اوکوم څیزچه د شرط سره پاکونکې وی.هغه به ترهغه وخته پورې خپل کار جاری ساتی. ترڅوچه شرط باقی وی.نوترڅوچه دعدم وجدان الماء شرط باقی وی.خاوره به پاکونکې باقی وی.

**د جنازې فوت کیدو په وخت د تیمم حکم**

| |
|---|
| وَيَجُوزُالتَّيَمُّمُ الصَّحِيحُ فِي الْمِصْرِاوجائز دې تیمم دپاره د صحیح سړي په ښار کښې إِذَاحَضَرَتْ جِنَازَةٌ چه جنازه حاضره شی وَالْوَلِيُّ غَيْرُهُاو ولی ددې کس نه علاوه (بل څوك) وی فَخَافَنودا اجنبی ویریږی اِنْ اشْتَغَلَ بِالطَّهَارَةِکه په اودس کښې مشغول شی أَنْ يَفُوتَهُ الصَّلَاةُنوجنازه ترے فوت کیږی فَلَهُ أَنْ يَتَيَمَّمَ وَيُصَلِّيَنو جائز دی ده دپاره چه تیمم اوکړی اومونځ اوکړی (په دغه تیمم ) وَكَذَامَنْ حَضَرَالْعِيْدَاو دغه شان هغه کس چه داخترمانځه ته حاضر شی فَخَافَ إِنِ اشْتَغَلَ بِالطَّهَارَةِنوویره شی ورسره که په اودس کښې مشغول شی أَنْ يَفُوتَهُ الْعِيْدَنوداختر مونځ به فوت شی |

**حل اللغة** >①صحیح: تندرست ②مصر جمع امصار: ښار ③حضرت، حضر حضوراً (ن): حاضریدل ④اشتغل، اشتغالاً: مشغول کیدل ⑤یفوته، فات فوتاً(ن): فوت کیدل ⑥ اعادة: راګرځول ]

**تشریح** > **العبادة التي تجوزبالتيمم مع وجودالماء** >مسئله دا ده.چه یوصحیح سړی په ښار کښې تیمم کولې شی.چه جنازه حاضره شی.او ولی دده نه سوا بل کس وی.اوده سره دا ویره وی.که په اودس کولو کښې مشغول شی.نودجنازے مونځ به ترے فوت شی.

**فائدة قید الصحیح** > امام قدوری دصحیح قید اولګولو. په دې سره ني د مریض نه احتراز اوکړلو.ځکه چه د مریض دپاره تیمم جائز دے که په ښار کښې وی اوکه د ښار نه بهر وی.که ولی وی او که غیر د ولی نه بل څوك وی.که دفوت کیدو ویره ورسره وی او که نه وی.

**فائدة قیدالمصر**>او د ښار په قید سره ځنګل اووتلو.ځکه چه په ځنګل کښې تیمم جائزدې.که ولی وی او که غیر د ولی نه بل څوك وی.ځکه چه عام طور په ځنګل کښې اوبه نهٔ وی.

**جواز التیمم عند فوت صلاة العیدین**> اودغه شان د اختر دمانځه دپاره راغلو.اوویره وه که په اودس کښې مشغول شی.نو داختر مونځ به ترے فوت شی.نودا کس دے تیمم اوکړی. اوپه جماعت کښې دے شریك شی.

**جوازالتیمم عند فوت خوف ما لا خلیفة له** > صاحب دعنایه لیکلی دی.چه ضابطه دا ده.چه کوم څیز بدل ته نه فوت کیږی.نود اوبو د وجود په صورت کښې هم په تیمم باندې هغه ادا کول جائزدی. (نوکه په اودس کښې مشغوله کیدو سره ورته د دغه عبادت د فوت کیدو ویره وی.چه بدل ته نه منتقل کیږی.نو تیمم کول جائز دې.) اوزمونږ په نیز دجنازے مونځ هم داسې دې.ځکه چه ددې قضاء نشته. اودغه شان د اختر د مونځ قضاء هم نشته.

## دجمعې د فوت کېدوپه وخت د تیمم حکم

وَمَنْ خَافَ مَنْ شَهِدَ الْجُمُعَةَ او که ویریږی هغه څوک چه دجمعې مونځ ته حاضر شوې وی إِنْ اشْتَغَلَ بِالطَّهَارَةِ که مشغولیږی په اودس کښې أَنْ تَفُوتَهُ الْجُمُعَةُ نو قضا کیږی ترې د جمعې مونځ تَوَضَّأَ نو اودس دې اوکړی فَإِنْ أَدْرَكَ الْجُمُعَةَ که جمعه نې رالاندې کړه صَلَّاهَا نو اوادے کړی وَإِلَّا صَلَّى الظُّهْرَ أَرْبَعًا او که نه نو څلور رکعته دے د ماسپخین اوکړی

**حل اللغة** ۱- خاف خوف (س): ویریدل ۲- ادرك ادراکا: موندل، پوهیدل ۳- تفوت، فات فوتا (ن) فوت کیدل ]

**تشریح** عدم جواز التیمم عند فوت الجمعة مسئله دا ده.که په اودس کښې مشغول کیدو باندې د جمعې دفوت کیدو ویره وی.نوبیا هم د تیمم کولواجازت نشته. بلکه اودس ضروری دې.نوکه ده اودس اوکړلو.اودجمعې مونځ ئې رالاندې کړلو.ډیره ښه ده.اوکه دجمعې مونځ ئې رالاندې نکړلو.نود ماسپخین مونځ چه خلیفه دې.هغه دے ادا کړی.

**دلیله** ۱- د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه چا تپوس اوکړلو.که یوسړی ته ناڅاپه جنازه حاضره شی. او دے بې اودسه وی؟ نو هغوی اوفرمائیل:تیمم دےاوکړی. او د جنازے مونځ دےاوکړی.(۱)

**الاستدلال** د جنازے په مانځه کښې خو دا اثر نص دې.چه تیمم به کوی.اوس چه مونږ نظر اوکړلو.نو د جنازے د مانځه په موقع د تیمم جواز ځکه دې.چه دهغې نائب اوخلیفه نشته. اوهم دا علت داختر په مانځه کښې هم دې.یعنې داختر د مانځه نائب اوخلیفه هم نشته.نو دعلت مشترکه د وجه مو داختر مونځ د جنازے په مونځ قیاس کړلو.اودا نتیجه راووتله.چه داختر په مانځه کښې هم که دغه صورت پیښ شی.نو تیمم به کوی.اودس دےنه کوی.شاه فیصل عفی عنه

۲- بل دلیل دا دې.اګرچه جمعه ترے فوت شوه.لیکن ددې خلیفه چه د ماسپخین مونځ دې.هغه موجود دې.نوچه اوبه موجود وی.نوهغے په وجود کښې صرف د فوت کیدو د ویرے د وجے تیمم جائز نه دې.

## د وختې مونځ د فوت کېدو په وخت کښې د تیمم حکم

وَكَذَا إِنْ ضَاقَ الْوَقْتُ فَخَشِيَ اوهم دغه شان که تنګ شو وخت نو ویریدلو أَنْ تَوَضَّأَ فَاتَهُ الْوَقْتُ که چرته اودس کوی نووختی مونځ ترے قضاء کیږی لَمْ يَتَيَمَّمْ تیمم دے نه کوی وَلٰكِنَّهُ يَتَوَضَّأُ بلکه اودس دے اوکړی وَيُصَلِّيْ فَائِتَتَهُ اود قضاء شوی مونځ قضاء دے راوړی

**حل اللغة** ۱- خاف خوفا (س) ویریدل ۲- توضا توضیا: اودس کول

**تشریح** حکم التیمم عند خوف فوت الصلاة الوقتیة مسئله دا ده.که په اودس کښې مشغول کیدو کښې د وختی مونځ د فوت کیدو ویره وی.بیا به هم تیمم نه کوی. بلکه اودس به کوی.اود فوت شوې مونځ به قضاء راوړی.

---

(۱) شرح معانی الاثار فی الطهارة باب ذکر الجنب والحائض والذی لیس علی وضوء و قرأتهم القرآن ۸۶/۱ اثر ضعیف لکن له شواهد وان کان فی کلها کلام لکن کثرة الطرق یقوی ضعف الحدیث کما ذکره الزیلعی فی تحقیق هذا الاثر

**دليله** > ځکه چه د وختي مونځ فوت کيدل فوت الى خلف دي.اوورانديې تير شوى دى.چه کوم خيز خليفه ته منتقل کيږي.نودهغې د فوت کيدو د وجې په تيمم بانديې دهغې ادا کول جائزنه دى. (بلکه اودس به کوى.اوچه کوم خيز ته هغه منتقل شوې وى.هغه به کوى)

**د مسافرتيمم کول او په کجاوه کښې د اوبو هيريدوحکم**

| |
|---|
| وَالْمُسَافِرُ إِذَا نَسِيَ الْمَاءَ فِي رَحْلِهِ اودمسافر نه چه کله په خپله کيجاوه کښې اوبه هيرے شى فَتَيَمَّمَ اوتيمم ئې اوکړلو وَصَلَّى او مونځ ئې اوکړلو ثُمَّ ذَكَرَ الْمَاءَ فِي الْوَقْتِ بيا ورته اوبه وريادے شوې په وخت کښې لَمْ يُعِدْ صَلَاتَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله نود طرفينو رحمهما الله په نيز به مونځ نه راګرځوى وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله اوامام ابويوسف رحمه الله فرمائى يُعِيدُ چه اعاده به کوى |

**حل اللغة** > ①نسي، نسيانا (س): هيرول ②رحل: کجاوه ③لم يعدها، اعاد اعادة: واپس کول ④وضعه، وضع وضعا(ف) ساتل ⑤ ستر: پټول ]

**تشريح** > **نسيان الماء في الرحل** > مسئله دا ده.که مسافر په تيمم بانديې مونځ اوکړلو.حالانکه دهغه په کجاوه کښې اوبه موجود وې. نو په دې صورت کښې د طرفينو رحمهما الله په نيز په ده بانديې د مانځه اعاده واجب نه ده.

**دليلهما** > او دطرفينو رحمهما الله دليل دا دې.چه په اوبوبانديې قدرت بغير دعلم نه نۀ راځى.اود اوبو د موجودوالى نه هم دا مراد دې.چه داوبوپه استعمال دده قدرت وى.نوچه ده ته علم نشته.نوقدرت هم رانغلو.اوچه قدرت رانغلو.نو اوبه ورته حاصلې نشوې.اوچه اوبه ورته حاصلې نه وى.نو په دې صورت کښې تيمم جائزدې.

**اختلاف ابي يوسف رحمه الله** > د ابويوسف رحمه الله په نيز پرے د مانځه اعاده واجب ده.که او به ورته په وخت کښې وريادے شوې وى اوکه د وخت نه پس.اودا دامام شافعي رحمه الله قول هم دې.

**دلائله** > ①دليل دا دې.چه په عادت کښې دا معمول دے چه دمسافر کجاوه داوبو دپاره معدن او خانې وى.نوځکه په ده بانديې په کجاوه کښې د اوبو لټول واجب وى.نوچه ده لټون اونکړلو.نومعذور نشو.اوپه ده بانديې اعاده واجب شوه.

**الجواب عنهٔ** > خوددې جواب دا دې.چه په کجاوه کښې عام طور د څکلو اوبه کيخودې شى.داودس اوغسل اوبه نشى کيخودې.

② دامام ابويوسف رحمه الله دويم دليل دا دې.چه دا کس د اوبوموندونکے دې.اوتيمم دهغه کس دپاره مشروع شوې دې.چه هغه سره اوبه نه وى.نود ده تيمم جائز نه دې.اودا داسې ده. لکه يوسرې سره په کجاوه جامې وى. او دده نه هيرے شى.اومونځ ئې په بربنډه اوکړلو.يا ئې په پليتوجامو کښې اوکړلو . نو چه پاکه جامه ورته وريادہ شى.(چه ما خو په کجاوه کښې جامې ايخودے دى) نو په ده بانديې د مانځه دوباره کول واجب دى.

**الجواب الإنكاري عنه** >خو دجامې مسئله هم مختلف فيه ده.د طرفينو رحمهما الله په نيز که په کجاوه کښې جامې هيرے کړى.او په بربنډه يا په پليتوجامو کښې مونځ اوکړى.اوبيا ورته پاکې جامې وريادے شى.نومونځ راګرځول پرے نشته.

**الجواب التسليمي عنه** >اوکه دا اومنلے شی.چه د جامو مسئله هم متفق علیه ده.نوبیا هم دا داوبو مسئله د جامو په مسئله قیاس کول ټیك نه دی.ځکه چه ددې دواړو په مینځ کښې فرق دې.فرق دا دې.چه د بدن پټول فرض دې.نوکه دا فرض فوت شی.ددې څه خلیفه نشته.اوکه د اوبو په ذریعه دطهارت حاصلول فوت شی.نوددې خلیفه شته چه تیمم دې. (نودا قیاس،قیاس مع الفارق شو.اودا ناجائزدې.)

**التنبیه علی محل الاختلاف** >علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی چه دا مذکور اختلاف په هغه وخت کښې دې چه په کجاوه کښې ده په خپله اوبه کیخودې وی یا بل چا د ده په حکم باندې کیخودې وی او ده ته په وخت کښې وریادې شوې یا د وخت تیرو نه پس په ټولو صورتونوکښې دواړه صورتونه برابر دی یعنی اختلاف په کښې موجود دې اوکه ده په خپله نه وی کیخودې نو بیا په ده باندې د مانځه اعاده واجب نه ده ځکه چه ده ته علم نشته.

**د متیمم دپاره داوبود لټون حکم**

| وَلَيْسَ عَلَى الْمُتَيَمِّمِ او په متیمم باندې واجب نه دی طَلَبُ الْمَاءِ إِذَا لَمْ يَغْلِبْ عَلَى ظَنِّهٖ لټون د اوبو ترڅوچه د ده غالب ګمان نه وی أَنَّ بِقُرْبِهٖ مَاءً چه ده سره نزدې اوبه دی أَنْ يَّطْلُبَ الْمَاءَ چه تلاش کړی اوبه |
|---|

**حل اللغة** >①متیمم: تیمم کونکې ② طلب: لټون، غوښتل ③ظن: ګمان

**تشریح> طلب الماء عند غلبة الظن>** ①که اوبه نه مومی.نوپه هغه باندې د اوبو تلاش واجب نه دې.ترڅوچه هغه ته داوبو د نزدیکت غالب ګمان نه وی.

**دلیله** > دلیل دا دې.چه په آیت کښې عدم وجدان مطلق دې.د طلب یا دغیر دقید نه معری اوخالی دې.نوددې وجې به د [المطلق یجری علی اطلاقه] قاعده باندې عمل کولے شوې شی.او آیت به د طلب وغیره په قید سره نشی مقید کولې. او چونکه عام طور باندې په بیابانونو کښې اوبه نه وی.او د اوبو په وجود باندې څه دلیل هم نشته.نوځکه به دا وئیلی شی.چه دا کس داوبو موندونکے نه دې.او په دې صورت کښې به تیمم کول جائز وی.نوځکه بغیر د اوبو د لټون نه تیمم جائز اوګرځولې شو

| وَإِنْ غَلَبَ عَلَى ظَنِّهٖ اوکه دده غالب ګمان دا وی أَنَّ هُنَاكَ مَاءً چه هلته کښې اوبه دی لَمْ يُجْزِئْهُ أَنْ يَّتَيَمَّمَ نوده دپاره تیمم جائزنه دے حَتّٰى يَطْلُبَهٗ ترڅوچه داوبولټون اونکړی |
|---|

**تشریح> حکم التیمم فی صورة غالب الظن>** اوکه غالب ګمان دا وی.چه دلته کښې اوبه دی.نو په دې صورت کښې ورته تیمم کول جائزنه دې.ترڅوچه ئې اوبه لټولې نه وی.

**دلیله**>ځکه چه دلیل ته په نظر کولو سره دے د اوبوموندونکے دې.اودلیل غلبه دظن ده.او په عباداتو کښې غالب ګمان قائم مقام د علم دې.نوکه نزدے ورته د اوبو د وجود علم وو.نو تیمم به جائزنه وو.نو دغه شان چه د اوبود نزدیکت ورته غالب ګمان وی.نوهم به تیمم جائزنه وی.

**حدالطلب**>باقی پاتې شوه دا خبره چه دا کس به څومره لرے پورې د اوبولټون کوی.نو په دې باره کښې د صاحب هدایه رحمه الله تحقیق دا دې.د یوغشی په مقدار دے لاړ شی.اود یومیل په اندازه دے لرے نه ځی.ځکه چه دخپلو ملګرو نه به پاتې شی.غلوة دلام په زور سره دا دې.چه تیرانداز د خپل کمان نه غشے اولی.نود تیر ویشتلو دځائې نه ترغشی غورځیدلوځائې پورې چه کومه فاصله ده.دا غلوة ده.او

بعضې حضراتو فرمائيلي دي.چه د درې سوو گزونو نه تر څلورو سوو گزونو پورې "فاصله غلوة" ده. (يعني چه دے په لينده کښې غشی کيدې.اوهغه اولی.نوچه ترکومے پورې هغه رسيدې شی.د هغه هومره مسافت په اندازه په ده د اوبو لټون لازم دې.)

**دملګرې نه د اوبو غوښتلوپه صورت کښې دتيمم حکم**

| وَإِنْ كَانَ مَعَ رَفِيقِهِ مَاءٌ که دده دسفر ملګری سره اوبه وی طَلَبَ مِنْهُ قَبْلَ أَنْ يَتَيَمَّمَ نودتيمم کولو نه وړاندې دے دهغه نه اوغواړی فَإِنْ مَنَعَهُ مِنْهُ که هغه ترے منع کړي تَيَمَّمَ نو تيمم دې اوکړی وَصَلَّى او مونځ دې اوکړی |
|---|

**حل اللغة** > ① رفيق: ملګرې ② طلب، طلبا: لټول غوښتل

**تشريح** > **طلب الماء من الرفيق قبل التيمم** > مسئله دا ده.که د سفر دملګری سره اوبه وی.نوحکم دا دې. چه د تيمم کولو نه وړاندې دے دهغه نه اوبه اوغواړی. که هغه اوبه ورکړې.نواودس دے اوکړی.او مونځ دے اوکړی .ګنی تيمم دے اوکړی.

**دليله** > دليل دا دې.چه عام طوربانديې د اوبو نه منع نشی کولې.او په غوښتلوسره ورکولې شی.نوځکه د تيمم کولو نه وړاندې غوښتل پکار دی.اوچونکه چه انکار اوکړی.نو عجز متحقق شو.نوځکه به په دې صورت کښې تيمم کوی.

**صورة وجوب طلب الماء** > دبعضےعالمانو ﷺ دا رائې ده.که ده ته دا غالب ګمان وی.چه په غوښتلو به ده ته اوبه ورکړی.نوپه ده باندې طلب کول واجب دې.اوکه غالب ګمان نه وی.نو واجب نه دې.(کفايه)

# بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ

**ترجمه** > (دا) باب په موزو باندې د مسح کولو (داحکاموپه بيان کښې ) دې.

**تشريح** > **وجوه إيراد المسح بعد التيمم** > مصنف رحمه الله دتيمم نه پس متصل د مسح علی الخفين احکام ذير شو وجوهاتو له کبله ذکر کړل.

① تيمم اومسح دواړه رخصت موقته دی

② په دې دواړو کښې هر يو طهارت مسح ده.

③ په دې دواړو کښې هر يو عارض دې.ځکه چه اصل وينځل دی.

④ په دې دواړو کښې هر يو بدل دې.تيمم داودس بدل دې. او مسح علی الخفين د غسل الرجلين بدل دې.

⑤ په تيمم او مسح دواړو کښې د اودس په بعضےاندامونو باندې اکتفی کولې شی.

**دمسح ثبوت په سنت باندې**

| الْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ جَائِزٌ بِالسُّنَّةِ په دواړوموزوباندې مسح په سنت سره (ثابته) ده |
|---|

**حل اللغة** > ①خفين، دَ خف تثنيه، موزې

**تشريح** > **ثبوت المسح من السنة** > شيخ قدوری رحمه الله فرمائی.چه د مسح علی الخفين ثبوت د قرآن نه شوې دې.او په دې باره کښې ډير قولی اوفعلی احاديث مشهور دی.تردےکه يوکس مسح علی الخفين

جائزنه ګڼړی.نودا کس بدعتی دی.اوکه یوکس ئې جائزګڼړی.لیکن په عزیمت عمل کوی.یعنی پښے وینځی.نودا کس عندالله ماجور دی.اوده ته به ثواب ملاویږی. په عین الهدایه کښې دی.که په مسح نه کولو کښې په ده باندې د خارجی یا رافضی شك راځی.نوبیا مسح کول افضل ده.

## د مسح علی الخفین دجواز شرطونه

> مِنْ كُلِّ حَدَثٍ مُوجِبٍ لِلْوُضُوْءِ اوجائزده دهر حدث نه چه موجب د اودس وی إِذَا لَبِسَ الْخُفَّيْنِ عَلَى طَهَارَةٍ كَامِلَةٍ خوچه دواړه ئې په کامل طهارت باندې اغوستے وی ثُمَّ أَحْدَثَ او بیا بے اودسه شوې وی

**حل اللغة** ﴿۱﴾ یجوز، جاز جوازًا (ن) روا کیدل ﴿۲﴾ موجب: واجب کونکې ﴿۳﴾ لبس ، لبس لبسًا(س): اغوستل

**تشریح** جوازالمسح في الحدث الأصغردون الأكبر مسئله دا ده.چه دمحدث دپاره مسح کول جائز ده.که محدث سړې وی اوکه ښځه وی.خوچه دواړه ئې په کامل طهارت باندې اچولے وی.او کوم کس باندې چه غسل واجب شوې وی.دهغه دپاره په موزو باندې مسح کول جائز نه ده.

**تخصیص المسح بالامرین** ﴿۱﴾ صاحب دقدوری رحمه الله مسح علی الخفین په دوو خبرو پورې خاص کړله.یودا چه حدث موجب د اودس وی.ځکه که په طهارت کامله ئې موزے واچولې.اوبیا داسې حدث راغلو.چه په هغې باندې غسل واجبیږی.نو په دې صورت کښې مسح علی الخفین جائز نه ده.

﴿۲﴾ دویمه خبره دا ده.چه حدث د اودس کولونه پس راغلی وی.ځکه چه موزه حدث د سرایت نه منع کوی. حدث نه لرے کوی.(یعنی کله چه یو سړی موزے اچولے وی.نوکه ده ته حدث پیښ شی.نودغه حدث نورو اندامونو ته ورشی.اوهغه په نجاست حکمی سره پلیت کړی.لیکن چه کله پښو ته اورسی.نودلته ورته رکاوټ اوحائل مخامخ شی.چه موزے دی.نو دغه حدث قدمونوته نشی ورتلی. اوکه په حدث سابق باندې مسح کول جائز ګرځولې شوې وه.نوچه مستحاضه ښځې موزے اچولے وی.اوبیا وخت اوځی.اومتیمم چه موزے ئې په پښو کړی وی.او بیا اوبه اومومی.نوموزے به رافع د حدث شی.حالانکه موزے رافع د حدث نه دی.بلکه مانع دی.

**كون لبس الخفین علی طهارة کاملة** اودامام قدوری رحمه الله دا قول چه [اذالبس الخفین علی طهارة] دا قول دا فائده نه ورکوی.چه د موزے اچولو په وخت کښې طهارت کامله شرط دی.بلکه د حدث په وخت کښې طهارت کامله ضروری دی.هم دا زمونږ مذهب دی.نوکه یوکس اول خپلے پښے اووینځلې.او موزے ئې واچولې.او بیا ئې باقی اودس پوره کړلو.او بیا بے اودسه شو.نود هغه دپاره په موزو باندې مسح کول جائز ده.ځکه چه د موزو د اچولو په وخت کښې اګرچه طهارت کامله نه وو موجود.لیکن د طهارت په وخت کښې طهارت کامله موجود وو.

**دلیله** دلیل دا دې.چه موزه قدم ته د حدث سرایت نه پریږدی.نود منع په وخت کښې به د طهارت کامله رعایت کولې شی.تردے که په دغه وخت کښې طهارت ناقص وو.نو موزه رافع د حدث نه ده.

## د مسحې موده

> فَإِنْ كَانَ مُقِيمًا مَسَحَ يَوْمًا وَلَيْلَةً که مقیم وی نو مسح دې کوی یوه ورځ او شپه وَإِنْ كَانَ مُسَافِرًا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا اوکه مسافر وی نو مسح دې کوی درې ورځې اودرې شپې

**حل اللغة** ﴿۱﴾ مقيم: چه په خپل کلی او ښار کښې اقامت کونکې.﴿۲﴾ چه د خپل کلی نه اته څلويښت ميله بهر تلی مسافر وی

**تشريح** ﴿ مدة مسح المقيم والمسافر ﴾ په دې عبارت کښې د مسح د مودے بيان دې.فرمائی چه مسح د مقيم په حق کښې يوه ورځ اويوه شپه ده.او د مسافر په حق کښې درې ورځې او درې شپې دی.

**دليله** ﴿ دليل مشهور حديث دې.يعنی د نبی ﷺ قول چه [يمسح المقيم يوما وليلة والمسافر ثلاثة أيام ولياليها] او عامو عالمانو ﷭ ددې حديث نه استدلال کړې دےکوم چه د حضرت صفوان بن عسال ﷛ نه مروی دې. [قال أتيت رسول الله ﷺ فقال لی ما جاء بك فقلت طلب العلم فقال ﷺ إن الملائكة لتضع أجنحتها لطالب العلم رضا بما يصنع فما ذا جئت فسل،قال فسألته عن المسح على الخفين فقال ﷺ للمقيم يوما وليلة وللمسافر ثلاثة أيام ولياليها (کفايه)

حضرت صفوان بن عسال ﷛ فرمائی.چه زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم.نونبی ﷺ رانه تپوس اوکړلو.څه څيزراوستے ئې.ماورته عرض اوکړلو.د علم طلب.نونبی ﷺ اوفرمائيل: فرښتے خپلے وزرے دعلم دين طالب ته خوره وی.دده په عمل د خوشحالئ د وجې.بيا راته نبی ﷺ اوفرمائيل:دڅه دپاره چه راغلے ئې.دهغې تپوس کوه.فرمائی.ما ترے په موزو باندې د مسحے کولو تپوس اوکړلو.نونبی ﷺ اوفرمائيل: مقيم به يوه ورځ او يوه شپه مسح کوی.اومسافر به درې ورځې او درې شپې مسح کوی.

**د مسحې د موده شروع به د کوم وخت نه کیږي؟**

| وَابْتِدَاؤُهَا عَقِيبَ الْحَدَثِ اود مسح ابتداء دحدث نه پس ده |
|---|

**حل اللغة >** ① خف : موزه ② عقيب: روسته

**تشريح > إبتداء مدة المسح >** د مسحې موده به د حدث د وخت نه شروع کیږي. یعنی کله چه بې اودسه شي نود هغه وخت نه به دمسحې موده حسابیږي

**د مسح مسنون طريقه**

| وَالْمَسْحُ عَلَى ظَاهِرِهِمَا اومسح د دواړو موزو په ظاهری حصه ده خُطُوطًا بِالْأَصَابِعِ په داسې حال کښې چه دا په ګوتو باندې کرښې راښکل دی يَبْدَأُ مِنْ قِبَلِ الْأَصَابِعِ داسې چه ) شروع به کوی.د (ښپې) ګوتو نه إِلَى السَّاقِ ( د پنډو طرف ته.(چه راښکلې شی) |
|---|

**حل اللغة >** ①اصابع واحد اصبع: ګوتې ②يبدأ، بدا بدءًا: شروع کول

**تشريح > كيفية المسح >** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه زمونږ په نیز د موزو په ښکاره طرف مسح کول ضروری ده.صورت دا دې.چه د ښی لاس ګوتې دې د ښیٔ موزې په مخکنیٔ او د ګس لاس ګوتې دې د ګسې موزې په مخکنیٔ حصه کیږدی.او بیا دې دواړه پنډیٔ طرف ته د ګیتو دپاسه راکاږی.او ګوتې دې پرانستې ساتی.په موزو باندې د مسحې کولو دا طریقه مسنون ده.اوکه په یوه ګوته درې ځله مسح اوکړی.اوبه هر ځل نوې اوبه راخلی.نوجائز ده ګنی نه ده جائز.

**دليله >** دلیل د حضرت مغیره بن شعبه رضي الله عنه حدیث دې.چه رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه په خپلو دواړو موزو باندې کیخودل.اوپورته طرف ته ئې راښکل.مغیره رضي الله عنه فرمائی.چه لکه زه د رسول الله ﷺ په موزو باندې هغه ننښې وینم.کومې چه د ګوتو دوجې پیدا شوی وې.

په دې حدیث کښې دا هم ذکر دی.چه نبی ﷺ یوځل مسح اوکړله. ددې وجې عالمانو رحمهم الله فرمائیلی دی.چه په مسح کښې تکرار کول غیرمشروع دې.په ترمذی کښې دا حدیث په دې الفاظو مروی دې. [قال رأيت النبي ﷺ يمسح على الخفين على ظاهرهما] مغیره رضي الله عنه فرمائی.چه ما نبی ﷺ لیدلې وو.چه دموزو په ظاهرباندې ئې مسح کوله.صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د مسحې محل دموزو ظاهر دې.باطن نه دې.نوځکه به د موزو په ظاهر باندې مسح کول واجب وی.

**المسح علي ظاهر الخف >** اوکه دموزو په باطن ئې مسح اوکړله.یا په پونده باندې یا ددې په پنډیٔ.نومسح جائز نه ده.ځکه چه په موزو باندې مسح خلاف قیاس ثابته ده.نوچه په کوم ځیز باندې نص وارد شوې وی.دهغې به پوره پوره خیال ساتلې شی.اوچونکه دنص ورود د موزې په ظاهرباندې شوې دې.نوځکه به مسح دموزو په ظاهر باندې مشروع وی په باطن نه.

**دليله >** دې طرف ته د حضرت علی رضي الله عنه په قول کښې اشاره ده. [لوكان الدين بالرأى لكان أسفل الخف أولى بالمسح من ظاهره ولكنى رأيت رسول الله ﷺ يمسح على ظاهرالخفين دون باطنهما] حضرت علی رضي الله عنه فرمائی.که

چرته دين دعقل تابع وي. نو دموزے باطن به د ظاهرنه د مسحے کولو دپاره زيات مناسب وو.ليکن ما رسول الله ﷺ ليدلے وو.چه ددې په ظاهر به ئې مسح کوله په باطن به ئې نه کوله.

**إبتداء المسح من الأصابع** او د گوتو نه د مسح شروع کول مستحب ده.نوکه د پنډئ نه ئې شروع اوکړله.نوهم جائزده.وجه داستحباب په وينځلو باندې قياس دې.يعنی لکه څنګه چه د پښو په وينځلو کښې دګوتو نه شروع کول مستحب ده. دغه شان د موزو په مسح کښې هم د ګوتو نه شروع کول مستحب دی.

## په مسح کښې فرض مقدار

| وَفَرْضُ ذٰلِكَ مِقْدَارُ ثَلَاثِ أَصَابِعَ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدِ او ددې فرض د لاس په ګوتو کښې د درې ګوتو په اندازه دی |
|---|

**تشريح** **قدر المفروض** صاحب د هدايه ﷫ فرمائيلي دی ① چه د درې ګوتو په مقدار باندې مسح کول فرض ده.خو په دې کښې اختلاف دې.چه د پښو ګوتے معتبرے دی اوکه د لاسونو.نو د عامو عالمانو مذهب دا دې.چه د لاسونو ګوتے معتبرے دی.

## د موزې د څيرې والی په صورت کښې د مسح حکم

| وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ اوجائزنه دی مسح کول عَلٰى خُفٍّ فِيهِ خَرْقٌ كَبِيرٌ په داسې موزو باندې چه په هغې کښې زيات څيرے والے وی يُبَيِّنُ مِنْهُ قَدْرَ ثَلَاثِ أَصَابِعِ الرِّجْلِ چه په هغې کښې د پښو په ګوتوکښې درې ګوتے ښکاری فَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ اوکه ددې نه کم وی جَازَ نوجائز ده |
|---|

**حل اللغة** ①لايجوز، جاز جوازًا(ن): روا کيدل ②خف: موزه ③ خرق: شليدلې ④ كثير: ډير ⑤ اصابع: ګوتې ⑥ رجل: پښې انکشف انکشافًا: ښکاره کيدل

**تشريح** **المسح عند الخرق** که په موزه کښې څيرے والے وی.نوکه کم وی.نومسح جائز ده.اوکه زيات وی.نومسح جائز نه ده.

**دليله** دليل دادې.چه موزه عام طور د لږ څيريوالی نه خالی نه وی.نوکه د لږ څيريوالی په صورت کښې د وينځلوحکم ورکړو.خلق به په مشقت کښې واقع شی.نوکه په دې کښې معمولی څيريوالے وی.نوهغه به معاف وی.اود خرق کثيرنه عام طور موزے خالی وی.نو په دې صورت کښې د موزو په ويستلوکښې حرج نشته.نوځکه دا خرق کثير معاف نه دې.

**الأقوال الثلاثة في معيارخرق القليل والكثير** باقی پاتې شوه دا خبره چه د خرق قليل اوكثير معيار څه څيزدې.نو په دې باره کښې صاحب د هدايه ﷫ فرمائی.

①که د پښو د درې وړوګوتوپه مقدار موزه کهولاو شوه.يا ددې نه زياته نو دا خرق كثير دې.اوکه ددې نه کمه وی.نو دا خرق قليل دې.او دا قول زيات صحيح دې.

② اوحسن بن زياد د امام اعظم ﷫ نه روايت کړې دې.چه د لاس ګوتے معتبر دی.

③ اوامام شمس الائمه حلوانی ﷫ فرمائی.که څيريوالے په غټو ګوتو وو.نوغټے ګوتے معتبر دی.اوکه په وړو ګوتو وو.نو وړے ګوتے معتبردی.

**دليل القول الأصح** دقول اصح دليل دا دې.چه په پښوکښې اصل ګوتے دی.که يوکس د بل کس د پښوګوتے

کټ کړلي.نوپه هغه باندې پوره دیت واجبیږي.نو په پښه کښې اصل ګوتې دي.او په پنځو کښې درې اکثرے دي.اود اکثر دپاره حکم د کل دې.نودرې ګوتې به د کل قائم مقام شي.نوچه درې ګوتې ښکاره شي.دا داسې شوه.لکه چه ټوله پښه ښکاره شوه.او په ګوتو کښې د وړو اعتبار داحتیاط د وجے شوې دې.یعنی په دې کښې د غټو ګوتو په نسبت احتیاط زیات دې.اوکه په موزه کښې داسې سورے وي.چه په هغې کښې درې ګوتې ننوځي.لیکن د مزل په وخت کښې پښه نه ښکاري.نوددې څه اعتبار نشته.یعنی په داسې موزه باندې مسح کول جائز ده.

**إعتبار الخرق في خف واحد**< صاحب د هدایه رحمه الله فرمائي.چه مقدار به په هره موزه کښې جدا جدا معتبر وي. که په یوه موزه کښې ګڼ واړه واړه سوري راجمع کړې شي.اوهغه د درې ګوتو مقدار ته رسي.نو مسح پرے جائز نه ده.اوکه په دوو موزو کښې واړه واړه سوري اوشي.نودهغې اعتبار نشته.یعنی د دوو موزو سوري که د درې ګوتو مقدار ته اورسي. نومسح پرے بیاهم جائز ده.څکه چه په یوه موزه کښې سورے په بله موزه کښې د سفر کولو نه مانع نه دې.

**دجنب دپاره دمسح عدم جواز**

| وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ اوپه موزو باندې مسح جائز نه ده. لِمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْغُسْلُ دهغه کس دپاره چه غسل پرے واجب وي |
|---|

**حل اللغة** < وجب وجوبًا (ض) واجب کیدل

**تشریح**< **عدم جوازالمسح للجنب**< مسئله دا ده.چه په کوم کس غسل واجب وي.نو د هغه دپاره په موزو باندې مسح کول جائز نه ده.صورت دمسئلې دا دې.چه یوکس اودس اوکړلو.او مونځ ئې اوکړلو.بیا دے جنب شو.خو ده ته دومره اوبه ملاویدې.چه ده پرے اودس کولے شو.خو غسل ئې نشو کولې.نودے به د غسل دپاره تیمم اوکړي.او د اودس دپاره به دغه اوبه استعمال کړي.او پښے به اووینځي.مسح کول ورته جائز نه دي.

**دلائله** < ① د حضرت صفوان بن عسال رضي الله عنه حدیث دې.په هغې کښې ذکر دي.چه د جنابت په حالت کښې د دواړو موزو ویستل او دهغې وینځل ضروري دي.څوکه اودس د متیازو یا خوب د وجے مات شوې وي.نو په دې صورت کښې د موزو ویستلو ضرورت نشته.بلکه مسح پرے جائز ده.

② عام طور جنابت مکرر نه وي.بلکه کله کله دجنابت موقع پیښیږي.او حدث باربار پیښیږي. نو د جنابت په صورت کښې په موزو ویستلو کښې حرج نشته.نومسح جائز نشوه. اود حدث په صورت کښې په بار بار موزو ویستلو کښې حرج شته.اودا خبره معلومه ده.چه مسح علی الخفین د حرج د دفع کولو دپاره مشروع شوې ده.نوچه په کوم ځائې کښې په موزو ویستلو کښې حرج نه وي. هلته به موزے ویستل او د پښو وینځل فرض وي.مسح به جائز نه وي

**د مسح نواقض**

| وَيَنْقُضُ الْمَسْحَ او مسح ماتوي مَايَنْقُضُ الْوُضُوءَ کوم څیز چه اودس ماتوي |
|---|

**حل اللغة** < ینقض، نقض نقضًا (ن) ماتول

**تشریح** < **ورود ناقض الوضوء** < امام قدوري رحمه الله فرمائي.چه کوم څیزاودس ماتوي.هغه مسح هم ماتوي.

**دليله**>ځکه چه مسح على الخف د اودس جزء دي.اوکوم څيز چه دکل دپاره ناقض وی.د جزء دپاره به په طريقه اولى سره ناقض وی.

| وَيَنْقُضُهُ أَيْضًا نَزْعُ الْخُفِّ اودد موزے ويستل هم مسح ماتوی |
|---|

**تشريح**> **خروج الخفين**>اودموزے ويستل هم ناقض دی.ځکه چه موزه د حدث دپاره مانع وه.اوچه موزه اووتله.نو مانع ختم شو.او حدث سرايت اوکړلو. او مسح ماته شوه.

**دليله**>دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روايت دي.چه دوی په يوغزا کښې وو.نبی ﷺ موزے اوويستلې. اوپښے ئې اووينځلې.اود باقی اودس اعاده ئې اونکړله .دغه شان د نورو صحابه کرامو نه هم منقول دی.

**خروج إحد الخفين**>دغه شان که په دواړو موزو کښې يوه اووتله.نودواړه موزے به اوباسی.او پښے به اووينځی.او مونځ به اوکړی.

**دليله**>دليل دا دې.چه د غسل او مسحے دواړو په يو عبادت کښې جمع کول متعذر دی.نو بله موزه به هم اوباسی.اودواړه پښے به اووينځی.

**دموده تيريدل اوموزے ويستل**

| وَمُضِيِّ الْمُدَّةِ او د مسحے د مودے تيريدل (مسح ماتوی) |
|---|

**حل اللغة**> ① مضى: تيريدل

**تشريح**> **نقض المسح بمضي المدة** > مسئله دا ده.چه د مسح د موده په تيريدو باندې هم مسح ماتيږی.دليل حديث سابق دی.يعنى دنبی ﷺ قول[يمسح المقيم يوما وليلة والمسافر ثلاثة أيام ولياليها]

| فَإِذَا مَضَتِ الْمُدَّةُ اوکله چه موده پوره شی نَزَعَ خُفَّيْهِ نو دواړه موزے به اوباسی وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ او دواړه پښے به اووينځی وَصَلّٰى او مونځ به اوکړی وَلَيْسَ عَلَيْهِ إِعَادَةُ بَقِيَّةِ الْوُضُوْءِ او په ده باندې د باقی اودس راګرځول نشته |
|---|

**تشريح**> **ما يفعل بعد مضي المدة**>کله چه موده د مسحے پوره شی.نو موزے به اوباسی.اوپښے به اووينځی.اود باقی اودس راګرځول واجب نه دی.خو په دې شرط چه بل ناقض موجود شوی نه وی.

**دلائله** > ① دليل دا دې.چه حدث نوم دے د نجاست د وتلو او دمسحے موده تيريدل داسې نه دی.نويوپه بل باندې قياس کول قياس مع الفارق دی.

② دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ په اثر سره هم ښکاره کيږی.چه دوی په يوه غزا کښې وو.دوی موزے اوويستلې.او صرف پښے ئې اووينځلې.او باقی اودس ئې اونکړلو.

**نقض المسح إخراج الخفين قبل المدة**>اوهم دا حکم په هغه صورت کښې دی.چه دمودے د ختميدو نه وړاندې ده په خپله موزے اوويستلې.يعنى په دې صورت کښې به هم صرف پښے وينځی.د اودس راګرځولو حکم نشته.

**دليله**>اودليل دا دې.چه د موزو ويستلو په وخت کښې سابقه حدث قدمونو ته سرايت اوکړلو.نودا داسې شوه چه ده هډو دواړه پښے وينځلے نه وې.

## مقيم چه مسافرشي نو د مسح حکم

| وَمَنْ ابْتَدَأَ الْمَسْحَ وَهُوَمُقِيمٌ او کوم کس چه په حالت د اقامت کښې مسح شروع کړله فَسَافَرَقَبْلَ تَمَامِ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ اوبيا د يوے ورځې او شپې پوره کيدو نه وړاندې مسافر شو مَسَحَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهَا نو درې ورځې اودرې شپې به مسح کوی |
|---|

**حل اللغة**> ①ابتداء ابتداءً: شروع کول ② تمام: پوره کيدل ③سافر، مسافرة: سفرکول

**تشريح**> **الصور الثلاثة للمسئلة**> ددې مسئلې درې صورتونه دی. ①يودا چه په کوم حالت کښې ئې موزے اچولے وې.دهغې د ماتيدو نه وړاندې ئې سفر شروع کړلو.او بيا په حالت د سفر کښې د څه ناقض د وجے د ده مسح ماته شوه.نو په دې صورت کښې به په اتفاق سره موده د اقامت موده د سفر ته منتقله شی.يعنی درې ورځې او درې شپې به مسح کوی.

② چه دحدث نه پس اود مسحے د مودے پوره کيدو نه پس سفراوکړی.نو په دې صورت کښې په اتفاق سره موده د اقامت مودے د سفر ته نه منتقل کيږی.يعنی په دې صورت کښې به د يوے ورځې اويوے شپې پوره کيدو نه پس موزے اوباسی.

③ چه سفرشروع کړی. د حدث نه پس اود اقامت دمودے پوره کيدو نه وړاندې.نو په دې صورت کښې به زمونږ په نيز موده داقامت مودے د سفر ته منتقل کيږی.يعنی درې ورځې او درې شپې به مسح کوی.

**دلائله**> ①دليل د رسول الله ﷺ د قول [يمسح المقيم يوما وليلة والمسافر ثلاثة أيام ولياليها] اطلاق دې.يعنی دهر مسافر دپاره درې ورځې او شپې د مسحے اجازت دې.اوچونکه دے هم مسافر شو.نوده ته به هم دمسحے کولو اجازت وی.

② دويم دليل دا دې.چه دمسحے حکم د وخت سره متعلق دې.او دکوم څيز حکم چه دوخت سره متعلق وی.په هغې کښې به د آخری وخت اعتبار وی.

**النظيران له**> ①لکه حائضه چه په آخری وخت کښې پاکه شی.نو د دغه وخت قضاء به راوړی.اودغه شان که پاکه ښځه په آخری وخت کښې حائضه شی.نود دغه وخت مونځ ساقط شو.

②دغه شان که مسافر په آخر وخت کښې مقيم شو.نوپوره مونځ به کوی.اوکه مقيم په آخری وخت کښې مسافر شو.نو قصر به کوی.نوهرکله چه آخری وخت معتبر شو.نومقيم چه د اقامت د مودے پوره کيدو نه وړاندې سفر شروع کړی.نو دسفر موده به پوره کوی.

**عکس صور المتن**> په خلاف چه ده د اقامت يوه ورځ او شپه د مسحے موده يوه ورځ اويوه شپه پوره کړې وی.اوبيا سفر شروع کړی.نودے به د سفر موده نه پوره کوی.ځکه چه حدث خو قدم ته سرايت کړې دې.او موزه خو رافع د حدث نه ده.نو د رفع د حدث دپاره به د پښو وينځل ضروری وی.

## مسافرچه مقيم شی

| وَمَنْ اِبْتَدَءَ الْمَسْحَ وَهُوَمُسَافِرٌ اوڅوک چه شروع کړی په مسح او دې مسافروی ثُمَّ أَقَامَ بيا مقيم شی فَاِنْ کَانَ مَسَحَ يَوْمًا وَلَيْلَةً نو که مسح ئې کړی وی يو ورځ او يوشپه أَوْأَكْثَرَ او يا زيات لَزِمَهُ نَزْعُ |
|---|

خُفَّيْهِنولازمیږی په ده باندې ویستل د دواړوموزوخپلو وَاِنْ كَانَ اَقَلَّ مِنْهُاوکه مسح ئې کمه کړی وی د دې نه تَمَّمَ مَسْحَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍنوپوره دې کړی مسح د یوې ورځې اوشپې

**تشریح> حکم مسح المسافر إذا أقام>** په دې عبارت کښې داولنی صورت عکس دې تفصیل په هغې کښې تیر شوی دې

## په جرموقینو باندې دمسحې حکم

وَمَنْ لَبِسَ الْجُرْمُوْقَ فَوْقَ الْخُفِّاوچا چه په موزه باندې جرموق واچولې مَسَحَ عَلَيْهِنوپه جرموق به مسح کوی

**حل اللغة>** ①لبس لبسًا(س) اغوستل ②جرموق: ینځه ③ خف: موزه

**تشریح> تعریف الجرموق>** جرموق هغه موزه ده.چه په موزو باندې دپاسه اچولې شی .چه موزه دختو نجاست وغیره نه بچ کوی.او دجرموق ساق د موزې دساق نه ورکوټې وی.

**في المسح علي الجرموق>** زمونږ په نیز موزو دپاسه په جرموق باندې مسح کول جائز ده.

**دلائله>** ① دلیل دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما حدیث دې.فرمائی.[رأیت رسول الله ﷺ یمسح علی الجرموقین] (۱) یعنی ما رسول الله ﷺ لیدلې وو.چه په جرموقینو ئې مسح کوله.

②عقلی دلیل دا دې.چه په استعمال او غرض کښې جرموق د موزې تابع وی.په استعمال کښې خو ددې وجې چه جرموق د موزې سره وی.اوپه غرض کښې دے وجے چه جرموق دموزے دحفاظت دپاره وی.لکه څنګه چه موزه دپښې د حفاظت دپاره وی . نو په موزه به جرموق داسې وی.لکه ډبله موزه شوه.اود ډبلې موزې په پورتنی طرف باندې مسح کول په اتفاق سره جائز ده.نودموزو دپاسه چه کومې جرموقین وی.په هغې به هم مسح جائزوی.

## په جورابوباندې د مسح حکم

وَلَا يَجُوْزُ الْمَسْحُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ عِنْدَ اَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُداامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په جوربینوباندې مسح کول جائز نه ده اِلَّا اَنْ يَكُوْنَا مُجَلَّدَيْنِ اَوْمُنَعَّلَيْنِمکردا چه هغه مجلدې یا منعلې وی

**حل اللغة>** ① جوربین: جورابې

**تشریح> قسمي الجورب>** مجلده هغه ده.چه دهغې لاندې اوپورته چمړه لګیدلې وی. اومنعله هغه ده.چه دهغې لاندې چمړه لګیدلې وی.د مسح علی الجوربین درې صورتونه دی.

**الصورالثلاثة للمسح علي الجوربين>** ①چه هغه د ډبلې کپړې وی.اومنعله او یا مجلده وی. په دې صورت کښې په اتفاق سره په جوربینو مسح جائزده.

② چه نه د ډبلې کپړې وی.اونه منعله وی.نو په دې صورت کښې په اتفاق سره پرې مسح جائز نه ده.

③ چه د ډبلې کپړې وی.خومنعله نه وی.نو په دې صورت کښې پرے د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مسح جائزنه ده.

---

۱) من حدیث عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه اخرجه أبوداود في الطهارة باب ٦٠ رقم ١٥٣)۔

**دليله** ﴿اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي.چه جورب په موزے پورې ملحق کول په هغه وخت کښې ټيك دی.چه جورب من كل الوجوه د موزے په معنى كښې وی.حالانكه جورب د موزے په معنى كښې نه دی.خکه چه موزے واچوی.نو مسلسل تگ په کښې ممکن دې.او په جورابوکښې مسلسل تگ کول ممکن نه دي.البته كه جوراب منعلے وی.نوچونکه په هغې کښې مسلسل تگ کول ممکن دې.نوخکه پرے مسح جائزده.

په ذکرشوی دريم صورت کښې دصاحبينو رحمهما الله په نيز مسح جائز ده.

**دلائلهما** ﴿ ① دليل د حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه حديث[أن النبي ﷺ مسح على الجوربين](۱) دي. چونكه حديث مطلق دې.نوپه مطلق جورب باندې به مسح جائزوی.كه منعله وی اوكه غير منعله وی.

② عقلى دليل دا دې.كه جوربين د داسې ډبلے کپړې وی.چه بغير د تړلو نه په پنډئ باندې ايساريږی. اوپه هغې کښې مزل کول اوسفر كول ممكن وی.نودا جوربين د موزو مشابه شوې.نولكه خنگه چه په موزو مسح جائزده.دغه شان به په دې هم جائزوی.

**الجواب عنه** ﴿اود ابوموسى اشعرى رضي الله عنه دحديث محمل هم دا دې.چه هغه جوراب منعلےوی.

**رجوع أبي حنيفة إلي قول الصاحبين** رحمهما الله ﴿اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې.چه دوی د مرض الوفات نه اووه ورځې يا درې ورځې وړاندې په جوربين غير منعلين باندې مسح کړې ده.اوچه کوم حضرات د بيمارپرسئ دپاره ورغلی وو.هغوی ته ئې اوفرمائيل: [فعلت ما كنت أمنع الناس عنه] ما چه به خلق د کوم كار نه منع كولو.هغه كار مے په خپله اوکړلو.ددې نه معلومه شوه.چه امام ابوحنيفه رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله قول ته رجوع کړې ده.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه فتوی په دې مرجوع اليه قول باندې ده.

**په څه باندې مسح جائز نه ده**

| وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ اومسح جائزنه ده عَلَى الْعِمَامَةِ په پټکی باندې وَالْقَلَنْسُوَةِ په ټوپئ باندې وَالْبُرْقَعِ په بورقه باندې وَالْقُفَّازَيْنِ او په دستانوباندې |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① عمامة: پټکې ② قلنسوة: ټوپئ ③ برقع: برقعه ④ قفازين: دستانې

**تشريح** ﴿ **المسح علي العمامة** ﴿ ① په پټکی په ټوپئ په بورقه او په دستانوباندې مسح کول جائزنه ده.

**دلائله** ﴿ ① احناف علماء كرام په آيت قرآنی باندې استدلال کوی.چه ﴿وامسحوا برؤسكم﴾ دا قطعي دې.او د پټکی دمسحے احاديث اخبار احاد دی.اوپه هغې باندې په كتاب الله زيادت ممكن نه دې.په خلاف د مسح على الخفين خكه چه اول خود قرآن كريم د "جر" په قرات کښې دے طرف ته اشاره ملاويږی.يعنى وارجلكم چه په وامسحوا باندې عطف شی.او مجرور اووئيلی شی.نومعنى به دا شی .چه په پښو باند ے مسح کوئ.اودا خبره معلومه ده. چه بغير د موزو نه په پښو مسح كول جائز نه دی.نوپه قرات دجر باندې د عمل كولو دپاره دا وئيلی شی.چه دا قرات د موزو په صورت باندې محمول دې.يعنى كله چه تاسو موزے په پښوکړی وی.نو مسح كوئ.اوبله دا چه د مسح على الخفين احاديث متواتر دی.نو په دې سره په كتاب الله باندې زيادت جائز دې.

---

(۱) من حديث مغيرة بن شعبة رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الطهارة باب ٦٢ رقم ١٥٩ والترمذي في الطهارة باب ٧٤ وابن ماجه في الطهارة باب ٨٨ رقم ٥٥٩ )_

④ په موزو باندې د مسحې کولو رخصت د حرج لرې کولو دپاره ثابت دې.او ددې څيزونوپه لرې کولو کښې څه حرج نشته.نوځکه په دې څيزونو مسح کول جائز نه ده.

**په پټو باندې د مسحې کولو حکم**

| وَيَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَى الْجَبَائِرِ اومسح جائزده په پټو باندې وَإِنْ شَدَّهَا عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ اګرکه هغه ئې بغير د اودس نه تړلې وی |
|---|

**حل اللغة** ① جبائر واحد جبيرة: پټئی ② شد شدة (ض) سختيدل، تړل

**تشريح** **تعريف الجبيرة** جبائر د جبيرة جمع ده.او جبيره هغه لرګی ته وائی.چه په مات شوی هډوکی پورې تړلې شی.

**جوازالمسح علي الجبيرة** قاضی خان فرمائی.چه په جبيره باندې به د مسحې کولو اجازت په هغه وخت کښې وی.چه په زخم باندې مسح کول تکليف ورکوی. اوکه په زخم باندې مسح کول تکليف نه ورکوی.نوپه جبيره به مسح نه کوی. حاصل دا چه په جبائر به مسح کوی.اګرچه بغير د اودس نه ئې تړلې وی.

**دلائله** ①دليل دا دې.چه جبيره تړلې شی.په وخت د ضرورت.اوپه هغه وخت کښې د طهارت شرط لګول مفضی الی الحرج دې.نوځکه د طهارت شرط اونه لګيدلو.او په دې باره کښې اصل دا دې. چه نبی ﷺ په خپله هم په جبيره باندې مسح کړې ده.

② د احدپه ورځ چه کله د حضرت علی رضی الله عنه د لاس مروند مات شو.نونبی ﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته په جبيره باندې د مسحې کولوحکم کړې وو.(۲)

صاحب د عنايه پوره واقعه داسې ليکلې ده.چه حضرت علی رضی الله عنه د نبی ﷺ جنډه په لاس کښې نيولې وه.چه کله دحضرت علی رضی الله عنه لاس مات شو.او جنډه اوغورځيدله.نونبی رضی الله عنه اوفرمائيل.جنډه په ګس لاس اونيسه.ځکه چه علی په دنيا او آخرت کښې زما د جنډې مالك دې.حضرت علی رضی الله عنه عرض اوکړلو.[ما أصنع بالجبائر] په پټو باندې څه اوکړم.نبی عليه السلام ورته اوفرمائيل: [إمسح عليها] په پټو مسح کوه. په دې حديث کښې ددې څه تفصيل نشته.چه پټئ ئې په طهارت تړلې وه اوکه بغير د طهارت نه.نومعلومه شوه.چه په مطلق جبيره باندې مسح کول جائز ده.که په طهارت ئې تړلې وی.اوکه بغير دطهارت نه.

③عقلی دليل دا دې.چه د موزې په ويستولو کښې چه څومره حرج وی.نو د جبيره په لرې کولوکښې دهغې نه زيات حرج وی. نو هرکله چه د حرج لرې کولو د وجې په موزو مسح جائزشوه.نو په جبائرو خوبه په طريق اولی سره جائزوی.

**حکم المسح علي بعض الجبيرة وفصلها** باقی پاتې شو ددې حکم که په بعضې جبيره باندې ئې مسح کړې وی اوپه بعضې نه وی کړې.نودا به کافی کيږی که نه ؟ نو په دې باره کښې ظاهر روايت کښې څه ذکر نشته.البته د حسن رحمه الله په امالی کښې دی.چه په اکثره جبيره ئې مسح اوکړله.نوجائز به شی.اوکه د نصف يا ددې نه په کمه ئې مسح اوکړله.نوکافی به نه وی.

---

۲) حديث علی رضی الله عنه أخرجه الدارقطنی فی سننه (۱\۲۲۶)۔

**عدم التوقيت للمسح علي الجبيرة>** په جبيره باندې د مسحے کولو دپاره څه موده مقرر نه ده.بلکه د زخم د ښه کیدو پورې به په دې مسح کوی.ځکه چه د مسح علی الجبیره د تحدید په باره کښې څه حدیث وارد نه دې.

| وَإِنْ سَقَطَتْ مِنْ غَيْرِبُرْءٍاوکه جبیره د ښه کیدو نه بغیر پریوتله لَا يَبْطُلُ الْمَسْحُ نومسح نه باطلیږی وَإِنْ سَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ اوکه په ښه کیدو سره اوغورځیدله بَطَلَ نو مسح باطله شوه |
|---|

**تشريح>** په دې عبارت سره په مسح علی الجبیره او مسح علی الخفین په مینځ کښې فرق کولو ته هم اشاره اوشوه.

**الفرق بين المسح علي الجبيرة والمسح علي الخفين>** ①ځکه چه په مسح علی الخف کښې وخت مقرر دې.او په مسح علی الجبیره کښې وخت مقرر نه دې.

② دویم فرق دا دې.چه مسح علی الجبیره بغیر دطهارت نه هم جائز ده.لیکن مسح علی الخف بغیر د طهارت نه جائز نه ده

③ دریم فرق دا دې.که جبیره د زخم د ټیك کیدو نه بغیر پریوتله.نومسح نه باطلیږی.په خلاف د موزے د مسحے ځکه که هغه د پښے نه اووتله.نومسح به باطله شی.

**دليله>**دلیل دا دې.چه عذر باقی دې.اوچه ترکومے پورې عذر باقی وی.نوپه جبیره باندې مسح کول داسې دی. لکه ددې د لاندې حصې وینځل.تردے که په یوه پښه باندې جبیره وی.اوپه هغې نې مسح کړې وی.نوچه بلے پښے ته موزه واچوی.نوپه هغه موزه باندې مسح کول جائز نه ده.ددې دپاره چه په غسل او مسح کښې جمع لازم نشی.اوکه جبیره پریوتله د زخم ښه کیدو په وجه نو مسح علی الجبیره به باطله وی.ځکه چه د کوم عذر د وجے مسح علی الخفین جائز وه.هغه عذر زائله شو.

**فساد الصلاة بسقوط الجبيرة فيها>**اوکه جبیره د مونځ په مینځ کښې اوغورځیدله .په داسې حال کښې چه زخم ښه شوې وی.نود اول نه به مونځ شروع کړی.ځکه چه دا کس په بدل باندې د مقصود حاصلولو نه وړاندې په اصل قادر شو.لکه څنګه چه متیمم د مانځه په دوران کښې په اودس قادر شی.نود سر نه به مونځ کوی.

# بَابُ الْحَيْضِ وَالْإِسْتِحَاضَةِ

**ترجمه>** (دا) باب د حیض او استحاضه (په بیان کښې) دې.

**تشريح> ربط الباب بما قبله>**اوس ددې باب د ماقبل سره مناسبت دا دې.چه په ماقبل کښې د هغه احداثو بیان وو.چه هغه کثیر الوقوع وو.او په دې باب کښې دهغه احداثوبیان دې.چه قلیل الوقوع دی.

**هما من الأحداث أوالأنجاس؟>** په دې باره کښې اختلاف دې.چه حیض او نفاس د احداثو نه دی اوکه د انجاسو نه دی.دبعضورائې دا ده.چه دواړه د انجاسونه دی.اود بعضورائې دا ده.چه دواړه د احداثونه دی.دویم زیات مناسب دې.ځکه چه مصنف رحمه الله ددې نه پس باب الانجاس ذکر کړې دې.نوکه دا دواړه د انجاسو د قبیلے نه اومنلے شی.نودا به صرف تکرار شی.

**الإعتراض والجواب>** ليکن دلته سوال دا دی.چه هرکله دواړه په معنی کښې يو دی.نوبيا به ئې په باب د نفاس ذکر کړې وو.اود حيض به ئې نه کولو.داسې ئې ولې اونکړلو.ددې جواب دا دې.چه د حيض وقوع زياته ده په نسبت سره نفاس ته. نو ځکه ئې د حيض ذکر اوکړلو.

**تعريف الحيض وسببه>** حيض په لغت کښې وتونکې وينې ته وائی.او د فقهاؤ په نيزحيض هغه وينه ده.چه د داسې ښځې د رحم نه څی.چه هغه د بيمارئ او ورکوتوالی نه خالی وی.(عنايه فتح القدير)

**سبب بدأ الحيض>** په اول کښې دحيض جاری کيدوسبب دا وو.چه حضرت حواء بی بی د منع شوې ونې نه خوراك اوکړلو.نودهغې نه دا وينه روانه شوه. او تراوسه پورې دا امتحان د هغې په لونړو جاری دې.او ترقيامته پورې به جاری وی.

**وجه عدم ذكر النفاس في الباب>** اوباقی پاتې شوه دا خبره چه په دې باب کښې ئې د نفاس ذکر ولې اونکړلو .حالانکه د نفاس حکم په دې باب کښې مذکور دې. جواب دا دې.چه نفاس د حيض په معنی کښې دې.ځکه چه دحيض ذکر په حقيقت کښې د نفاس ذکر دې.نوچه حيض ئې ذکر کړلو.د نفاس نه مستغنی شو.

**دحيض په کمه موده کښې اختلاف**

| أَقَلُّ الْحَيْضِ دحيض کمه موده ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا درې ورځې او درې شپې دی وَمَا نَقَصَ مِنْ ذَلِكَ اوکوم چه ددې نه کم وی فَلَيْسَ بِحَيْضٍ فَهُوَ اسْتِحَاضَةٌ نوهغه حيض نه دې بلکه هغه به استحاضه وی |
|---|

**حل اللغة>** ① حيض: ماهواری وينه

**تشريح> أقل مدة الحيض>** ① زمونږ په نيز دحيض کمه موده درې ورځې او درې شپې دی.اوکومه وينه چه ددې مودې نه کمه وی.هغه استحاضه ده.

**دليله >** ① زمونږ دليل هغه حديث دې.کوم چه ابوامامه باهلی، رضي الله عنه عائشې رضي الله عنها ، عاتکې رضي الله عنها ،انس رضي الله عنه او ابن عمر رضي الله عنه روايت کړې دے[أنه ﷺ قال أقل الحيض للجارية البكر والثيب ثلاثة أيام ولياليها وأكثره عشرة أيام] هم دا مدت د حضرت عمر، علی، ابن مسعود، ابن عباس ، عثمان، ابن ابی العاص،اوانس بن مالك رضي الله عنه نه منقول دې.او ددې حضراتوروايت داسې دې.لکه چه د نبی ﷺ نه روايت دې.ځکه چه په مقاديرو کښې د قياس څه دخله نه وی.نو دے حضراتوبه د نبی ﷺ نه اوريدلے وی. او د حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه د حديث الفاظ دا دی [لاحيض دون ثلاثة أيام ولا فوق عشرة أيام]

② **مذهب ابي يوسف رحمه الله >** د امام ابويوسف رحمه الله په نيز دوه ورځې د دريمې ورځې اکثره حصه موده د حيض ده

**دليله>** ځکه چه اکثر قائم مقام د ا کل ده اوپه دې قاعده باندې عمل کوی چه ((للأكثر حكم الكل))[1]

**دحيض اکثره موده**

| وَأَكْثَرُهُ اود حيض اکثره موده عَشَرَةُ أَيَّامٍ لس ورځې دی وَمَا زَادَ عَلَى ذَلِكَ اوکومه چه په دې باندې زياته وی فَهُوَ اسْتِحَاضَةٌ هغه به استحاضه وی |
|---|

[1] مذهب الشافعي رحمه الله :-د امام شافعی رحمه الله په نيز يوه ورځ او يوه شپه اقله موده د حيض ده.

**حل اللغة**﴿① زائد: زياتى

**تشريح**﴿ **أكثرمدة الحيض**﴿زمونږ په نيز دحيض اكثره موده لس ورځې دي.

**دليله**﴿ دليل هغه حديث دي.كوم چه په مخكنئ مسئله كښې تير شوي دې.يعنى [أكثره عشرة أيام]

**دحيض دويني رنګونه**

| |
|---|
| وَمَا تَرَاهُ الْمَرْأَةُ او هغه چه ښځه ئې وينى مِنَ الْحُمْرَةِ يعنى سرخى، وَالصُّفْرَةِ زيړوالې وَالْكُدْرَةِ او خړوالې، فِي أَيَّامِ الْحَيْضِ په ورځو د حيض كښې فَهُوَ حَيْضٌ نوهغه حيض دې. حَتَّى تَرَي الْبَيَاضَ خَالِصًا تر دے چه خالص سپين والے اووينى |

**حل اللغة**﴿① تراه، راى رؤية(ف): ليدل② حمرة: سرخى ③ صفرة: زيړوالې ④كدرة: خړوالې ⑤ بياض: سپينوالې

**تشريح**﴿ **الوان الحيض**﴿ دحيض رنګونه شپږدى. ① تور ② سور③ زيړ ④ خړ⑤ شين ⑥ خاكى. مصنف رحمه الله د تور رنګ ذكر ځكه اونكړلو.چه په دې كښې ځه اشكال نشته.چه دا د حيض وينه ده. ځكه چه د نبى ﷺ ارشاد دې.[دم الحيض أسود غبيط محتدم] يعنى د حيض وينه توره تازه او تكه سره وى. په حديث كښې د غبيط معنى د تازه ده.او د محتدم معنى ده تكه سره.سور رنګ چه كله ډير سور شى. نو هغه توروالى ته مائل شى.اود خاكى رنګ ذكر ئې ځكه اونكړلو.چه دا خړ رنګ ته نزدے دې. نود خړ رنګ سره د خاكى رنګ ذكر هم اوشو. حاصل دا چه تور او سور رنګ په اجماع سره د حيض وينه دد.او تك شين رنګ په اصح قول سره حيض دې.

**اللون المكدر**﴿اود طرفينو رحمهما الله په نيز د خړ رنګ وينه حيض دې.كه دحيض په اولوورځو كښې وى اوكه په آخرى ورځو كښې وى

**دليله**﴿ دليل دا دې.چه حضرت عائشې رضي الله عنها د خالص سپينوالى نه علاوه نور ټول رنګونه حيض ګرځولې دې. امام مالك رحمه الله په خپل موطا كښې حديث بيان كړې دې.[عن علقمة بن ابى علقمة عن أمه مولاة عائشة ام المومنين أنها قالت كان النساء يبعثن إلى عائشة بالدرجة فيها الكرسف فيه الصفرة من دم الحيض يسألنها من الصلاة فتقول لهن لا تعجلن حتى ترى القصة البيضاء] حضرت علقمه بن ابى علقمه رحمه الله دخپلے مور نه چه هغه د ام المومنين حضرت عائشې رضي الله عنها آزاده شوې وينزه وه.روايت كوى.چه ښځويه حضرت عائشې رضي الله عنها ته ډبى راليږل.په هغې كښې به د حيض په وينه باندې رنګ شوې كپړه وه.دغه ښځو به د مونځ په باره كښې تپوس كولو.نوحضرت عائشې رضي الله عنها به ورته فرمائيل: تاسو جلتى مه كوئ.ترڅوچه مو خالص سپينوالے نه وى ليدلې.ددې حديث نه هم ثابته شوه.چه د سپين رنګ نه علاوه باقى نور ټول رنګونه د حيض دى.اوښكاره ده.چه حضرت عائشې رضي الله عنها چه ځه كولو.اوځه ئې فرمائيل:هغه به ئې د رسول الله ﷺ نه اوريدلى وى

**كون اللون الأخضر من الحيض**﴿ اوباقى پاتې شوه د شين رنګ وينه نو په دې باره كښې صحيح قول دا دې.كه ښځه د ذوات الحيض نه وى.يعنى د داسې عمر وى. چه حيض ئې راځى.نوددې د وينے د شين رنګ به حيض وى.او په دې به حمل كولې شى.چه ددې خوراك په هضم كښې ځه خرابى ده.چه په

هغې سره ددې د وینې رنګ شین شوې دې.(لکه څنګه چه په بعضې وخت کښې خیټه خرابه شی.او د غټو بولو رنګ بل شان شی.

**په حیض باندې د روژې او مونځ ساقط کېدل**

وَالْحَيْضُ يُسْقِطُ اوحیض ساقطوی عَنِ الْحَائِضِ الصَّلَاةَ دحائضې نه مونځ کول وَيُحَرِّمُ عَلَيْهَا الصَّوْمَ او په دې باندې روژه نیول حراموی وَتَقْضِي الصَّوْمَ اوحائضه ښځه به د روژوقضاء راوړی وَلَا تَقْضِي الصَّلَاةَ اود مونځونو قضاء به نه راوړی

**حل اللغة**> ① یسقط، اسقط اسقاطاً: غورزول ② یحرم، حرم تحریماً: حرام کوم ③ تقضی قضی یقضی قضاءً: قضا کول

**تشریح**> **سقوط الصوم والصلاة**> ددې خائې نه د حیض د احکامو بیان دې. په نهایه کښې لیکی. چه دحیض په باره کښې دولس احکام دی.اته خوداسې دی.چه په هغې کښې حیض اونفاس مشترك دی. اوڅلور داسې دی.چه په هغې کښې حیض خاص دې.په دغه اتوکښې یو مونځ پریخودل او قضاء نې نه راوړل دی.بل دروژې پریخودل اوبیا قضاء راوړل دی.یعنی دحائضه ښځې نه مونځ ساقطیږی. او ددې قضاء پرې نشته.او روژه ترې ساقطیږی.خو دهغې قضاء پرې شته.

**دلائله**> ① دلیل دا دې.چه حضرت عائشه ﷺ فرمائی.چه په مونږ زنانو کښې به څوك د رسول الله ﷺ په زمانه کښې پاکه شوه.نود مونځونو قضاء به نې نه راوړله.اود روژو قضاء به نې راوړله.

②عقلی دلیل دا دې.چه د مونځونوپه قضاء کښې حرج دې.څکه چه هغه دوچنده کیږی.اود روژو په قضاء کښې حرج نشته.یعنی که په ټول کال کښې د یوې ښځې نه دحیض د وجې مثلاً لس روژې پاتې شی.نوپه باقی یوولسو میاشتوکښې به د هغې قضاء راوړی.اومونځ داسې نه دې.څکه روزانه پنځه مونځونه فرض دی.نوچه د پاکۍ راتلو نه پس دا روزانه د پنځو وختونو مونځونو قضاء راوړی .نو روزانه لس مونځونه شو.پنځه قضاء او پنځه ادې.نو داسې په دې باندې دوچنده مونځونه شو.اوحیض خو په هره میاشت کښې راځی.نوښکاره خبره ده.چه په دې کښې حرج اوتکلیف دې.اوالله تعالی د خپلوبندګانونه تکلیف لرې کړې دې. فرمائی.﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ﴾ نوځکه په حائضه ښځه باندې د مونځونو قضاء نشته.

**الإعتراض والجواب**>دلته کښې یواشکال راځی.چه وجوب قضاء موقوفه ده په وجوب ادا باندې.څکه چه قضاء خلیفه دې د ادې.اوخلیفه په هغه سبب باندې واجبیږی.په کوم سبب چه اصل واجب شوې وی.نوهرکله چه په حائضه باندې د روژې نیول واجب نه دی.نودغه شان پرې دروژې قضاء هم پکار ده چه.واجب نه وی.ددې جواب دادې.چه قاعده خوهم دا ده. لیکن د روژې قضاء خلاف القیاس په نص سره ثابته شوې ده.نوځکه روژې قضاء راوړلې شی.

**جمات ته د داخلیدو ممانعت**

وَلَا تَدْخُلُ الْمَسْجِدَ اوحائضه به جمات ته نه داخلیږی

**حل اللغة**> ① لاتدخل، دخل دخولاً (ن): داخل کیدل ②جنب: جنبی ③لاحل احلالاً: حلال کیدل ④عبور: پورې وتل ⑤مرور: تیریدل ]

**تشریح**> دخول المسجد بطريق المرور> دريم حكم دا دي.چه حائضه به جمات ته نه داخليږي.او دغه شان حكم د جنب هم دي.

**دليله**>دليل د حضرت عائشې رضي الله عنها حديث دي.چه [أن النبي ﷺ قال وجهوا هذه البيوت عن المسجد فإني لا أحل المسجد لحائض ولا جنب](۱)چه نبي ﷺ فرمائيلي دي.د كورونو دروازے دجمات نه واړوئ. ځكه چه زه جمات د حائضے او جنب دپاره نه جائزكوم.

يعنى چه ستاسو د كورونو دروازے جمات طرف ته وي.نوښكاره خبره ده.په بعضي وخت كښې سړي جنب وي.يا دغه شان ښځه حائضه وي.چونكه چه دروازه جمات طرف ته وي.نوتك راتك به هم په جمات وي.چونكه جمات دالله تعالى كور دي.اومقدس مقام دي.نوتاسو ځكه منع كوم.چه دا دروازے د جمات نه واړوئ.ځكه چه په حالت د جنابت اوحيض كښې ستاسو تيريدل هم جائزنه دي

**د طواف او وطي كولو حرمت**

| وَلَا تَطُوفُ بِالْبَيْتِ اوحائضه به دخانه كعبے نه به طواف نه كوي |
|---|

**حل اللغة**> ① لاتطوف، طاف طوافًا (ن): طواف كول، راتاويدل ]

**تشریح**> حرمة الطواف وعلتها>څلورم حكم دا دي.چه حائضه به د بيت الله نه طواف نه كوي. دليل دا دي .چه خانه كعبه په مسجدحرام كښې ده.او د حائضے دپاره جمات ته داخليدل جائز نه دي.نوطواف هم جائز نشو.

**تضعيف العلة**>علامه نجم الدين زاهدي رحمه الله فرمائي.چه دحرمت طواف دپاره په دي علت كښې ضعف دي.ځكه چه ددي تقاضا دا ده.چه دحائضے دپاره طواف ځكه ممنوع دي.چه د خانه كعبه په جمات كښې ده.اود حائضے دپاره جمات ته داخليدل ناجائزدى.نوطواف هم ناجائزشو.كه دا علت وي.نويكار دا وه.كه حائضه د جمات نه بهر وي.او خانه كعبے نه طواف كوي.چه دا طواف صحيح وي.ليكن ددي دپاره طواف مطلقاً ناجائزدي.كه د مسجد حرام نه بهر وي اوكه دننه.حالاتكه د پاكې ښځې دپاره د مسجد نه بهر طواف كول جائز دى.

**العلة الصحيحة**>نوځكه زيات مناسب دا وه.چه د حرمت طواف دپاره علت دا گرځولي شوي وو.چه طواف د مونځ پشان دي.او نبي ﷺ فرمائيلي دي.[الطواف بالبيت صلاة] يعنى دبيت الله نه طواف كول مونځ دي.نولكه څنگه چه د حائضے دپاره مونځ ممنوع دي.دغه شان طواف هم ممنوع شو.ځكه چه طواف هم حكماً مونځ دي.

| وَلَا يَأْتِيهَا زَوْجُهَا اودے (حائضې) ته به ددي خاوند نه ورځى |
|---|

**تشریح**> حرمة الوطئ > اوپنځم حكم دا دي.چه حائضے ښځې سره جماع كول حرام ده. .

**دليله**>دليل دالله ﷻ قول دي.﴿وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ﴾ نوكه خاوند په حالت د حيض كښې بي بي سره وطى كول حلال اوگنړلو . نو دے كافر كيږي.اوكه حرام ئې گنړي. نوفاسق شو.او دگناه كبيره مرتكب شو.

---

۱) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه أبوداود في الطهارة باب ۹۲)۔

**حكم الصدقة عند الوطي في حالة الحيض**> اوكه په حالت دحيض كښې ئې وطی اوكړله. ①نوتويه پرے واجب ده.او يو دينار يا نيم دينار به صدقه كوی.
② اوبعضو فرمائيلی دی.كه د حيض په اول كښې ئې وطی اوكړله.نو يو دينار به وركوی. اوكه په آخر دحيض كښې ئې وطی كړې وی.نونيم دينار به وركوی.

## دحائضې اوجنب دپاره د قران د تلاوت حرمت

| وَلَيْسَ لِلْحَائِضِ وَالْجُنُبِ وَالنُّفَسَاءِ قِرَاءَةُ الْقُرْآنِ اوجائزنه دی د حائضے جنب او نفاسې دپاره د قرآن پاك لوستل |
|---|

**حل اللغة**> ① نفساء: دَ نفاس والا ښځه ② قرا، قرا قراءةً (ف) لوستل

**تشريح**> **حكم قراءة القرآن**>شپږم حكم دا دې. چه د قرآن پاك لوستل جائزنه دی.د حائضے دپاره او د جنب دپاره كه ښځه وی اوكه سړې وی.اود ماشوم دپاره هم جائزنه دې.نه د يو آيت لوستل جائز دی.اونه ددې نه كم.

**دليله**> دليل د نبی ﷺ ارشاد دې.چه [لاتقرأ الحائض ولاالجنب شيأمن القرآن](۱)

## دقرآن پاك د مسه كولو حكم

| وَلَايَجُوْزُ لِلْمُحْدِثِ مَسُّ الْمُصْحَفِ اوجائزنه دی د بې اودسه دپاره د قرآن پاك مسه كول إِلَّا أَنْ يَّأْخُذَهُ بِغِلَافِهِ مگر دا چه د هغې په غلاف سره ئې اونيسی |
|---|

**حل اللغة**> ① مس: لاس لگول ② غلاف : استر

**تشريح**> **مس القرآن للمحدث**> اووم حكم دا دې.چه د بې اودسه دپاره دغه شان دحائضے نفاسې او جنب دپاره د قرآن پاك مسه كول جائز نه دی.اوهغه روپۍ چه په هغې كښې د قرآن پاك يو آيت وی. د هغې مسه كول هم جائز نه دی.مگرپه هميانۍ يعنی تيلۍ سره ددې مسح كول جائز دې.اودا حكم د بے اودسه سړی هم دې.

**دليله**> دليل د نبی ﷺ ارشاد دې. چه [لايمس القرآن الا طاهر](۱)يعنی قرآن به صرف پاك سړې مسح كوی.
**وجه الفرق بين المحدث والجنب في حكم القراءة**>صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلی دی .چه حدث اوجنابت دواړه د مصحف د مسه كولو په حكم كښې برابر دی. خو د قرآن د تلاوت په حكم كښې دواړه جدا جدا دی.نوبے اودسه دپاره د قرآن تلاوت جائز دې.او د جنب دپاره جائز نه دې.وجه دا ده.چه حدث اوجنابت دواړه په لاس كښې حلول كوی.نوځكه مصحف ته لاس اوړل جائز نه دی.اوحدث په خوله كښې دننه سرايت نه كوی.هم دا وجه ده.چه په اودس كښې خوله كښې اوبه اچول فرض نه دی.او جنابت په خوله كښې حلول كوی.(ځكه خو په غسل كښې د خولے وينځل فرض دی) نود بے اودسه دپاره تلاوت جائزاو دجنب دپاره ناجائز شو.

---

۱) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الترمذي في الطهارة باب ۱۲٦ رقم ٦٤٥)۔

۱) من حديث عمروبن حزم رضي الله عنه أخرجه الحاكم في المستدرك (۱\۳۹۵) والدارقطني في سننه (۱\۱۲۱) والبيهقي في السنن الكبرى (۱\۱٤۱)ومعرفة السنن والآثاررقم ۱۰٦)۔

**حکم المس بغلاف** ﴿ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه غلاف هغه دی.چه د مصحف سره لګیدلے نه وی.یعنی د ماس (ګوتے اورونکی) او ممسوس (چه څه ته ګوتے وراوړی) په مینځ کښې واسطه وی.او مصحف سره متصل نه وی.لکه مشر (چه په شریشولګیدلے) وی.حاصل دا چه د غلاف نه د قرآن پاك تیلی مراد ده.

**المراد من الغلاف** ﴿ صاحب نقایه فرمائی.چه د غلاف په مصداق کښې عالمانو اختلاف کړې دې. ① بعضو فرمائیلی دی.چه غلاف هغه دې.چه مصحف سره متصل وی.یعنی شریش شوې وی.(دغه شان چه ګنډلے شوی وی.یا په پن سره لګیدلے وی.هغه هم د مشرز په حکم کښې دې. ② او بعضې عالمان فرمائی .چه لستونړی مراد دې.

③ او بعضو فرمائیلی دی.چه د غلاف نه مراد هغه تیله ده.چه قرآن په کښې کیخودلے شی.دا قول زیات صحیح دې.ځکه چه شریش شوې خو د قرآن تابع دې.او لستونړے د مسه کونکی تابع دې.اوتیله په دې دواړو کښې د یو تابع هم نه ده.

**حکم الکتب الشرعیة** ﴿شرعی کتابونه ددې په خلاف دی.ځکه چه د اهل علم دپاره په لستونړی سره ددې د مسه کولو اجازت شته.ځکه چه د هغوی ضرورت دې.او دعامو مشائخو رحمهم الله هم دا رائې ده.

**حکم مس الصبیان** ﴿اوړے اودسه ماشومانوته دقرآن پاك په ورکولوکښې څه باك نشته.ځکه که دا اجازت ورنکړې شی.نودوه صورتونه دی.یاخویه دوی د قرآن د مسه کولو نه منع کولې شی.اویا به ورته د طهارت حاصلولوحکم ورکولې شی.په اول کښې د قرآن پاك ضائع کیدل لازمی دی.او په دویم صورت کښې ماشومان په مشقت اوحرج کښې اچول دی.(اوحرج د لویوپه حق کښې مرفوع دےنود ماشومانو په حق کښې خویه په طریق اولی سره مرفوع وی.

## دلسو ورځونه وړاندې د وینې اودریدل

| فَإِذَا انْقَطَعَ دَمُ الْحَيْضِ لِأَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ أَيَّامٍ اوکله چه د حیض وینه د لس ورځو نه په کمه موده باندې اودریږی لَمْ يَجُزْ وَطْيُهَا نود دغه ښځې سره وطی کول جائزنه دی حَتَّى تَغْتَسِلَ تردے چه غسل اوکړی أَوْ يَمْضِي عَلَيْهَا وَقْتُ صَلَاةٍ كَامِلَةٍ اویا په دې باندې دکامل مانځه وخت تیر شو |
|---|

**حل اللغة** ﴿①انقطع: بندیدل ②دم: وینه ③ مضی مضیاً(ض) تیریدل

**تشریح** ﴿ **صورتې جوازالوطئ؟** ﴿اتم حکم دا دې.

①که دعادت مطابق د لسو ورځو نه په کمه موده باندې وینه اودریدله.نووطی کول جائزنه دی.تردے چه دغه ښځه غسل اوکړی.

**دلیله** ﴿ دلیل دا دې.چه وینه کله جاری کیږی اوکله اودریږی.نو د اودریدو جانب ته ترجیح ورکولو دپاره غسل کول ضروری دی.

②که ښځې د انقطاع نه پس غسل اونکړلو.اودومره وخت تیر شو.چه دے په کښې غسل کولے شو. او تکبیر تحریمه ئې تړلے شوه.نواوس ورسره وطی کول حلال دی.

**دلیله**﴿ځکه چه مونځ ددې په ذمه قرض شو.نوحکماً دا پاکه شوه.ځکه چه کله شریعت ددې په ذمه مونځ فرض کړلو. نو ګویاچه شریعت ددې د طهارت حکم ورکړلو.ځکه چه په حالت دحیض کښې خو مونځ صحیح نه دې.

**حکم الإنقطاع فوق الثلاثة وقبل العادة** >صورت دمسئلي دا دي.که وينه د درې ورځو نه په زياته موده اود عادت نه په کمه موده اودريدله.مثلاً عادت ئې اووه ورځې وو.اووينه په پنځمه اودريده.نوپه داسې صورت کښې د داسې ښځې سره وطی کول جائز نه دی.ترڅو چه عادت ئې پوره شي.اګرچه غسل اوکړي.ځکه چه په عادت کښې اکثر وينه بيا راځي.نو احتياط هم په دې کښې دې.چه د وطی نه اجتناب اوکړي.

| |
|---|
| وَاِنْ انْقَطَعَ دَمُهَا اوکه د دې وينه اودريده لِعَشَرَةِ اَيَّامٍ په لسمه ورځ جَازَ وَطْيُهَا نو دے سره وطی کول جائز ده قَبْلَ الْغُسْلِ وړاندې د غسل نه |

**تشريح** > **حکم إنقطاع الدم بالعشرة** > اوکه په لسمه ورځ وينه اودريدله.نو دے سره د غسل نه وړاندې وطی کول جائزدی.ځکه چه د حيض وينه د لسو ورځو نه زياته نه وی.نو معلومه شوه.چه حيض ختم شوې دې.

**استحباب تاخيرالوطي الي بعد الغسل** >البته دومره ده.چه دغسل نه وړاندې وطی کول مستحب نه دی. دهغه ممانعت دوجے کوم چه په قراءت د تشديد کښې راغلے دې.په قراءت د تشديد کښې يعنی ﴿وَلاَ تَقْرَبُوهُنَّ حَتّٰى يَطَّهَّرْنَ﴾ (دطاء او هاء په شد سره) په دې قراءت کښې مبالغه مطلوب ده.(چه دوی ښه پاکې شی. او مبالغه (يعنی ښه پاکې. از مترجم) به هله راشي. چه د وينې بنديدو نه پس غسل هم اوکړي.دا قراءت اګرچه دواړو صورتونو ته شامل دې.که لس ورځې وی اوکه د لسو نه کمے وی.ليکن فرق به دا وی.که د لسو نه کمه موده باندې وينه اودريدله .غسل به ضروری وی.دغسل نه وړاندې ورسره وطی کول جائز نه ده.اوکه په لسمه ورځ اودريدله .نو دغسل نه وړاندې هم وطی جائزده.ليکن مستحب دا ده.چه غسل اوکړي.

## د طهرفاصل او غير فاصل بيان

| |
|---|
| وَالطُّهْرُ اِذَا تَخَلَّلَ بَيْنَ الدَّمَيْنِ اوطهرکله چه د دوو وينو په مينځ کښې واقع شی فِي مُدَّةِ الْحَيْضِ په موده د حيض کښې فَهُوَ كَالدَّمِ الْجَارِيْ نودا جاری وينے پشان دې. |

**حل اللغة** > ① طهر: پاکی ② تخلل تخللاً: په مينځ کيدل

**تشريح** > **أقسام الطهر** >طهر(د طاء په پيښ سره) د دوو حيضو په مينځ کښې هغه وخت ته وائی.چه جداوالے ئے راوستے وی.بيا طهر په دوه قسمه دې.طهرفاسد (ناقص) اوطهر کامل. طهر کامل په اتفاق سره فاصل وی.

**توضيحه** > طهرناقص که په پنځلس ورځو کښې د دوو وينو په مينځ کښې دحيض په موده کښې واقع شو.نودا طهر به فاصل نه وی.بلکه دا ټوله موده به حيض ګڼرلې شي.مثلاً يوه داسې ښځه چه په اول خل پرے حيض راشي.يوه ورځ وينه جاری وی.بيا اته ورځې بنده وی. بيائې يوه ورځ وينه اوليدله.نو دا لس واړه ورځې به حيض وی.دا روايت امام محمد رحمه الله د امام اعظم رحمه الله نه کړې دې.

**دليله** > دليل دا دې.چه دحيض په موده کښې مسلسل وينه راتلل د چا په نيز باندې شرط نه دې.نود وينے په راتلو کښې به اول او آخر معتبر وی.لکه څنګه چه د زکاة په وجوب کښې د کال اول او آخر معتبر وی.(چه دکال په اول او آخر کښې ورسره نصاب برابر وی.نوکه مينځ کښې د نصاب نه مال کم شوې وی.بيا هم زکاة واجب دې. د ټول کال راګيرول شرط نه دې.

**الروایة الثانیة**> د امام ابوحنیفه رحمه الله نه په دې مسئله کښې دویم روایت دا منقول دی چه طهرناقص مطلقاً فاصل نه دې.اګرچه دا طهر د لسو ورځو نه زیات ولې نه وی.دا قول داامام ابویوسف رحمه الله دې.اودا د امام ابوحنیفه رحمه الله آخری قول دې. ددې قول په بناء د حیض اول اوآخر دواړه طهر کیدے شی.ددې صورت دا دې. چه د یوے ښځې عادت دا وی.چه دهرے میاشتې د اول تاریخ نه تر لسم تاریخ پورې وینه وینی.نودے د خپل عادت نه یوه ورځ وړاندې وینه اولیدله.او بیا لس ورځې پاکه وه.نواوس دا لس ورځې به حیض وی.چه په دغه کښې ئې هډو وینې لیدلے نه ده.اود عادت نه یو ورځ وړاندې وینه اود لسو ورځو نه پس یوه ورځ وینه دا دواړه به استحاضه وی.په مفتی اومستفتی دواړو باندې د آسانتیا دوجے دا قول مفتی به دې.(کذافی الهدایه)

**د طهر موده**

| وَأَقَلُّ الطُّهْرِ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا او د طهر ادنی موده پنځلس ورځې دی |
|---|

**تشریح**> **أقل مدة الطهر**> فرمائی.چه کمه موده د طهر پنځلس ورځې دی.اودا قول د ابراهیم نخعی تابعی رحمه الله نه هم منقول دې.

**دلائله** > ①دا ښکاره ده.چه ابراهیم نخعی رحمه الله به د صحابی نه اوریدلی وی.او صحابی به دنبی ﷺ نه اوریدلی وی.ځکه چه دا مقدار دې.اوپه شریعت کښې مقدار په سماع سره ثابتیږی.په قیاس سره د مقادیرو اندازه نشی کولې.

②شیخ ابومنصور ماتریدی رحمه الله ددې دپاره استدلال کړې دې.چه د طهر کمه موده پنځلس ورځې دی.چه الله تعالی د صغیرے اوآئیسے په حق کښې یوه میاشت د طهر او حیض دواړو قائم مقام ګرځولې دی.اوقاعده دا ده.چه کوم څیز دوو څیزونوته منسوب وی.نو هغه څیزبه په دواړو برابر برابر تقسیمولے شی.نومناسب خودا وه.چه نیمه میاشت دحیض وه اونیمه د طهر.لیکن په دې باندې نص موجود دې.چه حیض د نیمے میاشتې نه کم وی.نوحیض دپنځلسو ورځو نه کم شو.اوطهر په خپل تقسیمی موده باندې باقی پاتې شو.

③په مبسوط کښې دی:چه موده د طهرد اقامت د مودے نظیر دې.نولکه څنګه چه په حالت داقامت کښې کم شوې مونځونه واپس پوره کیږی. اودغه شان روژه چه په حالت د سفر کښې ئې نیول معاف وی.نوپه حالت د اقامت کښې دهغې راګرځول فرض کیږی.اود احادیثو نه دا خبره ثابته ده.چه کمه موده د اقامت پنځلس ورځې ده.نودغه شان به کمه موده د طهر هم پنځلس ورځې وی.اوهم ددې وجې د سفر په کمه موده چه درې ورځې دی. کمه موده د حیض مقدرکړې شوې ده.چه درې ورځې دی.ځکه چه دواړوکښې هر یوپه مونځ او روژې کښې تاثیر کوی.(ځکه چه د درې ورځو سفر په مانځه کښې قصر پیدا کوی.او په روژه کښې افطار جائز کوی.اودغه شان حیض مونځ او روژه ساقط کوی.

| وَلَا غَايَةَ لِأَكْثَرِهِ او د زیات طهر څه اندازه نشته |
|---|

**تشریح**> **اکثر مدة الطهر**>اود اکثر طهرڅه اندازه مقرر نه ده.نوترڅو پورې چه دا طهر ګوری.نو مونځونه او روژې دے نیسی.اګرچه دا طهر ددې ټول ژوند راګیر کړی. ځکه چه بعضې وخت طهر یویو کال دوه

دوه کاله جاری وی.بلکه ددې نه هم زیات وی. ددې وجې د طهر د زیاتې مودے څه حد نشی مقرر کولې.

**أيام طهر المبتدءة المستحاضة>** البته که د ښځې وینه همیشه دپاره جاری شی.نو په دې صورت کښې دعامو عالمانو ﷭ په نیز خامخا څه مقدار مقرر کول ضروری دی.نوکه یوه ښځه په اول ځل حائضه شی. او ددې وینه بنده نشوه.نوپه هره میاشت کښې به لس ورځې د حیض وی.اوباقی ورځې به طهر شمارلې شی.نوکه میاشت د دیرشو ورځو وی.نوطهر به شل ورځې وی.اوکه میاشت د یوکم دیرش ورځو وی.نو طهربه نورلس ورځې وی.

## استحاضه څه نه منع کوی

| |
|---|
| **وَدَمُ الِاسْتِحَاضَةِ** او داستحاضه وینه **هُوَمَا تَرَاهُ الْمَرْأَةُ** دا هغه وینه ده چه وینې ئې ښځه **أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ** کمه د دریو ورځونه **أَوْأَكْثَرَمِنْ عَشَرَةِ أَيَّامٍ** اویا زیاته د لسو ورځو نه **فَحُكْمُهُ حُكْمُ الرُّعَافِ** نود دې حکم پشان د حکم د پوزے دوینې پشان **لَا يَمْنَعُ الصَّلَاةَ وَلَا الصَّوْمَ وَلَا الْوَطْيَ** نه مونځ منع کوی نه روژه منع کوی اونه وطی |

**حل اللغة>** ① رعاف: نکسیر ②لایمنع، منع منعًا(ف): منع کیدل ③حصیر: پوزکې ]

**تشریح> وجه المشابهة مع الرعاف>** داستحاضه وینه د پوزے د وینې پشان ده.یعنی څنګه چه د پوزے وینه د رګ نه راځی.دغه شان د استحاضه وینه هم د رګ نه راځی.نولکه څنګه چه د پوزے وینه روژه مونځ او وطی نه منع کوی.دغه شان داستحاضه وینه هم داځیزونه نه منع کوی.

**دلیله>** دلیل هغه حدیث دې.کوم چه ابن ماجه دام المومنین ﷞ نه نقل کړې دې. پوره حدیث دا دې.[عن عائشة قالت جاءت فاطمة بن أبي حبيش إلى النبي ﷺ فقالت إني إمرأة أستحيض فلا أطهر أبدا أفأدع الصلاة فقال ﷺ لا إجتنبي الصلاة أيام محيضك ثم اغتسلي وتوضئ لكل صلاة ثم صلي وإن قطر الدم على الحصير] (١) ام المومنین حضرت عائشه ﷞ فرمائی.چه فاطمه بنت ابی حبیش نبی ﷺ ته راغله.او عرض ئې اوکړلو.چه زه استحاضه ښځه یم. همیشه دپاره رانه وینه روانه وی.آیا زه مونځ پریږدم؟نبی ﷺ ورته اوفرمائیل: نه بلکه د حیض په ورځو کښې مونځ پریږده.اوبیا غسل کوه.اودهر مانځه دپاره اودس کوه.اومونځ کوه. اګرچه په پوزی باندې وینه څاځی.

| |
|---|
| **وَإِذَا زَادَ الدَّمُ عَلَى عَشَرَةِ أَيَّامٍ** اوکله چه زیاتی شی وینه په لسو ورځو **وَلِلْمَرْأَةِ عَادَةٌ مَعْرُوفَةٌ** اودښځې معلوم عادت وی **رُدَّتْ إِلَى أَيَّامِ عَادَتِهَا** نو واپس کولې به شی ورځو دعادت خپل ته **وَمَا زَادَ عَلَى ذٰلِكَ فَهُوَ اسْتِحَاضَةٌ** او کومه وینه چه زیاتی وی په هغې (عادت) باندې نو هغه به استحاضه وی |

**تشریح> الزیادة علی العادة التي تكون أقل من عشرة أيام>** داحنافوعالمانو ﷭ په نیز چه کوم حکم متفق علیه وو .امام قدوری ﷫ هغه حکم بیان کړلو.اود مختلف فیه ذکرئې اونکړلو . نو اول مختلف فیه اوګورئ.

---

١) من حديث عائشة ﵂ قالت جاءت فاطمة بنت أبي حبيش إلى النبي ﷺ الحديث أخرجه ابن ماجه في الطهارة باب ١١٥ والنسائي في الطهارة باب ١٢٠ والدارمي في الوضوء باب ٨٦ وأحمد في المسند (٤٢\٦)۔

**الزیادة علی العادة وعلی عشرة أیام** ﴿ چه د یوے ښځې عادت د لسو ورځو نه کم وی.لیکن دا خل نې وینه د لسو ورځو نه زیاته شوه.نو په دې صورت کښې حکم دا دې.چه کومه وینه د عادت په ورځو کښې راغلې وی.نوهغه به حیض وی.اوچه کومه وینه په زیاتی ورځو کښې راغلې وی. هغه به استحاضه وی.

**دلائله** ﴿ ① د نبی ﷺ دا ارشاد دې.چه [تدع المستحاضة الصلاة ایام أقرائها](۳)په حدیث کښې د[أیام أقرائها]نه مراد دعادت ورځې دی.نود حدیث مطلب دا شو.چه مستحاضه ښځه به د خپل عادت په ورځو کښې مونځ پریږدی .او د عادت د ورځو نه په زیاتی ورځو کښې به مونځ نه پریږدی.
② عقلی دلیل دا دې.چه د عادت د ورځونه زیاتی وینه د لسوورځو نه د زیاتی وینې پشان ده.اوکومه وینه چه دلسو ورځونه زیاته وی.هغه په اتفاق سره استحاضه ده.نودغه شان چه کومه وینه په عادت باندې زیاتی وی.هغه به هم استحاضه وی.

| وَإِنِ ابْتَدَأَتْ مَعَ الْبُلُوغِ مُسْتَحَاضَةً او که په بلوغت سره مستحاضه شوه فَحَيْضُهَا عَشَرَةُ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ نودهغې حیض به په هره میاشت کښې لس ورځې وی وَالْبَاقِي اسْتِحَاضَةٌ اوباقی به استحاضه وی |
|---|

**تشریح** ﴿ **طهر من إبتدأت مستحاضة** ﴿اوکه دا سې ښځه وی.چه وړاندې پرے حیض نه وی راغلې. بلکه په اول خل حائضه شی.اوهم ددې حیض نه مستحاضه شی.نوپه هره میاشت کښې به لس ورځې د حیض وی.او باقی به استحاضه وی.
**دلیله** ﴿خکه که په لسمه ورځ ددې وینه اودریدله.نودا لس ورځې به ټولې دحیض وې.خو هرکله چه وینه د لسونه زیاته شوه.نو په دې کښې شك راغلو.چه د درې ورځو نه زیاتی حیض دے که استحاضه؟ نویقینی څیز به ددې شکی څیز د وجې نشی زائله کیدې.(یعنی دا یقینی خبره ده.چه د حیض لس ورځې اکثره موده د حیض ده.او دا احتمالی خبره ده.چه کیدے شی.ددې حیض د لسو ورځو نه کم وی.نویقنی چه لس ورځې دی د شکی چه د لسو نه کمے دی.د وجې نشی زائله کیدې.

**د هرمانځه د وخت دپاره د مستحاضه اودس**

| وَالْمُسْتَحَاضَةُ مستحاضه وَمَنْ بِهِ سَلَسُ الْبَوْلِ اوکوم سړی باندې چه د متیازو بیماری وی وَالرُّعَافُ الدَّائِمُ اودچا چه همیشه دپاره د پوزے نه وینه روانه وی وَالْجُرْحُ الَّذِي لَا يَرْقَأُ او هغه زخم چه جوړیږی نه يَتَوَضَّئُونَ لِوَقْتِ كُلِّ صَلَاةٍ نودا خلق به اودس کوی دهرمانځه د وخت دپاره وَيُصَلُّونَ بِذَلِكَ الْوُضُوءِ فِي الْوَقْتِ مَا شَاءُوا اوپه دغه اودس چه په وخت کښې دننه ئې څومره خوښ وی مونځ کوی مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ فرض او نفل |
|---|

**حل اللغة** ﴿①سلسل البول: دَ متیازو نه بندیدل ② رعاف: نکسیر دَ پوزې نه وینه راتلل ③لایرقا، رقأ: اوچیدل

(۳) من حدیث جدعدی بن ثابت رضی الله عنه أخرجه ابوداود فی الطهارة باب ۱۱۲ رقم ۲۹۷ والترمذی فی الطهارة باب ۹۴ وابن ماجه فی الطهارة باب ۱۱۵ والبیهقی فی السنن الکبری (۱\۱۱۵) رقم ۱۶۳۳)۔

**تشریح﴿ وجه تاخیر الاستحاضة عن الحیض وتقدیمها علی النفاس﴾** حیض چونکه د نفاس او استحاضه په نسبت کثیر الوقوع وو.ځکه ئې هغه وړاندې بیان کړلو.اودے پسې ئې د استحاضه حکم بیان کړلو.ځکه چه د نفاس نه پس د زیاتو اسبابودوجے استحاضه کثیرالوقوع دې.

**اسباب الاستحاضة﴿** ①ځکه چه ښځه کله ددې وجې مستحاضه ګرځي.چه د نفاس د عدت نه زیاته وینه اووینی. ②اوکله ددې وجې مستحاضه ګرځي.چه دحیض وینه د لسوورځونه زیاته اووینی.③اوکله ددې وجې مستحاضه ګرځي.چه دخپل عادت نه وینه زیاتی شي. او دلسوورځو نه تیره شي.

④اوکله ددې وجې مستحاضه شي.چه د درې ورځو نه کمه وینه اووینی.

⑤یا ددې وجې مستحاضه شي.چه د طهرد مودے پوره کیدونه وړاندې وینه راشي.

⑥یا دعاموعالمانوپه نیز د نهوکالونه وړاندې وینه راشي.نودا هم مستحاضه ګرځي.ددې په خلاف د نفاس صرف یو سبب دې.چه ولادت د ماشوم دې.

**تعریف المستحاضة﴿** مستحاضه هغه ښځه ده.چه د فرض مونځ یووخت پرے داسې نه تیریږي. مګرچه په کوم عذر کښې دا اخته وی.هغه په کښې موجودیږي.اوداحکم دهغه چاهم دې.چه هغه د مستحاضه په معنی کښې وی .لکه کوم کس چه دهغه متیازې نه اودریږي.اوهغه څوك چه د پوزے وینه ئې نه اودریږي.اوهغه زخم چه وینه ئې نه اودریږي.او هغه څوك هم معذور دې.چه د اسهال بیماری ئې وی.اوخیته ئې نه اودریږي.بلکه باربار اودس ماتی ته کیني.اوچه بے اختیار د باد وتلوبیماری ئې وی.ځکه چه ضرورت ددې عذرونو سره متحقق کیږي.او ضرورت ټولو ته شامل دې.نوپه دوی کښې به هریو کس دمعذورپه حکم کښې وی.

**اداء الصلاة بوضوء المعذور﴿** مسئله دا ده. ① چه څوك مستحاضه وی.یا د چا متیازې نه اودریږي.یا دچا د پوزے نه وینه روانه وی.یادچا داسې زخم وی .چه د هغې وینه نه اودریږي. نومسئله دا ده.چه د داسې معذورینودپاره زمونږ په نیز په وخت کښې دننه په یو اودس باندې چه څومره ئې خوښه وی. مونځونه کولي شي.که فرض وی اوکه نفل که واجب وی اوکه نذر.① عقلي دلیل دا دې.چه دآسانتیا دپاره وخت د مونځ قائم مقام ګرځولي شوې دې.نود حکم مدار به په وخت وی.په ادا کولوبه نه وی.ځکه چه کله یوځیز د بل ځیز قائم مقام وی. نو مقصود به هم هغه وی.

**د معذورینود اودس په ناقض کښې مذاهب**

| فَإِذَا خَرَجَ الْوَقْتُ اوکله چه وخت اووتل بَطَلَ وَضُوْءُهُمْ نو ددې معذورینو اودس باطل شو وَكَانَ عَلَيْهِمْ إِسْتِيْنَافُ الْوُضُوْءِ لِصَلَاةٍ أُخْرٰى اودبل مونځ دپاره به بل اودس کوی |
| --- |

**حل اللغة﴿** ①خرج خروج: راوتل② بطل بطلانًا: باطل کیدل③ استیناف ، استانف استینافًا: د نوې سر نه شروع

**تشریح﴿ نقض وضوء المعذورین بخروج الوقت﴾** صورت دمسئلې دا دې. چه کله د فرض مونځ وخت اووتلو.نو ددې معذورینواودس مات شو.که څوك بل فرض مونځ کول غواړي.نو دهغې دپاره به بل اودس کوی.

**صورة المسئلة﴿** که یومعذور د نمر راختلو په وخت کښې اودس اوکړلو. نود طرفینو رحمهما الله په نزد په دغه اودس باندې مونځ کولي شي.ترڅو چه د ماسپخین وخت خارج شي.ځکه چه د طرفینو رحمهما الله په نیز

خروج دوخت ناقض دي.او په دې صورت کښې دماسپخين دوخت دخول خوموجود شو.ليکن خروج د وخت نه دے موجود شوې.ځکه چه هغه خو د نمر راختونه پس اودس کړې دې

**دليله** > دليل دا دې.چه دوخت نه وړاندې طهارت حاصلول ضروري دي.چه څنګه وخت داخل شي.نود مونځ په ادا کولو باندې قادر وي.حاصل دا دې.چه وخت د ادا قائم مقام دې. او د فرض په ادا کولوباندې د طهارت تقديم واجب دې.نود قياس تقاضا دا وه.چه د ادا په خليفه يعني وخت باندې دے هم د طهارت وړاندې والے واجب وي.ليکن د خليفه مرتبه د اصل دمرتبے نه د کمولو دپاره په خليفه باندې د طهارت تقديم جائز اوګرځولې شو.نوهرکله چه په وخت باندې د طهارت تقديم جائز شو.نودخول د وخت ناقض نشي جوړيدې.ځکه که دخول د وخت دطهارت دپاره ناقض اوګرځولې شي.نوتقديم د طهارت به ناممکن شي.او خروج دوخت چونکه د حاجت د زوال دليل دې.نوپه هغه وخت کښې به د حدث سابق ظهور معتبر وي .نو چه څنګه وخت خارج شي.اودس به ماتيږي.

**حقيقة نسبة النقض إلى الوقت** > داخبره يادساتئ چه په حقيقت کښې نه دخول د وخت ناقض دې.اونه خروج دوخت.بلکه په حقيقت کښې حدث سابق ناقض دې.ليکن چونکه د حدث د ظهور نه وخت مانع وو.کله چه وخت ختم شو.نو حدث ښکاره شو.نوځکه د نقض نسبت مجازی طور دخول د وخت اوخروج د وخت ته شوې دې.

**الوقت المعتبرفي الخروج والدخول** > ① صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلی دی.چه دکوم وخت د دخول او خروج اعتبار کړې شوې دې.دهغې نه د فرضی مونځ وخت دې.د نفل او واجب مونځ وخت نه دې.تردے که معذور د اختر دمانځه دپاره اودس اوکړلو.نود طرفينو رحمهما الله په نيز په دې اودس باندې د ماسپخين د مونځ کولو اجازت شته.او هم دا صحيح قول دې.ځکه چه داختر مونځ د څاښت د مونځ پشان دې.يعنی چه فرض نه دې.نو دا اود څاښت مونځ دواړه په يومرتبه کښې دی. اګر چه داختر مونځ واجب دې.نود فرض مونځ وخت د عدم خروج د وجے دده اودس نه ماتيږي.نوځکه ورته په دغه اودس باندې د ماسپخين د مونځ کولواجازت شته.

② اود بعضې فقهاؤ دا رائې ده.چه په دغه اودس باندې ده ته د ماسپخين د مونځ کولو اختيار نشته.ځکه چه د واجب مونځ وخت اووتلو.ځکه چه د اختر مونځ واجب دې.اوواجب په منزله د فرض وي.

**د نفاس تعريف**

| وَالنِّفَاسُ هُوَالدَّمُ اونفاس هغه وينه ده الْخَارِجُ عَقِيبَ الْوِلَادَةِ چه د ولادت نه پس راوځی |
|---|

**حل اللغة** > ① دم: وينه ② عقيب: پس ③ ولادة: بچې ]

**تشريح** > **تعريف النفاس** > نفاس دنون په زور او زير سره لوستلے شوې دې.کومه وينه چه د ښځې سره خاص ده. هغه درې قسمه ده.① حيض ② استحاضه ③ نفاس دحيض او داستحاضه د احکامو دفراغت نه پس په دې فصل کښې د نفاس بيان کوی.نفاس مصدر دے د[**نفسة المرأة**] نه (دنون په ضمه او فتحه سره) اوکله نفاس د نفساء دجمعې دپاره استعماليږی. د فقهاؤ په اصطلاح کښې نفاس هغه وينے ته وائی .چه دولادت نه پس راځی.

**حکم وجوب الغسل بالولادة من غير رؤية دم** > ① علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائی.د صاحب قدوری رحمه الله د عبارت

نه دا معلومیږی.که د ښځې ولادت اوشي.اووینه اونه وینی.نودا نفاسه نه گرځی.او په دې باندې به غسل واجب نه وی.دا دصاحبینو رحمهما الله نه نقل دی.

## دولادت نه وړاندې د وینې حکم

| |
|---|
| وَالدَّمُ الَّذِي تَرَاهُ الْحَامِلُ اوهغه وینه چه حامله ښځه ئې اووینی(که په اول کښې وی یا د ولادت په دوران کښې وی)قَبْلَ خُرُوجِ الْوَلَدِ د ماشوم د پیدا کیدونه وړاندې وی اِسْتِحَاضَةٌ نوهغه استحاضه ده |

**حل اللغة**> ① دم جمع دماء: وینه ② تراه، رای رؤیة (ف): کتل ③ حامل: حامله ښځه ④ خروج: راوتل

**تشریح**> **حكم الدم الذي يكون في حالة الحمل أو قبل الولادة**>مسئله دا ده.که حامله ښځې د حمل په حالت کښې وینه اولیدله.یا ئې د ماشوم پیدا کیدو نه وړاندې د ولادت په حالت کښې.نودا وینه زمونږ په نیز داستحاضه ده.اگرچه د حیض مودے ته اورسی.

**دلیله** > دلیل دا دې.چه حیض د رحم وینه وی.او د رحم وینه راتلل د حاملے نه ممکن نه دی. ځکه چه دالله تعالی عادت په دې جاری دې.چه د حمل دوجے د رحم خوله بنده شی.چه په رحم کښې دننه څیز رابهر نشی.نوکله چه د حاملے د رحم خوله بنده وی.نو دحمل په حالت کښې چه کومه وینه راوځی.هغه به د رحم نه علاوه د بل ځائې نه وی.اود رحم نه سوا چه کومه وینه راځی.هغه د استحاضه وینه وی.نوځکه به دا وینه د استحاضه وی.

**حكم ولادة السقط**> مسئله: ناقص ماشوم چه بعضې اندامونه ئے جوړ شوی وی.مثلاً ① گوتے، نوکونه، ویخته وغیره.نودا دکامل ماشوم په حکم کښې دې.یعنی ښځه په دې باندې نفاسه گرځی.② اوکه دا د چا وینزه وی.نوأم ولده گرځی.

③اوکه مطلقه ښځه وی.نوعدت ئې پوره کیږی.ځکه چه د حاملے عدت وضع د حمل وی. اوکه صرف چیمره وی.څه اندامونه په کښې جوړ شوی نه وی.نو دداسې ښځې په حق کښې دنفاس حکم نشی ورکولې.نوکه دے ښځې وینه اولیدله.اوهغه وینه د حیض وینه گرځول ممکن وی.چه کمے مودے د حیض ته رسیدله.نودا به حیض گرځولې شی.او که حیض گرځول ئې ممکن نه وی.نواستحاضه به وی.

## دنفاس د کمې اوزیاتې مودې بیان

| |
|---|
| وَأَقَلُّ النِّفَاسِ لَا حَدَّ لَهُ اودکمے مودے دنفاس څه حد نشته وَأَكْثَرُهُ أَرْبَعُونَ يَوْمًا اوزیاته موده دنفاس څلویښت ورځې دی..وَمَا زَادَ عَلَى ذَٰلِكَ فَهُوَ اسْتِحَاضَةٌ اوچه څه په دې باندې زیادت وی هغه استحاضه ده |

**حل اللغة**> ① اقل: کم ② خروج: راوتل

**تشریح**> **لاحد لأقل مدة النفاس**>زمونږ دعالمانو رحمهم الله په دې باندې اتفاق دې.چه د نفاس د کمے مودے دپاره څه حدنشته.که د ښځې ولادت اوشو.اولږ وخت پس ئې وینه بنده شوه.نودا پاکه شوه.نواوس به روژه نیسی او مونځونه به کوی.

**دليل أن لاحد لأقل مدة النفاس**>دنفاس دکمے مودے د څه حد نه مقررتیا دلیل دا دې.چه د ماشوم پیدائش ددې خبرے علامه ده.چه دا وینه د رحم نه راغلے ده. او د ماشوم د پیدائش نه پس چه کومه وینه

راخي.هغه نفاس دې.نواوس د څه اضافي ننې ضرورت نشته.اوحيض ددې په خلاف دې.ځکه چه په هغې کښې کم ازکم درې ورځې شرط دی.چه ددې وينې د رحم نه راتلل معلوم شی.ځکه چه ددې په حيض کيدو باندې بله څه علامت نشته.(سوا ددې نه چه درې ورځو ته دا وينه اورسی.

**أكثر مدة النفاس**﴾د نفاس اکثره موده څلويښت ورځې دی.

**دلائله**﴾ ① دحضرت ام سلمې رضي الله عنها حديث دې. چه[أن النبي ﷺ وقت للنفساء أربعين يوماً] اوپه ابوداود او ترمذی کښې دا حديث په دې الفاظومروی دې. [قالت كانت النساء تقعد على عهد رسول الله أربعين يوما](۱) ام سلمه رضي الله عنها فرمائي.چه دنفاس زنانه به د نبی ﷺ په زمانه کښې څلويښت ورځې کيناستلې. زمونږ دا مذهب د ام سلمې رضي الله عنها نه علاوه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه، عائشه رضي الله عنها ، ام حبيبه رضي الله عنها او ابوهريره رضي الله عنه نه هم نقل دې. او ښکاره خبره ده.چه دا حديث به دے حضرات صحابه کرامو رضي الله عنهم د نبی ﷺ نه اودريدلی وی.

②عقلي دليل دا دې.چه اکثره موده د نفاس د حيض د اکثرے مودے په څلورچنده ده.او په باب الحيض کښې دا خبره تحقيق ته رسيدلے ده.چه زمونږ په نيز اکثره موده د حيض لس ورځې دی.نوددې څلورچنده څلويښت ورځې شوې۔

**په نفاس کښې د څلويښتو ورځونه د وينې زيادت**

| وَلَوْتَجَاوَزَالدَّمُ عَلَى الْأَرْبَعِينَ اوکه وينې د څلويښتوورځو نه تجاوز اوکړلو وَقَدْكَانَتْ هٰذِهِ الْمرأةُ وَلَدَتْ قَبْلَ ذٰلِكَ اوحال دا دې چه ددې ښځې وړاندې هم ولادت شوې وو وَلَهَاعَادَةٌ فِي النِّفَاسِ اودهغې په نفاس کښې خپل عادت وو وَرُدَّتْ إِلَى أَيَّامِ عَادَتِهَا نوهغه به خپل عادت طرف ته واپس کولې شی وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهَاعَادَةٌ اوکه ددې ښځې څه عادت معروفه نه وو فَنِفَاسُهَا أَرْبَعُونَ يَوْمًا نو ددې نفاس به دڅلويښتو ورځو نه وی |
|---|

**حل اللغة**﴾① جاوز مجاوزةً: زياتيدل، تيريدل ② ولدت، ولد ولادةً (ض) ماشوم پيداکيدل ③ردت، رد رداً(ن) واپس کول ]

**تشريح**﴾ **إستحاضة النفساء**﴾ صورت د مسئلې دا دې.چه د يوے ښځې د ولادت نه پس د څلويښتو ورځو نه زياته وينه راغله.نواوس به کتلی شی.چه ددې ښځې په نفاس کښې وړاندې څه عادت وو اوکه نه.که عدت ئې وو. نودعادت ورځې به نفاس شمارلې شی.او باقی استحاضه.دليل هغه دے کوم چه په باب النفاس کښې تير شوې دې.(که دحائضې په عادت باندې وينه زياتی شوه.اوهغه وينه د لسو ورځونه زياته وه.هغه به استحاضه وی.اوکه ددې څه معلوم عادت نه وو.نو په دې صورت کښې به څلويښت ورځې د نفاس وی.اوباقی به استحاضه وی.ځکه چه څلويښت ورځې د نفاس موده ګرځول ممکن هم دی.اوددې نه ګرځولو کښې شك دې.(ځکه چه کيدے شی.ددې د نفاس وينه څلويښت ورځې راخی. نوځکه به موده د نفاس څلويښت ورځې وی.

(۱) من حديث أم سلمة رضي الله عنها اخرجه أبوداود فی الطهارة باب ۱۱۹ رقم ۳۱۱ والترمذی فی الطهارة باب ۱۰۵ وابن ماجه فی الطهارة باب ۱۲۸ رقم ٦٤٨ والدارمی فی الوضوء باب ۹۹۔

**د یوې خیټې د ماشومانو حکم**

وَمَنْ وَلَدَتْ وَلَدَيْنِ فِي بَطْنٍ وَاحِدٍ او هغه ځوک چې اوزیږوي په یوه خیټه دوه ماشومان اوخیږول فَنِفَاسُهَا مَا خَرَجَ مِنَ الدَّمِ الْأَوَّلِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله نو ددې نفاس د شیخینو رحمهما الله په نیز دهغه وینې نه دې کومه چه داولنی ماشوم نه پس راوتلې وی وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ رحمهما الله اوامام محمداوامام زفر رحمهما الله فرمائی مِنَ الْوَلَدِ الثَّانِي چه ددویم ماشوم نه نفاس شروع کیږی

**حل اللغة** ۞ ① تنقضی، انقضی انقضاءً: پوره کیدل ② انسداد: بندیدل ③ انفتح انفتاحاً: کولاویدل ④ خروج: وتل ⑤ فیتناول، تناول تناولاً: شاملیدل ]

**تشریح** ۞ **بیان العدة في تولد التوامین** ۞ صورت د مسئلې دا دې.که دیوې ښځې دوه بچی د یوې خیټې نه پیدا شو.نو دهغې دنفاس شروع د شیخینو رحمهما الله په نیز د اول ماشوم نه کیږی.اګرچه د دواړو په مینځ کښې ځلویښت ورځې وی.

**دلیل الشیخین** رحمهما الله ۞ دشیخینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه دحمل په دوران کښې د حیض وینه ځکه نه راځی.چه د رحم خوله په ماشوم باندې بنده وی.خوچه کله ماشوم پیدا شو.نود رحم خوله کهلاو شوه.نود هغې نه پس چه کومه وینه راځی.هغه به خامخا د نفاس وی.ځکه چه د ولادت نه پس چه د رحم نه کومه وینه راځی.هغه به د نفاس وی.

② په دې مسئله کښې امام محمداوامام زفر رحمهما الله فرمائی.چه د دویم ماشوم نه به کیږی.

**دلیل الامامین** ۞ د (یوې) خیټې نه مراد دا دې.چه د دواړو ماشومانو په ولادت کښې د شپږو میاشتو نه کمه موده وی.دامام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چه د اول ماشوم پیدا کیدو نه پس هم دا ښځه حامله ده.اوحاملې ته چه ځنګه حیض نه راځی.دغه شان هغه نفاسه هم نشی جوړیدې.اوهم دا وجه ده.که ښځه مطلقه وی. نو د هغې عدت به په اتفاق سره د دویم نه حسابیږی. نو هم ددې نه به نفاس هم شروع کیږی.

**الجواب عنه** ۞ اود امام محمد رحمه الله دقیاس نه جواب دا دې.چه دعدت پوره کیدل د داسې حمل وضع سره متعلق دې.چه دهغې نسبت ښځې ته کیږی.الله تعالی فرمائیلی دی.﴿وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ﴾ اوحمل ونیلی شی [کل ما فی البطن] ته یعنی څه چه په خیټه کښې وی.نوداول ماشوم په پیدائش باندې پوره وضع د حمل اونشوه.بلکه د بعضې حمل وضع اوشوه.اود حاملې عدت پوره کیږی . په پوره وضع دحمل سره.نوځکه به عدت د دویم ماشوم په پیدا کیدو پوره کیږی په اول به نه پوره کیږی.

**د پلیتو او دهغې د پاکولو بیان**

# بَابُ الْأَنْجَاسِ وَتَطْهِيرِهَا

**ترجمه** ۞ (دا) باب د پلیتو او ددې د پاکولو (په بیان کښې) دې.

**تشریح** ۞ **معنی النجاسة لغةً** ۞ نجاست (بفتح الجیم) ذات دنجاست او بسکر الجیم هغه څیز چه پلیت وی. وړاندې مصنف رحمه الله دنجاست حکمی او د هغې د پاکولو بیان اوکړلو .او ددې ځائې نه د نجاست حقیقی او د هغې د پاکولو بیان شروع کوی.

**وجه تقديم النجاسة الحكمية** ﴿چونکه نجاست حکمی قوی دے په نسبت سره نجاست حقیقی ته.نوځکه ئې د نجاست حکمی احکام وړاندې ذکر کړل.باقی پاتې شوه دا خبره چه نجاست حکمی څنګه اقوی دې.ددې وجه دا ده.چه نجاست حکمی که کم هم وی.خوهغه د مونځ د جواز نه مانع دې.اوددې په خلاف نجاست حقیقی که کم وی.نو د مونځ د جواز نه مانع نه دې.

**دنجاست نه د پاکئ ضرورت**

| تَطْهِيرُ النَّجَاسَةِ دنجاست پاکول واجب دی وَاجِبٌ مِنْ بَدَنِ الْمُصَلِّي د مونځ ګذار دبدن نه وَثَوْبِهِ او د هغه دجامونه وَالْمَكَانِ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْهِ او دهغه ځائے نه چه کوم کښې مونځ کوی |
|---|

**حل اللغة** ﴿①تطهیر: پاکول ② بدن: وجود ③ مکان: ځائی ④ ثوب: کپړې

**تشریح** ﴿ **طريقي التطهير** ﴿په عبارت کښې د واجب نه مراد فرض دې.اود تطهیر دوه طریقے دی.یو د طهارت ثابتول او بل د نجاست زائله کول. په اول صورت کښې به ترجمه دا وی.محل دنجاست پاکول،او په دې کښې طهارت ثابت کول،اوپه دویم صورت کښې به ترجمه دا وی.د نجاست زائل کول فرض دی.بهرحال د مونځګذار د بدن اوجامو او هغه ځائې نه چه په کوم کښې مونځ کوی نجاست لرے کول فرض دی.

**دلائل شرطية طهارة الثوب** ﴿ ①دجامو په پاکولو باندې دلیل دالله ﷻ ارشاد دے ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ په دې طریقه چه صیغه د طهر، امر دې.او امر د وجوب دپاره راځی.نود جامو پاکوالے په عبارت النص سره ثابت شو.

② دنبی ﷺ حدیث دې.دوی فرمائیلی دی.دا(جامې) اومږه.او بیا ئې اوګروه.او بیا ئې په اوبو سره اووینځه. علامه ابن همام رحمه الله دا حدیث داسې نقل کړې دې.[عن أسماء بنت أبي بكر الصديق رضي الله عنها قالت جاءت إمرأة إلى النبي ﷺ فقالت إحدانا يصيب ثوبها من دم الحيض كيف تصنع به،قال ﷺ تحته ثم تقرصه بالماء ثم تنضحه ثم تصلي فيه](متفق علیه) حضرت اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنها فرمائی.یوه ښځه رسول الله ﷺ ته راغله.او عرض ئې اوکړلو.چه په مونږ کښې دیوے ښځې جامو ته د حیض وینه اورسی.نوهغه څه اوکړی.نبی ﷺ ورته اوفرمائیل: هغه په لرګی یا بل څه اوګروه.بیا ئې په اوبو باندې اووینځه.او بیا پرے اوبه تیرے کړه.اوبیا په کښې مونځ کوه.صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.که د وینځلو نه پس په جامه باندې داغ پاتې شی.نوهغه نقصانی نه دې.یعنی د مونځ د جواز نه مانع نه دې.

**دليل شرطية طهارة البدن والمكان** ﴿او د بدن اوځائې پاکوالے په دلالت النص سره ثابت شو.اودا په دې طریقه چه مونځ د خپل مالك سره مناجات دې.نوبکار دا ده.چه مونځګذار په ښه حالت کښې وی.اود مونځګذار دپاره به ښه حالت په هغه وخت کښې ثابتیږی.چه دے په خپله هم پاك وی.او چه کوم ځیزونه ده سره یوځائې وی. هغه هم پاك وی.نوهرکله چه د جامے پاکوالے فرض دې.حالانکه دا د مونځګذار سره متصل نه دی.(بلکه بغیر دجامونه هم پاتې کیدے شی. نود بدن او ځائې پاکوالے خویه خامخا فرض وی.ځکه چه دا جدا کیدے نشی.اوکامل اتصال ئې دے ورسره

**شرطية طهارة موضع القدم** ﴿داخبره دے یاده وی.چه د ځائې په پاکوالی کښې د قدم د ځائې پاکوالے معتبر دې.یعنی د اودریدو د ځائې پاکوالے ضروری دې.نوکه د قیام په ځائې کښې د یو درهم نه زیاته اندازه باندې پلیتی وی.نومونځ به فاسد وی.باقی پاتې شوه دا خبره چه د سجدے د ځائې پاکوالے هم ضروری

دے او که نه.نو په دې کښې اختلاف دې.

**الروايتان في طهارة موضع السجود** ⟨①امام محمد ﷫ د امام ابوحنيفه ﷫ نه يو روايت نقل کړې دې.چه د سجدے د ځائې طهارت هم لکه د قيام د ځائې د طهارت پشان ضروري دې.ځکه چه لکه څنګه قيام رکن دې.دغه شان سجده هم رکن دې.نولکه څنګه چه د قيام دپاره طهارت شرط دې.دغه شان به د سجدے دپاره هم شرط وي.

②اوامام ابويوسف ﷫ د امام ابوحنيفه ﷫ نه روايت کړې دې.چه د سجدے د ځائې پاکوالے شرط نه دې.ځکه چه سجده په پوزه باندې کيږي.اوپوزه د يو درهم نه کمه ده.او ديو درهم نه کم نجاست د مونځ د جواز نه مانع نه دې.نوځکه د سجدے د ځائې طهارت شرط نشو.اودطرفينو ﷫ په نيزد سجدے د ځائې طهارت شرط دې.ځکه چه سجده کيږي په تندي باندې.اود تندي ځائې د يو درهم دمقدار نه زيات دې.نوځکه ددې پاکوالے ضروري دې.

## په کومو څيزونو چه نجاست زائله کيږي

| وَيَجُوْزُاوجائزدے تَطْهِيْرُهَا بِالْمَاءِ پليتو لرے کول په اوبو باندې وَبِكُلِّ مَائِعٍ اوپه هر هغه څيز باندې چه بهيدونکې وي طَاهِرٍ اوپاك وي يُمْكِنُ إِزَالَتُهَا بِهِ اوپه هغې باندې د نجاست لرے کول ممکن وي كَالْخَلِّ لکه سرکه وَمَاءِ الْوَرْدِ اود ګلابو اوبه |
|---|

**حل اللغة** ⟨①يجوز: رواکيدل ②مائع: بهيدونکي ③ يمکن، امکن امکاناً: ممکن کيدل ④ازالة: زائل کول ⑤خل: سرکه ⑥ ماء الورد: عرق ګلاب

**تشريح** ⟨ **إزالة النجاسة الحقيقية بالمائع الطاهر** ⟨دامام ابويوسف اوامام ابوحينفه ﷫ په نيز په هر بهيدونکې څيزباندې نجاست زائله کيږي.چه پاك وي.اود نجاست زائله کول پرے ممکن وي.لکه سرکه او د ګلاب اوبه اوداسې څيزچه په نچوړولو سره نچوړ کيږي.نود ماکول اللحم ځناورو متيازو باندې نجاست نه پاکيږي.ځکه چه متيازې پليتې دي.او په تيلو باندې هم نجاست نه پاکيږي.اګرچه تيل پاك دي.ليکن په نچوړولو سره نه نچوړ کيږي.بلکه په کپړه کښې جزب کيږي.

**دليلهما** ⟨ دشيخينو ﷫ دليل دا دې.چه داوبو نه علاوه بل مانع څيز ځکه پاکونکےدې.چه په دې باندې نجاست زائله کيږي.او اوبه ځکه پاکونکې دي.چه په دې کښې د نجاست لرے کولو معنی پرته ده.نوکه دغه معنی د نجاست زائله کولو په بل څيز کښې موجود شي. نويکار ده چه هغه هم پاکونکې وي.بلکه اوبه خو د بعضې رنګدار نجاست رنګ نه زائله کوي.او سرکه دغه رنګ زائله کوي.

**الروايتان في تطهيرالبدن بالمائع** ⟨ صاحب دهدايه فرمائيلي دي. ①چه په قدوري کښې کوم حکم ذکر دې. په دې کښې د جامے او بدن په مينځ کښې څه فرق نشته.يعني لکه څنګه چه په اوبو اوبهيدونکې څيز باندې جامه پاکيږي.دغه شان بدن هم په دواړو باندې پاکيږي.اودا د امام ابوحنيفه ﷫ نه يو روايت هم دې.او د امام ابويوسف نه په دوو روايتونو کښې يو روايت هم دې.

②اود امام ابويوسف ﷫ نه دويم روايت دا دې.چه هغوی په جامواو بدن کښې فرق کړې دې.چه بدن صرف په اوبو باندې پاکيږي.اوجامه په اوبو او بهيدونکې پاك څيز باندې هم پاکيږي.

## د جوثه دار نجاست نه د موزې پاکول

| وَإِذَا أَصَابَتِ الْخُفَّ اوکله چه اولګی موزے سره نَجَاسَةٌ لَهَا جِرْمٌ داسې نجاست چه دهغې جوثه وي فَجَفَّتْ او |
|---|

بیا دا نجاست اوچ شی فَدَلَكَهُ بِالْأَرْضِ اوبیا نې په زمکه باندې اومگی جَازَتِ الصَّلَاةُ فِيْهِ نو جائز دې مونځ په هغې کښې

**حل اللغة** ﴿۱﴾ اصاب اصابة: رسیدل ﴿۲﴾ فجفت، جف جفافًا (ض): اوچیدلې ﴿۳﴾ فدلکه، دلك دلكًا (ن) یوځایٔ کیدل، مرل

**تشریح** ﴿ **تطهير الخف من النجاسة العينية** ﴾ مسئله دا ده. ﴿۱﴾ که موزې سره داسې پلیتې اولگیدله. چه هغه جوثه داره وی.لکه خاشنړه، غټ بول، وینه او منی، او اوچه شی.او په زمکه پورې نې اومگی. یا نې په لرگی یا بل څه اوگروی.اوصفا نې کړی. نوهغه موزه پاکه شوه.چه هغه واچوی.اومونځ کوی.نو جائز ده.دا حکم استحسانی دې.یعنی د قیاس جلی خلاف دې.

**دلائله** ﴿ ﴿۱﴾ دلیل دحضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه حدیث دې.چه [أن النبی ﷺ كان يصلي فخلع نعليه فخلع القوم نعالهم فقال ﷺ لهم بعد الصلاة لما خلعتم نعالكم ؟ قالوا رأيناك خلعت نعليك فخلعنا فقال ﷺ أخبرني جبرئيل ﴿۱﴾ إن فيهما قذرا إذا أتى أحدكم باب المسجد فليقلب نعليه فإن رأى فيهما قذرا فليمسحهما بالأرض] یعنی نبی ﷺ مونځ کولو.نوخپلې پنړې نې اوویستلې.نوصحابه کرامو رضی الله عنهم هم خپلې پنړې اوویستلې.کله چه نبی ﷺ د مانځه نه فارغ شو.نو صحابه کرامو ته نې اوفرمائیل: تاسو ولې پنړې اوویستلې؟هغوی ورته عرض اوکړلو.یارسول الله مونږ اوکتل.چه تاسو خپلېپنړې اوویستلې.نومونږ هم پنړې اوویستلې.نبی ﷺ اوفرمائیل: ماخو ځکه پنړې اوویستلې.چه حضرت جبرئیل علیه السلام راته خبر راکړلو.چه ستا په پنړوکښې گندگی ده.کله چه په تاسوکښې څوك د جمات دروازې ته راشی.نو پنړې دې راواړوی.او اودې گوری.که څه گندگی پرې اووینی.هغه دې په زمکه باندې اومگی.او په یوروایت کښې داسې الفاظ راغلی دی.چه [فإن الأرض لهما طهور] یعنی زمکه ددې دپاره مطهر یعنی پاکونکې ده.ددې حدیث نه معلومه شوه.که موزې پورې نجاست لگیدلې وی.نو هغه دې په زمکه باندې اومگی.د وینځلو ضرورت نشته.

﴿۲﴾ عقلی دلیل دا هم دےچه موزه چونکه د څرمن نه جوړه شوې وی.نو په دې کښې د نجاست اجزاء نه جذب کیږی.مگر ډیر لږ غوندې.بیا چه دا لږ هم اوچ شی.نو ددې جوثه نجاست جذب کړی.او چه کله جوثه زائله شی.نو د هغې د زائله کیدو سره د نجاست اجزاء هم زائله شی.

**الروايتان في طهارة النجاسة الرطبة من الخف** ﴾ مسئله دا ده. ﴿۱﴾ که موزې ته لوند نجاست اورسی.لکه خاشنړه ،غټ بول، وینه وغیره .او تراوسه پورې اوچ شوې نه وی.نو په زمکه پورې مگولو سره دا نه پاکیږی.بلکه ددې پاکول ضروری دی. ځکه چه لوند نجاست په زمکه باندې اومگلی شی.نوهغه نور هم خوریږی.اوبنکاره خبره ده.چه په دې باندې به موزه نوره هم بلیته شی.پاکیږی پرے نه.

﴿۲﴾ اودامام ابویوسف رحمه الله نه مروی دی.چه د لوند نجاست په صورت کښې چه هغه زمکه باندې اومگی.اواثر دنجاست زائله شی. نو موزه پاکیږی.ددې د وینځلو ضرورت نشته.

**دلائله** ﴿ ﴿۱﴾ ځکه په دې کښې عموم بلوی ده.یعنی عام طور خلق په دې کښې اخته دې.که وینځل ضروری اوگرځولې شی.نو په دې کښې حرج دې.(اوحرج په دین کښې مرفوع دې.

②دویمه خبر دا ده.چه حدیث [فلیمسحهما بالأرض] مطلق دي. په دې کښې د اوچ او لوند نجاست څۀ فرق نشته.نوموزه به په زمکه باندې مګولو سره پاکیږی.که په هغې باندې لوند نجاست وی اوکه اوچ.زمونږ د مشائخو هم دا قول دې.او په دې باندې فتوی ده.

**الروایتان في طهارة النجاسة الرطبة العینیة من الخف**> مسئله دا ده. ①که داسې نجاست موزے ته اورسی.چه د هغې جوثه نه وی.لکه متیازې اوشراب شو.نو په دې صورت کښې ددې پاکې صرف په وینځلو سره حاصلیږی.د اوچید نه پس په زمکې باندې مګولو سره نه حاصلیږی. ځکه چه د نجاست اجزاء په موزه کښې دننه جذب کیږی.اودلته داسې څۀ جوثه نشته.چه په اوچیدو باندې هغه د نجاست اجزاء جذب کړی.(اوبیا ددغه جوثې په لرے کولو سره د نجاست اجزاء هم ختم شی. از مترجم) بلکه د دغه جذب شوی اجزاؤ د لرے کولو دپاره د موزے وینځل ضروری دی.

②دامام ابویوسف رحمه الله نه مروی دی.که موزے پورې متیازې اولګیدلې. اوبیا په دغې پورې شګه یابل داسې څه جوثه دار څیزاولګیدلو.اوبیا هغه اوچ شی.او په زمکه ئې اومګی.نو په دې سره موزه پاکیږی.په اوبو سره د وینځلو ضرورت نشته.شمس الائمه امام سرخسی رحمه الله فرمائیلی دی.چه هم دا قول صحیح دې.

### د نجاست نه د جامې پاکولو طریقه

**تطهیر الثوب من النجاسة بالغسل**> مسئله دا ده.که جامے ته نجاست اورسی .اګرچه هغه اوچ وی. نوبغیر دوینځلو نه جامه نه پاکیږی.دلیل دا دې.چه په جامه کښې کلك والے نه وی.بلکه هغه راانغښتلے شی.نوځکه د نجاست زیات اجزاء په جامه کښې داخلیږی.او د هغې د اجزاؤ د راویستلودپاره په اوبو یا بل څه سره وینځل ضروری دی.په زمکه باندې مګل کافی نه دی.

### د منئ د محل د پاکولو طریقه

| وَالْمَنِیُّ نَجِسٌ منی پلیته ده یَجِبُ غَسْلُ رَطبه واجب دی وینځل د لمده منئ فَإِذَا جَفَّ عَلَى الثَّوْبِ او چه په جامه باندې اوچه شی أَجْزَأَ فِيهِ الْفَرْكُ نو په دې کښې ګرول کافی دی |
|---|

**حل اللغة**> ①نجس: ناپاك ② رطبا: لمنده ③جف جفافًا(ض) اوچیدل ④فرك: رژول⑤اصاب اصابةً: رسیدل ⑥اشد: زیات سخت ]

**تشریح**> **نجاسة المني عندالأحناف** رحمهم الله >د سړی منی پلیته ده.که دا لونده وی نوبغیر د وینځلونه نه پاکیږی او که وچه وی نوپه ګرولو سره هم پاکیږی لکه څنګه چه د دلائلو نه معلومیږی

**دلائله** > ①رسول الله ﷺ حضرت عائشې رضی الله عنها ته فرمائیلی وو[فاغسلیه إن كان رطبا وافركيه إن كان يابسا] اودارقطنی او مسند بزار داحدیث داسې نقل کړې دې. [عن عائشة رضی الله عنها قالت كنت أفرك المني من ثوب رسول الله ﷺ إن كان يابسا وأغسله إذا كان رطبا] حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.ما به د رسول الله ﷺ د جامو نه منی ګروله.که هغه به اوچه وه.او وینځله به مې کله چه به لونده وه.

② د حضرت عماربن یاسر رضی الله عنه د حدیث نه هم ښکاره کیږی.[أن النبي ﷺ مر على عمار بن ياسر رضی الله عنه وهو يغسل ثوبه من النخامة فقال ﷺ ما نخامتك و دموع عينيك ، والماء الذي في ركوتك إلا سواء وإنما يغسل الثوب من خمس من البول والغائط والدم والمني والقيء] یعنی نبی ﷺ په حضرت عماربن یاسر رضی الله عنه باندې تیرشو.اوهغه

گرنګ وینځلو.نونبی ﷺ ورته اوفرمائیل:ستا ګرنګ، او ستا د سترګو اوښکے،او هغه اوبه چه ستا په لوټه کښې دی.برابر دی. او جامه خو د پنځو څیزونو نه وینځلی شی.دمتیازو او د غټو بولو او د وینے او د منی او د قی نه.په یو روایت کښې د قی په ځائے د شرابو ذکر راغلے دې. بهرحال دا احادیث د منی په نجاست باندې دلالت کوی

**الروایتان في تطهیر البدن من المني** ﴿ صاحب دهدایه فرمانی. ①که منی په بدن باندې اولګی.نو په دې صورت کښې هم د ماوراء النهر دعالمانو ﷭ په نیز منی په ګرولو پاکیږی.ځکه چه منی خو د جامے نه جدا کیدے شی.او د بدن نه جدا کیږی نه.

②د امام ابوحنیفه ﷫ نه یو روایت دا هم دې.چه منی په بدن پورې اوچه شی.نو په ګرولو باندې نه پاکیږی .بلکه دهغې وینځل ضروری دی.اودلیل دا وائی. چه د بدن ګرمی منی جذب کوی.او د جذب کولو نه پس د منی اثر د منی جوثې ته نه واپس کیږی.یعنی یو ځل چه بدن دغه نجاست جذب کړی.نود بدن د حرارت د وجے هغه منی بیا نه رابهرته کیږی.چه د منی جوثه نې جذب کړی وی.او په ګرولو سره د جوثې د زوال سره اثر د نجاست هم زائل شی.داسې نه ده. او دبدن ګرول هم ممکن نه دی.نو وینځل نې ضروری شو.

**د تورې وغیره د پاکولو طریقه**

| وَالنَّجَاسَةُ إِذَا أَصَابَتْ اونجاست چه کله اولګی الْمِرْآةَ شیشے پورې أَوِالسَّيْفَ او په تورے پورې اكْتُفِيَ بِمَسْحِهِمَا نوددې په مسح به اکتفا کولې شی |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① مراة: شیشه ②سیف جمع سیوف: توره

**تشریح** ﴿ **تطهیر السیف وغیره** ﴿ مسئله دا ده.که نجاست شیشے یا تیرۀ توره پورې یا په چاړه پورې اولګی.نودا څیزونه په زمکه پورې رابنکلوسره پاکیږی.په اوبو وغیره وینځل شرط نه دې.امام مالك ﷫ ددې قائل دې.دلیل دا دې.چه دا څیزونه دننه نه ورځی.نو ددې د دننه نه د راویستلو څه ضرورت نشته. اوکه باقی پاتې شو هغه نجاست کوم چه دپاسه وی.نوهغه په مګلوسره زائله کیږی.نوپه اوبو باندې دهغې د وینځلو ضرورت نشته.البته که توره وغیره نقش داره وی.یا زیږه وی.یا په هغې پورې څه خیرے وی.اونجاست ورپورې اولګی.نو د وینځلو نه بغیر نه پاکیږی.

**د زمکې دطهارت طریقه**

| وَإِنْ أَصَابَتِ الْأَرْضَ نَجَاسَةٌ اوکه نجاست په زمکه پورې اولګیدلو فَجَفَّتْ بِالشَّمْسِ او بیا په نمریاندې اوچ شو وَذَهَبَ أَثَرُهَا اواثر نې هم ختم شو جَازَتِ الصَّلَاةُ عَلَى مَكَانِهَا نو د دغه نجاست په ځائې مونځ کول جائز دې وَلَا يَجُوزُ التَّيَمُّمُ مِنْهَا او په دې باندې تیمم جائزنه دې |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① ذهب ذهاباً(ف): تلل ② اثر : نښه ③ مکان: ځائې

**تشریح** ﴿ **جواز الصلاة بالأرض الجافة من النجاسة** ﴿ ①که په زمکه پورې نجاست اولګی.اوبیا هغه اوچه شی.په نمر یا په اور یا په هوا یا په بل څیز.اود پلیتئ اثر رنګ بوئ وغیره هم ختم شی.نوپه دغه ځائے باندې مونځ جائز دې.البته تیمم پرے جائزنه دې.

**دلیله** ﴿دلیل د رسول الله ﷺ قول دې.چه [ذكاة الأرض يبسها] یعنی د زمکے پاکوالے ددې اوچوالے دې.او

ددې هم معنی حدیث داهم دې.چه [أيما الأرض جفت فقد طهرت] یعنی کومه زمکه چه اوچه شوه. نو هغه پاکه شوه.

**په نجاست غلیظه کښې د معاف شوې مقدار حد**

وَمَنْ اَصَابَتْهُ مِنَ النَّجَاسَةِ الْمُغَلَّظَةِ او چاته چه اورسی د نجاست غلیظه نه كَالدَّمِ وَالْبَوْلِ وَالْخَمْرِ وَخُرْءِ الدَّجَاجِ وَبَوْلِ الْحِمَارِ لکه وینه ،متیازې ،شراب ، دچرګې ګندګی او د خر متیازې د یو درهم په مقدار یا ددې نه کم (معاف دی) جَازَتِ الصَّلَاةُ مَعَهُ دے سره مونځ جائز دې وَإِنْ زَادَ اوکه ددې نه زیات وی لَمْ یَجُزْ نو جائزنه دې

**حل اللغة**> ① قدر: اندازه مقدار ② دون: کم ③ بول: متیازې ④ خمر شراب ⑤ خرء: ګندګی ⑥ دجاج: چرګه

**تشریح**> **الخلاف في تعريف النجاسة الغليظة والخفيفة**> د نجاست دوه قسمونه دی.نجاست غلیظه او نجاست خفیفه.ددې په تعریف کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله او صاحبینو رحمهما الله اختلاف دې.

① دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز نجاست غلیظه هغه دې.چه دهغې ثبوت په داسې قطعی نص سره شوې وی.چه دهغې معارض بل نص دطهارت ثابتونکے نه وی.اوکه دوه نصین په خپل مینځ کښې متعارض وی.دیونه طهارت ثابتیږی.او دبل نه نجاست.نودا به نجاست خفیفه وی.

② اود صاحبینو رحمهما الله په نیز نجاست غلیظه هغه دې.چه د هغې په نجاست باندې اجماع واقع شوې وی. او نجاست خفیفه هغه دې.چه په هغې کښې عالمانو رحمهم الله اختلاف کړې وی.

**ثمرة الإختلاف**> ثمره د اختلاف په خاشنړو کښې ښکاره کیږی.ځکه چه خاشنړه دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز نجاست غلیظه دې.ځکه چه د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روایت دې.چه لیلة الجن کښې دوی نبی ﷺ ته د قضاء حاجت دپاره دوه کاڼړی اوخاشنړه راوړل.نو نبی ﷺ ترے کاڼړی واخستل.او خاشنړه ئې واپس کړلو.اوددې سره بل داسې معارض نص نشته.چه دهغې نه د خاشنړو طهارت ثابتیږی. اود صاحبینو رحمهما الله په نیز خاشنړه نجاست خفیفه دې.ځکه چه دامام مالك رحمه الله په نیز خاشنړه پاك دی.

**القدر المعفو في النجاسة الغليظة**> ددې تمهید د کتلو نه پس دا اوګورئ.چه د مصنف رحمه الله ددې عبارت نه مقصد دا دې.چه د نجاست څومره مقدار معاف دې.او څومره معاف نه دې.نو فرمائی.چه نجاست غلیظه (لکه بهیدونکې وینه متیازے، شراب، د چرګې ګندګی او د خر متیازې ) په صورت کښې د یودرهم هومره مقدار معاف دې.یا ددې نه کم.که د دومره مقدار نجاست سره ئې مونځ اوکړلو.نومونځ ئې جائز دې.(خودا جواز په هغه صورت کښې دې.چه د اول نه ده ته پته نه وی.دمانځه نه پس ورته معلومه شی.چه زما په جامه کښې خو دومره ځائې نجس وو.اوکه د اول نه جامه کښې نجاست وینی.نو هغه به اول وینځی.او بیا به مونځ کوی. برابره ده که دا مقدار پلیتی په جامے پورې لګیدلے وی.اوکه په بدن پورې.اوکه د یودرهم نه زیاته وی.نوهغه معاف نه ده.اودهغې سره مونځ جائزنه دې.

**تقدير الكثير بالدرهم ووجهه**> باقی پاتې شوه دا خبره چه د کم او زیات مقدار معیار څه ځیزدې. نوزمونږ د عالمانو په نیز د یو درهم په مقدار باندې کم دې.او ددې نه زیات مقدر زیات دې.اودا اندازه مونږ استنجاء په ځائې باندې قیاس کړې دې. ځکه چه د استنجاء ځائې په اجماع سره معاف دې.(یعنی که سړې په لوټه باندې استنجاء اوکړی.نوپه لوټه باندې مخرج بیخی نه پاکیږی.لیکن ددې باوجود که

سرې په اوبواستنجاء اونکړی.او مونځ اوکړی.نو مونځ جائز دې. حالانکه په مخرج کښې به خامخا څه گندگی وی.نومعلومه شوه.چه دومره کم مقدار معاف دې. یعنی ځائې د استنجاء معاف دې.نو مونږ په دې باندې قیاس اوکړلو. اوبه دومره مقدار کښې مو نجاست معاف اوگرځولو.

**الروایتان في نوعیة قدر الدرهم**> بیا د امام محمد رحمه الله نه د یو درهم په تقدیر کښې دوه روایتونه دی. ① یو روایت د مساحت دې.یعنی چه دلاس د تلی په پلنوالی باندې یعنی کله چه سړې لاس نیغ اونیسی.او په تلی کښې څومره اوبه اودریږی.نو دغه مقدار معاف دې

②اوبل روایت دا دې.چه د درهم مقدار د وزن په اعتبار سره دې.یعنی د درهم نه مراد دا دې.چه د هغې وزن د یو درهم د وزن برابر وی.

**وجه التوفیق بین الروایتین**> فقیه ابوجعفر رحمه الله فرمانیلی دی.چه په دواړو قولینو کښې تطبیق داسې کیدے شي .چه د مساحت اعتبار یعنی د یو درهم په مساحت باندې چه پلیتی وی.نوداً به د نرمې پلیتئ سره اولگوی . (لکه متیازې شوې. اود وزن د اعتبار روایت به د هغه نجاست سره اولگوی.چه هغه ټینګ وی. (لکه غټ بول شو. نوکه د سړی متیازې وی. نوهغه به د مساحت په اعتبار سره د یو درهم په اندازه معاف وی.اوددې نه زیاتی به معاف نه وی.اوکه غټ بول وی.نود وزن په اعتبار سره چه د یو درهم برابر وی.نوهغه معاف دی. او ددې نه زیاتی معاف نه دی.

**تغلیظ النجاسات المذکورة في المتن**> په متن کښې چه څومره څیزونه ذکر شوی دی.دا ټول نجاست غلیظه دی.ځکه چه ددې څیزونو نجاست په دلیل قطعی سره ثابت دې.اود طهارت معارض نص ورسره هم نشته.

## د نجاست خفیفه د معاف شوی مقدار بیان

| وَإِنْ أَصَابَتْهُ نَجَاسَةٌ مُخَفَّفَةٌ اوکه اورسی ورته نجاست خیفیفه كَبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ لکه د ماکول اللحم خناورو متیازې شوې جَازَتْ الصَّلَاةُ مَعَهُ نودے سره مونځ جائزدې مَا لَمْ تَبْلُغْ رُبْعَ الثَّوْبِ تردے چه نه وی رسیدلې څلورمې حصې ته |
|---|

**حل اللغة**> ① مخففة:سپك ②یؤکل، اکل اکلاً (ن) خوراك ③ لحم: غوښه ④ تبلغ، بلغ بلوغاً(ن) : رسیدل ⑤ربع: څلورمه

**تشریح**> **الربع في النجاسة الخفیفة غیرمعفو عنه**> په دې عبارت کښې د نجاست خفیفه دهغه مقدار بیان دې.کوم چه معاف وی.نوفرمائی.چه نجاست خفیفه د جامے د څلورمې نه کمے حصې پورې معاف دې.لکه د ماکول اللحم خناور متیازې شوې . او د څلورمې حصې د مقدارپه برابری معاف نه دې. یعنی که په جامه باندې نجاست خفیفه د جامے د څلورمې حصې نه کم لګیدلې وی.نو د هغې سره مونځ جائز دې.او که ددې برابر یا ددې نه زیات لګیدلے وی.نو دهغې سره مونځ جائز نه دې دا د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې.

**دلیله**> دلیل دا دې.چه د نجاست خفیفه په باره کښې د کثیرفاحش سره اندازه کړې شوې ده یعنی که نجاست خفیفه زیات اولګی.نومونځ ورسره جائز نه دې. او په ډیرو احکامو کښې څلورمه حصه د کل برابر ده.لکه د سر څلورمه حصه مسح د ټول سر دمسح برابر ده.او په عورت کښې د څلورمې حصې ښکاره کیدل د کل عورت د ښکاره کیدو برابر دی.او دغه شان په حالت د احرام کښې د څلورمې

حصې سر خرنیل د ټول سره برابر ګرځولې شوې دی.حاصل دا دې.چه څلورمه حصه دکل قائم مقام ده.او د کل نجاست خفیفه نه فاحش کثیر ثابتیږی.(یعني چه څلورمه حصه پلیته وی.نودا داسې ده.لکه چه ټوله پلیته ده. اوچونکه فاحش کثیر په نجاست خفیفه کښې معاف نه دې.نوځکه مونږ وایو.که څلورمې حصې ته نجاست اورسیدلو.نوددې سره مونځ جائزنه دې.

**المراد من الربع** >باقی پاتې شوه دا خبره چه څلورمه حصه د څه مراد ده.نو په دې باره کښې د فقهاؤ اختلاف دې. دامام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دا نقل دی.چه د ټول بدن څلورمه حصه ده.اود جامې څلورمه حصه مراد ده.اګرچه جامه لویه وی.امام ابن الهمام رحمه الله فرمانیلی دی.چه دا قول احسن دې.

**د نجاست مرئي د طهارت طريقه**

| وَتَطْهِيْرُالنَّجَاسَةِالَّتِيْ يَجِبُ غَسْلُهَاعَلٰى وَجْهَيْنِ اوپاکول د هغه نجاست چه واجب وی وینځل د هغې په دوه قسمونه دی فَمَا كَانَ لَهُ عَيْنٌ مَرْئِيَّةٌ نوچه د کوم دپاره جوثه وی لیدونکې وَغَيْرُ مَرْئِيَّةٍ او غیرمرئی فَمَا كَانَ مِنْهَا مَرْئِيًّا نوکوم چه مرئی وی فَطَهَارَتُهُ زَوَالُ عَيْنِهَا نو دهغې طهارت دهغې د ذات په زائله کولو سره راځی |
|---|

**تشريح > طريقة تطهير النجاسة المرئية** >شیخ قدوری فرمانی.چه د نجاست دوه قسمونه دی.نجاست مرئی او غیر مرئی.څکه چه د نجاست د اوچوالی نه پس به نجاست یا په نظر راځی او یا به نه راځی.نوکه اول وی.دا مرئی دې.او که دویم صورت وی .نودا غیرمرئی دې.د نجاست مرئی پاکولوطریقه دا ده.چه دهغې ذات زائل شی. اګر چه دهغې د اثر څنې بعضې باقی وی.لکه رنګ او بوئی وغیره .

**دليله**>دلیل دا دې.چه نجاست په اعتبارد خپل ذات سره په محل کښې حلول کړې دې.نوچه د نجاست ذات او عین زائله شی.نودے سره نجاست هم زائله شو.

**دلائل عفو أثرالنجاسة** > ①البته دومره ده چه د نجاست کوم اثر باقی وی . چه دهغې لرے کول ګران وی. نوهغه باقی پاتې شی.نوددې جواب دا دې.چه چونکه ددې په لرے کولو کښې
حرج دې.او په شریعت کښې حرج لرے کړې شوې دې.نو ددې وجود څه نقصان نه رسوی. .

② دحضرت خوله بن یسار رضی الله عنها په حدیث سره هم ښکاره کیږی.[أنها قالت یارسول الله إن لی ثوبا واحدا وأنا أحیض فیه فقال ﷺ رشیه واقرصیه ثم اغسلیه بالماء فقالت یارسول الله یبقی له أثره فقال رسول الله ﷺ یکفیك الماء فلا یضرك أثره] یعني خوله بنت یسار رضی الله عنها فرمانی.چه دے رسول الله ﷺ ته عرض اوکړلو.چه زما یوه جامه ده.اوزه په هغې کښې حائضه کیږم. نونبی ﷺ ورته اوفرمانیل:په هغې باندې اوبه واچوی.اوبیائې په اوبواووینځه.هغې تپوس اوکړلو.که دهغې اثر باقی پاتې شی.نونبی ﷺ ورته اوفرمانیل :ستا دپاره په اوبو باندې وینځل کافی دی.داثرباقی کیدل تاته څه نقصان نه رسوی. اودلته دمشقت تفسیردا دې .چه ددې لرے کولو کښې د اوبونه علاوه د بل څیز لکه صابون وغیره ته حاجت پیښیږی.

**ما يفهم من عبارة القدوري؟** >صاحب د هدایه فرمانیلی دی.چه دامام قدوری عبارت دے طرف ته اشاره کوی.چه د نجاست د ذات لرے کیدو نه پس د خائې وینځل شرط نه دې.اګرچه د نجاست ذات په یوځل وینځلو سره لرے شی.یعنی که د نجاست ذات په یوځل وینځلو سره لرے شی.دا کافی دې.اوکه د نجاست ذات په درې ځله وینځلو سره هم لرے نشی.نوترهغه وخته پورې به ئې وینځی.چه د نجاست ذات لرے شوې نه وی.

**القول الراجح في عدد غسل محل النجاسة المرئية إذا زال بدون ثلاث مرات** > صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه په یوخل ذات د نجاست لرے شی.نو په دې کښې عالمانوخبرے کړې دی.څوك وائی.که په یوخل هم لرے شی.نو درې خله به نې وینځی.ځکه چه ذات د نجاست لرے شو.نوددې نه پس دغه محل دنجاست غیر مرئی پشان شو.اوپه نجاست غیرمرئی کښې درې خله وینځل ضروری دی.نوددې وینځل هم ضروری دی.فقیه ابوجعفر رحمه الله فرمائی.چه یو خل څونې وینځلے دې. نو دوه خله دے نورهم اووینځی.چه د دریو عدد متحقق شی.لیکن تحقیقی خبره هم هغه ده.کومه چه صاحب دهدایه رحمه الله ذکر دې.

## دنجاست غیر مرئی د طهارت طریقه

| وَمَا لَيْسَ لَهُ عَيْنٌ مَرْئِيَّةٌ اوهغه نجاست چه نه وی د هغې جوثه لیدونکې فَطَهَارَتُهُ نودهغې طهارت دا دې أَنْ يُغْسَلَ چه هغه وینځلے شی حَتَّى يَغْلِبَ عَلَى ظَنِّ الْغَاسِلِ تردے چه د وینځونکی په گمان باندې غالب شی أَنَّهُ قَدْ طَهُرَ چه دا پاك شو۔ |
|---|

**حل اللغة** > ① ان يغسل، غسل غسلاً (ض) وینځل

**تشریح** > **حكم تطهيرالنجاسة غير المرئية** > په دې عبارت کښې د نجاست د دویم قسم یعنی نجاست غیرمرئی بیان دې.لکه متیازې شراب وغیره.ددې حکم دا دې.چه جامه به دومره وینځی.چه د وینځونکی دا غالب گمان پیدا شی.چه جامه پاکه شوه.

**دليل العمل بغالب الظن** > دلیل دا دې.چه د نجاست د ویستلو دپاره تکرار ضروری دې.او چونکه نجاست غیرمرئی دې.نود زوال علم ئے په یقین سره نشی راتلې.نوځکه په کښې د غالب گمان اعتبار اوکړې شو.لکه څنگه چه د جهت د قبلې په مسئله کښې دا خبره ده.یعنی چه یوکس باندې قبله مشتبه (گډه وډه) شی. او خبروَنکې هم څوك نه وی.نودے به تحری (سوچ اوفکر) اوکړی.اود تحری نه پس چه کوم طرف ته نې غالب گمان پیدا شو.چه دے طرف ته قبله ده.هغه طرف ته دے مونځ اوکړی.هم هغه طرف معتبر دې.تردےکه د مونځ نه پس ورته خپله غلطی ښکاره شی.نو هم پرے د مونځ دوباره راگرځول نشته.(ځکه چه ده په غالب گمان باندې عمل کړې وو.اوغالب گمان قائم مقام د یقین دې.)

**تثليث الغسل يفيد غلبة العلم** > صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه فقهاؤ درې خله وینځل د غالب گمان دپاره معیار گرځولې دې.ځکه چه په دې تعداد باندې غالب گمان پیدا کیږی. نود آسانتیا دپاره دا ظاهری سبب چه درې خله دی.قائم مقام د غالب گمان اوگرځولې شو.یعنی په درې خله وینځلو به د پاکئ حکم لگولې شی.او ددې تائید په هغه حدیث سره کیږی.چه په هغې کښې دخوب نه رابیداریدونکی سړی دپاره تعلیم موجود دې. [إذا استيقظ أحدكم من منامه فلا يغمسن يده في الإناء حتى يغسلها ثلاثا فإنه لا يدري أين باتت يده] یعنی کله په تاسوکښې څوك د خوب نه رابیدارشی.نوخپل لاس دې په لوښی کښې نه وردننه کوی.تردے چه درې خله نې اووینځی.ځکه چه ده ته پته نه لگی.چه دده لاس په کوم ځائې کښې شپه تیره کړې ده.(یعنی دده په بدن کښې په شرمگاه پروت وو اوکه په بل پاك ځائې . په دې حدیث کښې د یو وهمی نجاست د وجے درې خله د وینځلوحکم کړې شوې دې.(یعنی دا په یقین سره معلومه نه ده.چه دده لاس به د شپې په خوب کښې د نجاست سره لگیدلے وی. صرف یواحتمال قدر وو.خونبی ﷺ اوفرمائیل:چه په اوبو کښې دے لاس نه ورداخلوی.ځکه چه اوبه به پرے پلیتے شی . نو کوم نجاست چه متحقق وی.نوده هغې د وینځلو حکم خو به خامخا درې خله وی.

**حکم التعصیر في النجاسة غیر المرئیة**> اوبیا په ظاهر روایت کښې دهرځل وینځلو نه پس نچوړول ضروری دی.ځکه چه په نچوړولوسره نجاست خارجیږی . اوپه غیر ظاهر روایت کښې د امام محمد رحمه الله نه نقل دی .چه په دریم ځل نچوړول کافی دی.هرځل نچوړولو ته ضرورت نشته.

## په استنجاء کښې د کاڼرو د عدد حکم

| اَلْاِسْتِنْجَاءُ سُنَّةٌ استنجاء سنت ده يُجْزِءُفِيهِ الْحَجَرُوَالْمَدَرُوَمَاقَامَ مَقَامَهُمَا جائزدې په دې کښې کاڼرې لوټه اوهغه چه د دې قائم مقام وی يَمْسَحُهُ حَتّٰى يُنَقِّيَهُ مسح کوی به ئې تردې چه پاک ئې کړی |
|---|

**تشریح**> **وجه ذکرالإستنجاء في باب الأنجاس**> امام قدوری رحمه الله په دې فصل کښې د استنجاء بیان کوی.د بعضې عالمانو رحمهم الله خیال دې.چه دا استنجاء د اودس په سنتو کښې ده.نودا د اودس په بیان کښې ذکر کول مناسب وو.جواب چونکه د سبیلینو نه د نجاست حقیقی لرے کولو نوم استنجاء ده.نوځکه ئې دا په [باب الانجاس وتطهیرها] کښې ذکر کړله.

**تشریح الکلمات المستعملة في الإستنجاء**> استنجاء ،استطابه او استنجمار درې واړه الفاظ هم معنی دی.خو استنجاء او استطابه عامه ده.که په اوبو سره وی اوکه په بل پاکونکی څیز سره وی.اواستجمار د لوټو او کاڼرو سره خاص دې.داستنقاء معنی هم په کاڼری وغیره سره پاکول دی.اواستبراء په زمکه باندې پښه وهلو ته وائی.اواستنزاه د متیازو نه ځان ساتلو ته وائی. استنجاء ماخوذ ده.د "نجو" نه او "نجو" وائی.هغه څیز ته چه د خیټې نه راوځی.اواوچت ځائې ته هم "نجو" وائی.

**حکم الإستنجاء**> استنجاء زمونږ په نیز سنت موکده ده.اوامام مالك رحمه الله او امام مزنی رحمه الله هم ددې قائل دی.

**دلائله**> د استنجاء د مسنونیت دلیل د نبی ﷺ همیشوالې دې.د بخاری او مسلم حدیث دې.[عن أنس رضي الله عنه قال کان رسول الله ﷺ یدخل الخلاء فأحمل أنا وغلام نحوی إداوة من ماء وعنزة فیستنجي بالماء] حضرت انس رضي الله عنه فرمانې. چه کله به نبی ﷺ بیت الخلاء ته داخلیدلو. نو ما او زماپشان یو هلك به د اوبو یوه لوټه اوړله.نو نبی ﷺ به په اوبو باندې استنجاء کوله.

② په ابن ماجه کښې دحضرت عائشې رضی ا لله عنها نه روایت دې.[قالت ما رأیت رسول الله ﷺ خرج من غائط قط إلا مس ماء] یعنی ما رسول الله ﷺ کله هم نه دے لیدلې.چه د لوئی اودس ماتی نه به فارغ شو. نو خامخا به ئې اوبه استعمالولې.ددې دواړو احادیثو نه ثابته شوه.چه نبی ﷺ په استنجاء باندې همیشوالې کړې دې.

**الإشکال**> په دې مقام کښې تسو د استنجاء د مسنونیت دپاره د نبی ﷺ مواظبت او همیشوالې دلیل ګرځوئ.حالانکه د نورو دلائلونه ثابته شوې ده.چه مواظبت دلیل د وجوب دې.نه د سنتیت دې.پکار دا وه.

**الجواب**> چه شارح ددې وضاحت کړې وې.په امداد الفتاح شرح نور الایضاح کښې علامه شرنبلالی رحمه الله فرمانی.چه واجب ځکه نه ده.چه نبی ﷺ کله کله پریخودے ده. ددې نه معلومه شوه.چه استنجاء سنت ده.فرض نه ده.

**مايجوز به الإستنجاء؟** > په استنجاء كښې د كاڼړي او څه چه ددې قائم مقام دې.دهغې استعمال جائز دې .او ددې طريقه دا ده.چه د استنجاء محل به دومره مسح كوي.چه هغه پاك شي. ځكه چه پاكول مقصود دي.نوچه كوم څيز مقصود وي.دهغې خيال به ساتلی شي.

| وَلَيْسَ فِيهِ عَدَدٌ مَسْنُونٌ او په دې كښې څه مسنون شمار نشته |
|---|

**تشريح > عدد الأحجار في الإستنجاء** > امام قدوري رحمه الله فرمائي.چه په استنجاء كښې د كاڼړو مسنون شمار نشته .بلكه چه په څومره باندې پاكي حاصليږي .كه درې وي.اوكه د دريو نه كم وي اوكه زيات وي . ځكه چه مقصود پاكي حاصلول دي.چه په هرڅومره كاڼړو وي.

**دلائله** > دليل دا دي. [عن ابي هريرة قال قال رسول الله ﷺ من إكتحل فليوتر من فعل فقد أحسن ومن لا فلا حرج، ومن إستجمر فليوتر فمن فعل فقد أحسن ومن لا فلا حرج، ومن أكل فما تخلل فليلفظ وما لاك بلسانه فليبتلع من فعل فقد أحسن ومن لا فلا حرج ،ومن أتى الغائط فليستتر فإن لم يجد إلا أن يجمع كثيباً من رمل فليستدبره فإن الشيطان يلعب بمقاعد بني آدم من فعل فقد أحسن ومن لا فلا حرج] ابوداود )

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائي.چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي.څوك چه رانجه اچوي.نوناتكئ دے اچوي.چاچه داسې اوكړلو.نو ښه ده.اوچا چه اونكړلو.نوڅه گناه په كښې نشته.اوڅوك چه استنجاء كوي.نوناتكئ كاڼړي دے استعمالوي. چاچه داسےاوكړلو.نو ښه ده.اوچا چه اونكړلو. نوڅه گناه په كښې نشته.اوڅوك چه خوراك كوي.نوچه څه په خلال سره راوباسي. هغه دے اوغورځوي.اوكوم چه په ژبه باندې راوباسي.هغه دے تير كړي. چاچه داسې اوكړلو .نو ښه ده.اوچا چه اونكړلو.نوڅه گناه په كښې نشته.اوڅوك چه غټ اودس ماتی ته لاړ شي.نوځان دے پټ كړي. چاچه داسےاوكړلو.نو ښه ده.اوچا چه اونكړلو . نو څه گناه په كښې نشته. خوكه د شگو يوډيرے راجمع كړي.نوهغې ته دے شاه كړي .ځكه چه شيطان د بني آدم په مقعد باندې لوبے كوي. چاچه داسې اوكړلو. نو ښه ده.اوچا چه اونكړلو.نوڅه گناه په كښې نشته.

**وجه الإستدلال** > علامه ابن همام رحمه الله فرمائيلي دي.چه ايتار په يوباندې هم واقع كيږي.او په حديث كښې فرمائيلی شوی دی.چه دايتار په پريخودوكښې څه گناه نشته .ددې حاصل دا دې.چه د استنجاء په پريخود كښې څه گناه نشته.اودكوم څيزپه پريخود كښې چه گناه نه وي.هغه فرض يا واجب نه وي.نومعلومه شوه.چه استنجاء فرض نه ده.بلكه سنت ده.او ايتار لكه څنگه چه د دريو په شمار سره راځي.دغه شان د يو په شمار سره هم راځي.نوځكه د دريو شمار هم ضروری نشو.

**الإعتراض** > د حديث نه په عدم وجوب د استنجاء باندې استدلال ټيك نه دې.ځكه چه په دې كښې داسې الفاظ راغلي دي، [من إستجمر فليوتر، من فعل فقد أحسن ومن لا فلا حرج] يعني په دې كښې نفی د استنجاء كولو نه نه ده راغلې.بلكه نفی د ايتار نه راغلے ده.يعنی چاچه په استنجاء كښې ايتار اونكړلو.نوگناه نشته.دا مطلب نه دې.چه چا استنجاء اونكړله.نو گناه په كښې نشته.ځكه چه د [من استجمر] كلمه خو حكايت د واقعه ده.ددې د حكم سره څه تعلق نشته.نوزما په نزد د استنجاء د عدم فرضيت دپاره دليل هغه دې.كوم چه ما په خپله پښتو شرح مفتاح الفلاح شرح نورالايضاح كښې د شرنبلالي رحمه الله د شرح امدادالفتاح نه نقل كړې دې.چه بعضے وختونو كښې نبی ﷺ استنجاء پريخودے

هم ده. او ترک دلیل د عدم وجوب او عدم فرضیت دي.البته دلته کښې دا خبره دتحقیق محتاجه ده.چه هغه کوم مواقع دی.چه نبی ﷺ په کښې استنجاء نه ده کړې.شرنبلالی هم په څه حدیث سره دهغې اثبات نه دے کړې. شاه فیصل عفی عنه.

**په اوبو باندې د استنجاء کولوحکم**

| وَغَسْلُهُ بِالْمَاءِ اَفْضَلُ اوپه اوبو سره استنجاء کول غوره ده |
|---|

**تشریح** > **فضل الإستنجاء بالماء** > امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی.چه په لوټو سره د اوچولو نه پس په اوبو باندې وینځل افضل دی.

**دلیله** > دلیل دالله تعالی قول دې.﴿فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا﴾ دا آیت د اهل قبا په باره کښې نازل شوې دې.اود اهل قبا دا عادت وو.چه هغوی به په کاڼړو باندې د استنجاء نه پس په اوبو استنجاء کوله.

**إستحباب الإستنجاء بالماء** > داخبره دے واضحه وی.چه په کاڼړوباندې د استنجاء کولونه پس په اوبو باندې استنجاء کول ادب او مستحب دې.ځکه چه نبی ﷺ به کله په اوبو باندې استنجاء کوله. اوکله به نې پریخودله.اوبنکاره خبره ده.چه دا د استحباب خبره ده

**سنة الإستنجاء في زماننا** > بعضې حضراتوفرمائیلی دی.چه زمونږ په زمانه کښې په اوبو باندې استنجاء کول مسنون ده.اودا قول د حسن بصری رحمه الله نه منقول دې.دلیل دحضرت علی رضي الله عنه اثر دې.[قال إن من كان قبلكم كانوا يبعرون بعرا وأنتم تثلطون ثلطا فاتبعوا الحجارة الماء] حضرت علی رضي الله عنه فرمائیل:چه ستاسونه وړاندې خلقو به پچے کولې.او تاسو خو غټ بول کوئ.

**الروايتان في عدد الغسلات للوسواس** > صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه د استنجاء په ځائې به اوبه ترهغه وخته پورې بیوی.چه ترڅونې دنجاست په لرے کیدو غالب ګمان نه وی پیدا شوې.اود درې یا پنځه کرته څه حد نشته.

① خوکه یو کس وسواسی وی.نودهغه دپاره درې خله مقررولی شی.لکه چه څنګه په نجاست غیرمرئی کښې دی.اوغټ بول اګرچه مرئی دی. لیکن دا چونکه لیدلے نشی.نوهغه هم د ده په حق کښې د متیازو یعنی نجاست غیرمرئی پشان دی.

② اوبعضې عالمانو په اووه خله مقرر کړی دی.په هغه حدیث باندې عمل کولو د وجے کوم چه د سپی جوته شوی لوښی اووه خله وینځلو په باره کښې وارد شوې دې.

**دمحل نه د نجاست د تجاوز په صورت کښې د استنجاء حکم**

| وَاِنْ تَجَاوَزَتِ النَّجَاسَةُ مَخْرَجَهَا اوکه نجاست د مخرج نه تجاوز اوکړلو لَمْ يَجُزْ فِيهِ اِلَّا الْمَاءُ نود اوبونه سوا بل څیزجائزنه دې اَوِالْمَائِعُ اویا بهیدونکې څیز |
|---|

**حل اللغة** > ① تجاوزت، جاوز مجاوزةً: زیاتې کول ② لم یجز، جاز جوازاً (ن) : نه رواکیدل ③ مائع: بهیدونکې

**تشریح** > **صورة المسئلة** > مسئله دا ده.چه کله نجاست د محل د استنجاء نه تجاوز اوکړی.نودا صرف په اوبو باندې پاکیږی.اودغه شان په بهیدونکی څیزباندې پاکیږی.که دغه بهیدونکې څیز اوبه وی او که د اوبونه علاوه بل څه څیزوی لکه سرکه وغیره شوه.البته په مائع باندې د نجاست دپاکیدو

دپاره دا شرط دي چه دغه مانع څيز پاک وی لکه څنګه چه د دې تفصيل وړاندې په باب الانجاس کښې تير شوي دي

**دليل فرضية الغسل عند تجاوز النجاسة من المحل**>باقی پاتې شو ددې خبرے دليل چه نجاست کله د مخرج نه تجاوزاوکړی.نودهغې وينځل فرض دی.هغه دا دې.چه په کاڼړی وغيره اوچولوسره نجاست زائله کيږی نه.بلکه نور هم خوريږی . ليکن د ضرورت د وجے په باب د استنجاء کښې خلاف قياس په کاڼړی وغيره سره ددې پاکول طهارت شمار کړې شو.اودا قاعده ده.چه کله يو څيز د څه ضرورت د وجے خلاف قياس ثابت شی. نوهغه به خاص وی په دغه محل د ضرورته پورې.بل څيز ته به دغه حکم تجاوز نه کوی.نوپه دليل سره ثابته شوه.که نجاست تجاوز کړې وی .نوپه اوبو وغيره سره د وينځلو نه بغير دهغې طهارت نشی راتلې.

**الخلاف في محل قدرالدرهم المعفوعنه** >داخبره ياده ساتئ:چه هغه مقدار چه دمانځه د جواز دپاره مانع دې.

① د شيخينو رحمهما الله په نيز د استنجاء نه علاوه ځائې دې.يعنی د استنجاء ځائې په کښې حساب نه دې.څکه چه هغه يوځل معاف شوې دې.(نودوباره پکښې هغه حسابول ټيك نه دی) نوچه د يو درهم نه زيات وی.نو په اوبو سره د هغې وينځل فرض دی.

② د امام محمد رحمه الله په نيز چه د استنجاء ځائې سره ملاؤ شی.او د يو درهم نه زيات شی.نومانع د مانځه دې.په نورو ځايونو باندې قياس کوی.يعنی لکه څنګه چه په نورو ځايونو کښې د يو درهم په برابری باندې نجاست معاف دې. ددې نه زياتی معاف نه دې.نودغه شان د استنجاء په باب کښې هم د يوے روپۍ مقدار معاف دې.اوددې نه زياتی معاف نه دې.

## په کومو څيزونو استنجاء مکروه ده؟

| وَلَا يَسْتَنْجِي بِعَظْمٍ وَلَا بِرَوْثٍ اوپه کاڼړی او خاشنړودے استنجاء نه کوی |
|---|

**حل اللغة**>①لايستنجی، استنجی استنجاء: استنجاء کول ② عظم: هډوکې ③روث: سوته ④ نهيا(ف): بندول منع کول ⑤زاد: توښه خوراك ]

**تشريح**> **كراهية الإستنجاء بالعظم والروثة** >مسئله:په خاشنړواوهډوکی باندې استنجاء کول مکروه ده.

**دلائله** > ① څکه چه په صحيح بخاری کښې د حضرت ابوهريره رضی الله عنه حديث دې.چه **[قال له النبی ﷺ إبغنی أحجارا أستنفض بها ولا تأتنی بعظم ولا بروثة قلت ما بال العظام والروثة ؟ قال ﷺ هما من طعام الجن]** نبی ﷺ حضرت ابوهره رضی الله عنه ته اوفرمائيل :زما دپاره کاڼړی اوګوره.چه زه پرے استنجاء اوکړم.خو هډوکے او دخوراك څيز راته مه راوړه.حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائی. ما عرض اوکړو.په هډوکی اوخشنړو کښې څه وجه ده؟ نبی اوفرمائيل دا دواړه د پيريانوخوراك دې.

② امام ترمذی روايت کړې دې.چه **[لا تستنجوا بالروث ولا بالعظام فإنه زاد إخوانكم من الجن]** يعنی تاسو په خاشنړواو هډوکو استنجاء مه کوئ.څکه چه دا ستاسو د پيريانو روړنړوخوراك دې.

**علة الكراهة في العظم والروثة** >اوکه د ممانعت باوجود ئې په دې څيزونواستنجاء اوکړله. نواستنجاء اوشوه .څکه چه مقصود حاصل شو.چه د نجاست لرے کول وو.خوسنت ادا نشو.او په خاشنړوکښې دممانعت وجه ددې نجاست دې.اوپه هډوکی کښې د ممانعت وجه دا ده.چه دا د پيريانوخوراك دې.

## په طعام اوښي لاس د استنجاء کولو کراهت

| وَلَا بِطَعَامٍ او استنجاء به نه کوی په طعام باندې وَلَا بِيَمِيْنِهٖ او استنجاء دے نه کوی په ښی لاس |
|---|

**تشريح﴾ دليل كراهة الإستنجاء بالطعام﴿** اود خوراك په څیزهم استنجاء کول جائز نه دہ. ځکه چه دا ضائع کول او اسراف دي.اودا دواړه خبرے حرامے دی.

**دليل كراهة الإستنجاء باليمين﴿** اوپه خپل ښی لاس باندې استنجا نه کوی.ځکه چه نبی ﷺ په ښی لاس باندې داستنجاء کولونه منع فرمائیلے دہ. د حضرت ابوقتادہ ؓ نه روایت دې.

[قال:إذا بال أحدكم فلا يأخذن ذكره بيمينه، ولايستنجي بيمينه ولا يتنفس في الإناء](۱)یعنی فرمائیلی ئې دی.کله چه په تاسو کښې څوك متیازې کوی.نوخپل خاص اندام دے په ښی لاس نه نیسی. اوپه ښی لاس دې استنجاء نه کوی. اوپه لوښی کښې دے ساه نه اخلی. په دې حدیث کښې ښکاره په ښی لاس داستنجاء کولو نه منع راغلے ده.

# كِتَابُ الصَّلَاةِ

**ترجمه:** (دا) کتاب د مونځ (داحکامو په بیان کښې ) دې.

**تشريح﴾ وجه تقديم الطهارة على الصلاة﴿** مونځ د عباداتو اصل او د طاعاتو بنیاد دې. نوځکه دا په ټولومشروعاتو باندې مقدم کړې شو.اوطهارت دمانځه شرط دې. او شرط مقدم وی په مشروط باندې. نوځکه کتاب الطهارة په کتاب الصلاة باندې مقدم کړې شو.

**معني الصلاة لغةً﴿** صلاة په لغت کښې د دعا په معنی کښې راځی.لکه ﴿وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ﴾ یعنی ته د دوی دپاره دعا غواړه.بیشکه ستا دعا د دوی دپاره سبب د اطمینانَ دې.اود نبی ﷺ قول دې.[وصلت عليكم الملائكة] یعنی فرښتے تاسو ته دعاګانے کوی.او دنبی ﷺ ارشاد [إذا دعي أحدكم إلى الطعام فليجب فإن كان مفطراً فليأكل وإن كان صائماً فليصل] یعنی کله چه چا ته دعوت ملاوشی.نوهغه قبلول پکار دی.که روژه دارنه وی.خوراك دے اوکړی .اوکه روژه داروی.نوهغه دپاره دے د خیر اوبرکت دعا اوکړی.

**معني الصلاة شرعاً﴿** اودشریعت په اصطلاح کښې د افعال معلومه ؤ او ارکان مخصوصه ؤ نوم دې. او دے افعال معلومه ؤ او ارکان مخصوصه ؤ ته صلاة ځکه وائی.چه دا د دعا په معنی مشتمل دې.د وجوب صلاة سبب ددې وخت دې. او د مونځ ادا کولو سبب دالله تعالی امر تقدیری دې.

**حكم الصلاة﴿** او ددې حکم په دنیا کښې د ذمه نه د واجب سقوط دې.اوپه آخرت کښې دهغه ثواب حاصلیدل دی.چه وعده ئې شوې ده.

**دلائل فرضية الصلاة﴿** دمونځ فرضیت په کتاب، سنت او اجماع درې واړو باندې ثابت دې. ①کتاب الله مثلاً ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ او﴿إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا﴾ دې. ②او سنت د رسول الله ﷺ لکه رسول الله ﷺ فرمائی .[إن الله تعالى فرض على كل مسلم ومسلمة في كل يوم وليلة خمس صلوات] ③او اجماع دا ده.چه د نبی ﷺ د زمانې نه واخله تر اوسه پورې د مونځ په فرضیت باندې د ټول امت اجماع ده.

---

(۲) من حديث أبي قتادة‌ؓ أخرجه البخاري في الوضوء باب ۱۸ رقم ۱۵۳ ومسلم في الطهارة رقم ۶۳ وأبوداود في الطهارة باب ۱۸ والترمذي في الطهارة باب ۱۱ والنسائي في الطهارة باب ۴۱ وابن ماجه في الطهارة باب ۱۵)۔

**إثبات الصلوات الخمس من سورة البقرة>** داخبره چه مونځونه پنځه دي.دا هم دكتاب الله نه ثابته ده.الله تعالی فرمائي.﴿ حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَىٰ ﴾ دا آيت د مونځ په فرضيت هم دلالت كوي.اوپه دې وجه هم چه دا پنځه دي.دا په دې طريقه چه الله تعالی د ټولو مونځونو د محافظت حكم كړې دې.او په دې باندې ئې د ،،صلاة وسطی،، عطف كړې دې.اواقل د جمعې چه وسط په كښې متحقق وي. څلور دي. نو په ،،علی الصلوات،، كښې د څلورو مونځونو ذكر دې.او په صلاة وسطی كښې د يويل مونځ.نوداسې دا پنځه مونځونه شو.

**تاريخ فرضية الصلاة>** باقي پاتې شوه داخبره.چه مونځ كله فرض شوې وو.او د مونځ دفرضيت نه وړاندې د نبي ﷺ دعبادت طريقه څه وه؟نو په دې باندې خو د تاريخ او سيرت د ټولو عالمانو اتفاق دې.چه مونځ د معراج په شپه باندې فرض شوې دې.خو بيا دمؤرخينو د معراج د شپې په باره كښې اختلاف دې.چه دا په كوم كال كښې واقع شوې وه.نو د نبوت د پنځم كال نه تر لسمه پورې په كښې مختلف اقوال منقول دي.جمهور عالمان د پنځم كال قائل دي.

**الخلاف في فرضية الصلاة قبل الخمس>** بيا په دې كښې اختلاف دې.چه د معراج د شپې نه وړاندې څه مونځ فرض وواوكه نه؟ ① دزياتو عالمانو هم دا خيال دې.چه د پنځو مونځونو نه وړاندې څه مونځ فرض نه وو. ② خو د امام شافعي رحمه الله قول دې.چه د معراج نه وړاندې د تهجدو مونځ فرض وو.ددې دليل د سورت مزمل اولنی آياتونه ﴿قم الليل إلا قليلا﴾ دې.دا سورت په مكه كښې بالكل په اولنې زمانه كښې نازل شوې وو.

**الجواب عن إستدلال الشافعي رحمه الله وضعفه>** بعضې حضراتوجواب وركړې دې.چه په سورت مزمل كښې د مونځ حكم مدني دې.څكه چه ددې سورت په آخر كښې ﴿ وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ مزمل: ۲۰]راغلي دي.او قتال په مدينه منوره كښې شروع شوې وو.خو دا خبره صحيح نه ده.څكه چه د قتال ذكر په دې سياق كښې دې.﴿عَلِمَ أَن سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ اللَّهِ وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ په دې آيت كښې صيغه د مستقبل ده.دا په دې باندې دلالت كوي.چه دا حكم به روستو وركولې شي.اود آيت د نزول په وخت كښې قتال نه وو.نوكه دا سورت مكي اوګڼړلې شي. په دې كښې څه قباحت نشته.نو دامام شافعي رحمه الله استدلال ټيك دې.خو د بعضې عالمانو قول دې.چه د تهجدو مونځ صرف په نبي ﷺ باندې فرض وو.په باقي امت باندې فرض نه وو.

**هل فرض علي المسلمين صلاة قبل الإسراء>** بيا په دې كښې اختلاف دې. چه عامو مسلمانانوبه هم د پنځه مونځونو نه وړاندې څه مونځ كولوكه نه؟د بعضې عالمانو رحمهم الله دا خيال دې.چه د صبا او ماښام مونځ د معراج دشپې نه وړاندې فرض شوی وو.ددې دليل دا آيت دے﴿وَسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ﴾ آل عمران:۴۱] دا آيت د معراج نه وړاندې نازل شوې دې.او په دې كښې هم ددې دوو مونځونو ذكر دې.

**القول المحقق>** په دې باره كښې تحقيقي خبره دا ده.چه دومره خبره خو د رواياتو نه ثابته ده.چه نبي ﷺ او صحابه كرامو رضي الله عنهم به د معراج نه وړاندې دصبا او ماښام مونځونه كول.په سورت جن كښې چه د جناتو د قرآن اوريدو كومه واقعه راغلې ده.هغه د صبا په مانځه كښې پيښه شوې وه.اوغالباً دا د

معراج نه ورانديې وه.خودا دواړه مونځونه په نبی ﷺ فرض وو.كه دوی به دا نفلی كول.نوددې څه دليل او صراحت په رواياتو كښې نشته.

**الحكم في عدد الخمس** ﴿باقی پاتې شوه دا خبره چه دا پنځه مونځونه ولے فرض شوی دی.ددې نه كم يا زيات ولې نه دی؟نوددې څو حكمتونه بيان شوی دی.وړے ګورئ.

① **بحسب الحواس الخمسة**﴿ الله تعالى د ظاهری څيزونو معلومولو دپاره په انسان كښې پنځه قوتونه پيدا كړی دی.① قوت باصره ② قوت سامعه ③ قوت شامه ④ قوت ذائقه ⑤ قوت لامسه. نو ددې پنځو قوتونو په مقابله (يعنی شكريه كښې الله تعالى پنځه مونځونه فرض كړل.

② **بحسب النعماء الخمس**﴿ خالق كائنات چه د كوم وخت نه په دنيا كښې دانسان د پيدانش اراده اوكړه.نود ټولو نه ورانديې ئې ده ته وجود وركړلو.اوبيا ئې د ده د ضرورت دپاره پنځه غټې نعمتونه پيدا كړل. ① دخوراك څكاك څيزونه ② ګرمے او يخے جامے ③ د استوګنے دپاره كور ④ او د خدمت وغيره دپاره ښځه اوخدمتګار وغيره ⑤ د سفر دپاره سورلئ. د ده دوجود شكريه خو كلمه طيبه [لااله الله محمد رسول الله] ده.او ددې پنځه نعمتونو په مقابله كښې ئې پنځه مونځونه فرض كړل.چه په يو مونځ سره د يو لوئې نعمت شكر ادا شی.

③ **بحسب أحوال الإنسان**﴿ دانسان ټول ژوند په پنځو حالتونو كښې تيريږی. ① ملاسته ② ناسته ③ ولاړه ④ خوب ⑤ ويخه. په دې پنځو حالتونو كښې په انسان باندې دالله تعالى نعمتونه د باران پشان وريږی.چه دهغې شمار هم ګران دې.نو الله تعالى ددې ټولو نعمتونو د شكريه دپاره د پنځو وختونو مونځونه فرض كړل.لكه چه چا پنځه مونځونه اوكړل.نوده په هر حالت كښې دالله تعالى د هر نعمت شكر ادا كړو.

④ **بحسب عدد الشدائد بعد الحياة**﴿ د دنياوی ژوند په ختميدو باندې په انسان پنځه قسمه مصيبتونه راځی. ① مرګ ② قبر③ پل صراط④ عمل نامه په ګس لاس ملاويدل⑤ د جنت دروازه بنديدل.مهربانه رب ددې پنځو مصيبتونو لرے كولو دپاره پنځه مونځونه فرض كړل.علامه ابن حجرمكی رحمه الله فرمائی.[من حافظ على الصلاة أكرمه الله بخمس خصال يرفع عنه ضيق الموت وعذاب القبر ويعطه الله كتابه بيمينه ويمر على الصراط كالبرق ويدخل الجنة بغير حساب] چاچه پنځه مونځه اوكړل.الله تعالى به ورته پنځه نعمتونه وركړی. ① دمرګ د سختئ نه به ئې محفوظ كړی. ② دقبر دسختئ او تيارۀ نه به ئې محفوظ كړی. ③ عمل نامه به ورته په ښی لاس وركړی. ④ په پل صراط به د بجلئ د پړق پشان تير شی. ⑤ جنت ته به بے حسابه داخل شی.

## دصبا د مونځ اول او آخر وخت

| أَوَّلُ وَقْتِ الْفَجْرِ د صبا اولنې وخت إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ الثَّانِي كله چه فجرثانی راوخيژی وَهُوَ او فجر ثانی هغه دې اَلْبَيَاضُ الْمُعْتَرِضُ فِي الْأُفُقِ چه په افق كښې يو سپينه رڼړا په پلنوالی خور شوې وی وَآخِرُ وَقْتِهَا مَالَمْ تَطْلُعِ الشَّمْسُ او د صبا آخری وخت ترڅو چه نمر نه وی راختلی |
|---|

**حل اللغة**﴿ ①طلع طلوعا(ف): راوتل، ښكاره كيدل ②معترض: خوريدونكې ③بياض: سپينوالې

**تشریح﴾ وجه تقدیم المواقیت علی الصلاة﴾** د مونځ وختونه د مونځ د وجوب دپاره اسباب دی.او سبب مقدم وی په مسبب باندې.نوځکه ئې د مونځ د وختونو بیان مقدم کړه.

**وجه تقدیم الفجر علی غیرها﴾** په حدیث کښې اګرچه د ماسپخین وخت مقدم دې.خو دلته د څو وجوهاتو نه د صبا وخت مقدم شو.

① اوله وجه دا چه د صبا اول او آخر وخت اتفاقی دې. نو ځکه دا مقدم ګرځې شو.ددې په خلاف د نورو مونځونو په وختونو کښې لږ غونډې اختلاف شته.

② دویمه وجه دا ده.چه د صبا مونځ د ټولو نه اولنی انسان حضرت آدم کړې وو.

③ دریمه د صبا مونځ په ورځ کښې اولنے مونځ دې. ځکه ئې په ذکر کښې هم مقدم کړه.

④ څلورمه وجه دا ده.چه اوده سړې چه د مړی پشان وی.په هغه د ټولو نه اولنے مونځ چه واجبیږی.هغه د صبا مونځ دې.نو ځکه د صبا وخت وړاندې ذکر کړې شو.(حاشیه ملا عبدالغفور عنایه)

**تعریف الفجر الصادق والکاذب﴾** نو د صبا د مونځ وخت د صبا صادق په راختو شروع کیږی.او په نمر راختو ختمیږی.اوصباصادق هغه رڼائی ده.چه په پلنوالی په آسمان کښې خوره شی.او صبا کاذب هغه رڼائی ده.چه په اوږد والی په آسمان باندې ښکاره شی.اودهغې نه پس بیا تیاره شی.عربیانو به صبا کاذب ته،،ذنب السرطان،، (د شرمخ لکۍ) وئیله.

**دلیل وقت الفجر﴾** دصبا د اول اوآخر وخت دلیل په امامت جبرئیل ﷺ حدیث دې.صاحب د عنایه پوره حدیث دا سې بیان کړې دے [عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَّنِي جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ عِنْدَ الْبَيْتِ مَرَّتَيْنِ فَصَلَّى بِيَ الظُّهْرَ حِيْنَ زَالَتِ الشَّمْسُ وَكَانَتْ قَدْرَ الشِّرَاكِ وَصَلَّى بِيَ الْعَصْرَ حِيْنَ صَارَ ظِلُّ كل شيء مِثْلَهُ وَصَلَّى بِيَ الْمَغْرِبَ حِيْنَ غَابَت الشمس وصلى بي العشاء حين غاب الشفق وصلى بي الفجر حين طلع الفجر وصلى بي الظهر في اليوم الثاني حين زالت الشمس وصار ظل كل شيء مثله وصلى به العصر حين صار ظل كل شيء مثليه وصلى بي المغرب حين غربت الشمس لوقته بالأمس وصلى بي العشاء حين مضى ثلث الليل أوقال نصف الليل فصلى بي الفجر حين طلع الفجر واسفر وكادت الشمس أن تطلع ثم قال يامحمد ﷺ هذا وقتك ووقت الأنبياء من قبلك] [1]

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې.چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل.حضرت جبرئیل ماته د خانه کعبے سره دوه ځله امامتی راکړې وه.په اولنۍ ورځ ئې راته د ماسپخین مونځ اوکړه.چه نمر زائله وو.او سورے د شراك (د پنړے د تسمے) پشان وو.او د مازیګر مونځ ئې راته اوکړه.په داسے وخت کښې چه دهر څیز سورے دهغې په دوچنده شو.اود ماښام مونځ ئې راته په هغه وخت کښې اوکړه.چه نمر پریوتے وو.اود ماسخوتن مونځ راته راکړه.په هغه وخت کښې چه شفق غائب شو.او د سحر مونځ ئې راته راکړوکله چه صبا راوختلو.او مونځ ئې راته راکړه د ماسپخین د مانځه په دویمه ورځ کله چه نمر زائله شو.او دهر څیز سورے دو چنده شو.او مونځ ئې راته راکړلو د مازیګر کله چه دهرڅیز سورے د هغې په یوچند شو.او د ماښام مونځ ئې راته راکړلو.چه نمر پریوتلو .هم په هغه وخت کښې چه پرون ئې راته په کښې (د ماښام مونځ کړې وو . او دماسخوتن مونځ ئے راته اوکړه.چه د شپې دریمه حصه تیره شوې

[1]) من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما اخرجه أبوداود في الصلاة باب ۲ والترمذی في المواقیت باب ۱ واحمد في المسند (۳۳۲۱) والبیهقی في السنن الکبری (۱\۵۲۵) رقم ۱۷۰۲)۔

وه. یا نبی ﷺ اوفرمائیل . چه نیمه شپه تیره شوې وه.او د صبا مونځ نې راته اوکړه.په هغه وخت کښې چه رڼرا شوې وه.او نمر راختو ته نزدے وو.بیا حضرت جبرئیل اوفرمائیل .اے محمده! دا ستا وخت دې.او ستا نه وړاندې د پیغمبرانو علیهم السلام وخت وو.

**توضیح اذان بلال رضي الله عنه**> صاحب دهدایه رحمه الله فرمانی.چه د صبا په مانځه کښې صبا صادق معتبر دې. صبا کاذب معتبر نه دې.دلیل هغه حدیث دې.کوم چه په صحیح مسلم ترمذی وغیره کښې دې.واقعه داسې وه.چه حضرت بلال رضي الله عنه به د صبا صادق راختلو نه وړاندې د تهجدو یا پیشمنی دپاره اذان کولو.او عبدالله بن ام مکتوم رضي الله عنه به دصبا راختونه پس اذان کولو. په دې باندې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. [لایغرنکم أذان بلال ولا الفجر المستطیل](۲)یعنی د بلال اذان دے تاسو دهوکه نکړی.یعنی د بلال په اذان باندې دا گمان مکوئ.چه د صبا د مونځ وخت داخل شو.ځکه چه دا د صبا دپاره نه دې.بلکه د تهجدو یا پیشمنی دپاره دې.اونه دے تاسو فجر مستطیل دهوکه کړی.فجر مستطیل یعنی صبا کاذب هغه پلنه رڼرا ده.چه په آسمان کښې خوره شی.

**د ماسپخین اول او آخری وخت**

| وَأَوَّلُ وَقْتِ الظُّهْرِاود ماسپخین اول وخت [إِذَازَالَتِ الشَّمْسُ کله چه نمر زائله شی |
|---|

**حل اللغة**> ① زالت، زال زوالاً (ن) زائل کیدل ② شمس: نمر

**تشریح**> **طریق معرفة زوال الشمس**> صاحب د عنایه د محمد بن شجاع په حواله سره د فئ زوال معلومولو طریقه بیان کړې ده.چه اول دے زمکه داسې همواره کړې شی .چه په دې کښې د ویخته برابر اوچتوالے او ښکته والے پاتې نشی.بیا دے په دې کښې یو لرگے ښخ کړې شی.اوچه تر کوم ځائې پورې دهغې سورے رسی. هلته دے یوه نښه اوکړې شی.نوچه ترڅو دغه سورے کمیږی.نودا د زوال نه وړاندې وخت دې.نو په دغه وخت کښې چه کوم سورے وی.هغے ته فئ زوال او اصلی سورے وئیلے شی.اوکله چه سورے په اوږدیدو شی.نوپوهه شه.چه نمر زائله شو.او د ماسپخین د مانځه وخت داخل شو.

**اول وقت الظهر**> بهرحال دماسپخین اول وخت د زوال نه پس شروع کیږی.

**دلیله**> او ددې دلیل دا دې.چه حضرت جبرئیل په اوله ورځ دماسپخین مونځ هم په دې وخت کښې کړې وو.(۲)

| وَآخِرُوَقْتِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دماسپخین آخری وخت) إِذَاصَارَظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَيْهِ کله چه د هر څیز سورے دهغه په دوچنده شی سِوَى فَيْءِ الزَّوَالِ علاوه د سوری د زوال (اصلی) نه |
|---|

**حل اللغة**> ① ظل جمع ظلل: سوري ② فئ:سوري

**تشریح**> **مذهب ابي حنيفة رحمه الله في آخروقت الظهر**> د ماسپخین په آخری وخت کښې احناف عالمان په خپلو

---

۲) من حدیث سمرة بن جندب رضي الله عنه أخرجه مسلم في الصیام رقم ۴۳ وأبوداود في الصوم باب ۱۷ والترمذی في الصوم باب ۱۵ وابن ماجه في الصیام باب ۲۳ وأحمد في المسند(۲۳\۱۴)۔

کتبې مختلف دی.دامام ابوحنیفه رحمه الله نه په دې باره کښې درې روایات نقل دی. ①یوروایت کوم چه امام محمد رحمه الله نقل کړې دې.چه کله د اصلي سوری نه علاوه دهر څیز سورے دوچنده شی.نود ماسپخین وخت ختمیږی.اود مازیګر وخت داخلیږی.دا روایت د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې.

**دلیله** > دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دحضرت ابوسعید خدری رضي الله عنه حدیث دې.یعني [ابردوا بالظهرفإن شدة الحر من فیح جهنم]() په دې حدیث باندې استدلال داسې کیږی.چه نبی ﷺ د ماسپخین مونځ د یخنۍ په وخت کښې د کولو حکم کړې دې.او په عرب ملکونو کښې سخته ګرمی هم په دې وخت کښې وی.(چه کله دهر څیز سورے دهغې برابر شی. نومعلومه شوه.چه نبی ﷺ د یو مثل نه پس دماسپخین دمونځ کولو حکم کړې دې.اوکله چه د یومثل نه پس د ماسپخین وخت باقی وی.نودیومثل نه پس دمازیګروخت څنګه شروع کیدے شی؟

| وَقَالَ أَبُويُوسف وَمُحمّد رحمهما الله اوصاحبين رحمهما الله فرمائی[إِذَا صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَهُ چه کله د هر څیز سورے دهغې برابرشي |
|---|

**مذهب الصاحبين**> د صاحبینو امام زفر او امام شافعي مذهب دا دې. او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم یوروایت دې کوم چه حسن بن زیاد نقل کړې دې.چه کله دهرڅیز سورے د هغې داصلي سوری نه علاوه دهغې په دوچند شی.نودماسپخین وخت اووتلو.اود مازیګر وخت داخل شو.

**دلیلهما** > دصاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه حضرت جبرئیل په اوله ورځ د مازیګر مونځ هم په هغه وخت کښې کړې وو.چه دهر څیز سورے د هغې برابر وو.نومعلومه شوه.چه په دغه وخت د مازیګر وخت شروع کیږی.او د ماسپخین وخت خارجیږی.

**الاجوبه عنه** > ① دامامت دجبرئیل دحدیث نه علامه ابن همام رحمه الله دا جواب کړې دې.چه د مونځ د وختونو په باره کښې دا حدیث د ټولو نه وړاندې دې.اوکوم حدیثونه چه ددې نه مخالف دی.نوهغه ټول روستنی دی.او مؤخر د مقدم دپاره ناسخ وی.نومعلومه شوه.چه حدیث جبرئیل منسوخ دې.نوقابل استدلال پاتې نشو.

② صاحب دهدایه رحمه الله داسې استدلال کړې دی.چه حدیث دامامت جبرئیل عليه السلام دې دلالت کوی.چه په یومثل سره دماسپخین وخت ختمیږی.اودحدیث [ابردوا بالظهر] نه معلومیږی.چه په یو مثل باندې د ماسپخین وخت نه ختمیږی.بلکه باقی وی.نوپه یو مثل باندې د ماسپخین د وخت وتل مشکوک شو.حالانکه د یو مثل نه وړاندې د ماسپخین د وخت وجود یقیني وو.او دا قاعده ده.چه یو څیز په یقین سره ثابت وی.نوپه شك سره نه ختمیږی.(لکه چه یو سړی ته خپل اودس په یقین سره یاد وی.خو په اودس ماتی کښې ئې شك شی.چه ما اودس مات کړې دے که نه؟نو فقهاء لیکی.چه اودس کول پرے نشته.) نو چه دهر څیز سورے دهغې په مثل شی. په دې باندې د ماسپخین د وخت وتل مشکوک شو.نو نۀ خارجیږی.

**التسامح من صاحب القدوری**> دلته کښې د امام قدوری رحمه الله په عبارت کښې لږ غوندې تسامح دې. هغه دا چه امام قدوری رحمه الله فرمائی.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د ماسپخین آخر وخت دا دې. چه دهر

---

١) من حديث أبي سعيدالخدري رضي الله عنه اخرجه البخاري في المواقيت باب ٩ رقم ٥٣٦ ومسلم في المساجد ومواضع الصلاة رقم ١٨٠ وأبوداود في الصلاة باب ٤ والترمذي في المواقيت باب٥ والنسائي في المواقيت باب٥ وابن ماجه في الصلاة باب٤)

څیز سورے دهغې دوچنده شي.اود صاحبینو ﷭ په نیز چه یوچند شی.حالانکه په هغه وخت کښې خو د ماسپخین وخت خارج شوې وی.(یعنی چه سورے یوچند او دوچنده شی. نو په دې خو د ماسپخین وخت ختم شو.(دا خونې آخری وخت نه دې) نو ددې د آخری وخت څه مطلب شو.ددې جواب دا دې. چه د آخر نه مراد هغه وخت دې.چه په هغې سره د ماسپخین د وخت وتل متحقق کیږی.

## د مازیګر اول او آخر وخت

| وَأَوَّلُ وَقْتِ الْعَصْرِ إِذَا خَرَجَ وَقْتُ الظُّهْرِ او دمازیګر اول وخت چه کله د ماسپخین وخت اوځی عَلَى الْقَوْلَيْنِ په دوارو قولونو باندې وَآخِرُ وَقْتِهَا اود مازیګر آخر وخت مَا لَمْ تَغْرُبِ الشَّمْسُ ترڅو پورې چه نمر نه وی ډوب شوې |
|---|

**حل اللغة**> ① لم تغرب، غرب غروبًا (ن) :ډوبیدل ② ادرك ادرې کًا: موندل ]

**تشریح**> **أول وقت العصر وآخره**> د مازیګراول وخت هله شروع کیږی.چه دماسپخین وخت ختم شی.برابره ده. که د ماسپخین وخت په دوچنده باندې ختم شی.لکه چه دامام ابوحنیفه ﷫ مذهب دې.اوکه په یوچند باندې ختم شی.لکه چه د صاحبینو ﷭ مذهب دې.او د مازیګر وخت د نمر ډوبیدو نه وړاندې پورې دې.

**دلیله**> دلیل دحضرت ابوهریره ﷛ حدیث دې.[قال قال رسول الله ﷺ من أدرك من الصبح ركعة قبل أن تطلع الشمس فقد أدرك الصبح ومن أدرك ركعة من العصر قبل أن تغرب الشمس فقد أدرك العصر] (۱) (صحیحین حضرت ابوهریره ﷛ فرمائی.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی . چا چه د نمر راختلو نه وړاندې د صبا یو رکعت رالاندې کړه. نوهغه صبا رالاندې کړه.اوچاچه د نمر پریوتو نه وړاندې د مازیګر یو رکعت رالاندې کړه.نوده مازیګر رالاندې کړه.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه د مازیګر وخت د نمر ډوبیدو نه وړاندې پورې باقی وی.

## دماښام اول او آخر وخت

| وَأَوَّلُ وَقْتِ الْمَغْرِبِ اود ماښام اول وخت إِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ چه کله نمر ډوب شی وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ تَغِبِ الشَّفَقُ اود ماښام آخری وخت چه ترڅوپورې شفق ختم شوې نه وی |
|---|

**حل اللغة**> ① لم یغب، غاب غیبةً: غائبیدل ② شفق: سرخی ③ بیاض: سپینوالې ④ حمرة: سرخی ]

**تشریح**> **اول وقت المغرب**> دماښام اول وخت د نمر ډوبیدو نه شروع کیږی.او د شفق ختمیدو پورې باقی وی.

**دلیله**> دلیل د حضرت ابوهریره ﷛ حدیث [أول وقت المغرب حين تغرب الشمس وآخره حين يغيب الشفق] دې.

---

۱) من حدیث أبي هريرة ﷛ أخرجه البخاري في مواقيت الصلاة باب ۲۸ رقم ۵۷۹ ومسلم في المساجد رقم ۱۶۳ والترمذی في الصلاة باب ۲۳ رقم ۱۸۶ والنسائي في المواقيت باب ۱۱ وابن ماجه في الإقامة باب ۹۱ ومالك في الموطاء في كتاب وقوت الصلاة باب ۳ رقم ۱۵)۔

وَهُوَ الْبَيَاضُ الَّذِيْ بيا شفق هغه سپینوالے دے یُرٰی فِی الْاُفُقِ بَعْدَ الْحُمْرَةِ چه په افق کښې د سرخئ خوریدونه پس وی عِنْدَ اَبِیْ حَنِیْفَةَ رحمه الله دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دے وَقَالَ اَبُوْ یُوْسُفَ وَمُحَمَّد رحمهما الله هُوَالْحُمْرَةُ.او صاحبین فرمائی چه دا سرخی ده

**الاختلاف في تعين الشفق** ﴿ دا خبره دے باده وی.چه د شفق په تعین کښې د عالمانو اختلاف دے. ① حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.شفق هغه سپین والے دے.چه د سوروالی نه پس په افق خور شی.اودا قول د صدیق اکبر،معاذ، انس،ابن زبیر رضی الله عنهم دے.

**دليله** ﴿اودامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل هغه دے.کوم چه حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کړے دے. [أن النبي ﷺ قال وآخر وقت المغرب إذا اسود الأفق] چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.د مابنام آخری وخت چه کله افق تور شی.او معلومه ده. چه په افق باندې توروالے د سوروالی نه پس خوریږی.نو معلومه شوه.چه د سپین والی پورې وخت باقی وی. نوپه حدیث کښې د شفق نه مراد سپین والے شو.

**مذهب الصاحبين** ﴿ په زیر بحث مسئله کښې صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه دسرخئ نوم شفق دے.اودا د امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم یو روایت دے.اودا د امام شافعی رحمه الله قول دے.

**دليلهما** ﴿ دصاحبینو رحمهما الله دلیل د نبی ﷺ قول [الشفق الحمرة] دے.

**الجواب عنه** ﴿ خودا حدیث په حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه باندې موقوف دے.اوامام مالك رحمه الله په موطا کښې موقوف ذکر کړے دے.اوحدیث موقوف حجت نه وی.نوځکه دا حدیث قابل استدلال پاتې نشو.

**الجواب التسليمي** ﴿اوکه دا اومنلے شی.چه دا حدیث مرفوع دے.نومونږ جواب ورکوو.چه ددې حدیث په مراد کښې دصحابه کرامو رضی الله عنهم اختلاف دے.د بعضو په نیز شفق نه مراد سپینوالے دے.او د بعضو په نیز سوروالے دے.اوپه حدیث مرفوع کښې هم که د صحابو رضی الله عنهم اختلاف وی.نوهغه قابل استدلال نه وی.

## د ماسخوتن اول او آخر وخت

وَأَوَّلُ وَقْتِ الْعِشَاءِاو د ماسخوتن اول وخت إِذَا غَابَ الشَّفَقُ چه کله شفق غائب شی وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ الثَّانِي او آخر وخت چه تر څو صبا نه وی راختلې

**حل اللغة** ﴿①غاب، غيبة(ض) غائبیدل ② لم يطلع، طلع طلوعًا(ف): راختل

**تشريح** ﴿ **وقت العشاء** ﴿دماسخوتن وخت د شفق د ختمیدو نه شروع کیږی.اود صبا راختونه وراندې پورې وی.

**دليله** ﴿ دحضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث [أنه ﷺ قال وآخر وقت العشاء حين يطلع الفجر](۱) دے. دا حدیث په دې خبره دلالت کوی. چه د ماسخوتن وخت تر صبا راختو پورې باقی وی.

۱) قال الزيلعي رحمه الله غريب ثم نقل قول الطحاوي رحمه الله وحسنه انه يثبت من مجموعة الروايات في وقت صلاة العشاء ان الليل كله وقت لها إلا ان افضل وقتها الأول ثم نصف الليل ثم بعدنصف الليل (نصب: ۱\۲۰۲).

## د وترو اول او آخر وخت

| وَأَوَّلُ وَقْتِ الْوَتْرِ بَعْدَ الْعِشَاءِ او د وترو اول وخت د ماسخوتن نه پس دې وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ او آخر وخت د دې چه تر څو صبا شوې نه وی |
|---|

**حل اللغة** ⟨①لايقدم، قدم تقديماً: وراندې كول، مخكې كول ]

**تشريح** ⟨ **أول وقت الوتر** ⟩ دوترو په اول وخت کښې اختلاف دې. د صاحبينو رحمهما الله په نيز د ماسخوتن دمونځ کولو نه پس د وترو وخت شروع کيږی .اوترصبا راختو پورې باقی وی.اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم د ماسخوتن وخت د وترو وخت دې.

**دليله** ⟩د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه وتر عملاً فرض دی.اوکه په وخت کښې دوه واجب مونځونه جمع شی.نودهغه دوارو مونځونو يو وخت وی.لکه فوتی او وختی مونځ.

**الإعتراض علي أبي حنيفة رحمه الله** ⟩په حضرت امام صاحب رحمه الله باندې دا اعتراض کيدے شی.که د دوارو يو وخت وو.نو بيا پکار دا وه.چه د وتر په ماسخوتن باندې وراندې کول جائز وو.حالانکه داسې نه ده.

**الجواب**⟩جواب د يادوالی په حالت کښې خکه تقديم د وترو په ماسخوتن جائز نه دې.چه د ماسخوتن او وترو په مينځ کښې ترتيب واجب دې.نوکه قصداً وتر په ماسخوتن باندې وراندې کړې شی .نو په اتفاق سره ددې راګرځول ضروری دی.اوکه د ماسخوتن مونځ ترے هير شو.او وتر ئې اوکړلو.او بيا ورته د ماسخوتن مونځ ورياد شو.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز باندې د وترو اعاده واجب نه ده.خکه چه په هيره سره ترتيب ساقط شو.

**مذهب الصاحبين رحمهما الله في تقديم الوتر علي العشاء** ⟩او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به اعاده کوی.خکه چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز وتر د ماسخوتن سنت دی. لکه څنګه چه د ماسخوتن نه پس دوه رکعته سنت دی.نوکه دوه رکعته په ماسخوتن مقدم کړی.جائزنه دی.که په قصد وی اوکه په هيره. نودغه شان وتر هم په ماسخوتن باندې وراندې کول جائز نه دی.نه په قصد او نۀ په هيره.

**دليلهما**⟩ د صاحبينو رحمهما الله دليل د حضرت خارجه بن حذافه رضي الله عنه حديث دې.[قال خرج علينا رسول الله ﷺ فقال إن الله زادكم بصلاة هي خيرلكم من حمر النعم وهي الوتر فجعلها لكم فيما بين العشاء إلى طلوع الفجر] حضرت خارجه بن حذيفه رضي الله عنه فرمائی.رسول الله ﷺ مونږ ته تشريف راوړلو.او بيا ئې اوفرمائيل.الله تعالی ستاسو دپاره يو مونځ زيادت اوکړلو.چه هغه ستاسو دپاره د سور رنګ اوښانو نه زيات بهتر دې.او هغه د وترو مونځ دې.دا د ماسخوتن او صبا په مينځ کښې کوئ.(فتح القدير) صاحب دهدايه فرمائی.چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی .[فصلوها ما بين العشاء إلى طلوع الفجر](۱) دا د ماسخوتن او صبا صادق په مينځ کښې کوئ.

## د صبا افضل وخت

| (وَيُسْتَحَبُّ الإِسْفَارُ بِالْفَجْرِ)او د صبا په مونځ کښې اسفار کول افضل دی |
|---|

**حل اللغة** ⟨①اسفار: روښانه

۱)من حديث خارجه بن حذافه رضي الله عنه اخرجه أبوداود في الوترباب ۱ و الترمذی في الوتر باب۱ وابن ماجه في الإقامة باب ۱۱٤)

**تشریح>** **الربط بما قبله ومابعده>** په تیرو شوو صفحاتو کښې د مونځونو د مطلقو وختونو بیان وو.اوس ددې ځائې نه د کامل اوناقص وختونو ذکر کوی.نود دواړو دپاره ئې جدا جدا فصل راوړلو.په اولنی فصل کښې ئې د اوقات کامله یعنی مستحب وختونو بیان کړې دې.اوپه دویم فصل کښې ئې د اوقات ناقصه یعنی مکروه وختونو بیان کړې دې.

**فضل الإسفار>** د صبا مونځ په اسفار (رڼائې) کښې کول مستحب دی.اود اسفار اندازه دا ده.چه رڼا خوره شی.ددې نه پس په مسنون قراءت سره مونځ شروع کړی.ددې نه پس که د اودس وغیره ضرورت پیښ شی. (یعنی که په څه وجه ئې مونځ مات شی.نو چه دومره وخت باقی وی. چه د نمر ختلو نه وړاندې د هغې دپاره اودس کول اودهغې راګرځول ممکن وی. خلاصه دا چه مونځ دےپه اسفار کښې شروع کولې شی.او په اسفار کښې دےختمولے شی.نو دا په استحباب باندې عمل دې.

**الأفضل عندالطحاوی** رحمه الله > امام طحاوی رحمه الله فرمائیلی دی.مستحب دا دی .چه مونځ په غلس (تیاره) کښې شروع کړی.او په اسفار کښې ئې ختم کړی.خلاصه دا چه د اوږد قراءت په ذریعه غلس او اسفار دواړه جمع کړی.

**دلیله** >دلیل د رافع بن خدیج رضي الله عنه چه [اسفروا بالفجرفإنه أعظم للأجر] (۱)حدیث دې.طریقه د استدلال دا ده.چه په حدیث کښې په اسفار باندې امر شوې دې.او دامر ادنی درجه ندب او استحباب وی.نوځکه اوښلے شو.چه د صبا په مانځه کښې اسفار کول مستحب دې.

**په ګرمئ کښې د ماسپخین مستحب وخت**

| وَالْإِبْرَادُ بِالظُّهْرِ فِي الصَّيْفِ اود ګرمئ په موسم کښې دماسپخین مونځ په یخنئ کښې کول (مستحب دی) وَتَقْدِيْمُهَا فِي الشِّتَاءِ او په یخ وخت کښې ددې نه وړاندې کول |
|---|

**تشریح>** **دلائل فضل الإبراد بالظهرفي الحر>** او دګرمئ په موسم کښې دماسپخین مونځ په یخ وخت کښې کول اودیخنئ په موسم کښې زر کول مستحب دی. ①دلیل هغه حدیث دې.کوم چه مونږ وړاندې ذکر کړې دې. یعنی [ابردوا بالظهر]

② د حضرت انس رضي الله عنه حدیث هم مستدل دې.په بخاری کښې پوره حدیث داسې دې.خالد بن دینار رحمه الله فرمائی .چه زمونږ امیر مونږ ته د جمعې مونځ اوکړلو.بیا ئې حضرت انس رضي الله عنه ته اووئیل.[کیف کان رسول الله ﷺ یصلی الظهرقال کان رسول الله ﷺ إذا اشتد البرد بکر بالصلاة وإذا اشتد الحر أبرد بالصلاة] (۱)یعنی د حضرت انس رضي الله عنه نه ئې تپوس اوکړلو.چه رسول الله ﷺ به څنګه د ماسپخین مونځ کولو؟ نوحضرت انس رضي الله عنه جواب ورکړلو.چه کله به د یخنئ موسم وو.نورسول الله ﷺ به د ماسپخین مونځ وختی کولو.اوچه کله به ګرمی زیاته وه.نود ماسپخین مونځ به ئې په یخ وخت کښې کولو۔

۱) من حدیث رافع بن خدیج رضي الله عنه اخرجه أبوداود فی الصلاة باب ۸ والترمذی فی الصلاة باب ۳ والنسائی فی المواقیت باب ۲۷ وابن ماجه فی الصلاة باب ۲)۔

۱) من حدیث أنس رضي الله عنه اخرجه البخاری فی الجمعة باب ۱۷)۔

## د ماښکر د مونځ د روستوالي استحباب

وَتَأْخِيرُ الْعَصْرِ او (مستحب دی) د مازیګر مونځ روستو کول مَا لَمْ تَتَغَيَّرِ الشَّمْسُ ترڅو چه نمر متغير شوی نه وی (په اوړی او ژمی کښې)

**تشریح﴾ إستحباب تاخیر العصر﴾** دمازیګر مونځ په هر موسم کښې روسته کول مستحب دی.خو په دې شرط چه نمر متغیر نشی.

**دلیله﴾** دلیل دا دې.چه د مازیګر په روستو کولو کښې نوافلو ته زیاته موقع ملاویږی .ځکه چه د مازیګر نه پس نفل کول مکروه دی.نودمازیګر مونځ دے روستو کوی.چه د مازیګر نه وړاندې به ورته د زیاتو نفلونو کولو موقع باقی وی.

**الأقوال الثلاثة في تغیرالشمس﴾** ① صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه د نمر د ککوړی د متغیر کیدو نه مراد دا دې.چه نمر په داسے حالت کښې وی.چه دے ته د کتونکی سترګے نه بریښی. بلکه سترګے ورته نیولے شی. ② ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائی.چه د نمر متغیر کیدو نه مراد ددې د رڼړا بدلیدل دی.کومه چه په دیوالونو باندې پریخوی.خو دا صحیح قول نه دې.(ځکه چه د رڼړا بدلیدل خو د زوال نه پس شروع کیږی. ③ صاحب د عنایه رحمه الله فرمائی.چه د نمر د ککوړی متغیر کیدل دا دی.چه دا د یوے نیزے د مقدار نه کمه شی.اوکه د یوے نیزے د مقدار نه کمه نه وی.نو د ککوړی متغیر کیدل نه دی واقع شوې.

**حکم تاخیر العصر إلي الإصفرار﴾** صاحب دهدایه فرمائی.چه د نمر تغیر کیدو پورې د مونځ روستو کول مکروه دی. نوځکه ئې وړاندې ادا کول مستحب دی.

## دماښام مستحب وخت

وَتَعْجِيلُ الْمَغْرِبِ او دماښام په مونځ کښې جلتی کول مستحب دی

**حل اللغة﴾** ① تعجیل: تندی کول ② تاخیر: روستوالي کول ③ تشبه: یوشان والي کول]

**تشریح﴾ کراهة تاخیرالمغرب﴾** مسئله، د ماښام په مونځ کښې جلتی کول مستحب دی. یعنی د اذان او اقامت په مینځ کښې دے څه فصل نه کوی.سوا د لږے غونډې ناستے نه.

**دلائله﴾** ① د ماښام مونځ روستو کول مکروه دی.او تاخیر ددې وجې مکروه دې.چه په دې کښې یهودیانوسره مشابهت لازمیږی.ځکه چه یهودوبه د ماښام په مونځ کښې تاخیر کولو.

② د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.چه [لايزال أمتي بخير ما عجلوا المغرب وأخروا العشاء][1]

## دماسخوتن مستحب وخت

وَتَأْخِيرُ الْعِشَاءِ او (مستحب دی) د ماسخوتن روستو کول إِلَى مَا قَبْلَ ثُلُثِ اللَّيْلِ تر لږ غونډې وړاندې د دریمے حصے د شپې پورې

**حل اللغة﴾** ① ثلث: دریمه حصه

---

[1] قال الزيلعي رحمه الله غريب روى أبوداود في سننه (أي في الصلاة باب ٥ رقم ٤٠٤) ...عن أبي أيوب رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لا تزال أمتي بخير أوقال على الفطرة مالم يؤخروا المغرب إلى أن تشتبك النجوم (نصب: ٣١٧\١)۔

**تشریح** > **إستحباب تأخير العشاء إلي ثلث الليل** > دماسخوتن مونځ د شپې د دریمې حصې نه لږ غوندې وړاندې پورې روستو کول مستحب دی.او په شرح وقايه کښې دی.چه تر دریمې حصې د شپې پورې روستو کول مستحب دی.

**دلائله** > ①دنبی ﷺ ارشاد دی.[لولا أن أشق علی أمتي لأخرت العشاء إلی ثلث الليل](۱)

② د ماسخوتن د مانځه نه پس قصې کول شرعاً ممنوع دی.ارشاد دی.[لا سمر بعد العشاء](۲) يعنی نبی ﷺ فرمائيلی دی .د ماسخوتن نه پس قصې بيانول نشته.

③ په يو حديث کښې دی.[أن النبی ﷺ كان يكره النوم قبلها والحديث بعدها] يعنی نبی کريم ﷺ به د ماسخوتن نه وړاندې اوده کيدل او روستو خبرې کول مکروه ګنړل.

**الإستدلال**>حاصل دا چه دماسخوتن نه پس خبرې کول اوقصې کولو نه منع شوې ده.اوچه د ماسخوتن مونځ تردريمې حصې پورې روستو شی.نو په دې کښې ددې قصو ختميدل دی.ځکه چه کله مونځ روستو کوی.نو دماسخوتن کيدو نه پس به ورسره دخوب فکر وی.(چه زر اوده شی.نو په وخت به د سحر مانځه ته راپاسی. د قصو فکر به ورسره نه وی. نوځکه تردريمې حصې د شپې پورې روستو کول مستحب اوګرځولی شو.

**إستحباب التعجيل في الشتاء عند البعض**> بعضې فقهاؤ ليکلی دی.چه د ګرمۍ په موسم کښې د ماسخوتن مونځ په جلتۍ سره کول پکار دی.ځکه چه د ګرمۍ په موسم کښې شپې وړې وی.(د خلقو خوب نه پوره کيږی. نو خلق زر اوده کيږی

**إباحة تأخير العشاء إلي نصف الليل ودليله**>صاحب دهدايه ؒ فرمائی.چه د ماسخوتن مونځ ترنيمې شپې پورې روستو کول مباح دی.دليل دا دې.چه په تاخير کښې ددې وجې کراهت دې.چه تقليل د جماعت په کښې راځی.او په دې وجه مندوب دې.چه د قصو بيانول په کښې بيخی ختميږی. (ځکه چه هرسړې زر اوده کيږی.چه په وخت مانځه ته پاسی. نوهرکله چه په دليل د استحباب او دليل د کراهت کښې تعارض راغلو.نودواړه دلائل ساقط شو.او اباحت باقی پاتې شو.

**كراهة التأخير إلي نصف الأخير ودليله**> او د نصف اخير پورې روستو کول مکروه دی.ځکه چه دليل د کراهت او دليل د تقليل جماعت دواړه موجود دی.او دليل داستحباب ورسره معارض نه دې.ځکه چه د قصو بيانول خو ددې نه وړاندې ختم شوی وی.نو دليل د استحباب باقی پاتې نشو.(چه دليل داستحباب نشته.نو اباحت هم نه پيدا کيږی.لکه څنګه چه په وړاندينی صورت کښې اباحت پيدا شوې وو. از مترحم)

---

۲) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه الترمذی فی الصلاة باب ۱۰ رقم ۱۶۷ وابن ماجه فی الصلاة باب ۸ رقم ۶۹۰ واحمد فی المسند (۲۵۰\۱۲)۔

۱) فيه إشارة إلی حديث أبي برزة رضي الله عنه عن النبي ﷺ أنه كان يكره النوم قبلها يعنی العشاء والحديث بعدها أخرجه البخاری فی المواقيت باب ۱۳ ومسلم فی المساجد رقم ۲۳۵ وأبوداود فی الأدب باب ۲۳ رقم ۴۸۴۹ والترمذی فی الصلاة باب ۱۱ رقم ۱۶۸ والنسائی فی المواقيت باب ۲ وابن ماجه فی الصلاة باب ۱۲ رقم ۷۰۱)۔

## د وترو مستحب وخت

وَيُسْتَحَبُّ فِي الْوِتْرِلِمَنْ يَأْلَفُ صَلَاةَ اللَّيْلِ أَنْ يُؤَخِّرَالْوِتْرَإِلَى آخِرِاللَّيْلِ او د هغه کس دپاره چه د شپې مونځ خوښوی.مستحب دي چه وتر آخری شپه پورې دې مؤخر کړی. وَإِنْ لَمْ يَثِقْ بِالإِنْتِبَاهِ نوکه په بيداريدو باندې ئې بهروسه نه وی أَوْتَرَقَبْلَ النَّوْمِ نود اوده کيدو نه وړاندې دے وتر کوی

**حل اللغة**> ① يالف، الف الفًا (س): مينه کول② لم يثق، وثق وثوقًا (ض): يقين اوباور کول ③انتباه: بيدارکيدل هوښياريدل

**تشريح**> **تاخير الوتر إلى حكمين بإعتبار الأشخاص**> ① مسئله دا ده.چه څوك د تهجدو د مانځه عادی وی.اود هغه په پاسيدو بهروسه هم وی.نودهغه دپاره مستحب دی.چه وتر د تهجدو نه پس د شپې په آخره حصه کښې اوکړی.

② که په پاسيدو ئې بهروسه نه وی.يا په شپه کښې د تهجدو دمونځ عادی نه وی. نو داسې کس دے د اوده کيدو نه وړاندې وتر کوی.

**دليله**> صاحب دهدايه رحمه الله د رسول الله ﷺ په حديث باندې استدلال کړې دې.دحديث الفاظ دا دی.[من خاف أن لايقوم آخر الليل فليوتر أوله ومن طمع أن يقوم آخر الليل فليوتر آخره] (1)

**ضابطة تاخير الصلاة وتعجيلها في الغيم**>وړاندې د هغه پنځومستحب وختونو بيان وو.چه آسمان شين وی.اوکه آسمان شين نه وی.بلکه وريځ وی.نو په دې صورت کښې صاحب دعنايه ضابطه بيان کړې ده.،،العين مع العين،، يعنی هر هغه مونځ چه په هغې کښې ،،عين،، وی.يعنی ماسخوتن او مازيگر، نوهغه به د وريځ په ورځ واړندې کولې شی.اودې دواړو نه علاوه په نورو مونځونو کښې تاخير مستحب دې.

**وجه تعجيل العشاء في الغيم**> د وريځ په ورځ د ماسخوتن په مونځ کښې د عجلت وجه دا ده.که په داسې حالت کښې د ماسخوتن جماعت روستو کړې شی. نود باران احتمال په کښې وی. او خلق په کښې سستی کوی.اوپه رخصت به عمل کوی.ځکه چه د باران ورځ به وه.نو نبی ﷺ به د اذان نه پس دا اعلان کولو.[الاصلوافی رحالکم]خبردار! په خپلو خپلو کورونو کښې مونځ اوکړئ.

**وجه تعجيل العصر في الغيم**> اوپه مازيگر کښې د تعجيل داستحباب وجه دا ده .چه د وريځ په ورځ د مازيگر دمونځ په مکروه وخت کښې د واقع کيدو احتمال وی.نوځکه دمازيگر په مونځ کښې تعجيل مستحب دې.

**وجه تاخير الفجر في الغيم** > ددې په خلاف دصبا په مانځه کښې دا گمان نه وی.ځکه چه د صبا د مانځه وخت (د صبا راختو نه واخله تر نمر راختو پورې ) اوږد وی.نوکه دصبا مونځ روستو هم کړی.نو په دې کښې د نمر راختو په وخت کښې د مونځ واقع کيدو دگمان ويره نشته.نوځکه د وريځ په ورځ د صبا په مونځ کښې تاخير مستحب دې.

---

۱) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه مسلم فی صلاة المسافرين وقصرها رقم ۱٦۲ والترمذی فی الوتر باب ۳ وابن ماجه فی الإقامة باب ۱۲۱)_

**وجه تاخير الظهر والمغرب في الغيم>** اوپه ماسپخين او ماښام كښې تاخير ځكه مستحب دې.كه د وريځ په ورځ دا وراندې اوكړې شي.نود وخت نه وړاندې د ادا كولو احتمال په كښې شته.او د وخت نه وړاندې مونځ كول جائز نه دی.نوځكه په دې كښې تاخير مستحب دې.

**رواية التاخير في جميع الصلوات>** حسن بن زياد د ابوحنيفه رحمه الله نه نقل كړی دی.چه د وريځ په ورځ احتياط په دې كښې دې.چه په ټولو مونځونو كښې تاخير اوكړې شی.ځكه چه تعجيل كښې د وخت نه وړاندې د ادا كولو احتمال شته.او په تاخير كښې د وخت نه روستو د ادا كولو احتمال شته.اودا خبره منلې شوې ده.چه د وخت نه پس مونځ كول جائز دې.اګركه قضاء وی.خو د وخت نه وړاندې كول جائز نه دې.نۀ ادا او نۀ قضاء.

# بَابُ الْأَذَانِ

**ترجمه:** (دا) باب د اذان ( د احكامو په بيان كښې ) دې.

**تشريح> الربط بما قبله>**چونكه اذان د مونځونو دوختونو اعلان دې.نوځكه ئې اول د وختونو بيان اوكړلو.او بيا وروسته د اذان.

**الأذان لغة >** اذان په لغت كښې اعلان او اعلام ته وائی.اوبيا د مونځونو دپاره چه كوم خاص الفاظ وئيلی شی. د هغې دپاره مستعمل شو.نوكله چه هم د اذان لفظ ذكرشی.مراد به ترې دغه د مانځه دپاره اعلان وی.دا لغوی معنی د الله تعالی په دې قول ﴿وَأَذَانٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ﴾او﴿أَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا﴾ مستعمل ده.

**الأذان شرعًا>**اوپه شريعت كښې داذان تعريف دا دې.په مخصوصو الفاظو كښې په مخصوص طريقه د مانځه د وخت داخليدو خبر وركول.

**إثبات الأذان من حم السجدة>** دويم آيت ﴿وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّن دَعَا إِلَى اللَّهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾حم السجدة:۳۳]دې.علامه بغوی رحمه الله فرمائی.چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.زما خيال دې.چه دا آيت د مؤذنينو په باره كښې نازل شوې دې.حضرت عكرمه رحمه الله فرمائی. ﴿قَوْلًا مِّمَّن دَعَا إِلَى اللَّهِ﴾ نه مراد مؤذن دې.او ابوامامه باهلی رضي الله عنه فرمائيلی دی.چه په دې آيت كښې ﴿وَعَمِلَ صَالِحًا﴾ نه مراد دا دې.چه د اذان او اقامت په مينځ كښې دوه ركعته اوكړی.

**القولان في تاريخ مشروعية الأذان>** باقی پاتې شوه دا خبره.چه اذان كله مشروع شوې دې.ددې په باره كښې ملا علی قاری رحمه الله په شرح نقايه كښې دوه اقوال ذكر كړی دی.يودا چه اذان په اول كال د هجرت كښې مشروع شوې وو.دويم دا چه په دويم كال دهجرت مشروع شوې وو.

**مشروعية الأذان في السنة الثانية من الهجرة>** د دويم قول دليل دا دې.چه ابن اسعدد نافع بن جبير ،عروه بن زبير، او سعيد بن مسيب رضي الله عنهم نه نقل كړی دی.چه [أنهم قالوا كان الناس في عهد رسول الله ﷺ قبل أن يؤمر بالأذان ينادی منادی رسول الله ﷺ ،،الصلاة جامعة،، فتجتمع الناس فلما صرفت القبلة أمر بالأذان] يعنی دا درې واړه حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم فرمائی.چه خلقوبه دنبی ﷺ په زمانه كښې د اذان د حكم راتلو نه وړاندې د ،،الصلاة جامعة،، آواز كولو. خلقوچه به دا آواز واوريدل.نو راجمع به شو.خوچه كله قبله بدله شوه.نو د

اذان حکم اوشو.او دا خبره معلومه ده.چه تحویل د قبله په دویم کال د هجرت کښې شوې وو.نوثابته شوه.چه د اذان مشروعیت په دویم کال د هجرت شوې دې.

**مشروعية الأذان ليلة الإسراء** >دهندوستان علامه عبدالحی رحمه الله په السعایه کښې دحافظ ابن حجر العسقلانی رحمه الله په حواله سره لیکلی دی.چه د بعضې احادیثو نه دا معلومیږی.چه اذان په مکه مکرمه کښې د هجرت نه وړاندې مشروع شوې وو.

**دلائله** > ①په طبرانی کښې دی.[**أنه لما أسرى بالنبي ﷺ أوحى الله إليه الأذان فنزل به فعلمه بلالاً**] یعنی په شپه د معراج الله تعالی نبی ﷺ ته د اذان وحی کړې وه.نو نبی ﷺ د اذان سره واپس تشریف راوړلو.او حضرت بلال رضی الله عنه ته ئې تعلیم ورکړلو.

② په دارقطنی کښې د حضرت انس رضی الله عنه حدیث دې. چه [**أن جبريل أمر النبي ﷺ بالأذان حين فرضت الصلاة**] یعنی په کوم وخت کښې چه مونځونه فرض شو.نوجبرئیل علیه السلام نبی ﷺ ته د اذان حکم کړې وو. ددې دواړو روایاتونو نه معلومیږی.چه اذان د هجرت نه وړاندې په مکه کښې مشروع شوې دې.خو حافظ بن حجر رحمه الله ددې احادیثو د عدم صحت دعوی کړې ده.

**الرائي الراجح في تاريخ مشروعية الأذان**>علامه عبدالشکور صاحب لکهنوی په ،،علم الفقه،،کښې لیکلی دی.چه د اذان شروع په مدینه منوره کښې د هجرت په اول کال شوې وه.ددې نه وړاندې به مونځونه بغیر د اذان نه کیدل.چونکه په هغه وخت کښې د مسلمانانو شمار څه زیات نه وو.نوځکه د مانځه دپاره د دوی راجمع کیدل هم څه ګران نه وو.بیا چه کله ورځ په ورځ اسلام ترقی کوله .او د مختلفو طبقو خلق ډلې ډلې په اسلام کښې داخلیدل. نو ددې خبرې ضرورت پیښ شو.چه دمانځه د وخت په راتلو او د جماعت د اودریدو خبر دوی ته ورکولې شی.چه په دې سره دوی د نزدې او لرې ځایونو نه جماعت ته راتلې شی.نو د اذان دا طریقه ددې مقصد دپاره مقرر کړې شوه.او اذان ددې امت خصوصیت دې.په پخوانو امتونو کښې نه وو.

**مشاورة الصحابة رضی الله عنهم في أمر الأذان**>داذان دمشروعیت لنډه قصه دا ده.چه کله صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د مونځ او د جماعت د وختونو خبر ورکولو ضرورت محسوس شو.نو هغوی په خپلو کښې مشوره اوکړله .بعضو مشوره ورکړه.چه د یهودیانو یشان دے بنکر غږولې شی.بعضې حضراتو اووئیل.چه اور دې بلولې شی. خو نبی ﷺ دا رائیګانې خوښې نکړې.حضرت عمر رضی الله عنه دا رائې ورکړه.چه د مانځه په وخت کښې دے ،،**الصلاة جامعة**،، ونیلې شی.

**رؤيا عبدالله بن زيد وعمر رضی الله عنهما** >ددې نه پس حضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه خوبونه اولیدل .چه یوې فرښتې د اذان دا طریقه چه وړاندې بیانولې شی.اوخودله.چه په دې طریقه د مونځ د وختونو او د جماعت خبر مسلمانانو ته ورکوئ.په بعضې روایاتو کښې راځی.چه حضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه اوفرمائیل.که په ما باندې د بدګمانئ ویره نه وه.نوما به دا وئیلی وو.چه زه بالکل اوده نه وم.(بلکه ویخ وم) ددې وجې بعضې عالمانو دا واقعه په حال او کشف باندې حمل کړې ده.چه ارباب باطن نه په حالت دبیدارئ کښې نصیب کیږی.مختصر دا چه صبا ته حضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه د نبی ﷺ په خدمت کښې واقعه بیان کړه.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.بیشکه دا خوب حق دې.او حضرت بلال رضی الله عنه ته ئې حکم اوکړلو.چه هم په دې طریقه اذان اوکړی.بیا حضرت عمرفاروق رضی الله عنه راغلو.او خپل خوب ئې بیان

کړلو.

**تعلیم الأذان بالوحي**> په بعضې روایاتو کښې دي.چه ددې نه وړاندې نبی ﷺ باندې وحی نازل شوې وه. لکه څنګه چه عبدالرزاق په خپل مصنف او ابوداود په خپل مراسیل کښې دا روایت نقل کړې دې.

**ضعف روایة تعلیم جبریل الأذان لیلة الإسراء**> په بعضې احادیثو کښې دا هم راغلی دی.چه په شپه د معراج حضرت جبرئیل علیه السلام نبی ﷺ ته د اذان تعلیم ورکړې وو .خو دا احادیث صحیح نه دي.اوکه بالفرض دا صحیح اوګنړلې شي. نو ددې نه هغه د معراج واقعه مراد نه ده.چه په مکه کښې واقعه شوې وه.څکه چه نبی ﷺ ته به روحانی معراج بیا بیا کیدلو.نو ددې نه به مراد هغه شپه وي.په کومه کښې چه به نبی ﷺ دا خوب لیدلے وي.والله اعلم

## د اذان اهمیت او فضیلت

اذان د الله تعالی په ذکرونو کښې یو ډیراوچت ذکر دې. په دې کښې د توحید او رسالت دګواهئ اعلان کولې شي.او په دې باندې د اسلام شان او شوکت ښکاره کیږي.په ډیرو حدیثونو کښې د اذان فضیلت راغلے دې.

① **شهادة الإیمان للمؤذن**> د اذان آواز چه ترڅومره پورې رسي.اوکوم کسان دا اوري.که جنات وي اوکه انسانان د قیامت په ورځ به د مؤذن دپاره دایمان ګواهي ورکوي.(بخاري،نسائي، ابن ماجه)

② **دخول الجنة عقیب الأنبیاء والشهداء**> دالله تعالی د ربښتینی پیغمبر ﷺ وینا ده.چه د پیغمبرانو علیهم السلام او شهیدانو نه به پس مؤذنان جنت ته داخلیږي .او په بعضې احادیثو کښې دا هم دي.چه د مؤذن مرتبه د شهید برابر ده.

③ **العتق من النار**> یتیم ﷺ د عبدالله وئیلي دي.کوم کس چه اووه کالو پورې اذان اوکړلو.او په دې باندې دده غرض صرف ثواب وو.نودهغه دپاره د دوزخ نه آزادي اولیکلې شي.(ابوداود ،ترمذی)

④ **القرعة لتحصیل فضل الأذان**>نبی ﷺ فرمائیلي دي.که خلقو ته معلومه شي. چه په اذان کښې څومره زیات ثواب دې.بیا ورته دا منصب د قرعه اندازئ نه بغیر نه ملاویږي.(څکه چه هر سړې دا وائي.چه اذان به زه کوم.نو بیشکه ددې دپاره به قرعه اندازي واچوي.خلاصه دا چه ددې منصب دپاره به ډیر کوشش کوي .(بخاري ،مسلم ،ترمذي، نسائي) د صحابه کرامو ﷺ په زمانه کښې داسې شوې وو .چه د اذان په کولو باندې په خلقو کښې اختلاف پیدا شو. هرکس غوښتل.چه دا مبارک منصب ماته ملاؤ شي.تردے چه قرعه اندازئ ته خبره اورسیدله.(تاریخ بخاري)

⑤ **المؤذن علی المسک یوم القیامة**>رسول الله ﷺ فرمائیلي دي.د قیامت په ورځ به درې قسمه خلق د مشکو په ډیرو ولاړ وي.نه به پرے حساب وي.اونه به حیران او پریشان وي. ①یوهغه کس چه د الله تعالی د رضا دپاره ئې قران لوستے وي. ② دویم هغه کس چه د غلامئ په عذاب کښې اخته وي.خو بیا هم دآخرت نه غافله نه وي. ③ دریم مؤذن (المرشد الامین)

⑥ **الشفاعة یوم القیامة**>دقیامت په ورځ به مؤذنینو ته هم د شفاعت کولو اجازت اوشي.اوهغوی به د خپلو خپلوانو اودوستانو یا د چا دپاره چه ئې خوښه وي. الله تعالی ته شفارس کوي.

⑦ **فرار الشیطان من الأذان**>داذان په وخت په شیطان ډیره ویره اوهیبت وي. او د ډیرے وارخطائې نه تختي.ترکومے پورې چه دموذن آواز رسي.هلته نه ایساریږي . (بخاري ،مسلم)

⑧ **طول الأعناق یوم القیامة**>د قیامت په ورځ به د اذان کونکو څټونه غړئ اوږدے وي.یعنی دوی به په ډیرو

عزتمندو او اوچتو خلقو كښې وى.اودقيامت د ويرے او مصيبت نه به محفوظ وى.

⑨ **صيانة مكان الأذان** > په كوم ځائي باندې چه اذان كولې شى.هلته د الله تعالى رحمت نازليږى.د عذاب اومصيبتونونه هغه ځائي محفوظ وى.

⑩ **دعاء النبي ﷺ للمؤذنين** > نبى ﷺ د اذان كونكو دپاره د مغفرت دعاګانے كړى دى.

**د اذان شرعى حيثيت**

| الْأَذَانُ سُنَّةٌ لِلصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ وَالْجُمُعَةِ اذان د پنځو مونځونو او جمعې دپاره سنت دې دُوْنَ مَا سِوَاهَا نه چه د ما سوا دپاره |
|---|

**حل اللغة** > ①اذن تاذينًا: اذان وركول ② ملك: فرښته ③ سماء جمع سموات: آسمانونه ]

**تشريح** > **حكم الأذان**① > اذان د پنځو مونځونو او جمعے دپاره سنت مؤكده دې.([1])

**دليله** > د اذان په مسنونيت باندې نقل متواتر دليل دې.يعنى دا خبره په تواتر سره ثابته ده.چه نبى ﷺ د پنځو مونځونو او جمعې دپاره د اذان حكم كړې دې.او ددې نه علاوه د وترو، عيدينو، كسوف، خسوف، استسقاء، دجنازے مونځ او د نفلونو دپاره نې د اذان حكم نه دے كړې.

**دليل إثبات الأذان للجمعة** > او جمعې د اذان دپاره د سائب بن يزيد ﷺ حديث دليل دې.چه په صحيحينو كښې دې.([2])

**الفاظ واقعة نزول الملك المؤذن** > صاحب دهدايه فرمائي.چه د اذان كيفيت معلوم دې.اودا په هغه طريقه دې.څنګه چه د آسمان نه نازل شوې فرښتے كړې وو.ددې تفصيل د حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه په حديث كښې تفصيل سره تيرشوې دې.دحديث الفاظ دا دى.[**عن معاذبن جبل قال قام رجل من الأنصار عبدالله بن زيد يعنى إلى النبى ﷺ فقال يا رسول الله ﷺ إنى رأيت فى النوم كأن رجلاً نزل من السماء عليه بردان أخضران أنزل على جزم حائط من المدينة فأذن مثنى مثنى ثم جلس قال أبوبكر بن عياش على نحو من أذاننا اليوم قال عليها بلالاً فقال عمر رضي الله عنه ورأيت مثل الذى رأى ولكنه سبقنى**]

**من هو الملك المؤذن ؟** > باقى پاتې شوه دا خبره چه دا كومه فرښته وه.نو علامه بدرالدين عينى رحمه الله فرمائيلي دى چه دا جبرئيل امين عليه السلام وو.او د بعضې حضراتو رائې ده.چه دا بله يوه فرښته وه.

**دليل عدم الأذان للعيدين** > په مسلم كښې د جابربن سمره رضي الله عنه نه روايت دې.چه [**صليت مع رسول الله ﷺ العيد غير مرة ولا مرتين بغير أذان ولا إقامة**] يعنى ما د رسول الله ﷺ سره د اخترونو مونځ يو ځل دوه ځله نه دے كړې. (بلكه ډير ځله مے كړې دې. بغير د اذان او اقامت نه.

**دليل عدم الأذان للكسوف والخسوف** > دحضرت عائشې رضي الله عنها روايت دې.چه [**خسفت الشمس على عهد رسول الله ﷺ فبعث مناديا ينادى بالصلاة جامعة**] يعنى د رسول الله ﷺ په زمانه كښې به نمر تندر نيول.نو نبى ﷺ به يو

---

[1] ) بعضې مشائخو رحمهم الله فرمائيلى دى.چه واجب دې.

[2] (١) البخارى فى الجمعة باب الأذان للجمعة رقم ٨٦١)

آواز کونکي اوليږلو.هغه به د ،،الصلاة جامعة،، الفاظ ونيل.ددي دوارو احاديثو نه ثابته شوه.چه د عيدينو او کسوف او خسوف دپاره اذان نشته.

**دليل عدم الأذان للوتر،والسنن والنوافل>** او وتراګرچه واجب دی.خو د ماسخوتن اذان کافي دي.ځکه چه د وترو وخت هغه دي.کوم چه د ماسخوتن دي.اوباقی پاتې شوسنتماو نوافل نودا د فرضو تابع دی.ددې دپاره د جدا اذان څه ضرورت نشته.

## په اذان کښي د ترجيع حکم

| وَلَاتَرْجِيعَ فِيهِ او په اذان کښې ترجيع نشته |
|---|

**تشريح> صورة الترجيع>** په اذان کښې د ترجيع صورت دا دې.چه [أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمداً] الفاظ څلور څله وائي.دوه څله په رو آواز سره او دوه څله په اوچت آواز سره. نوزمونږ په نيز په اذان کښې ترجيع نشته.

**دلائله>** ① د اذان په باره کښې چه کوم احاديث راغلي دی.په هغې کښې ترجيع نشته.من جمله د دغه احاديثو نه د حضرت عبدالله بن زيد بن عبد ربه رضي الله عنه او عبدالله بن عمر رضي الله عنهما روايات دی. په دې کښې ترجيع نشته.د ابن عمر رضي الله عنهما د حديث الفاظ دا دی.[قال إنما كان الأذان على عهد رسول الله ﷺ مرتين مرتين والإقامة مرة مرة]

② عقلی دليل دا دې.چه په اذان کښې مقصود ,,حی علی الصلاة او حي علی الفلاح،، دې. او په دې کلماتو کښې ترجيع نشته.نوددې نه په علاوه کلماتو کښې خو به په طريقه اولی سره ترجيع نه وی.

## د صبا په مانځه کښې د ,,الصلاة خير من النوم زيادت

| وَيَزِيدُ فِي أَذَانِ الْفَجْرِ بَعْدَ الْفَلَاحِ الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ مَرَّتَيْنِ اود صبا په مانځه کښې دے د ،،حي علی الفلاح،، نه پس دوه څله ،،الصلاة خيرمن النوم،، زياتی کړی |
|---|

**حل اللغة>** ① يزيد، زاد زيادةً (ض): زياتول نوم: خوب

**تشريح> زيادة ,,الصلاة خيرمن النوم>** فرمائي.چه د صبا په اذان کښې دے د ،،حی علی الفلاح،، نه پس د ،،الصلاة خير من النوم،، زيادت کوی.اودا زيادت مستحب دې.

**دليله>** دليل دا دې.چه يوه ورځ حضرت بلال رضي الله عنه د صبا اذان اوکړلو.او بيا د حضرت عائشې رضي الله عنها د حجرې دروازې ته راغلو.اوعرض ئې اوکړلو ,,,الصلاة يا رسول الله،، حضرت عائشې رضي الله عنها ورته اوفرمائيل: ,,الرسول نائم،، رسول الله ﷺ اوده دې.نوبلال اوونيل: ,,الصلاة خير من النوم،، نو نبی ﷺ بيدارشو.حضرت عائشې رضي الله عنها ورته خبر ورکړلو.نبی ﷺ دا کلمه خوښه کړه. اووے فرمائيل: بلاله! دا په خپل اذان کښې شامله کړه.[1]

**وجه تخصيص الزيادة في الفجر>** باقی پاتې شوه دا خبره چه دا زيادت د صبا د مانځه سره ولې خاص شو.نو جواب دا دې.چه دا وخت د خوب او د غفلت وی. نوځکه دا زيادت د صبا اذان سره خاص شو.

---

۱) اخرجه الطبرانی فی معجمه الکبیررقم (۱۰۸۱)۔

## اقامت د اذان پشان دي

وَالْإِقَامَةُ مِثْلُ الْأَذَانِ اقامت د اذان پشان دي إِلَّا أَنَّهُ يَزِيدُ فِيهَا بَعْدَ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ مَرَّتَيْنِ خوپه اقامت كښې به د ،،حي على الفلاح،، نه پس دوه كرته ، ،قدقامت الصلاة،، زياتوى

**حل اللغة** ﴿١﴾ ملك جمع ملائك: فرښته ﴿٢﴾ فرادى: يوازې، يوځل ]

**تشريح** **كلمات الإقامة** ﴿١﴾شيخ قدورى رحمه الله فرمائي.چه اقامت هم د اذان پشان دي.صرف دومره فرق دي.چه په اقامت كښې دے د ،،حي على الفلاح،، نه پس د ،،قدقامت الصلاة،، زيادت كوي.

**دليله** دآسمان نه كومه فرښته نازله شوې وه.هغې د اذان پشان اقامت هم دوه دوه كلمے ونيلے وې.مصنف بن ابى شيبه د عثمان بن ابى ليلى نه روايت كړې دي.چه مونږ ته د نبى ﷺ صحابو ددې بيان كړې دي.چه عبدالله بن زيد انصارى رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته راغلو. او عرض ئې اوكړلو.چه يو ويونكے كس چه هغه دوه شنې جامے اغوستے وې.په يو ديوال باندې اودريدلو. او هغه اذان دوه دوه خله او اقامت دوه دوه خله اوكړل.(١)

## په اذان كښې ترسيل او اقامت كښې حدر كول

وَيَتَرَسَّلُ فِي الْأَذَانِ په اذان كښې دے ترسيل كوى وَيَحْدُرُ فِي الْإِقَامَةِ اوپه اقامت كښې حدر

**حل اللغة** ﴿١﴾يترسل، ترسل ترسلاً: نرمى كول په مزه كول ]

**تشريح** **الترسيل في الأذان والحدر في الإقامة** ترسيل دا دي.چه د دوو كلماتو په مينځ كښې په سكته سره فصل (جداوالي) اوكړي.او ،،حدر،، دا دي.چه فصل نه كوى . فرمائي.چه اذان كښې ترسيل مستحب دي.اوپه اقامت كښې حدر.

**دليله** دليل دا دي.چه نبى ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته هم ددې حكم كړې وو.(٢)

**القولان في عكس هذا** نوكه په اقامت كښې ئې ترسيل اوكړلو. ﴿١﴾نو د بعضې عالمانو رحمهم الله په نيز ددې وجې مكروه دي.چه خلاف سنت دي.﴿٢﴾ خو د هدايه د عبارت نه عدم كراهت معلوميږي. څكه چه صاحب د هدايه فرمائي.،،وهذا بيان الاستحباب،، اوښكاره خبره ده.چه د مستحبو په پريخودو سره كراهت نه راځي.

**ترجيح القول الأول** ابن همام رحمه الله فرمائي.چه اول قول حق دي.يعنى په اذان كښې ترسيل او په اقامت كښې د حدر مسنونيت ثابت دي.(نو په ترك سره ئې كراهت راځي.)

## په اذان او اقامت كښې د استقبال قبلې حكم

وَيَسْتَقْبِلُ بِهِمَا الْقِبْلَةَ اوپه اذان او اقامت كښې به قبلې ته مخ كوى وَإِذَا بَلَغَ إِلَى الصَّلَاةِ وَالْفَلَاحِ حَوَّلَ وَجْهَهُ يَمِينًا وَشِمَالًا او كله چه ،،حي على الصلاة،، او ،،حي على الفلاح،، ته اورسى نو خپل مخ به ښى او كس طرف ته كرځوى

**حل اللغة** ﴿١﴾ يمينا: ښى طرف ﴿٢﴾ شمالا: كس طرف ﴿٣﴾يحول: كرځوى به

---

٢) من حديث معاذبن جبل رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الصلاة باب ٢٨ رقم ٥٠٠)۔

١) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه الترمذى في الصلاة باب ٢٩)۔

**تشریح> إستقبال القبلة في الأذان>** صاحب دعنایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه په اذان او اقامت کښې به مخ په قبله اودریږی. یعنی قبلې طرف ته دے مخ کړی.سوا د ،،حی علی الصلاة،، او ،،حی علی الفلاح،، نه.

**دلیله>** دآسمان نه چه کومه فرښته راکوزه شوې وه.هغې داسې اذان کړې وو.()اوکه په اذان کښې ئې استقبال د قبلې پریخودلو.نو جائزدې.خود سنت پریخودو د وجې مکروه تنزیهی دې.

**وجه تحويل الوجه في الحيعلتين>** اود ،،حی علی الصلاة،، او حی علی الفلاح ،، په وخت دے صرف خپل مخ ښی اوګس طرف ته ګرځوی.ځکه چه په دې دواړو کلماتو کښې قوم ته خطاب دې.نوخطاب به هغوی ته مخامخ شی.چه مانځه طرف ته او د دواړو جهانونو کامیابۍ طرف ته راشئ.

**الإعتراض>** دلته کښې دا اعتراض کیدے شی.چه خلق لکه څنګه ښی او ګس طرف ته وی.نو دغه شان شاه طرف ته هم وی.نولکه څنګه چه ښی او ګس طرف ته د مخ ګرځولو حکم دې.دغه شان شاه طرف ته هم د ګرځولو حکم پکار وو؟

**الجواب>** په دې صورت کښې قبلې ته شاه راځی.حالانکه موذنین خلقو ته قبلې ته دمخ کولو دعوت ورکوی.نو ددې وجې صرف په ښی او ګس طرف اکتفاء اوکړې شوه.ځکه چه دے سره دآواز رسولو مقصود حاصلیږی.

**دقضاء شوو مونځونودپاره د اذان حکم**

| وَيُؤَذِّنُ لِلْفَائِتَةِ اود قضاء شوو مونځونو دپاره دے اذان کوی وَيُقِيمُ اواقامت دے هم کوی. |
|---|

**حل اللغة>** ①یؤذن، اذن تاذینًا: اذان ورکول ② یقیم، اقام اقامةً: اقامت وئیل، اودریدل

**تشریح> الأذان للفائتة>** ① مسئله دا ده.چه مونځ قضاء شی.نو د هغې دپاره دے اذان کوی. او اقامت دے کوی.که ځان ته ئې قضاء راوړی اوکه په جماعت سره.

**دلیله>** دلیل د لیلة التعریس واقعه ده.تعریس وئیلی شی.د شپې په آخر کښې په یو ځائې کښې د آرام کولو دپاره ډیره اچول.دا واقعه د حدیث په کتابونو کښې په مختلفو الفاظو سره نقل ده.علامه ابن همام رحمه الله د ابوداود په حوالې سره دا الفاظ نقل کړی دی.[أنه أمربلالاً بالأذان والإقامة حين ناموا عن الصبح وصلوها بعد إرتفاع الشمس](۱)یعنی نبی ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته د اذان او اقامت کولو حکم اوکړلو.څه وخت چه نبی ﷺ د صبا د مانځه نه اوده پاتې شوې وو.اود نمر راختلو نه پس ئې مونځ اوکړلو.

**د زیاتو قضاء شوو مونځونو دپاره د اذان او اقامت حکم**

| فَإِنْ فَاتَتْهُ صَلَوَاتٌ بیاکه چرته دده نه څو مونځونه قضاشو أَذَّنَ لِلْأُولَى .نو د اولنی مونځ دپاره دے اذان اوکړی وَأَقَامَ اواقامت دے اوکړی وَكَانَ مُخَيَّرًا فِي الثَّانِيَةِ اود دویم مونځ په حق کښې ورته اختیار دې إِنْ شَاءَ أَذَّنَ که غواړی. (دهریودپاره دے) اذان اوکړی وَأَقَامَ اواقامت دے اوکړی وَإِنْ شَاءَ اقْتَصَرَ عَلَى الْإِقَامَةِ اوکه غواړی نو په اقامت دے اکتفاء اوکړی |
|---|

**حل اللغة>** ①فاتت، فات فوتًا(ن) فوت کیدل ②اقتصر، اقتصارا: اکتفاءکول

---

(۲) تقدم تخریجه من حدیث معاذبن جبل رضی الله عنه عندابی داود)۔

(۱)من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الصلاة باب ۱۱ رقم ۴۳۶)۔

**تشريح>** **الإذان والإقامة للأولي من الفائتة>** مسئله دا ده كه ديوكس نه څو مونځونه قضاء شي.نو د اولنی مونځ دپاره دے اذان اوكړي.اواقامت دے هم اوكړي.دليل حديث د ليلة التعريس دي.
**الأذان للفائتة الباقية >** اود باقي مونځونو په حق كښې ورته اختيار دې.كه زړه ئې غواړي.نود هرمانځه دپاره دے اذان هم كوي او اقامت هم.چه قضاء د ادا پشان شي.
**دليله>** ددې تائيد دهغه روايت نه هم كيږي.كوم چه علامه ابن الهمام رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله په واسطه بيان كړي دي. [أنه حين شغلهم الكفار يوم الأحزاب عن أربع صلوات عن الظهر والعصر والمغرب والعشاء قضاهن على الولاء وأمر بلالا أن يؤذن ويقيم لكل واحدة منهن] دغزوه احزاب په موقع چه كافرانو نبي ﷺ د څلورو مونځونو نه بند كړي وو.يعني دماسپخين ،مازيګر، مابنام او ماسخوتن نه.نو نبي ﷺ په ترتيب سره د هغې قضاء راوړله.اوبلال رضي الله عنه ته ئې حكم اوكړلو.چه په دې كښې دهر يو دپاره اذان او اقامت اوكړي.
**الإكتفاء علي أذان الأولي ودليله العقلي>** اوكه زړه ئې غواړي.نوپه اقامت دے اكتفاء اوكړي.دليل ئې دا دے.چه اذان كيږي.د حاضرولو دپاره اودلته كښې ټول حاضر دي.

**د اذان او اقامت دپاره دطهارت حكم**

| وَيَنْبَغِي اومناسب دی أَنْ يُؤَذِّنَ چه اذان اوكړي وَيُقِيمَ او اقامت كوي عَلَى طُهْرٍ د اودس په حالت كښې فَإِنْ أَذَّنَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ نوكه بغير اودسه ئې اذان اوكړلو جَازَ جائز دي |
|---|

**حل اللغة>** ①ينبغي: انبغاء: غوښتل ②طهر: پاكي ]
**تشريح>** **إستحباب الوضوء للأذان >** مستحب ده.چه اذان او اقامت په اودس كښې اوكړې شي.خو كه بغير د اودسه ئې اذان اوكړلو.نو د ظاهر روايت مطابق بغيرد كراهت نه جائز دې.
**دليله>** دليل دا دې.چه اذان دالله تعالى ذكر دې.مونځ نه دې.اود ذكردپاره اودس مستحب دې.واجب نه دې.نوځكه د اذان كولو دپاره اودس مستحب شو. لكه د قرآن لوستلو دپاره چه اودس كول مستحب دې.

**بغيرد اودس نه د اقامت كراهت**

| وَيُكْرَهُ أَنْ يُقِيمَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ اوبې اودسه اقامت كول مكروه دې |
|---|

**تشريح> كراهة الإقامة بغير طهارة >** مسئله يې اودسه اقامت كول مكروه دی.
**دليله>** ځكه چه په دې صورت كښې په اقامت او مونځ كښې فصل لازميږي .حالانكه اقامت د مونځ سره متصل مشروع دې.
**رواية عدم كراهة الإقامة بغير طهارة >** امام كرخي رحمه الله روايت كړي دې.چه اقامت هم بې اودسه مكروه نه دې. ځكه چه اقامت په دوو اذانونو كښې يو اذان دې.اواذان بې اودسه مكروه نه دې.نواقامت به هم بې اودسه مكروه نه وي.

**په حالت د جنابت كښې د اذان حكم**

| أَوْيُؤَذِّنَ وَهُوَجُنُبٌ اويا دا چه اذان اوكړي په داسې حال كښې چه دې جنب وي |
|---|

**تشريح> كراهة إقامة الجنب>** مسئله دا ده.چه په حالت د جنابت كښې اذان كول مكروه دې.او په دې كښې صرف يو روايت دې.يعني د كراهت روايت دې.اود عدم كراهت روايت نشته.او وړاندې تير

شو.چه د ې اودسه په اذان کښې د کراهت او عدم کراهت دواړه روايتونه شته.

**وجوه المشابهة بين الأذان والصلاة** ﴿نود جنب د اذان په کراهت اود محدث د اذان په عدم کراهت کښې فرق دا دې.چه اذان د مونځ مشابه دې.هغه دا سې :

① چه دواړه د تکبير تحريمې نه شروع کيږي.② دواړه مخ په قبله ادا کولې شي.③ اود اذان کلمات داسې مرتب دی.لکه څنګه چه د مونځ ارکان مرتب دی.دواړه د وخت سره خاص دی.

④او په دواړو کښې په مينځ کښې خبرې کول ممنوع دی.نو په دې اعتبار سره اذان د مونځ مشابه شو.خو اذان په حقيقت کښې مونځ نه دې. حاصل دا شو.چه اذان من وجه د مونځ مشابه دې.اومن وجه مشابه نه دې.نو که د مشابهت اعتبار اوکړې شی.نوپکار ده چه اذان بې اودسه ناجائز شی.اود جنابت سره هم ناجائزشی.اوکه دعدم مشابهت اعتبار اوکړې شی.نوپه دواړو صورتونو کښې اذان بغير د کراهته پکار چه جائز شی.

**العمل علي مقتضي المشابهة وعدمها** ﴿نومونږ په دواړو مشابهتينو باندې عمل اوکړلو.نود جنابت په صورت کښې مو د مونځ سره د مشابهت اعتبار اوکړلو. اوحکم مو اوکړلو.چه د اذان دپاره طهارت شرط دې.نو په حالت د جنابت کښې اذان کول مکروه دې.اود بې اودسۍ په صورت کښې مو د عدم مشابهت اعتبار اوکړلو.او حکم مو اوکړلو.چه د اذان دپاره طهارت شرط نه دې.نو په حالت د بې اودسۍ کښې اذان کول مکروه نه دې.

**قول محمد رحمه الله في الجامع الصغير** ﴿امام محمد رحمه الله په جامع الصغير کښې فرمائيلی دی.که بغير اودسه ئې اذان اوکړلو.او اقامت ئې اوکړلو.نو اذان اواقامت دې نه راګرځوی.اوکه جنب اذان اوکړلو.يا ئې اقامت اوکړلو.نو زما په نيز اعاده مستحب ده.

**مراد قول محمد رحمه الله** ﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه د امام محمد رحمه الله قول [ان لم يعد أجزأه] ددې مراد دا دې.چه مونځ کافي دې.څکه چه مونځ خو بغير د اذان او اقامت نه هم جائز دې.نوبغير د اعادې نه به په درجه اولی سره جائز وی.

**مواقع إستحباب الإعادة** ﴿په شرح طحاوی کښې ذکر دی.چه د څلورو کسانو د اذان اعاده مستحب ده.

① د جنب ② د ښځې ③ د نشې په حالت کښې ④ د ليونی.

**عدم إعادة الأذان والإقامة علي الجنب** ﴿خوکه جنب د اذان اواقامت اعاده اونکړله.نو بيا هم کافی دې.بهر حال د بې اودسه اذان او اقامت نه راګرځول ددې وجې دی.چه بې اودسی سپک نجاست دې.

او باقی پاتې شو دويم يعنی د جنب اذان او اقامت يعنی د جنب اذان او اقامت نو په دې کښې دوه روايتونه دی.يو دا چه واپس دې راوګرځوی.اودويم دا چه نه دې راګرځوی.فقه سره زيات مشابه دا ده.چه د جنب د اذان اعاده دې اوکړې شی.او د اقامت دې نشی راګرځولې. څکه په اذان کښې في الجمله تکرار جائز دې.لکه په جمعه کښې چه اذان دوه خله کولې شی.خو په اقامت کښې تکرار مشروع نه دې.

**دوخت نه وړاندې د اذان کولو په حکم کښې د فقهاو اقوال**

| |
|---|
| وَلَا يُؤَذَّنُ لِصَلَاةٍ قَبْلَ دُخُولِ وَقْتِهَا اواذان به نشی کولې د يو مونځ دپاره دهغې د وخت داخليدو نه وړاندې إِلَّا فِي الْفَجْرِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ خو جائز دې د صبا د پاره په نيز د امام ابويوسف رحمه الله |

**حل اللغة** ﴿① دخول: داخليدل ② اعلام : خبرول ③ تجهيل: جهالت کښې اچول، جاهل جوړول ④

حجة: دلیل ⑤ یستبین استبانة: ښکاره کیدل ⑥ عرضا: پلنوالي ]

**تشریح** > **عدم جوازالأذان قبل الوقت** > مسئله دا ده.چه د وخت د داخلیدو نه وړاندې اذان کول معتبر نه دي.نوکه چا د وخت نه وړاندې اذان کړې وی.نو په وخت کښې به ئې اعاده کوی.

**دلائله** > ① دلیل دا دي.چه د اذان مقصود خلقو ته د وخت د داخلیدوخبر ورکول دی.او د وخت نه وړاندې اذن کول خلق په غلطئ کښې اچول دی. نوځکه د وخت نه وړاندې اذان کول په شریعت کښې معتبر نه دي.

② بلال رضي الله عنه ته نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی وو.چه ته اذان مه کوه.ترڅو چه صبا ښکاره شی.راوی فرمائی.چه نبی صلی الله علیه وسلم خپل دواړه لاسونه په پلنوالی باندې خواره کړل.او اشاره ئې اوکړله. اوددې نه صبا صادق طرف ته اشاره وه.

③ ابن عبدالبر رحمه الله دابراهیم رحمه الله نه روایت کړې دې.[قال کانوا إذا أذن المؤذن بلیل قالوا له اتق الله واعد اذانك]ابراهیم تابعی رحمه الله فرمائی.چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم دا شان وو.چه کله به یو مؤذن په شپه کښې اذان اوکړلو.نوهغه ته به ئې وئیل:دالله نه اوویرېږه.اوخپل اذان راوګرځوه.

**الإعتراض** >خوکه اعتراض اوشی.چه په حدیث کښې راغلی دی.چه [لایغرنکم أذان بلال] د بلال اذان دې تاسو دهوکه نکړی.ددې نه معلومیږی .چه بلال رضي الله عنه به د وخت نه وړاندې اذان کولو.

**الجواب**> ددې جواب دا دې.چه دا هم زمونږ دپاره حجت دې.ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم د بلال رضي الله عنه اذان ته څه اعتبار نه دے ورکړې.بلکه په دې باندې د دهوکه کیدو او دے ته د څه اهمیت ورکولو نه ئې منع کړې ده.

**جوازأذان الفجر قبل الوقت عندأبي یوسف** > امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. چه د صبا دپاره د شپې په آخری نیمه حصه کښې اذان کول جائز دې.ددې حضراتو نه یو روایت دا هم دې.چه ټوله شپه د صبا د اذان دپاره وخت دې. اودا قول د امام شافعی رحمه الله هم دې.

**دلائله**> ① په اهل مکه او اهل مدینه کښې دا خبره په توارث سره راروانه ده.چه دصبا دپاره اذان د شپې په آخری نیمه حصه کښې کوی.

② نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.[إن بلالاً یؤذن بلیل فکلوا واشربوا حتی تسمعوا أذان ابن مکتوم] یعنی بلال رضي الله عنه د شپے اذان کوی.نو تاسو خوراك څکاك کوئ. ترڅو چه د ابن ام مکتوم رضي الله عنه اذان واورئ.ددې حدیث نه معلومیږی.چه بلال رضي الله عنه به د صبا نه وړاندې په شپه کښې اذان کولو.

**الجواب عنه** > خوکه غور اوکړې شی.نودا حدیث زمونږ دپاره حجت دې.د امام ابویوسف دپاره حجت نه دې.ځکه چه د بلال رضي الله عنه دا اذان د تهجدو او پیشمنی دپاره وو.د صبا د مانځه دپاره نه وو. بلکه د صبا د مانځه دپاره به ابن ام مکتوم اذان کولو.اوهغه به د صبا راختو نه پس وو.ګنی د [حتی تسمعوا أذان ابن مکتوم] به څه مطلب وی؟

# باب شروط الصلاة التي تتقدمها

ترجمه: (دا) باب د مونځ دهغه شرطونو (په بیان کښې) دې.چه په مونځ باندې وړاندې وی.

تشریح﴿ الألفاظ الثلاثة في هذا المقام﴾ ددې موقع دپاره درې الفاظ ونیلی شی. ① شروط ② شرائط ③ اشراط په عامو کتابونو کښې اولنۍ لفظ ذکر دې. شروط جمع د شرط (بسکون الراء) ده.لغوی معنی ئې نښه ده.او اصطلاحی معنی ئې هغه څیزدې.چه په هغې باندې د بل څیز وجود موقوف وی.اود دغه څیز(مشروط) په ماهیت کښې داخل نه وی.

أقسام الشروط﴾ دمونځ شرطونه په درې قسمه دی. ①اول شرط انعقاد لکه نیت ، تحریمه، وخت، د جمعې خطبه ② دویم شرط دوام لکه طهارت، ستر عورت ، استقبال قبله ③ دریم شرط بقاء لکه قرات.(کفایه)

الربط بما قبله﴾ په تیرو صفحو کښې د مونځ د اسبابو یعنی وختونو ذکر اوشو .بیا د وختونو دعلاماتو یعنی د اذان ذکر اوشو.اوس په دې باب کښې د مونځ شرطونه ذکر کوی.کوم چه په مانځه مقدم وی.

**د مونځ ګذار دپاره د بې اودسو او پلیتو نه د طهارت وجوب**

| |
|---|
| یَجِبُ عَلَی الْمُصَلِّي په مونځګذار باندې واجب دی. أَنْ يُقَدِّمَ الطَّهَارَةَ چه پاکوالې مقدم کړی مِنْ الْأَحْدَاثِ وَالْأَنْجَاسِ په احداثو او انجاسو باندې عَلَی مَا قَدَّمْنَاهُ دهغې مطابق څنګه چه مونږ بیان کړل |

حل اللغة ﴾①یجب، وجب وجوبا (ض) واجب کیدل ②ان یقدم، قدم تقدیما: وړاندې کول

تشریح﴾ تقدیم الطهارة من الأحداث والأنجاس﴾ دلته کښې واجب په معنی دفرض دې. یعنی په مونځګذار باندې فرض دی.چه دهرقسم حدث نه پاکې وړاندې کړی. حدث که موجب د اودس وی.(لکه باد وتل وغیره او که موجب د غسل وی.(لکه خروج د منی وغیره شو یعنی که بې اودسه وی.نواول دے اودس اوکړی.بیا دے په مانځه اودریږی. اوکه په جنابت کښې وی.یا حائضه د حیض نه پاکه شی.یا نفاسه دنفاس نه پاکه شی.نواول دے غسل اوکړی.بیا دے مونځ شروع کړی. اودغه شان د انجاسو(یعنی حقیقی پلیتئ چه په نظر راځی. دهغې نه به هم طهارت وړاندې کړی.(یعنی نجاست حقیقی که په بدن یا جامه یا ځائې باندې وی.هغه به پاک کړی. لکه مونږ چه وړاندې بیان اوکړو (په باب الانجاس کښې

دلائل وجوب الطهارة﴾ دلیل دالله تعالی ارشاد دې.﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾(دجامو د طهارت دپاره) او ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا﴾ دې.(د بدن د طهارت دپاره)

**د ستر عورت وجوب**

| |
|---|
| وَيَسْتُرَ عَوْرَتَهُ او پټوی به خپل عورت |

تشریح﴾ شرط ستر العورة ﴾ اودویم شرط د خپل ستر عورت پټول دی.یعنی په دومره اندازه باندې د عورت پټول واجب دی.چه دهغې ښکاره کول قبیح او بې حیائی ګڼرلې شی.(زما په نیز دا تعریف قابل نظر ښکاری.ځکه چه په موجوده زمانه کښې د فیشن دور دې.ښځو چه کوم قمیصونه اغوستی وی.په هغې کښې ئې متې هم ښکاری.حالانکه دا هغوی قبیح نه ګڼری.ځکه چه فیشن ترے جوړ شوې دې.

.نود پورتنی تعریف په بنا پکار دا ده.چه په دې قمیصونو کښې مونځ جائز شی. حالانکه څوك هم ددې قائل نه دی. دا زمونږ په نیز او دامام شافعی امام مالك او عامو فقهاؤ ﷺ په نیز دې.

**دلائله** > ①دلیل دالله تعالی ارشاد دې. ﴿خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ﴾ یعنی واخلئ خپل زینت دهر جمات سره په آیت کښې د زینت نه مراد هغه څیز دې. چه عورت پټوی.او د جمات نه مرادمونځ دې.اوس به ترجمه داشی.چه کوم څیز ستاسو عورتونه پټوی.هرمانځه ته هغه څیز ځان سره واخلئ.نو ددې آیت نه د مانځه په دوران کښې د عورت د پټولو فرضیت ثابت شو.

**الإعتراض**>خودابن عباس ﷺ نه نقل دی.چه دا آیت په برېنډه دطواف کونکو په باره کښې نازل شوې دې.دمانځه په حق کښې نه دې.نو ددې آیت نه په مانځه کښې د عورت د پټولو فرضیت څنګه ثابتیږی.

**الجواب**> ددې جواب دا دې.چه اعتبار عموم د لفظ لره وی.خصوص د سبب لره نه وی.او [عندکل مسجد] عام دې.د مسجد حرام تخصیص پکښې نشته.

② دویم دلیل دا دې.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.[لایقبل الله صلاة حائض إلا بخمار] الله تعالی نه قبلوی مونځ د حائضې مګرپه پړونکې کښې.دحائضې نه مراد بالغه ده.یعنی الله تعالی د بالغې مونځ بغیر د پړونی نه نۀ قبلوی.

**الإعتراض علي فرضية سترالعورة** >دلته دا اشکال کیدې شی.د سترعورت د فرضیت دپاره چه صاحب دهدایه ﷺ کوم آیت او حدیث ذکر کړې دې.ددې نه د ستر عورت فرضیت نه ثابتیږی.ځکه چه د ﴿خُذُوا زِينَتَكُمْ﴾ آیت د طواف په حق کښې وجوب د ستر عورت ثابتوی.هم دا وجه ده.چه په برېنډه طواف کول په شریعت کښې معتبر دې.اګرچه ګناهګار به ضرور وی.نوکه د مونځ دپاره د فرضیت ثابتونکې شی.نولفظ د ،،خذوا،، د واجب او فرض دواړو په معنی کښې مستعمل شو.اودا ناجائز ده.(چه یو تکې دې په یووخت کښې د فرضیت او وجوب دواړو ثابتونکې شی. ځکه چه په دې صورت کښې د حقیقت او مجاز په مینځ کښې جمع والې راغلو.(اوپه یو وخت د یو لفظ نه حقیقی او مجازی معنی اخستل ناروا ده. اوباقی پاتې شو حدیث.نوهغه خبر واحد دې.او په خبر واحد سره فرضیت نه ثابتیږی.نوځکه دا حدیث د فرضیت ثابتونکې نه دې.

**الجواب**> جواب دا دې.اګرچه آیت قطعی الدلالة نه دې.خو قطعی الثبوت ضرور دې.او حدیث اګرچه د خبر واحد د وجې ظنی الثبوت دې.خود اداة حصر د وجې قطعی الدلالة دې. نو ددې دواړو د مجموعې نه فرضیت ثابت شو.

**دسړی عورت .او د نامه او پنډئ په عورت کښې اختلاف**

| |
|---|
| وَالْعَوْرَةُ مِنَ الرَّجُلِ او د سړی واجب الستر عورت مَا تَحْتَ السُّرَّةِ إِلَى الرُّكْبَةِ دده د نامه نه واخله تر پنډو پورې دې وَالرُّكْبَةُ عَوْرَةٌ او پنډئ په عورت کښې داخل ده |

**حل اللغة** >①سرة: نوم ② رکبة: زنګون

**تشریح**> **حدعورة الرجل**> په دې عبارت کښې د سړی د بدن واجب الستر اندازې حد بندی شوې ده. د سړی عورت د نامه نه لاندې ترپنډو پورې دې.یعنی نوم عورت نه دې.او پنډئ عورت ده.

**دليله** ﴿ دليل د نبی ﷺ قول چه [عورة الرجل ما بين سرته إلى ركبته] دې.او په يو روايت کښې دی. [ما دون سرة حتى تجاوز ركبة] يعنی د سړی عورت د نامه او د پنډئ په مينځ کښې حصه ده.او په بل روايت کښې دی. چه د نامه د لاندې نه تر دے چه د پنډئ نه تير شی.ددې دواړو حديثونه ند ثابته شوه.چه نوم په عورت کښې داخل نه دې.خو پنډئ په کښې داخل ده.

**الإعتراض**﴿خوكه اعتراض اوشی.چه په اولنی روايت کښې كلمه د ،،الى،، د غايه دپاره ده .اوغايت په مغيا کښې داخله نه وی.نو پنډئ د سړی په عورت کښې داخله نشوه.

**الجواب**﴿نوجواب دا دې.چه مونږ كلمه د ،،الى،، د ،،مع،، په معنی حمل کوو.لکه دالله تعالی په دې قول کښې ﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَهُمْ إِلَىٰ أَمْوَالِكُمْ﴾چه ،،الى،، د ،،مع،، په معنی راغلے ده.او په دې باندې قرينه يوخو هغه حديث دې.چه په هغې کښې [حتى تجاوز ركبة] دې.

② دويم دليل د نبی ﷺ قول چه [الركبة من العورة](٢)دې.حاصل دا دې.چه په درې واړه رواياتوکښې تطبيق هله کيدے شی. چه كلمه د ،الى، په ،،مع،، باندې حمل کړې شی.

### د اصلي ښځې د عورت حکم

| وَبَدَنُ الْمَرْأَةِ الْحُرَّةِ كُلُّهُ عَوْرَةٌ او د اصلي ښځې ټول بدن عورت دې إِلَّا وَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا سوا ددې د مخ او د دواړو تلو ورغوو نه |
|---|

**حل اللغة** ﴿① بدن جمع ابدان: جوثه ②حره: آزاده ښځه ③وجه جمع وجوه: مخ ④كف: تلې

**تشريح** ﴿ **حد عورة المرأة الحرة**﴿ دآزادے ښځه د مخ او دواړو ورغوو نه علاوه باقی ټول بدن عورت دې.

**دليله**﴿دليل د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دې.چه [أنه ﷺ قال المرأة عورة فإذا خرجت إستشرفها الشيطان] ښځه عورت دې.يعنی واجب الستر ده.کله چه دا (د کور نه ) راوځی.نو شيطان دا په کتلو کښې ښائسته کوی.

**علة إستثناء الوجه والكفين**﴿اود مخ او ورغوو استثناء ئې ددې وجې اوکړله .چه ددې دواړو اندامونو ښکاره کولوته ضرورت دې.ځکه چه په کار کولواو ورکړه راکړه کښې ددې نه بغير گزاره نه کيږی.ددې تائيد د ابوداود د يو مرسل حديث نه هم کيږی.[إن الجارية إذا حاضت لم يصلح أن يرى منها إلا وجهها ويداها إلى المفصل] يعنی جينئ چه کله بالغه شی.نومناسب نه دی.چه اوليدے شی.سوا ددې د مخ او دواړو لاسونو نه تر جوړونو پورې.

**دخول القدمين في العورة**﴿صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه د متن دا قول په دې خبره ښکاره دلالت کوی.چه د ښځې قدم هم عورت دې.ځکه چه د ټول بدن نه صرف د مخ او ورغوو استثناء شوې ده.

**عدم دخول القدمين في العورة** ﴿اوامام حسن د ابوحنيفه رحمه الله نه روايت کړې دې.چه دواړه قدمونه هم عورت نه دې.اودا اصح روايت دې.امام کرخی رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دليل عدم عورة القدمين**﴿د قول اصح دليل دا دې.چه د ښځې د قدم په کتلو باندې دومره شهوت نه پيدا

---

(٢) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه الدارقطنى فى سننه (١\٢٣١)۔

کیږي.لکه څنګه چه ددې د مخ په کتلو سره پیدا کیږي.نو چه د کثرت شهوت باوجود مخ عورت نه دې. نو پکار ده.چه قدمونه خو په طریق اولی سره عورت نشي.

**فائدة** > خیال ساتل پکار دی.چه مخ عورت نه دې.نو ددې نه دا نه لازمیږي. چه دے ته په کتلو کښې هم حرمت نشته.څکه کتل په هغه وخت کښې حلال دی.چه د شهوت ویره نه وی.هم دا وجه ده.چه د ښځې او امرد (بے گیرے هلك) مخ ته کتل حرام دی.حالانکه دا عورت نه دې.څکه چه د شهوت احتمال په کښې قوی دې.

## د وینځې د عورت بیان

وَمَا كَانَ عَوْرَةً مِنَ الرَّجُلِ اوځومره بدن چه دسړی عورت دي فَهُوَعَوْرَةٌ مِنَ الْأَمَةِ هغه هومره د وینزے عورت دي وَبَطْنُهَا وَظَهْرُهَا عَوْرَةٌاو ددې خیټه او ،ملا، هم عورت دي وَمَا سِوَى ذٰلِكَ مِنْ بَدَنِهَا لَيْسَ بِعَوْرَةٍ او ددې نه علاوه باقی ټول بدن عورت نه دے

**تشریح** > **حد عورة الأمة** > په دې عبارت کښې د وینزےعورت بیان شوې دې. فرمانی . چه د سړی په بدن کښې څومره حصه عورت دې.یعنی د نامه نه لاندې تر پنډو پورې نوهم دغه حصه د وینزے په بدن کښې عورت دې.ددې نه علاوه د وینزے خیټه او ملا هم عورت دې.څکه چه دا دواړه د شهوت ځایونه دی.نو ددې پټول هم فرض دی.خو ددې نه علاوه نور بدن ئې عورت نه دې.

**دلائله** > ①یو ځل حضرت عمر رضی الله عنه یوه وینزه اولیدله.چه پړونے ئې په سرکړې وو.نوورته ئې اوفرمائیل: اے وینزے دځان نه پړونےلرے کړه .ته ځان د اصیلو ښځو سره یوشان کوې.(۱)او په یو روایت کښې داسې الفاظ دی . [اکشفی عن رأسك ولاتشتبهی بالحرائر] خپل سر ښکاره کړه.د اصیلو ښځو مشابهت مه کوه.

②وینزه د خپل مالك د ضرورتونو پوره کولو دپاره د خدمت په جامو کښې د کور نه بهرته اوځی.نو د ټولو سرو په حق کښې دا په ذوات المحارم باندې قیاس کړې شوه.چه حرج لرے شی.یعنی وینزے د پردے په حکم کښې د ټولو سرو دپاره د ذوات المحارمو پشان ګڼرلې شی.یعنی لکه څنګه چه د مور د خپل خوی نه او د خور د خپل ورور نه پرده واجب ده. نو هم په دغه اندازه په وینزه باندې د هر سړی نه پرده واجب ده.

## د نجاست زائله کونکی څیز نه موندلو په وخت د مونځ حکم

وَمَنْ لَمْ يَجِدْاوڅوک چه داسې څیز اونه موندلو مَا يُزِيْلُ بِهِ النَّجَاسَةَچه په هغې سره ئې نجاست لرے کړې وې صَلّٰى مَعَهَانوهم په دغه پلیته جامه کښې دے مونځ اوکړی وَلَمْ يُعِدْاو اعاده دے نه کوی

**حكم الصلاة في ثوب نجس** > مسئله دا ده.که د یوکس سره د پلیتے جامے نه سوا بله جامه نه وی.او داسې څیز ورسره هم نه وی.چه پلیتے پرے لرے کړی. نوهم په دغه پلیته جامه کښې دے مونځ اوکړی.اوبیا دے د هغې اعاده هم نه کوی.

**حكم الصلاة عند طهارة الربع أو الأكثر** > په دې مسئله کښې دوه صورتونه دی. یو دا که څلورمه یا ددې نه

(۱) أخرجه عبدالرزاق في مصنفه (۱۲۸\۳)۔

زیاته حصه پاکه وي.نو لازمی به هم په دغه جامه کښې مونځ کوي.اوکه په برېنډه ئې اوکړلو.نوجائز نه دي.ځکه چه څلورمه حصه د ټول پشان ده.نود څلورمې حصې پاکوالے لکه د ټولې پاکوالے دي.اوچه پاکه جامه پرېږدي.اوپه برېنډه مونځ کوي. نودا جائز نه ده.نوځکه دے هم په دغه جامه کښې مونځ اوکړي.

## په برېنډه د مونځ کولو حکم

| وَمَنْ لَمْ يَجِدْ ثَوْبًا اوچا چه جامه اونه موندله صَلّٰى عُرْيَانًا نومونځ دے کوي په برېنډه قَاعِدًا په ناسته يُومِئُ بِالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ په داسې حالت کښې چه رکوع اوسجده په اشاره کوي |
|---|

**حل اللغة** ← ① لم يجد وجد وجدانا (ض): موندل ② عريانا: برېنډول ③ فعله فعل فعلاً (ف): کول ④ قاعدې: په ناسته

**تشريح** ← **كيفية صلاة العاري** ← مسئله دا ده.که د يو کس سره جامه نه وي.که پاکه وي او که پليته وي.نودا کس دے په ناسته باندې مونځ کوي.رکوع او سجده دے په اشاره کوي.

**دلائله** ← ① د نبي ﷺ صحابوؓ هم داسې کړي وو. د انس بن مالك ؓ نه روايت دي.[أنه قال أن أصحاب رسول الله ﷺ ركبوا في سفينة فانكسرت بهم السفينة فخرجوا من البحر عراة فصلوا قعوداً] (۱) دانس بن مالك ؓ نه روايت دي.چه د نبي ﷺ څه صحابهؓ په يوه کشتۍ کښې سواره وو.نو کشتۍ ماته شوه.او هغوی د درياب نه برېنډ راووتل.نوپه ناسته ئې مونځ اوکړلو.

② د ابن عباس ؓ او ابن عمر ؓ نه روايت دي.[أنهما قالا العاري يصلي قاعداً بالإيماء] ابن عباس ؓ او ابن عمر ؓ فرمائيلي دي.چه برېنډ سړي دے په ناسته مونځ کوي.

**الإعتراض** ← دلته کښې يو اعتراض کيدے شي.هغه دا چه نبي ﷺ عمران بن حصين ؓ ته فرمائيلي وو.[صل قائماً فإن لم تستطع فقاعداً] يعني مونځ په ولاړه کوه.اوکه د ولاړے نه عاجزه شوې.نوپه ناسته کوه.دا حديث ددې خبرے تقاضا کوي.چه د برېنډ دپاره په ناسته مونځ کول جائز نه دي.

**الجواب** ← ددې جواب دا دي.چه دا کس حکماً د قيام نه عاجز دي.ځکه چه دے د عورت (عورت غليظه) په پټولو بغيرد قيام او رکوع پرېخودلو نه قادر نه دي. (يعنی چه عورت غليظه پټوی.نوقيام او رکوع به پرېږدي.هله به ئې عورت غليظه پټ وي) اوچه د قيام نه عاجز شو.نو په ناسته ئې مونځ کول صحيح شو.

اوکه په ولاړه ئې مونځ اوکړلو.نودا هم جائز دي.ځکه چه په ناسته مونځ کولو کښې د عورت غليظه پټول دي.او په ولاړه مونځ کولو کښې د قيام رکوع او سجدے ادا کول دي.نوپه دواړو صورتونو کښې چه کوم غواړي.هغه دے اوکړي

| فَإِنْ صَلّٰى قَائِمًا وَالْأَوَّلُ أَفْضَلُ خو اولنے حالت افضل دي |
|---|

**تشريح** ← **فضل صلاة العاري قاعداً** ← خو اول صورت يعني په ناسته مونځ کول غوره دي.

---

(۱) قال الزيلعي رحمه الله غريب وروى عبدالرزاق في مصنفه (أي في ۱۲\۵۸۱) عن ابن عباس رضي الله عنهما قال الذي يصلي في السفينة والذي يصلي عرياناً يصلي جالساً۔

**دلائله** ① دلیل دا دی چه پرده کول د مونځ او خلقو د حق د وجے واجب ده. او طهارت صرف دمانځه دپاره واجب دی.
② بله دا چه د عورت پټولو فرضیت د رکوع او سجدے کولو په نسبت زیات مؤکد دی. دلیل دا دی.چه نفلی مونځ سره د قدرت نه په سورلئ بغیر د رکوع او سجدے نه په اشاره سره جائز دی.اوپه حالت د قدرت کښې په هیڅ صورت کښې په بربنډه مونځ نه دے جائز.اود بربنډ سړی دپاره په ناسته مونځ کولو کښې د قیام په نسبت پرده زیاته ده.نوځکه مونږ اوونیل.چه د بربنډ دپاره په ناسته مونځ کول غوره دی.
③ د عورت پټولو خلیفه نشته.اود ارکانو یعنی رکوع او سجدے خلیفه اشاره کول دی.او قاعده دا ده.چه ،،ترك الی خلف غوره دے په نسبت سره ترك لا الی خلف ته،، نو که بربنډ په ناسته مونځ اوکړلو.نود رکوع او سجدے پریخودل به خلیفه ته پاتې شی.چه اشاره ده.اوکه په ولاړه ئې مونځ اوکړلو.نودعورت پټولو دپاره بل څه خلیفه نشته.چه هغې ته پاتې شی . او اوس بیان اوشو.چه یو څیز پریخودے شی.او خلیفه ئې وی.دا غوره ده. په نسبت سره دے ته چه پریخودے شی.او خلیفه ئې نه وی.نوځکه د بربنډ دپاره په ناسته مونځ کول د ولاړے په نسبت غوره دی.

## په نیت اوتکبیرتحریمه کښې په بل عمل سره د فصل کولوحکم

| وَيَنْوِي لِلصَّلَاةِ الَّتِي يَدْخُلُ فِيهَا بِنِيَّةٍ اونیت دے کوی دهغه مونځ چه په کښې شروع کوی لَايَفْصِلُ بَيْنَهَا وَبَيْنَ التَّحْرِيمَةِ بِعَمَلٍ په داسے نیت سره چه د دغه نیت او تکبیر تحریمه په مینځ کښې په بل کار سره فصل اونکړی |
|---|

**حل اللغة** ① ینوی، نوی نیة(ض): نیت کول، اراده کول ② یدخل، دخل دخولاً(ن): داخلیدل ③ لایفصل فصل فصولاً (ض): جدا کول

**تشریح** **تعریف النیة** نیت دارادے نوم دی.یعنی د خاص ارادے نوم نیت دی.اوهغه په دی مقام کښې دالله تعالی دپاره مونځ کول دی.
**شرط النیة** اود نیت دپاره شرط دا دی.چه په زړه کښې پوهیږی.چه دا کوم مونځ کوم.او ددی دپاره نښه دا ده.چه کله دده نه تپوس اوشی.چه کوم مونځ کوې.نو بغیر سوچه جواب ورکولې شی.چه فلانے مونځ کوم.اوکه ده په جواب کښې توقف اوکړلو.نو معلومه شوه.چه ده ته دا علم نشته.چه دا کوم مونځ دی.
**حکم التلفظ بالنیة** اوپه ژبه باندې د نیت تلفظ کول نو د مانځه د جواز دپاره ددی څه حیثیت نشته.خوپه ژبه باندې نیت ووئیل ښه خبره ده.ددی دپاره چه د زړه اراده جمع او مضبوطه شی.

**حکم مطلق النیة في غیر الفرض والقولان فیه** ثم إن کانت الصلاة نفلاً إلخ ددې ځائې نه دنیت د کیفیت بیان کوی.خلاصه دا ده.چه په کوم مونځ کښې شروع کوی .هغه به یا فرض وی یا غیرفرض. که غیر فرض وی.نو په هغې کښې مطلق نیت کافی دی. ①که نفل وی اوکه سنت وی. صحیح قول هم دا دی. ځکه نیت په عادت او عبادت کښې د امتیاز دپاره وی.اودا مقصد
په مطلق نیت سره حاصلیږی.نو مطلق نیت کافی دی.
② د بعضو رائې ده.چه که سنت کوی.نو د رسول الله ﷺ د سنتو نیت کول ضروری دی. ځکه چه سنت مطلق نیت باندې یو زیاتی صفت دی.نو ددې زیاتی صفت نیت کول ضروری دی. مطلق نیت به ورله

کافی نه وی.

**حکم النیة في الفرض للمنفرد**> اوکه دغه مونځ فرض وی.نو ددې هم دوه صورتونه دی.یو دا چه دا منفرد ادا کوی.اوبل دا چه دامام په اقتداء کښې ئې ادا کوی.نوکه دے منفرد وی.نود مونځ متعین کول ضروری دی.مثلاً د ماسپخین په مانځه شروع کوی.نود ماسپخین متعین کول ضروری دی.صرف دومره وئیل کافی نه دی.چه ما د فرضو نیت اوکړلو.ځکه چه فرض مختلف دی.نو په دې کښې امتیاز پکار دې.

**شرط نیة المأموم**> په آخری عبارت کښې د دویم صورت بیان دې.یعنی که فرض مونځ د بل چا په اقتداء کښې کوی.نو د پورتنی نیت نه علاوه به د امام د تابعدارئ نیت هم کوی.ځکه چه په مقتدی باندې د امام د طرفه فساد راځی. یعنی که د امام مونځ فاسد شی.نو د مقتدی مونځ به هم فاسدیږی.نوځکه د متابعت نیت ضروری شو.ددې دپاره چه کوم فساد راځی.نو دهغې نقصان ده ته ددې وجې رسی.چه ده په ځان متابعت لازم کړې وی.

**عدم الفصل بین النیة والتکبیر**> مسئله دا ده.چه په کوم مونځ کښې شروع کوی.نو د هغې نیت به کوی.خو په دې شرط چه د نیت او تکبیرتحریمے په مینځ کښې په څه داسے عمل سره فصل نه وی.چه هغه د مونځ منافی وی.مثلاً د نیت نه پس په خوراك څکاك یا خبرو کښې مشغول شی.اوبیا تکبیر تحریمه اووائی. او مونځ شروع کړی.نو دا نیت معتبر نه دې.

**دلائل شرطیة النیة**> ① د نیت په شرطیت کښې د نبی ﷺ قول [الأعمال بالنیات] اصل دې.ددې وضاحت داسې کیدے شی.چه مونځ یو عمل دې.او د اعمالو تعلق د نیت سره وی.نو مونځ به هم د نیت سره متعلق وی.اوکوم مونځ چه بغیر دنیته اوشی.هغه په حقیقت کښې هډو مونځ نه دې.

**کون النیة مقدماً علی التکبیر**> که د تکبیر د وخت نه وړاندې ئې نیت اوکړلو.نو دا داسې ده.لکه چه د تکبیر په وخت کښې ئې نیت کړې وی.خلاصه دا ده.چه اصل خو دا دې.چه نیت د تکبیر سره متصل او یوځائې وی.خوکه د تکبیر نه وړاندې ئې نیت اوکړلو.او دنیت او تکبیرتحریمے په مینځ کښې داسې عمل رانشی.چه د مونځ سره منافی وی.اومونځ پرے ماتیږی.نوهم صحیح دې.

**صورة عدم المنافي**> مثلاً دامام محمد رحمه الله نه روایت دې.که د اودس په وخت کښې دا نیت اوکړی.چه د ماسپخین مونځ به د جماعت سره کوم.اود اودس نه پس په داسې عمل کښې مشغول نه شو.چه د مانځه سره منافی وی.اوجمات ته لاړلو.اوڅه وخت چه په مانځه شروع کوی.نو په هغه وخت کښې ورته نیت یاد نه وی.نوهم په دې نیت سره به دده مونځ جائز شی.دغه شان د شیخینو رحمهما الله نه هم نقل دی.

**صورة المنافي**> اوکه د نیت او تکبیرتحریمے په مینځ کښې عمل منافی یا داسې عمل چه مونځ پرے ماتیږی.واقع شی.نودا نیت نه کافی کیږی.مثلا د اودس په وخت کښې ئې د امام سره د ماسپخین د مونځ نیت اوکړلو.بیا په خوراك یا څکاك کښې مشغول شو.نو اوس به دے دوباره نیت کوی.اولنے نیت کافی نه دې.

**عدم إعتبار النیة بعدالتکبیر**> اوکه نیت ئې د تکبیرتحریمه نه پس اوکړلو.نوپه شریعت کښې دا معتبر نه دې.

**دلیله**> ځکه چه کومه حصه د تکبیر نه پس او د نیت نه وړاندې ده.هغه د نیت د نشتوالی د وجے عبادت نه شو.اوچونکه د مانځه نورے حصې د مانځه په اولنو حصو باندې موقوف وی. نوهغه هم عبادت نه شو. نو ځکه مونږ وایو.که د تکبیر تحریمے نه پس ئې نیت اوکړلو. نو هغه نه صحیح کیږی.

## په مانځه کښې قبلې ته د مخ کولو حکم

| وَيَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ او قبلې طرف ته به مخ کړي |
|---|

**تشریح> شرطية إستقبال القبلة ودليله>** قبلې ته مخ کول هم د مونځ په شرطونو کښې يوشرط دي.دليل دالله تعالى ارشاد دي.﴿فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ﴾ وجه د استدلال دا ده.چه الله تعالى فرمانيلى دى.﴿فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا﴾مونږ به تا،ستا خوښې قبلې طرف ته واړوو.او بيا ئې مسجد حرام ته د مخ اړولو حکم اوکړلو.

**صورة إستقبال عين الكعبة>** بيا دمانځه دوه صورتونه دي.يا خو به دا په مکه مکرمه کښې ادا کوي.اويا به د مکې نه بهر په بل ځائې کښې ادا کوي.نو په اول صورت کښې عين کعبې ته مخ کول ضروري دی.

**دليله>** ځکه چه نبى ﷺ به په مسجد حرام کښې مونځ کولو.نو عين کعبې ته به ئې مخ کولو.اوهم دا معمول د صحابه کرامو ﷺ او تابعينو ﷺ هم پاتې شوې دې.لکه چه په دې باندې اجماع ده.

**صورة إستقبال جهة القبلة>** او په دويم صورت کښې قبلې طرف ته مخ کول فرض دی.

**دليله>** دليل ئې دا دې.چه نبى ﷺ او مسلمانان په مدينه منوره کښې وو.نو الله تعالى هغوى ته مسجد حرام طرف ته د مخ کولو حکم کړې وو.کعبې طرف ته دمخ کولوحکم ئې نه وو کړې.نومعلومه شوه.چه کوم سړې د مکې نه بهر وی .دهغه دپاره عين کعبې ته مخ کول فرض نه دی.ځکه چه الله تعالى بندګان د هغوى د طاقت مطابق مکلف کوى.دالله تعالى ارشاد دے﴿لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾

## د ويريدونکي سړي د قبلې حکم

| إِلَّا أَنْ يَكُونَ خَائِفًا مګردا چه ويريدونکي وى فَيُصَلِّي إِلَى أَيِّ جِهَةٍ قَدَرَ نو چه کوم طرف ته قادر وى.مونځ دے کوى |
|---|

**تشریح> حكم إستقبال القبلة للخائف>** مسئله دا ده.که يوکس د ويرے د وجې قبلې ته په مخ کولو قادر نه وى.نو کوم طرف ته چه قادر وى.هغه طرف ته دے مخ کوى.ويره که مالي وى يا جانى وى.که د دشمن وى اوکه د ځناور وى.اوکه د ډاکو وى.مثلاً چه يو کس سره دا ويره وى.که زه اوخوزيدم.او قبلې ته مې مخ کړلو.نو دشمن ته به پته اولګى. نو دهغه دپاره په ناسته يا په ملاسته چه څنګه ممکنه وى.هغې طرف ته مخ کول جائزدى .مونځ دے اوکړى.

**دليله>**دليل دا دې.چه د اشتباه دحالت په شان دده عذر هم متحقق دې.نو دده دپاره به حقيقةً استقبال د قبلې شرط نه وى.

## د مشتبه قبله . سړي د قبلې حکم

| فَإِنِ اشْتَبَهَتْ عَلَيْهِ الْقِبْلَةُ نو که په مونځګذار قبله مشتبه شوه وَلَيْسَ بِحَضْرَتِهِ اوحال دا وو.چه څوک موجود هم نه وو مَنْ يَسْأَلُهُ عَنْهَا چه دهغه نه د قبلې تپوس اوکړى اجْتَهَدَ نواجتهاد دے کوى وَصَلَّى اومونځ دې کوى |
|---|

**حل اللغة >**①اشتبهت، اشتبهاشتباهًا: مشتبه کيدل، په شك کښې پريوتل ② اجتهدا اجتهادًا: کوشش کول

**تشریح> متي يجب الإستقبال بالتحرى؟ >**صورت د مسئلې دا دې.که په يوکس باندې د قبلې طرف مشتبه شى.او ورسره داسې څوك هم نه وى.چه هغه د قبلې دجهت نه خبر وى.اودهغه نه تپوس اوکړى. نوددې

سرې دپاره تحری (اجتهاد) کول پکار(واجب دی.نوچه کوم طرف ته ئې غالب گمان راغلو.هغه طرف ته دے مونځ اوکړی.

**صورة عدم جوازالتحری**> مصنف فرمائی.[ولیس بحضرته من یسأله عنها] ددې نه معلومه شوه.که يو کس د قبلې خودونکے موجود وی.نودهغه نه دے تپوس اوکړی. په دې صورت کښې به تحری جائز نه وی.او فرمائی.[اجتهد] ددې نه معلومه شوه.چه بغیر د تحری نه مونځ نه کیږی.د تحری د جواز دپاره

**دلیله**> دلیل دا دې.چه يوځل په صحابه کرامو باندې قبله مشتبه شوه. نو هغوی تحری اوکړله. اومونځ ئې اوکړلو.بیائې دا واقعه رسول الله ﷺ ته ذکر کړله.نو نبی ﷺ پرے څه انکار اونکړلو.

**التحری بعدالإستخبار**> (اول خو دا ضروری ده.چه د چانه تپوس اوکړی.اودا تپوس کول ځکه ضروری دی. چه تپوس کول د تحری نه قوی دی. نو چه ترکومے پورې تپوس کول ممکن وی.ترهغه وخته پورې تحری کول ناجائز ده .او که خبرورکونکې څوك موجود نه وی.او تپوس کول د تحری نه اوچت دی. نو تر څو پورې چه تپوس کول ممکن وی.نوترهغه وخته پورې تحری کول جائزنه ده.

## د مونځ کولو نه پس په استقبال د قبله کښې د غلطۍ علم

| فَإِنْ عَلِمَ أَنَّهُ أَخْطَأَ بَعْدَمَا صَلَّى اوکه بیا ورته دمانځه نه پس معلومه شوه.چه دے غلط شوې دې فَلَا إِعَادَةَ عَلَيْهِ نو اعاده نشته په هغه باندې |
|---|

**حل اللغة**> ① علم علما(س): پیژندل ② اخطا اخطاءً: غلطی کول ③ اعادةً ، اعاد اعادةً: واپس کول

**تشریح**> **ظهورالخطأفي جهة القبلة**> صورت د مسئلې دا دې.که يوکس باندې د قبلې اشتباه راغلے وه.او هغه د قبلې د طرف معلومولو دپاره تحری اوکړه.اومونځ ئې اوکړلو.د مانځه نه پس ورته معلومه شوه.چه د قبلې طرف ترے خطا شوې وو. یعنی د قبلې نه علاوه بل طرف ته ئې مونځ کړې وو.

**عدم الإعادة**> نو په دې صورت کښې په ده باندې د مونځ اعاده نشته.ځکه چه داسې وخت کښې شرعی قبله جهت د تحری وی.او هغه د شرعی حکم مطابق مونځ اوکړلو.

## د مانځه په دوران کښې د قبلې په طرف پوهېدل

| وَإِنْ عَلِمَ ذَٰلِكَ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ اوکه متحری ته په قبله کښې د غلطۍ پته اولګیدله اوهغه په مانځه کښې وو اسْتَدَارَ إِلَى الْقِبْلَةِ نو قبلې طرف ته دے اوګرځی وَبَنَىٰ عَلَيْهَا اوبناء دې کوی په هغې باندې |
|---|

**تشریح**> **الإنصراف إلي جهة الكعبة لتغيرالتحری**> که يوکس په تحری سره مونځ شروع کړی وی.اوهغه ته د مانځه په دوران کښې معلومه شوه.چه زه د قبلې په طرف کښې خطا شوې يم.نودا کس دے د مانځه په دوران کښې قبلې طرف ته اوګرځی

**دلیله**> دلیل دا دې.چه اهل قبا ته کله په مانځه کښې دا معلومه شوه.چه قبله بدله شوه. يعنی د بیت المقدس په ځائې خانه کعبے ته د مخ ګرځولو حکم اوشو. نو په هم په مانځه کښې د رکوع په حالت کښې قبلې طرف ته اوګرځیدل.اوبیا چه کله نبی ﷺ ته ددې علم اوشو.نو هغوی د دوی تعریف اوکړلو.انکار ئې اونکړلو.(۱)

(۱) من حدیث عبدالله بن عمر اخرجه البخاری فی الصلاة باب ۳۲ ومسلم فی المساجد رقم ۳ والنسائی فی الصلاة باب ۲٤

**حکم تغیر جهة التحری في الصلاة** >او دا حکم په هغه صورت کښې هم دے چه کله د مانځه په دوران کښې دده رائې بدله شي.یعنی کلکه شي.نوهغه طرف ته دے اوګرځی.تردے که په ګرځیدو کښې ئې په قصد څه روستووالے اوکړلو. نو مونځ ئې ماتیږی.ځکه چه د مانځه په باقی حصه کښې په ده باندې د اجتهاد مطابق عمل کول واجب وو.بغیردماتولو د هغه حصې نه چه وراندې ئې کړې وه.

**د مونځ د صفت بیان**

## بَابُ صِفَةِ الصَّلَاةِ

**ترجمه:** (دا باب) د مونځ د صفت (په بیان کښې ) دې.

**تشریح> الربط بما قبلها>** تراوسه پورې د مونځ د وسائلو او مقدماتو بیان وو.اوس ددې ځائې نه د مقصود یعنی مونځ ذکر کوی.

**الفرق بین الوصف والصفة>** داهل لغت په نیز وصف او صفت دواړه مترادف دی.او دواړه مصدر دی.لکه ،،وعد،، او ،،دعوة،، او په متکلمینو کښې زمونږ د عالمانو ﷺ په نیز وصف د واصف کلام دې.او صفت هغه معنی ده.کومه چه موصوف سره قائمه وی.نو،،زید عالم،، د زید وصف دې.صفت نې نه دې.او دده علم کوم چه ده سره قائم دې.صفت دې.وصف نه دې.

**المراد من الصفة>** باقی پاتې شوه دا خبره چه دلته د ،،صفت،، نه څه مراد دی.نو په دې باره کښې اختلاف دې. ① او بعضو وئیلی دی.چه دلته مضاف محذوف دې.تقدیری عبارت دا دې.[باب صفة أجزاء الصلاة] په دې صورت کښې د صفت نه مراد کیفیت دې.یعنی دا باب د مونځ د اجزاؤ د کیفیت،وجوب ،اوفرضیت وغیره په بیان کښې دې.

②اود بعضو خیال دا دې.چه د صفت نه مراد هغه امور دی.کوم چه په دې باب کښې مذکور دی.یعنی واجبات،فرائض،سنن او مندوبات نو په دې صورت کښې د صفت اضافت ،،صلاة،، ته د ،،اضافت جزء الی الکل،، د قبیلې څنې دې. ځکه چه په صفات مذکوروّ کښې هر یوصفت د مانځه جزء دې.

③ صاحب د ،،عنایه،، فرمائی.چه ظاهره دا ده.چه د صفت نه مراد د مانځه هغه هیئت دې.کوم چه ددې د ارکانو او عوارضو نه حاصل وی

**د مونځ فرائض**

**فَرَائِضُ الصَّلَاةِ سِتَّةٌ** دمونځ فرائض شپږ دی

**حل اللغة >**①فرائض واحد فریضة: معنی فرض

**تشریح> إیراد لفظ الفرائض دون الأرکان>** باقی پاتې شوه دا خبره چه مصنف رحمه الله ،،فرائض الصلاة،، ولې اووئیل .او ،،ارکان الصلاة،، ئې اونه وئیل.نو ددې جواب دا دې.چه لفظ د ،،فرائض، عام دې.کوم چه ارکان او غیر ارکان (شرائط) ټولو ته شامل دې.او دلته تحریمه چه کومه مذکور ده.هغه د مانځه رکن نه دې . بلکه د جواز صلاة شرط دې.او آخری قعده اګرچه فرض ده.خو رکن اصلی نه دې.

**دلیله>** او ددې دلیل چه رکن اصلی نه دې.دا دې.چه آخری قعده په اولنی رکعت کښې نه ده مشروع شوې .بهر حال که مصنف رحمه الله د فرائض د لفظ په ځائې ،،ارکان،، ذکر کړې وې.نودا به تحریمه

وغیره ته شامل نه وو.نوځکه ئې داسې لفظ ذکر کړلو.کوم چه ټولو ته عام دې.

**تعريف الفرض والركن** فرض هغه دې.چه د هغې کول په دليل قطعی سره لازم وی.قطع نظر ددې نه چه هغه رکن وی یا شرط،او رکن هغه دې.کوم چه د مانځه په ماهيت کښې داخلی جزء وی.(بحرالرائق) اوکله هغې ته هم فرض وئیلی شی.کوم چه نه رکن وی اونه شرط.

**الإعتراض علي إيراد ،،ستة،،** دلته د قياس تقاضا دا وه.چه امام قدوری رحمه الله [فرائض الصلاة ست] فرمائیلی وې.ځکه چه د دریو نه واخله تر نهه پورې د اعدادو د استعمال قاعده دا ده.که معدود مذکر وی.نوعدد به مونث وی.اوکه معدود مونث وی.نوعدد به مذکر وی.او په دې ځائې کښې (معدود) ،،فريضة،، جمع ده.او فريضة،، مونث دې.نوځکه عدد مذکر راوړل پکار وو.

**الجواب عنه** جواب: دلته فرائض د فروض په تاويل کښې اخستلے شوی دی.او فروض جمع ده د فرض،او فرض مذکر دې.نو ،،ستة،، مونث راوړل د قاعدې مطابق شو.صاحب د عنايه رحمه الله ليکلی دی.چه په بعضې نسخو کښې [فرائض الصلاة ست] دې.نو ددې نسخے په اعتبار سره هډو څه اشکال نه واقع کيږی.

| (التَّحْرِيمَةُ)تحريمه (فرض ده) |
|---|

**تشريح** **تعريف التحريمة** د مانځه په فرائضو کښې اول تحريمه ده.او په لغت کښې تحريمه وائی.[جعل الشئ محرما] يعنی يو څيز حرام ګرځول.دلته تحريمه د تکبير اولی نوم دې.ځکه چه تکبير اولی هغه ټول څيزونه حراموی.کوم چه ددې نه وړاندې مباح وی.ددې په خلاف د نورو تکبيرونو دا حيثيت نه دې.

**حيثية إطلاق التحريمة علي التكبير** علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائيلی دی.چه تکبير ته تحريمه وئيل مجازی دی.ځکه چه تحريم بذات خود تکبير نه دې.بلکه په دې سره تحريم ثابتيږی.او دے ته په دې حديث کښې اشاره ده.[مفتاح الصلاة الطهور وتحريمها التكبير وتحليلها التسليم] (ابوداود ،ترمذی) د مانځه کنجی خو طهور دې.او تحريم ئې تکبير دې.او ددې تحليل تسليم دې.

**دلائل فرضية التحريمة** د تکبير تحريمے په فرضيت باندې څلور دلائل دی. ① اول په تکبير تحريمه باندې د نبی ﷺ هميشوالې کول.او بغير د ترك نه په يو څيز باندې د نبی ﷺ هميشوالې کول د وجوب علامت دې.

② دويمه اجماع ده.ځکه چه د نبی ﷺ د زمانې نه واخله ترنن ورځې پورې د تکبير اولی په وجوب کښې د چا اختلاف منقول نه دې.

③ دريم دليل دالله تعالی قول دې.﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾ په آيت کښې ،،الله اکبر،، وئيل مراد دی.ځکه چه روايت دې.[أنه لما نزل قال رسول الله ﷺ الله اكبر فكبرت خديجة وفرحت وأيقنت أنه الوحی] يعنی کله چه دا آيت نازل شو.نو رسول الله ﷺ ،،الله اکبر،، اووئيل.حضرت خديجے رضی الله عنها هم تکبير اووئيل.اوخوشحاله شوه.او يقين ئې اوکړلو.چه دا وحی ده.

**طريقة الإستدلال** ①وجه د استدلال دا ده.چه د ټولو مفسرينو په دې اجماع ده.چه ددې نه مراد تکبير تحريمه ده. ②دغه شان ،،كبر،، د امر صيغه ده.او د امر موجب وجوب وی.او دا خبره په اجماع سره

ثابته ده.چه د مانخه نه بهرهيڅ تکبير واجب نه دي.نو متعينه شوه.چه ددې نه د مانخه تکبير مراد دي.

**(وَالْقِيَامُ)او قيام (فرض دي)**

**تشريح> فرضية القيام >** دويم فرض قيام دي.يعنى فرض مونځ او وتر او کوم چه په فرضو پورې ملحق وی. مثلاً دنذر مونځ ،په ولاړه کول فرض دی.خو په دې شرط چه په قيام او سجده کولو باندې قادر وی.او که قيام کولې شي.خو سجده نشي کولې.نو دده دپاره په ناسته په اشاره مونځ کول بهتر دي.

**دليل فرضيته>** د قيام د فرضيت دليل د الله تعالى ارشاد دې.﴿وَقُومُوا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ﴾ يعنى اودرېږئ الله تعالى ته په حالت د خشوع يا خاموشئ کښې.

**معني القنوت>** ① د قنوت معنى اطاعت کول دی.② د بعضو په نيز خشوع

③ د بعضو په نيز سکوت او خاموشی.

④ د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې.چه د قنوت معنى په مانځه کښې طول قيام دې.

**وجه الإستدلال>** په آيت به استدلال داسې وی.چه الله تعالى د قيام حکم کړې دې.او امرد وجوب دپاره وی.اوقيام د مانځه نه بهر په اتفاق سره واجب نه دې.نو ثابته شوه.چه قيام په مانځه کښې واجب (فرض) دي.

**(وَالْقِرَاءَةُ)او قرات (فرض دي)**

**تشريح> فرضية القراءة ودليلها>** دريم فرض قرات دې.دليل د الله تعالى قول دې.﴿ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ﴾ وجه د استدلال دا ده.چه د قرات حکم د امر په صيغه دې.او امر دوجوب دپاره راځی.اود مانځه نه بهر په اجماع سره قرات فرض نه دې.نو په مانځه کښې د قرات فرضيت ثابت شو.باقی پاتې شوه دا خبره چه څومره مقدار ونيل فرض دی.نو ددې په باره کښې به په ،،فصل القراة،، کښې په تفصيل سره کلام راشي.

**(وَالرُّكُوعُ وَالسُّجُودُ) او رکوع او سجود(فرض ده)**

**تشريح> فرضية الركوع والسجود>** څلورم فرض رکوع او پنځم سجده ده.دليل د الله تعالى قول دې.﴿ وَارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا ﴾ يعنى رکوع او سجده کوئ.

**وجه الإستدلال>** وجه داستدلال هم هغه ده.کومه چه وړاندې تيره شوه.چه د رکوع او سجود حکم د امر په صيغه دې.او امر موجب د وجوب وی.د بعضې حضراتو وينا ده.چه د اسلام په اولنئ زمانه کښې به څه خلقو سجده کوله.خو رکوع به ئې نه کوله.او چا به رکوع کوله.خو سجده به ئې نه کوله.نو دوی ته حکم اوشو.چه د رکوع او سجدې سره مونځ کوئ.

**فرضية السجدة الثانية >** ①صاحب د ،،شرح نقايه،، ليکلی دی.ظاهره دا ده.چه دويمه سجده واجب يعنى فرض عملی دې.ځکه چه ددې ثبوت په دليل قطعی سره نه دې.

②اود بعضې فقهاؤ قول دې.چه د دويمې سجدې فرضيت په اجماع سره ثابت دې.ترڅو که په دې

دواړو کښې ئې يوه پريخودله.نو مونځ به فاسد شی.بيا فرمائی.چه په هرركعت کښې تکرار د سجود امر تعبدی دې.يعنی خلاف قياس دې.

③اوبعضو وئيلی دی.چه اوله سجده د (مالك) د حکم د تعميل دپاره ده.او دويمه سجده د ابليس د رسوا کولو او ذليل کولو دپاره ده.ځکه چه هغه د الله تعالی د حکم باوجود د تکبر په وجه سجده نه وه کړې.

④ او د بعضو قول دې.چه اوله سجده للامر او دويمه سجده للشکر ده.

⑤ بعضو وئيلی دی.چه اوله سجده د ايمان د وجه ده.اودويمه سجده د بقائی ايمان دپاره ده.

⑥او بعضو وئيلی دی.چه په اوله سجده د انسانی پيدائش ابتداء طرف ته اشاره ده.او په دويمه کښې د ده حالت بقاء طرف ته اشاره ده.لکه چه د الله تعالی قول ﴿مِنْهَا خَلَقْنٰكُمْ وَفِيْهَا نُعِيْدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً اُخْرٰى﴾ کښې دے طرف ته اشاره شوې ده.

(وَالْقَعْدَةُ الْاَخِيْرَةُ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ). اوآخری قعده د تشهد په مقدار (فرض ده)

**تشريح** > **فرضية القعدة الأخيرة بقدر التشهد** > شپږم فرض د تشهد په اندازه آخری قعده ده.يعنی دومره اندازه باندې کيناستل فرض دی.چه په هغې کښې د [التحيات نه عبده ورسوله] پورې وئيل ممکن وی

**دلائلها** >دليل دا دې.چه امام احمد امام ابوداود او امام طحاوی رحمهم الله دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت کوی.چه [أن النبی ﷺ أخذ بيده وعلمه التشهد] بيا د حديث په آخر کښې دی.[إذا قلت هذا أو قضيت هذا فقد قضيت صلاتك إن شئت أن تقوم فقم وإن تقعد فاقعد] صاحب د هدايه رحمه الله هم ددې په معنی دا الفاظ نقل کوی.[إذا قلت هذا أو فعلت هذا فقد تمت صلاتك](۱) يعنی نبی ﷺ ابن مسعود رضی الله عنه د لاس نه اونيولو.او د تشهد تعليم ئې ورته ورکړلو.او په آخر کښې ئې ورته اوفرمائيل.کله چه تا دا اووئيل.يا دے دا اوکړل.نو ستا مونځ پوره شو.که اودريدل غواړې.نو اودريږه.او که کيناستل غواړې.نو کينه.

**وجه الإستدلال**> په دې حديث به استدلال داسے وی.چه د الله تعالی خوږ پيغمبر ﷺ د مونځ پوره کيدل د [قعود مع قراءت التشهد او قعود بدون قراءت التشهد] پورې معلق کړې دې.ځکه چه د [إذا قلت هذا] معنی دا ده.که تا په قعده کښې تشهد اووئيل.ځکه چه د تشهد لوستل د قعود نه بغير معتبر نه دې.او د [أو قضيت هذا] يا [أو فعلت هذا] معنی ده.چه يا تا نفس قعود اوکړلو.يعنی کيناستل موجود شو.خو تشهد موجود نشو.نو ستا مونځ پوره شو.حاصل دا دې.چه دمونځ پوره کيدل په قعود پورې موقوف دې.که څه ئې وئيلی وی اوکه نه،نو معلومه شوه.چه د تشهد په اندازه باندې کيناستل فرض دی.

②دغه شان عبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنهما د نبی ﷺ نه روايت کوی. [أنه قال إذا رفع رأسه من السجدة الأخيرة لقعد قدر التشهد ثم أحدث فقد تمت صلاته] نبی ﷺ فرمائيلی دی.چه کله دے د آخری قعدے نه خپل سر اوچت کړی.او د تشهد په اندازه باندې کينی.او بيا دے بے اودسه شی.نو دده مونځ پوره شو.

---

(۱) أخرجه أبوداود في الصلاة باب ۱۷۸)_

**وجه الإستدلال** ﴿ په دې حديث کښې هم نبي ﷺ د مونځ پوره کيدل د تشهد په اندازه باندې په کيناستلو پورې معلق کړې دې.نو ددې نه هم ثابته شوه.چه د تشهد په اندازه کيناستل فرض دی.(حاشيه شرح نقايه از شيخ الادب)

**د مونځ واجبات**

| وَمَا زَادَ عَلٰى ذٰلِكَ اوهغه افعال چه زياتي دی په دې فَهُوَسُنَّةٌ نوهغه سنت دی |
|---|

**تشريح** ﴿ **الإعتراض علي القدوري رحمه الله** ﴿ شيخ قدوري رحمه الله فرمائي.چه د ذکرشوو څيزونو يعنی د فرائضو نه سوا ټول سنت دی.صاحب د هداية رحمه الله فرمائي.چه قدوري رحمه الله د سنت لفظ استعمال کړې دې.حالانکه په دې افعالو کښې واجبات هم شته.نو دلته د ،،سنت،، د لفظ اطلاق صحيح نه دې.البته دا وئيلی شی چه چونکه د دې واجباتو ثبوت په سنت سره شوې دې د دې وجې نې ورته سنت وئيلی دی.

**د مونځ طريقه اود تکبير تحريمه حکم**

| وَإِذَادَخَلَ فِي صَلَاتِهِ كَبَّرَ فرمائي اوکله چه مونځ شروع کړی.نو تکبير به وائي |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① دخل ، دخولا (ف) داخليدل ② تلونا ، تلا تلاوة (ن) لوستل تلاوت کول ③ يؤدي، ادي تادية: ادا کول ④ تطوع: زياتي، نفل ⑤ سائر: ټول ⑥ اية : علامت، نښه ⑦ فصلی، صلی صلاةً، دعاکول،مونځ کول ⑧ مغيرة: بدلون کول مخالفت کول غير کيدل⑨ مراعاة: رعايت ⑩يتصل، اتصل اتصالاً: ملاويدل ]

**تشريح** ﴿ **التکبير في حالة القيام والصور الثلاث لها** ﴿ مسئله :کله چه د مونځ شروع کولو اراده اوکړی.که فرض مونځ وی،او که نفل،نو تکبير تحريمه به په ولاړه وائي. ①نو که يو کس په ناسته تکبير تحريمه اووئيله.او بيا اودريدلو.نو هغه به د مونځ شروع کونکې نه وی.

②او که يو سړې په مونځ کښې دشرکت په اراده باندې راشی.او امام په رکوع کښې وو.نوهغه خپله شاه ښکته کړله.او تکبير ئې اووئيل.نو په دې صورت کښې که دا سړې د تکبيرد وئيلو په وخت کښې قيام ته نزدے وو.نو جائز دہ.ګنې نه دہ.

③اوکه يو کس امام په رکوع کښې رالاندې کړلو.بيا هغه د رکوع د تکبير په اراده په ولاړه تکبير اووئيل.نو هم جائز دې.ځکه چه دده اراده لغو دہ.او په حالت د قيام کښې به دده تکبير د تحريمې دپاره ګرځولې شی.

**دليل فرضية التکبير** ﴿دليل هغه آيت دې.کوم چه وړاندې تير شو.يعنی ﴿ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْهُ ﴾ او دويم دليل د نبي ﷺ قول دې.[تحريمها التکبير] دې.

**لاسونه د تکبير سره اوچتول**

| وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيرِ او (سړې ) به خپل دواړه لاسونه د تکبير سره پورته کوی. |
|---|

**حل اللغة** ﴿① يرفع، رفع رفعاً (ف): اوچتول ②يد جمع ايدی: لاس

**تشريح** ﴿ **حکم رفع اليدين في الإبتداء** ﴿ فرمائي.چه سړې دے خپل دواړه لاسونه د تکبير سره سره اوچتوی.او د مونځ په شروع کښې د لاسونو اوچتول سنت دی.

**وقت الرفع** ⊳ ① شيخ الاسلام او قاضي خان ﷫ فرمائيلي دي.چه لاسونه اوچتول او تکبير ونيل دواړه دے يو خائې وي. د قدوري ﷫ عبارت هم دے طرف ته اشاره کونکې دې. ځکه چه علامه قدوري ﷫ فرمائي.[ويرفع يديه مع التكبير] او لفظ د ،،مع،، په مقارنت دلالت کوي.او هم دا د امام ابويوسف ﷫ قول دې.او امام طحاوي ﷫ هم په دې باندې عمل کړې دې.

**دليله** ⊳ [عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ وَمَوْلًى لَهُمْ أَنَّهُمَا حَدَّثَاهُ عَنْ أَبِيهِ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ حِينَ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ وَصَفَ هَمَّامٌ حِيَالَ أُذُنَيْهِ] (۱)

## د لاسونو پورته کولو اندازه

| حَتّٰى يُحَاذِيَ بِإِبْهَامَيْهِ شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ ترڅو چه خپلې دواړه ګوتې د خپلو دواړو غوږونو پوسکو سره برابر کړي. |
|---|

**حل اللغة** ⊳ ①يحاذي، حاذي محاداة: برابريدل، مقابل کيدل ②ابهام: غټه ګوته ③شحمة: نرمی ④اذان جمع اذان، أذن: غوږ

**تشريح** ⊳ **حد رفع اليدين عند التحريمة** ⊳ مسئله دا ده.چه د تکبير تحريمې په وخت کښې به خپل دواړه لاسونه په دومره اندازه پورته کوي.چه دواړه ګوتې د دواړو غوږونو د پوسکو سره برابر شي.

**دلائله** ⊳ ①دليل هغه حديث دې.کوم چه وائل بن حجر ،براء بن عازب او حضرت انس﷜ روايت کړې دې.[أن النبي ﷺ كان إذا كبر رفع يديه حذاء أذنيه] يعنی نبی ﷺ چه به کله تکبير ونيل.نو خپل دواړه لاسونه به ئې غوږونو ته مخامخ کول.(حاکم)

② دارقطني د حضرت انس﷜ نه دا حديث په دې الفاظو سره نقل کړې دې.[قال كان رسول الله ﷺ إذا افتتح الصلاة كبر ثم رفع يديه حتى يحاذي إبهاميه أذنيه] کله چه به رسول الله ﷺ مونځ شروع کولو.نو تکبير به ئې ونيل.بيا به ئې خپل دواړه لاسونه اوچتول.ترڅو چه خپلې دواړه ګوتې به ئې دواړو غوږونو ته مخامخ کړې.ددې دواړو احاديثو نه ثابته شوه.چه د تکبير تحريمې په وخت کښې به نبی ﷺ دواړه لاسونه دومره اوچتول.چه غوږونو ته به برابر شول.

③عقلي دليل دا دې.چه د تکبير تحريمې په وخت کښې لاس اوچتول کونړ سړی ته په مانځه کښې د شروع خبر ورکولو دپاره دې.او دا خبر هم په دې طريقې سره ورکولې شي. کومه چه مونږ بيان کړه.يعنی غوږونو پورې لاسونه اوچتولو کښې ،ځکه چه کله امام ترغوږونو پورې لاسونه اوچت کړي.نو کونړ سړې به پوهه شي.چه تکبير اوونيلې شو.نو هغه به هم تکبيراووائي.اومونځ به شروع کړي.

**الإعتراض عليه** ⊳ که دا اعتراض اوکړې شي.چه د تکبير په وخت کښې لاسونه اوچتول کونړ سړی ته دخبر ورکولو دپاره وي.نو منفرد به غوږونو پورې لاسونه نه پورته کول ځکه چه د هغه په حق کښې دا علت نشته.

**الجواب** ⊳ نو ددې جواب دا دې.چه اصل خو مونځ په جماعت سره ادا کول دي.د الله تعالى ارشاد دې. ﴿

(۲) اخرجه مسلم في الصلاة باب وضع يده اليمنى على اليسرى إلخ رقم ۶۰۸)

وَ ارْكَعُوْا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ﴿۴۳﴾ نو منفرداً مونځ ادا كول نادر وي.او د نادرڅيز اعتبار نه وي.ځكه چه قاعده ده.[النادر كالمعدوم]

**الإعتراض الثاني**>خو بيا به اشكال كيږي.چه د مقتدى په حق كښې د غوږونو پورې لاس پورته كولو ته څه ضرورت دې.

**الجواب عنه**> ددې جواب ممكن دې.چه كونړ سړې په آخرى صف كښې وى.او هغه امام نه وينى.نوپه داسې صورت كښې به هغه دخپل ځان نه وړاندې مقتديان وينى او مونځ به شروع كوى.نوځكه د مقتديانو دپاره هم تر غوږونو پورې لاسونه پورته كول ضرورى دى.

**الروايتان في رفع المرأة اليدين**> ① د تكبير تحريمې په وخت به ښځه خپلو اوږو پورې لاسونه پورته كوى.صحيح قول هم دا دې.

**دلائله** > ①عن وائل بن حجر قال جئت النبى صلى الله عليه وسلم فقال هذا وائل بن حجر جاءكم لم يجئكم رغبة ولا رهبة جاء حبا لله ولرسوله وبسط له رداءه وأجلسه إلى جنبه وضمه إليه وأصعد به المنبر فخطب الناس فقال لأصحابه ارفقوا به فإنه حديث عهد بالملك فقلت إن أهلى قد غلبونى على الذى لى قال أنا أعطيكه وأعطيك ضعفه فقال لى رسول الله صلى الله عليه وسلم يا وائل بن حجر إذا صليت فاجعل يديك حذاء أذنيك والمرأة تجعل يديها حذاء ثدييها(۱)

**تنبيه**> په دې اثر كښې اګرچه ذكر د صدر دې. خومراد ترې منكبين دى.چه لاسونه صدر ته اوچت شى. نود اوږو برابر وى.

② عقلى دليل دا دې چه اوږو پورې لاسونو پورته كولو كښې د ښځې دپاره زياته پرده ده.نو ځكه د ښځې دپاره د اوږو پورې لاسونه پورته كول مناسب دى.

**دالله اكبر په ځائې د نوروأسماء حسنى وئيلو حكم**

| فَإِنْ قَالَ بَدَلاً مِنَ التَّكْبِيْرِبيا كه ده د تكبير په بدله كښې اوونيل اَللّٰهُ أَجَلُّ أَوْأَعْظَمُ أَوِالرَّحْمٰنُ أَكْبَرُ [الله اكبر الله أجل،يا ،الله أعظم،يا الرحمن أكبر] أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله نو د طرفينو رحمهما الله په نيز كافى دې. |
|---|

**حل اللغة** >①اعظم: ډير بزرګ ②اكبر: ډير لوئ ③

**تشريح**> **ما يجوز به الشروع عند الطرفين** > په دې عبارت كښې د افتتاح دالفاظو بيان دې. ①د طرفينو رحمهما الله په نيز په هر هغه لفظ باندې مونځ كښې شروع جائز ده.كوم چه د الله تعالى په تعظيم باندې دلالت كوى.كه [الله أكبر] وى يا [الله الأكبر] يا [الله كبير] يا [الله الكبير] يا [الله أجل] يا [الله أعظم] يا [الرحمن أكبر] يا [لا إله إلا الله] يا [الحمد لله] يا [سبحان الله] يا د الله په اسماؤ كښې په بل يونوم باندې شروع اوكړى.نو ټول جائز دى.

---

(۱) اخرجه الطبرانى فى المعجم الكبير رقم ۲۸ (۲۲/۱۹) ايده العثمانى بحديث فى الحاشية تحت هذا الحديث من مجمع الزوائد إعلاء السنن فى الصلاة باب إفتراض التحريمة وسننها رقم ٦٥٦)

**دليلهما** < د طرفينو رحمهما الله دليل دا دي.چه په لغت کښې تکبير د تعظيم په معنی کښې دي. دالله تعالی قول دي ﴿ وَ رَبَّكَ فَكَبِّرْ ۝ ﴾ يعنی فعظم او﴿ فَلَمَّا رَاَيْنَهٗۤ اَكْبَرْنَهٗ ﴾ اودا تعظيم ددې ټولو الفاظو نه حاصليږي.کوم چه مونږ ذکر کړل.نوځکه د مونځ افتتاح په هر هغه لفظ باندې کيدے شي.کوم چه د الله تعالی په تعظيم باندې دلالت کوي.

| وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله فرمائيلي دی لَايَجُوْزُ اِلَّا اَنْ يَّقُوْلَ اللّٰهُ اَكْبَرُ اَوِاللّٰهُ الْاَكْبَرُ اَوِ اللّٰهُ الْكَبِيْرُ چه جائزنه دی مګردا چه اووائی الله اكبر،يا الله الاكبر يا الله الكبير |
|---|

**تشريح** < **مذهب ابي يوسف** رحمه الله > امام ابويوسف رحمه الله فرمائی.که په ښه شان په تکبير وئيلو باندې قادر نه وی. نوصرف درې الفاظ [الله اکبر،يا،الله الاکبر،ياالله الکبير] کښې په يو لفظ باندې په مانځه کښې شروع کول جائز دی.ددې نه علاوه په بل هيڅ قسم سره جائز نه ده.

**دليل ابي يوسف** رحمه الله > دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دي.چه دالله تعالی په صفاتو کښې د ،،افعل،، په وزن اسم تفضيل او ،،فعيل په معنی د فاعل ټول برابر دی.ځکه چه دالله تعالی په صفاتو کښې زيادت مراد نه دےځکه چه په اصل لوئي کښې دالله تعالی سره څوك برابر نه دي.تردےچه د ،،افعل،، صيغه د زيادت دپاره ګرځولےشي.لکه څنګه چه د بندګانو په اوصافو کښې وی.نو ،،افعل او ،،فعيل،، دواړه دالله تعالی په صفاتو کښې برابر دی.ددې په خلاف که دغه کس په ښه شان تکبير نشی وئيلې.نو څنګه چه دده نه کيدےشي.د تعظيم معنی دے ادا کړی.ځکه چه دا کس صرف په معنی باندې قادر دي.په الفاظود تکبير باندې قادر نه دي.

**په قيام کښې دلاس کيخودو طريقه اومحل**

| وَيَعْتَمِدُ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى او تکيه کوی به خپل ښی لاس په ګس لاس باندې وَيَضَعُهُمَا تَحْتَ السُّرَّةِ اواږدی به دا دواړه د نامه نه لاندې. |
|---|

**حل اللغة** < ① يعتمد، اعتمد اعتماداً: يقين او باور کول ② يمنی: ښې ③ يسری: ګس ④ سرة: نوم ⑤ وضع: ساتل

**تشريح** < دلته يوه مسئله دا ده چه په مانځه کښې ښے لاس په ګس باندې کيخودل مسنون دی.دويمه مسئله دا ده چه لاسونه د نامه نه لاندې کيخودل سنت دی.

**دلائل الأحناف** رحمهم الله > ① حضرت علی رضي الله عنه فرمائی.[من السنة أن يضع المصلي يمينه على شماله تحت السرة في الصلاة](١) حضرت علی رضي الله عنه فرمائی چه په مانځه کښې ښے لاس په ګس باندې کيخودل مسنون دی.

② د احنافو دويم عقلی دليل دا دي.چه د نامه نه لاندې لاس ترلو کښې تعظيم دي.او په مانځه کښې هم تعظيم مقصود دي.نو ځکه د نامه نه لاندې لاس کيخودل افضل دی.

③ صاحب د کفايه ليکلی دی.دنامه نه لاندې لاس ترولو کښې د اهل کتابو سره د مشابهت نه لرے والے دي.اوستر عورت ته نزديکت دي. ددې وجې هم د نامه نه لاندې لاس ترل غوره دی.

---

(١) من حديث علي رضي الله عنه أخرجه ابوداود في الصلاة باب ١١٨ رقم ٧٥٦)

**په ثناء کښي ماثوره دعاء**

| ثُمَّ يَقُولُ : سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا اِلٰهَ غَيْرُكَ بيا دے [سبحانك اللهم وبحمدك] ترآخره پوري اووائی. |
|---|

**حل اللغة** > ①يقول، قال قولاً (ن): وئيل ②يضم، ضم ضماً(ن) جمع کول يوځائ کول

**تشریح** > **کلمات الثناء** > امام قدوری رحمه الله فرمائی.چه مونځ ګذاربه د لاس ترلو نه پس ثناء وائی.او ثناء دا ده [سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالى جدك ولا إله غيرك] او په بعضوغير مشهورو رواياتو کښي [وتعالى جدك وجل ثناؤك ولا إله غيرك] دی.خوچونکه [جل ثناءك] په مشهورو رواياتو کښي مذکور نه دی.نو ځکه به دا په فرائضو کښي نه وائی.

**دليله** > د طرفينو رحمهما الله دليل د حضرت انس رضي الله عنه روايت دی.چه [أن النبي صلى الله عليه وسلم كان إذا افتتح الصلاة- كبر وقرأ سبحانك اللهم وبحمدك إلى آخره]

**د تعوذ احکام**

| وَيَسْتَعِيذُ بِاللّٰهِ او پناه به غواړی په الله سره مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ د شيطان مردود نه . |
|---|

**حل اللغة** > ① يستعيذ ، استعاذ استعاذة: پناه غوښتل ② رجيم: مردود ، شړي شوي

**تشریح** > زمونږ په نيز د مونځ په شروع کښي تعوذ مسنون دی.(فتح القدير)

**دليله** > دليل د الله تعالى قول دی. ﴿فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ﴾ په آيت کښي د ،،استعذ،، صيغه د امر اګرچه دا تقاضا کوی.چه تعوذ واجب دی.لکه چه عطاء او ثوری رحمهما الله فرمائی.خو چونکه اسلافو ددې په سنتيت باندې اجماع کړې ده.نوځکه زمونږ عالمان رحمهم الله د تعوذ د مسنونيت قائل دی.

**الروايات الثلاثة في صيغة التعوذ** > ① د تعوذ په الفاظو کښي غوره دا دی.چه [أستعيذ بالله من الشيطان الرجيم] اووائی.چه دالله تعالى د قول ﴿فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ﴾ سره موافق شی.

② خو په زياتو اخبارو او آثارو کښي [اعوذ بالله من الشيطان الرجيم] راغلی دی. ددې وجې صاحب د هدايه رحمه الله اووئيلې.چه ،،استعيذ،، ته نزدے [اعوذ بالله] هم ده.خو مختار مذهب هم دا دی.او هم په دې باندې ئے فتوی ورکولې شی. ③ او بعضې حضرات وائی.چه نبی صلى الله عليه وسلم [أعوذ بالله العظيم السميع العليم من الشيطان الرجيم] وئيلے ده.نو دا دے اختيار کړې شی.

**تسميه**

| وَيَقْرَأُ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ : او بسم الله الرحمن الرحيم دے وائی. |
|---|

**تشریح** > **حكم التسمية قبل الفاتحة** > د سورۀ فاتحې نه وړاندې به بسم الله الرحمن الرحيم وائی د دې وئيل سنت دی

**دليله** > دليل دا حديث دی عن ابن عباس رضی الله عنهما قال كان النبي صلى الله عليه وسلم يفتتح صلاته ببسم الله الرحمن

الرحيم(۱)

## په تعوذ تسميه او آمين كښي دجهر او اخفاء حكم

(وَيُسِرُّهِمَا)او بسم الله او تعوذ به په پټه وائي.

**تشريح > إخفاء التعوذ والتسمية >** ①صاحب د قدوري رَحِمَهُ اللهُ فرمائي.چه په تعوذ اوتسيمه كښې به پټوالے كوي.يعني په مانځه كښې به دا په پټه وائي.

**دلائله >** ①دليل دابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دې.چه څلور څيزونه داسې دي.كوم چه امام پټ وائي.هغه څلور څيزونه دا دي. تعوذ،تسميه ،تحميد (ربنالك الحمد)او آمين، (۲)صاحب د شرح نقايه د تحميد په ځائې ثناء ذكر كړې ده.څكه چه امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په آثار كښې روايت كړې دې.[عن أبي حنيفة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عن حماد عن ابراهيم النخعي أنه قال أربع تخفيهن الإمام التعوذ وبسم الله الرحمن الرحيم، وسبحانك اللهم وبحمدك وآمين] (شرح نقايه)

② دحضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول دې.ارشاد دې.[صليت خلف رسول الله ﷺ وخلف أبي بكر وعمر وعثمان فلم أسمع أحدا منهم يقرأ بسم الله الرحمن الرحيم] او د مسلم په يو روايت كښې دي.[فلم أسمع أحدا منهم يجهرون ببسم الله الرحمن الرحيم] حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي.چه ما په رسول الله ﷺ،ابوبكر،عمرو او عثمان ﷺ پسې مونځ كولو،ما په دوى كښې د يو نه هم په بسم الله باندې جهر نه دے اوريدلې.

## د سورة فاتحه او ضم سورت حكم

ثُمَّ يَقْرَأُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ بيا دے سورة فاتحه اووائي. وَسُورَةً أَوْثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ أَيِّ سُورَةٍ شَاءَاو د دې سره يو سورة يا درې آيتونه چه كوم سورة نه ئې خوښه وي.

**حل اللغة >**① يقرا، قرا قراءة: لوستل

**تشريح > حكم الفاتحة وضم السورة >** مطلقاً د قران قرات فرض دې.كه يو آيت ئې اووئيل.نو ركن قرات ادا شو.باقى د سورة فاتحه لوستل او د دې سره د سورت ملاوول دا دواړه په واجباتو كښې دي.

**دليله >** دليل د الله تعالى ارشاد دے ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ﴾ دې.ددې آيت نه داسې استدلال كيږي.چه ﴿مِنَ الْقُرْاٰنِ﴾ مطلق دې.نود [المطلق يجري على إطلاقه] قاعده ده.چه په كوم ادنى مقدار باندې قرآن صادق راځي. د هغې لوستل به فرض وي.څكه چه هم دا اندازه مامور به ده.اوچونكه د قرآن نه بهر د قرآن قرات فرض نه دې.نو څكه په مانځه كښې دننه به ددې فرضيت متعين وي.

## د امام او مقتدي دپاره د آمين وئيلو حكم

وَإِذَا قَالَ الْإِمَامُ وَلَا الضَّالِّيْنَ او كله چه امام [وَلَا الضَّالِّيْنَ] اووائي. قَالَ آمِيْنَ او په خپله به امام آمين وائي. وَيَقُولُهَا الْمُؤْتَمُّ او مقتدي به هم وائي.

---

(۱) أخرجه الترمذي في الصلاة باب ٦٧ رقم ٢٤٥)_

(۲) غريبه الزيلعي ثم قال ويعناه عنه ﷺ كان يخفي بسم الله الرحمن الرحيم والإستعاذة وربنا لك الحمد أخرجه ابن ابي شيبة (نصب:۱\۱۰٤

**حل اللغة** ﴿①قال قولاً (ن): وينا کول ② فامنوا، امن تامينا: آمين ونيل ]

**تشريح﴾ الآمين من يقولها؟** ﴾ ① مسئله دا ده.چه د سورة فاتحې په ختميدو باندې چه كله امام [وَلَا الضَّآلِّيْنَ] اووائي.نو امام او مقتدى دوارو لره آمين ونيل پكار دى.

**دليله** ﴾ دليل دا حديث دې.[اذا أمن الإمام فأمنوا فإنه من وافق تأمينه تأمين الملائكة غفرله ما تقدم من ذنبه] (۱)كله چه امام آمين اووائي.نوتاسو هم آمين وائي.ځكه چه د چا آمين ونيل برابر شي د فرشتو د آمين ونيلو سره نو د هغه تير شوى ټول ګناهونه معاف كولې شي.

**په آمين كښې دجهر او اخفاء حكم**

| وَيُخْفِيهَا دا ټول خلق به آمين په پټه وائي. |
|---|

**تشريح﴾ التأمين سراً** ﴾ د امام او مقتدى دوارو دپاره آمين په پټه ونيل مسنون دى.

**دلائله** ﴾ ①دليل د حضرت ابن مسعود ﷜ حديث دې.كوم چه وړاندې تير شو.يعنى [قال أربع يخفيهن الإمام التعوذ وبسم الله الرحمن الرحيم واللهم ربنا لك الحمد وآمين] او په يو روايت كښې دى.[خمس يخفيهن الإمام] او دذكر شوى څلورو څيزونو نه علاوه ئې [سبحانك اللهم وبحمدك] هم ذكر كړې دې.ددې روايت نه آمين په پټه ونيل ثابت شو.

②آمين د استجب په معنى كښې دعا ده.او په دعا كښې اخفاء غوره ده.ځكه چه الله تعالى فرمائي. ﴿اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً﴾ د امام شافعى رحمه الله د طرف نه پيش شو.حديث د وائيل بن حجر ﷜ نه جواب دا دې.چه علقمه بن وائل د خپل پلار وائل نه روايت كړې دې.په هغې كښې [خفض به صوته] دى.نو د تعارض د وجې به د وائل ﷜ دواړه رواياتونه ناقابل استدلال وى.او د ابن مسعود ﷜ روايت به كوم چه زمونږ مستدل دې.قابل استدلال وى.

**ركوع له د تګ په وخت كښې تكبير ونيل**

| ثُمَّ يُكَبِّرُ وَيَرْكَعُ او تكبير به وائي او ركوع به كوى. |
|---|

**حل اللغة** ﴾①يكبر، كبر تكبيراً: تكبيرونيل، بزرګى بيانول ②يركع، ركع ركوعاً(ف): ټيټيدل

**تشريح﴾ الروايتان وقت التكبير عند النهوض للركوع** ①﴾مسئله دا ده.چه د قرات پوره كولو نه پس به بغير د توقف نه تكبير وائي.او ركوع به كوى.يعنى اول به اودريږى.او تكبير به اووائي.بيا به ركوع اكرى.د امام قدورى رحمه الله په نيز هم دا مذهب صحيح دې.

② په جامع صغير كښې دى.چه ركوع ته په تګ كښې به تكبير وائي.يعنى ركوع ته د ښكته كيدو په وخت كښې به تكبير شروع كوى.او ركوع به پوره كوى.امام طحاوى رحمه الله فرمائي.چه هم دا صحيح ده.

---

(۱) من حديث ابن هريرة ﷺ أخرجه الأئمة الستة فى كتبهم منهم البخارى فى الأذان باب ۱۱۱)_

**دليله** > دليل دا دي.چه نبي ﷺ به تكبير ونيل.د هر ښكته كيدو او پورته كيدو په وخت كښې ابن مسعود رضي الله عنه ددې روايت داسې بيان كړې دې.[كان يكبر في كل خفض ورفع وقيام وقعود وابوبكر وعمر رضي الله عنهما] (۱) يعنى رسول الله ﷺ به تكبير ونيل په هر ښكته كيدو او پورته كيدو او ودريدو او كيناستو او ابوبكر او عمر رضي الله عنهما هم دے حديث نه هم ركوع ته د تګ په وخت كښې تكبير ونيل ثابت شو.

## د ركوع كيفيت او تسبيح

| وَيَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ او خپل دواړه لاسونه به په ګيټو باندې تكيه كړي. وَيُفَرِّجُ أَصَابِعَهُ او په خپلو ګوتو كښې به ارتوالے ساتي. |
|---|

**حل اللغة** > ①يعتمد، اعتمدا اعتمادا: باور كول يقين كول ②ركبة: زنګون

**تشريح** > **أخذالركبتين باليدين وتفريج الأصابع في الركوع** > په دې عبارت كښې د ركوع كولو كيفيت او د ركوع د تسبيح بيان دې.چونكه د ركوع مسنون ذريعه دا ده.چه مونځ ګذار په خپلو دواړو لاسونو خپلے دواړه كونډۍ اونيسى.اود لاس ګوتے دے ارتے پريږدى.اودواړه پنډۍ دے نيغے ساتي.

**دليله** > دليل دا دې.چه نبي ﷺ حضرت انس رضي الله عنه ته چا چه به خدمت كولو فرمائيلي وو.اے بچيه!كله چه ته ركوع كوې.نو دواړه لاسونو په كونډو باندې اږده.او خپلے ګوتے ارتے ساته.(۲)

**محل ضم الأصابع وتفريجها في الصلاة** >صاحب دهدايه فرمانى.چه دركوع په حالت كښې ګوتے ارتے ساتل مندوب او مستحب دى.چه په ګوتو باندې كونډۍ نيول ممكن شي.اود ركوع د حالت نه سوا ګوتے ارتے ساتل مندوب نه دى.او دسجدے په حالت كښې د لاس ګوتے ملاوول مستحب دى.يعنى دابه نه ملاوولې شي اونه به ارتولې شي.بلكه په وضع طبعي به پريخودے شي.

| وَيَبْسُطُ ظَهْرَهُ او همواره به ساتي خپله شا ــ |
|---|

**تشريح** > د ركوع په حالت كښې به شاه داسې همواره او برابر ساتلى شى.كه دده په شاه باندې د اوبو ډكه پياله كيخودې شى.نو پاتې كيدې شى.

**دلائله** > ① دليل دا دې.چه نبي ﷺ به كله ركوع كوله.نو خپله شا به ئې همواره او برابر ساتله. دحضرت عائشې رضي الله عنها روايت دې.چه [أنه كان يعتدل لو وضع على ظهره قدح ماء تستقر] يعنى نبي ﷺ به شا دومره همواره ساتله.كه د دوى په شاه باندې د اوبو ډكه پياله كيخودې شوې وه.نو هغه به پاتې وه.

② اود وابصه بن معبد په حديث كښې دى.چه [سوى ظهره حتى لوصب عليه الماء لاستقر] (۳) يعنى خپله شاه به ئې همواره ساتله.تردے كه په دې اوبه اوبيولے شوې.نوهغه به ايساريدې.

| وَلَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ او سربه نې نه اوچتولو. وَلَا يُنَكِّسُهُ اونه به ئې ټيټولو. |
|---|

(۱) من حديث عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اخرجه الترمذى فى الصلاة باب ۷۴ والنسائى فى التطبيق)ــ

(۲) اخرجه الطبرانى فى معجمه الصغير والكبير(نصب:۱\۴۴۹)ــ

(۳) من حديث وابصة بن معبد رضي الله عنه اخرجه ابن ماجه فى الإقامة باب ۲۵۸)ــ

**تشریح> إستواء الرأس مع العجز في الرکوع>** امام قدوري رحمه الله فرمائی.چه د رکوع په حالت کښې به سر نه اوچتوی.اونه ښکته کوی.یعنی د کوناټو سره به ئې برابروی.

**دلیله>** دلیل دا دي.چه رسول الله ﷺ به کله رکوع کوله.نوخپل سر به ئې نه ښکته کولو اونه اوچتولو.(۳)

| |
|---|
| وَيَقُولُ فِي رُكُوعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ ثَلَاثًا او درې خله دے په رکوع کښې [سبحان ربي العظيم] وائی. وَذَٰلِكَ أَدْنَاهُ او دا ادنی مقدار دې. |

**تشریح> تسبیحات الرکوع>** د رکوع د حالت تسبیح دا دی.چه درې خله به [سبحان ربي العظيم] وائی.او درې خله وئیل دا کم نه کم مقدار دې.ګنی پنځه خله یا اووه خله یا ددې نه زیات وئیل دی.

**دلیله>** دلیل د نبی ﷺ قول دې.[إذا ركع أحدكم فليقل في ركوعه سبحان ربي العظيم ثلاثاً] (۴)یعنی کله چه په تاسو کښې څوك رکوع کوی.نوپه خپله رکوع کښې دے درې خله [سبحان ربي العظيم] وائی.او درې خله وئیل د کامل جمعې کمه درجه ده.

## په مانځه کښې د تحمید او تسمیع احکام

| |
|---|
| ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ بیا دے خپل سر اوچت کړی. وَيَقُولُ سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ او اودے وائی. [سمع الله لمن حمده] وَيَقُولُ الْمُؤْتَمُّ: رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ او مقتدی دے [ربنالك الحمد] وائی. |

**حل اللغة >** ①یرفع،رفع رفعاً(ف): اوچتول ②سمع، سمعاً(س): اوریدل ③موتم: مقتدی

**تشریح> تقدیرعبارة التسمیع>** [سمع الله لمن حمده] معنی ده [قبل الله حمد من حمده] یعنی څوك چه د الله تعالی حمد وائی.الله تعالی دے دهغه حمد قبول کړی.حاصل دا چه ټوله د حمد قبولیت دعا ده.او د سماع لفظ د قبول په معنی کښې هم استعمالیږی شی.لکه حاکم چه د چا درخواست قبول کړی.نو وئیلی شی.[سمع الأمير كلام فلان) په [حمده] کښې ،،هاء،، دسکته دپاره ده.یا ،،هاء،، کنایه ده.دواړه قولونه شته.خو اول قول د ثقاتو نه منقول دې.

**اظهرالروایة في التسمیع والتحمید>** حاصل د مسئلې دا دې.چه په اطمینان سره دے د رکوع نه پس خپل سر اوچت کړی.او وائې دې.چه [سمع الله لمن حمده] که امام وی.نو په اجماع سره دے دا وائی.او جهر دے کوی.او که مقتدی وی.نو [ربنالك الحمد] دے وائی.اظهر روایت هم دا دې.او [ربناولك الحمد] او [اللهم ربنالك الحمد] هم مروی دی.(عنایه)

## د قومه نه تر سجدې پورې د احکامو بیان

| |
|---|
| فَإِذَا اسْتَوَى قَائِمًا کله چه دے اودریږی. (كَبَّرَ وَسَجَدَ)نو تکبیر دے اووائی.او سجده دے اوکړی |

(۳) من حديث أبي حميد الساعدي رضي الله عنه أخرجه الترمذي في الصلاة باب ۱۱۰

(۴) من حديث ابن مسعود رضي الله عنه أخرجه الترمذي في الصلاة باب ۷۹ رقم ۲۶۱

**حل اللغة** ①استوی، استواء: برابرکیدل ②سجد، سجوداً(ن): ټیټیدل سجده کول

**تشریح** **التکبیر عندالنهوض إلی السجدة** مسئله دا ده.چه مونځ گزارکله د رکوع نه نیغ اودریږی. نو تکبیر دے وانی.او سجدے ته دے لاړ شی.

**دلیله** دلیل وړاندې تیر شوې دې.چه [أنه ﷺ کان یکبر عند کل خفض ورفع] او په سجده باندې په اول باب کښې دالله تعالی قول چه ﴿ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا﴾ باندې استدلال شوې دې.

## دسجدې کیفیت

(وَاعْتَمَدَ بِيَدَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ)اوخپل دواړه لاسونه به په زمکه اړدی وَوَضَعَ وَجْهَهُ بَيْنَ كَفَّيْهِاو خپل مخ به د دواړو تلو په مینځ کښې اړدی وَيَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ.او دواړه لاسونه ئې دواړو غوږونو ته مخامخ کیخودل

**حل اللغة** ①یعتمد اعمتد اعتماداً: یقین کول، باور کول،

**تشریح** **الاعتماد علی الارض ووضع الجبهة** په دې عبارت کښې د سجدے د کیفیت بیان دې.فرمانی.چه د سجدے کیفیت دا دې.چه دواړه لاسونه به په زمکه باندې تکیه کړی.او مخ به د دواړو تلو په مینځ کښې او دواړه لاسونه غوږونو ته مخامخ کیږدی.

**دلائلها** دلیل د وائل بن حجر. حدیث دې. ①حضرت وائل ﷺ د رسول الله ﷺ د مونځ کیفیت بیانوی او فرمانی.[فسجد وادعم علی راحتیه ورفع عجیزته](۱)یعنی نبی ﷺ سجده اوکړله.او دواړه تلی ئې په زمکه باندې کیخودل. او کوناتې ئې اوچت کړل.

②اوهم د وائل بن حجر ﷺ نه مروی دی.[قال رمقت النبی ﷺ فلما سجد وضع یدیه حذاء أذنیه] (۲) فرمانی.چه ما رسول الله ﷺ لیدلے وو.کله چه به ئې سجده کوله.نو خپل دواړه لاسونه به ئې دواړو غوږونو ته مخامخ کیخودل

## په پوزه او تندی باندې د سجدې کولو حکم

وَسَجَدَاوسجده دے کوی.عَلَى أَنْفِهِ وَجَبْهَتِهِپه خپله پوزه او تندی باندې

**حل اللغة** ①سجد ،سجوداً(ن): ټیټیدل، سجده کول ②انف: پوزه ③جبهة: تندې

**تشریح** **القاعدة في وضع الأعضاء ورفعها في السجود** صاحب د عنایه لیکلی دی.چه د سجدے کیفیت او د سجدے نه د اودریدو کیفیت په باره کښې دا ضابطه ده.چه کوم اندام د زمکے سره نزدے وی.د سجدے

---

(۱) قال الزیلعی غریب من حدیث وائل بن حجر ﷺ ورواه ابویعلی الموصلی فی مسنده من حدیث البراء بن عازب ﷺ فقال ....عن أبی اسحاق قال وصف لنا البراء بن عازب ﷺ السجود فسجد فادعم علی کفیه، ورفع عجیزته وقال هکذا کان یفعل رسول الله ﷺ (نصب:۱\۴۵۹)۔

(۲) قال الزیلعی لم أجده إلا مفرقاً فروی مسلم فی صحیحه (فی الصلاة رقم ۵۴) صدره الأول من حدیث وائل أن النبی ﷺ سجد فوضع وجهه بین کفیه مختصرورروی اسحاق بن راهویه فی مسنده باتمه فقال ...عن وائل بن حجر ﷺ قال رمقت النبی ﷺ فلما سجد وضع یدیه حذاء أذنیه (نصب:۱\۴۵۹)۔

په وخت کښې به د ټولو نه مخکښې هغه په زمکه اږدی.او کوم اندام چه آسمان ته نزدے وی.د ټولو نه وراندې به هغه اوچتوی.نو اوس به د سجدوکیفیت دا وی.چه اول به په زمکه دواړه ګونډۍ کیږدی.بیا دواړه لاسونه بیا مخ او بعضو وئیلی دی.چه د لاس کیخودلو نه پس به پوزه اږدی.بیا به تندے اږدی.اود پاسیدو په وخت کښې به ترتیب دا وی.چه اول به خپل مخ اوچت کړی.بیا دواړه لاسونه بیا دواړه کونډۍ.

**دليله** ﴿ دلیل دا دې چه نبی ﷺ همیشه دپاره هم داسې سجده کړې ده.(۱)

| فَإِنْ اقْتَصَرَ عَلَى أَحَدِهِمَا بیا که په دې دواړو کښې نې په یو باندې اکتفاء اوکړله جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّه..نو د ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز ده. |
|---|

**تشريح** ﴿ **جوازالاكتفاء علي الأنف عند أبي حنيفة** ﴿ اوکه په یو باندې اکتفاء اوکړی.نو ددې دوه صورتونه دی. یو صورت دا دې چه صرف په تندی باندې سجده اوکړی. په دې صورت کښې زمونږ د احنافو عالمان ﷺ د سجدے په جواز باندې متفق دی.(۱)دویم صورت دا دې چه صرف په پوزه باندې سجده اوکړی.نودا صورت د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز سره د کراهت نه جائز ده.

**دليله** ﴿دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه په قرآن کریم کښې مطلقاً د سجدے حکم ورکړې شوې دې.او سجده د بعضې مخ په کیخودو سره متحقق کیږی.ځکه چه د ټول مخ کیخودل ناممکن دی.ځکه چه پوزه او تندے داسې راپورته هډوکی دی.چه د ټول مخ په زمکه باندې د کیخودو نه مانع دی.بهرحال هرکله چه د ټول مخ په زمکه باندې کیخودل متعذر دی.نود بعضې مخ په زمکه باندې کیخودل مامور به شو.

**خروج الخد والذقن من السجدة** ﴿البته اننګے او زنه په اجماع سره خارج ده.یعنی آیت د خپل اطلاق د وجے اګرچه دے ته هم شامل دې.خو په اجماع سره په آیت کښې دا مراد نه دی.ځکه چه د سجدے نه مراد تعظیم دې.اود اننګی او زنې په زمکه کیخودو سره تعظیم مشروع نه دې.نو ځکه دا دواړه د سجدے د مفهوم نه خارج شو.

**وجه الإستدلال** ﴿ اوس پوزه او تندے باقی پاتی شو.او دا دواړه د سجدے محل دې.نوځکه په دواړه باندې سجده جائز ده.لکه څنګه چه په تندی باندې اکتفاء کول جائز دی.نو دغه شان په پوزه باندې هم اکتفاء جائز ده.

**عدم جوازا لاكتفاء علي الانف** ﴿ صاحبین ﷺ فرمائی.چه بغیر دعذر نه په پوزه اکتفاء کول جائزنه دی.البته که عذروی.نو شرعاً جائز ده.

**دليلهما** ﴿د صاحبینو ﷺ دلیل هغه حدیث دې.کوم چه په کتب ستۀ کښې مذکور دې. [عن ابن عباس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ أمرت أن أسجد على سبعة أعظم على الجبهة واليدين والركبتين وأطراف القدمين] (۲) ابن عباس ﷺ فرمائی.چه رسول الله ﷺ فرمائیلی.چه ماته حکم شویدې.چه زه سجده اوکړم. په اووه هډوکو،په تندی باندې ،په دواړو لاسونو ،دواړوګونډو او د دواړو قدمونو اړخونو باندې.

---

(۱) من حديث أبي حميد ﷺ أخرجه البخاري رقم ۸۲۸۔

(۲) من حديث ابن عباس ﷺ اخرجه الأئمة الستة في كتبهم منهم البخاري في الأذان باب ۱۳۳ ۔

**وجه الإستدلال** ﴿وجه داستدلال دا ده.چه په کومو اووه اندامونو باندې د سجدے حکم ورکړې شوې دې.په هغې کښې د پوزے حکم نشته.نو څکه ثابته شوه.چه پوزه د سجدے محل نه دې.اوهرکله چه پوزه محل د سجدے نه دې.نو په پوزه باندې اکتفاء کول هم ټیك نه دی

**الجواب عنه** ﴿ خو د دې نه جواب دا دې.چه په مشهور روایت کښې د [جبهة] په ځائې [وجه] مذکور دې.په سنن اربعه کښې د حضرت عباس بن عبدالمطلب نه نقل دی.[أنه سمع رسول الله ﷺ يقول إذا سجد العبد سجد معه سبعة آراب وجهه وكفاه وركبتاه وقدماه] يعنى نبی ﷺ نه مے اوریدلی دی چه فرمائیل ئې.بنده چه کله سجده کوی.نو ده سره اووه اندامونه سجده کوی.دده مخ او تلی دده پنډئ او دده دواړه قدمونه ، په دې حدیث کښې[وجه]مذکور ده.او وړاندې تیر شوی دی.چه د [وجه] نه پوزه او تندے دواړه مراد دی.څکه مونږ اووئیل .چه د سجدے په حکم کښې پوزه او تندے دواړه برابر دی

**د پټی په پلو او په زیاتی جامه باندې د سجدې حکم**

| فَإِنْ سَجَدَ که مونځګذار سجده اوکړه، عَلَى كَوْرِ عِمَامَتِهِ أَوْفَاضِلِ ثَوْبِهِ د پټکی په ول یا په زیاتی جامه باندې جَازَنوجائز ده. |
|---|

**حل اللغة** ﴿①کور: پیچ، مروړ ②فاضل: فالتو، زیاتی ③جاز، جاز جوازا(ن): جائزکیدل، روا کیدل

**تشریح** ﴿ **السجدة على كور العمامة وفاضل الثوب** ﴿ ①مسئله زمونږ په نیز د پټکی په ول یا په زیاتی جامه باندې سجده کول جائز دی.

**دلائله** ﴿ ① دلیل د ابن عباس رضی الله عنهما حدیث دې.[أن النبی ﷺ كان يسجد على كور عمامته](١)يعنى نبی ﷺ به د پټکی په ول باندې سجده کوله.د عبدالله بن ابی اوفی نه نقل دی.چه [قال رأيت رسول الله ﷺ يسجد على كور عمامته] عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه فرمائی. چه ما رسو ل الله ﷺ لیدلے وو.چه د خپل پټکی په ول به ئې سجده کوله.

② ابن عباس رضی الله عنهما نه مروی دی.[أن النبى ﷺ صلى في ثوب واحد يتقى بفضوله حر الأرض وبردها](٢) یعنی نبی ﷺ په یوه جامه کښې مونځ کولو.دوی به د هغې په زیاتی حصه د زمکے د حرارت او برودت نه ځان بچ کولو.

**دواړه متې په سجده کښې کهلاؤ ساتل**

| وَيُبْدِي ضَبْعَيْهِ او لرے دے ساتی خپلے دواړه متے |
|---|

**حل اللغة** ﴿①يبدی، ابدی ابداء: کولاوول ②ضبع: مټ ]

**تشريح** ﴿ **كيفية وضع الضبعين في السجدة** ﴿مسئله :د سجدے په حالت کښې به مونځګذار خپلے متے ښکاره کوی .یعنی کهلاؤ به ئې ساتی.د څناورپشان به ئې په زمکه باندے نه خوروی.

---

(١) من حديث ابي هريرة رضي الله عنه اخرجه عبدالرزاق في مصنفه (١\٤٠٠) رقم ١٥٦٤)۔

(٢) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه واحمد في مسنده (١\٢٥٦)۔

**دلیله**> دلیل دا روایت دي. [عن آدم بن علي البكري قال رآني ابن عمر وانا اصلي لا أتجافى عن الأرض بذراعي فقال يا ابن أخي لا تبسط بسط السبع وادعم على راحتيك وابد ضبعيك فإنك اذا فعلت ذلك سجد كل عضو منك] آدم بن علی البکری فرمائی.چه ابن عمر ﷺ زه اولیدم.په داسې حال کښې چه ما مونځ کولو.او د زمکې نه مې خپل لاسونه نه جدا کول.نو وې فرمائيل.اې وراره ! دځناورو پشان مه خوريږه.او په خپلو تلو باندې تکیه اولګوه.او خپلې متې کُهلاو کړه.ځکه چه کله ته داسې کوې.نو تا سره به هر اندام سجده کوی.

**الرواية الثانية**> صاحب د هدايه فرمائی.چه په يو روايت کښې [ابدا] د دال په تشديد سره راغلې دې.د [ابداد] نه مشتق دې.چه معنی ئې رابنکل ده.يعنی خپلې متې راکاږه.او اول د [ابداء] نه مشتق ده.چه معنی ئې ښکاره کول دی.يعنی خپلې متې ښکاره يعنی خه کهلاوکړه.

**په سجده کښې خيټه د پتونانو نه جدا ساتل**

| وَيُجَافِي بَطْنَهُ عَنْ فَخِذَيْهِ او خپله خيټه به د پتونانو نه جدا ساتی. |
|---|

**حل اللغة**> ①يجافی، جافی مجافاة: لرې ساتل ②بطن جمع بطون: خيټه ③فخذ جمع افخاذ: پتون

**تشريح**> **إبعاد البطن عن الفخذين في السجود**> مسئله دا ده.چه مونځګذار به د سجدې په حالت کښې خپله خيټه د خپلو پتونانو نه جدا ساتی.

**دليله**> دليل دا دې.چه نبی ﷺ به کله سجده کوله.نو تجافی به ئې کوله،يعنی خيټه به ئې د پتونانو نه جدا ساتله.او څنګلې به ئې زمکې نه اوچتې ساتلې.تردې که د چيلئ بچی به د نبی ﷺ د لاسونو په مينځ کښې تيريدل غوښتل.نوتيريدې به شو.(۱)

**صورة استثنائية**> بعضې فقهاؤ وئيلی دی.که په صف کښې دننه وی.نو لاسونو ته دې جوف نه ورکوی.يعنی دا دې نه خوروی.چه ورسره نزدې کس (ګاونډی) ته تکليف نه وی.

**د پښو د ګوتو مخ قبلې طرف ته کول**

| وَيُوَجِّهُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ نَحْوَ الْقِبْلَةِ او د خپلو پښو دګوتو مخ دې قبلې طرف ته کړی. |
|---|

**حل اللغة**> ① يوجه،وجه توجيها: متوجه کول ② نحو:پورې،طرف ③ عضو جمع اعضاء: اندام

**تشريح**> صورت د مسئلې ښکاره او آسان دې

**دليله**> دليل دا دې چه نبی ﷺ فرمائيلی دی.کله چه مومن سجده کوی.نو دده هر اندام سجده کوی.نو چه څومره ئې وس کيږی.خپل اندمونه دې قبلې طرف ته کوی.(۲)

**د سجدې تسبيح**

| وَيَقُولُ فِي سُجُودِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثًا او د سجدې په حالت کښې دې درې ځله [سبحان ربي الأعلى] وائی وَذَلِكَ أَدْنَاهُ.او دا ادنی اندازه ده. |
|---|

(۱) من حديث ميمونة ﷺ اخرجه مسلم في الصلاة رقم ۲۳۷ )۔

(۱) خرجه الزيلعي ﷺ بهذا اللفظ ثم نقل عن عبدالله بن عمر عن ابيه ﷺ قال من سنة الصلاة أن ينصب القدم اليمنى واستقباله باصابعها القبلة والجلوس على اليسرى وعزاه إلى النسائي (أی فی السنن الکبری (۱\۲٤٨) رقم ٧٤٤) (نصب: ١\٤٦٦)۔

**حل اللغة** ⟵ ①ان يزيد ، زاد زيادة: زياتول ②ان يختم، ختم ختاما(ض): ختم كول

**تشريح** ⟵ **تسبيحات السجود ثلاثا** ⟵ امام قدوری رحمه الله فرمائی.چه د سجدے په حالت کښې به درې خله [سبحان ربي الأعلى] وائی.او دا درې خله ونيل د کم نه کمه درجه ده.عالمانو رحمهم الله ليکلی دی.چه ددې پريخودل يا په کښې کمے کول مکروه دی.

**دليله** ⟵ ددې دليل د نبی ﷺ ارشاد دې.[إذا سجد أحدكم فليقل في سجوده سبحان ربي الأعلى ثلاثا](١)

**إستحباب الزيادة علي الثلاث** ⟵ او په رکوع او سجده کښې په درې خله باندې زيادت کول مستحب دی.خو په دې شرط چه په طاق عدد باندې ختموی.

**دليله** ⟵ نبی ﷺ به د رکوع او سجدے تسبيحات په طاق عدد باندې ختمولو.(٢)او په مشهور حديث [إن الله وتر يحب الوتر] باندې هم استدلال شوې دې.

**حق الزيادة للإمام** ⟵ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائی.که په خپله امام وی.نوپه درې خله دے دومره زيادت نه کوی.چه خلق ستړی شی.او د هغوی په زړونو کښې نفرت او ناخوښی پيدا شی.دا خبره دے معلومه وی.چه د رکوع او سجدے تسبيحات سنت دی.ځکه چه نص يعنی ﴿ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا﴾ رکوع او سجدے ته شامل دې.ددې تسبيحاتو ته نه دے شامل.نو ثابته شوه چه د رکوع او سجدے تسبيخات فرض نه دی.

**كيفية سجدة المرأة** ⟵ په دې عبارت کښې د ښځې د سجدے د کيفيت بيان دې.فرمائی چه ښځه دے د سجدے کولو په وخت کښې راغونډه شی.يعنی زمکے ته دے نزدے شی.او خيټه دے د پتونانو سره ملاؤ کړی.دليل دا دې.چه په دې کيفيت باندې سجده کولو کښې د ښځې په حق کښې زياته پرده ده.حالانکه د ښځې په حق کښې پرده مطلوب هم ده.

**دليله** ⟵ عن علي قال إذا سجدت المرأة فلتحتفز ولتلصق فخذيها ببطنها(٣)

## د سجدې نه د پورته کيدو او جلسې طريقه

| ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ بيا به خپل سر پورته کړی وَيُكَبِّرُ او تکبير به اووائی. وَإِذَا اطْمَأَنَّ جَالِسًا.بيا چه کله په اطمينان سره کينی كَبَّرَ وَسَجَدَ نو تکبير دے اووائی.او سجده دے اوکړی |
|---|

**حل اللغة** ⟵ ①اطمان، اطمينانا:مطمئن کيدل ② جالسا: په ناسته

**تشريح** ⟵ **التكبير عند الرفع من السجدة الأولي** ⟵ په دې عبارت کښې د دويمے سجدے د کيفيت بيان دې.فرمائی چه د اولنۍ سجدے نه په سر راپورته کولو کښې به تکبير اووائی.

(١) تقدم تخريجه في فصل صفة الصلاة_

(٢) قال الزيلعي رحمه الله غريب جداً (نصب:١\٤٦٧)_

(٣) كذا في مصنف عبدالرزاق رقم ٥٠٧٢ (١٣٨/٣) حسنه العثماني إعلاء السنن في الصلاة باب طريق السجود بطريق الأحوص و عزاه إلى مصنف ابن أبي شيبة لكن ما وجده فيه العبدالضعيف شاه فيصل)

**دليله** ﴿دليل دا دې چه اعرابي ته ئې د مونځ تعليم ورکولو.نو نبی ﷺ فرمائيلی وو.[ثم ارفع رأسك حتى تستوی جالسا] (۱)يعنی بيا سر پورته کړه.تردے چه ته نيغ کينې.

**وجوه تکرار السجود دون الركوع** ﴿باقی پاتې شوه دا خبره چه په هر رکعت کښې يوه رکوع او دوه سجدے ولې دی؟نو په دې باره کښې د اکثرو عالمانو ﷺ دا رائې ده.چه دا توقيفی څيز دې. عقل او قياس ته په دې کښې دخل نشته.

② او بعضې حضراتو دا حکمت ذکر کړې دې.چه دوه سجدے د شيطان ذليل کولو دپاره دی.ځکه چه د تخليق آدم ﷺ نه پس چه کله الله تعالی هغه ته حکم کړې وو.چه دے آدم ﷺ ته سجده اوکړی.نو هغه آدم ﷺ ته سجده اونکړله.نو مونږ د شيطان د رسوا کولو او ذليل کولو دپاره دوه سجدے کوو.په سجده د سهوے کښې نبی ﷺ دے طرف ته اشاره کړې ده. [هما ترغيما للشيطان] يعنی د سهوے دواړه سجدے د شيطان رسوا کولو دپاره دی.

③ اوبعضو وئيلی دی.چه په اوله سجده کښې دے طرف ته اشاره کړې شوې ده.چه انسان د خاورے نه پيدا شوې دې.او په دويمه کښې دا اشاره ده.چه هم دے ته به واپس کيږی.الله تعالی فرمائی. ﴿مِنْهَا خَلَقْنٰكُمْ وَفِيْهَا نُعِيْدُكُمْ﴾

**دسجدې نه د اودريدو کيفيت**

| فَإِذَا اطْمَأَنَّ سَاجِدًا اوچه کله د سجدے په حالت کښې په اطمينان شی كَبَّرَ.نو تکبير دے اووائی وَاسْتَوٰی قَائِمًا او نيغ دے اودريږی.عَلٰی صُدُوْرِ قَدَمَيْهِ د خپلو قدمونو په تلو باندې |
|---|

**حل اللغة** ﴿①استوی، استواء: برابرول ②قدميه: تثنيه د قدم ده يعنی دواړه خپې

**تشريح** ﴿ **التكبير عند الرفع إلى القيام** ﴿فرمائی.چه کله د سجدے په حالت کښې په اطمينان شی.نود اودريدو دپاره دے تکبير اووائی.دليل وړاندې تير شوې دې.يعنی [أن النبی ﷺ كان يكبر عند كل خفض ورفع]

| وَلَا يَقْعُدُ.اونه دے کينی وَلَا يَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ او نه دے تکيه لګوی.په خپلو لاسونو سره په زمکه باندې |
|---|

**تشريح** ﴿ **كيفية القيام من السجدة الثانية** ﴿ ①امام قدوری رحمه الله فرمائی.چه د دويمے سجدے د فراغت نه پس دے د خپلو تلو په ذريعه نيغ اودريږی.نه دے کينی او نه دے په خپلو لاسونو باندې په زمکه تکيه لګوی.که عذر نه وی.نومستحب دادی.

**دلائله** ﴿ ①د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث دې.[أن النبی ﷺ كان ينهض فى الصلاة على صدور قدميه] (۱)يعنی نبی ﷺ به په مانځه کښې دخپلو پنجو په تلو باندې اودريدلو.

---

(۲) القدم تخريجه۔

(۱) أخرجه البخاری عن مالك بن الحويرث فى الصلاة باب ۱۴۳ (حديث ۸۲۴)

② د امام شعبی رحمه الله نه مروی دی.[قال کان عمرو علی وأصحاب النبی ﷺ یضعون لی الصلاة علی صدور أقدامهم] امام شعبی رحمه الله فرمائی.چه حضرت عمر،حضرت علی او د رسول الله ﷺ صحابه رضی الله عنهم به په مانځه کښې دخپلو قدمونو په پنجو باندې اودریدل.

③ عقلی دلیل دا دې.چه دا کیناستل د استراحت دپاره دی.او مونځ د استراحت او آرام دپاره نه دے وضع شوې.نو ځکه دا قعده نشته.

### د دویم رکعت پوره کولو طریقه

| وَيَفْعَلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ او په دویم رکعت کښې دے هم هغه شان اوکړی مِثْلَ مَا فَعَلَ فِي الْأُولَى ځنګه چه ئې په اولنی رکعت کښې کړی وو إِلَّا أَنَّهُ لَا يَسْتَفْتِحُ وَلَا يَتَعَوَّذُ..البته دا چه [سبحانك اللهم] او [أعوذبالله] دے نه وائی |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① یفعل، فعل فعلاً (ف): کول ② یستفتح، استفتح استفتاحاً: شروع کول ③یتعوذ، تعوذ تعوذاً:پناه غوښتل، اعوذبالله وئیل ]

**تشریح﴿ کیفیة الرکعة الثانیة**﴿د اولنی رکعت د فراغت نه پس دے مونځ ګذار دویم رکعت اوکړی.او په دویم رکعت کښې به ټول هغه څه کوی.کوم چه ئې په اولنی رکعت کښې کړی وو.

**دلیله**﴿دلیل دا دې.چه دویم رکعت کښې د ارکانو تکرار دې.او تکرار د اول د اعادے تقاضا کوی.ځکه چه وئیلی شوی دی.چه دویم رکعت کښې به هغه شان کوی.ځنګه چه ئې په اولنی رکعت کښې کړی وو

**عدم التسبیح والتعوذ**﴿ البته دومره فرق ضرور شته.چه په دویم رکعت کښې به نه [سبحانك اللهم] وائی.او نه [أعوذبالله] وائی.

**دلیله**﴿ ځکه چه دا دواړه خبرے یو ځل مشروع شوی دی.ځکه چه کوم حضرات صحابه کرام د نبی ﷺ مونځ نقل کوی.نوهغوی دا څیزونه صرف یو ځل روایت کړی دی.

### د رفع یدین حکم

| وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ اوخپل لاسونه دے نه اوچتوی. إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى مګرپه تکبیر تحریمه کښې |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①رفع: اوچتول ②ایدی جمع ید : لاس ③مواطن: ځایونه ]

**تشریح﴿ عدم رفع الیدین عندالرکوع والرفع منه**﴿ ① مسئله دا ده.چه د تکبیر تحریمے نه بغیر به په تکبیر کښې لاس نشی اوچتولې.

**دلائله** ﴿ ① دلیل د ابن عباس رضی الله عنهما حدیث دې.چه [لاترفع الأیدی إلا فی سبع مواطن.الحدیث] د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.لاس به نشی اوچتولې.مګر په اووه ځایونو کښې ① په تکبیرتحریمه کښې ② تکبیر قنوت کښې ③ تکبیرات عیدین کښې ④ تکبیر عرفات کښې ⑤ تکبرات جمرتین کښې ⑥ تکبیر صفا مروه کښې ⑦ تکبیر استلام کښې.

② دحضرت عبدالله رضی الله عنه نه روایت دې.فرمائی :
رسول الله صلی الله علیه وسلم به د اولنی تکبیر په وخت کښې لاسونه پورته کولو.او بیا به

لاسونو پورته کولو ته نه واپس کیدلو.(١)

**رفع اليدين عند الشافعي** رحمه الله ﴿ امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د تکبیر تحریمے نه علاوه به په دوو تکبیرونو کښې لاس اوچتوی.یو رکوع ته د تلو په وخت کښې او دویم د رکوع نه پورته کیدو په وخت.

**دليله** ﴿ د امام شافعی دلیل دابن عمر رضي الله عنه حدیث دې. [أن النبي ﷺ كان يرفع يديه عند الركوع وعند رفع الرأس من الركوع] د ابن عمر رضي الله عنه حدیث دې.چه نبی ﷺ به خپل دواړه لاسونه پورته کول. رکوع ته د تلو په وخت کښې او د رکوع نه سر پورته کولو په وخت کښې ،

**الجواب عنه** ﴿ خودا حدیث به په ابتدائے اسلام باندې حمل کولې شی.یعنی په ابتدائې اسلام کښې رفع یدین وو.بیا منسوخ شو.هم دغه شان د عبدالله بن زبیر رضي الله عنه نه منقول دی.د ابن زبیر رضي الله عنه نه مروی دی.[أنه رأى رجلا يصلي في المسجد الحرام يرفع يديه في الصلاة عند الركوع وعند رفع الرأس من الركوع فلما فرغ من صلاته قال له لاتفعل فان هذا شئ فعله رسول الله ﷺ ثم تركه]

**مناظرة ابيحنيفة والأوزاعي** رحمهما الله ﴿ شارحینو رحمهم الله دهدایه (عنایه ،فتح القدیر ،کفایه) په دې مسئله کښې یوه خوندوره واقعه ذکر کړې ده.هغه دا چه یو ځل په مسجد حرام کښې امام اوزاعی رحمه الله دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله سره ملاؤ شو.امام اوزاعی رحمه الله اوفرمائیل. څه خبره ده چه اهل عراق د رکوع کولو په وخت کښې اود رکوع نه سر پورته کولو په وخت کښې خپل لاسونه نه اوچتوی.حالانکه ماته [زهری عن سالم عن ابن عمر رضي الله عنه] نه دا حدیث رارسیدلے دې.چه نبی ﷺ به په دې مواقعو باندې خپل لاسونه اوچتول.امام ابوحنیفه رحمه الله اوفرمائیل.[حدثني حماد عن ابراهيم عن علقمة عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه أن النبي ﷺ كان يرفع يديه عند تكبيرة الإفتتاح ثم لايعود] یعنی نبی ﷺ به د تکبیر تحریمه په وخت کښې خپل لاسونه اوچتول.بیا به ئې اعاده نه کوله.

امام اوزاعی رحمه الله اوفرمائیل.امام ابوحنیفه باندې تعجب دې.چه زه ورته حدیث بیانوم.[حديث زهري عن سالم عن ابن عمر رضي الله عنهما] او هغه حدیث بیانوی.[حدثني حماد عن ابراهيم عن علقمة عن ابن مسعود رضي الله عنه] حاصل دا چه امام اوزاعی د علو سند لحاظ اوکړلو.او د ابن عمر رضي الله عنه حدیث ته ئې ترجیح ورکړله.حضرت امام اعظم رحمه الله اوفرمائیل [أما حماد فكان أفقه من الزهري وابراهيم كان أفقه من سالم ولولا سبق ابن عمر لقلت بأن علقمة أفقه منه أما عبدالله فعبدالله] یعنی حماد دزهری په مقابله کښې لوئې فقیه دې.او ابراهیم د سالم نه زیات فقیه دې.او که چرته ابن عمر رضي الله عنه ته د تقدیم زمانی فضیلت حاصل نه وو.نوما به وئیلی وو.چه علقمه د ابن عمر رضي الله عنهما په مقابله کښې زیات فقیه دې.اوعبدالله خو عبدالله رضي الله عنه دې.یعنی دهغه خو نظیر نشته. حاصل داچه امام ابوحنیفه رحمه الله دفقه روایت په اعتبارسره ابن مسعود رضي الله عنه ته ترجیح ورکړله.

**الإستدلال** ﴿ د دې واقعے نه دومره خبره ثابته شوه.چه د رفع یدین په سلسله کښې دابن عمر رضي الله عنهما او ابن مسعود رضي الله عنه حدیث په خپلو کښې معارض دی.او په دې دواړو حدیثونو کښې د نبی ﷺ فعل بیان

---

[1] رواه الطحاوي في شرح معاني الآثار(١/٢٢٤)۔

شوې دې.نو دتعارض د وجې دواړه احاديث ساقط شو.اود نبي ﷺ قول [لاترفع الأيدي إلا في سبع مواطن الحديث] طرف ته به رجوع كولې شي.په داسې حال كښې چه دا حديث مشهور دې.ددې نه علاوه د ابن عمر رضي الله عنهما حديث ساقط دې.ځكه چه مجاهد رحمه الله فرمائيلي دي.[صليت خلف ابن عمر رضي الله عنهما سنتين فلم أره يرفع يديه إلا لافتتاح الصلاة] مجاهد رحمه الله فرمائي.چه ما دوه كاله په ابن عمر رضي الله عنهما پسې مونځ كړې دې.خو د تكبير تحريمه نه علاوه ما چرته هغه په لاس اوچتولو نه دے ليدلې.اوقاعده دا ده.چه راوى كله دخپل روايت خلاف عمل كوى.نودهغه روايت ساقطيږي.(نورالانوار)

**نوعية الاختلاف >** شيخ الاسلام مفتى محمد تقي عثماني دامت حياتهم العاليه په درس ترمذى كښې فرمائي:چه دا خبره ياده ساتئ:چه د امامانو په مينځ كښې په دې مسئله كښې اختلاف دجواز او عدم جواز نه دې.بلكه د افضليت او عدم افضليت دې.د فريقينو په نزد دواړه طريقې بے دكراهته جائز دى.البته په محدثينو كښې امام اوزاعى او امام حميدى او امام ابن خزيمه رحمهم الله رفع اليدين ته واجب وائى. (ذكره الحافظ في فتح الباري ج۲ص۱۷۴) خوچه روستو بيا په دې مسئله باندې د مناظرو بازار گرم شو.او د فريقينو د طرف نه په دې مسئله كښې اوږده اوږده بحثونه او مبالغه شروع شوه.نو بعضې شافعيانو هم په ترك درفع اليدين باندې د فساد حكم اوكړو. او په احنافو كښې صاحب د منيي المصلى رفع يدين ته مكروه اووئيل:ليكن حقيقت هغه دې.كوم چه مونږ وړاندې بيان كړلو.تركومې پورې چه د رواياتو تعلق دې.نو حقيقت دا دې.چه دواړه عملونه د نبي عليه السلام نه ثابت دى.حضرت شاه انور شاه كشميرى رحمه الله د ،،رفع اليدين،، په مسئله يوه مستقله رساله ليكلې ده.او نوم ئې ورته ،،نيل الفرقدين في رفع اليدين،، ايخې دې.په دې رساله كښې هغوى فرمائي.د رفع اليدين احاديث معنى متواتر دى.او د ترك رفع اليدين احاديث عملا متواتر دى.يعنى په ترك د رفع اليدينو باندې دامت عمل راروان دې.او ددې دليل دا دې.چه د عالم اسلام دوه لوئې مركزونه مدينه منوره اوكوفه وو.اوددې دواړو ښارونو خلق بلا استثناء په ترك رفع اليدين باندې عمل كونكى وو.(درس ترمذي ج، ۲ص۲۷) چونكه احناف د ترك رفع اليدين قائلين دى.

**په قعده كښې د كيناستو كيفيت**

(وَإِذَارَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ او كله چه د دويم ركعت دپاره د دويمې سجدې نه سر راپورته كړى افْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى نوخپله كسه پښه به اوغزوى فَجَلَسَ عَلَيْهَا ..او په دې به كينى وَنَصَبَ الْيُمْنٰى نَصْبًا.او خپله ښئ پښه به بيخى نيغه اودروى وَوَجَّهَ أَصَابِعَهُ نَحْوَالْقِبْلَةِ.او خپلې گوتې به قبلې طرف ته كړى

**حل اللغة >**① رفع رفعا(ف): اوچتول ②افترش، افتراشا: خورول ③ فجلس، جلس جلوسا(ض): كيناستل ④ نصب، نصبا (ن،ض): اودرول، ورخښول ⑤نحو: طرف ⑥ توجيه: متوجه كول ⑦ اصابع، اصبع: گوته ⑧ اخرجت، اخراج اخراجا: راويستل ⑨ جانب: طرف ⑩ايمن: ښي ]

**تشريح > كيفية الجلوس في القعود >** په دې عبارت كښې د قعدې كيفيت بيان شوې دې. فرمائي.چه كله د دويم ركعت دپاره د دويمې سجدې نه سر راپورته كړى.نو خپله كسه پښه به اوغزوى.او په دې به كينى.او ښئ به اودروى.اود دواړو پښو گوتې به قبلې طرف ته متوجه كړى.

**دلیله>** دلیل دا دې.چه ام المؤمنین حضرت عائشې رضي الله عنها د نبی ﷺ په مانځه کښې د کیناستو کیفیت هم داسې بیان کړې دې.(۲)

| |
|---|
| **وَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ** او خپل دواړه لاسونه به په دواړو پتونانو باندې کیږدی **وَيَبْسُطُ أَصَابِعَهُ** اودخپلو لاسونو ګوتې به اوغزوی. **ثُمَّ يَتَشَهَّدُ** او تشهد به اووائی |

**تشریح> وضع اليدين علي الفخذين >** چه کینی نو خپل دواړه لاسونه به په دواړو پتونانو کیږدی.او ګوتې به خورې کړی .یعنی چه په کوم حالت کښې وی.هم په هغه حالت کښې دې پریږدی.یوځائې کوی دې نه.او په لاسونو دې پنډۍ نه نیسی.

**دلیله>** دلیل دا دې.چه دحضرت وائل بن حجر رضي الله عنه حدیث هم په دې کیفیت سره روایت شوې دې.اوعقلی دلیل دا دې.چه په دې وضع کښې د لاسونو ګوتې مخ په قبله وی.او ترکومې چه هراندام قبلې طرف ته متوجه کول ممکن وی.نودا غوره ده.

صاحب دعنایه لیکلی دی.چه امام محمد رحمه الله دنبی ﷺ یو حدیث بیان کړې دې.په هغې کښې دی.چه رسول الله ﷺ به د شهادت په ګوته باندې اشاره کوله.نو مونږ به هم داسې کول.او هم دا قول د ابوحنیفه رحمه الله دې.او ددې اشارې تفصیل دا دې.چه د ښی لاس کچه او قتبه ګوتې به بندې کړی.اود مینځنۍ او متې ګوته دې حلقه جوړه کړی.اوپه مسواکه ګوته دې اشاره کوی.دامام حلوانی رحمه الله نه منقول دی چه په تشهد کښې به د [لااله] د لفظ په وخت کښې خپله د شهادت ګوته پورته کوی.اود [الا الله] په وخت کښې به نې ښکته کوی.چه د ګوتې پورته کول د غیرالله نه نفی او ښکته کول دالله تعالی دپاره اثبات شی،

په مسواکه ګوته باندې په تشهد کښې اشاره کول سنت دی.او چا چه ترې انکار کړې دې.نو دهغوی قول ته څه اعتبار نشته.ځکه چه اشاره په احادیثو صحیحو سره ثابته ده.اومتاخرین عالمان ددې په سنتیت باندې قائل دی.او دا قول د روایت او درایت دواړو په رنړا کښې معتبر دې.چه اشاره سنت ده.البته په احادیثوکښې د اشارې کولو په کیفیت کښې مختلف طریقې راغلی دی.ټولې جائز دی.خو داحنافو په نیزدمعتمده طریقه دا ده.چه د تشهد داول نه به دواړه لاسونه په پتونانو کیږدی.چه کله [أشهد أن لا إله الا الله] ته اورسی.نو د قتې او منځنۍ ګوتې نه به حلقه جوړه کړی.او د الوهیت د نفی په وخت کښې یعنی چه کله [لا إله] وائی نو مسواکه ګوته به پورته کړی.او د الوهیت داثبات یعنی [الاالله] په وخت کښې به مسواکه ګوته اړدی.چه په پورته کولو کښې نفی دالوهیت ته او په کیخودلو کښې اثبات د الوهیت ته اشاره اوشی.علامه تقی عثمانی حفظه الله په درس ترمذی کښې فرمائیلی :
داشارې په باره کښې مختلف کیفیات منقول دی.په ټولو باندې عمل جائز دې. خو داحنافو په نزد باندې دا طریقه غوره ده.کومه چه مخکښې تاسو اولوستله.

---

(۲) غربه الزيلعي بهذا اللفظ واورد بمعناه عن عائشة وعزاه إلى مسلم في الصلاة حديث (۲٤۰)۔

**دلیله >** حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائي:رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به کله په تشهد کښې کیناستلو. نو ګس لاس به ئې په ګسه پنډۍ کیخودلو.او ښي لاس به ئې په ښیٔ پنډۍ کیخودلو.او د پنځوسو نبنه به ئې جوړه کړله.او په مسواکه ګوته به ئې اشاره اوکړله. (۱)

**کیفیة قعود المراة >** اود ښځې د کیناستو کیفیت دا دې.چه هغه به په خپل ګس کوناتې باندې کینی.او دواړه پښې به ښی طرف ته راوباسي.ځکه چه دا طریقه د ښځې دپاره زیاته د پردے ده

**دلیله >** عن خالد بن اللجلاج قال كانت النساء يؤمرن أن يتربعن إذا جلسن في الصلاة ولا يجلسن جلوس الرجل على أوراكهن يتقى ذلك على المرأة مخافة أن يكون منها الشيء (۲)

**د ابن مسعود رضی الله عنه تشهد**

| |
|---|
| وَالتَّشَهُّدُاو تشهد دا دې اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ ټول قولی عبادتونه الله لره دی وَالصَّلَوَاتُ او ټول بدنی عبادتونه (الله لره دی) وَالطَّيِّبَاتُ، او ټول مالی عبادتونه (الله لره دی) اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ سلام دې وی په تا باندې أَيُّهَا النَّبِيُّ اې نبی وَرَحْمَةُ اللّٰهِ او رحمت دالله تعالی وَبَرَكَاتُهُ اود الله تعالی برکتونه دی وی اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا او سلام دې وی په مونږ وَعَلٰى عِبَادِاللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ اود الله تعالی په نیکانو بندګانو باندې أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ ګواهی کوم چه د الله نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ او ګواهی کوم چه محمد ﷺ د الله تعالی بنده او رسول دې۔ |

**حل اللغة >** ①علمنی، علم تعلیماً: خودل ②اخذ: اخستل، نیول ]

**تشریح > تشهد ابن مسعود رضی الله عنه >** ددې عبارت حاصل دا دې.چه قعده اولی کښې د اصح قول په بناء تشهد لوستل واجب دی.او د تشهد په الفاظو کښې صحابه کرامو رضی الله عنهم اختلاف کړې دې.د ابن مسعود رضی الله عنه تشهد دې.او دوی نه علاوه د نورو صحابو رضی الله عنهم نه هم تشهد منقول دې. د احنافو عالمانو رحمهم الله تشهد د ابن مسعود غوره کړې دې.

**دلیله >** ابن مسعود رضی الله عنه فرمائي.چه رسول الله ﷺ زما لاس اونیولو.او ماته ئې د تشهد تعلیم راکړلو.او وے فرمائیل.[قل التحیات لله] په دې حدیث کښې د نبی ﷺ قول [قل] د امر صیغه ده.او د امر کمتره درجه د استحباب ده.(۳)

**وجوه ترجیح تشهد ابن مسعود رضی الله عنه >** احنافو عالمانو رحمهم الله فرمائیلی دی.چه د ابن مسعود رضی الله عنه تشهد اختیارول هم د څو وجوهو له کبله افضل دې.

---

(۱) رواه مسلم في الصلاة باب:صفة الجلوس في الصلاة وكيفية وضع اليدين إلخ رقم الحديث ۹۱۲)

(۲) رواه ابن أبي شيبة في الصلاة باب في المرأة كيف تجلس في الصلاة رقم ۲۷۹۱ (۲٤۲/۱)۔

(۱) أخرجه الجماعة إلا البخاري (مسلم في الصلاة باب حديث ۶۰، وأبوداود في الصلاة باب ۱۷۸، والترمذي في الصلاة باب ۱۰۰، والنسائي في التطبيق باب ۱۰۳، وابن ماجه في الإقامة باب ۲٤، وأحمد في المسند (۲۹۲/۱)۔

① السلام علیك په الف لام سره مفید د استغراق دي.
② والصلوات د واؤ سره مفید دتجدید دي.
③ دنبی ﷺ لاس نیول اود قرآن د سورت پشان تعلیم ورکول مفید د تاکید دی.
④ التحیات صلاة او غیرصلاة ټولو ته شامل دي.خوکله چه دابن عباس رضی الله عنهما په تشهد کښې [الصلوات] بغیر د واؤ نه دي.نودا تخصیص شو.اود [التحیات] نه مراد صرف [صلوات] شو.او چه [والصلوات] د واو سره وی.لکه چه د ابن مسعود رضی الله عنه په نشهد کښې دي.نو اول یعنی [التحیات] عام پاتې شو.اوچونکه په عامه کلمه سره ثناء ونیلو کښې مبالغه وی.نوځکه دا اولی دي.

**معني کلمات التشهد وشأن ورودها>** د ،،التحیات،، معنی عبادات قولیه دی.د ،،الصلوات،، معنی عبادات بدنیه دی او د ،،الطیبات،، معنی عبادات مالیه دی.او [السلام علیك] دا دهغه سلام حکایت دي.کوم چه په شپه د معراج د نبی ﷺ په درې څیزونو سره د ثناء کولو په جواب کښې فرمائیلی شوی وو.[السلام] د [التحیات] په مقابله کښې دي.او رحمت د صلوات په مقابله کښې دي.او برکت د التحیات په مقابله کښې دي.اود برکت معنی نما او زیادت راځی.په شپه د معراج کښې د الله تعالی په دربار کښې دحاضرئ په وخت کښې نبی ﷺ فرمائیلی وو.[التحیات لله والصلوات والطیبات] رب العالمین په جواب کښې اوفرمائیل. [السلام علیك أیها النبی ورحمة الله وبرکاته] بیا نبی ﷺ اوفرمائیل[السلام علینا وعلی عباد الله الصالحین] چه فرشتو دا واوریدل.نو وے فرمائیل. [أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمدا عبده ورسوله]

### په اولنئ قعده کښې په قدر د تشهد باندې د زیادت ممانعت

| وَلَا يَزِيدُ اوزیادت به نه کوی عَلٰی هٰذَا په دې تشهد باندې فِي الْقَعْدَةِ الْأُوْلٰی په اولنئ قعده کښې |
|---|

**حل اللغة >** ①لایزید ، زاد زیادةً (ض): زیاتول

**تشریح> عدم الزیادة علي قدر التشهد في القعدة الأولي>** فرمائی.په اولنئ قعده کښې به په مقدار دتشهد باندې اضافه نه کوی.

**دلیله>** دلیل د ابن مسعود رضی الله عنه قول دي.چه [علمني النبي ﷺ التشهد في وسط الصلاة وآخرها فإذا كان في وسط الصلاة نهض إذا فرغ من التشهد وإذا كان آخر الصلاة دعا لنفسه ما شاء] (۱)

### د آخرې دوو رکعتونو د کولو طریقه

| وَيَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ خَاصَّةً او په آخری دوو رکعتونو کښې دے صرف فاتحة الکتاب اووائی |
|---|

**حل اللغة >** ①یقرا ، قرا قراءةً (ف): لوستل ②یاتیك، اتی اتیانًا (ض): راتلل ]

---

(۱) رواه أحمد في مسنده (۱/٤٥۹)۔

**تشریح >** قراءة الفاتحة فقط في الركعتين الأخريين > مسئله دا ده.چه د ماسپخین، مازیگر او ماسخوتن په دوو آخری رکعتونو کښې او د ماښام په آخری یو رکعت کښې به صرف سورة فاتحه وائی.

**دلیله >** دلیل د ابوقتاده ﷺ حدیث دې.[أنه ﷺ كان يقرأ في الركعتين الأوليين من الظهر والعصر بفاتحة الكتاب وسورتين وفي الأخريين بفاتحة الكتاب] (صحيحين) یعنی نبی ﷺ به د ماسپخین ، او مازیگر په اولنو دوو رکعتونو کښې سورة فاتحه او دوه سورتونه لوستل.او په آخری دوو رکعتونو کښې به ئې سورة فاتحه لوستله.

**الروايتان في حكم الفاتحة في الأخريين >** ① صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی.چه دا د افضل بیان دې.یعنی په آخری دوو رکعتونو کښې سورة فاتحه وئیل افضل او مستحب دی.که په آخری دوو رکعتونوکښې فاتحه او تسبیح دواړه ترک کړی.نو څه حرج نشته.اوپه ده باندې سجده سهوه هم واجب نه ده.خو قرات افضل دې.هم دا صحیح روایت دې.

② حسن بن زیاد رحمه الله د امام اعظم رحمه الله نه یو روایت دا هم نقل کړې دې.چه په آخری دوو رکعتونو کښې د سورة فاتحه لوستل واجب دی.نوکه په هیره باندې پریخودے شی. سجده سهوه به لازمیږی.

**دلیله >** په آخری رکعتونو کښې قیام مقصود دې.نودا د ذکراو قرات داړو نه خالی کول مکروه دی.لکه څنګه چه رکوع او سجده د ذکر نه خالی کول مکروه دی.اود صحیح قول دلیل دا دې.چه قرات صرف په اولنی دوو رکعتونو کښې فرض دې.ان شاء الله ددې تفصیل به روستو راشی.﴿فَانْتَظِرُوْٓا اِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ﴾

### آخرئ قعده د اولنئ په شان ده

| فَاِذَا جَلَسَ فِي آخِرِ الصَّلَاةِ جَلَسَ کله چه کینی په آخر د مانځه کښې نو کینی به داسې كَمَا جَلَسَ فِي الْأُولٰى.څنګه چه په اولنئ قعده کښې ناست وو. |
|---|

**حل اللغة >** ①جلس جلوسا(ض): کیناستل ②اشق: ډیرمشقت کونکې ③تورك: په کوناټو باندې اډه لګول ④یمیل، مال میلاً (ض): مائل کیدل ]

**تشریح >** عدم التورك في القعود > فرمائی. چه په آخری قعده کښې به هم په هغه کیفیت باندې کینی.په کوم کیفیت چه په اولنئ قعده کښې ناست وو.

**دلائله >** ①او زمونږ دلیل هغه حدیث دې.کوم چه مونږ د وائل بن حجر اوحضرت عائشې رضي الله عنها نه نقل کړې دې.نو ددې ناستې د بعضې حالاتو بیان خو د وائل رضي الله عنه په حدیث کښې وو. او کیفیت یعنی ګسه پښه خوروِل او ښئ پښه اودرول د عائشې رضي الله عنها په حدیث کښې تیر شوی دی.② په دې کیفیت باندې ناسته په بدن باندې ګرانه وی .او په عبادت کښې چه په نفس باندې کوم کیفیت سخت وی.هغه افضل وی.نوځکه مونږ وایو.چه په دې طریقه ناسته غوره ده. علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی چه عدم تورك افضل دې د تورك نه ـ

### د تشهد حکم

| وَتَشَهَّدَاو تشهد دې وائی. وَصَلّٰى عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ.اوپه نبی ﷺ دې درود وائی |
|---|

**حل اللغة** ① تشهد، تشهد تشهداً: گواهی غوښتل

**تشریح** حكم التشهد والصلاة علي النبي ﷺ ① په آخری قعده کښې تشهد ونیل زمونږ په نیز واجب دې.اودرود شریف ونیل فرض نه دی.بلکه مسنون دې.

**دلیله** عَنْ أَبِي هَانِئٍ أَنَّ أَبَا عَلِيٍّ الْجَنْبِيَّ حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ فَضَالَةَ بْنَ عُبَيْدٍ يَقُولُ سَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يَدْعُو فِي صَلَاتِهِ لَمْ يُمَجِّدِ اللَّهَ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَجِلْتَ أَيُّهَا الْمُصَلِّي ثُمَّ عَلَّمَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يُصَلِّي فَمَجَّدَ اللَّهَ وَحَمِدَهُ وَصَلَّى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ادْعُ تُجَبْ وَسَلْ تُعْطَ [1]

**كلمات الصلاة** باقی پاتې شوه دا خبره چه نبی ﷺ به په کومه طریقه باندې درود ونیل.

① نو په دې باره کښې عیسی بن ابان رحمه الله په [كتاب الحج على أهل المدينة] کښې ذکر کړی دی.چه دامام نه د [صلاة النبی] په باره کښې تپوس اوشو.نو وے فرمائیل.چه دا دے وائی.[اللهم صل على محمد وعلى آل محمد كما صليت على إبراهيم وعلى آل إبراهيم إنك حميد مجيد] صاحب دکفایه لیکلی دی.چه دا درود د کعب بن عجره رضی الله عنه دحدیث موافق دې.

② حضرت علی ،ابن عباس او جابر رضی الله عنه نبی ﷺ ته عرض اوکړلو.چه مونږ خو په تاسو باندې د سلام اچولو طریقه پیژنو.خو درود به څنګه وایو.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.دا سې وائې.[اللهم صل على محمد وعلى آل محمد وبارك على محمد وعلى آل محمد وارحم على محمد وعلى آل محمد كما صليت وباركت وترحمت على إبراهيم وعلى آل إبراهيم في العالمين إنك حميد مجيد]

## د ماثوره دعاګانو وئیلو حکم

| وَدَعَا بِمَا شَاءَ مِمَّا يُشْبِهُ أَلْفَاظَ الْقُرْآنِ وَالْأَدْعِيَةِ الْمَأْثُورَةِ او دعا دې کوی.هغه چه خوښه ئې وی د هغه دعاګانو نه د قرآن د الفاظو او ماثوره دعاګانو سره مشابه وی |
|---|

**حل اللغة** ① دعا، دعاء (ن): رابلل، دعا غوښتل ② یشبه، شبه شبها (س): په شان کیدل ③ ادعیه واحد دعاء: دعاګول ④ ماثوره: مسنون

**تشریح** الأدعية المأثورة بعد الصلاة علي النبي ﷺ مسئله په آخری قعده کښې د صلاة علی النبی ﷺ نه پس په عربی ژبه کښې دے دا دعا اوکړی.

دعا دے کوی د قرآن پاك د الفاظو سره مشابه مثلاً ① ﴿رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِمَنْ دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ﴾ [النوح:۲۸]

② او ﴿رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ ﴿۱۰﴾﴾ الحشر:۱۰)

---

[1] ) اخرجه النسائي في السهو باب التمجيد والصلاة على النبي ﷺ رقم ۱۲۶۷)

③﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنفُسَنَا وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ الأعراف:۲۳

④﴿رَبَّنَا إِنَّكَ مَن تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُ ۖ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ۝ رَّبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي لِلْإِيمَانِ أَنْ آمِنُوا بِرَبِّكُمْ فَآمَنَّا ۚ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّئَاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ ۝ رَبَّنَا وَآتِنَا مَا وَعَدتَّنَا عَلَىٰ رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيعَادَ﴾

یا چه د هغه دعاګانو سره مشابه وی.کوم چه د نبی ﷺ نه منقول وی.

**الأدعية المأثورة**> اومسنون دعاګانې دی کوی ①مثلا دحضرت ابوبکر ؓ نه روایت دې.[أنه قال لرسول الله ﷺ علمني يا رسول الله دعاء أدعو به في صلاتي قال قل اللهم إني ظلمت نفسي ظلماً كثيراً وإنه لا يغفر الذنوب إلا أنت فاغفر لي مغفرة من عندك إنك أنت الغفور الرحيم]

②حضرت عبدالله بن مسعود ؓ به په دې الفاظو سره دعا کوله.[اللهم إني أسئلك من الخير كلها ماعلمت منه ومالم أعلم وأعوذبك من الشر كله ماعلمت منه ومالم أعلم] دلیل د ابن مسعود ؓ دا حدیث دې.یعنی [إذا كان آخر الصلاة دعا لنفسه بما شاء] بیا ددې حدیث په آخر کښې دی.چه نبی ﷺ ابن مسعود ؓ ته اوفرمائیل.[ثم اختر من الدعاء أعجبه وأطيبه إليك] په [أعجبه او أطيبه]کښې ضمیرمذکر د سنن روایت مطابق دې.

**دخلقو د خبرو سره د مشابه دعا ممانعت**

| وَلَا يَدْعُو بِمَا او په داسې الفاظو سره دے دعا نه کوی يُشْبِهُ كَلَامَ النَّاسِ کوم چه د خلقو د خبرو سره مشابه وی |
|---|

**حل اللغة** >① لایدعو، دعا دعاءً (ن): رابلل، دعا کول

**تشریح**> **لایدعو بما یشبه کلام الناس**>مسئله دا ده.چه په نبی ﷺ باندې د درود نه پس به په داسې الفاظو سره دعا نه کوی.کوم چه د خلقو د خبرو سره مشابه وی.ددې دپاره چه د مونځ هغه جزء کوم چه د خلقو د خبرو سره متصل وی.د فساد نه محفوظ شی.هم ددې وجې ونیلے شوی دی.چه مونځ ګذار ته پکار دی.چه ماثوره دعاګانے کوی.

**صورة عدم فساد الصلاة بالدعاء بما يشبه كلام الناس**>دا خبره دے ښکاره وی. که دتشهد نه پس په داسې الفاظو سره دعا اوکړی.چه هغه د خلقو د الفاظو سره مشابه وی.نو په دې سره ټول مونځ نه فاسدیږی.ځکه چه دتشهد نه پس که په حقیقت کښې کلام الناس موجود شی.نو مونځ نه فاسدیږی . نوکه دکلام الناس سره مشابه کلام وی.نو خامخا به مونځ نه فاسدیږی. دا حکم خو د صاحبینو ؒ په نیز ښکاره دې.او دغه شان د امام صاحب ؒ په نیز هم فاسد نه دې.ځکه چه کلام الناس د مونځ ګذار د طرفه خروج بصنعه دې.نو په دې سره به دده مونځ پوره شی.او هغه دعا کومه چه د تشهد نه پس د کلام الناس سره مشابه الفاظو سره شوې وی.هغه به د مانځه نه بهر وی دننه به نه وی.(عنایه)

**مايشبه كلام الناس؟**> اوس باقی پاتې شوه دا خبره چه کومه دعا د کلام الناس سره مشابهت لری .اوکومه دعا د کلام الناس سره مشابهت نه لری.نودے باره کښې فرمائی.چه د کومو څیزونو چه د بندګانو نه غوښتل محال نه وی.لکه [اللهم زوجني فلانة] نودا د کلام الناس سره مشابه دې.او د کوم چه د خلقو نه

غوښتل محال وی.لکه [اللهم اطعمنی] نودا د کلام الناس سره مشابه نه دې.اوکه مونځګذار اووائی.
[اللهم ارزقنی] اے الله ماته رزق راکړه.نودا د اول قسم څخه دې.یعنی د کلام الناس سره مشابه ده.هم دا صحیح ده.دلیل دا دې.چه دا کلام په خلقوکښې عام طورمستعمل دې.ونیلی شی.[رزق الأمیر الجیش] مالدارلښکرته رزق ورکړلو.

## ښی اوګس طرف ته سلام ګرځول

ثُمَّ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ بیا دے خپل ښی طرف ته سلام اوګرځوی وَيَقُولُ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ.بیا دے اووائی.[السلام علیکم ورحمة الله] وَيُسَلِّمُ عَنْ يَسَارِهِ مِثْلَ ذٰلِكَ او خپل ګس طرف ته ددې پشان سلام اوګرځوی

**حل اللغة** > ①یسلم، سلم تسلیما: سلام ګرځول ②یمین: ښي طرف ③ یسار: ګس طرف

**تشریح** > **سنية السلامين للخروج من الصلاة** > ددې عبارت حاصل دا دې چه د تشهد او نبی ﷺ باندې د درود او دعا ونیلو نه پس به دواړو طرفونو ته سلام ګرځوی.اول ښی طرف ته او بیا ګس طرف ته او د سلام الفاظ دا دی.[السلام علیکم ورحمة الله] یعنی په تاسو دے سلام وی.اودالله رحمت ،د جمهوروعالمانو ﷺ او لوئې صحابه کرامو حضرت عمر،او حضرت علی،او حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه هم دا مذهب دې.

**دلیله** > دلیل دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حدیث دې.[أن النبی ﷺ کان یسلم عن یمینه حتی یری بیاض خده الأیمن وعن یساره حتی یری بیاض خده الأیسر](۱)

**ماینویه عند السلامین؟** > ددې مسئلې مزیدوضاحت دا دې چه د اولنی سلام ګرځولو په وخت کښې به دهغه خلقو نیت کوی کوم چه دده ښی طرف ته وی.که سړی وی اوکه ښځې وی.او د حفاظت کونکو فرښتو نیت دے کوی.اودغه شان ګس طرف ته د سلام ګرځولو په وخت کښې دے دهغوی نیت کوی.خوك چه دده ګس طرف ته وی.

**دلیله** > دلیل دا دې.چه ددې اعمالو دارومدار په نیت دې.لکه څنګه چه په حدیث کښې دی.

**نية النساء في العهد الحاضر** > صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.زمونږ په زمانه کښې به د ښځو نیت نه کوی.ځکه چه په دے زمانه کښې د ښځو د جماعت مانځه ته حاضریدل په اجماع د متاخرینو سره متروك دی.

**الروايتان في نية غير المشاركين في الجماعة** > ①او کوم مسلمانان چه په مانځه کښې شریك نه وی.د هغوی نیت به هم نه کوی.هم دا صحیح قول دې.
② حاکم شهید رحمه الله ونیلی دی.چه د ټولو سړو او ښځو نیت دے کوی.که په مانځه کښې شریك وی

---

(۱) أخرجه النسائي في التطبيق باب ۸۳، والسهو باب ۶۸، ۷۰، ۷۱، من المجتبى وفي السنن الكبرى (۱/۳۹۴) ورواه أبوداود في الصلاة باب ۱۸۴، رقم الحديث ۹۹۶، وابن ماجه في الإقامة باب ۲۸، والدارمي في الصلاة باب ۸۷، وأحمد في المسند (۱/۱۷۲، ۱۸۱، ۳۸۶، ۳۹۰، ۳۹۴، ۴۰۶، ۴۰۸، ۴۰۹، ۴۱۴، ۴۲۷، ۴۴۴، ۴۴۸، ۴۶۵) والترمذي في الصلاة باب ۱۰۵، رقم الحديث ۲۹۵، والبيهقي في السنن الكبرى (۲/۲۵۱) رقم الحديث ۲۹۷۴)۔

اوکه نه وي.چه د تشهد سلام يعنى [السلام علينا وعلى عباد الله الصالحين] سره موافق شي.
د قول صحيح دليل دا دي.چه سلام تحيه دخطاب ده.او خطاب د حاضرينو حصه ده.نوچه کوم خلق په مانځه کښې شريك نه وي.هغوی به په سلام کښې شامل نه وي.

**ينوي الإمام في اليمين والشمال** ⟵مسئله داده..چه د سلام ګرځولو په وخت کښې د مقتدی دپاره ضروري دي.چه دے د خپل امام نيت اوکړي.امام که ښي طرف ته وي.نو ښي طرف ته په سلام ګرځولوکښې به ئې نيت کوي.اوکه ګس طرف ته وي.نو ددئ طرف په سلام کښې به ئې نيت کوي.

**المذهبان في نية المحاذي للإمام** ⟵ ①او که مقتدي بيخی د امام نه شاه ته وو.يعنی برابر وو.نو په دې صورت کښې د ابويوسف رحمه الله مذهب دا دې.چه مقتدی به ښي طرف ته په سلام ګرځولو کښې د امام نيت کوي.

**دليله** ⟵امام ابويوسف رحمه الله ښی طرف ته ترجيح ورکړې ده.ځکه چه په شريعت کښې تيامن معتبر دي.

② دامام محمد رحمه الله مذهب دا دي.چه په د دواړو طرفونو په سلام کښې به د امام نيت کوي. هم دا يو روايت دے د ابوحنيفه رحمه الله نه.

**دليله** ⟵اودامام محمد رحمه الله دليل دا دي.چه محاذي(مخامخ) د دواړو طرفونو حصه دار دي.نو ځکه د دواړو طرفونو په سلام کښې د امام نيت اوکړې شي.نو غوره به وي.

**الجواب عن دليل أبي يوسف رحمه الله** ⟵دويمه خبره دا ده.چه د تعارض په وخت کښې که جمع ممکن وي. نو ترجيح طرف ته به رجوع نشي کولې. ددې وجې هم امام محمد رحمه الله فرمائيلی دي.چه دواړو طرفونو په سلام کښې به د امام د سلام نيت کوي.

**ما ينويه المنفرد؟** ⟵ اومنفرد به د حفاظت کونکو فرشتو نيت کوي. نه بل څوك ځکه چه دمنفرد سره د حفاظت کونکو فرشتو نه سوا بل څوك نه وي.

**الأقوال الثلاثة فيمن ينويه الإمام في سلاميه** ⟵مسئله:امام به په خپلو دواړو سلامونو کښې د حفاظت کونکو فرشتو او د دواړه طرف مقتديانو نيت کوي.هم دا صحيح قول دې.

② بعضو ونيلی دی.چه امام د نيت محتاج نه دې.

③او بعضو ونيلی دی.چه په يو سلام کښې نيت کول کافي دی.

**لاينوي العدد المعين في الملائكة** ⟵ صاحب د هدايه رحمه الله فرمائي.چه په فرشتو کښې به د معين عدد نيت نه کوي.بلکه مطلقاً د فرشتو نيت به کوي ځکه چه دحفاظت کونکو فرشتو په شمار کښې آثار او احاديث مختلف وارد شوی دی.

**الخروج من الصلاة بلفظ السلام** ⟵ ① دا خبره دے ښکاره وي.چه زمونږ په نيز د سالم لفظ ادا کول واجب دی. فرض نه دی.

**دليله** ⟵ دليل دا دې.چه نبی ﷺ کله عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته د تشهد تعليم ورکولو.نو نبی ﷺ ابن مسعود رضي الله عنه ته فرمائيلی وو. [إذا قلت هذا أو فعلت هذا فقد تمت صلاتك فإن شئت أن تقوم فقم وإن شئت أن تقعد فاقعد] ددې حديث نه په دې طريقه استدلال کيږي.چه د الله تعالى په حقه نبی ﷺ تشهد سره د مونځ پوره کيدو حکم لګولی دې.اوده ته ئې د کيناستو او اودريدو په مينځ کښې اختيار ورکړې دې.او اختيار ورکول د څيز د فرضيت يا وجوب سره منافی وي.نو ثابته شوه.چه په مقدار د تشهد نه پس

سلام وغیره بل هیڅ څیز فرض نه دي.

**الإعتراض**> خو که څوك اعتراض اوکړي.چه اختیار ورکول خو د وجوب سره هم منافي دی.نو پکارده چه سلام ګرځول واجب هم نه وی.حالانکه احناف عالمانو رحمهم الله دتسلیم دوجوب قائلین دی.

**الجواب**> نو مونږ وجوب احتیاطاً دهغه حدیث د وجې ثابت کړې دې.کوم چه امام شافعی رحمه الله روایت کړې دې.یعنی [تحریمها التکبیرالحدیث] او دا حدیث خبرواحد دې.او د خبر واحد نه وجوب ثابتیږی.فرضیت نه ثابتیږی.

**په قرات کښې د جهر حکم**

| وَيَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ او قرآت باندې به جهر کوی. فِي الْفَجْرِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ د صبا او د مابنام اود ماسخوتن په اولنو دوو رکعتونو کښې إِنْ كَانَ إِمَامًا که امام وی وَيُخْفِي الْقِرَاءَةَ فِيمَا بَعْدَ الْأُولَيَيْنِ.او د اولنو رکعتونو نه روستو چه کوم رکعتونه وی په هغې کښې به قراءت په پټه لولی |
|---|

**حل اللغة**> ①یجهر، جهر جهراً (ف): ښکاره کیدل ②اولیین: اولنی دوه ③اخرین: آخرنی دوه رکعتونه

**تشریح**> امام قدوری رحمه الله چه کله دمونځ د صفت ددې کیفیت او ددې د ارکانو، فرائضو، واجباتو اوددې دسنتونه فارغ شو.نواوس په دې مقام کښې دقرات احکام ذکرکوی.

**وجوب الجهر في الجهرية والسر في السرية**> امام قدوری رحمه الله فرمائی.مونځ ګذار که امام وی.نو د صبا په دوو رکعتونو او دمابنام او ماسخوتن په اولنودوو رکعتونو کښې په قرات باندې جهر کول واجب دی.

**دلائله**> ① وما رواه أنس رضي الله عنه أن جبريل عليه السلام أتى النبي صلى الله عليه وسلم وفيه ثم أمهل حتى وجبت الشمس ،فصلى بهم ثلاث ركعات يجهرفي ركعتين بالقراءة ولا يجهرفي الثالثة ،ثم أمهله حتى إذا ذهب ثلث الليل صلى بهم أربع ركعات يجهرفي الأوليين بالقراءة ولا يجهرفي الأخريين بها الحديث(1)

② حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې.[أنه قال في كل صلاة يقرأ فما أسمعنا رسول الله صلى الله عليه وسلم أسمعناكم وما أخفى علينا أخفينا عليكم] یعنی هر مونځ کښې چه د قرآن قرات کولې شی.چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په کوم کښې مونږ ته اورول کړی دی.نو مونږ تاسو ته اورول کوو.او چه په کومو کښې ئې په مونږ اخفاء کړې ده.نو مونږ ستاسو نه اخفاء کوو.

**توضیح الدلیل**> حاصل دا چه په کومو مونځونو کښې رسول الله صلى الله عليه وسلم جهر کړی وی.اومونږ ته ئې اورول کړی دی.په هغې کښې مونږ جهر کړې دې.او تاسو ته مو اورول کړی دی.او په کومو مونځونو کښې چه نبی صلى الله عليه وسلم اخفاء کړې وه.نو په هغې کښې مونږ هم اخفاء کوو.نو معلومه شوه.چه په جهری مونځونو کښې جهر او په سری موځونو کښې اخفاء سنت سره ثابت ده.او د امت اجماع هم دلیل دې.ځکه چه د

(1) روه الدارقطنی (۱/۲۶۰) وکذا روی الزهری مرسلاً ما فيه الإسرار في الركعتين الأخريين من الظهروالعصر والمغرب والعشاء رواه أبوداود في مراسيله (ص،۱۲٤) رقم الحديث ٤٠) والحسن مرسلاً وذكرهما عبدالحق في ،،احكامه،، من جهة أبي داود وقال إن مرسل الحسن أصح)۔

نبی ﷺ د زمانې نه واخله تر اوسه پورې په جهری مونځونو کښې جهر او سری مونځونو کښې په اخفاء باندې د ټول امت اجماع ده.

| وَإِنْ كَانَ مُنْفَرِدًا.اوكه خانله مونځ كونكې وى فَهُوَ مُخَيَّرٌ.نو هغه ته اختيار دې إِنْ شَاءَ جَهَرَ وَأَسْمَعَ نَفْسَهُ كه جهر كوى.او خپل خان ته نې اوروى. وَإِنْ شَاءَ خَافَتَ..اوكه غواړى نو اخفاء دے كوى |
|---|

**تشریح >** خيار المنفرد في الجهر والإخفاء< اوكه مونځگذار منفرد وى.نوده ته اختيار دې.كه خوښه نې وى.نو جهر دے اوكړى.اوخپل خان ته دے واوروى. اوكه خوښه نې وى.نو اخفاء دے كوى.

**دليله >** په جهر كښې ورته اختيارځكه دې چه دے دخپل خان په حق كښې امام دې.اود اخفاء اختيار ورته ځكه دې چه دده سره څوك داسې كس نشته.چه دے ورته اورول اوكړى.باقى پاتې شو الله تعالى نو هغه هر پټ او ښكاره اورى.حاصل دا چه منفرد باندې نه جهر واجب دے اونه اخفاء،البته جهر افضل دې.ددې دپاره چه د منفرد مونځ د جماعت په هيئت شى

**جهرالقراءة في الفجر >** عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ انْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي طَائِفَةٍ مِنْ أَصْحَابِهِ عَامِدِينَ إِلَى سُوقِ عُكَاظٍ وَقَدْ حِيلَ بَيْنَ الشَّيَاطِينِ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ وَأُرْسِلَتْ عَلَيْهِمُ الشُّهُبُ فَرَجَعَتِ الشَّيَاطِينُ إِلَى قَوْمِهِمْ فَقَالُوا مَا لَكُمْ فَقَالُوا حِيلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ وَأُرْسِلَتْ عَلَيْنَا الشُّهُبُ قَالُوا مَا حَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ إِلَّا شَيْءٌ حَدَثَ فَاضْرِبُوا مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا فَانْظُرُوا مَا هَذَا الَّذِي حَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ فَانْصَرَفَ أُولَئِكَ الَّذِينَ تَوَجَّهُوا نَحْوَ تِهَامَةَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِنَخْلَةَ عَامِدِينَ إِلَى سُوقِ عُكَاظٍ وَهُوَ يُصَلِّي بِأَصْحَابِهِ صَلَاةَ الْفَجْرِ فَلَمَّا سَمِعُوا الْقُرْآنَ اسْتَمَعُوا لَهُ فَقَالُوا هَذَا وَاللهِ الَّذِي حَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ خَبَرِ السَّمَاءِ فَهُنَالِكَ حِينَ رَجَعُوا إِلَى قَوْمِهِمْ وَقَالُوا يَا قَوْمَنَا إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ وَلَنْ نُشْرِكَ بِرَبِّنَا أَحَدًا فَأَنْزَلَ اللهُ عَلَى نَبِيِّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِنَ الْجِنِّ وَإِنَّمَا أُوحِيَ إِلَيْهِ قَوْلُ الْجِنِّ] [1]

**جهرالقراءة في المغرب >** عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّورِ [2]

**جهرالقراءة في العشاء >** عَنْ عَدِيٍّ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي سَفَرٍ فَقَرَأَ فِي الْعِشَاءِ فِي إِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ بِالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ [3]

## په پټه د قراءت لوستلو مواقع

| وَيُخْفِي الْإِمَامُ الْقِرَاءَةَ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ اوامام به په ماسپخين او مازيگر كښې قراءت په پټه وائى |
|---|

**حل اللغة >** ①يخفي، اخفى اخفاء: پټول

[1] اخرجه البخاري في الأذان، باب جهرالإمام بصلاة الفجررقم ۷۳۱)
[2] اخرجه البخاري في الأذان باب الجهر في المغرب رقم ۷۲۳)
[3] اخرجه البخاري في الأذان باب الجهر في العشاء رقم ۷۲۵)

**تشريح**> **وجوب الإخفاء في الظهر والعصر**>د ماسپخين او مازيګر په مانځه کښې په امام باندې اخفاء يعنى په پټه قرآت کول واجب دى.نوهرکله چه د جماعت په حالت کښې کوم چه موجب د جهر دې.اخفاء کول واجب دى.نو په منفرد باندې به په درجه اولى په ماسپخين اومازيګر کښې اخفاء واجب وى.

**دليله**>دليل د نبى ﷺ قول [صلاة النهار عجماء] (۲) دې.يعنى د ورځې مونځونو کښې داسې قرات نشته.چه واوريدے شى.

**عدم صحة تفسير إبن عباس** رضي الله عنهما >حاصل دا چه د ورځې په مونځونوکښې قرات خو شته.خو په پټه دې.په جهر نه دې.حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ددې حديث تفسير داسې کړې دې.[لاقراءة في هاتين الصلاتين] يعنى د ورځې په دې دوو مونځونو کښې قرات نشته.نه په جهر او نه په پټه خو د ابن عباس رضي الله عنهما دا تفسير صحيح نه دې.

**دليل القراءة في الظهر والعصر**>اود عدم صحت دليل دا دې.چه يو ځل خباب بن ارت رضي الله عنه نه تپوس اوشو.[بم عرفتم قراءة رسول الله ﷺ في صلاة الظهر والعصر قال باضطراب لحيته] يعنى تاسو څنګه اوپيژندل.چه نبى ﷺ د ماسپخين او مازيګر په مانځه کښې قرات کولو.نو خباب بن ارت رضي الله عنه اوفرمائيل. چه د نبى ﷺ د ږيرے مبارکې د ويختو په خوزيدو باندې.

**دليل القراءة في الظهر**>اودحضرت ابوقتاده رضي الله عنه نه روايت دې. [قال كان رسول الله ﷺ يسمعنا الآية والآيتين في الظهر أحياناً] فرمائى.چه رسول الله ﷺ به کله کله مونږ ته د ماسپخين په مانځه کښې يو يا دوه آياتونه اورول.نو معلومه شوه.چه د ورځې په مونځونو کښې قرات په پټه دې.

**الجهر في الجمعة والعيدين**>مسئله:د جمعې او اخترونو په مونځ کښې هم په امام باندې جهر واجب دې.

**دليله**>دليل احاديث مشهوره دى.د بخارى نه سوا د محدثينو يو جماعت روايت کړې دې. [أنه ﷺ كان يقرأ في العيدين ويوم الجمعة ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى ۝﴾ و﴿هَلْ أَتٰىكَ حَدِيْثُ الْغَاشِيَةِ ۝﴾] او د مسلم په روايت کښې دى. [عن أبي واقد الليثي سألني عمر ما كان يقرأ به رسول الله ﷺ في الأضحى والفطر فقال كان يقرأ ب﴿قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ ۝﴾ و﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ﴾] يعنى د ابوواقد رضي الله عنه نه مروى دى.چه زما نه عمر رضي الله عنه تپوس اوکړلو.چه نبى ﷺ به د لوئې او ورکوټى اخترونو په مونځونو کښې څه وئيل؟ نودوى اوفرمائيل.سورة ﴿قٓ﴾ او﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ﴾ ددې رواياتو نه معلومه شوه.چه نبى ﷺ به په جمعه او اخترونو کښې جهر کولو.

**كيفية الجهر في نوافل الليل والنهار**> د ورځو په نفلو کښې اخفاء واجب ده.او د شپې په نوافلو کښې اختيار دې.که جهر کوى او که اخفاء

---

(۲) قال الزيلعي (نصب الراية ،۲/۲) غريب ورواه عبدالرزاق في ،،مصنفه ،، من قول مجاهد وأبي عبيدة فقال أخبرنا محمد عن عبدالكريم الجزري ،قا ل:سمعت أبا عبيدة يقول :صلاة النهار عجماء ،، إنتهى أخبرنا إبن جريج ،قال قال مجاهد صلاة النهار عجماء)

**دلائله** ﴿ ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ قَالَ كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ يَرْفَعُ طَوْرًا وَيَخْفِضُ طَوْرًا (۱)

② دویم دلیل دا دې چه نفلی مونځ کونکې قیاس شوې دې.په مفترض منفرد باندې یعنی خانله فرض مونځ کونکی باندې ،یعنی لکه څنګه چه په فرضو کښې د منفرد حکم دې.چه په ورځ کښې په فرائضو باندې وجوباً اخفاء کوی.اوپه شپه کښې ده ته اختیار دې.که غواړی نو جهر دے کوی او که غواړی نو اخفاء دے کوی.

**وجه القياس** ﴿او ددې قیاس وجه دا ده.چه نفل د فرضو تکمیل دې.نو نفل د فرضو تابع شو.او د شپې په مونځونو کښې منفرد ته اختیار وی.که جهر کوی او که اخفاء،دغه شان د شپې په.نفلو کښې هم اختیار دې.اوچونکه د ورځې په فرضوکښې اخفاء متعین ده.نو د ورځې په نوافلو کښې به هم اخفاء متعین وی.

**كيفية القراءة في القضاء حسب الأداء** ﴿ **مسئله** ﴿ که یو کس نه د ماسخوتن یا ماښام یا صبا مونځ قضا شو.اوبیا د نمرراختلو نه پس ددې قضا راوړی.نو ددې دوه صورتونه دی.یا خو به په جماعت سره قضا راوړی.یا به خانله قضا راوړی.که په جماعت سره قضا راوی.نو جهر به کوی.

**دليله** ﴿اودلیل دا دې.چه د لیلة التعریس په موقع چه کله نبی ﷺ د صبا د مونځ په جماعت سره قضاء راوړله .نو نبی ﷺ جهر کړې وو. (۲)

**واقعة ليلة التعريس** ﴿مختصر واقعه دا ده.چه دجهاد د سفر نه په واپسئ باندې د صحابه، په درخواست باندې نبی ﷺ د لښکر سره په یوځائے کښې پړاؤ اوکړلو.اوحضرت بلال ﷺ د ویخ پاتې کیدو ذمه واری واخستله .خو اوده شو.او په هغه وخت کښې رابیدار شو.چه په دوی باندې نمر اولګیدلو.نو نبی ﷺ د هغه ځائې نه کوچ حکم اوکړلو.او وړاندې لاړل.کله چه نمر په نیزه اوچت شو.نونبی ﷺ راکوز شو.اودس ئې اوکړلو.او موذن ته ئې د ذان حکم اوکړلو.بیا ئې دوه رکعته اوکړل.یعنی د صبا سنت،بیا دمانځه دپاره اقامت اوشو.بیا د صبا مونځ اوشو.لکه څنګه چه به ئې روزانه کولو.او ښکاره ده.چه نبی ﷺ به د صبا په مانځه کښې په قرات باندې جهر کولو.نو ثابته شوه.چه نبی ﷺ به دليلة التعریس په موقع د صبا د مونځ قضاء په قرات بالجهر سره راوړے وی.

---

(۱) أخرجه ابوداود في الصلاة باب رفع الصوت بالقراءة في الليل رقم ۱۳۲۱ رجاله ثقات).

(۲) رواه مسلم في المساجد ومواضع الصلاة رقم الحديث ۳۱۱) ومالك في الموطاء كتاب وقوت ا لصلاة باب النوم عن الصلاة رقم الحديث ۲۶ والبيهقي في السنن الكبرى (۵۹۳/۱) موصولاً عن سعيد بن المسيب عن أبي هريرة).

**كيفية قراءة قضاء المنفرد** اوكه ذكر شوي قضا مونځ خانله كوي.نو اخفاء واجب ده.او ده ته په جهر او اخفاء كښې اختيار نشته.هم دا قول صحيح دی.

**دليله** دعدم تخيير دليل دا دی.چه قضا د ادا موافق وي.او د شپې د موځونو په ادا كولو كښې منفرد ته اختيار دی.كه جهر كوي.اوكه اخفاء.

**القاعدة في الجهر والإخفاء** حاصل دا دی.چه جهر او اخفاء په شرعی توفيق باندې موقوف دی.اومونږ په شريعت كښې جهر په دوو طريقو باندې بيا موندے دی.

① يو دجهر وجوب دا په هغه وخت كښې چه په جماعت سره جهري مونځ كوي.كه ادا وي اوكه قضاء وي.

② دويم جهر مخير:دا په هغه وخت كښې دی.كله چه منفرد په وخت كښې دننه جهري مونځ كوي.او دلته چه منفرد د نمر راختو نه پس جهري مونځ كوي.نو په دواړو خبرو كښې يوه خبره هم نشته.يعنى نه په جماعت سره مونځ شته.اونه وخت،نو ځكه په دې صورت كښې نه جهر واجب دی.اونه جهر مخير،بلكه اخفاء واجب ده.

## د وترو درې ركعتونه په يو سلام پوره كول

| وَالْوِتْرُ ثَلَاثُ رَكَعَاتٍ اووتردرې ركعتونه دی لَا يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِسَلَامٍ.په دې كښې به په سلام سره جدائي نه كوي |
|---|

**حل اللغة** ①لايفصل، فصل فصلاً (ض): جدا كول

**تشريح** **الأقوال الثلاثة في ركعات الوتر وسلامه** د وترو د ركعتونو په شمار كښې اختلاف دی.او په دې خبره كښې هم اختلاف دی.چه وتر به په يو سلام سره كوي.اوكه په دوو سلامنو سره، ① د احنافو عالمانو ﷭ په نيز د وترو درے ركعتونه په يو سلام سره واجب دی.په مينځ كښې به په سلام ګرځولو سره فصل نه كوي.

**دلائله** زمونږ دلائل دا دی. ①د حضرت عائشه ﷞ نه نقل دی.[أن النبي ﷺ كان يوتر بثلاث ركعات]

② حسن بصری ﷫ په يو سلام د وترو د درې ركعتونو اجماع نقل كړې ده.دحسن بصری نه مروی دی.[قال أجمع المسلمون على أن الوتر ثلاث لايسلم إلا في آخرهن] يعنى فرمائى.چه مسلمانانو په دې خبره باندې اجماع كړې ده.چه وتر درې ركعتونه دی.صرف ددې په آخر كښې به سلام ګرځوی. ③ [عن عائشة ﷞ قال كان رسول الله ﷺ لا يسلم في الركعتين الأوليين من الوتر] يعنى حضرت عائشه ﷞ فرمائى.چه نبی ﷺ به د وترو په اولنو دوو ركعتونو كښې سلام نه ګرځولو.

④د ابن مسعود ﷛ نه نقل دی.[وتر الليل ثلاث كوتر النهار] يعنى د شپې وتر درې ركعتونه دی. لكه د ورځ وتر چه درې ركعته دی.د ورځې د وترو نه مراد د ماښام مونځ دی.(فتح القدير)

⑤ابوخالد بيان كړې دی.چه ما د جليل القدر تابعی ابوالعاليه ﷫ نه د وترو په باره كښې تپوس اوكړلو.نو وے فرمائيل.[علمنا أصحاب رسول الله ﷺ أن الوتر مثل صلاة المغرب هذا وتر الليل وهذا وتر النهار] يعنى مونږ ته د نبی ﷺ صحابو﷢ تعليم راكړې دی.چه وتر د ماښام د مونځ پشان دی.دا د شپې وتر دی.او دا يعنى ماښام د ورځې وتر دی.دے نه هم معلومه شوه.چه د ماښام پشان وتر هم درې ركعتونه

دی.

⑥عن عائشة ﷺ أن النبي ﷺ كان يوتر بثلاث يقرأ في الركعة الأولى ، ، سبح اسم ربك ، ، وفي الثانية قل يا ايها الكافرون وفي الثالثة قل هو الله أحد، والمعوذتين] يعنی نبی ﷺ به دري ركعته وتر كول.په اولنی ركعت كښې به ئې ﴿سبح اسم ربك﴾ او په دويم رکعت کښې به ئې ﴿قل يا ايها الكافرون﴾ او په دريم ركعت كښې به ئې ﴿قل هو الله أحد﴾ او معوذتين وئيل.

⑦ مشهور اثر دي. [نهى رسول الله ﷺ عن البتيراء] يعنی نبی ﷺ د صلاة بتيراء يعنی د يو ركعت كولو نه منع فرمائيلې ده.

**په وترو کښې د قنوت وئيلو محل**

| وَيَقْنُتُ فِي الثَّالِثَةِ قَبْلَ الرُّكُوعِ اوپه دريم ركعت كښې د ركوع نه وړاندې دے قنوت وائی. |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①يقنت، قنت قنوتا (ن): اطاعت كول، په مانځه كښې اودريدل، دُ الله تعالى په وړاندې عاجزی کول، دعائې قنوت لوستل ]

**تشريح** ﴿ **محل قنوت الوتر** ﴿ په دې عبارت كښې د دعاء قنوت محل ذكر دې. زمونږ په نيز د دعاء قنوت محل د ركوع نه وړاندې دې.

**دلائله** ﴿ ①دليل د ابی بن كعب ﷺ روايت دې.[أن رسول الله ﷺ كان يوتر فيقنت قبل الركوع] يعنی نبی ﷺ به وتر كولو.نو قنوت به ئې د ركوع نه وړاندې وئيل.كوم الفاظ چه صاحب د ، ،هدايه، ، بيان كړی دی.هغه د عبد الله بن مسعود ﷺ نه نقل دی.

②[عن عاصم الأحول سألت أنساً عن القنوت في الصلاة قال نعم فقلت أكان قبل الركوع أو بعده قال قبله قلت فإن فلاناً أخبرني عنك أنك قلت بعده قال كذب إنما قنت رسول الله ﷺ بعد الركوع شهراً] يعنی د عاصم احول نه نقل دی.چه ما د حضرت انس ﷺ نه په مانځه كښې د قنوت په باره كښې تپوس اوكړلو.نو هغوی اوفرمائيل.آو ما تپوس اوكړلو.چه د ركوع نه وړاندې كه پس؟ وے فرمائيل.د ركوع نه وړاندې ،ما اوئي.چه فلانی ماته ستاسو د طرفه دا خبر راكړې دې.چه تاسو وائې.چه د ركوع نه پس قنوت وائې انس ﷺ اوفرمائيل.چه هغه كس دروغ وائی.نبی ﷺ صرف يو مياشت د ركوع نه پس قنوت وئيلے دې.

**په ټول كال كښې د قنوت وئيلو حكم**

| فِي جَمِيعِ السَّنَةِ په پوره كال كښې به قنوت وائی. |
|---|

**تشريح** ﴿ **مدة القنوت** ﴿ ① په وترو كښې ټول كال دعائې قنوت وئيل واجب دی.

**دليله** ﴿ دليل دا حديث دې. چه نبی ﷺ حسن بن علی ﷺ ته د دعاء قنوت تعليم وركړلو.او بيا ئے ورته اوفرمائيل.[اجعل هذا في وترك] يعنی دا دعاء په خپل وترو كښې داخله كړه.په دې كښې د رمضان او غير رمضان څه تفصيل نشته.نو پوره كال دعاء قنوت وئيل ثابت شو.

**په وترو كښې د فاتحه او سورت د لوستلو حكم**

| وَيَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ مِنَ الْوِتْرِ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ او د وترو په هر ركعت كښې به فاتحه وَسُورَةً مَعَهَا او يو سورت به د دې سره لولی |
|---|

**حل اللغة** ⟨ ① یقرأ ،قرأ قراءة (ف): لوستل ② تیسر تیسرا :آسانیدل ]

**تشریح** ⟨ **وجوب الفاتحة وضم السورة في الوتر** ⟨ د وترو په هر رکعت کښې د سور فاتحه او بل یو سورت وئیل په اتفاق سره واجب دی.

**دلیله** ⟨ د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز وتر اګرچه واجب دی.خو چونکه د وترو د وجوب ثبوت په سنت سره دې. او سنت مفید د یقین نه دی.نو ځکه د دې په وجوب کښې یوقسم شك پاتې شو.نو د احتیاط د وجې امام ابوحنیفه رحمه الله په هر رکعت کښې قرات واجب اوګرځولو.لکه څنګه چه په سنتو او نوافلو کښې په هر رکعت کښې قرات واجب دې.

## د قنوت لوستلو طریقه

| فَإِنْ أَرَادَ أَنْ يَقْنُتَ او که قنوت وئیل غواړی كَبَّرَ نو تکبیر دے اووائی وَرَفَعَ يَدَيْهِ ثُمَّ قَنَتَ. اولاسونه به پورته کړی اوبیا دې قنوت اووائی |
|---|

**حل اللغة** ⟨ ① اراد، اراد ارادة: اراده کول ② کبر، کبر تکبیرا: لوئی بیانول، تکبیر وئیل ③ رفع، رفع رفعا (ف) : اوچتول

**تشریح** ⟨ **تکبیر القنوت** ⟨ مسئله دا ده.چه په دریم رکعت کښې د سورة فاتحه د قرات او ضم د سورت نه پس چه کله د دعاء قنوت وئیلو اراده اوکړی.نو خپل دواړه لاسونه به د غوږونو پورې پورته کړی.او تکبیر دے اووائی.بیا دے دعائ قنوت اووائی.-تکبیر وئیل واجب دی.

**دلیله** ⟨ دلیل دا دې.چه د مصلی حالت بدل شو.په دې طریقه چه اول په حقیقی قرات کښې مشغول وو.او اوس په شبیه قرات یعنی دعاء قنوت کښې مشغولیږی.او چونکه تکبیرات مشروع شوی دی.د حالت تبدیلی په وخت کښې نو ځکه په دې موقع هم تکبیر وئیل واجب دې.

**الإعتراض علی الدلیل** ⟨ خو په دې دلیل باندې بعضې حضراتو رحمهم الله اعتراض کړې دې.هغه دا چه تکبیر په هغه وخت کښې مشروع شوې دې.کله چه په افعالو کښې دننه تبدیلی واقع شی.یعنی د یو فعل نه بل فعل ته د منتقل کیدو په وخت کښې ،لکه د ټیټیدو په وخت یا د اودریدو په وخت تکبیر مشروع دې.په اقوالو کښې دننه د تبدیلئ په وخت تکبیر میشروع نه دې.تاسو غور اوکړئ.چه مصلی کله ثناء اووائی.او قرات شروع کوی.نو په هغه وخت کښې تکبیر نشته.حالانکه د ثناء نه پس د قرات طرف ته حالت بدلیږی.نو معلومه شوه.چه د اختلاف احوال او اقوال په وخت کښې تکبیر مشروع نه دې.بلکه د اختلاف افعال په وخت کښې مشروع دې.

**الجواب عن الإعتراض** ⟨ د دې جواب دا دې.چه په دې حالت کښې لاسونه پورته کول د نبی ﷺ د قول [لاترفع الأیدی إلا فی سبع مواطن] (۱) نه ثابت دی.او په مانځه کښې دننه بغیر دتکبیر نه د لاسونو اوچتولو غیر مشروع دی.لکه تکبیر د افتتاح او تکبیرات د اخترونو،نو په دې حدیث سره تکبیر وئیل هم ثابت شو.

## د وترو نه سوا د قنوت وئیلو حکم

| وَلَا يَقْنُتُ فِي صَلَاةٍ غَيْرِهَا او د وترو نه سوا به په بل مونځ کښې قنوت نه وائی |
|---|

---

(۱) غربه الزیعلی رحمه الله بهذا اللفظ و نقل الهیثمی بمعناه عن ابن عباس وعزاه إلی معجم الطبرانی مجمع الزوائد (۱۰۲/۲)۔

**حل اللغة** ﴿① شهر: میاشت ②ترکه، ترك تركا (ن): پریخودل ]

**تشریح** ﴿ **عدم القنوت في غیرالوتر** ﴾ د وترو نه سوا په بل مونځ کښې قنوت نشته.

**دلائله** ﴿ ①د احنافو رحمهم الله دلیل د ابن مسعود رضی الله عنه حدیث دي. [أن النبي ﷺ قنت في صلاة الفجر شهرا يدعو على حي من أحياء العرب] نبی ﷺ یوه میاشت د صبا په مانځه کښې قنوت وئیل.د عربو د یوے قبیلے دپاره ني خیرې کولې.

② په خپله د حضرت انس رضی الله عنه نه نقل دی.چه [قال قنت رسول الله ﷺ في صلاة الفجر شهرا أو قال أربعين يوما على أهل ذكوان وعصية حين قتلوا القراء وهم سبعون رجلا أو ثمانون] یعنی نبی ﷺ یو میاشت یا څلویښت ورځې قنوت وئیلے وو.مقصد هغه خلقو ته خیرې کول وو.چا چه اویا یا اتیا قاریان شهیدان کړی وو.ددې حدیث نه هم معلومه شو.چه نبی ﷺ د صبا په مانځه کښې د څو ورځو نه علاوه دعاء قنوت نه دے وئیلې.

③ابوعثمان نهدی رحمه الله فرمائی [صليت خلف أبي بكر رضی الله عنه سنتين وصليت خلف عمر رضی الله عنه كذلك فلم أر واحدا منهما يقنت في صلاة الفجر] یعنی ما په ابوبکر او عمر رضی الله عنهما پسې دوه کاله مونځ کړې دي.خو په دوی کښې مے څوك هم د صبا په مانځه کښې د دعاء قنوت په وئیل نه دے لیدلې.

**د قراءت دپاره د سورت مقرر کولو حکم**

| وَلَيْسَ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلٰوةِ قِرَاءَةُ سُوْرَةٍ بِعَيْنِهَا په هیڅ مونځ کښې د مقرر سورت لوستل نشته.لَا يَجُوْزُ بِغَيْرِهَا چه د هغې نه سوا بل جائز نه وی.وَيُكْرَهُ او مکروه دی أَنْ يَّتَّخِذَ قِرَاءَةَ سُوْرَةٍ بِعَيْنِهَا لِلصَّلٰوةِ چه یو معین سورة د یو مانځه د قراءت دپاره مقرر کړی لَا يَقْرَأُ فِيْهَا غَيْرَهَا چه د هغې نه سوا پکښې بل نه لولی |
|---|

**حل اللغة** ﴿①لایجوز، جاز جوازا(ن): جائزکیدل

**تشریح** ﴿ **تعیین سورة أو آیة لصلاة** ﴾مسئله دا ده.چه په یو مونځ کښې داسې په تعین سره یو معین سورت وئیل چه د هغې نه سوا په بل باندې مونځ جائز نه وی.ټیك نه ده.

**دلیله** ﴾دلیل دالله تعالی دا قول ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ﴾ اطلاق دي.اود اطلاق تقاضا دا ده.چه هیڅ یو سورت متعین نه وی.

**کراهة تعین سورة أو آیة** ﴾اودیومونځ دپاره د څه سورت یا آیت تعین کول مکروه دی.

**دلائله** ﴾ ① ځکه چه په دې کښې یوخود باقی قرآن پریخودل لازمیږی② او دویم د تفضیل وهم پیدا کیږی.چه دا سورت د قرآن په نورو سورتونو باندې افضل دې.حالانکه په افضیلت کښې ټول قرآن برابر دې.

**د مونځ د صحت دپاره د کم نه کم قرات اندازه**

| وَأَدْنٰى مَا يُجْزِءُ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِي الصَّلٰوةِ اود قرات ادنی مقدار کوم چه په مونځ کښې کافی کیږی.مَا يَتَنَاوَلُهُ اِسْمُ الْقُرْاٰنِ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رحمه الله هغه چه شاملیږی هغې ته نوم د قرآن د امام ابوحنیفه رحمه الله وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ اوصاحبین رحمهما الله فرمائی.لَا يَجُوْزُ جائزنه دي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثِ |
|---|

آیاتٍ قصارٍ أو آیةٍ طویلةٍ په کم د درې ورو آیاتونه یا یو اوږد آیت نه بغیر

**حل اللغة** ◄①یجزی، اجز اجزاء: کفایت کول، بدله ورکول ②قصار: ووړکي

**تشریح** ◄ **ادنی مایجوز به الصلاة** ◄ په دې عبارت کښې د [مایجوز به الصلاة] مقدار بیانیږی.که په حضر کښې وی اوکه په سفر کښې وی.نو فرمانی.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د قرات ادنی مقدار چه په هغې باندې مونځ جائز کیږی.یو آیت دې.نو که یوآیت په دوو کلمو یا په زیاتو مشتمل وی.نو په اتفاق د مشائخو پرے مونځ جائز دې.لکه د الله تعالی قول ﴿ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ثُمَّ نَظَرَ﴾

**دلیله** ◄ دلیل د الله تعالی قول دې.چه﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ په دې باندې استدلال داسې دې.چه دا مطلق دې.په دې کښې د آیت او ما فوق الآیت څه تفصیل نشته.نو لکه څنګه چه مافوق الآیة د جواز الصلاة دپاره کافي دې.دغه شان یو آیت هم کافی دې.او ددې وجه دا ده.چه یو آیت په حقیقت کښې هم قرآن دې. او حکماً هم،حقیقتاً قرآن کیدل خو ښکاره خبره ده.او حکماً څکه دې.چه د یو آیت قرات په حائضه او جنب باندې حرام دې.نو یو آیت به د قرآن په اطلاق کښې داخل وی.

**الإشكال** ◄خو په دې باندې اشکال کیږی.هغه دا چه که ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ مطلق دی.او په دې کښې څه تفصیل نه وی.نو لکه څنګه چه یو آیت دجواز دپاره کافی دې.نو دغه شان د یو آیت نه کم باندې به هم مونځ جائز وی.څکه چه اطلاق دواړو ته شامل دې.حالانکه د آیت نه په کم باندې مونځ جائز نه دې.نودغه شان په یو آیت باندې هم پکار ده چه مونځ جائز نه شی.حالانکه امام صاحب د جواز قائل دې.

**الجواب** ◄ددې جواب دا دې.چه د آیت نه کم په اجماع سره د قرآن په اطلاق کښې داخل نه دې.څکه چه مطلق کله اونیلی شی.نو ددې نه د هغې فرد کامل مراد وی.او د قرآن فرد کامل هغه دې.کوم چه په حقیقت کښې هم قرآن وی.او په حکم کښې هم قرآن وی.د آیت نه کم اګرچه په حقیقت کښې قرآن دې. لیکن حکماً قرآن نه دې.نوڅکه د آیت نه د کم قرات د جنب او حائضے دپاره جائز دې.نو د آیت نه کم په اجماع سره په ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ کښې داخل نه دې.

**الاعتراض** ◄اوکه څوك دا اووائی.چه کله [مادون الآیة] د قرآن په اطلاق کښې داخل نه دې.نو آیت دے هم ددې سره لاحق کړې شی.

**الجواب** ◄نو ددې جواب صاحب دهدایه رحمه الله دا ورکړې دې.چه آیت د [مادون الآیة] په معنی کښې نه دې.نو ددې وجې د [مادون الآیة] سره نه لاحق کیږی.

**مذهب الصاحبین** رحمهما الله ◄ صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه د [مایجوز به الصلاة] مقدار درې واړه آیاتونه دی.یا یولوئې آیت لکه آیة الکرسی او آیت مداینه .

**دلیلهما** ◄ دصاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې. چه د ورو درې آیاتونو یا یو لوئې آیت نه کوم لوستونکی ته په عام عرف کښې قاری د قرآن نشی وئیلې.نودده قران به د مادون الآیة د قرآت سره مشابه نه وی.او مادون الآیة د مانځه دپاره کافی نه دې.نو د دریو ورو آیاتونو یا د یو لوئې آیت نه کم قرات هم کافی نه وی.د صاحبینو رحمهما الله د دلیل حاصل دا دې.چه یو آیت اګرچه په حقیقت کښې قرآن دې.خو په عرف

کښې په درې ورو آیاتونو یا یو لوئې آیت باندې د قرآن اطلاق کیږي.نوځکه به دے طرف ته رجوع کولې شی.

### د وترو احکام

**حکم الوتر>** د وترو په مسئله کښې د امام ابوحنیفه مذهب دا دې چه وتر واجب دی.

**دلائله >** ① سردار دوجهان ﷺ فرمائیلی دی.[الوترحق واجب فمن لم یوتر فلیس منا] یعنی وتر حق واجب دی.چا چه وتر اونکړلو.نو هغه زمونږ نه نهٔ دې.(ابوداود) په مسلم شریف کښې د ابوسعید خدری ﷺ حدیث دې.[أن النبی ﷺ قال أوتروا قبل أن تصبحوا] یعنی نبی ﷺ فرمائیلی دی.د صبا راختو نه وړاندې وړاندې وتر کوئ.په دې حدیث کښې [اوتروا] د امر صیغه ده.او په وجوب باندې دلالت کوی.

② د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل د نبی ﷺ دا ارشاد دې.[إن الله تعالیٰ زادکم صلاة ألا وهی الوتر فصلوها ما بین العشاء إلی طلوع الفجر]

**الإستدلال بالوجوه الثلاثة لوجوب الوتر من الحدیث>** صاحب د عنایه رحمه الله لیکلی دی.چه ددې حدیث نه په څو طریقو سره استدلال شوې دې. ① اول دا چه د زیادت نسبت الله تعالی ته شوې دې.اود سنتو نسبت رسول الله ﷺ ته کیږی.نو که وتر سنت وې.نو په حدیث کښې به الله تعالی ته د نسبت په ځائې رسول ﷺ ته شوې وو.خو چونکه نبی ﷺ ته نسبت نه دے شوې.نو د وترو مونځ سنت نه دې.بلکه واجب دې.

②دویم دا چه په یو څیز باندې زیادت په هغه وخت کښې کیږی.چه [شئ مزید علیه] (په کوم چه زیادت شوی وی.) محدود العدد وی.او دا خبره منلې شوې ده.چه نوافل غیر محدود دی.ددې څه انتهاء نشته.نو زیادت په فرائضو کښې کیږی.ځکه چه محدود العدد دی.او چونکه مزید (د کوم چه زیادت شوی وی) د مزید علیه د جنس نه کیدل ضروری دی.نوځکه ددې مقتضی دا ده.چه په فرائضو د کوم څیز زیادت شوی وی.یعنی وتر دے هم فرض وی.خو چونکه حدیث خبر واحد دې.او دا غیر قطعی دلیل دې.او په دلیل غیر قطعی سره واجب نه ثابتیږی .اونه پرے فرض ثابتیږی.نو ځکه وتر واجب نه دی.

③ دریم دا چه په ذکر شوی حدیث کښې [فصلوها] د امر صیغه ده.او امر دپاره د وجوب وی. نو ددې نه هم د وجوب ثبوت کیږی.

**مذهب الصاحبین>** دویم دا چه وتر سنت موکده دی.هم دا صاحبینو رحمهما الله او امام شافعی رحمه الله اختیار کړے دې.

**دلائلهما >** ①د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه په وترو کښې د سنتو آثار ښکاره دی. مثلاً د سنتو پشان د وترو منکر هم کافر نه دې.او نه د وترو دپاره اذان کولې شی.لکه د سنتو دپاره چه اذان نشته.نو معلومه شوه. چه وتر سنت دی.

**الجواب عنه >** خو د دې نه جواب دا دې.چه د وترو منکر ځکه کافر نه دې.چه د وترو ثبوت په سنت غیر متواتره سره دې.او دا چه د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت شوې دې.چه وتر سنت دی.ددې معنی هم دا ده.چه د وترو ثبوت په سنت سره شوې دې.او چونکه د وترو مونځ د ماسخوتن په وخت کښې ادا

کولی شي.نو ځکه د ماسخوتن په اذان او اقامت باندې اکتفاء کړې شوې ده.د وترو دپاره د ځانله اذان او اقامت ضرورت نشته.

④ صاحب د شرح نقايه رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله د طرفه نقلي دليل بيان کړې دې.دليل دا دې.چه نبي ﷺ يو باندېچي ته اوفرمائيل.[خمس صلاة كتبهن الله عليك قال هل علي غيرها قال لا إلا أن تطوع] يعنی الله تعالی په تا باندې پنځه مونځونه فرض کړی دی.باندېچي اووئيل.آيا ددې نه علاوه هم په ما باندے فرض شته.نبي ﷺ اوفرمائيل.نه مګردا چه نفل کوې.ددې حديث نه معلومه شوه.چه د پنځه وخته مونځونو نه علاوه باقي ټول نفل دی.نود وترو وجوب نه ثابتيږی.ځکه چه وتر د پنځو مونځونو نه علاوه دی.

**الجواب عنه** > خود دې نه جواب دا دې.چه دا حديث د وجوب وتر نه وراندې دې.

⑤دويم دا چه په صحيحنوکښې د ابن عمر رضي الله عنهما نه نقل دی.[أن النبي ﷺ أوتر على البعير] يعنی نبي کريم ﷺ وتر په سورلئ باندې کړې دی.او دا خبره ښکاره ده.چه په سورلئ باندې نفل مونځ ادا کيږی. فرض او واجب نه ادا کيږی.که وتر واجب مونځ وو.نو نبي ﷺ به په سورباندې نه وو ادا کړې.

**الجواب عنه** > خو ددې جواب د طحاوی رحمه الله د قول مطابق دا دې. چه حديث د ابن عمر د حديث حنظله بن ابی سفيان عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما سره معارض دې.د حنظله د حديث الفاظ دا دی.[أنه كان يصلي على راحلته ويوتر بالأرض ويزعم أن النبي ﷺ فعل ذلك] يعنی ابن عمر رضي الله عنهما به په خپله سورلئ باندې مونځ کولو.خووتر به ئې په زمکه کولو.او ابن عمر رضي الله عنهما به فرمائيل.چه نبي ﷺ داسې کړی دی.يعنی وتر بـه پـه زمکـه بانـدې ادا کولـو.نـو هرکلـه چـه د ابـن عمـر رضي الله عنهما پـه دواړو روايـاتونو کښې تعـارض راغلو.نودواړه ساقط شول.

**د قرات خلف الامام شرعی حکم**

| وَلَا يَقْرَأُ الْمُؤْتَمُّ خَلْفَ الْإِمَامِ او مقتدی به په امام پسې شاته قرآت نه کوی |
|---|

**حل اللغة** > ①لايقرا، قرا قراءةً (ف): لوستل ②موتم: مقتدی ③حظ: صحه ④انصات:چپ پاتې کيدل ⑤استماع: غوږ کيخودوسره اوريدل ]

**تشريح** > **عدم قراءة الفاتحة خلف الإمام** > امام قدوری رحمه الله د احنافو رحمهم الله مسلك نقل کوی.اوفرمائی.چه مقتدی به په امام پسے بيخی قرات نه وائی.نه فاتحه او نه سورت،که جهری مونځ وی اوکه سری مونځ وی. قرات خلف الامام مکروه دې.ځکه چه د قرات خلف الامام په باره کښې وعيد راغلے دې[1][2]

---

[1] البته دامام محمد رحمه الله نه يو روايت دا دې.چه د احتياط دپاره قرات فاتحه خلف الامام مستحسن دې.ځکه چه د عباده بن صامت رضي الله عنه حديث کښې دی.چه [لاتفعلوا ذلك إلا بفاتحة الكتاب فإنه لا صلاة لمن لم يقرأها]

[2] **مذهب الشافعي** رحمه الله :- دامام شافعی رحمه الله په سورة فاتحه کښې اختلاف دې.يعنی په مقتدی باندې د امام شاه ته فاتحه وئيل واجب ده.دامام شافعی رحمه الله قديم قول خو دا دې.چه په مقتدی باندې په سری منځ کښے چه په کومو رکعتونو کښې جهر نه وی.په هغے کښې فاتحه وئيل واجب دی.هم دا د امام

**دلائله** ① دلیل د نبی ﷺ ارشاد دی.[من کان له إمام فقراءة الإمام له قراءة] وجه د استدلال دا ده.چه دامام قرات حکماً د مقدی دپاره کافی کیږی.نو هرکله چه د مقتدی دپاره حکماً قرات موجود شو.نو اوس به مقتدی دوباره قرات نه کوی.گنی د مقتدی به دوباره قرات کول لازم شی.حالانکه په مانځه کښې دوباره قرات کول مشروع نه دي.

②نبی ﷺ فرمائیلی دی.[إذاقرء فانصتوا] کله چه امام قرات کوی.نو تاسو چپ اوسئ.

③او دالله تعالی ارشاد دې.﴿وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ یعنی کله چه قرآن لوستلے شی.نو تاسو غوږ ایږدئ .اوچپ اوسئ.اودا آیت د مونځ په باره کښې نازل شوې دې.ځکه چه د ابن عباس ﷺ نه مروی دی.چه [أن أصحاب رسول الله ﷺ قرأوا خلفه فخلطوعليه القراءة فنزلت] یعنی د رسول الله ﷺ صحابوﷺ په نبی ﷺ پسې قرات لوستلو.نو نبی ﷺ باندې په قرات کښې گډوډے راغلو.نو دا آیت نازل شو.

④ د ابوهریره ﷺ نه روایت دې.[أنه ﷺ قال إنما جعل الإمام ليؤتم به فإذا كبر فكبروا وإذا قرأ فانصتوا] یعنی امام ددې دپاره مقرر شوې دې.چه دده اقتداء اوکړې شی.کله چه هغه تکبیر وائی.نو تاسو هم تکبیر وائې.او کله چه هغه قرات وائی.نوتاسو چپ اوسئ.

⑤نبی ﷺ فرمائیلی دی.[من قرأ خلف الإمام ففي فيه جمرة وقال قد خطأ السنة]کوم کس چه په امام پسې قرات اووائی.نودهغه په خوله کښې سکروټه واچوئ.اووے فرمائیل.چه دە د سنت نه خلاف اوکړلو.

⑥د سعد بن ابی وقاص ﷺ نه نقل دی.[أنه قال من قرأ خلف الإمام فسدت صلاته] یعنی کوم کس چه په امام پسې قرات اوونل.نو د ده مونځ فاسد شو.

⑦ دحضرت عمربن خطاب ﷺ نه نقل دی.[قال ليت في فم الذي يقرأ خلف الإمام حجرأو غير ذلك] عمربن خطاب ﷺ فرمائی.کوم کس چه په امام پسې قرات وائی. کاش چه دده په خوله کښې کاڼړے وې.

| وَمَنْ أَرَادَ الدُّخُولَ فِي صَلَاةِ غَيْرِهِ اوڅوک چه اراده اوکړی د داخلیدو په مانځه د بل چا کښې يَحْتَاجُ إِلَى نِيَّتَيْنِ نو دې محتاج دې دوو نیتونو ته نِيَّةُ الصَّلَاةِ وَنِيَّةُ الْمُتَابَعَةِ نیت د مانځه اونیت د تابعداریٔ دامام |
|---|

**تشریح**> په دې عبارت کښې صاحب د قدوری ﷫ فرمائی کله چې یو کس د بل چا په مانځه کښې د داخلیدو اراده اوکړی یعنی په هغه پسې اقتداء کول غواړی نو ده دپاره دوه څیزونه ضروری دی یو د مانځه د نیت چې زه دا فلانې مونځ کوم مثلاً د صبا مونځ کوم او دویم د امام د تابعداریٔ نیت کول ورله هم ضروری دی.چې زه په دې امام پسې اقتداء کوم باقی د معین امام نیت ضروری نه دې بلکه د مطلق امام د تابعداریٔ نیت به کوی.ځکه که ده د یو معین امام مثلاً په زید پسې د اقتداء نیت اوکړو.او هغه بې اودسه شو عمرو ئې خپل خلیفه جوړ کړو.نو

---

مالک ﷫ قول دی. اود امام شافعی ﷫ قول جدید او صحیح مذهب دا دې. چه په مقتدی باندې په هر مانځه کښې فاتحه وئیل واجب دی.که جهری مونځ وی اوکه سری وی.

په دې صورت کښې به د ده مونځ ماتيږي.نو د دې وجې د مطلق امام د تابعدارئ نيت پکار دې.

د امامت د احکامو بيان

## بَابُ الْإِمَامَةِ

ترجمه> (دا) باب د امامت (د احکامو په بيان کښې) دې

د جماعت شرعي حيثيت

وَالْجَمَاعَةُ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ جماعت سنت موکده دې.

حل اللغة > ①لايتخلف، تخلف تخلفا: روستو پاتې کيدل ]

تشريح> الربط بما قبله>امام قدوری رحمه الله وړاندې د امام د افعالوذکر اوکړل.يعنی وجوب جهر او جوب اخفاء تحديد د قرات او د مقتدی د افعالو ذکر ئې اوکړلويعنی وجوب استماع او انصات،اوس دلته د امامت د مشروعيت صفت بيانوی.نو د ټولونه وړاندې د امام ذکر کوی.په دې پسې د امامت دخواصو بيان دې.

حکم الجماعة>جماعت سنت موکده دې.ځکه چه نبی ﷺ فرمائيلی دی.جماعت د سنن هدی څخه دې.ددې نه به صرف منافق پاتې کيږی.

قسمٔ السنة>سنت په دوه قسمه دې.سنن هدیٰ او دويم سنن زائد ، ①سنن هدی هغه دی.په کوم باندې چه نبی کريم ﷺ په طريق د عبادت مواظبت کړی وی.خو کله کله ئې پريخودلے وی.ددې پريخودل ضلالت دې.اودا په شعائرو داسلام کښې دې.

②اوسنت زائده هغه دې.کوم چه نبی ﷺ په طريقه دعادت کړې وی.ددې په پريخودلو کښې څه حرج نشته.لکه د تهجدو مونځ، بهرحال جماعت سنت موکده دې.بغير د عذر نه ددې پريخودل جائز نه دی.تردے که د يو ښار خلق جماعت پريږدی.نوهغوی ته به د جماعت د مونځ کولو حکم کولې شی.که هغوی په دې باندې عمل اوکړلو.نو ډيره ښه ده.ګنی هغوی سره قتال کول جائز دې.

دلائل سنية الجماعة موکدا>د جماعت د سنت موکده کيدو تائيد ددې احاديثو نه هم کيږی.کوم چه د جماعت په فضيلت کښې راغلی دی

① نبی ﷺ فرمائيلی دی، الجماعة سنة من سنن الهدی لايتخلف عنها إلا منافق.جماعت د سنن هدی څخه دې ددې نه به نه پاتې کيږی.مګر منافق.(۱)

② د نبی ﷺ ارشاد دې. [صلاة الجماعة أفضل من صلاة أحدكم وحده بخمسة وعشرين درجة] يعنی د جماعت مونځ د خانله مونځ په نسبت يو په پنځويشت درجے افضل دی.او په يو روايت کښې دی.چه په اوويشت درجے افضل دې.

③امام ابوداؤد ،ترمذی،او ابن ماجه د ابی بن کعب رضی الله عنه په حديث کښې روايت کړی دی. [صلاة الرجل مع الرجل أزكى من صلاته وحده، وصلاة الرجل مع الرجلين أزكى من صلاته مع رجل وما زاد فهو أحب إلى الله تعالى] يعنی

---

(۱) حديث عبدالله بن مسعود رضی الله عنه رواه مسلم في المساجد ومواضع الصلاة رقم۲۵۶، و ۲۵۷)۔

د دوو کسانو جماعت د ځان له کس دمونځ نه غوره دي.اوددوو کسانو مونځ د درې کسانو دجماعت نه غوره دي.او څومره چه زيات وی.دالله تعالی خوښ وی.

## د امامت زيات حقدار

وَأَوْلَى النَّاسِ بِالْإِمَامَةِ اوپه خلقو کښې دامامت دپاره ښه حقدار هغه دي أَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ کوم کس چه د ټولونه زيات په سنت عالم وی.

**حل اللغة** > ①لابد: ضروری، د کوم نه چه بغيرڅه لار نه وی ② نقول، قال قولاً(ن): وينا کول ③سائر: ټول ]

**تشريح** > **من هو أحق بالإمامة** > د امامت د ټولو نه زيات مستحق هغه کس دي.څوک چه سنتو باندې زيات واقف وی.يعنی دهغه احکامو زيات پيژندونکے وی.کوم چه د مانځه سره متعلق وی.مثلاً د مانځه شرطونه د مانځه ارکان د مانځه سنتونه اوددې آداب،خو په دې شرط چه [مايجوز به الصلاة] قرات باندې قدرت لری.

**دلائله** > ① نبی ﷺ فرمانيلی دی. [يؤم القوم أقدمهم هجرة فإن كانوا في الهجرة سواء فأفقههم في الدين فإن كانوا في الفقه سواء فأقرءهم للقرآن] (شرح نقايه) يعنی قوم ته به امامت هغه کس ورکوی.چه په هجرت کښې مقدم وی.اوکه په هجرت کښې ټول برابر وی.نوپه دې کښې زيات پوهه به امامت ورکوی.اوکه په فقاهت کښې هم ټول برابر وی.نوچه د قرآن ښه قاری وی.هغه به امات ورکوی.په دې حديث کښې افقه في الدين په يعنی اعلم ته په اقرا باندې مقدم کړې شوې دې.

② حضرت انس رضي الله عنه حديث دې. [إن الذين جمعوا القرآن على عهد رسول الله ﷺ أربعة كلهم من الأنصار أبي بن كعب ومعاذ بن جبل وزيد بن ثابت وابوزيد رضي الله عنه فهولاء أكثر قراءة من أبي بكر رضي الله عنه حتى قال ﷺ أقرءكم أبي رضي الله عنه] يعنی د نبی ﷺ په زمانه کښې څلور کسان جامع د قرآن وو.و ددې څلورو وارو تعلق دانصارو سره وو.ابی بن کعب، معاذ بن جبل، زيد بن ثابت رضي الله عنه او ابوزيد رضي الله عنه نو دا څلور واړه ابوبکر رضي الله عنه ته به نسبت سره په قرآن ښه پوهيدونکی وو.خو دے باوجود نبی ﷺ د امامت ورکولو دپاره ابوبکر رضي الله عنه وړاندې کړلو.نو معلومه شوه.که په اقرا او اعلم کښې مقابله راشی.نو ،،اعلم،، به مقدم کولې شی ګنی ،اقرا ( به وړاندې کولې شی)

## په علميت کښې د برابری نه پس د امامت حقدار

فَإِنْ تَسَاوَوْا بيا که په علم کښې ټول برابر وو فَأَقْرَؤُهُمْ.نو په دوی کښې چه څوک زيات قاری وی هغه به حقداروی.

**حل اللغة** >① تساووا، تساوی تساوياً: برابريدل ② اقرا: د ټولونه زيات قراءت کونکې ]

**تشريح** > **تقديم الأقرء بعد العالم بالسنة** >مسئله دا ده.که ،،اعلم بالسنة،، کښې دټول جماعت خلق برابر وی.نو اوس به په دوئ کښې چه څوک قاری وی.هغه به حقداروی.

**دليله** > دليل د نبي ﷺ قول دي. [يؤم القوم أقرأهم لكتاب الله فإن كانوا سواء فأعلمهم بالسنة] په دې حديث باندې وجه د استدلال ښکاره ده.خو په دوو طريقو باندې اعتراض کيږي.(۱)

**الإعتراض الأول** > اولنې اعتراض دا کيږي.چه [يؤم القوم] د امر په معنی کښې دې.او امر د وجوب دپاره وي.نو کوم ترتيب چه په حديث کښې ذکر دې.دهغې خيال ساتل واجب دی. يعنی ،،اقرأ،، به په ،،اعلم،، باندې مقدم وي.حالانکه داسې نه ده.ځکه چه ذکرشوې ترتيب د افضليت د بيان دپاره دې.د جواز د بيان دپاره نه دې.

**الجواب عنه** > ددې نه جواب دا دې.چه په [يؤم القوم] کښې امرنه دې. بلکه صيغه د اخبار ده.د بيان مشروعيت دپاره.او دا حقيقت او قاعده ده.چه تر څو پورې په حقيقت باندې عمل کول ممکن وي.نو مجاز ته به تګ نشی کولې.نوځکه به دلته مجاز ته تګ نشی کولې.اودا صيغه د امر په معنی کښې نه ده.

**الإعتراض الثاني** > دويم اعتراض دا دې.چه په دې حديث باندې استدلال د مدعی خلاف دې. حالانکه مدعی د ،،اعلم بالسنة،، تقديم دې.او حديث دلالت کوی.په ،،اقرأ لکتاب الله،، په تقديم باندې .نودا حديث په استدلال کښې پيش کولو دپاره څنګه صحيح کيدے شي؟

**الجواب عنه** > ددې نه جواب دا دې.چه صحابه کرامؓ ټول قاريان وو.او عالمان هم وو.ځکه چه په هغه زمانه کښې به خلقو قرآن د هغه د احکامو سره يادولو.دحضرت عمرؓ نه نقل دی.چه دوی په دولس کاله کښې سورة بقره ياد کړې وه.ښکاره ده.چه حضرت عمرؓ په دومره اوږده مودهٔ کښې سورة بقره د احکامو سره ياده کړې وه.نود صحابه کرامو؆ په زمانه کښې چه به څوك ،،اقرأ،، وو.هغه به ،،اعلم،، هم وو.نوځکه په حديث کښې ،،اقرأ،، ته په اعلم،، باندې تقديم ورکړې شوې دې.او زمونږ په زمانه کښې چونکه داسې نه دی.نوځکه مونږ ،،اعلم،، ته په ،،اقرأ،، باندې تقديم ورکوو.

**په علم او قرات کښې د برابرئ په صورت کښې دامامت حقدار**

| فَإِنْ تَسَاوَوْا بيا که په علم او قرات کښې برابر وی. فَأَوْرَعُهُمْ نو په دوی کښې چه څوك ،،اورع،، (زيات تقوی دار) وی. هغه حقداردې |
|---|

**حل اللغة** > ①اورع: د ټولونه زيات متقی

**تشريح** > **الفرق بين الورع والتقوی** > په ورع او تقوی کښې فرق دا دې.ورع وائی.د شبهاتو نه پرهيزکولو ته او تقوی وائی دمحرماتو نه ځان ساتلو ته.

**إستحقاق الأورع بعدالأقرأ** > مسئله دا ده.که د جماعت ټول خلق په علم او قرات کښې برابر وو.نو په دوی کښې اورع حقدار دې.

**دليله** > دليل د نبي ﷺ قول دې. [من صلی خلف عالم تقی فکأنما صلی خلف نبی ﷺ](۱) ددې حديث په باره کښې ملاعلی قاری رحمه الله فرمائيلی دی.چه دا حديث موضوعی دې.

(۱) حديث ابومسعود الأنصاری ؓ رواه مسلم فی المساجد ومواضع لاصلاة رقم ۲۹۰، ۲۹۱، ابوداود فی الصلاة باب ۶۰،رقم ۵۸۴، والترمذی فی الصلاة باب ۶۰ رقم ۲۳۵ والنسائی فی الإمامة باب ۳، ۶ وابن ماجه فی الإقامة باب ۴۶ واحمد فی المسند (۱۱۸/، ۱۲۱، ۱۲۲ ورواه ايضاً بوداود الطيالسی رقم ۶۱۸ و ا بن الجارود (۱۵۵)۔

**دامامت دپاره د تقوی نه پس د استحقاق صفت**

فَإِنْ تَسَاوَوْا بیاکه په ذکر شوو څیزونوکښې ټول برابر وو فَأَسَنُّهُمْ.نوڅوك چه په دې کښې عمر په اعتبار سره مشر وی.هغه به حقداروی

**حل اللغة** ⊲ ①اسن: بوډا ② تکثیر: زیاتول ]

**تشریح** ⊲ **تقدیم الأسن بعد الأورع** ⊲مسئله دا ده.که په ذکر شوو څیزونو کښې د جماعت ټول خلق برابر وی.نو په دوی کښې چه څوك زيات مشر وی.هغه دامامت دپاره زيات مناسب دې.

**دلائله** ⊲ ①دلیل دنبی ﷺ قول دې.د ابوملیکه رضی الله عنه دوو ځامنو ته [وليؤمكما أكبركما سناً](٢)

②دویم دلیل دا دے چه دمشر سړی په وړاندې کولو کښې د جماعت زیادت وی.او وړاندې تیرشوی دی.چه د جماعت زیادت الله تعالی ته زیات خوښ دې.او په حدیث کښې فرمائی.[من لم يوقر كبيرنا فليس منا] اوکله چه تې دے خپل امام جوړ کړلو.نودا دده په عزت کښې بےادبی نه پاتې کیږی.

**من يؤم بعدالأسن؟** ⊲امام قدوری دا نه دی وئیلي.که ټول په عمر کښې برابر وو.نو بیا به څوك غوره وی.حالانکه د دوی نه سوا نورو فقهاوٌ لیکلی دی.که ټول په عمر کښې برابر وی.نوپه دوی کښې د ښه اخلاقو خاوند به غوره وی.ځکه چه په حدیث کښې فرمائیلی شوی دی.[خيار كم أحسنكم أخلاقاً] او که په اخلاقو کښې ټول برابر وی.نو په دوی کښې چه څوك زيات ښکلې وی. هغه به دامامت دپاره غوره وی.

**خلاصة الكلام** ⊲حاصل دا دې.چه د امامت دټولو نه زيات مستحق هغه دې.څوك چه په علم، قرات،صلاح، نسب، اخلاق، ښکلي والی ،په دې ټولو څیزونو کښې په قوم کښې غوره وی.ځکه چه په دې کښې د نبی ﷺ اقتداء ده.ځکه چه نبی ﷺ ترمرګه پورې امامتی کړې ده.او نبی ﷺ په دې ذکر شوو صفاتو کښې د ټولو نه زيات وړاندې وو.ثم الافضل فالافضل

**د مکروه الامامت کسانو بیان**

وَيُكْرَهُ تَقْدِيمُ الْعَبْدِ او غلام وړاندې کول مکروه دی وَالْأَعْرَابِي اوباندیچی وَالْفَاسِقِ اود فاسق(امامت مکروه دې)وَالْأَعْمٰى او د ړوند، (امامت مکروه دې)وولد الزنا او د ولد الزنا (امامت مکروه دې) فَإِنْ تَقَدَّمُوْا جَازَ.اوکه دا کسان وړاندې شو.نو جائز دی.

**حل اللغة** ⊲① تقديم: وړاندې کول

(١)خرجه الزيلعي بهذا للفظ ثم ذكر ما هو بمعناه عن مرثد بن ابي مرثد الغنوي قال قال رسول الله ﷺ (من سركم أن تقبل صلاتكم فليؤمكم علماؤكم فإنهم وفدكم فيما بينكم وبين ربكم مجمع الزوائد للهيثمي (٦٤/٢) والحاكم في المستدرك في كتاب الفضائل (٢٢٢/٣)-

(١)حديث مالك بن الحويرث رواه البخارى عن مالك بن الحويرث في الأذان باب الأذان للمسافر رقم، ٥٩٤، ومسلم في المساد باب من أحق بالإمامة رقم ١٠٨١، والترمذى في الصلاة وابن ماجه في الأذن في الصف رقم ١٨٩ والنسائى في الأذان باب .......أذان المنفردين في السفر رقم ٦٣٠، وأبوداود في الصلاة باب من أحق بالإمامة رقم ٤٩٨، وابن ماجه في إقامة الصلاة باب من أحق بالإمامة رقم ،٩٦٩)_

**تشريح> كراهة إمامة العبد>** مسئله دا ده.چه غلام د امامت دپاره وړاندې کول مکروه دی.اګرچه هغه آزاد شوې وی.یعنی که آزاد شوې غلام او اصلی آزاد جمع شی.نو اصلی آزاد د امامت زیاد مستحق دې.

**دليله>** دلیل دا دې.چه غلام ته د مونځ د احکامو ایزده کولو فرصت نه ملاویږی.ځکه په هغه پسې مونځ کول مکروه دې.

**كراهة إمامة الأعرابي>** د باندېچی وړاندې کول هم مکروه دی.

**دليلا>** ① ځکه چه په دوی کښې د جهالت غلبه وی.

② دغه شان دنبی ﷺ قول دې.[ألا لايؤمن إمرأة رجلاً ولا أعرابي] خبردار ښځه دې سړی ته امامت نه ورکوی اونه باندېچی،

**كراهة إمامة الفاسق>** اود فاسق وړاندې کول هم مکروه دی.

**دليله>** ځکه چه دې د دین په معامله کښې اهتمام نه کوی.

**كراهة إمامة الأعمي>** د امامت دپاره ړوند وړاندې کول هم مکروه دی.

**دليله>** ځکه چه هغه د ړوندوالی د وجې د پلیتئ نه ځان نشی بچ کیدې.

**كراهة إمامة ولد الزنا>** اوولدالزنا وړاندې کول هم مکروه دی.

**دليله>** ځکه چه د هغه پلار نه وی.چه په هغه باندې شفقت اوکړی.هغه ته ادب اوښائی.او هغه ته تعلیم ورکړی.

**الدليل المشترک>** صاحب دهدایه رحمه الله د مشترکه دلیل په طور فرمائیلی دی.چه ددې کسانو وړاندې کول د جماعت د خلقو د نفرت سبب دې.نوځکه د دوی وړاندې کول مکروه دی.البته که دا خلق په خپله وړاندې شول.نو مونځ جائزدې.ځکه چه نبی ﷺ فرمائیلی دی. [صلوا خلف كل بر وفاجر] وجه د استدلال دا ده.چه په ذکر شوو خلقو کښې هر یو به یا نیک وی یا بد ،نو په هغوی پسې په هر حالت کښې مونځ جائز دې.

## د اوږد مونځ حکم

| وَيَنبَغِي لِلْإِمَامِ أَن لَّا يُطَوِّلَ بِهِمُ الصَّلَاةَ او د امام دپاره مناسب دی چه په مقتدیانو مونځ نه اوږدوی. |
|---|

**حل اللغة >** ①اضعف: د تیولونه زیات ضعیف② مریض: ناجوړه ]

**تشريح> كراهة تطويل القراءة للإمام>** مسئله :امام به خلقو ته اوږد مونځ نه ورکوی.دلیل دادې.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.ځکه چه قوم ته امامتی کوی.نو په هغوی کښې دې د هغوی د کمزوری سړی مونځ کوی.(۱)

**دليله>** دلیل دا دې چه په مقتدیانو کښې بیماران هم وی اوبوډاګان هم،او ضرورت منده،اود معاذ بن جبل رضي الله عنه حدیث هم مستدل دې.ځکه چه معاذ رضي الله عنه خپل قوم ته اوږده مونځونه کول.نو د قوم خلقو نبی ﷺ ته ګیله اوکړه.نبی ﷺ اوفرمائیل[أفتان أنت يا معاذ] دا حدیث وړاندې تیر شوې دې.اودا خبره د صحت په طریقه باندې ثابته ده.چه یو وارې نبی ﷺ د صبا مونځ کښې معوذتین اولوستلو .کله چه

(۱) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه رواه البخاری في الأذان باب ۶۲ ومسلم في الصلاة رقم ۱۸۳ ومالك في المؤطا في صلاة الجماعة رقم ۱۳ وابوداؤد في الصلاة باب ۱۲۴ والنسائي في الإمامة باب ۳۵ واحمد في المسند (۴۸۶/۲، ۵۰۲)_

نبی ﷺ د مانځه نه فارغ شو.نو صحابوؓ عرض اوکړلو.اے دالله پیغمبره تاسو ډیر اختصار اوکړلو .نو نبی ﷺ اوفرمائي.د ماشوم د ژړا د آواز د وجے چه دده مور په فتنه کښې واقع نشی.ددې واقعے نه معلومه شوه.چه د امام دپاره د خپل قوم د حالت خیال ساتل مناسب دی.

## دښځو د امامت کراهت

وَيُكْرَهُ لِلنِّسَاءِ أَن يُصَلِّيَنَ وَحْدَهُنَّ بِجَمَاعَةٍ اود ښځو دپاره یواځې جماعت کول مکروه دي. فَإِنْ فَعَلْنَ.او که ښځو د جماعت مونځ اوکړلو وَقَفَتِ الْإِمَامَةُ وَسَطَهُنَّ.نو امام به د دوی په مینځ کښې اودریږی كَالْعُرَاةِلکه څنګه چه بربنډ کسان (د جمعې مونځ) کوی

**حل اللغة** ۱عراة، دٔ عاری جمع بربنډ ۲ وسط:مینځ ۳کشف: کولاویدل ]

**تشریح**﴿ **كراهة جماعة النساء وحدهن**﴾دښځو خانله جماعت سره مونځ کول مکروه تحریمی دی.

**دلائلها**﴾څکه چه د ښځو جماعت کول د حرام فعل (مکروه) نه خالی نه وی. څکه چه د دوی امامه به یا د مقتدیان ښځو نه وړاندې ولاړه وی.یا به ددوی په مینځ کښې وی. ۱په اولنی صورت کښې د عورت ښکاره کیدل زیات وی.حالانکه دا مکروه دی.

۲او په دویم صورت کښې داامام خپل مقام پریخودل لازمیږی.حالانکه دا هم مکروه دی.او جماعت سنت دي.او قاعده دا ده.چه د مکروه د ارتکابو په نسبت د سنت پریخودل غوره دی.نوځکه د ښځو په حق کښې دجماعت سنت پریخودلے شو.اود ښځو حالت د بربنډو د حال پشان دې.یعنی لکه څنګه چه د بربنډو جمات مکروه دې.دغه شان د ښځو جماعت مکروه دې.

**كيفية قيام الإمام في جماعة النساء**﴾ صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه که د کراهت تحریمی باوجود ښځو د جماعت مونځ کولو.نوامام به د دوی په مینځ کښې اودریږی.څکه چه حضرت عائشې رضي الله عنها هم داسې کړې وو .

**الإعتراض**﴾ خو اوس اشکال دا دې.چه هر کله حضرت عائشې رضي الله عنها په د جماعت مونځ کړې وو.نودا مکروه تحریمی ولے دے؟

**الجواب عنه**﴾ددې جواب دا دې.چه د ام المومنین رضي الله عنها دا فعل د ابتداء د اسلام باندې حمل کولې شی.

**الإعتراض علي الجواب**﴾خو په دې جواب باندې اشکال دې.چه د نبوت نه پس نبی ﷺ دیارلس کاله په مکه مکرمه کښې تیر کړل.اوبیائې په مدینه منوره کښې د شپږو کالو په عمر کښې د حضرت عائشې رضي الله عنها سره نکاح اوکړله.بیا چه کله د نهو کالو شوه.نووادهٔ ئې ورسره اوکړلو.یعنی د حضرت عائشې رضي الله عنها رخصتی اوشوه .او د دوی په ژوند کښې نهه کاله پاتې شوه.نو د حضرت عائشې رضي الله عنها د امامت واقعه د بلوغت نه پس شوې ده.او په دې صورت کښې دا فعل په ابتداء د اسلام باندې څنګه حمل کولې شی؟

**الجواب عنه**﴾نو ددې جواب دا دې.چه په ابتداء د اسلام باندې د حمل کولو نه مراد دا دې.چه د ښځو د جماعت حکم منسوخ دې. لکه څنګه چه په دې حدیث کښې راغلی دی

(قال وهب: عن ابن أبي ذئب.. مولى لبني هاشم أخبره عن علي ابن ابي طالب رضي الله عنه قال: لا تؤم المرأة[1])

---

(۱) متن إعلاء السنن، (المدونة، لمالك ،۱/۸٦) ثم صحح العثماني سنده (متن إعلاء السنن باب كراهة جماعة النساء رقم الحديث

## د یو مقتدي په امام پسې اقتداء

وَمَنْ صَلّٰى مَعَ وَاحِدٍ اوکوم کس چه د یو کس سره مونځ کوي. أَقَامَهُ عَنْ يَمِينِهِ نو هغه دے خپل ښی طرف ته اودروی

**حل اللغة** ﴿١﴾ صلی،صلی صلاة: دعا کول، مونځ کول ﴿٢﴾اقامة،اقام اقامة: قائم کول

**تشریح** ﴿ قيام الواحد عن يمين الإمام ﴾مسئله دا ده.که یو سړی یو مقتدی سړی ته امامتی ورکوی.نو دا مقتدی دے خپل ښی طرف ته اودروی.

**دلیله**﴿دلیل دابن عباس رضی الله عنهما حدیث دے.پوره حدث دا دے.[بت عند خالتي ميمونة رضي الله عنها لأراقب صلاة النبي ﷺ بالليل فانتبه قال نامت العيون وغابت النجوم وبقي الحي القيوم ثم قرأ آخر سورة آل عمران ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ﴾ إلى آخرها ثم قام إلى شن معلق فتوضأ وافتتح فقمت وتوضأت ووقفت على يساره وأخذ بأذني وأدارني خلفه حتى أقامني عن يمينه] (٢) یعنی ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی.چه ماد خپلے ترور میمونے رضی الله عنها کره شپه تیره کره.چه د نبی ﷺ د شپې مونځ اوګورم. نو نبی ﷺ پاسیدلو.او وے فرمائیل. سترګے اودے شوی دی.او ستوری ډوب شوی دی.او حی او قیوم ذات باقی دے.بیا دوی سورة آل عمران آخری آیتونه ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ﴾ نه تر آخر سورت پورې اولوستل.بیا نبی ﷺ په یو میخ پورې د زوړند مشك نه اوبه واخستلے او اودس ئے اوکړلو.او مونځ ئے شرع کړلو.نو زه هم پاسیدم. اودس مے اوکړلو.او د نبی ﷺ ګس طرف ته اودریدم.نو نبی ﷺ زه د غوږ نه اونیولم.او زه ئے خپلے شاه طرف ته راښکلم.ترڅو چه خپل ښی طرف ته ئے اودرولم.ددے حدیث نه معلومه شوه.چه د امام سره یو مقتدی وی.نو هغه د امام ښی طرف ته اودریږی. مختار قول دے.په ظاهر الروایة کښې دی.چه یومقتدی به په امام پسې شاه ته نه اودریږی.

**رواية محمد رحمه الله في قيام الواحد عن الإمام** ﴾اود امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه مقتدی به خپلے ګوتے د امام د پوندے سره برابر کوی.او اول قول ظاهر دے.او که یو مقتدی د امام شاه ته یا ګس طرف ته مونځ اوکړلو.نو هم جائز دے.یعنی مونځ ئے نه فاسدیږی.خوګناهګار دے.ځکه چه ده د سنتو خلاف عمل اوکړلو.

## د دوو مقتدیانو د اودریدو مقام

وَإِنْ كَانَا اثْنَيْنِ اوکه دوو سړو ته امامتی ورکوی تَقَدَّمَهُمَا.نوامام به په دواړو مقدم وی

**حل اللغة** ﴿١﴾ تقدم: تقدما: وړاندې کیدل ﴿٢﴾ نقل،نقل نقلاً (ن): نقل کول ﴿٣﴾اثر: حدیث،نشانی ﴿٤﴾ اباحت: مباح کیدل ]

---

١٢٢٠، (٢٩٦/١) يستدل بهذا الأثر على نسخ إمامتهن لكن يقول العبد الضعيف شاه فيصل إذا صار إمامتهن منسوخاً فما معنى جواز إمامتهن مع الكراهة وقيام الإمام وسطهن لأن النسخ لا يجتمع مع الجواز، إلا أن يقال نسخت سنية جماعتهن وأما نفس الجماعة فجائز.

(٢)حديث ابن عباس رضي الله عنهما رواه البخاري في باب العلم باب ٤١، ومسلم في صلاة المسافين وقصرها رقم ١٨١، وأبوداود في التطوع باب ٢٦، والنسائي في الإمامة باب ٢٢، وابن ماجه في الطهارة باب ٤٨، ومالك في صلاة الليل رقم ١١.

**تشریح** > **مقام الإثنين من الإمام** > اوکه دامام نه سوا نور دوه مقتديان وی.نو امام به په دې دواړو باندې وړاندې اودریږی.

**دلیله** > دلیل دا دې.چه کله نبی ﷺ حضرت انس او یتیم ﷺ ته امامتی کوله.نونبی ﷺ د هغوی دواړو نه وړاندې ولاړ وو.(۲)نود نبی ﷺ وړاندې اودریدل د افضیلیت دلیل دې.

## د سړو دپاره په ښځو اوماشومانو پسې د اقتداء حکم

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ لِلرِّجَالِ د سړو دپاره جائزنه دی. أَنْ يَقْتَدُوا بِامْرَأَةٍ وَصَبِي چه دوی په ښځو یا ماشومانو پسې اقتداء اوکړی. |

**حل اللغة** > ① لایجوز،جاز جوازاً (ن): جائز کیدل، روا کیدل

**تشریح** > **عدم جواز إقتداء الرجل بالمرأة** > **مسئله**:د سړو دپاره د ښځو پسې اقتداء کول جائز نه دی.

**دلیله** >د ښځې پسې اقتداء کول خو ددې وجې ناجائزده.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.[أخروهن من حیث أخرهن الله]

**التوجيهان في الإستدلال** > ① وجه د استدلال دا ده.چه لفظ د ،،حیث،، نه مراد ځائې دې.او چه په کوم ځائې کښې د ښځو تاخیر واجب وی.هغه د مانځه د ځائې نه سوا بل ځائې نه دې. نو ثابته شوه.چه الله تعالی ښځې د مانځه په ځائې کښې روستو کړې دی. یعنی دا حق ئې نه دے ورکړې.چه دوی سړو ته امامتی ورکړی.

②اوبعضې حضراتو فرمائیلی دی.چه ،،حیث،، د تعلیل دپاره دې.نو اوس ترجمه دا شوه. چه ښځې روستو کوئ.ځکه چه الله تعالی دوی روستو کړی دی.الله تعالی دوی په شهادت، وراثت،سلطنت او ټولو ولایاتو کښې روستو کړی دی.نو هرکله چه الله تعالی ښځه روستو کړې ده.نو ددې وړاندې کول یعنی دا امام جوړول به هم جائز نه وی.

**عدم جواز الإقتداء بالصبي** > په متن کښې دویمه مسئله دا بیان شوې ده چه د سړو اقتداء په ماشوم پسې جائزنه‌ده نو دده امامت ددې وجې جائز نه دې.چه دے نفل کونکې دې.نو د مفترض په ده پسې اقتداء کول جائز نه دی.یعنی د بالغ فرض مونځ په ده پسې جائز نه دې.

**دلیله** >ددې مختار مذهب دلیل دا دې.چه د ماشوم مونځګذار نفل د بالغ مونځګذار د نفلو نه په درجه کښې کم دی.ځکه چه په اتفاق سره که ماشوم په نفلو کښې شروع اوکړی. اوبیا فاسد ئې کړی.نو په ده باندې قضاء واجب نه ده.اوکه بالغ سړی نفلی مونځ فاسد کړلو. نو د هغه په ذمه قضاء واجب ده.اوقاعده دا ده.چه د قوی بناء په ضعیف باندے نه کیږی. نوځکه به د بالغ د نفلو بناء د ماشوم په نفلو باندې نشی کولې.

## د صفونو ترتیب

| |
|---|
| وَيَصُفُّ الرِّجَالُ اوصف به جوړولې شی د سړو ثُمَّ الصِّبْيَانُ بیا ماشومان ثُمَّ الْخُنْثٰى بیا خنثی ګان ثُمَّ النِّسَاءُ بیا ښځې ، |

---

(۲)حديث أنس بن مالك رضي الله عنه رواه البخارى في الصلاة باب ۲۰، ومسلم في المساجد ومواضع الصلاة رقم ۲٦٦ وأبوداود في الصلاة باب ۷۰، والترمذى في الصلاة باب ۵۹، والنسائي في الإمامة باب ۱۹، وابن ماجه في المساجد باب ۸، رقم ۷۲۷)_

**حل اللغة** ۱ يصف، صف صفوفا (ن): صف ترل

**تشريح** التريتب في الصفوف په دې عبارت کښې په امام پسې روستو د اودريدو دترتيب بيان دې.فرمائي.چه په امام پسې به د ټولو نه وړاندې سړی اودريږي.بيابه هغوی پسې ماشومان اودريږي. او په هغوی پسې خنثی اوبيا به هغوی پسې ښځې اودريږي.

**دلائله** ۱ د ابومالك اشعری نه نقل دی.[أنه قال يا معشر الأشعريين :إجتمعوا واجمعوا نساءكم وأبناءكم حتى أريكم صلاة رسول الله ﷺ فاجتمعوا وجمعوا أبناءهم ونساءهم ثم توضأ وأراهم كيف يتوضأ ثم تقدم فصف الرجال في أدنى الصف وصف الولدان خلفهم وصف النساء خلف الصبيان]

يعني ابومالك اشعری ﷺ اوفرمائيل.اے داشعری قبيلے خلقو تاسو په خپله هم راجمع شئ.او خپلے ښځې او بچی هم راجمع کړئ.چه زه تاسو ته د رسول الله ﷺ مونځ اوښايم.نو هغوی هم راجمع شول.او خپل خامن او ښځې نې هم راجمع کړې.بيائې اودس اوکړلو.اوهغوی ته ئې اوخودل.چه نبی ﷺ به څنګه اودس کولو.بيا ابومالك وړاندې شو.بيا د سړو صف اودريدلو.او د هلکانو په هغوی پسے روستو اود ښځوصف دماشومانو نه روستو جوړکړې شو.

۲ عقلی دليل دا دې.چه د ښځې په محاذات باندې دسړی مونځ ماتيږي.نوځکه به ښځې روستو کولې شی.

**د ښځې د محاذات مسئله**

فَإِن قَامَتِ امْرَأَةٌ إِلَى جَنْبِ رَجُلٍ که اودريده ښځه په اړخ د سړی کښې وَهُمَا مُشْتَرَكَانِ فِي صَلَاةٍ وَاحِدَةٍ.او حال دا وی.چه دواړه په يو مونځ کښې شريك وی فَسَدَتْ صَلَاتُهُ.نو د سړی مونځ فاسد يږي.

**حل اللغة** ۱ حاذته، حاذی محاذاة: برابرکيدل ۲ فسدت، فسد فساداً (ن): فاسيد کيدل ۳ نوی، نية: نيت کول، اراده کول ۴ تارك: پريخودونکي ۵ ماموم: مقتدی ]

**تشريح** فساد صلاة الرجل بمحاذاة المرأة ۱ صورت د مسئلې دا دې.که يوه ښځه د سړی سره برابر اودريږي.په داسې حال کښې چه سړې او ښځه دواړه په يو مونځ کښې مشترك وی.او امام دے ښځې دامامت نيت هم کړې وی.نوپه داسې صورت کښې به دسړی مونځ فاسديږي.

**دليله** دليل د عبدالله بن مسعود ﷺ حديث [أن رسوالله ﷺ قال أخروهن من حيث أخرهن الله] په دې حديث کښې سړو ته حکم شوې دې.چه دوی ښځې روستو کړی.نوهرکله چه ښځه ده سړه برابر شی. نو لکه چه سړی خپل فرض مقام پريخودلو.ځکه چه داسې مونځ چه په هغې کښې سړی او ښځې دواړه شريك وی.د ښځې روستو کول د سړی فرض دی.او داخبره منلے شوې ده.چه چا فرض پريخودے وی.د هغه مونځ فاسد وی.د بل چا نه ،نو ځکه مونږ دا وايو.چه د محاذات په وجه د سړی مونځ فاسديږي.د ښځې نه.

**الاعتراض** اوکه دا اعتراض اوکړې شی.چه دا خبر واحد دې.او په خبر واحد باندې فرضيت نه ثابتيږي.

**الجواب عنه** نو ددې جواب صاحب د هدايه رحمه الله دا کړې دې چه دا حديث په مشهرو احاديثوکښې دې.ځکه خبر مشهور قطعی الدلالة وی.اوپه حديث مشهور سره فرضيت ثابتيږي.نو څه اعتراض پاتې

نشو.

**فوائد**> محاذات مفسده دا دې.چه په مانځه کښې دننه د ښځې قدم د سړی دقدم سره برابر او مقابل وی.

**صورة عدم نية الإمام إمامتها**>اوکه امام د محاذی ښځې د امامت نیت نه وی کړی.یعنی دا نیت ئې نه وی کړی.چه زه ددې ښځې امام یم.نو په دې صورت کښې د ښځې محاذات سړی ته څه ضرور نه رسوی.او ددغه ښځې مونځ هم جائز نه دې.

**دلائله**> ① دلیل دا دې.چه زمونږ په نیز بغیر د نیت نه اشتراك في الصلاة نه ثابتیږی.

② دویم دلیل د [أخروهن] احادیث دی.د مقتدیانو په ترتیب سره د اودرولو ذمه واری په امام باندې ده.یعنی ترتیب د مقام په امام باندې لازم دې.او په کوم کس چه څه څیز لازم وی.نو هغه به د هغه په لزوم باندې موقوف وی.یعنی که امام ئې لازم کړی.نو لازم به وی. ګنی نه وی.لکه څنګه چه د اقتداء حال دې.چه د مقتدی د اقتداء کولو نیت شرط دې.څکه چه هم ددې اقتداء د نیت په وجه هغه خپل مونځ د امام په ضمانت کښې ورکوی.که د امام په څه حرکت کولو سره په مانځه کښې نقص او ضرر پیدا شی.نو مقتدی به هغه قبلوی. اودهغه په رضا سره به په هغه باندې لازمیږی.دغه شان د امام ښځو ته د امامت ورکولو نیت شرط دې.چه د ښځو د طرفه که څه ضرر پیش شی.نو هغه به امام قبول کړې وی.

③ شمس الائمه سرخسی رحمه الله بغیر د امامت د نیت نه دامام د مونځ دعدم فساد وجه دا بیان کړې ده.که بغیر دامامت د نیت نه د ښځې اقتداء صحیح اوګرځولې شی.نو هره ښځه به چه څنګه غواړی.د سړی د مونځ په فاسدولو باندې قادره وی.هغه داسې چه په سړی پسې به اقتداء کوی.اود هغه په اړخ کښې به اودریږی.او ښکاره ده.چه په دې کښې سړی ته ضرر دې. ددې وجې د سړی دپاره د امامت شرط اوګرځولې شو.ددې دپاره چه دا ضرر د سړی په رضا مندئ سره په ده باندې لازمیږی.

**دمحاذاة شرطونه**

**الإشتراك في التحريمة**>په دې عبارت کښې مفسد محاذات شرطونه ذکر شوی دی. ①اول داچه د دواړو مونځ په تحریمه او ادا کښې مشترك وی.په تحریمه کښې د اشتراك مطلب دا دې.چه د دواړو د تحریمې بناء د امام په تحریمه باندې وی.یا په دې دواړو کښې یو د بل په تحریمه باندې بناء کړې وی.په دې طریقه چه په ښځه او سړی کښې یو امام او بل مقتدی وی.او په ادا کښې د اشتراك مطلب دا دې.چه کوم مونځ دا دواړه کوی.په هغې کښې ددې دورو دپاره امام وی.حقیقة یا حکماً ،

**مثاله**>مثلاً یو سړی او یوے ښځې په دریم رکعت کښې په امام پسې اقتداء اوکړله.بیا دا دواړه بے اودسه شو.او دواړه لاړل.بیا راغلل.اومونځ کول ئې شروع کړل.او ښځه دده سره محاذی شی.نوکه ښځه د امام په دریم او څلورم رکعت کښې محاذی شوې وی.کوم چه ددې دواړو اولنی او دویم رکعت وی.نو د سړی مونځ به ددې محاذات د وجے فاسدیږی.څکه چه په دریم او څلورم رکعت کښې د تحریمې او د ادا دواړو په اعتبار سره اشتراك دې.اشتراك في التحریمه خو ددې دپاره دې.چه د دواړو د تحریمے بناء د امام په تحریمه باندې وی.او اشتراك في الاداء ددې وجې دې.چه په دویم او څلورم رکعت کښې د دواړو دپاره یو امام دې.اګرچه حکماً حکماً دې.حکماً ددې وجې دې.چه کله دواړه د اودس کولو دپاره لاړ شی.نو امام خپل جماعت پریږدی نوامام خپل مونځ پوره کړی وی.نو په دریم او څلورم رکعت کښې دا

دواړه لاحق شو.او د لاحق دپاره اګرچه په حقيقت کښې امام نه وي.خو حکماً امام وي.

**ادراک الرکعتين الأخرين مع الإمام** اوکه روستنی دواړه رکعتونه اوکړي.او په خپل دريم او څلورم (کوم چه په حقيقت کښې د دوی اولنی او دويم رکعت دے) لاړه شي.او د سړی سره محاذی شي.نود سړی مونځ نه ماتيږي.ځکه چه په اولنی او دويم رکعت کښې دا دواړه مسبوقان دی.اومسبوق چه کله خپل فوت شوی رکعتونه کوی.نودهغه دپاره نه حقيقةً امام وی.اونه حکماً امام وی.او په دې دواړو رکعتونو کښې شرکت في التحريمه اګرچه موجود دې.خو شرکة في الاداء موجود نه دې.نو ځکه په دې صورت کښې هم محاذات مفسد د مانځه نه دې.

② دويم شرط دا دې.چه صلاة مطلقه وي.(د رکوع او سجدے مونځ) اګرچه د څه عذر د وجے دا په اشاره باندې ادا کوی.نود جنازے په مانځه کښې محاذات مفسد نه دې.

③ دريم شرط دا دې. چه ښځه مشتهاة (قابل شهوت) وي.برابره ده که دا ښځه وينځه وي اوکه اصيله وي.بی بی وي يا مور يا خور وغيره محرمه وي.

④ څلورم شرط دا دې.چه د دواړو په مينځ کښې څه څيز پرده نه وي.مثلاً ستن،يا بل څه څيزيا دومره ځائے خالي وي.چه په هغې کښې يو سړي اودريدېږي.

**دليله** عَنِ الْحَارِثِ بْنِ مُعَاوِيَةَ الْكِنْدِيِّ أَنَّهُ رَكِبَ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَسْأَلُهُ عَنْ ثَلَاثِ خِلَالٍ قَالَ فَقَدِمَ الْمَدِينَةَ فَسَأَلَهُ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَا أَقْدَمَكَ قَالَ لِأَسْأَلَكَ عَنْ ثَلَاثِ خِلَالٍ قَالَ وَمَا هُنَّ قَالَ رُبَّمَا كُنْتُ أَنَا وَالْمَرْأَةُ فِي بِنَاءٍ ضَيِّقٍ فَتَحْضُرُ الصَّلَاةُ فَإِنْ صَلَّيْتُ أَنَا وَهِيَ كَانَتْ بِحِذَائِي وَإِنْ صَلَّتْ خَلْفِي خَرَجَتْ مِنَ الْبِنَاءِ فَقَالَ عُمَرُ تَسْتُرُ بَيْنَكَ وَبَيْنَهَا بِثَوْبٍ ثُمَّ تُصَلِّي بِحِذَائِكَ إِنْ شِئْتَ الحديث[1]

## د ښځو دپاره په جماعت کښې شرکت

| وَيُكْرَهُ لِلنِّسَاءِ حُضُورُ الْجَمَاعَةِ او د ښځو دپاره جماعت ته حاضريدل مکروه دی |
|---|

**تشريح** حضور النساء الجماعة ① د ځوانانو (پيغلو) ښځو جماعت ته حاضريدل مکروه دی.

**دلائله** ① زمونږ دليل دا دې.چه د ځوانانو (پيغلو) ښځو په حاضرئ کښې د فتنے ويره ده.ځکه به دوی جماعتونو ته د حاضريدو نه منع کولې شی.

② دويم دليل دا دې.چه کله حضرت عمر رضي الله عنه ښځې جماعتونو ته د تلو نه منع کړلې.نوښځو حضرت عائشې رضي الله عنها ته شکايت اوکړلو.نو ام المومنين رضي الله عنها ورته اوفرمائيل.که نبی ﷺ ته ددې حالت علم شوې وې.د کوم چه عمر رضي الله عنه ته علم دې.نو نبی ﷺ به ښځې اجازت نه وو ورکړې.په يو روايت کښې دی.که نبی ﷺ دنن پشان مونځګذارو حالت ليدلے وې.نولکه څنګه چه د بنی اسرائيلو ښځې منع شوې وې.تاسو به هم منع شوې وئ.

③ ابن عبدالبر رحمه الله په خپل سند سره د حضرت عائشې رضي الله عنها نه نقل کړې دې. [أيها الناس انهوا نساءكم عن لبس الزينة والتبختر في المساجد فإن بني إسرائيل لم يلعنوا حتى لبست نساءهم الزينة وتبختروا في المساجد] يعنی اے خلقو خپلے ښځې په جماتونو کښې د زينت او تکبر د لباس اغوستلو نه منع کرئ.ځکه چه بنی

(۱) اخرجه ابوداود في الصلاة باب إذا أحدث في صلاته فليستقبل رقم ۸۵۳ رجاله ثقات)

اسرائیل ملعون شوی نه وو،تردے چه د هغوی ښځو په جماتونو کښې د زینت او فخر او غرور جامے واچولې. چونکه زمونږ په زمانه کښې د فاسقانو غلبه ده.نو ځکه به غیر مزینے زنانه هم منع کولې شی.

### د بوډۍ ګانو ښځو دپاره په جماعت کښې شرکت

| وَلَابَأسَ بِأن تَخرُجَ العَجُوزُ اونشته څه قباحت چه بوډۍ ښځې راوځی فِی الفَجرِوَالمَغرِبِ وَالعِشَاءِ صبا،ماښام او د ماسخوتن په مانځه کښې اوځی عِندَأبِی حَنِیفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ . د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز وَقَالَ أبُویُوسُفَ وَمُحَمَّد او صاحبین رحمهما الله فرمائی یَجُوزُخُرُوجُ العَجُوزِفِی سَائِرِالصَّلَوَاتِ جائز دی وتل د بوډیګانو په ټولو مونځونو کښې |
|---|

**حل اللغة** ﴿١﴾عجوز: بوډئی ښځه

**تشریح** ﴿ عدم جواز خروج العجوزات إلي المساجد ﴾حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله بوډۍ ګانے ښځې د ماسپخین اومازیګر په وخت کښې د وتلو نه منع کړی دی.البته د ماسخوتن او ماښام په وخت کښې ئې د وتلو اجازت ورکړې دې.

**دليله** ﴿ دامام ابوحینفه رحمه الله دلیل دا دې.چه د شهوت زیادت د جماع باعث جوړیږی. نو د بوډۍ ګانو ښځو په وتلو کښې هم فتنه واقع کیږی.البته دومره خبره ضروری ده.چه فاسقان خلق په ماسپخین او مازیګر او د جمعې د مانځه په وختونو کښې ګرځی.نو ځکه به په دې وختونو کښې بوډۍ ګانے ښځې نه اوځی.باقی پاتې شو د صبا او ماسخوتن په وخت کښې نو دوی په دغه وخت کښې اوده وی.او دماښام په وخت کښې په خوراك کښې مشغول وی.او معلومه شو.چه په دے دریو وختونو کښې د فاسقانو نه امن وی.ځکه په دے درې واړه وختونو کښې بوډۍ ګانوښځې ته د مانځه دپاره د وتلو اجازت ورکړې شو.

**مذهب الصاحبين** ﴾او صاحبینو رحمهما الله بوډۍ ګانے ښځو ته په ټولو مونځونو کښې د وتلو اجازت ورکړې دې.

**دليلهما** ﴾ دلیل دا دې.چه بوډۍ ګانو ښځو ته د طبعیت د میلان دکمی دوجے څه فتنه نه وی.نوځکه د دوی وتل هم مکروه نه دی.لکه په اختر کښې چه ئې وتل په اتفاق سره جائز دی.

**الجواب عن قياس الصاحبين** ﴾صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه دصاحبینو رحمهما الله په اختر کښې وتلو باندې قیاس صحیح نه دې.ځکه چه د اختر په ورځ عام طور مونځ په صحراء کښې وی.او صحراء لویه وی.نو په لوئې میدان کښې د بوډۍ ګانو ښځو د سړو نه یوخواته کیدل ممکن وی.ځکه د دوی په اختر کښې وتل مکروه نه دی.

**فائده** ﴾ نن صبا چونکه فساد عام دې.نو په ټولو مونځونو کښې د بوډۍ ګانو ښځو دپاره وتل مکروه دی.(عنایه)

### دطاهره دپاره د مستحاضه اقتداء کول

| وَلَایُصَلِّی الطَّاهِرُخَلفَ مَن او پاك سړې دے په هغه کس پسے مونځ نه کوی. بِهِ سَلَسُ البَولِ چه په هغه د متیازو څڅیدو مرض وی وَلَاالطَّاهِرَاتُ خَلفَ المُستَحَاضَةِ.او نه پاکې ښځې په مستحاضه ښځه پسې مونځ کوی. |
|---|

**تشریح> عدم جوازاقتداء الطاهر من به سلس البول >** دچا نه چه متیازې بهیږي نوهغه کس معذور دې نو پاك سړې به په معذوره پسې مونځ نه کوی.اونه پاکه ښځه په معذورې ښځې پسې.

**مفهوم الإستدلال>** د دلیل نه وړاندې دا خبره په ذهن کښې کینوئ.چه ددې پشان د ټولو مسئلو اصل دنبی ﷺ ارشاد دے [الإمام ضامن] اود حدیث معنی دا ده.چه د امام مونځ دمقتدی د مونځ متضمن دې. دا معنی نه ده.چه دمقتدی د مونځ ذمه وار یعنی مکلف دې.دویمه خبره چه دخپل خان نه کم لره متضمن دې.یا د خپل خان پشان لره،خو دخپل خان اوچت لره متضمن نه دې.

**حاصل الدلیل>** اوس ددلیل حاصل دا شو.چه په ذکر شوی صورت کښې مقتدی چونکه پاك او غیر معذور دې.او امام د معذور په حکم کښې دې.نوځکه د مقتدی د مونځ حال د امام د مانځه د حالت نه قوی او اوچت دې.او دامام دمانځه حال کم او ادنی دې.اوچونکه کم او اضعف اقوی لره نشی متضمن کیدې.نوځکه دامام مونځ د مقتدی دمانځه دپاره نشی متضمن کیدې.حالانکه دامام مونځ د مقتدی د مانځه دپاره متضمن وی.نوځکه د پاك او غیر معذور سړی اقتداء په معذور پسے جائز نه ده.

**دقاری په امی او د کاسی په عاری پسې اقتداء**

| وَلَا الْقَارِئُ خَلْفَ الْأُمِّيِّ اومونځ به نه کوی قاری په امی پسې.وَلَا الْمُكْتَسِي خَلْفَ الْعُرْيَانِ اونه عورت پټونکي په بربنډ پسې |
|---|

**حل اللغة >** ①امی: ان پړه ②مکتسی: کپړې اغوستونکې ③عریان: بربنډ ، چاسره چه کپړې نه وی ]

**تشریح> تعریف الأمي>** أمی،،ان پړه،، منسوب الی الام یعنی څنګه چه دے خپل مور ځیګولے وی .هم هغه شان وی.او په کتاب الله ،حدیث او د عربو په ژبه کښې چه چرته هم دا لفظ راغلے دې. ددې نه مراد هغه کس دې.څوك چه په لیکلو او لوستلو قدرت نه لری.کوم کس چه د قرآن یو آیت لوستلے شی.دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز هغه د امیت نه خارج دې.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز څوك چه د درې آیاتونو یا یواوږد آیت په لوستلو قادر وی.نو هغه د امیت نه خارج دې.(عنایه)

باقی صورت د مسئلې ښکاره او واضحه ده

**دلیله>** دلیل دا دې چه د قاری او مکتسی حال د امی او عاری په نسبت سره قوی دې.

**اودس کونکو دپاره په تیمم کونکو پسې اقتداء**

| وَيَجُوزُ أَنْ يَؤُمَّ الْمُتَيَمِّمُ الْمُتَوَضِّئِينَ جائز دی چه تیمم کونکی اودس کونکو ته امامتی ورکړی. |
|---|

**حل اللغة >** ①ان یؤم، ام امامة (ن): امامت کول ②متوضئین: اودس کونکی

**تشریح> إقتداء المتوضي بالمتيمم>** چه متوضی په متیمم پسې اقتداء کولے شی

**دلیله >** دلیل دادې.چه تیمم طهارت مطلقه غیر موقته دې.یعنی تیمم مطلقاً طهارت دی.د مستحاضه د طهارت پشان موقت نه دې.هم دا وجه ده چه په قدر د جاحت پورې مقدر نه دې.بلکه ترلس کالو پورې که اوبه پیدا نشو.یا ددې په استعمال باندې قدرت نه وی.نو تیمم په مشروع وی. نو هرکله چه تیمم طهارت مطلقه شو. نو د متیمم او متوضی دواړو حالت یو شان شو.اوهرکله چه د دواړو حالت یو شان شو.نو یو د بل امامت کولے شی

## په ماسح پسې د غاسل اقتداء

وَالْمَاسِحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ او په موزو باندې مسح کونکی اَلْغَاسِلِيْنَ پښو وينځونکو امامتی ته ورکولې شی

**حل اللغة** ۞ ①ماسح: مسح کونکې ②غاسلين: وينځونکی ③خف: موزه

**تشریح** ۞ **جوازامامة الماسح للغاسل** ۞ صورت د مسئلې دا دې.چه په موزو باندې مسح کونکې پښو وينځونکی امامتی کولې شی.

**دليله** ۞ دليل دا دې.چه صاحب د موزے خپلو پښو وينځلونه روستو موزے اچولے دی.او موزه قدم ته د حدث سرايت نه پريږدی.نوداکس د پښو وينځونکے پاتې شو.

**الاعتراض** ۞ اوکه څوک دا اعتراض اوکړی چه حدث په موزه کښې ورداخل شوې دې.نو ددې جواب دا دې.چه څه په موزه کښې ورداخل شوی وی.هغه په مسح لرے کيږی.نو ځکه د موزے د خاوند طهارت د وينځونکی پشان باقی دې.

## د قائم په قاعد پسې اقتداء

وَيُصَلِّي الْقَائِمُ خَلْفَ الْقَاعِدِ او ولاړ سړې په ناست پسې مونځ کولې شی

**حل اللغة** ۞ ① يصلی، صلی صلاةً: مونځ کول، دعاکول ② خلف: روستو ③ قاعد: کيناستونکې

**تشریح** ۞ **صلاةالقائم خلف القاعد** ۞ مسئله :قائم دقاعد اقتداء کولےشی.

**دليله** ۞ نبی ﷺ چه کله په مرض الوفات کښې مبتلا شو.نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.چه ابوبکر ؓ ته اووائې.چه خلقو ته مونځ ورکړی.چه دا ئې واوريدلو.نوحضرت عائشې ؓ (حضرت حفصې ؓ ته اوونيل.چه ته د الله پيغمبر ته اووايه.چه ابوبکر ؓ دنرم زړه سړې دې.چه ستاسو په ځائې په مصلی اودريږی.نو په خپل ځان به ئې قابو رانشی. ددې وجې بل چاته د مونځ ورکول حکم اوکړئ.عائشې ؓ د خبره دوباره اوکړله.نو نبی ﷺ اوفرمائيل. [اَنْتُنَّ صواحبات يوسف ؑ] ابوبکر ته اووائې.چه خلقو ته مونځ ورکړی.بيا چه کله صديق اکبر مونځ شروع کړلو.نو نبی ﷺ په مرض کښې خفت محسوس کړلو.بيا ئې د حضرت عباس او حضرت علی ؓ په سهارا باندې جمات ته تشريف يوړلو.چه کله ابوبکر ؓ د نبی کريم ﷺ په راتګ باندې پوهه شو.نو روستو شو.او نبی ﷺ وراندې شو.او په ناسته ئې مونځ کولو.او ابوبکر ؓ به دنبی ﷺ په مانخه پسې مونځ کولو.اوخلقو به دابوبکر ؓ په مانخه پسې مونځ کولو.مراد دا دې.چه نبی ﷺ په ناسته امامتی کوله.او ابوبکر ؓ چه به د نبی ﷺ د تکبير آواز واوريدلو.نو تکبير به ئې کولو.اوچه خلقو به د ابوبکر ؓ د تکبير آواز واوريدلو.نوتکبير به ئې وئيل.دا دنبی ﷺ آخری مونځ وو.په دې کښې نبی ﷺ امامتی ورکړې وه.ددې حديث نه معلومه شوه.چه د ولاړه سړی مونځ په ناسته مونځ کونکی پسے کيږی.

## د راکع او ساجد دپاره د مومی پسې اقتداء

وَلَا يُصَلِّي الَّذِي يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ او رکوع او سجده کونکې به اقتداء نه کوی خَلْفَ الْمُوْمِيْ په اشاره مونځ کونکی پسې

**حل اللغة** ۞ ①يركع، ركع ركوعًا (ف): ټيټيدل، رکوع کول ②مومی: اشاره کونکې ]

**تشریح ﴿ اقتداء الراکع بالمؤمي ﴾** ①مسئله دا ده.چه په رکوع او سجدے سره موخ کونکې به په اشاره کونکی پسې مونځ نه کوی .

**دلیله ﴿** دلیل دا دې.چه په دې مسئله کښې د مقتدی حال اقوی دې.او امام اضعف دې.او وړاندې تیر شوی دی.چه اضعف الحال اقوی الحال ته امامتی نشی ورکولې.

**د مفترض دپاره په متنفل پسې اقتداء**

| وَلَایُصَلِّی الْمُفْتَرِضُ خَلْفَ الْمُتَنَفِّلِ اوفرض کونکې دے په نفل کونکی پسې اقتداء نه کوی |
|---|

**حل اللغة ﴿①** خلف: روستو، متنفل: نفل مونځ کونکې

**تشریح ﴿ عدم جواز اقتداء المفترض بالمتنفل ﴾** د مفترض دپاره په متنفل پسې اقتداء کول جائز نه ده.

**دلیله ﴿** ځکه چه اقتداء نوم دے د بناء کولو.او بناء امر وجودی دې.امر عدمی نه دې.او ښکاره ده.چه متابعت مفهوم وجودی دې.مفهوم سلبی نه دې.او د امر وجودی بناء په امر عدمی باندې صحیح نه د.اوچونکه په ذکر شوې مسئله کښې د امام په حق کښې د فرضیت وصف معدوم دې.نوځکه بناء نه متحقق کیږی.او کله چه بناء کول نه متحقق کیږی.نو اقتداء به څنګه صحیح شی.

**د یومفترض په بل مفترض پسې اقتداء**

| وَلَامَنْ یُصَلِّی فَرْضًا فرمائی او اقتداء دے نه کوی هغه کس چه فرض کوی خَلْفَ مَنْ یُصَلِّی فَرْضًا آخَرَ روستو په هغه کس پسې چه بل فرض کوی |
|---|

**حل اللغة ﴿①**فلابد: ضروری، چه دُ هغې نه بله لارنه وی

**تشریح ﴿ عدم جواز اقتداء المفترض بالمفترض فرضاً آخر ﴾** صورت د مسئلې دا دې.چه د یو فرض کونکې به په بل فرض کونکی پسې اقتداء نه کوی.مثلاً د ماسپخین مونځ کونکې به د مازیګر مونځ کونکی پسې اقتداء نه کوی.

**دلیله ﴿**دلیل دادې.چه اقتداء نوم دې.په تحریمه کښې د شرکت او په افعال بدنیه کښې د موافقت ،او شرکت کښې موافقت په هغه وخت کښې کیدےشی.چه د دواړو تحریمه او افعالوکښې اتحاد وی .اوچونکه په ذکر شوی صورت کښې اتحاد نشته.نوځکه اقتداء هم صحیح نه ده.

**د متنفل دپاره په مفترض پسې اقتداء**

| وَیُصَلِّی الْمُتَنَفِّلُ خَلْفَ الْمُفْتَرِضِ او مونځ د. کوی متنفل په مفترض پسې |
|---|

**حل اللغة ﴿①** متنفل: نفل مونځ کونکې

**تشریح ﴿ جواز اقتداء المتنفل بالمفترض ﴾**نفلی مونځګذاریه فرضی مونځګذارپسې اقتداء کولې شی.

**دلیله ﴿**دلیل دا دې.چه د متنفل په حق کښې صرف د اصل مونځ ضرورت وی.او اصل مونځ د امام په حق کښې موجود دې.ځکه دمتنفل په مفترض پسې اقتداء متحقق ده.وجه ددې دا ده.چه د نفلی مونځ دصحت دپاره مطلق نیت کافی دې.او په مطلق نیت باندې فرض هم مشتمل دې.ځکه اقتداء صحیح ده.

**په یو اودسه امام پسې د اقتداء حکم**

| وَمَنْ اقْتَدَیٰ بِإِمَامٍ اوچا چه په یو امام پسې اقتداء اوکړله. ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ عَلَىٰ غَیْرِ طَهَارَةٍ بیا معلومه |
|---|

شوه.چه د ده امام بے اودسه وو أَعَادَ الصَّلَاةَ نو دے به مونځ راګرځوی. (اوقوم به هم مونځ ګرځوی)

**حل اللغة** ① اقتدی، اقتدي اقتداءً: پیروی کوی ② علم، علماً (س): پیژنګلو، پیژندل ③ غیرطهارة: بي اودسه ④ اعاد، اعاد اعادة: واپس کول

**تشریح** > **إعادة الصلاة بالإقتداء بالإمام المحدث** > ① صورت د مسئلې دا دی.چه که یو کس امام پسے اقتداء اوکړله .بیا مقتدی ته علم اوشو.چه دده امام بے اودسه وو.نو دا کس دے د خپل مونځ اعاده اوکړي.اوکه د اقتداء کولو نه وړاندې د امام بے اودسی معلومه شوې وه.نو په اجماع سره اقتداء کول جائز نه دی.

**دلائله** > ① نبی ﷺ فرمائیلی دی «من أم قوما.ثم ظهر.أنه كان محدثا أو جنبا أعاد صلاته وأعادوا.»[1] چا چه یو قوم ته امامتی ورکړله.بیا معلومه شوه چه دے محدث یا جنب وونو دخپل مونځ اعاده دے اوکړی

② علامه ابن الهمام رحمه الله د حضرت جعفر نه د حضرت علی رضی الله عنه دا فعل نقل کړې دې. [أن علياً رضی الله عنه صلى بالناس وهو جنب أو على غير وضوء فأعاد وأمرهم أن يعيدوا] حضرت علی رضی الله عنه خلقو ته په حالت جنابت یا بغیر د اودس مونځ اوکړلو.بیا نې د مونځ اعاده اوکړله.اوخلقو ته نې هم د اعادے حکم اوکړلو.ددې نه معلومه شوه.چه د مقتدی مونځ د امام د مونځ په فساد سره فاسدیږی.

وَيُكْرَهُ لِلْمُصَلِّي او مکروه دی د مونځګذار دپاره أَنْ يَعْبَثَ بِثَوْبِهِ. چه لوبے کوی د خپلو جامو أَوْ بِجَسَدِهِ یا بدن سره

**حل اللغة** > ① یعبث، عبث عبثاً (س): لوبې کول ② ثوب جمع اثواب: کپړې ③ جسد جمع جسود: بدن ④ ظن: ګمان خیال ]

**تشریح** > **الربط بما قبله** > وړاندې د مفسداتو دمانځه بیان وو.په دے ځائې کښې دمکروهاتو ذکر دی.

**تعریف العبث** > د امام بدرالدین کردری رحمه الله د قول مطابق عبث هغه فعل دې.چه په هغې کښې غرض خو وی.خو شرعی نه وی. مسئله دا ده.چه د مصلی د خپلو جامو یا بدن سره لوبے کول مکروه دی.

**دلائله** > ① دلیل دا دې.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.الله تعالی ستاسو دپاره درې څیزونه مکروه کړی دی.په دې کښې یو په مانځه کښې لوبے کول او په باقې دوو کښې یو د روژې په حالت کښې ګنده خبرے کول.او بل څیز په مقبره کښې په قهقهه خاندل، [2]

② دویم دلیل دا دې.چه عبث فعل د مونځ نه بهرحرام دې.نو په مانځه کښې ستا څه خیال دې.یعنی په مانځه کښې خو به په درجه اولی سره حرام وی.

---

[1] ، غربه الزيلعي بهذا اللفظ (نصب الراية ۱/۵۷) ثم قال وبه أثر عن على رضی الله عنه ورواه محمد بن الحسن في (كتابه الآثار) ... أن علي بن أبي طالب رضی الله عنه قال في الرجل يصلي بالقوم جنباً قال يعيد ويعيدون إنتهى و رواه الدارقطني في سننه (۱/۳٦٤)۔

[2] ، قال الزيلعي رحمه الله رواه القضاعي في مسند الشهاب ... عن يحيى بن ابي كثيرمرسلاً ثم ذكر ضعف هذا الحديث (نصب الراية ۲/۸۵) والعبدالضعيف شاه فيصل ينقل لكراهة العبث في الصلاة حديثاً من كتابه ،،سنن الصلاة في فقه الأحناف،، قَالَ حَجَّاجٌ الْأَمَوِيُّ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ وَرَأَى رَجُلًا يَعْبَثُ فِي صَلَاتِهِ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ لَا تَعْبَثْ فِي صَلَاتِكَ وَامْتَنِعْ كَمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْتَنِعُ،رواه احمد في مسندالصحابة حديث ابن الخطاب رقم ۴۸۰۰ رجاله ثقات )۔

**په مانځه کښې ګټکو اړولو راړولو کراهت**

| |
|---|
| وَلَايُقَلِّبُ الْحَصٰی اونه به اړوی راړوی ګټکی (په مانځه کښې) اِلَّاأَنْ لَايُمَكِّنَهُ السُّجُوْدُ.البته دا چه نه وی ممکن سجده کول فَيُسَوِّيَهُ مَرَّةً وَّاحِدَةً.نو برابر دی کړی دا یو ځل |

**حل اللغة** ﴿①لايقلب،قلب تقليبا: واپس ګرځيدل ② فيسويه، سوى تسوية: برابرول ③ مرة: يوځل

**تشريح**﴿ **كراهية تقلب الحصي**﴾ مسئله دا ده.چه د مونځ په حالت کښې ګټکی نه اړوی.ځکه چه دا یو قسم عبث فعل دې.البته که سجده کول ورته ممکن نه وی.نو په یوځل دے اخوا کړی.یعنی یو ځل دے د سجدے ځائې برابر کړی.په غیر ظاهر روایت کښې د دوو ځلو اجازت هم شته.

**دلائله**﴾ ①عبدالرزاق د حضرت ابوذر ﷛ نه نقل کړی دی [سألت النبي ﷺ عن كل شئ حتى عن مسح الحصى فقال واحدة أودع] حضرت ابوذر ﷛ فرمائی.چه ما د رسول الله ﷺ نه دهر څیز تپوس کړې دې.تردے چه د ګټکو اخوا کولو په باره کښې هم،نو نبی ﷺ اوفرمائيل.چه یو ځل ګنی پريږدې ده.او د معیقیب نه روایت دې.[أنه ﷺ قال لاتمسح الحصى وأنت تصلي فإن كنت لابد فاعلا فواحدة] یعنی نبی ﷺ فرمائيلی دی.چه ګټکی مه اخوه کوه.په داسې حالت کښې چه ته په مانځه کښې نې.اوکه ضرورت پيښ شی.نویوځل.

② عقلی دلیل دا دې.چه ګټکی اخوا کول د خپل مونځ د اصلاح دپاره دی.او په کوم عمل سره چه د مونځ اصلاح مقصود وی.نوپه هغې کښې څه حرج نشته.

**د ګوتو نه د ټقونو ويستلو او په تشی د لاسونو کیخودلو کراهت**

| |
|---|
| وَلَايُفَرْقِعُ او ټقونه به نه اوباسی أَصَابِعَهُ د خپلو ګوتو نه به ټقونه نه اوباسی وَلَايُشَبِّكُ اوپه یو بل کښې به ګوتې نه ننباسی.وَلَايَتَخَصَّرُ. او تشی به لاسونه نه ږدی. |

**حل اللغة** ﴾① لايفرقع، فرقع فرقعة: چغې وهل ②اصابع: ګوته ③لايتخصر، تخصر تخصرا: په خيته لاس کیخودل ④وضع: ساتل ⑤يدجمع ايدى: لاس ]

**تشريح**﴾ **كراهة فرقعة الأصابع** ﴾په مانځه کښې د ګوتو نه ټقونه ویستل هم مکروه دی.

**دليله**﴾دلیل دا دې.چه نبی ﷺ حضرت علی ﷛ ته فرمائيلی وو.[إنى أحب لك ما أحب لنفسي لا تفرقع أصابعك وأنت تصلي] (۱)یعنی زه ستا دپاره هغه څیز خوښوم.کوم چه زه دخپل ځان دپاره خوښوم.نو په حالت د مانځه کښې د خپلو ګوتو نه ټقونه مه اوباسه.د بعضو په نیز د مانځه نه بهرهم د ګوتو نه ټقونه ويستل مکروه دی.وجه د کراهت دا ده.چه دا د قوم لوط عمل دې.

**الأقوال الثلاثة في تعريف المختصر**﴾ ①دمختصر یو تفسیر خوصاحب د هدایه کړې دې.یعنی په تشو باندے لاسونه کیخودل،هم دا تفسیر غوره او مناسب دې.

②او بعضو وئيلی دی.چه مختصر په همسا باندې تکیه لګونکی ته وائی.

③او بعضو وئيلی دی.چه تخصر دا دې.چه د سجدے یو آیت حذف کړی.او باقی اووائی.

**كراهة التخصر**﴾د مانځه په حالت کښې تخصر هم مکروه تحریمی دې.

---

(۱)حديث على ﷛ رواه ابن أبن ماجه في الإقامة باب ٤٢ رقم الحديث ٩٦٥ ولفظه فيه ،،لاتفقع،،)_

**دلائله>** ①دليل دا دې چه په حالت د مانځه کښې دتخصر نه نبی ﷺ منع فرمائيلې ده. حضرت ابوهريره ﷺ روايت کړې دې. [أنه ﷺ نهى عن الإختصار في الصلاة] (١)

②عقلی دليل دا دې.چه د تخصر په صورت کښې د مسنون طريقې پريخودل لازميږی.اود مانځه نه بهر هم د سړی او ښځې دپاره مکروه تنزيهی دې.

## په مانځه کښې د جامې راغونډول او د سدل کراهت

| وَلَايَسْدُلُ ثَوبَهٗ وَلَايَكُفُّهٗ او نه به زوړند وی جامې خپلې اونه به ئې راغونډوی. |
|---|

**حل اللغة >** ① لايسدل، سدل سدلاً: کپړه زوړندول ②لايکف، کف کفًا (ف): راغونډول

**تشريح> کراهة السدل>** او جامې دے بے طريقې نه زوړندوی.

**تعريف السدل>** صاحب د کفايه رحمه الله فرمائی.چه سدل دے ته وائی.چه څادر يا قباء په خپلو اوږو باندې واچوی.او خپل لاسونه په لستوڼړو کښې نه اچوی.که د قميص دپاسه وی اوکه د قميص لاندې وی.

**دليله>** دليل دا دې.چه امام ابوداود د ابوهريره ﷺ نه روايت کړې دې. [أنه ﷺ نهى عن السدل في الصلاة وأن يغطي الرجل فاه] (٢)يعنی نبی ﷺ په مانځه کښې د سدل نه منع کړې ده.او ددې نه ئې منع کړې ده.چه سړې خپله خوله پټه کړی.سدل دا دې.چه خپله جامه په خپل سر او اوږو باندې راواچوی.او د هغې اړخونه دواړو طرفونو ته زوړند پريږدی.

**کراهية کف الثوب>** کف د جامې دا دې.چه کله د سجدې کولو اراده اوکړی.نو دخپلې مخې يا شاه نه جامه راوچته کړی.اوس حاصل د مسئلې دادې.چه که جامه په زمکه باندې راوغورځيږی نو دا دے نه رانيسی.ځکه چه په دې کښې يو قسم تکبر دې.

**دليله>** عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُمِرْتُ أَنْ أَسْجُدَ عَلَى سَبْعَةٍ لَا أَكُفُّ شَعْرًا وَلَا ثَوْبًا

| وَلَايَعقِصُ شَعرَهٗ. او نه دې معقوص کوی ويختہ خپل |
|---|

**حل اللغة >** ① شعر: ويښته

**کراهة العقص>** د مانځه په حالت کښې د سر ويختو کلکول هم مکروه دی. صاحب د کفايه د ويختو د معقوص کولو درې صورتونه ليکلی دی.

① د سر نه گير چاپيره د ويختو نه کونسئ جوړے کړی.لکه څنگه چه ښځې کوی.

② په تندی ئې جمع کړی.او په تار ئې اوتړی

③ په څه ځليخدار څيز يا گوند باندې ئې کلك کړی.

---

(١) حديث ابي هريرة رضي الله عنه رواه البخاری في العمل في الصلاة باب ١٧ ومسلم في المساجد ومواضع الصلاة حديث ٤٧ وابوداود في الصلاة باب ١٧٢ رقم الحديث ٩٤٧، والترمذی في الصلاة باب ١٦٤، والنسائی في الإفتتاح باب ١٢ والدارمی في الصلاة باب ١٣٨ واحمد في المسند (٢/٢٣٢) والحاكم في المستدرك (١/٢٦٤)۔

(٢)حديث ابي هريرة رواه ابوداود في الصلاة باب ٨٥ والترمذی في الصلاة باب ١٦١ وأحمد في المسند (٢/٢٩٥) وابن حبان في صحيحه الظرموارد الظمآن إلى زوائد ابن حبان رقم ٤٧٨، والحاكم في المستدرك (١/١٥٣)۔

دلائله > ① د ابورافع حدیث دی. [قال نهی رسول الله ﷺ أن یصلی الرجل ورأسه معقوص](۱) یعنی نبی ﷺ سړی په دې حالت کښې د مانځه نه منع کړې دې.چه دده په سر باندې د ویختو چونټه جوړوی.

②دغه شان د نبی ﷺ نه نقل دی. [أمرت أن أسجد علی سبعة وأن لاأکف شعراً ولا ثوباً] یعنی ماته په اووه اندامونو باندې د سجدے کولو حکم شوې دې.او ددې خبرے چه ویخته نه راغونډوم. اونه جامے،اود ویختو په چونټه کولو کښې ددې کف دې.نو ځکه د چونټه کولو نه منع شوئې ده.

③دحضرت عمر ﷺ نه نقل دی.[أنه مر برجل ساجد عاقص شعرہ فحله حلاعنیفاً وقا ل إذا طول أحدکم شعرہ فلیرسله لیسجد معه] یعنی حضرت عمر ﷺ یو سړی سره خواه کښې تیر شو.او هغه سجده کوله.او د هغه ویختو نه چونټه جوړه شوې وه.نو حضرت عمر ﷺ په سختئ سره هغه پرانستله.او وے فرمائیلی .کله چه په تاسو کښې د چا ویخته اوږده وی.نو هغه دے زرونډ پریږدی.چه هم هغې سره سجده کوی.

**په مانځه کښې ښې اوګس طرف ته د کتلو کراهت**

| وَلَايَلْتَفِتُاو التفات دې نه کوی(په مانځه کښې) يَمِيْنًاوَشِمَـالًاښی اوګس طرف ته |
|---|

**حل اللغة** >① لایلتفت، التفت التفاتاً: متوجه کیدل ،کتل

**تشریح> کراهة الإلتفات في الصلاة>**مسئله د ځې په اړولو سره دے التفات نه کوی.ځکه چه په دې کښې کراهت دې .

**دلائله >** ① نبی ﷺ فرمائیلی دی «لوعلم المصلی من یناجی ما التفت»که مصلی پوهیدلې چه چاسره مناجات کوی.نو التفات به ئې نه کولو(۱)

②دلیل دا دې.چه نبی ﷺ فرمایلی دی.که مصلی پوهیدلے چه چاسره مناجات کوی.نو [اعوا دیغوا] به ئې التفات نه کولو.

③دغه شان د نبی ﷺ نه نقل دی.[أن الرحمة تواجه العبد ما دام فی صلاته فإذا التفت أعرض عنه] یعنی الله تعالی برابر بنده ته په مانځه کښې په مخ سره متوجه وی.خو چه کله دے التفات اوکړی.نو هغه خپل مخ دده نه واړوی.

④ عقلی دلیل دا دې.چه د ځې د اړولو سره التفات کولو کښې د بعضې ځې سره د قبلې نه اوړیدل راځی.که په پوره بدن سره د قبلې نه اوړیدل اوشی.نو په ے سره مونځ فاسدیږی.نو چه کله بعضې بدن د قبلې نه واوړی.نو مونځ به مکروه وی.ځکه چه عمل کثیر مفسد د صلاة دې. حضرت عائشه ﷺ فرمائی. [سألت رسول الله ﷺ من التفات الرجل فی الصلاة فقال هو اختلاس یختلسه الشیطان من صلاة

---

(۱) حدیث أبي رافع ﷺ أخرجه ابن ماجه في الإقامة باب ٦٧، وابوداود في الصلاة باب ٨٧ والترمذي في الصلاة باب ١٦٥ وأحمد في المسند (١٤٦/١) والترمذي في الصلاة وحسنه والطبراني في معجمه وإسحاق بن راهويه في مسنده )_

(۱)غربه الزيلعي بهذا اللفظ (نصب الراية ٨٨/٢) واخرجت في تاليفي سنن ا لصلاة في فقه الأحناف مايدل على كراهة الإلتفات في الصلاة (عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الِالْتِفَاتِ فِي الصَّلَاةِ فَقَالَ هُوَ اخْتِلَاسٌ يَخْتَلِسُهُ الشَّيْطَانُ مِنْ صَلَاةِ الْعَبْدِ (البخاري في الأذان باب الإلتفات في الصلاة رقم ٧٠٩)_

العهد] یعنی ما د رسول الله ﷺ نه په مانځه کښې دسرې د التفات په باره کښې تپوس اوکړلو. نو نبی ﷺ اوفرمائيل.چه دا اختلاس ( دهوکه کول او تښتول) دی.چه دا د بنده د مونځ نه شیطان تښتوی.
بهر حال ددې روایاتو او عقلی دلیل نه دا خبره ثابته شوه.چه التفات مفسد د صلاة نه دې.اګرچه ښی او ګس طرف ته د قبلې نه اوړيدل راشی.خو په دې شرط چه قبلې ته شا رانشی.
**عدم الکراهة بموق العینین**﴿اوکه مصلی د خپلو سترګو په ګوټونو سره ښی او ګس طرف ته کتل،بغیر د څټ اړولو نه،نو دا مکروه نه دی.
**دلیله**﴿ځکه چه نبی ﷺ به په مانځه کښې خپلو صحابوؓ ته د خپلو سترګو په ګوټونو باندے کتل.البته آسمان طرف ته کتل مکروه دی.

**په مانځه کښې د سپی پشان کیناستلو کراهت**

| وَلَا يُقْعِي كَإِقْعَاءِ الْكَلْبِ او نه به کینی پشان د ناستې د سپی |
|---|

**حل اللغة**﴿①لایقعی، اقعی اقعاء: د سپی په شان کیناستل
**تشریح**﴿ **کراهة الإقعاء**﴿صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چه اقعاء کول مکروه دی.
**دلیله قول أبي ذر رضی الله عنه وغرابته** ﴿ ①امام احمد رحمه الله په خپل مسند کښې د ابوهریره رضی الله عنه قول روایت کړې دې.مراد دا دې.چه د ابوذر رضی الله عنه قول غریب دې.د حدیث متن دا دې.[نهانی رسول الله ﷺ عن ثلاثة عن نقرة کنقرة الدیك وإقعاء کإقعاء الکلب، والتفات کالتفات الثعلب] ابوهریره رضی الله عنه فرمائی ﷺ چه زه رسول الله ﷺ د درې څیزونو نه منع کړې یم.یو د چرګ پشان ټونګو وهلو نه یعنی چه سجده دومره زر اوکړم.لکه څنګه چه چرګ ټونګے وهی.دویم د سپی پشان ناستے نه.یعنی په التحیات کښې دداسې ناستے نه، او دواړو سجدو په مینځ کښې د سپی پشان کیناستلو نه ئې منع فرمائیلے ده.دریم د لومبړے پشان یو خوا بل خوا کتلو نه ئې منع کړې یم.
**تفسیر الإقعاء**﴿د اقعاء دوه تفسیرونه شوی دی.① د امام طحاری رحمه الله په نیز اقعاء دا ده.چه په خپلو کوناټو باندې کینی.او خپل دواړه پتونان اودروی.او خپلے دواړه کونډې د سینے سره جختے کړی.او دواړه لاسونه په زمکه کیږدی.هم دا صحیح تفسیر دې. او هم دا صاحب د هدایه رحمه الله اختیار کړې دې.
② د امام کرخی رحمه الله په نیز اقعاء دا ده.چه خپل دواړه قدمونه اودروی.او په کوناټو باندې کینی.او دواړه لاسونه په زمکه کیږدی.

**په مانځه کښې د سلام جواب ورکولو حکم**

| وَلَا يَرُدُّ السَّلَامَ بِلِسَانِهٖ او د سلام جواب نه ورکوی په ژبه خپله وَلَا بِيَدِهٖ او نه په لاس خپل سره، |
|---|

**حل اللغة**﴿①لایرد، رد ردا (ن): واپس کیدل،واپس کول
**تشریح**﴿ **رد السلام باللسان**﴿په مانځه کښې په ژبې سره د سلام جواب ورکول د مونځ فاسدونکے دې.
**دلیله**﴿ ځکه چه دا کلام دې.او په کلام سره مونځ ماتیږی.نو د سلام په جواب سره به هم مونځ ماتیږی.ددې خبرے دلیل چه سلام او د سلام جواب ورکول کلام دې.دا دې.چه یوکس قسم اوخوړلو.چه زه به د فلانی سره خبرے نه کوم.بیا ئې هغه ته سلام اوکړلو .نو دا کس به حانثیږی.
**کراهة رد السلام بالید**﴿او په لاس سره د سلام جواب ورکول مکروه دې.ځکه چه دا هم معنیً سلام دې.نو که

د سلام په نیت باندې مصافحه اوکړی.په دې سره مونځ ماتیږی.

**الإعتراض**>دلته یو اعتراض دا دې.چه حضرت ابن عمر ﷛ فرمائیلی دی.ما حضرت بلال ﷛ ته اوونیل [کیف کان النبی ﷺ یرد علیهم حین کانوا یسلمون علیه وهوفی الصلاة قال کان یشیر الیه بیده] یعنی په کوم وخت کښے چه به نبی ﷺ په مانځه کښې وو.اوخلقو به په نبی ﷺ باندې سلام واچولو.نونبی ﷺ به څنګه جواب ورکولو.بلال ﷛ اوفرمائیل.چه د لاس په اشاره به ئې جواب ورکولو . ددې نه معلومه شوه.چه د په لاس سره د سلام جواب ورکول مکروه نه دی.

**الجواب**>دا واقعه د هغه وخت ده په کوم وخت کښې چه په مانځه کښې د سلام دجواب ورکولو اجازت وو ورستو بیا دا اجازت منسوخ شو نو دا د عدم کراهت دلیل نه دې.

## په مانځه کښې د پرلتئ وهلو او د ویښتو معقوص کولوکراهت

| وَلَا يَتَرَبَّعَاو پرلتئ دې نه وهي إِلَّامِنْ عُذْرٍ مګر د عذر د وجې |
|---|

**حل اللغة** >①لایتربع، تربعا تربعاً: په څلوربوری کیناستل

**تشریح**> **كراهة التربع في الصلاة**>مسئله: د مونځ په حالت کښې بغیر د عذر نه پرلتئ وهلو سره ناسته مکروه ده.څکه چه په دے ناسته کښې د سنت ناستے پریخودل دی.

**تضعيف كراهة التربع خارج الصلاة بدليلين**>نو ددې علت په بناء دا ناسته د مانځه نه بهر هم مکروه ده.خو شمس الائمه سرخسی رحمه الله وغیره دا قول رد کړې دې. ①څکه چه د مانځه نه بهر د نبی ﷺ د خپل صحابوؓ سره په پرلتئ ناسته ثابته ده.(فتح القدیر) ②دغه شان په مسجد نبوی ﷺ کښې د فاروق اعظم ﷛ عام طور ناسته هم د پرلتئ وه.صحیح خبره هم دا ده.چه د پرلتئ د ناستے په نسبت په دواړه کوندو باندې ناسته تواضع ته زیاته نزدے ده.نو د مانځه په حالت کښې هم دا ناسته غوره ده.مګر دا چه څه عذر وی.

## په مانځه کښې په قصد یا په هیره خوراك څكاك كول

| وَلَا يَأْكُلُ وَلَا يَشْرَبُ.او (په مانځه کښې )دےنه خوراك کوی اونه څكاك کوی. |
|---|

**حل اللغة** >① اکل، اکل اکلاً (ن): خوراك②شرب، شرباً(س): څکل

**تشریح**> **فساد الصلاة بالأكل والشرب مطلقاً**>مسئله دا ده.چه د مانځه په حالت کښې خوراك یا څكاك كول د مونځ ماتونکی دی.که مونځ فرض وی اوکه نفل وی.او خوراك څكاك که په قصد وی او که په سهو یا په نسیان سره ،

**دليله**>دلیل دا دې.چه خوراك او څكاك په دې دواړو کښې هریو عمل کثیر دې.اوعمل کثیر مفسد د صلاة دې.نوځکه په دې صورتونو کښې مونځ ماتیږی.

**الاعتراض** > د مانځه په حالت کښې په هیره سره خوراك څكاك دغه شان معاف کیدل پکار وو.لکه څنګه چه په حالت د روژه کښې معاف دی.

**الجواب**> د مونځ حالت د روژې د حالت پشان نه دې.څکه چه د مونځ حالت یادونکے دې. یعنی د بیدارئ او هوښیارئ حالت دې.نو د مونځ په حالت کښې خوراك څكاك په هیره او سهو سره نه کیږی.ددې په خلاف د روژې حالت هغه یادونکے نه دې. ددې وجې د روژې په حالت کښې هیره او

نسیان معاف دی.(گوریٔ نه چه د روژې په حالت کښې روژه دار اوده کیدےهم شی. اوداسې کار هم کولے شی.چه په هغې کښې ورته روژه هډو یاده نه وی.)

## په مانځه کښې د امام بې اودسه کېدل

فَإِنْ سَبَقَهُ الْحَدَثُ کوم کس ئے اودسه شي اِنْصَرَفَ.نواودے گرځي وَتَوَضَّأَ.او په خپله دے اودس اوکړی وَبَنٰى.او بناء دے اوکړی إِنْ لَمْ يَكُنْ إِمَامًا که امام نه وی فَإِنْ كَانَ إِمَامًا اوکه امام وی اسْتَخْلَفَ بل کس به خپل نائب جوړ کړی وَتَوَضَّأَ او اودس دې اوکړی وَبَنٰى عَلٰى صَلَاتِهٖ اوپه خپل مونځ دې بناء کوی مَا لَمْ يَتَكَلَّمْ ترڅو پورې چه ئې خبرې نه وی کړې

**حل اللغة** ﴿۱﴾ سبقه، سبق سبقا(ن،ض): وړاندې والې کول، مخکښې کیدل﴿۲﴾انصرف، انصرافا: واپس کیدل ﴿۳﴾ استخلف، استخلافًا (ن،ض): خلیفه جوړول

**تشریح** ﴿ **الربط بما قبله** ﴿مصنف رحمه الله وړاندې په تفصیل سره د عوارضو نه د سلامتیا احکام ذکر کړل.اوس په دے ځائےکښې به هغه عوارض ذکرکوی.کوم چه مانځه کښې پیښیږی.او مونځ فاسدوی.چونکه د سلامتیا احکام اصل دی.اود اصل وړاندې کول غوره وی.نوځکه ئې د سلامتیا احکام وړاندې ذکر کړل.

**توضیح المسئلة** ﴿صورت دا دې.که یوکس په مانځه کښې ئےاودسه شو.یعنی غیر اختیاری ئے اودسی ورته پیښه شوه.چه حدث سماوی ورته وئیلی شی.نو په داسې صورت کښې دے سمدستی بغیر د څه توقف نه واپس شی.سمدستی د مانځه نه د واپس کیدو حکم ددې وجې دې.چه د حدث نه پس که یو ساعت هم ایسار پاتې شو.نودا کس د حدث د یو جزء سره د مانځه ادا کونکې شو.او په حالت د ئے اودسیٔ کښې مونځ کول جائز نه دی.نو د مانځه کوم جزء چه د حدث سره مقارن ادا شی.هغه به فاسد وی.اوچونکه د جزء فساد مستلزم وی.فساد د کل لره.نوځکه ټول مونځ فاسدیږی.او فساد د جزء فساد د کل لره ځکه مستلزم دې.چه فساد تقسیم نه قبلوی.یا داسې اووایه.چه کله د مانځه یو جزء فاسد شو.نو باقی مونځ به هم فاسد وی.ځکه چه [صلاة واحدة] او صحةً او فساداً تقسیم نه قبلوی.

**کیفیة التخلف** ﴿اوس دا کس چاته چه حدث لاحق شوې دې.که امام وی.نو په مقتدیانو کښې دے څوک خپل خلیفه جوړکړی.او دخلیفه جوړولو صورت دا دې.چه د هغه جامه دے اونیسی.او خپل محراب ته دے راښکی.او په خپله دے اودس اوکړی.او بناء دے اوکړی.یعنی دغه مونځ دے د اودس نه پس شروع کړی.

اوقیاس دا دې. چه د سر نه دے مونځ شروع کړی.

**دلائله** ﴿ ﴿۱﴾دلیل د نبی ﷺ دا ارشاد دې.[من قاء أو رعف أو أمذى في صلاته فلينصرف وليتوضأ وليبن على صلاته مالم يتكلم] د عبارت د ترجمے عنوان لاندې ددې حدیث ترجمه تیره شوې ده.

﴿۲﴾دویم دلیل د نبی ﷺ دا ارشاد دې.[إذا صلى أحدكم فقاء او رعف فليضع يده على فمه وليقدم من لم يسبق بشيء] یعنی کله چه په تاسو کښې څوک د مانځه په دوران کښې قئ اوکړی.یا ئې پوزه ماته شی.نو په خپله پوزه دے لاس کیږدی.اوغیر مسبوق یعنی مدرك دے وړاندې کړی. یعنی خلیفه دے جوړ کړی.

**إستخلاف المدرك دون المسبوق** ﴿ددې حدیث نه معلومه شوه.چه مدرك دے خلیفه جوړ کړی. مسبوق دے

خلیفه نه جوړوی.څکه که مسبوق خلیفه جوړ کړی.نود سلام ګرځولو نه وړاندې به هغه بل مدرك خلیفه جوړوی.چه مدرك د سلام ګرځولو سره د خلقو مونځ پوره شی.اوچه مسبوق امام خپل مونځ پوره کړی.نو چه مسبوق خلیفه جوړ کړې شی.په دې کښې د خلیفه جوړولو تکرار لازمیږی.نوځکه بهتره دا ده.چه د اول نه غیر مسبوق یعنی مدرك خلیفه جوړ کړی.چه د دوباره خلیفه جوړولو د قباحت نه نجات حاصل شی.بهرحال د ذکر شوی حدیث نه د بناء جواز داسې ثابتیږی.چه په حدیث کښې دی.[ولیبن علی صلاته] دا دامر صیغه ده.اود امر ادنی مرتبه اباحت دې.نوځکه د بناء اباحت ثابت شو.

**الإعتراض**>خودلته یو اشکال کیږی.هغه دا چه په حدیث کښې [لیتوضأ] صیغه د امر د وجوب دپاره ده.نو[ولیبن علی صلاته] هم پکار ده چه د وجوب دپاره وي.حالانکه احناف فقهاء ﷭ د وجوب بناء قائلین نه دی.

**الجواب**>جواب دا دې.چه زمونږ په نیز[قران فی اللفظ قران فی الحکم] نه واجبوی.نوځکه دا اعتراض لغو دې.

③ ددې نه علاوه خلفاء راشدینو﷡ او فقهاء صحابو [عبدالله بن مسعود،عبدالله بن عباس،عبدالله بن عمر،انس بن مالك، سلمان فارسی﷡] په دې خبره باندې اجماع کړې ده.دکومې چه مونږ قائل یو.یعنی د بناء په جواز باندې نه په وجوب باندې ،اود اجماع په وجه قیاس پریخودے شی.نو [لیبن علی صلاته] په [ولیتوضأ] باندې نشی قیاس کولې.

**فضل إستخلاف غیرالمسبوق**>په دویم حدیث کښې صرف د استخلاف بیان دې.اود نبی ﷺ ارشاد [من لم یسبق بشیئ] کښې د افضلیت بیان دې.څکه چه مدرك(غیرمسبوق) د مسبوق په نسبت په پوره مونځ ادا کولو باندې زیات قادر دې.نو مسبوق خلیفه جوړول به خیانت وی.

**د سرنه د مونځ شروع کولو افضلیت**

| وَالِاسْتِئْنَافُ أَفْضَلُ او د سرنه شروع کول افضل دی |
|---|

**حل اللغة** >① استیناف: واپس کول

**تشریح** > **الأقوال الثلاثة في فضل الإستيناف وعدمها**> ①صاحب د قدوری ﷫ فرمائی.چه په ذکر شوې مسئله کښې اګرچه بناء جائز ده.خو د سر نه شروع کول افضل دی.چه د اختلاف د شبې نه احتراز راشی.اوکه څوك دا اووائی.چه په استیناف کښې د عمل ابطال دې.نو مونږ جواب ورکوو .چه بې شکه ابطال د عمل دې.خو د اکمال دپاره وو.داسې ابطال د عمل محمود دې.مذموم نه دې.

② بعضې مشائخو ﷭ فرمائیلی دی.چه منفرد لره د سر نه شروع کول افضل دې.او د امام او مقتدی دپاره بناء کول افضل دی.چه د جماعت افضلیت محفوظ شی

③او بعضې حضراتو ونیلی دی.که امام او مقتدی ته بل جماعت ملاویدے شی.نو استیناف افضل دې.اوکه نشی ملاویدې.نو بناء افضل ده.

**إختيار المنفرد في إتيان الموضع الأول** >فرمائی.چه منفرد ته اختیار دې.که خوښه ئې وی.نو بناء ئې اوکړی.اویه کوم ځائې کښې چه ئې اودس کړې وی.هلته دې مونځ پوره کړی.څکه چه په دې کښې کموالې د تګ دې.اوکه خوښه ئې وی.نو خپل ځائې ته دې واپس راشی.نول مونځ دې په یو ځائې ادا کړی.اولنې قول

زمونږ د مشائخودي.او قول ثاني د شمس الائمه سرخسي رحمه الله او شيخ الاسلام خواهرزاده رحمه الله دي.

**وجوب الإتيان الي الموضع الأول للمأموم**> اومقتدي به خپل ځاني ته واپس راځي.او مونځ به پوره کوي.اګرچه دا مقتدي امام محدث وي.چا چه خليفه جوړ کړي وي.د مقتدي دپاره دا حکم واجب او لازم دي.

**إستثناء الصورتين من الوجوب**> خو دوه صورتونه ددې حکم نه مستثنی دي.

① چه دده امام فارغ شوې وي.

② چه دده اود امام په مينځ کښې د اقتداء نه مانع څيز حائل نه وي.يعنی مقتدي چه په کوم ځاني کښې اودس کړی وي.هلته په امام پسې اقتداء کولو کښې څه څيز حائل نه وي.چه هغه د اقتداء مانع وي.لکه پلنه لاره وی.،لوئي درياب وی.د کړکو نه بغير اوچت ديوال وی.نو په دې دواړو صورتونوکښې که مقتدي د اودس په ځائي کښې مونځ پوره کول غواړي.نوڅه قباحت په کښې نشته.

**دمونځ په دوران کښې د ليونتوب،احتلام،او بيهوشۍ راتلل**

| وَإِنْ نَامَ اوکه اوده شو فَاحْتَلَمَ نو احتلام ئې اوشو أَوْجُنَّ اويا ليونې شو أَوْأُغْمِيَ عَلَيْهِ.يا په ده باندې بے هوشي راغله.أَوقَهْقَهَ اويا ئې په کړس کړس اوخاندل إِسْتَانَفَ الْوَضُوْءَوالصَّلَاةَ نو اودس او مونځ به د سرنه شروع کوي |
|---|

**حل اللغة**> ①جن، جنونا(ن): ليونې کيدل ②فاحتلم، احتلم احتلاماً: بالغ کيدل احتلام کيدل③ قهقه قهقهة: په زوره خندا کول

**تشريح**> **صور إستيناف الصلاة**> ①مسئله دا ده.که مونځ ګذار په حالت د مانځه کښې اوده شو.او احتلام ورته اوشو ،②يا ليونې شو.که امام وي او که مقتدي يا منفرد . ③يا په ده باندې بيهوشي راغله.④ يا ئې په زوره اوخاندل نو د سرنه به مونځ شروع کوي.

**دليله**> دليل دا دې.چه په مانځه ددې عوارضو پيښيدو نادر دی.نو دا عوارض د هغه عوارضو پشان نه دی.په کومو چه نص راغلې دې.يعنی د نبی ﷺ قول [من قاء أو رعف في صلاته الخ]حاصل دا دې.چه حدث غيرنادرالوجود دې.په هوا وتلو او پوزے ماتيدلو کښې بناء جائزده.او په حدث ،،نادر الوجود ،،کښې بناء جائز نه ده.اوهم دغه شان که ده په خندائي قهقه سره اوخاندل.نو هم باء جائز نه ده.بلکه د سرنه به مونځ شروع کوي.ځکه چه د قهقهې فعل په منزله د خبرو دې.او خبرے د مونځ ماتونکے دی.ځکه چه نبی ﷺ فرمائيلی دی.[مالم يتکلم] يعنی ترڅو چه ئې خبرے نه وی کړې.نو بناء کولې شي.اوکه خبرے ئے اوکړلې.نو بناء جائز نه ده.

| وَإِنْ تَكَلَّمَ فِي صَلَاتِهِ اوکوم کس چه په خپل مونځ کښې خبرے اوکړلې. سَاهِيًا أَوْعَامِدًا که سهو وی اوکه په قصد وی. بَطَلَتْ صَلَاتُهُ نو دده مونځ باطل شو. |
|---|

**حل اللغة**> ①تکلم، تکلم تکلماً: خبرې کول ② ساهياً: په هيره سره ③ عامداً: په قصدسره

**تشريح**> **الفرق بين السهووالنسيان والخطا**> سهو وائي.د قوت مدرکه نه د صورت زائله کيدل او نسيان د قوت حافظه نه د صورت زائله کيدل.ترڅو چه د کس جديد محتاج شي.او خطاء دا ده.چه صورت خو باقي وي.خو چه کله د يو څيز د تکلم اراده اوکړي.نو بغير د ارادے نه بل څيز په ژبه باندې راشي.په دے ځائي کښې د سهو نه عامه معنی مراد ده.کومه چه درنې واړه قسمونو ته شامل ده.او چونکه په

سهو او نسیان کښې د شرعي حکم په اعتبار سره څه فرق نشته.نوځکه مصنف رحمه الله هم ددې دواړو په مينځ کښې څه فرق اونکړلو.

**فساد الصلاة بالكلام** ⟨ ① مسئله :که يو کس په خپل مونځ کښې په قصد يا په سهوه کلام اوکړلو.نو دده مونځ باطل شو.کلام د داسې حروفو آواز ته وائي.چه مفيد د معنی وی.کله يو حرف وی.لکه ،ق، يعنی بچ شه ،اوکه يوحرف بےمعنی وی.نوکلام نه دې.

**دليله** ⟨ دليل د معاويه بن الحكم اسلمی رضي الله عنه حديث دې.پوره حديث داسې دې. [قال صليت خلف رسول الله ﷺ فعطس بعض القوم فقلت يرحمكم الله فرماني القوم بأبصارهم فقلت واثكل اماه مال أراكم تنظرون إلى شزرا فضربوا بأيديهم على أفخاذهم فعلمت أنهم يسكتونني فلما فرغ النبي ﷺ دعاني فوالله ما رأيت معلماً أحسن تعليما منه كما كهرني ولا زجرني ولكن قال إن صلاتنا هذه لايصلح فيها شئ من كلام الناس وإنما هي التسبيح والتهليل وقراءة القرآن]

يعني معاويه بن حکم رضي الله عنه فرمائي .چه ما په رسول الله ﷺ پسې مونځ کولو. نو يو کس انتوشے اوکړلو.ما ورته [يرحمك الله) اوويل.نو خلقو ماته خپل نظرونه تيز کړل. نو ما اوونې.ددوی مياندے دے بوری شی. ما څه چل کړې دې.چه زه تاسو ته ګورم.چه په برندو سترګو ګورئ.نو هغوی خپل پتونان په خپلو لاسونو اووهل،نو زه پوهه شوم.چه دوی ما چپ کول غواړی.چه کله نبی ﷺ د مانځه نه فارغ شو.نو زه ئے راؤ غوبنتلم.په الله قسم چه ما د نبی ﷺ نه ښه معلم نه دے ليدلې.دوی ماته نۀ په غصه شو.اونه ئې زه اورټلم. بلکه وے فرمائيل.چه زمونږ په دې مونځ کښې د خلقو د خبرو نه دڅه څيز ګنجائش نشته.دا خوصرف تسبيح ،تهليل او قرات د قران دې.

**وجه الأستدلال** ⟨ ددې حديث نه معلومه شوه.چه په مونځ کښې د کلام عدم وجود د مونځ حق دې.لکه څنګه چه د طهار وجود د مونځ حق دې.نو لکه څنګه چه دعدم طهارت سره مونځ جائز نه دې.دغه شان د کلام د وجود سره هم مونځ جائز نه دې.

**دتشهد نه پس د بې اودسئ راتلل**

| وَإِن سَبَقَهُ الحَدَثُ اوکه مونځ ګذار ے اودسه شو بَعدَمَا قَعَدَ قَدرَ التَّشَهُّدِ پس د دې نه چه ناست وو په اندازه د تشهد .تَوَضَّأَ وَسَلَّمَ نو اودس دے اوکړی. اوسلام دے اوګرځوی. |
|---|

**حل اللغة** ⟨ ①سبقه، سبق سبقا (ض): وړاندې کيدل ②فلابد : ضروری ]

**تشريح** ⟨ مسئله داده.چه مونځ ګذار د تشهد نه پس ے اودسه شو.نو حکم دا دې.چه دے به اودس اوکړی.او بيا به سلام اوګرځوی.ځکه چه سلام ګرځول واجب دې.نو ددې وجې اودس کول ضروی شو.چه واجب سلام ادا کړی.

**د تشهد نه پس په قصد بې اودسه کيدل**

| وَإِن تَعَمَّدَ الحَدَثَ فِي هٰذِهِ الحَالَةِ اوکه ده په دې حالت کښې په قصد خان ے اودسه کړلو.أَوتَكَلَّمَ يا ئې خبرے اوکړلې. أَو عَمِلَ عَمَلًا يُنَافِي الصَّلَاةَ يا ئې داسې څه عمل اوکړلو.کوم چه د مانځه سره منافی وی. تَمَّت صَلَاتُهُ نو دده مونځ پوره شو |
|---|

**حل اللغة** ⟨ ①تعمد ،تعمد تعمداً: اراده اوقصد کول ②تکلم، تکلم تکلما: خبرې کول ③عمل عملا (س): کارکول

**تشریح** > صورت د مسئلې ښکاره دې

**دلیله** > دلیل دا دې چه د مونځ ماتونکې څیز موجودیدو په وجه بناء کول متعذر شوخو په د، باندې د مونځ راګرځول نشته ځکه چه په ارکانو کښې په ده باندې دځه څیز باقي نه دې

**د متیمم په مانځه کښې د اوبو لیدل**

وَإِنْ رَأَى الْمُتَيَمِّمُ الْمَاءَ فِي صَلَاتِهِ که متیمم په خپل مونځ کښې اوبه اولیدلې. بَطَلَتْ صَلَاتُهُ نو دده مونځ باطل شو وَإِنْ رَآهُ بَعْدَ مَا قَعَدَ قَدْرَ التَّشَهُّدِ اوکه متیمم د تشهد په اندازه د کیناستلو نه پس اوبه اولیدل ① أَوْ كَانَ مَاسِحًا فَانْقَضَتْ مُدَّةُ مَسْحِهِ ② په موزه باندې مسح کونکې وو. دهغه د مسح موده تیره شوه. أَوْ خَلَعَ خُفَّيْهِ بِعَمَلٍ قَلِيلٍ ③ یا نې خپلې دواړه موزې اوویستلې. په عمل قلیل سره، أَوْ كَانَ أُمِّيًّا فَتَعَلَّمَ سُورَةً ④ یا امي وو. نو څه سورت یاد کړلو. أَوْ عُرْيَانًا فَوَجَدَ ثَوْبًا ⑤ یا بربند وو. نو جامې نې اوموندلې أَوْ مُومِيًا ⑥ یا په اشاره سره رکوع او سجده کونکې وو. فَقَدَرَ عَلَى الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ بیا په رکوع او سجده قادر شو. أَوْ تَذَكَّرَ أَنَّ عَلَيْهِ صَلَاةً قَبْلَ هٰذِهِ ⑦ او یا ورته وریاد شو چه په ده باندې مونځ دې وړاندې د دې نه (یعنی قضا شوې مونځ) أَوْ أَحْدَثَ الْإِمَامُ الْقَارِئُ ⑧ یا امام قاری بې اودسه شو. فَاسْتَخْلَفَ أُمِّيًّا نو هغه امي کس خلیفه جوړ کړو. أَوْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ ⑨ یا په مونځ د صبا کښې نمر راوختلو. أَوْ دَخَلَ وَقْتُ الْعَصْرِ ⑩ یا داخل شو. د مازیګر وخت فِي الْجُمُعَةِ په داسې حال کښې چه ده د جمعې مونځ کولو. أَوْ كَانَ مَاسِحًا عَلَى الْجَبِيرَةِ ⑪ یا په جبیره باندې مسح کونکې وو. فَسَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ نو ښه شو. او اوغورځیدله. أَوْ كَانَتْ مُسْتَحَاضَةً ⑫ یا دا معذوره وه. فَبَرَأَتْ ددې عذر ختم شو. بَطَلَتْ صَلَاتُهُمْ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ داامام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ د قول مطابق د دوی مونځ باطل شو. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله او صاحبین رحمهما الله فرمائی. تَمَّتْ صَلَاتُهُمْ چه د دوی مونځ پوره شو فِي هٰذِهِ الْمَسَائِلِ په دې ټولو مسئلو کښې

**حل اللغة** > ① راه، رای رؤیة (ف): کتل ② قعد، قعد قعودًا (ن): کیناستل ③ ماسحا: مسح کونکې ④ فانقضت، انقضی انقضاءً: پوره کیدل ⑤ خلع، خلع خلعًا (ف): ویستل ⑥ خف: موزه ⑦ عریانًا: بربندیدل ⑧ فوجد، وجد وجدانًا (ض): موندل ⑨ مومیا: اشاره کونکې ⑩ فائتة: فوت شوې ⑪ امي: ان پړه ⑫ فانقطع، انقطع انقطاعًا: منقطع کیدل، جدا کیدل ⑬ جبیرة جمع جبائر: پټئ

**تشریح** > **مواقع فساد الصلاة العسي بالمسائل اثناء عشر** > په دې عبارت کښې د مسائل اثناء عشره بیان دې. کومې چه د تشهد په اندازه د کیناستلو نه پس پیښې شي.

① سیمم مونځګذار د تشهد په مقدار باندې د کیناستلو نه پس اوبه اولیدلې.

② په موزو باندې مسح کونکې وو. د تشهد په اندازه د کیناستلو نه پس نې د مسح موده پوره شوه.

③ یاد تشهد نه پس نې د په عمل قلیل سره دواړو موزوو کښې یوه اوویستله. اوعمل قلیل دادې. چه موزې داسې ستې وی. چه د لاسونو ضرورت پیښ نشي. صرف د پښو په حرکت سره یوه موزه اوځي

④ یا مونځګذار وو. د تشهد په اندازه کیناستلو نه پس نې دقرآن یو سورت یاد کړلو. صاحب د عنایه رَحِمَهُ اللهُ فرمائیلي دی. چه قران ترې هیر شوی وی. خود تشهد د مقدار نه پس ورته وریاد شي. مطلب دا

نه دي.چه ده په مانځه کښې زده کړلو.ځکه چه د تعليم دپاره زده کول ضروري وي.او زدکړه د مونځ د فعل سره منافي دي.په دې باندې په اتفاق سره مونځ پوره کيږي.او بعضو وئيلي دي.چه د سورت زده کولو مطلب دا دې.چه چه بغير د اختياره واوريدلو.او بغير د کوشش نه ورته ياد شو.

⑤ يا مصلى برېنډ مونځ کولو.ده د مقدار د تشهد نه پس جامه اوموندله.

⑥ يا مصلى په اشاره سره رکوع او سجده کونکې وو.دے د تشهد د اندازه نه پس په رکوع او سجده باندې قادر شو.

⑦ يا مصلى ته د تشهد د اندازے نه پس قضا مونځ ورياد شو.کوم چه په ده باندې ددې مونځ نه وړاندې واجب القضاء وو.مثلاً په ماسپخين کښې ورته د تشهد اندازه نه پس ورياد شو.چه د صبا مونځ ترے قضاء شوېدې.حالانکه د ترتيب د فرضيت د وجې هغه وړاندې کول پکار وو

⑧ ياد تشهد د اندازے نه پس امام قاري يے اودسه شو.او هغه امي کس خليفه جوړ کړلو.

⑨ يا د تشهد د مقدار نه پس د صبا په مانځه کښې نمر راوختلو.

⑩ يا د تشهد دمقدار نه پس دمازيګر وخت داخل شو.حالانکه دا کس د جمعې په مانځه کښې وو.

⑪ يا مصلى په پټئ باندې مسح کونکې وو.نو دتشهد دمقدار نه پس پټئ د روغوالى د وجې اوغورځيدله.

⑫ يا معذور وو.خو د تشهد د مقدار نه پس دده عذر منقطع شو.يعنى هغه عذرختم شو.لکه مستحاضه ښځه،يا څوك چه ددې په معنى کښې وي.لکه هغه کس چه متيازې ترے روانې وي.يا د پوزے وينه د روانيدو عذر ئے وي.

**فساد الصلاة وعدمه**> ①په دې دولسو مسائلو کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مونځ باطل شو.

**دليله**> دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه د بل مونځ په خپل وخت کښې ادا کول فرض دی.او دا ممکن نه دی.چه ترڅو پورې د دغه موجوده مونځ نه خارج شوې نه وي.چه بل مونځ شروع اوکړی.نو ددې موجوده مونځ نه وتل د بل فرض مونځ ادا کول دپاره ذريعه شوه.يعنى د بل فرض مونځ ادا کول ددې موجوده مونځ نه په وتلو موقوف دی.اوچونکه د فرض موقوف عليه هم فرض وي.نوځکه ددې موجوده مونځ نه وتل هم فرض شو.

**تائيده**>هم دا وجه ده.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د مونځ نه وتل په ،،صنعه،، فرض دی.ددې نظيردا دې.چه په يو کس باندې نفقه واجب وي.او هغه بغير د ګټلو نه نشي حاصليدې.نو په ده باندې ګټه کول هم فرض دی.يا مثلاً سجده فرض ده.او دا تر هغه وخته پورې ممکن نه ده.ترڅو چه د رکوع نه منتقل شوې نه وي.نو دا انتقال هم فرض شو.ځکه چه
د فرض موقوف عليه فرض وي.

**مذهب الصاحبين رحمهما الله** > په دې مسئله کښې صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دي.په دے تولو صورتونو کښې مونځ پوره شو.

**دليلهما** >دصاحبينو رحمهما الله دليل د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث دې.حديث دا دې.چه رسول الله ﷺ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ته فرمائيلي وو.[اذا قلت هذا أو فعلت هذا فقد تمت صلاتك إن شئت أن تقوم فقم] يعنى کله چه تا دا اووئيل.يا دے دا اوکړلو.نوستا مونځ پوره شو.که ستا زړه پاسيدل غواړی.نو اودرېږه په دې حديث باندې استدلال داسې دې.چه نبي ﷺ د مونځ پوره کيدل په تشهد وئيلو يا د تشهد په مقدار ناسته پورې معلق کړلو.نو کوم کس چه د مونځ پوره والے په بل څيز پورے معلق کړلو.نوده د نص

مخالفت اوكړلو.حاصل دا دي.چه په دې مسائلو كښې د آخرى قعدے نه پس ددې عوارضو ذكر دې.او په آخرى قعده باندې مونځ پوره شو.نو هركله چه په آخرى قعده باندې مونځ پوره شو.نو ددې نه پس د مونځ باطليدلو څه سوال پيدا كيږي؟

**الجواب عنه** > خوددې نه جواب دا دې چه په حديث كښې [تمت صلاتك] معنى [قاربت التمام] ده.يعنى كله چه ده دا اووئې.نو ستا مونځ پوره كيدو ته نزدے شو.

**نظيره**>دا داسې ده.لكه څنګه چه د نبى ﷺ قول [من وقف بعرفة فقد تم حجه] يعنى څوك چه په عرفه باندې وقوف اوكړلو.نود ده حج پوره شو. حالانكه د وقوف عرفه نه پس هم لا تراوسه پورې طواف زيارت فرض باقى پاتې وى.نو دلته هم دا معنى ده.چه حج پوره كيدو ته نزدے شو.

**الاعتراض** >څوڅوك دا سوال اوكړى چه كله امام قارى بے اودسه شى.اوده امى كس خليفه جوړ كړلو.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز پكار ده چه مونځ فاسدنشى.ځكه چه خليفه جوړول دمونځ ماتونكې نه دى.يعنى كه قارى محدث بل څوك قارى جوړ كړى.نو مونځ نه فاسد يږى.نو دغه شان دلته هم پكار ده چه فاسد نشى.

**الجواب**> بيشكه خليفه جوړول مفسد د صلاة نه دى.ځكه خو د قارى بل قارى خليفه جوړول جائز دى.خو په ذكر شوى صورت كښې فساد د استخلاف د وجے نه دې.بلكه د بل څيز د وجے دې.او هغه بل څيز د حكم شرعى ضرورت دې.او د امر شرعى ضرورت دې.چه امى څوك چه خليفه جوړولے شى.په هغه كښې دامامت صلاحيت نه وو.نو په امام كښې د امامت د صلاحيت د فقدان د وجے مونځ فاسد يږى.د خليفه جوړلو د وجے نه.

**الأصل المختلف فيه** >بعضې مشائخو رحمهم الله فرمائيلى دى.چه په دې باب كښې اصل دا دې.چه دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د مانځه نه بهر وتل د مصلى په اختيار سره فرض دى.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز فرض نه دى.نو ددې اصل په بناء دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د آخرى قعدے نه پس دے عوارضو راتلل كوم چه په هر مسئله كښې جدا جدا ذكر شول.داسې دى.لكه چه د مانځه په مينځ كښې راغلى وى.اود مونځ په مينځ كښې ددې عوارضو راتلل د مونځ مفسد دى.نوكه آخرى قعدے نه پس هم دا عوارض راتلل د مانځه فاسدونكى دى.نوځكه د آخرى قعدے نه پس هم كه دا عوارض پيښ شى.نو مونځ به باطل وى.

② دصاحبينو رحمهما الله په نيز د آخرى قعدے نه پس ددې عوارضو راتلل داسې دى.لكه څنګه چه د سلام نه پس وى.او دا ښكاره خبره ده.چه د سلام ګرځولو نه پس هيڅ يو عارض مونځ نه فاسدوى.نوځكه د آخرى قعدے نه پس ددې عوارضو راتلل د مونځ فاسدونكى نه دى.

د فوت شوو مونځونو بيان

## بَابُ قَضَاءِ الْفَوَائِتِ

**ترجمه**> (دا) باب دفوت شوومونځونو دقضاء (په بيان) كښې دې.

**تشريح**> په تيرشوى باب كښې د ادا اوددې دمتعلقاتود احكامو بيان وو.اوس په دې باب كښې دقضاء احكام ذكركيږى،چونكه ادا اصل اوقضاء ددےخليفه دې.ځكه ئې ادا مخكښې اوقضاء روسته ذكركړې ده.اداء وائى عين واجب ددې مستحق ته سپارل،او قضاء وائى مثل د واجبو (مستحق) ته

سپارل.

## د فوت شوی مونځ د قضاء راوړو وخت

| وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَاةٌ چه دیوکس مونځ فوت شی قَضَاهَا إِذَا ذَكَرَهَا نوددې قضاء دے راوړی چه کله وریادشی وَقَدَّمَهَا عَلَى صَلَاةِ الْوَقْتِ اودادے مخکښې کړی.د وختی فرض نه |
|---|

**حل اللغة** ﴿①فاتته، فات فوتا (ن): فوت کیدل ②قضاها، قضی قضاء (ض): اداکول، قضا کول ③ قدمها، قدم تقدیما: وړاندې کول

**تشریح** ﴿ **ترتیب قضاء الفوائت**﴾ مسئله داده.که دچا نه مونځ فوت شی.نوچه کله وریاد شی.دهغې قضاء دے راوړی.اودا دے په وختی مونځ مقدم کوی.ضابطه داده.چه زمونږ په نیز دفوت شوی او وختی په مینځ کښې ترتیب واجب دې.

**دلیله** ﴿ دلیل دالله ﷻ دنبی ﷺ ارشاد دے [من نام عن صلاة او نسیها فلم یذکرها الاوهو مع الامام فلیصل التی هو فیها ثم لیصل التی ذکرها ثم لیعد التی مع الامام] (۱) دحدیث حاصل دا دې.که مونځ فوت شو. اودےکس د امام سره وختی (مونځ) شروع کړو.نود امام سره دے وختی مونځ پوره کړی.بیا دے د فوت شوی مونځ قضا راوړی.بیا دے د هغې مونځ اعاده اوکړی.کوم نې چه د امام سره کړې وی.ددې حدیث نه معلومه شوه.کوم چه مونځ نې د امام سره کړې دے چونکه داد فوت شوی مونځ نه مقدم شوې دې.حالا نکه دفوت شوی مقدم کول واجب وو.په دې وجه ددے د راګرځولوحکم دې.چه دفوت شوی او وختی په مینځ کښې ترتیب متحقق شی.

**الاعتراض**﴾خو دلته کښې یواعتراض دې.هغه دا چه حدیث د اخبار آحاد څخه دې.اوپه خبرواحد سره فرضیت نه ثابتیږی.نوپه دې حدیث ترتیب فرضیت نه ثابتیږی.

**الجواب**﴾داحدیث خبرمشهوردې.خبرواحد نه دې.اوکه اومنو.چه دا خبرواحد دې.نوجواب دا دې.چه ترتیب خوپه کتاب الله یعنی ( اقیموا الصلاة) سره ثابت دے،یعنی کتاب الله مجمل دے په دې وجه دا حدیث د مجمل کتاب بیان واقع شوې دې.

## په فوت شوو او وختی مونځونو کښې ترتیب

| إِلَّا أَنْ يَخَافَ فَوْتَ الْوَقْتِ مګرداکه ویریږی د وتلو د وخت فَيُقَدِّمُ الْوَقْتِيَّةَ نو وختی مونځ به وړاندې کوی عَلَى الْفَائِتَةِ په فوت شوی مونځ باندې ثُمَّ يَقْضِيهَا بیا دے دفوت شوی قضاء راوړی |
|---|

**حل اللغة** ﴿① خاف، خاف خوفا(س): ویریدل ② یقدم، قدم تقدیما: وړاندې کول،مقدم کول ③ ضیق: تنګی سختی ④نسیان: هیرول ⑤تفویت: فوت کول ]

**تشریح** ﴿ **اسباب سقوط الترتیب**﴾ په مخکنۍ مسئلې کښې تیرشوی دی.چه د فوت شوی اود وختی مونځ په مینځ کښې ترتیب واجب دې.خوکه وخت تنګ شو اوددےخبرے ویره شوه .که دفوت شوی په قضاء کښې مشغول شی.نو وخت به اوخی په داسې صورت کښې دے وختی مونځ مقدم کړی بیا ددې نه پس دے د فوت شوی قضاء راوړی.څکه چه په درې څیزونو ترتیب ساقطیږی. ① د وخت تنګوالے ②

---

(۱) من حدیث ابن عمر رضی الله عنهما روه الدارقطنی فی سننه (۱/۴۲۱) والبیهقی فی السنن ا لکبری (۲/۲۱۳) رقم ۳۱۹۳)۔

هیره ③ دفوت شوی (مونځونو) کثرت دکثرت مقدار شپږمونځونه دی.په دے څیزونوسره ترتیب ځکه ساقطیږی.چه وختي مونځ فوت کیدل لازم نشي.

**جواز تقديم الفائتة علي الوقتية مع الإثم** > مسئله دا ده .که د وخت د تنګئ باوجود ئي فوت شوي مونځ اوکړو.او وختی (مونځ ) ئي پریخودلو.نوفوت شوي به ادا شی.خود وخت(مونځ) په خپل وخت کښي دننه د نه ادا کولو د وجے به ګناهګار وی.ځکه چه د فوت شوی(مونځ) ددامي تنګئ په حالت کښي په مقدم کولو کوم چه ممانعت دےنودا د داسي معنی په وجه دےچه په غیرکښي ده.یعنی وختی (مونځ ) پریخودل، نو د وختي پریخودلو د وجے دفوت شوی په ادا کښي هیڅ نقصان رانغلو،اود وختي په پریخودلو به په ده عظیمه ګناه وی.

**عدم جواز تقديم الوقتي علي الفائتة**> ددې په خلاف که په وخت کښي ګنجائش وی اوبیا وختی مونځ مقدم کړی.نودا جائز نه دی.ځکه چه ده وختي مونځ دخپل وخت نه مخکښي اداکړو.د وخت نه مخکښي اداکول په دې وجه لا زمیږی.چه د حدیث نه ثابت دی.چه د وختی (مونځ) وخت د فوت شوی نه پس دی.اوکوم چه مونځ د وخت نه مخکښي ادا شی هغه ټیك نه وی. په دې وجه په وخت کښي دننه د ګنجائش په صورت کښي به د وختی په فوت شوی مقدم کول جائزنه وی.

## په فوت شوی مونځونو کښي دترتیب حکم

| وَمَنْ فَـاتَتْهُ صَلَوَاتٌ اوهغه څوک چه فوت شي د هغه نه څو مونځونه رَتَّبَهَـا فِي الْقَضَـاءِنو په قضاء کښي دے دا په ترتیب سره راوړی كَـمَـا وَجَبَتْ فِي الْأَصْلِ لکه څنګه چه په اصل کښي واجب شوی وی إِلَّاأَنْ تَزِيدَ الْفَوَائِتُ عَلَى خَمْسِ صَلَوَاتٍ.خودا چه فوت شوی مونځونه پنځو ته اورسی (نو بیا په کښي ترتیب ساقطیږی) فَيَسْقُطُ التَّرْتِيبُ فِيهَـا.نوپه دې کښي ترتیب ساقطیږی |
|---|

**حل اللغة** >① فاتته، فات فوتا (ن): فوت شوي ②رتبها،رتب ترتیبا: ثابت کول، د مرتبي په لحاظ باندي ساتل ③وجبت، وجب، وجوبًا (ض): واجب کیدل

**تشريح**> **وجو ب الترتيب بين الفوائت**> مسئله داده.چه ترتیب څنګه د وختي او فوت شوی په مینځ کښي فرض دې.هم دغه شان په خپله د فوت شوو مینځ کښي هم فرض دې.که څومونځونه فوت شی.نوددې قضاء دے هم په هغه ترتیب راوړی. په کوم ترتیب چه ادا واجب شوی وو.

**دليله**> دلیل د رسول الله ﷺ حدیث دے د حدیث الفاظ دا دی [عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قال ان المشركين شغلوا رسول الله ﷺ عن اربع صلوات يوم الخندق ذهب من الليل ماشاء الله فامر بلالا فأذن ثم اقام فصلى الظهر ثم اقام فصلى العصر ثم اقام فصلى المغرب ثم اقام فصلى العشاء] (۱) ابن مسعود اوونیل چه مشرکانو رسول پاك ﷺ د خندق په ورځ دڅلورو مونځونو نه مشغوله کړې وو.تردے چه شپه تیره شوه.نونبی کریم ﷺ بلال رضي الله عنه ته امر اوکړو.بلال رضي الله عنه اذان اوکړو.بیائي اقامت اوکړو.بیائي د ماسپخین مونځ اوکړو.بیائي اقامت اوکړو.بیائي د مازیګر مونځ اوکړو.بیا ئي اقامت اوکړو بیائي د ماښام مونځ اوکړو.بیائي اقامت اوکړو بیائي د ماسخوتن مونځ اوکړو.بیائي اوفرمائیل چه [صلوا كما رأيتموني أصلي] تاسوداسےمونځ کوئ لکه څنګه چه تاسوما وینئ چه زه مونځ کوم.

(۱) من حدیث إبن مسعود رضي الله عنه رواه الترمذی في المواقيت باب ۱۸ والنسائی في المجتبی (۱/۱۰۷) و رواه احمد۔

په حديث كښې دغوركولونه پته لګى.چه په كوم ترتيب سره مونځونه فوت شوى وو،نبى كريم ﷺ هم په هغه ترتيب سره دهغې قضاء راوړله.اوبيانې حكمًااوفرمانيل چه[صلوا كما رأيتموني أصلى] يعنى راتلونكى وخت دپاره هم داحكم دې.بهرحال په دې حديث سره دفوت شوو په مينځ كښې ترتيب ثابت شو.

**سقوط الترتيب بالكثرة﴾** اوكه دفوت شوو تعداد زيات شى.اوشپږشى.نوددې په مينځ كښې به ترتيب ساقط شى.

**دليله﴾** دليل دادې.چه په دې صورت كښې قضا شوى زيات دى.اود زيات فوت شوومونځونو په مينځ كښې دحرج دفع كولو دپاره ترتيب ساقطيږى.لكه څنګه چه د زياتو قضا شوو او وختى مونځونو په مينځ كښې ترتيب ساقطيږى.اودكثرت مقدار دادے چه فوت شوى مونځونه شپږشى. يعنى دشپږم مونځ وخت اوځى.

**ذكرالمسئلة في الجامع الصغير﴾** هم دا مسئله په جامع صغير كښې په دې طريقه بيان شوې ده. كه فوت شوى مونځونه ديوے ورځې او يوے شپې نه زيات شوى وى نودكوم مونځ نه چه شروع كوى هغه به جائز وى.څكه چه ديوے ورځې شپې نه د زياتيدو په وجه فوت شوى مونځونه شپږشى.او شپې مونځونه برابريدل دكثرت علامه ده.او مخكښې تيرشوى دى.چه قضاشوى مونځونه كه زيات وى نوددې په مينځ كښې ترتيب ساقطيږى.نوچه دكوم مونځ نه هم دقضاء ابتداء كوى ټيك ده،ترتيب وار وى اوكه بغيرد ترتيبه وى.

**اصل هذه المسئلة﴾** صاحب دعنايه ليكلى دى چه ددې اصل،قضاء بالاغماء ده يعنى د بےهوشئ دوجےكه مونځونه زيات فوت شى.نوددې قضاء به واجب نه وى اوكه كم مونځونه فوت شى.نوددې قضاء واجب ده، او دا خبره د ثبوت حدته رسيدلے ده،چه حضرت على رضي الله عنه ديوے ورځې اوشپې نه كم بے هوشه شوې وو .نو هغوى رضي الله عنه د مونځونوقضاء راوړله.او عمار بن ياسر رضي الله عنه پوره يوه ورځ اوشپه بے هوشه وو.نوهغوى هم د يوے ورځې اوشپې دمونځونو قضائى فرمائيلے ده.اوحضرت عبد الله بن عمررضي الله عنهما ديوے ورځې شپږنه زيات بےهوشه پاتې شوې وو.نوهغوى قضائى اونكړه.ددې درې واړوحضراتو واقعاتونه ثابته شوه چه د كثرت په تعريف كښې تكرارمعتبردې.يعنى دشپږم مونځ وخت وتل.

## هغه درې وختونه چه مونځ په كښې مكروه دې
## بابُ الأوقات

دا باب دهغه وختونو په بيان كښې دې

**اَلَّتِي تُكْرَهُ فِيهَا الصَّلَاةُ** چه په كومو كښې مونځ مكروه دې.: **لَا تَجُوزُ الصَّلَاةُ** مونځ جائزنه دې **عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ** د نمر راختو په وخت **وَلَا عِنْدَ غُرُوبِهَا** اونه د پريوتو په وخت **إِلَّا عَصْرَ يَوْمِهِ** مګر د مازيګر مونځ هم په دغه ورځ كښې **وَلَا عِنْدَ قِيَامِهَا فِي الظَّهِيرَةِ** اونه په غرمه كښې د نمر د قيام په وخت

**حل اللغة﴾**① ظهيرة: غرمه

**تشريح﴾ كراهة الصلاة في الاوقات الثلاثة﴾** په ماقبل كښې د وخت په دوو قسمونو كښې د يو بيان وو.يعنى اوقات مستحبه،اوپه دې باب كښې د دويم قسم يعنى د مكروه وختونو بيان دې. دلته كښې كراهت عام دې،چه جوازمع الكراهة اوعدم جواز مع الكراهة دواړو ته شامل دې.حاصل د مسئلې دا دې. دنمر راختو، ډوبيدو او نصف النهار په وخت كښې نه فرض مونځ جائز دې.اونه نفل.

**دليله** ﴿ دليل د حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه حديث دي. [قال ثلاث ساعات كان رسول الله ﷺ ينهانا أن نصلي فيهن أو أن نقبر فيهن موتانا حين تطلع الشمس بازغة حتى ترتفع وحين يقوم قائم الظهيرة حتى تميل الشمس وحين تضيف الشمس للغروب حتى تغرب] () په حديث د عقبه بن عامر رضي الله عنه كښې ،،صلاة،، عام دي.كه فرض وي اوكه نفل وي.او د ،، أن نقبر، نه مراد د جنازې مونځ دي.ځكه چه په دې وختونو كښې دمړي ښخول مكروه نه دي . نو اوس مطلب دا شو.چه نبي ﷺ په دې وختونو كښې د مطلق مونځ كولو نه منع كړې ده.كه فرض وي اوكه نفل اوكه دجنازې مونځ وي.

**إستثناء عصراليوم** ﴿ شيخ ابوالحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه په دريو وختونوكښې مطلقاً مونځ مكروه دي.خو د دغه ورځ د مازيگر مونځ ددې نه مستثنى دي.يعني كه په دغه ورځ د مازيگر مونځ اونكړي. تردې چه د نمر پريوتو وخت شي.نوپه دغه وخت كښې هم صرف د دغه ورځ د مازيگر مونځ كولې شي. نور مونځونه نشي كولې.دغه شان د بلې ورځ د مازيگر قضاء شوې مونځ هم نشي كولې.

**فهم الأمور الأربعة** ﴿ په دليل كښې يو څو خبرې په ذهن كښې كينوئ.

① دمونځ وختونه ددې د ادا كولو سبب وي.

② سبب په مسبب باندې مقدم وي.

③ چه څنگه سبب وي.هغه شان به مسبب وي.يعني كه سبب كامل وي.نومسبب به هم كامل وي.اوكه سبب ناقص وي.نو مسبب به هم ناقص وي.

④ كه مونځ كامل واجب شوې وي.نو په كامله طريقه ادا كول ضروري دي. او كه ناقص واجب شوې وي.نود نقصان د صفت سره هم ادا كيدې شي.

**الإحتمالات الثلاثة في سبب الصلاة** ﴿ اوس د دليل خلاصه دا شوه.كوم كس چه د نمر ډوبيدو په وخت كښې د مازيگر مونځ كوي.نوددې په سبب كښې درې احتمالات دي.

① يوداچه پوره وخت سبب اوگرځولې شي.

② دويم دا چه كوم وخت تير شوې وي.هغه سبب اوگرځولې شي.

③ دريم دا چه د ادا كولو سره متصل جزء سبب اوگرځولې شي.

**بطلان الإحتمال الأول** ﴿ اولنې احتمال باطل دې.ځكه كه ټول وخت سبب اوگرځولې شي. نوبكارده چه د وخت نه پس مونځ واجبيږي.ځكه چه مسبب د سبب نه موخر وي.حالانكه مونځ په وخت كښې دننه واجب دې.د وخت نه پس نه.

**بطلان الإحتمال الثاني** ﴿اودويم احتمال هم باطل دې.ځكه كه تيرشوې وخت سبب اوگرځولې شي.نوكوم كس چه په آخر وخت كښې مونځ كوي.پكارده چه هغه ته قضاء راوړونكې اووئيلې شي.حالانكه هغه قضاء راوړونكې نه دې.

**الجزء المتصل للأداء هو السبب** ﴿ نومعلومه شوه.چه كوم جزء د ادا كولو سره متصل وي.هغه د وجوب صلاة سبب دې.او په مذكوره مسئله كښې ،،جزء متصله للاداء،، ناقص وخت دې.او وراندې تير شو.كه سبب (وخت) ناقص وي. نو مسبب (مونځ) به هم ناقص واجبيږي.نوپه دې كس چه په كوم صفت مونځ

---

(۱) من حديث عقبة بن عامر الجهني رضي الله عنه أخرجه مسلم في صلاة المسافرين رقم ۲۹۳ وأبوداود في الجنائز باب ۵۱ والترمذي في الجنائز باب ۸۹ وابن ماجه في الجنائز باب ۳۰ـ

واجب شوې وو.هغه شان ئې ادا کړلو.نوځکه مونږ وايو.چه د نن ورځې د مازيګر مونځ د نمر ډوبيدو په وخت کښې هم جائز دے

**حكم الصلوات الأخرى عندالغروب**> ددې په خلاف هغه نور مونځونه چه ددې ورځې د مازيګر دمونځ نه علاوه دی.هغه په دے وخت کښې کول ځکه جائز نه دی .چه هغه په کامل صفت سره واجب شوی دی.نوپه ناقص وخت کښې به نشی ادا کولې.

**په درې وختونو کښې د جنازې او د تلاوت د سجدې حکم**

| وَلَا يُصَلّٰى عَلٰى جَنَازَةٍ اومونځ به نه کوی په جنازه باندې وَلَا يَسْجُدُ لِلتِّلَاوَةِ اوسجده به نه کوی دپاره دتلاوت |
|---|

**تشريح**> **دليل كراهة الجنازة** > مصنف رحمه الله فرمائی.چه په درې وختونو کښې به نه دجنازے مونځ کوی. اونه به سجده د تلاوت کوی.

**دليل كراهة صلاة الجنازة فيها**>دليل هغه حديث دې.چه وړاندې تير شو.يعنی [أن نقبرفيها موتانا]

**دليل كراهة سجدة التلاوة** > اود تلاوت د سجدے د عدم جواز دپاره دليل دا دې.چه سجده د تلاوت هم د مونځ پشان ده.په دې طريقه چه کوم شرطونه چه په مانځه کښې دی.لکه طهارت، پټول د عورت، استقبال د قبلې وغيره نودا په سجده د تلاوت کښې هم شرطونه دی.نوهرکله چه سجده دتلاوت د مونځ پشان شوه.نودا په درې وختونو کښې د مونځ نه کولو په نهی کښې شامل شوه.حديث مبارک دې.چه [ثلاثة أوقات نهانا رسول الله ﷺ أن نصلی فيها]

**الإعتراض**>خودلته يو اشکال دې.چه هرکله سجده د تلاوت دمانځه پشان شوه .نولکه څنګه چه په خندانې قهقهه باندې مونځ ماتيږی.پکار ده چه دغه شان پرے سجده د تلاوت هم ماتيږی.خوپه سجده د تلاوت کښې په خندانې قهقهه باندې سجده نه ماتيږی.

**الجواب**> جواب دا دې.چه په حديث کښې کوم مونځ په خندانې قهقهه باندې ماتيدونکے خودلے شوې دې.دهغه نه هغه مونځ مراد دې.چه په هغې کښې تکبير تحريمه ،رکوع او سجده وی.اوسجده دتلاوت داسې نه ده.نوځکه که په دې کښې خندانې قهقهه اوکړی.نو سجده پرے نه ماتيږی.

**حكمة النهي عن الصلاة في الأوقات الثلاثة** > اوپه دے درې وختونو کښې د مونځ کولو نه ځکه منع شوې ده.چه د نمر پرستو سره مشابهت رانشی.(يعنی په دے درې وختونو کښې هغه کسان نمر ته سجده کوی.چه د نمر عبادت کوی.نوکه مسلمانان هم په دے درې وختونو کښې الله تعالی ته سجده کوی. نو د هغوی سره مشابهت راتللو.ځکه نبی ﷺ په دے درې وختونو کښې د مونځ کولو نه منع اوکړله.

**المراد من النفي في الحديث** >صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلی دی.چه د جنازے د مونځ او سجدے د تلاوت د جواز چه کومه نفی شوې ده.ددې نه کراهت مراد دې.يعنی دا دواړه په دے وختونو کښې مکروه دی.نوکه په مکروه وخت کښې جنازه حاضره شوه.اوهم په دغه وخت کښې اوکړې شی.يا په مکروه وخت کښې ئې د سجدے آيت اولوستلو.اوهم په دغه وخت کښې سجده اوکړی.نودا جائز دی.

**دليل جواز الجنازة وسجدة التلاوة في الأوقات المكروهة** > دليل دا دې.چه دجنازے د وجوب سبب ددې حاضريدل دی.اود سجدے د تلاوت د وجوب سبب ددې تلاوت دې.اوچونکه دا دواړه په ناقص وخت کښې راغلی دی.نوچه څنګه واجب شوی وو.هم هغه شان ادا شو.او ددې په خلاف نور فرائض په دے وختونو

کښې جائزنه دی.ځکه چه هغه کامل واجب شوی دی.نو په کامل وخت کښې به ادا کول ضروری وی.

**دصبا اومازیګر نه پس د نوافلو حکم**

وَيَكْرَهُ اَنْ يَّتَنَفَّلَ بَعْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ اود صبا د مونځ نه پس نفل مکروه دی حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ تردے چه نمر راوخيژی وَبَعْدَ صَلَاةِ الْعَصْرِ اود مازيګرنه پس حَتّٰى تَغْرُبَ الشَّمْسُ تردے چه نمر پريوځی

**تشریح** > **كراهة النفل بعدالفجر والعصر** > مسئله دا ده.چه د صبا نه پس تر نمر راختو پورې اود مازيګر نه پس تر نمر پريوتو پورې نفل کول مکروه دی.

**دليله** >دليل د ابن عباس رضي الله عنه حديث دې.[شهد عندی رجال مرضيون وأرضاهم عندی عمر أن رسول الله ﷺ نهى عن الصلاة بعد الصبح حتى تشرق الشمس وبعد العصر حتى تغرب] (١) ابن عباس رضي الله عنه فرمائی.داسې کسانو ګواهی کړې ده.چه په هغوی کښې ماته د ټولو نه زيات خوښ حضرت عمربن خطاب رضي الله عنه وو.چه رسول الله ﷺ د صبا نه پس د مانځه نه منع کړې ده.تردے چه نمر راوخيژی . اود مازيګرنه پس تردے چه نمر پريوځی.(بخاری ومسلم)

**تعارض الروايتان في الركعتين بعد العصر** > ① خود عائشې رضي الله عنها حديث چه صحيحينو نقل کړې دې.ددې سره معارض دې.حديث دا دې. [ركعتان لم يكن رسول الله ﷺ يدعهما سرا ولاعلانية ركعتان قبل صلاة الفجر وركعتان بعد العصر] يعنى دوه رکعته دی.چه رسول الله ﷺ به نه پريښودل.نه په پټه او نه په ښکاره.دوه رکعته د صبا دمانځه نه وړاندې اودوه رکعته د مازيګر نه پس ② اويه يو بل روايت کښې دی.چه [ماكان النبي ﷺ يأتينى فى يوم بعد العصر إلا صلى ركعتين] يعنى کله هم داسې نه ده شوې.چه رسول الله ﷺ به ماته راغلو د مازيګر نه پس څو دوه رکعته به نې کول.ددې دواړه احاديثو نه معلوميږی .چه دمازيګر نه پس نبی ﷺ دوه رکعته په پابندئ سره کړی دی.

**الجواب من التعارض** > جواب دا دې.چه د مازيګر نه پس دوه رکعته مونځ د نبی ﷺ خصوصيت وو.نو دامت دپاره ددې اجازت نشته.اوددې دليل دا دې.چه يوځل د ماسپخين نه پس د وفد عبدالقيس څه خلق د نبی ﷺ خدمت کښې حاضر شو .دهغوی د مشغوليت دوجے نبی ﷺ د ماسپخين نه پس دوه رکعته اونکړې شو.نو نبی ﷺ د تدارك په طور د مازيګرنه پس دوه رکعته اوکړل. او عادت شريف ئے دا وو.چه کله به نبی ﷺ څه عمل کولو.نو په هغې به نې مداومت کولو.نو ځکه نبی ﷺ د مازيګرنه پس هميشه دپاره دوه رکعت شروع کړل.او نور خلق به نې ددې دوو رکعتونو نه منع کول.

**واقعة إتيان وفد عبدالقيس** > علامه ابن الهمام د بخاری اومسلم په حواله سره پوره واقعه داسې ليکلې ده. [عن كريب مولى ابن عباس رضي الله عنه أن عبدالله بن عباس وعبدالرحمن بن الأزهر ومسور بن مخرمة أرسلوه إلى عائشة رضي الله عنها زوج النبي ﷺ فقالوا اقرأ عليها السلام منا جميعاً وسلها عن الركعتين بعد العصر وقل بلغنا أنك تصلينهما وأن رسول الله ﷺ نهى عنهما قال كريب فدخلت على عائشة رضي الله عنها فأخبرتها فقالت سل أم سلمة رضي الله عنها فرجعت إليهم فأخبرتهم فردوني إلى أم

(١) فى حديث ابن عباس رضي الله عنه أخرجه البخارى فى المواقيت باب ٣٠ رقم ٥٨١ ومسلم فى صلاة المسافرين رقم ٢٨٦ وأبوداود فى التطوع باب ١٠ رقم ١٢٧٦ والترمذى فى الصلاة باب ٢٠ رقم ١٨٣ والنسائى فى المواقيت باب ٣٢ وابن ماجه فى الإقامة باب ١٤٧ رقم ١٢٥٠ )_

سلمة رضي الله عنها فقالت أم سلمة سمعت رسول الله ﷺ نهی عنهما ثم رأيته يصليها فقيل له في ذلك فقال أنه أتاني ناس من عبد القيس بالإسلام من قومهم فشغلوني عن الركعتين اللتين بعد الظهر وهما هاتان] يعني كريب آزاد کړه غلام د ابن عباس رضي الله عنهما روايت کوی.چه عبدالله بن عباس، عبدالرحمن بن ازهر ،او مسور بن مخرمه رضي الله عنه زه ام المؤمنين عائشې رضي الله عنها ته اوليږلم.چه زمونږ د ټولود طرفه ام المؤمنين ته سلام اووايه.اود مازيګر نه پس د دوو رکعتونو حال ترې معلوم کړه.اوعرض ورته اوکړه .چه مونږ ته دا خبر رارسيدلے دې.چه ته دا دوه رکعتونه کوې.او رسول الله ﷺ ددې نه منع کړې ده.کريب وائی.زه د ام المؤمنين په خدمت کښې حاضر شوم . او پيغام مې ورته اورسولو.هغوی راته اوفرمائيل.لاړ شه د حضرت ام سلمې رضي الله عنها نه تپوس اوکړه.نوواپس راغلم.اوهغوی ته مې واقعه بيان کړه.نوهغوی زه ام المؤمنين حضرت ام سلمې رضي الله عنها ته اوليږم.نو ام سلمې رضي الله عنها اوفرمائيل.چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی وو.چه د مازيګر نه پس نې د دوو رکعتونو نه منع کوله.بيا ما اوليدلو.چه نبی ﷺ دوه رکعته کول.نو په دې باره کښې ما د نبی ﷺ نه تپوس اوکړلو.(چه تاسو خود مازيګر نه پس د نفلو نه منع کړې وه. او اوس نې پخپله کوئ.نو نبی ﷺ اوفرمائيل: ماته د وفد عبدالقيس څه کسان راغلل.دخپل قوم د طرف نه د اسلام قبلولو دپاره.نود ماسپخين نه پس دوو رکعتو نه مشغول شوم.نو دا هغه دوه رکعته دی.(چه اوس نې د مازيګر نه پس کوم. از مترجم (بخاری في المغازی)

**د صبا اومازيګر نه د پس دقضا مونځونو د کولو رخصت**

| وَلَا بَأْسَ اوځه حرج نشته بِأَنْ يُصَلِّيَ فِي هَذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ الْفَوَائِتَ که په دې دوارو وختونو کښې قضاء مونځونه اوکړی |
|---|

**تشريح﴿ جوازالفائتة في هذين الوقتين﴾** امام قدوری رحمه الله فرمائی.په دې دوو وختونو کښې يعنی د صبا دمانځه نه پس او د مازيګر د مانځه نه پس د قضاء مونځونو په کولو کښې څه قباحت نشته.

**دليل الجوازمن مشغولة الوقت في حقيقة الفرض﴾** دليل دا دې.چه د صبا اومازيګر نه پس کراهت د صبا او مازيګر د مونځ د وجې وو.چه ټول وخت د دغه وخت په فرض کښې مشغول شی.نوچونکه کراهت د فرضو د حق د وجې وو.نوچه په حقيقت کښې فرض وی.نو دهغې په حق کښې به کراهت نه ښکاره کيږی.(ځکه که ديو فرض نه وخت خالی شو.نو په بل فرض ډك شو. ځکه چه په حقيقی فرضو کښې د وخت مشغوله کول بهتر دی.په نسبت سره دے ته چه د فرضود حق سره مشغوله شی.نوځکه د فرضو په حق کښې او څه چه ددې په معنی کښې وی.(يعنی واجب يا فرض وی) نو دهغې په حق کښې کراهت نه ښکاره کيږی.(يعنی دلته کښې دوه څيزونه دی.يود فرضو حق دې.يعنی د فرضو حق دا دې.چه پوره وخت په فرضو کښې مشغول شی.مثلا چه د مازيګر وخت داخل شی. نوچه نيت اوتړی.نوترمابنامه پورې د مازيګر په فرض کښې مشغول وی.اوبل څيز پخپله فرض دې.نوچه کله دوه څيزونه په يو وخت کښې جمع شی.يو د فرضو حق او بل حقيقی فرض نو په دې صورت کښې به د حقيقی فرضو کول بهتر وی.لکه په زيربحث مسئله کښې چه سجده د تلاوت حقيقی فرض دی. لکه سجده د تلاوت ځکه چه سجده د تلاوت لذاته واجب ده.ځکه چه د تلاوت د سجدے وجوب د بنده په عمل باندې موقوف نه دې.او دليل ددې دا دې.چه څنګه سجده د تلاوت په تلاوت کولو سره واجبيږی. نو دغه شان

د سجدے آیت اوریدو سره هم واجبیږی. اګرچه د اوریدو اراده ئې نه وی.نو سجده د تلاوت په واجب لذاته کښې د فرضو پشان شوه.

**حکم صلاة الجنازة في هذين الوقتين**﴾ هم دا حال د جنازے د مونځ هم دې.ځکه چه دجنازے د مونځ وجوب هم د بنده په فعل پورې موقوف نه دې. (بلکه که بنده دا نه غواړی.چه فلانئ دے مړ شی.خو بیا هم هغه مری.اوچه مړ شی.نو په ده جنازه کول واجب شو.چه حاضره شی.

**حکم المنذور في هذين الوقتين**﴾ البته د صبا اومازیګر نه د نذر کړې شوی مونځ په باره کښې کراهت ښکاره کیږی.ځکه چه نذر شوې مونځ واجب لذاته نه دې.بلکه د نذر کونکی په نذر کولو سره واجب شوې دې.

**حکم الطواف في هذين الوقت**﴾ دغه شان د طواف په دوو رکعتونو کښې هم کراهت ښکاره کیږی.نود صبا اومازیګر نه پس ددې دوو رکعتونو کول مکروه دی.ځکه چه ددې وجوب د طواف د وجے دې.اوطواف کول دطائف فعل دې. نو د طواف دوه رکعته هم واجب لذاته نه دی.

**حکم الصلاة الفاسد بعدالشروع فيها**﴾ اودغه شان د هغه مونځ په باره کښې هم کراهت ښکاره کیږی.چه په هغې کښې شروع شوې وی.او بیا فاسد شوې وی.مثلا چه په نفلی مونځ کښې شروع اوکړی.او بیا د صبا یا مازیګر نه پس ددې قضاء راوړی.نو مکروه ده.ځکه چه دا مونځ لذاته واجب نه دې.بلکه کوم مونځ چه ئے د شروع نه پس فاسد کړې وو. هغه د بطلان نه د بچ کولو دپاره واجب شوې دې.

**دصباصادق نه پس د دوه رکعته سنتو نه د زیاتی نوافلو کراهت**

| وَيُكْرَهُ أَنْ يَتَنَفَّلَ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ بِأَكْثَرَ مِنْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ او د صبا راختو نه پس د صبا د دوو رکعتونو نه زیات نفل کول مکروه دی |
| --- |

**تشریح**﴾ صورت د مسئلې ښکاره دې.نووضاحت ته ضرورت نشته

**دليله**﴾دلیل دا دې چه نبی ﷺ سره د مانځه د حرص نه په دې دوو رکعتونو زیادت نه دے کړې.(1)

**د ماښام نه پس د فرضو نه وړاندې د نفلو حکم**

| وَلَايُتَنَفَّلُ قَبْلَ الْمَغْرِبِ او دماښام د مانځه نه وړاندې به نفل نه کوی |
| --- |

**تشریح**﴾ **حکم النفل قبل الفرض في المغرب** ﴾ مسئله دا ده.چه نمر ډوب شی.نو د فرضو نه وړاندې د نفلو کول مکروه دی.دلیل دا دې.چه په داسې کولو کښې د ماښام دمونځ تاخیر راځی. حالانکه په ماښام کښې تعجیل مستحب دې.

**حکم الصلاة قبل المغرب**﴾ د ماښام نه وړاندې دوو رکعتونو ته خو امام قدوری رحمه الله مکروه وئیلی دی.خو څه احادیث ددې په مسنونیت کښې وارد دی.

**دليله**﴾ دحضرت عبدالله بن مغفل رضی الله عنه نه روایت دې.فرمائی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.دهر دوو اذانونو(یعنی اذان اواقامت ) په مینځ کښې نفلی مونځ شته. دهر دوو اذانونو (یعنی اذان او اقامت ) په مینځ کښې نفلی مونځ شته.او بیا ئې په دریم ځل اوفرمائیل.چه د چا خوښه وی.(نو د اذان اواقامت په مینځ کښې دے مونځ کوی. كذافی البخاری فی الأذان باب بین كل أذانین صلاة لمن

---

(1) من حديث حفصة رضي الله عنها أخرجه البخاری فی التهجد باب ۲۹ رقم ۱۱۷۳ ومسلم فی صلاة المسافرین رقم ۸۸۔

شاه و مسلم فی الصلاة باب بین کل اذانین صلاة)
دحدیث د ظاهر نه دا معلومیږی.چه دمابنام د اذان او اقامت په مینځ کښې بل مونځ شته.په دې باره کښې دفقهاء اختلاف دې. دامام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهما الله په نزد د مابنام نه وړاندې دوه رکعته نفل مستحب دی.او دامام اعظم او امام مالك رحمهما الله په نزدے د مابنام نه وړاندې نفل کول مکروه دی.د شوافعو او حنابلوْ دلیل دحضرت عبدالله بن مغفل دا حدیث دې.خو احناف ددې حدیث نه جواب کوی.چه ددې نه د مابنام مونځ مستثنا دې.او په دلیل کښې ددارقطنی بیهقی او مسند بزار حدیث پیش کوی.د دوی په روایت کښې د مابنام استثنا موجود ده.دحدیث الفاظ دا دی.

[قال رسول الله صلی الله علیه وسلم إن عند کل أذانین رکعتین ما خلا صلاة المغرب]دا حدیث د احنافو دلیل هم دې.او جواب هم .دتفصیل دپاره درس ترمذی اوګورئ .(درس ترمذی ۱/ ۴۳۰. شاه فیصل عفی عنه)

**الأنصاف في هذه المسئلة**: د شوافعو سره په خپله مدعی باندې مضبوط دلائل موجود دی.لکه په بخاری کښې دحضرت عبدالله مزنی او حضرت انس رضی الله عنهما دوه روایتونه او په ابوداود کښې د حضرت انس بن مالك رضی الله عنه روایت شو.ددے روایاتونه د مابنام د مانځه نه وړاندې دوه رکعته کول ثابت دی.ددې وجه داحنافو په متاخرینو عالمانو رحمهم الله کښې صاحب دفتح القدیر امام ابن الهمام رحمه الله ددې دجواز قول ته ترجیح ورکړې ده.چه د مابنام نه وړاندې دوه رکعته نفل کول جائز دی.شاه انور شاه کشمیری رحمه الله هم د جواز قول ته ترجیح ورکړې ده.او فرمائی.د مابنام نه وړاندې د دوو رکعتو نفلو د استحباب نفی خو کیدے شی.چه یو سړې دا اووائی.دا مستحب نه دی.خو دےته مکروه او بدعت نشی وئیلې.شیخ الاسلام علامه محمد تقی عثمانی مد ظله العالی په درس ترمذی کښې فرمائیلی دی.دروایاتو په رنړا کښې دمابنام نه وړاندې دوه رکعته جائزدی.البته ددې نه کول افضل معلومیږی.

① یو خو ددې وجه چه په احادیثو کښې دمابنام دمانځه دتلوارے حکم راغلې.اوددې دوو رکعتونو دکولو په صورت کښې د مابنام مونځ ورستوکیږی.

② دویمه دا چه په صحابه کرامو ﷺ کښې زیاتو صحابو به دا دوه رکعته نه کول. اود حدیث صحیح مفهوم د صحابو ﷺ دعمل نه ثابتیږی.چونکه عام طور صحابه کرامو ﷺ دا نه دی کړی.نو ددې نه نه کول افضل معلومیږی.(درس ترمذی ۱/ ۴۳۱)

داحقر شاه فیصل رائې دا ده.که حنفی په داسې جمات کښې د مابنام مونځ کوی. چه د هغې خلق دمابنام نه وړاندې دوه رکعته نفل کوی.نو دوه رکعته نفل دے اوکړی .ځکه چه دامام نه خو وړاندې هسے هم مونځ نشی کولې.چه په هغه احادیثو باندې هم عمل راشی. کوم چه ددې دوو رکعتونو په ثبوت کښې راغلی دی.لکه سړې حرمینو شریفینو ته لاړشی.او هغوی هلته کښې دا دوه رکعته نفل کوی.نو ورسره دے اوکړی.

د نوافلو بيان

# بَابُ النَّوَافِلِ

**ترجمه>** (دا) باب د نوافلو (په بيان كښې) دې.

**تشريح>** وړاندې د فرض او واجب بيان وو.په دې باب كښې د سنتو او نوافلو بيان دې.د نفل معنى (كوم چه په فرض باندې زياتى وى) چونكه سنتو ته هم شامل ده.نوځكه ئې په عنوان كښې صرف نوافل ذكر كړل.او د سنتو ذكر اونكړې شو.

**د سنت موكده او غير موكده بيان د ركعتونو تعداد**

سُنَّةٌ فِي الصَّلَاةِ اَنْ يُّصَلِّيَ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ طُلُوْعِ الفجر سنت دى.دصبا راختو نه پس دوه ركعته اوكړى وَأَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِاو ځلور ركعته د ماسپخين نه وړاندې وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا او دوه ركعتونه د ماسپخين نه پس وَأَرْبَعًا قَبْلَ الْعَصْرِاو ځلور ركعته د مازيګر نه وړاندې وَاِنْ شَاءَ رَكْعَتَيْنِ او كه غواړى نو دوه (دے اوكړى)وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ اود ماښام نه پس دوه ركعته وَأَرْبَعًا قَبْلَ الْعِشَاءِ او د ماسخوتن نه وړاندې ځلور ركعته وَأَرْبَعًا بَعْدَهَا او د ماسخوتن نه پس ځلور ركعته وَاِنْ شَاءَ رَكْعَتَيْنِ او كه غواړى نو دوه ركعته(دے اوكړى) فَاِنْ صَلّٰى بِاللَّيْلِ صَلّٰى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ اوكه د شپې ئې مونځ كولو (تهجد) نو اته ركعاته دې اوكړى.

**تشريح> قسمي السنة>** امام قدورى رحمه الله په دې باب كښې اګرچه د سنتو او نوافلو دواړو ذكركوى.خو د اهميت او اشرفيت په وجه د سنتوذكر وړاندې كړې شو ① بيا د سنتو دوه قسمونه دى. مؤكده او غير مؤكده ،مؤكده هغه سنتو ته وائى.په كومو باندې چه نبى ﷺ كله كله د پريخودو سره مواظبت كړې وى. ② او غير مؤكده هغه سنت دى.په كومو باندې چه د الله تعالى نبى ﷺ هميشوالې نه وى كړې.

**عدد السنن المؤكدة>** سنت مؤكده دولس ركعتونه دى.د صبا د مانځه نه وړاندې دوه ركعته ،د ماسپخين نه وړاندې ځلور ركعته ،اود ماسپخين نه پس دوه ركعته ،او د ماښام نه پس دوه ركعته ،او د ماسخوتن نه پس دوه ركعته،ددې نه سوا سنت غير مؤكده دى.

**ذكر صاحب القدورى السنن المؤكده وغيرالمؤكدة>** صاحب د قدورى رحمه الله مؤكد او غير مؤكده دواړه په دې طريقه ذكر كړى دى.چه د صبا د مانځه نه وړاندې دوه ركعته.او د ماسپخين نه وړاندې ځلور ركعته.اود ماسپخين نه پس دوه ركعته دى.د مازيګر نه وړاندې ځلور ركعته دى.كه غواړى نو په دوه ركعته دے اكتفاء كوى.اد ماسخوتن نه پس ځلور ركعته دى.يا دے په دوه ركعته اكتفاء كوى.

**وجه الإبتداء من سنة الفجر>** باقى پاتې شوه داخبره چه صاحب د قدورى رحمه الله د صبا د سنتو نه ولې شروع اوكړله.نو ددې وجه دا ده.چه د صبا سنت په سنتو كښې زيات قوى دى.نبى ﷺ د صبا د سنتو په باره كښې فرمانيلى دى.[صلوهاولوطردتكم الخيل] يعنى تاسو د صبا سنت كوئ.اګرچه تاسو اسونه پائمال كوى.

**الدليل الفقهي لأهمية سنة الفجر>** حسن بن زياد رحمه الله د امام اعظم رحمه الله نه روايت كړې دې.كه يو كس د صبا سنت بغير د عذر نه په ناسته اوكړى.نو جائز نه دى.عالمانو او مشائخو رحمهم الله ليكلى دى.كه يو

عالم مرجع د خلقو وی.خلق ده ده نه د فتوو او د شریعت د مسائلو تپوسونه کوی.نو دخلقو د ضرورت دپاره ده دپاره د ټولو سنتوپریخودل جائزدی.د صبا د سنتو نه سوا ،ددې نه هم د صبا دسنتو اقوی کیدل ثابتیږی.

**دليل سنة إثنتیٰ عشرة رکعة>** د ذکر شوو دولس رکعتونو په سنت مؤکده کیدو کښې اصل دلیل د نبی ﷺ ارشاد دې.امام ترمذی او ابن ماجه ددې حدیث الفاظ داسې ذکر کړی دی.[عن عائشة رضي الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ من ثابر على إثنتی عشرة رکعة من السنة بنی الله له بیتا فی الجنة أربع رکعات قبل الظهر ورکعتین بعدها ورکعتین بعد المغرب ورکعتین بعد العشاء ورکعتین قبل الفجر] () یعنی حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.کوم کس چه په دولس مسنون رکعتونو باندې همیشوالې اوکړلو.الله تعالی به ده دپاره په جنت کښې یو کور جوړ کړی.(دولس رکعتونو دا دی څلور د ماسپښین نه وړاندې ،دوه د ماسپښین نه پس ،دوه د ماښام نه پس،دوه د ماسخوتن نه پس او دوه د صبا نه وړاندې ،

**وجه التخيير بين الإثنين والأربع>** امام قدوری رحمه الله فرمائی.چه د رسول الله ﷺ د دولسو رکعتونو د تفسیر په موقع د ماسخوتن نه وړاندې د څلورو رکعتونو ذکر هم نه دے کړې.هم دا وجه ده.چه دا څلور رکعتونه هم د استحباب په درجه کښې دی.خود مشابره د حدیث نه علاوه په نورو احادیث کښې د څلورو رکعتونو ذکردې. دبراء بن عازب رضي الله عنه حدیث دې.[قال قال رسول الله ﷺ من صلی قبل الظهر أربعاً کان کأنما تهجد من لیلة ومن صلاهن بعد العشاء کان کمثلهن من لیلة القدر] یعنی براء بن عازب رضي الله عنه فرمائی.چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چا چه د ماسپښین نه وړاندې څلور رکعته اوکړل.نو لکه چه ټوله شپه ئې عبادت اوکړلو.او چا چه د ماسخوتن نه پس څلور رکعته اوکړل.نو لکه چه د لیلة القدر څلور رکعته ئې رالاندې کړل.نود حدیث په الفاظو کښې په دووه او څلورو کښې اختلاف دې.نوځکه صاحب د قدوری رحمه الله اختیار ورکړلو.چه د ماسخوتن نه پس دے څلور رکعته اوکړی.اوکه دوه رکعته کوی.خو غوره دا ده.چه څلور رکعته اوکړی.خاص کر د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز،دامام صاحب او صاحبینو رحمهم الله اصل اختلاف په دې کښې دې.چه د شپې مونځ مثنی مثنی افضل دےاوکه په یو سلام سره څلور رکعته کول افضل دی.

## د شپې اود ورځو د نوافلو تعداد

**نَوَافِلُ النَّهَارِ إِنْ شَاءَ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ بِتَسْلِيمَةٍ وَاحِدَةٍ**.اود ورځې نوافل که غواړی نو دوه رکعته دے اوکړی په یوسلام سره **وَإِنْ شَاءَ أَرْبَعًا**.او که غواړی نه څلور رکعته دے اوکړی **وَيُكْرَهُ الزِّيَادَةُ عَلَى ذَلِكَ**.او په دې باندې زیادت مکروه دې **وَأَمَّا نَافِلَةُ اللَّيْلِ**.پاتې شو د شپې نوافل **فَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ** رحمه الله نو ابوحنیفه رحمه الله فرمائی **إِنْ صَلَّى ثَمَانِ رَكَعَاتٍ بِتَسْلِيمَةٍ وَاحِدَةٍ جَازَ** که په یو سلام باندې

(۱ ن حدیث ام حبیبة بنت أبي سفیان رضي الله عنها انها سمعت رسول الله ﷺ یقول ما من عبد مسلم یصلی لله فی کل یوم ثنتی عشرة رکعة تطوعا من غیر الفریضة إلا بنی الله له بیتا فی الجنة رواه مسلم فی صلاة المسافرین وقصرها رقم ۱۰۳ و ابوداود فی التطوع باب ۱، والترمذی فی الصلاة باب ۱۸۹ رقم ٤١٥ والنسائي السنن الكبرى (٤٥٩/١) رقم ١٤٦٩ وفي قيام الليل من المجتبى باب ٦٧ وابن ماجه في الإقامة باب ١٠٠ رقم ١١٤١ والدارمي في الصلاة باب ١٤٤ وأحمد في المسند (٣٢٧/٦، ٤٢٦، ٤٤٣ والحاكم في المستدرك (٣١١/١)۔

اته رکعته اوکړی.نو جائز دي وَيُكْرَهُ الزِّيَادَةُ عَلٰى ذٰلِكَ او په دې باندې زيادت مکروه دي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله.او صاحبين رحمهما الله فرمانې. لَايَزِيْدُ فِي اللَّيْلِ عَلٰى رَكْعَتَيْنِ بِتَسْلِيْمَةٍ وَاحِدَةٍ چه د شپې دې په يو سلام سره د دوو رکعتونو نه زيادت نه کوی

**حل اللغة** ⟩ ①نهار: ورځ ②شاء، شاء شيئا(ف): غوښتل ③جاز، جاز جوازا (ن): جائز کيدل ④لايزيد، زاد زيادةً (ض): زياتول

**تشريح⟩ المذهبان في عدد ركعات النوافل بالتسليمة الواحدة**⟩تر اوسه پورې د سنتو بيان وو.په راروانو کرښو کښې د نوافلو ذکر دې.عالمانو رحمهم الله د اباحت او افضيلت په اعتبار سره د شپې او ورځې د نوافلو په تعداد کښې اختلاف کړې دې.امام ابوحنيفه رحمه الله فرمانې.چه د ورځې په نوافلو کښې دا مباح دی.چه په يو سلام باندې دوه رکعته يا څلور رکعته اوکړی.ددې نه زياتی کول مکروه دي.اود شپې په نفلو کښې په يو سلام باندې اته رکعته کول بغير د کراهت نه جائز دي.او په اتو باندې زيادت کول مکروه دي.

**دليل كراهة الزيادة علي ثماني ركعات بتسليمة واحدة**⟩ صاحب دهدايه رحمه الله فرمانيلی دی.چه په شپه کښې په يو سلام سره د اتو رکعتونو نه د زيادت په کراهت باندې دليل دا دې.چه نبی ﷺ په اتو رکعتونو باندې زيادت نه دے کړې.()که په يو سلام سره په اتو رکعتونو باندې زيادت مکروه نه وو.نو د جواز د بيان دپاره به يو ځل دوه ځله نبی په اتو باندې زيادت ضرور کړې وو.خو نبیﷺ په يو سلام سره د اتو رکعتونو نه کله هم په نفلو کښې زيادت نه دے کړې.نو ځکه په يو سلام سره د اتو رکعتونو نه زيادت کول مکروه دی.

**الإعتراض**⟩معترض ونيلے شی.چه په شپه کښې په يو سلام باندې د اتو رکعتونو نه زيادت کولو باندې هم سنت وارد شوې دې.نقل شوی دی.[أنه ﷺ كان يصلي بالليل خمس ركعات سبع ركعات تسع ركعات أحد عشر ركعة ثلاث عشرة ركعة] يعنی نبی ﷺ به په شپه کښې پنځه رکعته هم کولو.اواوه رکعته او او نهه هم او يوولس هم او کله به ئې ديارلس هم کول.

**الجواب**⟩ زمونږ د طرفه ددې جواب دا دې.چه په پنځو رکعتونو کښې دوه رکعته صلاة الليل وو.يعنی نفل او درې رکعته وتر وو.او په اووه رکعتونو کښې څلور رکعته صلاة الليل او درې رکعته وتروو.او په نهه رکعتونو کښې شپږ رکعته صلاة الليل او درې رکعته وتر وو.او په يوولس رکعتونو کښې اته رکعته صلاة الليل او درې رکعته وتر وو.او په ديارلس رکعتونو کښې اته رکعته صلاة الليل او درې رکعته وتر او دوه رکعته د صبا سنت وو.نبی ﷺ دا تول رکعتونو په يو سلام سره اد کول.بيا ئې داسې تفصيل بيان کړل.ځنګه چه پورته تير شو.نو دے تفصيل نه پس د اعتراض څه ګنجائش پاتې نشو.(فتح القدير)

---

(۱) قال الزيلعي رحمه الله غريب وفي صحيح مسلم خلافه اخرجه من حديث عائشة رضي الله عنها في حديث طويل قال:كنا نعد له سواكه وطهوره فيبعثه الله ما شاء أن يبعثه من الليل فيتسوك ويتوضأ ويصلي تسع ركعات لا يجلس فيها إلا في الثامنة الحديث نصب الراية ۱۳۸/۲)_

**توضیح عبارة القدوری رحمہ اللہ** > د قدوری د عبارت [وقال ابویوسف ومحمد رحمہما اللہ لایزید باللیل علی رکعتین بتسلیمة] په ظاهره معلومیږي.چه د صاحبینو رحمہما اللہ په نیز په یو سلام سره د دوو رکعتونو نه زیادت کول جائز نه دي.حالانکه داسے نه ده.بلکه مراد دا دي.چه د صاحبینو رحمہما اللہ په نیز په دوو رکعتونو باندې زیادت کول افضل نه دی.نود صاحبینو رحمہما اللہ په نیز په شپه کښې افضل دا دی.چه دوه دوه رکعته کوی.او په ورځ کښې څلور څلور رکعته کوی.

**دلائلهما** > ① عقلی دلیل دا دې.چه په یو سلام سره څلور رکعته کولو کښې د تحریمے په اعتبار سره دوام دې.نو چه په مینځ کښې نه فارغ کیږی. ددې وجې په کښې مشقت زیات دې.او چه په کوم عبادت کښې مشقت زیات وی.هغه افضل وی.نو څکه په یو سلام سره څلور رکعته کول به افضل وی.په نسبت سره دوو رکعتونو ته،

② د صاحبینو رحمہما اللہ دلیل په تراویحو باندې قیاس دې.یعنی دتراویح مونځ په اتفاق سره دوه دوه رکعته کول افضل دی.نودغه شان به د شپې په نفلوکښې به هم دوه دوه رکعته افضل وی.

**الجواب عن قیاس الصاحبین رحمہما اللہ** >خود دې نه جواب دې. چه بیشکه د تراویح مونځ دوه دوه رکعته کول افضل دی.خو دتراویح مونځ په جماعت سره ادا کولې شی.او په اجتماعی کارونو کښې دعامو خلقو دخیال ساتلو د وجے د سهولت او آسانتیا حکم کولے شی.لکه چه نبی ﷺ فرمائلی دی.امام ته پکار دی.چه مختصر مونځ ورکوی. ښکاره ده.چه په دے امر کښې د عامو مقتدیانو خیال ساتلې شوې دې.نو چونکه د تراویح مونځ په جماعت سره ادا کیږی.نو څکه د عامو خلقو د آسانتیا د وجے د وو دوو رکعتونو کولو حکم ورکړې شوې دې.څکه چه په دوه دوه رکعته کولو کښې آسانتیا ده.په نسبت سره څلورو رکعتونو ته،اوکه خانله تړاویح کوی.نوڅلور رکعته کول افضل دی.خو په دې شرط چه طاقت ئې وی.او نوافل چونکه په جماعت سره نه ادا کیږی.څکه په نفلو کښې دا خیال نشی ساتلې.

**تائید أفضلیة الأربع في ضوء المسئلة** > هم دا وجه ده که چا په یو سلام سره د څلورو رکعتونو ادا کولو نذر اومنلو.نوده په دوو سلامونو سره څلور رکعته ادا کړل.نودده نذر نه پوره کیږی. څکه چه نذر ئے په افضله طریقه د ادا کولو کړې وو.چه څلور رکعته دی.او اداء ئې اوکړله په مفضوله طریقه،او قاعده دا ده.چه أفضل او اعلی په مفضول او ادنی سره نه ادا کیږی.او که په دوو سلامونو سره ئې د ادا کولو نذر کړې نوی.نو په یو سلام سره کولو باندې نذر پوره کیږی.څکه چه د مفضول په ځائې په افضل سره ادا اوکړې شوه. (١)

## په فرائضو کښې د قرائت حکم

> قِرَاءَةٌ فِي الْفَرَائِضِ وَاجِبَةٌ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ په فرض مونځ کښې په دوو اولنو رکعتونو کښې قرأت کول واجب دی

(١) **مذهب الشافعي** :-امام شافعی رحمہ اللہ فرمائیلی دی.چه په یو سلام سره دے په څلورو رکعتونو زیادت نه کوی.اوکه په څلورو رکعتونو ئې زیادت اوکړلو.نو دا به مکروه وی.

**تشريح> حکم القراءة في الفرض الرباعي>** مصنف رحمه الله چه د فرض واجبو او نوافلود بیان نه فارغ شو.نواوس په دې مقام کښې د قرات د مسئلې ذکر کوي.نو په څلور رکعته مونځ کښې د قرات په مسئله کښې په دوو رکعتونو کښې قرات فرض دې.

**دليله>** دليل د الله تعالى ارشاد دې. ﴿فَاقْرَءُوْامَاتَيَسَّرَمِنَ الْقُرْاٰنِ﴾په دې طريقه چه [اقرأ] د امر صيغه ده. اوامرد تکرار تقاضا نه کوي.نو په هر رکعت کښې د قرات فرضيت په عبارة النص سره ثابت شو.او چونکه دويم رکعت په هر لحاظ سره د اولنی رکعت مشابه دې.نو ځکه په دلالة النص سره په دويم رکعت کښې هم قرات واجب شو.حاصل دا چه په اولنی رکعت کښې د قرات وجوب په عبارة النص او په دويم رکعت کښې په دلالة النص سره ثابت شو.

**الإعتراض>** دلته کښې يوسوال کيږي.هغه دا چه په اولنی او دويم رکعت کښې مشابهت نشته. بلکه مفارقت دې.ځکه چه په اولنی رکعت کښې ثناء ،تعوذ او تسميه شته.او په دويم رکعت کښې دا څيزونه نشته.

**الجواب>** د څيزونه امر زائد دې.اعتبار صرف ارکانو لره دې.او په اصل ارکانو کښې دواړه رکعتونه يوشان دی.

**وجوه الفرق بين الركعتين الأولين والأخرين>** باقي پاتې شو آخری دوه رکعتونه نو هغه د اولنو رکعتونو نه مختلف دی.او د فرق وجوهات ئې دا دی. ① د سفر په وجه آخری دوه رکعتونه ساقط کيږي ا اولنی دوه نه ساقط کيږي.

② په اولنو دوو رکعتونو کښې قرات بالجهر کيږي.او په آخرنو دوو رکعتونو کښې په پټه وئيلی شي.

③ په اولنو دوو رکعتونو کښې د فاتحې سره د سورت ملاوول هم واجب دی.او په آخرنو دووورکعتونو کښې د فاتحې سره د سورت ضم کول نشته.نو هرکله چه دومره فرق شته.نو آخری دوه رکعتونه د اولنو دوو سره نشی لاحق کولې. (1)

## د فرضو په آخری دوو رکعتونو کښې د قرات حکم

| هُوَمُخَيَّرٌفِي الْأُخْرَيَيْنِ او مونځ ګذار ته په آخری دوو رکعتونو کښې اختيار دې شَاءَقَرَأَالْفَاتِحَةَ اوکه غواړی نوقراءت دې اووائی د سورة فاتحې وَإِنْ شَاءَسَكَتَ که زړه ئې غواړی نو چپ دے اودريږی وَإِنْ شَاءَسَبَّحَ اوکه غواړی نو تسبيح دے اووائی |
|---|

**حل اللغة >** ① مخير، اختيارورکړي شوې ② سکت، سکت سکوتًا (ن): چپ کيدل

③ شاء،شاء شيئًا (ف): غوښتل

**تشريح> إختيار المصلي في قراءة الأخرين>** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه په آخری دوو

---

1 ، په دې مسئله کښې درې مذاهب نور هم دی ①دامام شافعی رحمه الله په نيز په ټولو رکعتونو کښې قراءت فرض دې.②امام مالك رحمه الله فرمائی.چه په درے رکعتونو کښې قراءت فرض دې.
③ حسن بصری رحمه الله په يو رکعت کښې د قرات د فرضيت قائل دې اوابوبکر اصم په مانځه کښې د قرات دسنتيت قائل دې.ابوبکر رحمه الله قرات په نورو اذکارو باندې قياس کړې دې.يعنی لکه څنګه چه په مانځه کښې د رکوع او سجدے تسبيحات و ثناء وغيره مسنون دی.دغه شان د قرآن پاك قرات هم مسنون دې.

رکعتونو کښې مصلی ته اختیار دې.که د سورة فاتحې قرات کوی.یا د درې تسبیحاتو په اندازه چپ اودریږی.یا درې ځلې تسبیح اوائی.د امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم دا منقول دی.

**دليله**> دا تسبیح ونیل حضرت علی،ابن مسعود اوعائشه رضي الله عنها نه هم منقول دې.(١)

**فضيلة قراءة الفاتحة في الاخرين**> خو په آخرینو کښې د سورة فاتحه قرات کول افضل دی.

**دليله**> دلیل دا دې چه نبی ﷺ کله کله د پریخودو سره په دې باندې مداومت کړې دې.هم دا وجه ده.چه که په آخرینو کښې ئې قرات د فاتحې پریخودلو.نوپه ده باندې سجده سهوه واجب نه ده.نو ددې نه هم په آخرینو دوو رکعتونو کښې د فاتحې لوستلو افضلیت معلوم شو.صاحب د هدایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه ظاهر روایت هم دا دې.

**ترک قراءة الفاتحة والتسبيح في الأخريين**> امام حسن بن زیاد رحمه الله د امام اعظم رحمه الله نه روایت کړې دې.چه په آخرینو کښې که مونځګذار نه قرات اوکړلو.او نه ئې په قصد سره تسبیح اوونیل.نو ګناهګار به وی.اوکه په سهو سره ئې دا څیزونه ترک کړل.نو سجده سهو به پرے واجب وی.

**دليله**> دلیل دا دې.چه په آخرینو کښې قیام مقصود دې.نو دا د قرات کولو نه خالی کول مکروه دی.صاحب د عنایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه ظاهر روایت اصح دې.ځکه چه په قیام کښې خو اصلی قرات دې.او هرکله چه قرات ساقط شو.نو مطلق قیام خو به خامخا باقی وی.نو دا داسې شوه لکه چه د مقتدی قیام.(عنایه)

## د نفلو په فساد د قضاء حکم

| وَمَنْ دَخَلَ فِي صَلٰوةِ النَّفْلِ څوک چه په نفلی مونځ کښې داخل شو ثُمَّ أَفْسَدَهَا.بیا ئې هغه فاسد کړلو قَضَاهَا.نو ددې به قضاء راوړی |
|---|

**حل اللغة**> ① شرع،شرع شروعاً (ف): شروع کول ② افسدها، افسد افساداً: فاسد کول ③ قضاها، قضی قضاءً (ض): پوره کول، قضاکول

**تشريح**> **لزوم النفل بالشروع**> ①دا مسئله مختلف فیه ده.چه چه نفلی مونځ یا نفلی روژه په شروع کولو سره لازمیږی. که نه؟ نونفل (که مونځ وی اوکه روژه) په شروع سره لازمیږی.نو د نفلی مونځ شروع کولو نه پس که هغه فاسد کړی.نو د هغې قضا واجب ده.

**دليله**> دلیل دا دې.چه د شروع کولو نه پس چه د نفلو کومه حصه ادا کړې شوه.هغه قربت او عبادت واقع شو.او کوم څیز چه قربت او عبادت واقع شی. د هغې پوره کول لازم وی.چه د ابطال حق غیر نه محفوظ اوساتلې شی.ځکه د الله تعالی ارشاد دې. ﴿وَلَا تُبْطِلُوٓا أَعْمَالَكُمْ﴾ خپل عملونه مه ضائع کوئ.نو نفل د شروع کولو نه پس ددې پوره کول واجب دی.نو په مینځ کښې په فساد سره به ددې قضا واجب وی.(٢)

---

(١) قال الزيلعي رحمه الله روى ابن ابي شيبة في مصنفه عن شريك عن ابي إسحاق السبيعي عن على وابن مسعود قالا اقرأ في الأولين وسبح في الأخريين وفيه إنقطاع وهن عن عائشة رضي الله عنها غيب نصب الراية (١٤٣/٢)۔

٢ ، دامام شافعی رحمه الله په نیز نفل په شروع سره نه لازمیږی.تردے چه د شوافعو رحمهم الله په نیز که نفلی مونځ د شروع کولو نه پس فاسد کړی.نو په هغه باندې قضا نشته.

**په څلور رکعته مونځ کښې د دویمې شفعې په فساد د قضا حکم**

فَإِنْ صَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ اوکه د څلورو رکعتو په نیت سره ئې (په نفلي مونځ کښې ) شروع اوکړله وَقَعَدَ فِي الْأُولَيَيْنِ.او په اولنو دوو رکعتونو کښې کیناستلو ثُمَّ أَفْسَدَ الْأُخْرَيَيْنِ.بیا ئې روستنی دوه رکعتونه فاسد کړل قَضَى رَكْعَتَيْنِ.نوهم د دوو رکعتونو قضاء به راوړی

**حل اللغة** ﴿ ① صلي، صلى صلاةً: دعا کول، مونځ کول ② قرا، قرا قراءة (ف): لوستل ③ قعد، قعد قعوداً : کیناستل ④ افسد، افسد افساداً: فاسد کیدل

**تشریح** ﴿ **قضاء الشفع الثاني بالشروع فيه** ﴾ صورت د مسئلې دا دي.که یو کس د څلورو رکعتو په نیت باندې نفل شروع کړل.او په اولنو دوو رکعتونو کښې ئې واجب قرأت هم ولوستل.او په دوو رکعتو ئې قعده هم وکړله.بیا ئې دویمه شفع (آخری دوه رکعتونه) فاسده کړله.نو په ده باندې صرف د دویمې شفعه قضا واجب ده.په مسئله کښې ئې په دویم رکعت د کیناستو قید ددې وجې نه ذکر کړې دې.که په دویم رکعت باندې نه وی ناست،او آخری شفع فاسده کړی.نو په اتفاق سره پرې د څلورو رکعتونو قضا واجب ده.

حاصل دا که دریم رکعت ته د اودریدو نه پس ئې دویمه شفع فاسده کړله.نو په ده باندې صرف د دویمې شفعې قضاء واجب ده.ځکه چه اوله شفع خو پوره شوې ده.او د دریم رکعت دپاره اودریدل د نوې تحریمې په مرتبه کښې دی.نو په دې تحریمه صرف دویمه شفع لازمه شوه.نو ددې د فساد په صورت کښې به هم ددې قضا واجب وی.اودا د طرفینو مذهب دې.[1]

**دلیلهما** ﴾ دلیل دا دې.چه شروع کول د هغه څیز دوجوب سبب وی.کوم چه شروع شوی وی.او د هغه څیز د وجوب سبب وی.په کوم باندې چه د شروع کړې شوی څیز صحت موقوف وی. مثلاً چه نفل مونځ کړی نواولنې رکعت شو.ځکه چه اولنې رکعت [ماشرع فيه] دې. یعنی چه په کوم څیز کښې شروع شوی وی.او د اولنی رکعت صحت موقوف دې. په دویم رکعت باندې نو په شروع کولو سره دویم رکعت هم واجب شو.

**حکم عدم الشروع في الشفع الثاني** ﴾علامه مرغیناني رحمه الله فرمائیلی دی چه د دویمې شفعې د قضا راوړلو حکم په هغه وخت کښې دې چه په دې کښې ئې شروع کړې وی او بیا ئې فاسده کړی اوکه دریم رکعت ته د اودریدو نه وړاندې ئې دویمه شفع فاسده کړه.نو په ده باندې د څه څیز قضا واجب نه ده.ځکه چه په دویم رکعت باندې قعده کولو سره اولنۍ شفع پوره شوه.او دویمه شفع کښې لا شروع نه ده شوې.نو د اولنۍ شفعې قضا خو دد ے وجې نشته.چه هغه پوره شوې ده.او د دویمې شفعې قضا ځکه نشته.چه په هغې کښې شروع نه ده شوې.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله او ابو یوسف رحمه الله فرمائیلی دی يَقْضِي أَرْبَعًا چه د څلورو قضاء به راوړی.

**تشریح** ﴾ **وجوب قضاء الأربعة عند أبي يوسف رحمه الله** ﴾ دامام ابویوسف رحمه الله نه یو روایت دا دې.چه که اولنۍ شفع فاسده کړی.اوکه دویمه شفع په هرصورت کښې به دڅلورور رکعتو قضا واجب وی.

---

[1] )القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في فتح القدير(۱\۳۹۶) ومجمع الأنهر(۱\۱۳۳) والبحرالرائق (۱\۵۹) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۰۹)–

**دليله** ﴿امام ابویوسف رحمہ اللہ څلور رکعته نفل مونځ کښې شروع کول په نذر باندې قیاس کړې دی.یعنی لکه څنګه چه یود څلورو رکعتونو نفلوپه نذرکولوسره څلور رکعته واجبیږی. دغه شان که د څلورو رکعتو په نیت سره ئې نفل شروع کړل.نو څلور رکعته به واجبیږی.که په اولنئ شفع کښې ئے نفل باطل کړل.نوبیا به هم د څلورو رکعتونو قضاء واجب وی.اوکه په دویمه شفع کښې ئے نفل فاسد کړل.نوهم به د څلورو قضا واجب وی.ددې قیاس علت او سبب لزوم دې.یعنی لکه څنګه چه په نذر سره نفل لازمیږی.ده شان په شروع کولو سره هم نفل لازمیږی.

**عدم وجوب الشفعة الثانية بفساد الأولي** ﴿پاتې شوه شفع ثانی (آخری دوه رکعتونه نو هغه نه [ماشرع فیه] دی.او نه په هغې باندې د [ماشرع فیه] صحت موقوف دې.نو اولنئ شفع کښې شروع کولو سره دویمه شفع نه واجبیږی.او هرکله چه دویمه شفع واجب نه شوه.نو داولنئ شفعے په باطلولو سره د دویمے شفعے قضاء هم نه واجبیږی.دغه شان که دویمه شفع باطله کړی.نو صرف د دویمے شفعے قضاء به واجب وی.د اولنئ شفعے قضاء به واجب نه وی.ددې په خلاف که په نذر کښې په یو سلام سره د څلورو رکعتونو نذر اوکړی.نوپه یو سلام سره به څلور رکعته واجب وی.او که په دوو سلامونو سره څلور رکعته اوکړی.نونذر نه پوره کیږی.

### د قدرت على القيام باوجود په ناسته د نفل كولو حكم

| وَيُصَلِّي النَّافِلَةَ قَاعِدًا مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْقِيَامِ او په قیام د قدرت لرو باوجود په ناسته نفل کولې شی. |
|---|

**حل اللغة** ﴿① يصلي، صلى صلاة: مونځ.کول، دعاکول ② نافله: نفل کول ③ قاعدې:په ناسته

**تشريح** ﴿ **جوازالنفل قاعداً مع القدرة علي القيام** ﴿مسئله، د قادر على القيام دپاره په ناسته نفل کول جائز دی.

**دلائله** ﴿ ① نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. [صلوة القاعد على النصف من صلوة القائم] ([1]) یعنی په ولاړه دمونځ کولو په نسبت په ناسته مونځ کولوکښې نیم ثواب دې.ددې حدیث نه به استدلال په دې طریقه وی.چه په حدیث کښې د رسول الله ﷺ مراد یا خو دادې.چه د عذر په وجه په ناسته مونځ اوکړی یا بغیر د عذر نه ،اول خوکیدلے نه شی.ځکه چه د عذر په وجه سره په ناسته او په ولاړه کول، په ثواب کښې دواړه برابر دی.نومتعین شوه.چه بغیر د عذر نه په ناسته کول مراد دی . پاتې شو دا چه په حدیث کښې فرض مونځ مراد دے یا نفل.نو مونږ وایو فرض په اجماع سره مراد نه دې.ځکه چه بغیر دعذر نه په اجماع سره فرض مونځ په ناسته کول جائز نه دی. نو دویم یعنی نفل متعین شو. یعنی دا ثابت شو.چه نفل مونځ بغیر د عذر نه کولې شی.البته په ولاړه دکولو په نسبت به ثواب نیم وی.

② دلیل عقلی دادې.چه نفل مونځ خیرموضوع دې.یعنی د بنده دپاره دا نیکی داسې مقرر شوې ده.چه په ټولو وختونو کښې ئې کولې شی.دحضرت ابوذر رضی اللہ عنہ نه روایت دې.چه حضور ﷺ اوفرمائیل [الصلوة خير موضوع فمن شاء استقل ومن شاء استكثر] یعنی مونځ خیرموضوع دې. چه څوك غواړی کم دے کوی.اوڅوك چه غواړی ډیر دے کوی.

---

[1] ) من حديث عمران بن حصين رضی اللہ عنہ رواه البخارى في التقصير باب ١٧ والترمذى في الصلاة باب ١٥٧ وابوداد في الصلاة باب ١٧٥ رقم ٩٥١ والنسائى في صلاة الليل باب ٢١ وابن ماجه في الإقامة باب ١٤١ واحمد في المسند (٤٤٢/٤ ، ٤٤٣)۔

**حاصل المسئلة** ﴿ حاصل دادې.چه نفل مونځ غير واجب دې.او کوم څيز چه په دے اندازه وی .په هغې کښې داسې څه شرط نه شی لګولې.چه هغه ددې د پريخودلو سبب وی.ځکه چه کوم څيز د خير د پريخودلو سبب وی .هغه خير موضوع ئه شی کيدې.او د قيام شرط لګول د نفل پريخودلو سبب کيدے شي.ځکه چه ډير وخته په مونځګذار باندې قيام سخت وی.نوکه قيام د نفل مونځ دپاره شرط اوګرځولې شی.نو ډير کرته د قيام ګرانيدو په وجه د نفلو پريخودل لازميږی. حالانکه نفل خير موضوع دې.يعنی په ټولو وختونو کښې د حاصلولو نيکی ده.ځکه د نفل مونځ دپاره د قيام شرط اونه لګولې شو.

## په مانځه کښې د قيام نه قعود ته د تلو حکم

وَإِنْ افْتَتَحَهَا قَائِمًا اوکه نفل ئې په ولاړه شروع کړل. ثُمَّ قَعَدَ بِلاَ عُذْرٍ بيا (بغير د عذر نه) کيناستلو جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله .نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دی

**حل اللغة** ﴿ ①افتتحها، افتتح افتتاحا: شروع کول ②قائما: په اودريدو ③قعد، قعد قعوداً (ن): کيناستل

**تشريح** ﴿ **الإختلاف في القعود من القيام في النفل** ﴿ مسئله داده.که چا نفل مونځ په ولاړه شروع کړو.بيا بغير د عذر نه کيناستلو. نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دی.[1]

**دليله** ﴿ دليل دادې.مخکښې تيرشوی دی.چه شروع کول هغه څيز لازموی.کوم چه شروع شی.او په کوم چه د "ماشرع فيه" صحت موقوف دې.نو په نفلو شروع کولو سره رکعت اولی او ثانيه دواړه واجبيږی.رکعت اولی خو به ځکه واجب وی.چه دا شروع شوې دې.او رکعت ثانيه په دې وجه ،چه په دې باندې د رکعت اولی صحت موقوف دې.ځکه چه صلوة بتيراء ممنوع دې.خو په ذکر شوې مسئله کښې رکعت اولی په ولاړه شروع شوې دې.خو ددې صحت په دې موقوف نه دې.چه رکعت ثانيه هم په ولاړه اوکړې شی.

وَقَالَا لَا يُجْزِيهِ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز ناجائز دی إِلَّا مِنْ عُذْرٍ مګردوجې د عذر نه

د صاحبينو رحمهما الله په نيز ناجائز دی.حکم اول استحسانی دې.او ثانی قياسی دې.

**دليلهما** ﴿ د صاحبينو رحمهما الله دليل قياس دې.يعنی نفل مونځ شروع کول قياس شوې دے په نذر باندې. په دې طريقه که چا په ولاړه د نفل مونځ کولو نذر اوکړو.نو دده دپاره به په ناسته کول جائز نه وی. دغه شان که په ولاړه ئې نفل مونځ شروع کړو.نو په ناسته کول جائز نه دی.

## د ښار نه بهر په خاروی باندې د نفل کولو حکم

وَمَنْ كَانَ خَارِجَ الْمِصْرِ اوکوم سړې چه د ښار نه بهر وی يَتَنَفَّلُ عَلَى دَابَّتِهِ هغه دے په خپله خوارلئ باندې نفل مونځ کوی إِلَى أَيِّ جِهَةٍ تَوَجَّهَتْ ..کوم طرف ته چه غواړی متوجه دے شی. يُومِئُ إِيمَاءً په داسې حال کښې چه اشاره کوی

**حل اللغة** ﴿ ①خارج: بهر ② تنفل، تنفل تنفلاً: نفل کول ③جهة: طرف،اړخ ④توجهت،توجه توجها

[1] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(۱\۵۱۵) وفتح القدير(۱\۲۰۲) ومراقی الفلاح (ص،۲۶۶) والبحرالرائق (۲\۶۳) والهندية (۱\۱۱۴) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۱۲)–

:متوجه کېدل ⑤یؤمی، امی ایماء: اشاره کول

**تشریح﴾ الصلاة علی الدابة ﴿** مسئله. دښار نه بهر په سورلۍ باندې نفل مونځ کول جائز دی.که د عذر په وجه وی یا بغیر د عذر نه.دمونځ په شروع کښې د قبلې طرف ته متوجه وی اوکه متوجه نه وی.یعنی کوم طرف ته چه د سورلۍ مخ وی.هم هغه طرف ته دے مخ کړی او ادا دے کړی.

**دلائله﴾** ①دلیل د ابن عمر رضی الله عنهما حدیث دی.[**قال رأیت رسول الله ﷺ یصلی علی حمار وهو متوجه الی خیبر یومی ایماء**] ([1]) یعنی حضرت ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی.چه ما د الله پاك رسول ﷺ په خر باندې اشاره سره په مونځ کولو باندې اولیدلو. په داسې حال کښې چه دوی خیبر طرف ته متوجه وو.

②عقلی دلیل دادې.چه په سورلۍ باندې د نفلو کولو جواز ځکه دې.چه نوافل د هیڅ وخت سره مخصوص نه دی.نو که مونږ په مصلی باندې دسورلۍ نه کوزیدل او استقبال قبله لازم اوګرځوو.نو اوس دوه صورتونه دی.یا خو به د سورلۍ نه راکوزیږی.قبلې طرف ته به متوجه کیږی.او یا به نه د سورلۍ نه راکوزیږی.او نه به استقبال د قبلې کوی.که دویم صورت وی.نو نفل به دده نه منقطع شی.ځکه چه دکومې پورې دے په سورلۍ باندې وی.نفل نه شی ادا کولې.او هرکله چه په دغه وخت کښې نوافل نه شی اداکولې.نو دے د نوافلو د خیر موضوع (یعنی په ټولو وختونو کښې دعمومیت) نه محروم شو.حالانکه نوافل خیر موضوع دی.یعنی دا نیکی هر وخت حاصلیدے شی.او که اولنے صورت وی.یعنی د سورلۍ نه راکوزیدل او قبلې طرف ته مخ کولو سره نفل مونځ کول. په دې صورت کښې به دے د قافله نه ورسته پاتې شی.نو ددې عذر په وجه په سورلۍ باندې د نفل مونځ کولو اجازت ورکړې شو.

**وجه عدم جواز الفرائض راکباً﴾** پاتی شو فرائض، نو دا د خاص وختونو سره مخصوص دی.نوپه دے مخصوص وختونو کښې په راکوزیدلو او قبلې ته د مخ کولو په لزوم کښې هیڅ تکلیف او حرج نشته دې.په دې وجه په سورلۍ باندې د فرض مونځ کولو اجازت ورنکړې شو.

**جواز الفرض راکباً عندالعذر﴾** البته د عذر د وجې فرض مونځ هم په سورلۍ باندې جائز دې. ①مثلاً د غل ویره، یا د درنده ګانو ویره وی.که د سورلۍ نه راکوز شی.او فرض ادا کړی. نو د سورلۍ څاروے او سامان به غل اوتښتوی.یا به ئې درنده هلاك کړی.

②یا مثلا په ټوله زمکه باندې دومره ډیرے خټې او چقړے دی .چه په دې باندې سجده کول ممکن نه دی. ③یا مثلا سور سړې دومره بوډا او شیخ فانی وی.چه دے په سورلۍ باندې یواځے نه شی سوریدې.او هلته کښې د سورولو دپاره بل څوك هم موجود نه وی.نو په دې صورتونو کښې په سورلۍ باندې فرائض ادا کول شرعاً جائز دی.ځکه چه د الله تعالی ارشاد دے ﴿فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا ﴾ یعنی که تاسو ته ویره وی.نو په ولاړه ولاړه یا په سورلۍ باندې په د سورلۍ په حالت کښې مونځ کوئ.

**حکم السنن الراتبة راکباً﴾** صاحب دهدایه فرمائیلی دی سنت مؤکده هم نفل دی.یعنی د نفلو په شان سنت مؤکده هم په سورلۍ باندې جائز دی.پاتې شو وتر،نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز سورلۍ باندې جائز نه

---

[1] ) من حدیث إبن عمر رضی الله عنهما رواه مسلم في صلاة المسافرين وقصرها رقم ۳۵ وأبوداود في صلاة السفر باب ۸ والنسائي في القبلة باب ۷)_

دی.څکه چه ددوی په نیز د وترو مونځ واجب دی.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز جائز دي.څکه چه ددوی په نیز د وترو مونځ سنت دي.او سنت په منزله د نفل په سورلۍ باندې جائز دی.

**رواية أداء سنة الفجر نازلاً** ﴿ د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دادې.چه د صبا سنت د سورلۍ نه راښکته اداکړی.څکه چه د صبا سنت په نسبت د نورو سنتو زیات مؤکد دی.په دے وجه به ددے حکم د نورو سنتونو نه مختلف وی.ابن شجاع فقیه ونیلی دی.چه داسې ښکاری. چه د امام صاحب نه دا روایت د افضلیت د بیان دپاره دې.یعنی افضل دادی.چه د صبا سنت د سورلۍ نه راښکته ادا کړی.

**جواز الصلاة راكباً لغير المسافر** ﴿ په اصل مسئله کښې دا قید لګول چه د آبادۍ نه بهر وی، دوه خبرے ثابتوی .یوه داچه په سورلۍ باندې د نفل مونځ د جواز دپاره مسافر کیدلو شرط نشته.بلکه د آبادۍ نه بهرکیدل کافي دی.که مقیم وی او که مسافر وی.

**عدم جواز النفل راكباً في المصر** ﴿ په ښار او آبادۍ کښې دننه په سورلۍ باندې نفل کول جائز نه دی. څکه چه د ښار نه بهر په سورلۍ باندې د نفلو جواز خلاف قیاس په نص سره ثابت دې.او ښار د خارج ښار په حکم کښې هم نه دې.نو په ښار کښې دننه به په قیاس باندې عمل کولې شی.او د ښار نه بهر کښې به خلاف قیاس په نص باندې عمل کولې شی.

**وجه ظاهر الرواية** ﴿ د ظاهرالروایة وجه داده.چه نص یعنی د ابن عمر رضي الله عنهما حدیث کوم چه د مسئلې په شروع کښې ذکر شوې دے) د آبادۍ نه بهر دمونځ په جواز کښې وارد شوې دې.او د آبادۍ نه بهر د سورلۍ ضرورت هم زیات وی.نو په ښار کښې دننه به په دے نشی قیاس کولې.

دسجده سهو بیان

## بَابُ سُجُودُ السَّهْوِ

**ترجمه** ﴿ (دا) باب دسهو دسجدو( په بیان کښې ) دې.

**تشریح** ﴿ **تشریح** ﴿ د ادا اود قضاء د بیان نه چه فارغ شو.نواوس هغه څیزبیانوی.چه په ادا اوپه قضاء کښې د واقع کیدونکی نقصان تلافی کوی.یعنی سجده سهو،دسجدے ترکیب د(اضافت السبب الى السبب) قبیلے څخه دې .څکه چه په مانځه کښې سهودسجدو واجبولو سبب دې.

د سجده سهو وجوب اود اداکولوطریقه

| سُجُوْدُ السَّهْوِ وَاجِبٌ سجدې د سهو واجب دی فِي الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ بَعْدَ السَّلَامِ د زیادت اونقصان په صورت کښې پس د سلام نه يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ سجدې به کوی دوه سجدې ثُمَّ يَتَشَهَّدُ بیا دے تشهد اووانی وَيُسَلِّمُ.اوسلام دې واړوی |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①یسجد ،سجد سجدةً: ټیټیدل، سجده کول ②یسلم سلم تسليماً: سلام کول، سلام ګرځول③سهو: هیرول

**تشریح** ﴿ **سجدة السهو قبل السلام أو بعده** ﴿ مسئله داده.که په مانځه کښې د څه فعل زیاتوالے راشی. یا

کمې.نوپه ده به دوه سجدے د سهوے واجب وی. اودا دوه سجدې د سلام نه وړاندې کول افضل او

غوره دی اوکه د سلام نه پس ئې اوکړی نو هم جائز دی (۱)

**دلائله** > ① دلیل دنبی کریم ﷺ قول[لکل سهو سجدتان بعد السلام] (۲) دی. (ابوداؤد ،ابن ماجه)

② دویم دلیل حدیث فعلي دې.چه نبی کریم ﷺ دسلام نه پس دوه سجدے کړی دی. (۳) صاحب دهدایه وائی.چه دوه فعلي حدیثونه متعارض شی.نودا دواړه به پریخودے شی.اودنبی کریم ﷺ په قول به عمل کولے شی.اودنبی کریم ﷺ قول دادې.چه دسهوے دوه سجدے دسلام نه پس دی.

③ عقلي دلیل دادې.چه په اجماع سره سجده سهو نشی مکرر کیدے .اود سلام نه مخکښې د سجده سهوے کولو په صورت کښې دتکرار امکان دې.په دےطریقه چه دسلام نه مخکښې ئې سجده اوکړه. بیاچه کله دسلام اړولو وخت راغې.نو د ده شك شو.چه درې رکعته شوی دی اوکه څلور.په دے سوچ کښې پروت وو.تردے چه په سلام کښې تاخیر اوشو. بیا وریاد شو.چه څلور رکعته شوی دی.نواوس دسلام دتاخیرد وجے په ده دوه سجدے د سهو واجب شوې.نودا کس به دوباره سجده سهوکوی اوکه نه.نودوه صورتونه دی.که ده دوباره سجده سهواونکړه.نوپه مانځه کښې به داسې نقص باقی پاتې شی.چه د هغې تلافی نه ده شوې.اوکه دوباره ئې سجده سهواوکړه.نوسجده سهو به مکررشی.حالا نکه دا په اجماع سره غیر مشروع ده.په دې وجه مناسب دی.چه سجده سهو د سلام نه پس اوشی.چه دټولوسهوو تلافی اوشی.

**تسلیم السلامین** > پاتې شوه دا خبره چه دسجده سهوے نه مخکښې دواړو طرف ته سلام واړوی اوکه یوطرف ته، ① په دې باره کښې د هدایه دمصنف رحمه الله په نیزراجح دا دی.چه دواړو طرفونو ته سلام واړوی.هم ددې قائل شمس الائمه سرخسی، صدرالاسلام اوفقیه ابوالليث رحمهم الله دی.

**دلیله** > دهدایه مصنف دقول صحیح دلیل دابیان کړې دې.چه په احادیثوکښې کوم ځائې لفظ دسلام ذکر دې.دهغې نه متعارف اومعهود سلام مراددې.اومتعارف دواړو طرف ته سلام اړول دی.یوطرف ته مراد نه دے،په دې وجه دواړو طرف ته سلام اړول ضروری دی. بعضےحضرات وائی.چه د امام ابوحنیفه اود امام ابو یوسف رحمهما الله په نیزهم داحکم دې.

تسلیم السلام الواحد: اودشیخ الاسلام خواهرزاده،علامه فخرالاسلام اودصاحب ایضاح رحمهم الله په نیزراجح دادی.چه صرف ښی طرف ته سلام واړوی.

**دلیله** > د شیخ الاسلام خواهرزاده وغیره دلیل دادې.چه دسلام دوه حکمونه دی .یوخودقوم دپاره تحیه او دعې.او بل قطع کول د احرام.اودلته مونږ قطع کول مقصودنه دی .نومعلومه شوه چه تحلیل مراددې.اوپه تحلیل کښې تکرار نه وی.په دې وجه دسلام دتکرار هیڅ ضرورت نشته.بلکه یوطرف ته به کافی وی.

---

(۱) په دې مسئله کښې امام شافعی رحمه الله فرمائی چه د سلام نه مخکښې سجده د سهو کول غوره ده.

(۲) من حديث ثوبان رضي الله عنه اخرجه ابوداود في الصلاة باب ۱۹۵ رقم ۱۳۸ وابن ماجه في الإقامة باب ۱۳۶ واحمد في المسند (۲۸۰/۵) وعبدالرزاق في مصنفه (۳۲۲/۲)۔

(۳) من حديث عبدالله رضي الله عنه البخاری في الصلاة باب ۳۲ رقم ٤٠٤ ومسلم في المساجد ومواضع الصلاة رقم ۹۱، ۹۲، وابوداود في الصلاة باب ۹ رقم ۱۰۱۹ والترمذی في الصلاة باب ۱۷۲ رقم ۳۹۲ والنسائی في السهو باب ۲۵ وابن ماجه في الإقامة باب ۱۳ رقم ۱۲۰۵)

**المذهبان في الصلاة في قعود الصلاة**> پاتې شوه داخبره چه درود علی النبی ﷺ اوماثوره دعاګانې په قعدے د صلوة کښې ونیل پکاردی اوکه په قعده د سهوےکښې ،دقعده صلوة نه د سجده سهوے نه مخکښې قعده مراد ده.اود قعده سهو نه مراد د سجده (سهو) نه پس قعده ده.

① په دې باره کښې امام طحاوی رحمه الله فرمائی.چه په دواړو قعدوکښې دے اووائی.یعنی په قعدے دصلوة کښې هم اوپه قعدے دسهوےکښې هم.

**دلیله**>امام طحاوی رحمه الله دخپل مذهب تائید کښې یوه ضابطه بیان کړې ده.هغه دا ده.چه هرهغه قعده چه د هغې په آخرکښې سلام وی.په هغې کښې به درود علی النبی ﷺ ونیلے شی .نو ددې ضابطے په رڼاکښې دواړو قعدوکښې یعنی په قعدے دصلوة اوپه قعدے دسهوےپه آخر کښې سلام شته.

②اودشیخینو رحمهما الله په نیزبه په قعدے دصلوة کښې وائی.یعنی دسجده سهوے نه مخکښې ،اودامام محمد رحمه الله په نیزبه په قعده د سهوکښې وائی.یعنی دسجده سهونه پس،مصنف دهدایه هم دے ته صحیح ونیلی دی.

**دلیلهما**> دشیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه درود او دعا د مانځه په آخری قعده کښې ونیلی شی.اوپه کوم کس چه سجده سهوواجب شوه.د هغه دغه سلام کوم چه دسجده سهوے دپاره دې.هغه د مانځه نه ویستل کوی.اوچه دا سلام د مانځه نه ویستل کوی.نوهم قعده د صلوة، قعده د ختم شوه.اود امام محمد رحمه الله په نیزچونکه دا سلام دمانځه نه خارجول نه کوی.بلکه دسجده سهو نه پس کوم چه سلام دے هغه د مانځه نه خارجول کوی.په دې وجه به قعده سهو قعده دختم وی.نه داچه قعده دصلوة ،اود درود او دعاء مقام چونکه دمونځ آخردې.په دې وجه په قعده سهو کښې به درود او دعا ونیلے شی.په قعده دصلوة کښې به نشی ونیلې.د امام محمد رحمه الله قول مفتیٰ به دې.

## د جنس صلاة څنی چه نه وی دهغې د زیادت حکم

| |
|---|
| وَيَلْزَمُهُ السَّهْوُسهو به لازم وی.إِذَازَادَفِي صَلَاتِهِ فِعْلًاچه کله په خپل مانځه کښې داسې فعل زیادت اوکړی.مِنْ جِنْسِهَاچه هغه د مونځ جنس وی لَيْسَ مِنْهَا (خو)دمونځ جزء نه وی |

**حل اللغة** >①یلزمه، لزم لزوماً (س): لازم کیدل②زاد ، زاد زیادۃً (ض): زیاتول

**تشریح**> **وجوب السهو بزیادة ما یکون من جنس الصلاة**> صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه سجده سهو د هرهغه فعل په زیادت لازمیږی .کوم چه فعل د مونځ د جنس څنے وی.خودمونځ جزء نه وی.مثلاً دیو رکعت نې دوه رکوع اوکړی.یانې درې سجدے اوکړې. نویوه رکوع اویوه سجده کوم چه زیاتی ده.هغه اګرچه دمونځ جنس دې .خودمونځ جزء نه دې.نود یوے رکوع په ځائې ئې دوه رکوع اوکړې.یا ددوو سجدو په ځائې ئې درې سجدے اوکړې.نو ددې زیادت په وجه به سجده سهو واجب وی.

**حکم سجدة السهو**> صاحب دهدایه رحمه الله فرمانیلی دی.چه دامام قدوری قول[ویلزم السهوإذا زاد ...الخ] دسجده سهو په وجوب دلالت کوی.اود وجوب قول صحیح دې.هم ددې قائل امام مالك او امام احمد رحمهما الله دی.اوبعضې د احناف عالمان لکه امام ابوالحسن کرخی رحمه الله فرمائی. چه سجده سهوسنت ده.

**دلیل القول الصحیح**>دقول صحیح دلیل دادې.چه سجده سهودهغې نقصان پوره کولو دپاره واجب ده.کوم چه په عبادت کښې پیدا شوې وی.که دسجده سهو په ذریعه نقصان پوره نشو.نود مونځ اعاده به

واجب وی.ددې دپاره چه نقصان پوره شي.اوکله چه دنقصان پوره کولو دپاره دمونځ اعاده واجب ده.نوسجده سهویه هم واجب وی.ځکه چه په دے هم نقصان پوره کیږی.لکه چه دمونځ په اعادے نقصان پوره کیږی.

**تائیده بالمثال**>اودسجده سهو مثال داسےدې.لکه په حج کښې دم جنایت،یعنی که د احرام په حالت کښې ترے جنایت اوشی.نو په دې سره به حج کښې نقصان پیدا شی.اوددې نقصان تلافی به په دم جنایت(قربانۍ) سره کیږی.اودم جنایت واجب وی.نولکه څنګه چه په حج کښې دم جنایت واجب ده.دغه شان په مانځه کښې سجده سهو واجب ده.

**السوال التقدیری**> که څوک دا سوال اوکړی چه تاسو وایئ چه سجده سهو به په ترک د واجبو واجبیږی.یا په تاخیردواجبو یا په تاخیر د رکن.خود زیادت په صورت کښې خو نه ترک د واجب دے اونه تاخیر.(لکه چه دوه رکوع اوکړی.یا درې سجدے اوکړی)نود زیادت په صورت کښې د سجده سهو وجوب نه دے پکار.حالا نکه په اول دباب کښې ونیلی شوی دی.چه د زیادت په صورت کښې سجده سهو واجبیږی.

**الجواب**>جواب دادے چه د زیادت په صورت کښې هم تاخیر درکن یاترک د واجب لازمیږی . مثلاً چه درې سجدے ئې اوکړ ې.نوقیام کوم چه فرض رکن دې. په دې کښې به تاخیر لازمیږی . اوکه د اوله قعده نه پس په هیره پنځم رکعت دپاره پاسیدو.اودائې په سجده مقید هم کړو.نوحکم دا دے چه دے سره دے شپږم رکعت ملاؤ کړی.چه څلور رکعته فرض اودوه رکعته نفل شی.اوس تاسو اوګورئ.چه ددې دوو رکعتو د زیادت په وجه په څلور رکعتونوکوم چه سلام واجب وو. هغه ترک شو.نوثابته شوه.چه زیادت هم تاخیرد رکن یا ترک د واجب لره مستلزم دې.

## د سنت په ترک د سجده سهو حکم

أَوْتَرَكَ فِعْلًا مَسْنُوْنًا اویا پریږدی یو فعل مسنون پریږدی(نوسجده دسهو واجبیږی)

**تشریح**> **المراد من المسنون هو الواجب**>مسئله :صاحب دقدوری رحمه الله وانی.چه مونځ کونکی که یوفعل مسنون پریخودلو.نوپه ده به سجده سهو واجب وی.صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی. چه په متن کښې د فعل مسنون نه مراد فعل واجب دې.ځکه چه د فعل مسنون په پریخودلو سجده سهو نه واجبیږی.بلکه په ترک د واجب واجبیږی.پاتې شوه دا خبره چه په متن کښې ،،فعلاً مسنونا،، ولے ونیلےشوی‌دی؟ نو ددې جواب دا دې.چه چونکه د واجبو وجوب په سنت سره ثابت دې.(ځکه ئې پرے د سنت اطلاق اوکړلو.)

## د واجب په پریخودلو د سهو وجوب

أَوْتَرَكَ قِرَاءَةَ الْفَاتِحَةِ فرمانی.چه یا ئې قرات فاتحه پریخوده أَوِالْقُنُوتَ.یا دعائې قنوت پریږدی. أَوِالتَّشَهُّدَ أَوْ تَكْبِيْرَاتِ الْعِيْدَيْنِ.یاتشهد یا تکبیرات د اخترونو پریږدی

**حل اللغة** >①ترك، ترك تركاً (ن): پریخودل ②قنوت: دعائې قنوت

**تشریح**> **وجوب سجدة السهو بترک الواجب**>په دےعبارت کښې د هغه څیزونوتفصیل دې.چه دکومو په پریخودلوسجده سهوواجبیږی. فرمائی چه په مانځه کښې دقرات فاتحه پریخودل هم موجب دسجدهٔ سهوې دی.ځکه چه قرات د فاتحه واجب دې.خودا خیال ساتل پکاردی. چه دفرضوپه اولنو دوو

رکعتوکښې په ترك د فاتحې سجده سهو واجبیږي.اوپه آخرنو دوو رکعتوکښې په ترك د فاتحې سجده سهونه واجبیږي.ځکه چه په آخری دوو رکعتوکښې د فاتحې ونیل واجب نه دی.بلکه مستحب دی . البته د امام ابوحنیفه رحمه الله نه د حسن بن زیاد رحمه الله روایت دادې.چه په آخرنو کښې هم په ترك د فاتحه سجده سهو واجبیږي.په وترمونځ کښې دعاء قنوت ،تشهد اود اخترونوتکبیرونه پریخودل دا ټول موجب دسجدې دی.

**دلائل** ① دلیل دادې.چه دا درې واړه ځیزونه واجب دی.اوپه ترك د واجب سجده سهو واجبیږي . نوددې په ترك به هم سجده سهو واجبیږي.اوددې ځیزونود وجوب دلیل دادې.چه نبی کریم ﷺ په دې ځیزونو مواظبت کړې دې.([1]) اوکله نې هم نه دی پریخې.اود رسول پاك ﷺ په یوځیز بغیرد ترك نه مداومت کول د هغې د وجوب دلیل دې.

② دویم دلیل دادې.چه دا ځیزونه ټول مونځ ته منسوب کیږي.لکه چه ونیلی شی قنوت الوتر، تکبیرات صلوة العیدین، تشهدالصلوة ، نو ددې ځیزونو ټول مونځ ته منسوب کیدل ددې خبرې دلیل دې.چه دا ځیزونه د مونځ د خصائصو ځنې دی.اواختصاص ثابتیږي د وجوب نه،نو ثابته شوه چه دا ځیزونه د واجباتوځنې دی.

## د جهر په ځائې پټ قرأت ونیل او ددې په عکس

| أَوْجَهَرَالْإِمَامُ اویا امام په هغې مونځونوکښې جهر اوکړی فِيمَا يُخَافِتُ. په کومو کښې چه اخفاء واجب وی أَوْخَافَتَ.یا نې په هغې مونځونوکښې اخفاء اوکړه فِيمَا يَجْهَرُ.په کوموکښې چه جهرواجب وی(نوپه ده سجده سهولازمیږي) |
|---|

**حل اللغة** ① جهر،جهر جهراً (ف): ښکاره کول ② خافت،خافت مخافتة: پټول

**تشریح** ترك الجهر أوالإخفاء ① په سری مونځ کښې جهرکول اوپه جهری مونځ کښې اخفاء کول سجده سهو واجبوی.

**دلیله** دلیل دادې.چه په کومو مونځونوکښې په جهرقرات کیږي.په هغې کښې جهرکول په امام واجب دی.چه د امام قرات مقتدی هم واوری.اود امام قرات دمقتدی (دقرات)قائم مقام شی. او د ورځې په مونځونوکښې په امام اخفاء ځکه واجب ده.چه اخفاء په دې کښې مشروع شوېده. چه دکافرانو دغلطۍ اچولونه قرآن پاك محفوظ شی.لکه چه تاسوته به معلومه وی.چه نبی کریم ﷺ دقرات د اخفاء حکم هغه وخت ورکړې وو.کله چه کافرانو دنبی کریم ﷺ دتلاوت کولو په وخت د غلطۍ اچولوکوشش کولو.هم داوجه ده چه د ورځې په مونځونوکښې اخفاء واجب ده.دشپې په مونځونوکښې واجب نه ده.ځکه چه دشپې به داخلق اوده پراته وو،نوحاصل دا شو.چه د ورځې په مونځونوکښې اخفاء دقرآن دحفاظت دپاره مشروع شوې ده.او ددې قسم ځیزونو نه د قرآن حفاظت کول واجب دی.نوثابت شو.چه د ورځې په مونځونو کښې اخفاء واجب ده.بهرحال کله چه په سری مونځونوکښې جهراوپه جهری مونځونوکښې اخفاء واجب شوه.نوددې په ترك به سجده سهوه هم واجب وی. ځکه چه په ترك د واجب سجده (سهو) واجبیږي .(الکفایه)

[1]) قال الزیلعی رحمه الله هذا معروف ولم ینقل الترک،،نصب الرایۃ ۲/۱۷۳)۔

**الروايتان في قدرالجهر والإخفاء**> پاتې شوه دا خبره چه په جهری مونځ کښې په څومره قدرې اخفاء اوپه سری مونځ کښې په څومره قدرې جهر سجده سهو واجبيږی.نوپه دې باره کښې روايات مختلف دی.
① په ظاهرروايت کښې دی.چه په دواړو صورتونوکښې قليل اوکثير برابر دی.يعنی که په جهری مونځ کښې ئې اخفاء اوکړه.اوکه په سری مونځ کښې ئې جهر اوکړو،قليل مقداروی.اوکه کثير مقدار ، دواړوصورتونو کښې سجده سهوواجبيږی،

**القول الأصح**> صاحب دهدايه وائی.صحيح خبره داده.چه په کوم مقدارمونځ ټيک کيږی. هم دومره مقداراخفاء اوجهر ئې په دواړو صورتونو کښې اوکړو . نو سجده سهويه واجب وی. ځکه چه دجهر او اخفاء معمولی مقدار نه بچ کيدل ممکن نه دی.البته د مقدار کثيرنه بچ کيدل ممکن دی.په دې وجه د سهوحکم به مقدارکثيرسره متعلق وی.د مقدار قليل سره به نه وی.او په څومره مقدار قرات چه مونځ ټيک کيږی هغه کثيردې.اوددېنه کم قليل دې.

**المذهبان في قدرما يجوز به الصلاة**> پاتې شوه داخبره چه د[مايجوزبه الصلوة] نه څه مقدار مراد دې.نوپه دې باره کښې اختلاف دے د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز يو آيت دے او دصاحبينو په نيز درې آياتونه دی.

**حکم وجوب السهوفي حق الإمامة**> صاحب دهدايه وائی.چه په سری مونځونوکښې دجهرپه وجه او په جهری مونځونو کښې د اخفاء په وجه دسجده سهو د وجوب حکم د امام په حق کښې دې.دمنفرد په حق کښې نه دې. يعنی که امام داسې اوکړل.نوسجده سهو به واجب وی.

**دليله**>دليل دادے چه جهر او اخفاء دجماعت په خصوصياتوکښې دی.يعنی په جهری مونځونو کښې جهر اوپه سری مونځونوکښې اخفاء دجماعت په صورت کښې کيږی.اوکه ځانله مونځ کوی. نو ده ته اختيار دې.چه په جهرقرات کوی.اوکه په اخفاء.نوچه په منفرد جهر يا اخفاء واجب نه ده. نوددې په پريخودلو به سجده هم نه واجبيږی،او په امام چونکه واجب دی.په دې وجه د امام د پريخودلو په صورت کښې به په امام سجده سهوواجب وی.

**الإعتراض**>په دے بعضې خلقو اعتراض کړې دې.هغه دا چه په جهری مونځونوکښې وجوب د جهرمنو،چه دا دجماعت په خصوصياتو کښې دې.ځکه چه په جهری مونځونو کښې منفرد ته اختيار دې چه هغه بالجهرقرات کوی اوکه په اخفاء.خوپه سری مونځونوکښې د اخفاء وجوب دجماعت په خصوصياتوکښې نه منو.ځکه چه په سری مونځونوکښې په منفرد هم په پټه قرات واجب دې.نوپه سری مونځونوکښې د اخفاء پريخودلو په وجه په منفرد هم سجده سهو واجب کيدل پکاردی.حالانکه علامه مرغينانی رحمه الله فرمانيلی دی. چه په دې صورت کښې به هم په منفرد سجده سهوواجب نه وی.

**الجواب**>داد نوادر روايت دې.يعنی په سری مونځونو کښې په منفرد د اخفاء وجوب د نوادر روايت دې.اود ظاهرروايت مطابق په منفرد اخفاء واجب نه ده.ځکه چه د ورځو په مونځونو کښې په قرات کښې اخفاء کول په دې وجه واجب شوی وو.چه د کافرانو دطرفه مغالطه لرے کړې شی. اودکافرانو په قرات کښې مغالطه پيداکول به هغه وخت وی.چه کله مونځ په طريقه دشهرت ادا شی. اود منفرد مونځ دشهرت په طريقه نه وی. ددې وجې په ده اخفاء واجب نه ده.بلکه ده ته اختيار دې.چه په نورو مونځونوکښې هم په اخفاء قرات اوکړی يا په جهرسره اوکړی.اوکله چه منفرد ته اختياردے نو د ترک اخفاء په وجه په ده سجده سهو نه واجبيږی.(عنايه)

## د امام په سهو د مقتدي سهو ده

وَسَهْوُ الْإِمَامِ د امام سهوكول يُوجِبُ عَلَى الْمُؤْتَمِّ السُّجُودَ په مقتدي سجده واجبوي. فَإِنْ لَمْ يَسْجُدْ الْإِمَامُ بيا كه امام سجده اونكره لَمْ يَسْجُدْ الْمُؤْتَمُّ.نومقتدي دے هم سجده نه كوي

**حل اللغة** ➤ ①سهو: هيره ②يوجب، اوجب ايجابا: واجب كول ③موتم: مقتدي

**تشريح** ➤ **لزوم السجدة علي المأموم بسهوالإمام** ➤ مسئله داده.كه د امام نه سهو اوشي.نوسجده سهو په امام هم واجبيږي.اوپه مقتدي هم.ځكه كوم چه سبب د امام په حق كښې سجده سهو واجبونكے دے، هغه دمقتدي په حق كښې هم متحقق شو.

**دليله** ➤ ځكه چه مقتدي په صحت اوفساد او په اقامت كښې د امام متابعت په خپل ځان لازم كړې دې.نود امام د سهو په وجه كوم چه نقصان د امام په مانځه كښې متمكن (پيدا)شوې دے،هغه نقصان دمقتدي په مانځه كښې هم يقينا پيدا شو.او كله چه امام د دې نقصان پوره كولو دپاره سجده كوي.نوبه مقتدي هم په خپل مانځه كښې د پيدا شوي نقصان پوره كولود پاره سجده كول ضروري دي.

**كون صلاة المأموم تابع لصلاة الإمام** ➤ صاحب دهدايه وائي.چه دمقتدي مونځ د امام دمونځ تابع وي.په دې وجه كه امام او مقتدي ټول مسافروي.اودمونځ په دوران كښې امام د اقامت نيت اوكړو .نود ټولومقتديانو فرض مونځ به څلور ركعته شي.اګر چه د مقتديانودطرفه نيت موجود شوې نه وي

**عدم وجوب السجدة علي المأموم إن نسيها الإمام** ➤ ①صاحب دقدوري فرماني.كه د سجده سهو د وجوب باوجود امام سجده سهواونكړه. نو په مقتدي به هم سجده سهوواجب نه وي.

**دليله** ➤ دليل دادې.كه مقتدي بغيرد امام د سجده سهوكولونه سجده سهو اوكړه.نود امام مخالفت كول به لازم شي.حالانكه التزام ئې دا كړې وو.چه د امام په اتباع كښې به مونځ اداكوي.حاصل دا چه التزام ئې كړې وو دمتابعت د امام ،اوكړې ئې دے مخالفت، اود متابعت اومخالفت په مينځ كښې منافات دې.خوچه دمقتدي په سجده كولومخالفت متحقق كيږي نومتابعت منتفي شو.

## د مقتدي سهو دامام سهو نه ده

فَإِنْ سَهَى الْمُؤْتَمُّ كه مقتدي سهو شو لَمْ يَلْزَمْ الْإِمَامَ وَلَا الْمُؤْتَمَّ السُّجُودُ.نونه په امام سجده كول لازم دي اونه په مقتدي

**حل اللغة** ➤ ① موتم: مقتدي ② لم يلزم، لزم لزوما (س): لازم كول

**تشريح** ➤ صورت دمسئلې دادې.كه د مقتدي نه په مونځ كښې سهو اوشوه.مثلاً په اوله قعده كښې ئې تشهد اونه ونيل.نوپه دې وجه به نه په امام سجده سهولازم وي.اونه په مقتدي،

**دليله** ➤ دليل دا دې چه دصحت اوفساد په اعتبارسره د امام مونځ د مقتدي په مونځ مبني نه وي. نو د مقتدي د مونځ په نقصان سره به د امام مونځ نه ناقص كيږي.اوكله چه د امام په مونځ كښې هيڅ نقصان واقع نشو.نوپه ده به سجده هم واجب نه وي.اوكله چه په امام سجده سهو واجب نشوه.نوپه مقتدي به هم واجب نه وي.ځكه كه په مقتدي سجده سهو واجب شي.نودے به خانله سجده كوي.يابه دده امام هم ده سره سجده كوي .په اولنى صورت كښې د امام مخالفت كول لازميږي.او په دويم صورت كښې قلب موضوع لازميږي .يعنى امام كوم چه اصل وو هغه به تابع شي.او مقتدي چه تابع

وو.هغه به أصل شي.اودا دواړه خبرے جائزنه دی. یعنی مخالفت د امام اوقلب موضوع.خوچه دا دواړه خبرے جائزنه دی. نوبه مقتدی به سجده سهو هم واجب نه وی.

## د اولنۍ قعدې د هیرېدو صورت

وَمَنْ سَهَى عَنِ الْقَعْدَةِ الْأُولَى اوکوم کس نه چه اوله قعده هیره شوه. ثُمَّ تَذَكَّرَ بیا وریاده شوه وَهُوَ إِلَى حَالَةِ الْقُعُودِ أَقْرَبُ په داسې حالت کښې چه قعدے ته نزدے وو عَادَ نو راواپس دے شی فَجَلَسَ اوقعده دے اوکړی وَتَشَهَّدَ.اوتشهد دے اووائی

**حل اللغة** ←①تذکر، تذکر تذکراً: یادول ②قعود: کیناستل ③عاد، عاد عوداً (ن): واپس کول ④اقرب، قرب قرباً (ن): نیزدې کیدل

**تشریح** ← **الرجوع إلي القعدة في صورة القرب إلي القعدة**←مسئله داده.چه رباعی یا ثلاثی فرضو کښې که چا اوله قعده پریخوده.اوبیا وریاده شوه.نودوه صورتونه دی.یاخوبه دے قعدے ته زیات نزدے وی. په دې طریقه چه ده خپلې کونډۍ نه وې اوچتے کړې.او یا به قیام ته زیات نزدے وی.په دې طریقه چه ده خپلےکونډۍ اوچتے کړې وی.که اول صورت وی.نوواپس دے شی.او قعده دے اوکړی.او تشهد دے اووائی.ځکه چه قریب الشئ د هغه څیزحکم لری.لکه دجمعې اود اخترونو مونځونو په حق کښې چه فناء دښار ته دښارحکم حاصل دې.

**الروایتان في وجوب السهوفي الصورة الأولي**←پاتې شوه داخبره،چه په دےصورت کښې به سجده سهو واجب وی اوکه نه. ①نود بعضوحضراتو رائې ده.چه سجده سهوبه واجب ده.ځکه اوله قعده کومه چه واجب ده.په دې کښې تاخیر بیا موندلے شو.

②اوقول صحیح دادې.چه سجده واجب نه ده،ځکه چه کله قریب الشئ ته د هغه څیزحکم ورکړې شو.نولکه چه دے هډو اودریدلے نه دې.اوچه اولنے قعدے ته راواپس شو.نوقیام متحقق نشو.او په اوله قعده کښې تاخیرهم موجود نشو.اوچه تاخیرموجود نشو.نوسجده سهو هم واجب نشوه.

وَلَوْكَانَ إِلَى حَالِ الْقِيَامِ أَقْرَبَ اوکه قیام ته زیات نزدے وی لَمْ يَعُدْ.نوقعدے طرف ته دےنه واپس کیږی وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ. اوسجده سهودے اوکړی

**تشریح** ← **وجوب السهو في الصورة الثانية**←اوکه دویم صورت وی.نوداکس دے قعدے ته واپس نه راځی. بلکه دریم رکعت دپاره دے اودریږی.

**دلیله**← ځکه چه اوس قاعده تیره شوه.چه قریب الشئ ته د هغه څیز درجه ورکولےشی.نوچه داکس قیام ته ډیرنزدے وی.نومعنی د قائم په مرتبه کښې شو.اود قائم دپاره اوله قعده ته واپس کیدل جائز نه دی.ځکه چه د دریم رکعت قیام فرض دې.اواوله قعده واجب ده. اود واجب په وجه فرض پریخودل ټیک نه دی.البته په دےصورت کښې به سجده سهو واجب وی. ځکه چه ده واجب یعنی اوله قعده پریخودے ده.

## د پنځم رکعت نه قاعدې ته واپس کېدل

(وَإِنْ سَهَى عَنِ الْقَعْدَةِ الْأَخِيرَةِ اوکه د آخری قعدے نه سهو شو فَقَامَ إِلَى الْخَامِسَةِ.نود پنځم رکعت دپاره پاسیدو رَجَعَ إِلَى الْقَعْدَةِ لوقعدے ته دے واپس شی مَا لَمْ يَسْجُدْ.چه ترکومے پورے (د پنځم رکعت)سجده نه وی کړې.

**حل اللغة** ①قام،قام قياما(ن): اودريدل ②رجع، رجع رجوعا (ض): واپس كيدل، واپس كول

**تشريح** الرجوع إلي القعدة في الركعة الخامسة صورت دمسئلےدا دي.كه يوكس نه آخرى قعده هيره شي. اوپه څلور ركعته مونځ كښې د پنځم ركعت دپاره اودريږى.يا په دريې ركعته مونځ (دمابنام اووترو)كښې دڅلورم ركعت دپاره اودريږى.يا دوه ركعته مونځ كښې دريم ركعت ته اودريږى.نو ترڅوچه ئي دا ركعت يعنى په څلور ركعته كښې پنځم ركعت په سجده مقيدكړې نه وي.نو قعدے ته دے واپس كيږى.

**دليله** دليل دادې.چه قعدے ته په واپس راتلو كښې دده دمونځ اصلاح ده.اودده دپاره دمونځ اصلاح ممكن هم ده.ځكه چه ديو ركعت نه په كم پريښودلو كښې هيڅ باك نشته.ديو ركعت نه كم نه خوحقيقتا مونځ دي.اونه دمونځ په حكم كښې دي.هم داوجه ده.كه چا قسم اوخوړلو.چه زه به مونځ نه كوم. بيا ئي د يو ركعت نه كم اوكړو.نوحانث به نه وي.

| وَأَلْغَى الْخَامِسَةَ اوپنځم ركعت دے لغوكړى وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ او سجده سهوه دې اوكړى |
|---|

**تشريح** كون الركعة الخامسة لغوا پاتې شو پنځم ركعت،نوصاحب دقدورى رحمه الله فرمانى.چه پنځم ركعت دے لغوكړى.ځكه چه داكس آخرى قعدے ته واپس شوې دي.اود آخرى قعدے محل د پنځم ركعت نه مخكښې دي.اوقاعده دا ده.كوم چه كس په افعالو دمانځه كښې د يو فعل نه داسےځيزته واپس شي.چه د هغې محل ددې نه مخكښې وي.نودا فعل مرجوع عنه (دكوم نه چه رجوع شوې ده)لغوكيږى.مثلاً يوكس د تشهد په مقدار كيناستو.بيا ورياد شو.چه دمونځ سجده ئي نه ده كړې . يا سجده تلاوت ئي نه ده كړې.بيا ده دغه فوت شوې سجده اوكړه.نوسجده سهوكول واجب دى. ځكه چه په دې صورت كښې تاخير د فرض هم دې.اوتاخيردواجب هم.تاخيرد فرضوخوځكه چه په قعده آخره كښې تاخير شوې دې. او
قعده آخره فرض ده.اوتاخيرد واجب ځكه دې.چه لفظ دسلام واجب دے هغه مؤخرشوې دې.

**دليله** سجده سهو پرې ځكه واجبيږى چه ده واجب روستو كړو يعنى يعنى د لفظ كوم چه واجب وو د ده په پورته كيدو سره هغه روستو شو اوپه تاخير د واجب سره سجده سهو لازميږى نو ځكه پرې سجده سهوه واجبه شوه

**آخرى قعدې هيرېدلو حكم**

| وَإِنْ قَيَّدَ الْخَامِسَةَ بِسَجْدَةٍ اوكه پنځم ركعت ئي په سجده مقيد كړو بَطَلَ فَرْضُهُ نوددہ فرض باطل شو |
|---|

**حل اللغة** ①قيد، قيد تقييدا: قيد كول، خاص كول②بطل، بطل بطلا (ن): باطل كول

**تشريح** بطلان الفرض ① صورت دمسئلې دادې.كه قعده آخره هيره شوه.اوپنځم ركعت ئي په سجده مقيد كړو.نو زمونږ په نيزدده فرض باطل شو. ([1])

**دليله** دليل دادې.چه دے كس د پنځم ركعت سجده اوكړله.په دې وجه د نفل شروع كونكےشو.حالا نكه تراوسه پورې دفرض مونځ ټول اركان مكمل شوى نه دى.ځكه چه قعده آخره چه ركن دې.هغه نه ده

---

[1] په زيربحث مسئله كښې امام شافعى رحمه الله فرمانى.چه دده فرض باطل نه دى.بلكه قعدےته دے واپس شى.تشهد دے اووائى.اوسجده سهودے اوكړى.اوسلام دے واوروى.

موندلے شوې.اود فرض مونځ ټول ارکان مکمل کيدونه مخکښې په پوره عزم سره نفل مونځ شروع کول فرض مونځ فاسدوی.ځکه چه د فرض او نفل په مينځ کښې منافات دې.اوکله چه "احد المتنافيين" يعنی نفل متحقق شو.نوآخريعنی فرض منتفی شو.

**الركعة بغيرالسجدة ليست بصلاة** ﴿ صاحب دهدايه فرمائيلی دی.چه ركعت بلاسجده مونځ نه دې. او سجدے سره حقيقتاً مونځ دې.هم دا وجه ده.كه چا قسم اوخوړو.او[والله لا أصلي] ئې اووئيل . نو چه يو ركعت سجدے سره اوكړی.نوحانث كيږی.

| وَتَحَوَّلَتْ صَلَاتُهُ نَفْلًا او دده مونځ بدل شوپه نفلو كښې |
|---|

**حل اللغة** ﴿تحولت، تحولت تحولاً: بدلول]

**تشريح** ﴿ **صيرورة الصلاة نفلاً** ﴿امام ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه پنځم ركعت په سجده دمقيدكولوپه وجه د فرضيت وصف باطل شو.اصل صلاة نه دے باطل شوې.

**د شپږم ركعت ملاوولوحكم**

| وَكَانَ عَلَيْهِ اَنْ يَضُمَّ اِلَيْهَا رَكْعَةً سَادِسَةً اوپه ده باندې لازم دی چه دپنځوسره شپږم ركعت ملاؤكړی |
|---|

**حل اللغة** ﴿① فيضم، ضم، يضم ضماً

**تشريح** ﴿ **ضم الركعة السادسة** ﴿په مخكينو كرښوكښې تيرشوی دی.چه كله ئې پنځم ركعت په سجده مقيدكړو.نودا مونځ نفل شو.اوفرضيت ئې باطل شو.نودے دې ددې پنځو ركعتونو سره شپږم ركعت ملاؤ كړی.چه نفل جفت شی طاق پاتې نشی.ځكه چه نفل جفت مشروع شوی دی.طاق ركعتونه مشروع نه دی.

**وجوب السجدة** ﴿پاتې شوه دا چه په ده به سجده سهوواجب وی اوكه نه؟①نو د بعضوخيال دې.چه سجده سهودے اوكړی. ②خوصحيح خبره داده.چه په ده سجده سهو واجب نه ده.ځكه چه د آخرى قعدے د نه كولو په وجه دده مونځ فاسد شوېدې.اوكوم نقصان چه دفساد په صورت كښې وی.هغه په سجده سهونه پوره كيږی.په دې وجه به سجده سهو واجب نه وی.ځكه چه سجده سهودنقصان دتلافئ د پاره مشروع شوې ده.اوكه ده شپږم ركعت ملاؤ نكړلو.نو په ده هيڅ واجب نه دی.ځكه چه هغه مونځ كوم چه شروع شوې دې.يعنی پنځم ركعت هغه مظنون دې.يعنی ده قصداً نفل نه دی شروع كړی.او وجه ددې داده.چه دےكس دا څلورم ركعت ګنړلےدےاو ولاړدے،دا نه چه پنځم ركعت ئې ګنړلې دې.حاصل داچه دامونځ چه دپنځم ركعت نه ئې شروع كړې دې.هغه مظنون دې.اومظنون غيرمضمون وی.په دےوجه ددےمونځ قضاء وغيره واجب نه ده

**په څلورم د قعدې نه پس د اودريدلو حكم**

| وَلَوْقَعَدَ فِي الرَّابِعَةِ اوكه په څلورم ركعت ئې قعده اوكړه، ثُمَّ قَامَ بيا اودريدلو وَلَمْ يُسَلِّمْ اوسلام ئې اونه كړخولو يَظُنُّهَا قَعْدَةَ الْاُولٰى چه ده پرې د اولنئ قعدې ګمان كولو، عَادَ اِلَى الْقُعُوْدِ نوقعدے ته دے واپس شی. مَالَمْ يَسْجُدْ لِلْخَامِسَةِ چه تركومه ئې د پنځم ركعت دپاره سجده نه وی كړې وَسَلَّمَ نوسلام دے واړوی |
|---|

**حل اللغة** > ①قعد، قعد قعوداً (ن): کیناستل ②قام، قام قیاماً (ن): اودریدل ③لم یسلم، سلم تسلیماً: سلام گرځول، سلام کول ④ عاد، عاد عوداً (ن): اودریدل ⑤لم سجد، سجد سجدةً (ن): سجده کول، ټیټیدل

**تشریح** > **العود إلی القعدة من الرکعة الخامسة** >صورت دمسئلےدادي.که مونځ گذار په مقدار دتشهد په څلورم رکعت قعده اوکړه.اوسلام ئې وانه ړولو.بلکه په هیره پاسیدو.نوترکومے چه ئې د پنځم رکعت دپاره سجده نه وی کړې.قعدے ته دے واپس شي.خوقعدے ته واپس کیدو نه پس دے دتشهد اعاده نه کوی.بلکه سجده سهودے اوکړی. اوسلام دے اوگرځوی.

**دلائله** > ①دلیل نقلی دا دې.چه یوخل نبی کریم ﷺ د پنځم رکعت دپاره پاسیدو.دشا نه چا د تسبیح په ذریعه نبی کریم ﷺ ته خبرورکړو.نوقعدے ته واپس شو.بیا نبی کریم ﷺ سلام واړلو.اوسجده سهو ئې اوکړه.

②عقلی دلیل دادې.چه د قیام په حالت کښې سلام گرځول مشروع نه دی.اوپه مشروع طریقه سلام اړول ممکن دی.په دےطریقه چه قعدےته واپس شي.

**وجه ترک القیام في الرکعة الخامسة** >پاتې شوه دا خبره چه په دےصورت کښې د پنځم رکعت پریخودل لازمیږی .نوددې جواب دادې.چه د پنځم رکعت کولونه مخکښې مخکښې هغه دیو رکعت نه کم دې.اودیو رکعت نه کم د پریخودلو محل دې.یعنی د یو رکعت نه د کم مقدار په پریخودلو کښې څه باك نشته.لکه چه یوکس دمانځه په ړومبی رکعت کښې دې.اوتر اوسه ئې په سجده مقید کړې نه دی.تردے چه مؤذن تکبیرشروع کړو.نودےکس له پکار دی.چه دا یو رکعت پریږدی. او په جماعت کښې شریك شی.

**عدم بطلان الصلاة في صورة ترک أقل من رکعة** >پاتې شوه داخبره چه دیو رکعت نه کم ولے پریخودے شی؟نوددےجواب دادې.چه رکعت ئې کله په سجده مقیدکړو.او رکعت پوره شو.نودے ته دمونځ حکم حاصل شو.اومونځ باطل کول جائز نه دی.ځکه چه دالله تعالی ارشاد دے ﴿وَلَا تُبْطِلُوٓا أَعْمَٰلَكُمْ﴾ خوچه ترڅوئې چه په سجده مقید کړې نه وی.نو هغه رکعت ناقص دې.دےته دمونځ حکم حاصل نه دې.اوچه د مونځ ورته حکم حاصل نشو.نوددې په باطلولوکښې څه باك نشته.ځکه داپه﴿وَلَا تُبْطِلُوٓا أَعْمَٰلَكُمْ﴾ کښې داخل نه دې.

## د پنځم رکعت نه پس د شپږم رکعت کول

| وَإِنْ قَيَّدَ الْخَامِسَةَ بِسَجْدَةٍاوکه ده پنځم رکعت په سجده مقید کړو ضَمَّ إِلَيْهَا رَكْعَةً أُخْرَىنو دے سره دے یو رکعت بل ملاؤ کړی وَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُهُاوودده مونځ پوره شووَالرَّكْعَتَانِ نَافِلَةٌاودوه رکعتونه نفل شو |
|---|

**حل اللغة** > ① قید، قید تقییداً: قید کول، راگیرول ②تذکر، تذکر تذکراً: یادول، یاد راتلل ③ ضم، ضم ضماً (ن): ملاوول، راجمع کول ④ تم، تم تماماً (ض): پوره کیدل ⑤لتصیر، صار صیراً (ض):کیدل ⑥ لاتنوبان، ناب نوبة (ن): نائب جوړیدل، قائمقام کیدل ⑦مواظبة: همیشه والې کول ]

**تشریح** > **صحة الفرض بضم الرکعة السادسة** >مسئله.که یوکس په څلورم رکعت کیناستو.بیا په هیره پاسیدو .اود پنځم رکعت سجده ئې هم اوکړه.اوس ده ته وریاد شو.چه دا څلورم رکعت نه دې.بلکه پنځم دې.نوده له پکار دی.چه شپږم رکعت هم ملاؤ کړی.په دې صورت کښې فرض مونځ پوره شو.او پنځم

او شپږم دواړه رکعته نفل شو.فرض مونځ خو په دې وجه پوره شو.چه په لفظ دسلام سره وتل زمونږ په نیز واجب دی.او په دې صورت کښې لفظ دسلام باقی پاتې شو.او په ترك د واجبومونځ نه فاسدیږی .نوپه دې صورت کښې هم فرض مونځ نه فاسدیږی.پاتې شوپه ترك دواجب د نقصان پیدا کیدل.نوهغه به په سجده سهو پوره شی

**دلیله**> امام قدوری رحمه الله وائی.چه دشپږم رکعت ملاوُولوحکم په دې وجه شوې دې.چه دوه رکعته نفل شی.خکه چه نبی کریم ﷺ دصلوة بُتیراء نه منع کړې ده.په دې وجه یو رکعت کول جائزنه دی.[1]

**حکم ضم الرکعة السادسة**>دقدوری دعبارت نه داپته نه لګی چه دشپږم رکعت ملاوُول واجب دی اوکه مستحب یا جائز دی.خو دمبسوط عبارت دے[علیه ان یضیف]اوکلمه د ،،علی ،، ایجاب دپاره راځی. نو د مبسوط په عبارت سره په وجوب دلالت اوشو.

**القولان في حساب الرکعة الخامسة والسادسة من سنة الظهرالبعدیة**> ①صاحب دهدایه فرمانیلی دی.چه دادوه رکعته یعنی پنځم اوشپږم به دماسپخین نه د روستنو دوو رکعتونوقائم مقام نه وی.قول صحیح هم دادې.

**دلیله** >د قول صحیح دلیل دادې.چه سنت نوم دے دنبی کریم ﷺ دطریقے اونبی کریم ﷺ به دماسپخین سنت په نوے تحر یمےسره کول.اوچونکه په ذکرشوی صورت کښې نوے تحریمه موجود نشوه.خکه دا دواړه رکعته دماسپخین دسنتو قائم مقام هم نه دی.

②خود بعضےحضراتومذهب دا دې.چه دا دواړه رکعته به دماسپخین نه د روستنو سنتو قائم مقام شی.

**صیرورة الرکعتین نفلاً**> صورت دمسئلےدادې.چه کله مونځګذار په څلور رکعتونودتشهد په مقدار کیناستو.بیا په هیره پنځم رکعت دپاره پاسیدو.اودائې په سجده هم مقید کړو. نو اوس دا حکم دې.چه دے سره شپږم رکعت ملاوکړی.اوسجده سهواوکړی.په دےصورت کښې به مخکنی څلور رکعته فرض شی. اوروستنی دوه رکعته به نفل شی.

## په درې یا څلور رکعته کولو کښې د شك حکم

| وَمَنْ شَكَّ فِي صَلَاتِهٖاوکوم سړی ته چه په مانځه کښې شك شیفَلَمْ يَدْرِ.خوده ته معلومه نه وی أَثَلَاثًا صَلّٰى أَمْ أَرْبَعًاچه درې رکعته ئې کړی دی که څلوروَذٰلِكَ أَوَّلُ مَا عَرَضَ لَهٗ..اودا شك اولنے خل وی چه ده ته وریبښ شوې وو.اِسْتَأْنَفَ الصَّلَاةَ نودا کس دے د نوی سر نه مونځ اوکړی |
|---|

**حل اللغة** >①شك، شك شكًا (ن): شك کول ②فلم یدر، دری یدری درایة(ض): پیژندل ③ استانف، استانف استینافًا: دَ نوې سر کول، واپس کول ]

**تشریح**> مسئله دا ده.چه مونځ ګذار ته په خپل مانځه کښې دا شك وریبښ شی.چه درې رکعته شو اوکه څلور.اودا شك په ړومبی خل وریبښ شوې وی.نوپه داسې صورت کښې دےمونځ د سرنه اوکړی.

**الأقوال الثلاثة في المراد من أول ما عرض له**>پاتې شوه داخبره چه د متن دعبارت[أول ماعرض له]نه څه مراد دے؟ نو په دې باره کښې بعضو مشانخو رحمهم الله وئیلی دی.چه ددې جملےنه مراد دا دې.چه سهوددٍ عادت نه وی. بلکه کله کله پیښیږی.دامطلب هرګزنه دې.چه په ټول عمرکښې کله سهو شوې نه وی. دشمس الآئمه سرخسی رحمه الله هم دا رائې ده.

---

[1]) من حدیث أبي سعید رضي الله عنه اخرجه ابن عبدالبر رحمه الله في التمهید قاله الزیلعي رحمه الله في نصب الرایة (۲/۱۷۳،٤)

②فخرالاسلام رحمه الله فرمائی.مراد دا دې.چه په دے مانخه کښې رومبی؛سهوهم دا وی.
③اوبعضو حضراتو وئیلی دی.چه په ژوند کښې په رومبی ځل هم داسهو پیښه شوې وی.د بلوغ نه پس په مانځه کښې چرے هم سهو شوې نه وی.اولنے قول راجح دے،

**دلیله**> دلیل دا دې چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی کله چه په تاسوکښې څوك په خپل مانځه کښې دا شك اوکړی چه څومره ئې کړې دې نومونځ دے د نوی سر نه اوکړی.[1]

**د سهو د باربار پیښیدو حکم**

| فَإِنْ كَانَ يَعْرِضُ لَهُ كَثِيرًا اوکه ده ته داشك ډیر وریپیښیږی بَنَى عَلَى غَالِبِ ظَنِّهِ نوپه خپله غالب گمان دے بناء کوی.إِنْ كَانَ لَهُ ظَنٌّ که چرته دده غالب گمان وی. |
|---|

**حل اللغة**> ① یعرض، عرض عرضاً (ض): مخې ته کیدل،لاحق کیدل ②ظن: گمان خیال

**تشریح**> **الصورتان في وقوع الشك**>صورت دمسئلےدادې.که د ادا شوی رکعتونودمقدار په باره کښې زیات شك پیښیږی.نوددې دوه صورتونه دی. ①یاخوبه ده ته د یوطرف ظن غالب وی یا به نه وی.که ظن غالب وی.نوهم د هغې مطابق دےعمل کوی.

**دلائله**> ①څکه چه دنبی کریم ﷺ ارشاد دے[من شك في صلاته فليتحر الصواب]ملاعلی قاری د صحیحنو په حواله دا حدیث څه قدرې په تفصیل سره ذکرکړې دے[عن ابن مسعود رضي الله عنه ان النبي ﷺ قال إذا شك أحدكم فليتحر الصواب وليتم عليه ثم ليسلم ثم ليسجد سجدتين]یعنی چه کله په تاسو کښې چاته شك پیښ شی.نوهغه دے ټیك خبرے دپاره په زړه سره تحری اوکړی.اودتحری اوډظن غالب مطابق دےعمل اوکړی.بیادےسلام واړوی.او دوه سجدے دے اوکړی.
②عقلی دلیل دا دې. که هرځل دمونځ د اعادےحکم ورکړې شی.نوحرج به واقع شی. ددې وجې د حرج لرے کولو دپاره به په ظن غالب عمل کولې شی.

| وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ ظَنٌّ اوکه دده هیڅ رائې نه وی بَنَى عَلَى الْيَقِينِ.نو په خپل یقین دےعمل اوکړی |
|---|

**تشریح**> **التسوية بين الظنين**>اوکه ده ته د یوطرف هم ظن غالب نه وی.نو په اقل دے عمل اوکړی.یعنی که په درې یا څلور رکعته کښې شك وی.اود هیڅ یوغالب گمان نه وی.نودرې رکعته دےخیال کړی.

**دلیله**>دلیل د رسول خدا ﷺ دا فرمان دے[من شك في صلاته فلم يدر أثلاثا صلى أم أربعا بنى على الأقل] امام ترمذی داحدیث په دے الفاظوسره ذکرکړې دے[عن عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه قال سمعت النبي ﷺ يقول إذا سهى أحدكم في صلاته فلم يدر واحدة صلى او ثنتين فليبن على واحدة فان لم يدر ثنتين صلى أو ثلاثا فليبن على ثنتين فاذا لم يدر ثلاثا أو أربعا فليبن على ثلاث] [2]

---

[1] ) غريبه الزيلعي رحمه الله وقال اخرج ابن ابي شيبة في مصنفه عن ابن عمر رضي الله عنه قال في الذى لايدرى كم صلى اثلاثاً او اربعاً قال يعيد ني يحفظ إنتهى (نصب الراية (۲/۱۷۵)ـ

[2] ) من حديث عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه أخرجه الترمذى في الصلاة باب ۱۷٤ رقم ۳۹۸ وابن ماجه في الإقامة باب ۱۳۲ رقم ۱۲۹ وأحمد في المسند (۱/۱۹، ۱۹۳ والحكم في المستدرك (۱/۳۲٤، ۳۲۵)ـ

د بیمار د مونځ بیان

# بَابُ صَلٰوةِ الْمَرِيْضِ

**ترجمه>** (دا) باب د بیمار د مونځ (په بیان کښې) دی.

**تشريح> الربط بما قبلها>** دصلوة اضافت مریض ته د اضافت فعل الی الفاعل قبیلې ځنې دی، مصنف دهدایه رحمه الله د بیمار د مانځه ذکردسجده سهو نه پس په دې وجه کړې دی.چه مرض اوسهو دواړه دعوارض سماویه ځنې دی.اوسهوچونکه عام ده مریض اوتندرست ټولو ته پیښیږی.ځکه د سجده سهو ذکر وړاندې اوکړې شو.اودبیمار دمانځه ذکر وروسې اوکړې شو.

د قیام نه د عاجزکس مونځ

| إِذَاتَعَذَّرَعَلَى الْمَرِيْضِ الْقِيَامُ کله چه ګران شی په مریض باندې اودریدل صَلّٰى قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ نوبه ناسته دے په رکوع اوسجده سره مونځ اوکړی. |
|---|

**تشريح> صلاة العاجزعن القيام>** صورت دمسئلې دادې.چه بیمارکس که په اودریدلو قادر نه وی.په دا شان چه په اودریدلو کښې د صحت په بنه کیدوکښې د تاخیر ویره وی.یا په ولاړه مونځ کولو کښې سخت ضعف(کمزوری) وی.یا درد وغیره وی.نوده دپاره د قیام پریخودل جائز دی.اوداکس دے په ناسته رکوع اوسجده سره مونځ کوی،

**تشريح> دلائله>** ①دلیل دعمران بن حصین رضی الله عنه حدیث دے [قال كانت بي بواسير فسالت النبي ﷺ عن الصلوة فقال صل قائما فان لم تستطع فقاعدا فان لم تستطع فعلى جنب] امام نسائی دالفظ زیات کړی دے [فان لم تستطع فمستلقيا لا يكلف الله نفسا إلا وسعها] [1] عمران بن حصین رضی الله عنه فرمائی.چه ماته د بواسیرومرض وو.ما د سیدالانبیاء ﷺ نه په دے حالت کښې دمونځ کولو تپوس اوکړو.نونبی کریم ﷺ اوفرمائیل.په ولاړه مونځ کوه.اوکه ددې طاقت دے نه وی.په ناسته ئې کوه.اوکه ددې طاقت هم نه وی.نوپه اړخ، اوکه ددې طاقت هم نه وی،نو په نیغه ملاسته ئې کوه.الله تعالی څوك دده د طاقت نه زیات نه مکلف کوی.

②عقلی دلیل دا دې چه طاعت په قدر دطاقت وی.یعنی چه څومره قدرې ممکن وی.اوچه څنګه ممکن وی.هغه شان اوهم هغه قدرې طاعت استعمالوه.

**توضيح التكليف بقدر الطاقة>** که مریض په لږ شان قیام قادر وی.مثلا دیو آیت وئیلو په مقدار یا تکبیر وئیلو په مقدارقادر وی.اوپه پوره قیام قادر نه وی.نوهم د دومره مقدار قیام حکم به ورکولې شی.چه کله عاجزه شی.نوکینی دی.ځکه چه دطاقت مطابق طاعت دی.دغه شان که مریض تکیه اولګوی یا په همسا ډډه اولګوی او اودریدے شی.نودده دپاره دقیام ترك کول جائز نه دی.والله اعلم،

---

[1] ، من حديث عمران بن حصين رضي الله عنه أخرجه البخاري في تقصير الصلاة باب ۱۹ والترمذي في الصلاة باب ۱۵۷ وابن ماجه في الإقامة باب ۱۳۹ وأحمد في المسند (٤/٤٢٦) وابوداود في الصلاة باب ۱۷۵ رقم ۹۵۲ والنسائي في قيام الليل بب ۲۲) والحاكم في المستدرك (۱/۳۱۵)۔

## د رکوع اوسجدي نه دعاجز مونځ

فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ.که د رکوع اوسجده قدرت نه لری. أَوْمَأَ إِيْمَاءً نواشاره دے کوی. وَجَعَلَ السُّجُودَ أَخْفَضَ مِنَ الرُّكُوعِ،او سجده دے په نسبت د رکوع ښکته کوی

**تشریح>** **صلاة العاجز عن الركوع والسجود>**صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.که د رکوع اوسجدے کولوطاقت نه لری.نوپه ناسته دے رکوع اوسجده په اشاره کوی.

**دلیله>**ځکه چه په دے وخت دده طاقت هم دومره قدرې دې.اومخکښې تیرشو.چه طاعت په قدر د طاقت وی.

**جعل السجود اخفض من الركوع>**البته دسجدے اشاره به د رکوع د اشارے نه په نسبت سره ښکته وی. یعنی دسجدے اشاره کولو په وخت دے سرزيات ښکته کوی.

**دلیله>**ځکه چه اشاره د رکوع اوسجدے قائم مقام ده.نود رکوع اوسجدے په حکم کښې به وی. او چونکه حقیقی سجده په نسبت دحقیقی رکوع ښکته وی.نوپه دې وجه به دسجدے اشاره هم د رکوع د اشارے نه په نسبت سره ښکته وی.

وَلَا يَرْفَعُ إِلَى وَجْهِهِ شَيْئًا.اوخپل مخ طرف ته دے څه څیزنه اوچتوی. يَسْجُدُ عَلَيْهِ چه په هغې سجده اوکړی

**تشریح>** **عدم رفع الشئ إلى وجهه ودليله>**شیخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه سجدے کولو دپاره دے څه څیز خپل مخ ته نه اوچتوی.دلیل درسول الله ﷺ حدیث دے [إن قدرت أن تسجد على الأرض فاسجد وإلا فأوم برأسك] (۱) امام بزار د امام محمد رحمه الله په خپل مسند کښې داحدیث په دے الفاظوسره ذکرکړې دے [عن جابر أن النبي ﷺ عاد مريضا فرآه يصلى على وسادة فأخذها فرمى بها فأخذ عودا ليصلي عليه فأخذه فرمى به وقال صل على الأرض إن استطعت وإلا فأوم إيماء واجعل سجودك أخفض من ركوعك] یعنی حضرت جابر رضي الله عنه وائی.چه نبی کریم ﷺ د یو بیمار دعیادت دپاره تشریف یوړو.نو وے کتل.چه هغه په تکیه مونځ کولو.نبی کریم ﷺ تکیه واخستله .اووے غورزوله.بیا هغه یو لرګے راواخسته، چه په هغې مونځ اوکړی.نبی کریم ﷺ هغه هم اوغورځولو.او اوے فرمائیل.چه په زمکه مونځ کوه.که قدرت دے وی.ګنې اشاره کوه.اوخپله سجده د رکوع نه ښکته کوه.داحدیث په دې خبره محمول دې.چه دے بیمارتکیه اوچته کړه.اوتندی سره ئې لګوله، نبی کریم ﷺ هغه منع کړو.نودد ےحدیث نه معلومه شوه.چه سجده کولو دپاره څه څیز اوچتول او تندی سره لګول ټیک نه دی.

**الصورتان في رفع الشئ إلى الوجه>**صاحب دهدایه فرمائیلی دی.که مریض تکیه اوچته کړه.اوتندی سره ئې اولګوله .نود دووحالونه خالی نه دی.یا به رکوع او سجدے دپاره خپل سرښکته کوی یا نه.

①که سرښکته کوی.نوکافی شو.ځکه چه په سر ښکته کولواشاره موجود شوه.اوهم دا په ده فرض ده.البته مکروه دی.

---

(۱) من حديث جابر رضي الله عنه اخرجه البزار في مسنده والبيهقي في ،،المعرفة،، ورواه البيهقي ايضاً في السنن الكبرى (۴۳۵/۲، ۴۳۴) رقم ۳۶۶۹) والنظر مجمع الزوائد للهيثمي (۱۴۸/۲)۔

② اوکه تکیه ئې اوچته کړه.اوتندی سره ئې اولګوله.اوسر بیخی ښکته نه شو.نو په دے رکوع اوسجده نه اداکیږی،ځکه چه په دې صورت کښې اشاره معدوم شوه حالاتکه دا فرض وه.

### د ناستې نه د عاجز کس مونځ

فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الْقُعُودَاوکه مریض ته د ناستےقدرت هم نه وی. اسْتَلْقَى عَلَى قَفَاهُ نو په خپل څټ دے څملی وَجَعَلَ رِجْلَيْهِ إِلَى الْقِبْلَةِ.اوخپلے پښے دے قبلې ته کړی وَأَوْمَأَ بِالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ.او رکوع او سجده دے په اشاره سره کوی

**تشریح> صلاة العاجز عن القعود>** که مریض ته د ناستےقدرت نه وی.نو په خپله شاه دے ستونی سنغ څملی.اود خپل سرلاندی دے اوچته شان تکیه کیږدی.چه د ناستے مشابه شی.چه رکوع او سجده په اشاره کول ممکن وی.ځکه تکیه نه بغیر تندرست کس اشاره نشی کولې.نو بیمار به ئې څه اوکړی.او پښے دے قبلې ته اوګرځوی. اود رکوع اوسجدے اشاره دے کوی.

**دلیله>** دلیل دنبی کریم ﷺ قول دے [یصلی المریض قائما فان لم یستطع فقاعدا فان لم یستطع فعلی قفاه یومی ایماء فان لم یستطع فالله تعالی احق بقبول العذر منه] ([1])

**المذهبان في مراد الجزء الآخر من الحديث>** دحدیث آخری جزء د [فالله احق بقبول العذر منه] په تفسیرکښې دعالمانواختلاف دے، ①بعضو عالمانو رحمهم الله ونیلی دی.چه په اشاره قدرت نه لرلو په صورت کښې قضاء نه ساقطیږی،البته مونځ موخر کولې شی.چه کله تندرست شی قضا دے راوړی.ددې حضراتوپه نیزیه ددې تفسیر دا دې.چه الله تعالی د تاخیر عذر قبلولو دپاره زیات لائق دې.

②اوبعضوونیلی‌دی.چه په دےحالت کښې قضا ساقطیږی.ددےحضراتو په نیز تفسیر دادې. چه الله تعالی د اسقاط عذر قبلولو زیات لائق دې .صاحب دعنایه هم دے قول ته اصح ونیلی دی.

### په اړخ په ملاسته دمونځ کولوحکم

وَإِنِ اضْطَجَعَ عَلَى جَنْبِهِاوکه بیمار په اړخ څملاستووَوَجْهُهُ إِلَى الْقِبْلَةِ،اودده مخ د قبلې په طرف وی وَأَوْمَأَ جَازَاو اشاره ئې اوکړه نوجائز ده

**تشریح> المذهبان في كيفية صلاة المستلقي >** ①صاحب دقدوری رحمه الله وائی.چه بیمارکه په اړخ څملی.او په اشاره مونځ اوکړی.په داسې حال کښې چه دده مخ قبلې ته وی.نودا هم جائزده.

**دلیله>** دلیل دعمران بن حصین رضی الله عنه حدیث دې. چه په اول باب کښې ذکر شوې دې.اود الله تعالی قول: الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَى جُنُوبِهِمْ (الایه) هم په دے دال دې.حاصل دادې.چه دعمران بن حصین رضی الله عنه حدیث [فان لم تستطع فعلی الجنب تومی ایماء]اود عبدالله بن عمرحدیث[فان لم یستطع فعلی قفا

---

[1] ، غربه الزيلعي بهذا اللفظ (نصب الراية (۱۷۹/۲) وخرجت هذه المسئلة في تاليفي ،،سنن الصلاة ،، عن الحسين بن علي بن أبي طالب رضي الله عنهما عن النبي صلى الله عليه وسلم قال يصلي المريض قائما إن استطاع فإن لم يستطع صلى قاعدا فإن لم يستطع أن يسجد أوما وجعل سجوده أخفض من ركوعه فإن لم يستطع ان يصلي قاعدا صلى على جنبه الأيمن مستقبل القبلة فإن لم يستطع ان يصلي على جنبه الأيمن صلى مستلقيا رجله مما يلي القبلة كذا أخرجه البيهقي في الصلاة باب ما روي في كيفية الصلاة على الجنب أو الإستلقاء رقم ۳۴۹۳(۲/۳۰۷)_

**یومیایماء]** متعارض دی. څکه چه په حدیث دعمران ابن حصین رضی الله عنه کښې په ارخ په ملاسته مونځ کول ذکر دی.اودعبدالله بن عمر رضی الله عنهما حدیث کښې په نیغه په ملاسته مونځ کول ذکر دی.اود بیمار حالت دعذر حالت دې. په دې وجه په دې دواړوحالتونو کښې په هر هیئت مونځ کول جائز دی.

**ترجیح الهیئة الأولی>** البته په اولنی هیئت(په نیغه ملاسته) مونځ کول غوره دی.

**دلیله >** د غوره والی وجه داده.چه په نیغه ملاسته دمونځ ادا کولواشاره دکعبې فضا په طرف کیږی.اوپه ارخ ملاستےسره دمونځگذار اشاره دده قدمونو طرف ته کیږی .اومونځ په دے ادا کیږی.چه اشاره دکعبےد فضا طرفته وی.په دې وجه په نیغه ملاسته مونځ اداکول غوره دی.

**د سر د اشارې نه د عاجز کس مونځ**

| فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الْإِيمَاءَ بِرَأْسِهِ اوکه مریض په خپل سرهم د اشارے قدرت نه لری أُخِّرَتِ الصَّلَاةُ عَنْهُ .نوده نه به مونځ موخرکولےشی وَلَا يُومِئُ بِعَيْنِهِ .اواشاره به نه کوی.په خپلوسترګو وَلَا بِحَاجِبَيْهِ .اونه په خپلو وریځو سره وَلَا بِقَلْبِهِ .او نه په خپل زړه |
|---|

**تشریح> تاخیرالصلاة عن العاجز الذی لایستطیع الإیماء①>** شیخ ابوالحسن قدوری فرمانی.که مرض دومره زیات شی.چه د سر په اشاره هم د مونځ کولو قدرت نه لری.نومونځ دے روستو کړی.او په سترګو، زړه، او وریځوسره اشاره کول کافی نه دی.

**دلائله >** ①دلیل هغه حدیث دې.چه مخکښې تیرشوې دے،یعنی[ان قدرت ان تسجد علی الأرض فاسجد والافاوم برأسك]په دې حدیث کښې دمقام بیانولو په موقع په سر اکتفاء شوېده.که دسرنه په علاوه اشاره کول جائزوه.نونبی کریم ﷺ به ضرور بیان کړې وه. د نبی کریم ﷺ بیان نه فرمانیل دعدم جواز دلیل دې.

② عقلی دلیل دادې.چه اشاره په حقیقت کښې د رکوع اوسجده بدل دې.او بدل په رائې سره مقررکول ممنوع دی.اوپه حدیث کښې صرف په سرسره د اشارے ذکردې.په سترګو وغیره سره د اشارے کولو ذکر نشته.نوکه په دےځیزونوسره د اشارے کولو اجازت ورکړې شی.نود بدل په رائې سره مقررکول لازمیږی.حالانکه داجائزنه دی.په دې وجه په سترګو وغیره اشاره کول کافی نه دی.

**الإعتراض>** اوکه څوک دا اووائی چه دا په رائې سره د بدل مقررول نه دی.بلکه داخودسر په حکم قیاس کول دی.یعنی څنګه چه په سرسره اشاره کول درکوع اوسجده دپاره کافی دی.هم دغه شان په سترګو وغیره سره اشاره کول هم کافی کیدل پکاردی.

**الجواب>** نوجواب به داوی.چه سترګےوغیره په سر قیاس کول ټیك نه دی.څکه چه په سرسره د مونځ یو رکن یعنی سجده اداکیږی.او په سترګو،زړه،او وریځوسره سجده نه اداکیږی. یعنی ددې درې واړه اعضاؤ دسجدے په اداکولوکښې څه دخل نشته،نوپه دے فرق یو په بل قیاس کول،څنګه ټیك کیدے شی.

**صحة قول تاخیرالصلاة عنه >** ①دقدوری عبارت [اخرالصلاة عنه]سره ددې خبرےنشاندهی کیږی. چه د داسې مریض دذمے نه مونځ نه ساقطیږی.بلکه مونځ به دده په ذمه باقی پاتې وی، د صحت په بنه کیدو به قضا واجب وی.اګرچه دا حالت دیوے ورځې نه زیات وی.په دې شرط چه په دومره وخت کښې مریض په هوش کښې پاتې شوې وی.هم دا قول صحیح دې.څکه چه دا مریض چه کله په آرام اوپه هوش کښې وی.نود مونځ د ادا حکم پیژنی.اوچه حکم پیژنی.نوده ته حکم متوجه دې.نو په دې وجه په ده د ادا

کولو حکم واجب شو.خود عذر په وجه بالفعل ده ته ادا کولومهلت ورکړې شو.تردے چه ده ته قدرت حاصل شي.

**حکم المغمي عليه** > البته ددې په خلاف هغه کس چه هغه ديوے ورځې نه زيات بےهوشه پاتې شو.چونکه دے دخطاب دفهم نه عاجزدې.ځکه به دده دذمےنه مونځ ساقط شي،

②بعضوحضراتو ونيلی دی.چه دبيمارئ هغه حالت چه په هغې کښې په سرسره اشاره کولو هم قدرت نه وی .که ديوے ورځې نه زيات وی.نوپه ده به قضاء واجب نه وی.اوکه د يوے ورځې شپې نه کم وی. نوقضاء به لازم وی.

## په قيام قادر او د رکوع او سجدې نه د عاجز مونځ

فَإِنْ قَدَرَعَلَى الْقِيَامِ اوکه مريض ته په قيام قدرت وی وَلَمْ يَقْدِرْعَلَى الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ .او په رکوع او سجده ئې قدرت نه وی لَمْ يَلْزَمْهُ الْقِيَامُ.نو په ده قيام لازم پاتې نشو وَجَازَأَنْ يُصَلِّيَ قَاعِدًا.او جائز ده چه په ناسته مونځ اوکړی.يُومِئُ إِيمَاءً په داسې حال کښې چه اشاره کوی

**تشريح** > **سقوط القيام عن عاجزالرکوع والسجود** > ①مسئله داده.که يوکس داسې بيمار وی.چه دے په قيام قادر وی.خوپه رکوع اوسجده قدرت نه لری.نو په ده قيام لازم نه دې.بلکه په ناسته دے په اشاره مونځ ادا کړی.

**دليله** >دليل دادې.چه قيام فقط په دے غرض رکن دې.چه دا د سجدے اداکولووسيله وی.اوقيام دسجدے ادا کولو وسيله ځکه ده.چه د قيام نه پس په سجده کولوکښې بےانتها تعظيم دے،نوکله چه د قيام نه پس سجده نه وی.هغه قيام به رکن نه وی.اوچه کله په دےحالت کښې قيام رکن پاتې نشو.نو بيمارمونځ گذار ته په قيام کولواونه کولوکښې اختياردې.

**فضل الرکوع والسجود ايماء** >البته افضل دادی.چه په ناسته رکوع اوسجده په اشاره کوی.ځکه چه په ناسته دسجدې اشاره کول دحقيقي سجدې سره زيات مشابه ده.ځکه چه په ناسته اشاره کولو په وخت کښې سر زمکے ته زيات نزدے شي. په نسبت په ولاړه داشاره کولو.

## په مانځه کښې د قيام نه عاجزه کيدل

فَإِذَاصَلَّى الصَّحِيحُ بَعْضَ صَلَاتِهِ قَائِمًا اوکله چه تندرست کس دمونځ څه حصه په ولاړه اوکړه ثُمَّ حَدَثَ بِهِ مَرَضٌ بياده ته مرض پيدا شو أَتَمَّهَا قَاعِدًا نو په ناسته دے مونځ پوره کړی، يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ په داسې حال کښې چه رکوع اوسجده کوی وَيُومِئُ إِيمَاءً اواشاره دې کوی په اشاره کولو سره إِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ که د رکوع اوسجدې قدرت نه لری أَوْمُسْتَلْقِيًا نو په ملاسته(دے مونځ پوره کړی)إِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الْقُعُودَ که په ناسته قدرت نه لری

**تشريح** > **جوازبناء الأدنى على الأعلى** >مسئله داده.که تندرست کس دمونځ يوه حصه په ولاړه اداکړه،بيا په مينځ دمانځه کښې داسےمرض پيدا شو.چه په قيام قادر نشو.نوکه په رکوع اوسجده قدرت لری.په ناسته دے په رکوع او سجده مونځ پوره کړی.اوکه په رکوع اوسجده قدرت نه لری.نود رکوع اوسجدےاشاره دے اوکړی. او مونځ دے پوره کړی.اوکه دومره مريض شو.چه په ناسته هم قدرت پاتې نشو.نوپه نيغه ملاسته دے مونځ پوره کړی.

**دليله** >دليل دادې.چه په دے درې واړو صورتونوکښې د ادنی بناء په اعلی شوې ده.اود ادنی بناء په

اعلى كول جائزدى.لكه چه د ادنى حال والا لره د اعلى حال والا پسې اقتداء كول جائزدى.يعنى څنګه چه په ناسته د مونځ كونكى په ولاړه مونځ كونكى پسې اقتداء جائزده.هم دغه شان په خپله دخپل ځان په حق كښې دا خبره جائزده.چه دمونځ اوله حصه په ولاړه اوكړى،بيا دعذر په وجه روستنۍ حصه په ناسته اوكړى.

**په اشاره د رکوع اوسجدې نه په په قیام قدرت موندل**

| وَمَنْ صَلَّى قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ لِمَرَضٍ اوخوك دمرض په وجه په ناسته په ركوع اوسجده سره مونځ كوى ثُمَّ صَحَّ.بيا تندرست شو. بَنَى عَلَى صَلَاتِهِ قَائِمًا په ولاړه به په خپل لمونځ بناء اوكړى |
|---|

**تشریح﴾ بناء الركوع علي القيام﴾** صورت دمسئلې: كه يوكس دمرض په وجه په ناسته په ركوع اوسجدے سره د مونځ يوه حصه ادا كړه.بيا دمونځ په مينځ كښې تندرست شو.په قيام قادرشو.نو اودريږى دې.او په خپل مونځ دے بناء اوكړى.دا دشيخينو مذهب دې.[1]

**خلاف محمد رحمه الله﴾** په زير بحث مسئله كښې د امام محمد رحمه الله په نزد دې دا سرې د سرنه مونځ شروع كړى.

**بناء الإختلاف في المسئلة﴾** دامام محمد او دشيخينو رحمهما الله اصل اختلاف په دےخبره كښې دې. چه قائم په قاعد پسې شاته اقتداء كول‌شى اوكه نه؟ امام محمد رحمه الله فرمائى.چه د قائم په قاعد پسې اقتداء كول جائز نه ده.اوشيخين رحمهما الله فرمائى.جائزده.چونكه د امام محمد رحمه الله په نيزد قائم په قاعد پسې اقتداء كول ناجائز ده. نودحالت قيام دمونځ بناء دحالت قعود په مونځ پسې هم ناجائزده.اود شيخينورحمهماالله په نيزد قائم په قاعد پسې اقتداء كول چونكه جائزده نو په خپل حق كښې هم د حالت قيام د مونځ په حالت قعود
مانځه بنى كول جائزدى.

**د اشارې نه په رکوع او قیام قدرت موندل**

| وَإِنْ صَلَّى بَعْضَ صَلَاتِهِ بِإِيمَاءٍ اوكه دمونځ يوه حصه ئې په اشارےسره اداكړه ثُمَّ قَدَرَ عَلَى الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ.بيا په ركوع اوسجده قادرشو اسْتَأْنَفَ الصَّلَاةَ نو مونځ دې دوباره د سر نه اوكړى |
|---|

**تشریح﴾ بناء الركوع علي الإيماء﴾** مسئله: يوكس دعجز په وجه سره دمونځ يوه حصه په اشارے اداكړه.بيا په مينځ دمانځه كښې په ركوع اوسجده قادرشو.نود آئمه ثلاثه ابوحنيفه. صاحبين رحمهما الله په نيز دے دوباره دې د سر نه مونځ اوكړى.

**مسلك زفر﴾** په دې مسئله كښې امام زفر رحمه الله فرمائى.چه په دےصورت كښې هم بناء كول جائز دى.

**دليله﴾** دليل دادې.چه زمونږ په نيزد ركوع كونكى اشاره كونكى پسې اقتداء كول جائز نه دى .اود امام زفر رحمه الله په نيزجائزده. هم داحال د بناءدې.

[1] ) القول الراجح هوقول الشيخين رحمهما الله كذا في العناية (۱\۴۶۰) والدرالمختار(۱\۵۶۳) وتبيين الحقائق (۱\۲۰۲) وخلاصة الفتاوى (۱\۱۹۶) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۳۲)-

د بیهوشۍ وجه د زیاتو قضا شوو مونځونو کښې ترتیب

وَمَنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ خَمْسُ صَلَوَاتٍ فَمَا دُونَهَا اوپه چا چه د پنځو مونځونوپورې یاددې نه کمه بې‌هوشي وه قَضَاهَا إِذَا صَحَّ نوچه کله صحیح شي د هغې دے قضا راوړي وَإِنْ فَاتَتْهُ بِالْإِغْمَاءِ أَكْثَرُ مِنْ ذٰلِكَ اوکه فوت شي د ده نه په بیهوشۍ سره دے نه زیات وي. لَمْ يَقْضِ نوقضا دے نه راوړي

**تشریح**> **حکم فوت الصلوات بالاغماء**>مسئله که یوکس د پنځومونځونو نه زیات بې‌هوشه شو. نوددې قضا واجب نه ده. دا حکم په نظرد استحسان دې. په دې مسئله کښې زمونږ د عالمانو قاعده دا ده که د اغماء په وجه فوت شوي مونځونه قلیل وي. نو ددې قضاء راوړل واجب دي.اوکه کثیر وي. نوقضا راوړل ئې واجب نه دي.([1])

**دلیله** > دلیل دادې.چه موده د اغماء اوږده شي . نو فوت شوي مونځونه به کثیر شي.اوس که دکثیرفوت شوو(مونځونو)د قضا حکم ورکړې شي.نو دغه کس به په حرج کښې واقع شي.اوچونکه په شریعت اسلامی کښې حرج لرے شوې دې.په دې وجه ددےکثیرفوت شوو قضا واجب نه ده.اوکه موده د اغماء کمه ده.نوفوت شوي مونځونه به قلیل وي.اود کمو فوت شوو مونځونو قضا راوړلوکښې هیڅ حرج نشته.خکه د کمو فوت شوو مونځونو د قضا راوړلوحکم ورکړې شوېدې.

**حدالکثرة**>واضحه دے وي.چه دکثیرحد دادې.چه فوت شوي مونځونه دیوے ورځې نه زیات شي.تردے چه د شپږم مونځ وخت تیرشي.خکه چه د شپږم مونځ وخت تیرشي.نوپه مونځونوکښې به تکرار شروع شي. او د تکرار نه پس دکثرت بنکاره کیدل ضروري دي.

**حکم فوت الصلاة بالنوم**>ددې په خلاف خوب که دا زیات هم وي.نو بیابه هم قضا نه ساقطیږي. خکه چه دخوب اوږدیدل نا آشنا دي.نودا به دعذر قاصرسره پیوست کوليشي. دعذرممتد سره به نشي پیوست کولې.

**المذهبان في متعلق الكثرة**>احناف عالمان رحمهم الله په دےمتفق دي.چه دکثیرحد دادې.چه قضا مونځونه د یوے شپې او ورځې نه زیات شي.خوپه دې کښې اختلاف دې.چه دا زیاتوالے[من حيث الاوقات] معتبر دې. اوکه [من حيث الساعات] معتبر دې. ①امام محمد رحمه الله فرمائي. چه [من حيث الأوقات] معتبر دې.یعنی که پنځه مونځونه فوت شول.اود شپږم مونځ وخت تیرشو.نوکثرت به ثابت شي. او دکثرت فوائت په وجه به قضا واجب نه وي.اوکه د شپږم مونځ پوره وخت نه وي تیرشوې.بلکه څه لمحات تیرشوي وي. نودامام محمد رحمه الله په نیزکثرت نه ثابتیږي.اودده د ذمې نه قضا نه ساقطیږي . صاحب دهدایه رحمه الله دامام محمد رحمه الله دلیل داذکر کړې دې.چه تکرار به هم په شپږو مونځونو کښې متحقق کیږي.اود شپږو مونځونو فوت کیدل[مفضي إلى الحرج]دي.نودا قضاء ساقطونکی ده. نو د کثرت په تحدید کښې دمونځونو فوت کیدل معتبر دي.

②شیخین رحمهما الله وائي.چه دکثرت په تحدید کښې ساعتونه(لمحات) معتبردي.وختونه معتبر نه دي.

[1] ) د قیاس تقاضا داده.که بې‌هوشي د یومونځ پوره وخت راګیرکړي.نوپه ده به قضاء واجب نه وي. هم ددے قائل امام مالك او امام شافعي رحمهما الله دي.

یعنی د یوے ورځې شپې نه که یو دوه لمحات هم زیات شی.نوکثرت ثابتیږی. هم دا دحضرت علی ﷛ اودحضرت عبدالله بن عمر ﷛ نه منقول دی.

**ثمرة الاختلاف**> داختلاف ثمره په دې صورت کښې ښکاره کیږی.چه په یوکس د ساختی په وخت بے هوشی راغله.بیا بله ورځ د زوال نه یوساعت مخکښې ئې افاقه راغله.(په هوش کښې راغے) . نودا د ساعتونو (لمحاتو) په اعتبارسره د یوے ورځې شپې نه زیات دې.د شیخینو ﷫ په نیز به په ده قضا واجب نه وی. اود امام محمد ﷫ په نیز به په ده قضا واجب وی.ځکه چه په دې صورت کښې د مونځونو په مینځ کښې په پنځومونځونواضافه نه ده شوې.صحیح حکم خدا ئې ته ښه معلوم دې.[1]

د سجده تلاوت بیان

## بَابُ سُجُوْدُ التِّلَاوَةِ

**ترجمه**> (دا) باب د سجده تلاوت (په بیان )کښې دې.

**تشریح**> **الربط بما قبله**> مناسب خبره داوه.چه سجده تلاوت ئې د سجده سهو نه فوراً پس ذکر کړې وې.ځکه چه په دې دوارو کښې هریوسجده ده.خود مریض مونځ دعارض سماوی په وجه دې.اوسهوهم په عارض سماوی سره وی.په دے مناسبت سره ئې د سجده سهو نه پس دمریض مونځ بیان اوکړلو.په دے مناسبت سره د سجده سهو نه پس دمریض صلاة بیان شو. نود سجده تلاوت بیان لازماً موخرشو.

**نوعیة إضافة السجدة إلي التلاوة**> په سجده تلاوت کښې دحکم اضافت سبب ته شوېدې.ځکه چه د سجده تلاوت سبب هم تلاوت دې.خوکه یوکس اعتراضاً دا اُووائی.چه د تلاوت نه بغیر سماع هم د سجده تلاوت سبب دې. نوداسې وئیل پکاروو.چه [سجود التلاوت والسماع] ددے جواب دا دې.چه تلاوت څنګه چه د سجدے سبب دې.دغه شان د سماع هم سبب دې.د تلاوت ذکرمن وجه د سماع په ذکر هم مشتمل دې.په دې وجه د تلاوت په ذکر اکتفاء شوېده.

په قران کریم کښې د سجدو تعداد

| فِي الْقُرْآنِ أَرْبَعَ عَشْرَ سَجْدَةً. په قران کښې د تلاوت سجدے ټولې څوارلس دی فِي آخِرِ الْأَعْرَافِ.د سورة اعراف په آخرکښې وَفِي الرَّعْدِ.په سورة رعد کښې. وَالنَّحْلِ په سورة نحل کښې. وَبَنِي إِسْرَائِيلَ په سورة بنی اسرائیل کښې وَمَرْيَمَ په سورة مریم کښې وَالْأُولَى فِي الْحَجِّ. رومبۍ سجده په سورة حج کښې وَالْفُرْقَانِ. په سورة فرقان کښې وَالنَّمْلِ. په سورة نمل کښې. والم تَنْزِيلُ په سورة الم تنزیل کښې وَصٓ .په سورة صٓ کښې وَحٰمٓ السَّجْدَةِ په سورة حٰم السجده کښې. وَالنَّجْمِ په سورة النجم کښې الْإِنْشِقَاقِ په سورة انشقاق کښې وَالْعَلَقِ.او په سورة علق کښې |
|---|

**تشریح**> صاحب د قدوری وائی.چه په قرآن کریم کښې آیات سجده څوارلس دی.

---

[1] ) القول الراجح هو قول محمد﷫ كذا في فتح القدير(١\٤٦٣) وردالمحتار(١\٥٦٤) والبحرالرائق (٢\١١٨) والتاتارخانية (٢\١٢٦) نقلاً عن القول الراجح (١\١٣٦)

① د سورة اعـراف پـه آخر کـنبي ﴿اِنَّ الَّـذِیْنَ عِنْـدَ رَبِّـكَ لَا یَسْتَكْبِرُوْنَ عَـنْ عِبَادَتِـهٖ وَیُسَبِّحُوْنَهٗ وَلَـهٗ یَسْجُدُوْنَ۩﴾(پ۹ ع۱۴)

② په سورة رعد کنبي ﴿وَلِلّٰهِ یَسْجُدُ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ۩﴾(پ۱۳ ع۸)

③ په سورة نحل کنبي ﴿یَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ وَیَفْعَلُوْنَ مَا یُؤْمَرُوْنَ۩﴾ ( پ۱۴ ع۱۲

④ په سورة بنی اسرائیل کنبي ﴿وَیَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ یَبْكُوْنَ وَیَزِیْدُهُمْ خُشُوْعًا۩﴾ (پ۱۵ ع۱۲

⑤ په سورة مریم کنبي ﴿اِذَا تُتْلٰی عَلَیْهِمْ اٰیٰتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوْا سُجَّدًا وَّبُكِیًّا۩﴾ (پ۱۶ ع۷

⑥ د سورة حج ورومبۍ سجده﴿ وَمَنْ یُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ اِنَّ اللّٰهَ یَفْعَلُ مَا یَشَآءُ۩ ﴾ (پ۱۷ ع۹)

⑦ په سورة فرقان کنبي ﴿ وَاِذَا قِیْلَ لَهُمُ اسْجُدُوْا لِلرَّحْمٰنِ قَالُوْا وَمَا الرَّحْمٰنُ اَنَسْجُدُ لِمَا تَاْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُوْرًا۩ ﴾ (پ۱۹ ع۳)

⑧ په سورة نمل کنبي ﴿ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ۩ ﴾ (پ۱۹ ع۱۷)

⑨ په سورة سجدة (الم تنزیل)کنبي ﴿ اِنَّمَا یُؤْمِنُ بِاٰیٰتِنَا الَّذِیْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا یَسْتَكْبِرُوْنَ۩ ﴾ (پ۲۱ ع۱۵)

⑩ په سورة صٓ کنبي ﴿ فَغَفَرْنَا لَهٗ ذٰلِكَ وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰی وَحُسْنَ مَاٰبٍ۩ ﴾( پ۲۳ ع۱۱)

⑪ په سورة حٰم سجده کنبي ﴿ فَالَّذِیْنَ عِنْدَ رَبِّكَ یُسَبِّحُوْنَ لَهٗ بِالَّیْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا یَسْئَمُوْنَ۩ ﴾(پ۲۵ ع۱۹)

⑫ په سورة النجم کنبي ﴿فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا۩﴾(پ۲۷ ع۷)

⑬ په سورة اذا السماء انشقت کنبي ﴿وَاِذَا قُرِئَ عَلَیْهِمُ الْقُرْاٰنُ لَا یَسْجُدُوْنَ۩﴾ (پ۳۰ ع۹)

⑭ په سورة علق کنبي ﴿ لَا تُطِعْهُ وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ۩﴾(پ۳۰ ع۲۱)

صاحب د قدوری ددې څوارلسوسجدو په ځایونودمصحف عثمانی نه استدلال کړې دې.اومصحف عثمانی معتمد دې.

**په تالی او سامع د تلاوت د سجدې وجوب**

وَالسُّجُوْدُ وَاجِبٌ فِیْ هٰذِهِ الْمَوَاضِعِ اوسجده کول په دےځایونوکنبي واجب ده. عَلَی التَّالِیْ په تلاوت کونکی وَالسَّامِعِ.اوپه اوریدونکی هم سَوَاءٌ قَصَدَ سَمَاعَ الْقُرْاٰنِ اَوْلَمْ یَقْصِدْ.که د قران اوریدو اراده ئې کړی وی اوکه نه

**تشریح﴾ حکم سجدة التلاوة﴿** امام ابوالحسن قدوری رَحِمَهُ اللّٰهُ وائی.چه په ذکرشوی څوارلسو مقاماتو کښ سجده کول په قاری اوسامع دواړوواجب ده.که سامع د آوریدو قصد کړې وی اوکه نه.

**دليله** > دليل داحديث دے [السجدة علی من سمعها وعلی من تلاها] (۱) وجه استدلال دا دي.چه په حديث کښې لفظ د "علی" راغلے دي.چه په الزام دلالت کوی.اودا حديث چونکه د قصد په قيد مقيد نه دي. ددې وجې به په هر اوريدونکی سجده تلاوت واجب وی.که داوريدو نيت ئې کړې وی.اوکه نه.(۲)

**د مقتدي په تلاوت د سجده تلاوت حکم**

| وَاِذَا تَلَا الْاِمَامُ اٰيَةَ السَّجْدَةِ اوکله چه امام آيت د سجدے تلاوت کړو سَجَدَهَا وَسَجَدَهَا الْمَاْمُوْمُ مَعَهُ.نوامام دے سجده اوکړي.اوده سره به مقتدی هم سجده کوی..وَاِنْ تَلَا الْمَاْمُوْمُ اوچه مقتدی تلاوت اوکړی لَمْ يَلْزَمِ الْاِمَامُ وَلَا الْمَاْمُوْمُ نه لازميږی په امام او نه مقتدی |
|---|

**تشريح** > **وجوب السجدة علي المأموم** > مسئله دا ده.که امام دسجدے دآيت تلاوت اوکړو. نو امام دے په مانځه کښې سمدستی سجده اوکړی.اوده سره دے مقتديان هم سجده اوکړی.

**دليله** > دليل دادي.چه مقتدی د اقتداء په نيت د امام تابعداری په خپل ځان لازم کړې ده.په داسې صورت کښې که مقتدی دامام سره سجده اونکړی.نود امام مخالفت به لازم شی.

**وجوب السجدة بقراءة المأموم** > اوکه مقتدی آيت د سجدے تلاوت کړی.نود شيخينو رحمهماالله په نيز امام اومقتدی دواړه دے سجده نه کوی.نه په مانځه کښې او نه د مانځه نه پس.دا دعاموعالمانو ﷺ مذهب دي.

**دليلهما** ﷺ > د شيخينو ﷺ دليل دادي.امام پسې شاته مقتدی دپاره قرات کول ممنوع دی.مقتدی د پاره قرات کول ځکه ممنوع دی.چه د امام تصرف په ده نافذ دي. يعنی د امام قرات دمقتدی د طرفه هم قرات شماريږي.لکه چه د نبی کريم ﷺ ارشاد دے [من کان له إمام فقراءة الإمام له قراءة] بهرحال مقتدی ممنوع عن القرات دي.اوخوك چه دکوم تصرف نه بند شوې وی.دده د تصرف هيڅ حکم نه وی.نومقتدی چونکه ممنوع عن القراءة دي. ددې وجې به دده د قرات هيڅ حکم نه وی.اوچه دده د قرات څه حکم نشته.نو په ده به سجده تلاوت هم واجب نه وی.اوچه په تالی سجده واجب نه ده. نودده په سامع يعنی په امام به هم سجده واجب نه وی.

**مذهب محمد** > په زيربحث مسئله کښې حضرت امام محمد رحمه الله فرمائی.چه امام کله د مانځه نه فارغ شی.نوټول دے سجده ا وکړی.

**دليله** > دليل دادي.دسجدے سبب يعنی دمقتدی د سجده آيت لوستل اود باقی حضراتو دا اوريدل موجود شو.او مانع د سجدے يعنی ددوی په مانځه کښې مشغوليت لرے شو .او قاعده ده.چه کله د يوڅيز سبب اوموندے شی.اومانع لرے شی.نوهغه څيز په يقين سره متحقق کيږی .په دې وجه دمونځ د فراغت نه پس په امام اومقتدی دواړو باندې سجده واجب ده.

---

(۱) غريبه الزيلعی رحمه الله ثم قال واخرج ابن ابي شيبة في مصنفه عن ابن عمر رضي الله عنهما انه وقال محقق نصب الراية دحدثمس الدين وفي البخاری في سجود القرآن باب ۱۰ تعليقاً بلفظ إنما السجدة علی من إستمعها (نصب الراية ۲/۱۸۲)۔

(۲) په زير بحث مسئله کښې دامام مالك امام شافعی او دحنابله ﷺ مذهب دا دې چه سجده تلاوت سنت ده. واجب نه ده.

## دمونځ ګذار د ' رهی کس نه د سجدې آیت اوریدل

وَإِنْ سَمِعُوا اوکه خلقو واوریدو وَهُمْ فِي الصَّلَاةِ په داسې حال کښې چه دوی په مانځه کښې دی آيَةَ سَجْدَةٍ مِنْ رَجُلٍ. دیوداسې کس نه آیت د سجدې لَيْسَ مَعَهُمْ فِي الصَّلَاةِ. چه هغه د دوی په مانځه کښې شریك نه وو لَمْ يَسْجُدُوهَا فِي الصَّلَاةِ. نودا خلق دې په مانځه کښې سجده نه کوی وَسَجَدُوهَا بَعْدَ الصَّلَاةِ اود مونځ نه پس دې سجده اوکړی

**حل اللغة** ① سمعوا ، اسمع سمعا (س): اوریدل ② لم سیجدوها ، سجد سجدة (ن): سجده کول ③ سماع: اوریدل

**تشریح** **سماع المصلي آية السجدة من خارج** صورت دمسئلې دادې. که بعضې خلقو په حالت د مانځه کښې د یوداسې کس نه آیت د سجدې واوریدو. چه هغه ددوی په مونځ کښې شریك نه وو . نو دا خلق دې دې مونځ په حالت کښې سجده تلاوت نه کوی. ځکه چه دا سجده د مونځ سجده نه ده . اود مونځ سجده ځکه نه دد. چه ددې خلقو آیت د سجدې اوریدل د مونځ په افعالو کښې نه دی .

**دلیله** ځکه چه د مونځ افعال یاخو فرض وی یا واجب اویا سنت.اوآیت د سجدې اوریدل په دې کښې یوهم نه دې.حاصل داچه دا سجده د مونځ په افعالو کښې نه ده.اوکوم څیز چه د مونځ په افعالو کښې نه وی.هغه په مانځه کښې اداکول هم جائز نه وی .نو ثابته شوه.چه دا خلق دې په مونځ کښې سجده تلاوت نه کوی. البته د مونځ نه پس سجده تلاوت کول واجب دی.ځکه چه د سجدې سبب یعنی آیت د سجده اوریدل موجود شوې ده.

## په مونځ کښې سجده کول کافی نه دی

فَإِنْ سَجَدُوهَا فِي الصَّلَاةِ اوکه دې خلقو په مانځه کښې سجده اوکړه لَمْ تُجْزِهِمْ نودوی د پاره نه کافی کیږی وَلَمْ تُفْسِدْ صَلَاتَهُمْ او نه فاسدیږی مونځ د دوی

**حل اللغة** ① سجدوها ، سجد سجدة (ن):سجده کول ② لم تجزهم، جاز جوازا (ن) جائز کیدل

**تشریح** **عدم إعتبارالسجدة المسموعة في الصلاة من خارج** دا مسئله په مخکښې مسئله کښې تیره شوې ده.چه ددې خلقو دپاره په مانځه کښې سجده کول ممنوع دی.خوددې ممانعت باوجود که ئې سجده اوکړه.نودا به معتبره نه وی.

**دلیله** د سجدې د عدم اعتبار دلیل دا دې. چه دا سجده ناقصه ده. ځکه شریعت په مانځه کښې دهر هغه څیز داخلولو نه منع کړې ده.کوم چه د مونځ په افعالو کښې نه وی. بهرحال دا سجده ناقصه ده.اود سماع په وجه چه کومه سجده واجب شوېده.هغه کامله ده.او قاعده ده.چه کامل واجب په ناقصه طریقه ادا کولو سره نه اداکیږی.ځکه ددې خلقو په مونځ کښې په سجده کولو سجده تلاوت نه ادا کیږی.

**عدم إعتبارسجدة القوم في الصلاة** صاحب د هدایه فرمائیلی دی چه دې خلقو په خپل مونځ کښې کومه سجده د تلاوت کړې ده.چونکه دا شرعا معتبر نه ده. په دې وجه د مونځ نه پس دې ددې اعاده اوکړی.ځکه چه د سجده تلاوت سبب(سماع) موجود شوه.اوچونکه مونځ نه فاسدیږی. په دې وجه د مونځ د اعادې ضرورت نشته

**الروايتان في فسادالصلاة.** ﴿ ①اومونځ ځکه نه فاسديږي.چه مونځ ياخو فاسديږي د يو رکن په پريخودو.او يا فاسديږي د مونځ منافی څيز په پيښيدو.اودلته دواړه خبرے نشته.ځکه چه سجده د مونځ منافی نه ده.

②اود نوادر روايت دی.چه په دی صورت کښي به مونځ فاسد شی.ځکه چه دےخلقوپه مانځه کښي د داسےڅيز اضافه کړی ده.چه د مونځ په افعالو کښي نه دی.بعضي حضرات وائی.چه د مونځ فساد د امام محمد رحمه الله قول دی.د شيخينورحمهماالله په نيز په دی صورت کښي مونځ نه فاسديږي.

**بناءالإختلاف**﴿د اختلاف بنياد دادی.چه د امام محمد رحمه الله په نيز د سجدے زياتوالے مفسد د مونځ دی.اود شيخينو رحمهماالله په نيز د يو رکعت نه دکم زياتوالے مونځ نه فاسدوی.

**د يو آيت خارج او صلاة دواړو کښي د لوستلو په وجه د سجدې حکم**

| وَمَنْ تَلَا آيَةَ سَجْدَةٍاوکه چا آيت د سجدے تلاوت کړو خَارِجَ الصَّلَاةِبهر د مانځه نه وَلَمْ يَسْجُدْهَا.بيا نې دا ادا نکړه حَتّٰى دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ.ترد ے چه په يو مونځ کښي داخل شو. فَتَلَاهَابيا نې هم هغه آيت د سجدے دوباره( په مانځه کښي ) تلاوت کړه وَسَجَدَ.اوسجده نې اوکړه أَجْزَأَتْهُ السَّجْدَةُ عَنِ التِّلَاوَتَيْنِ.نودا سجده ورله د دواړو تلاوتونو نه کافی کيږي |
|---|

**حل اللغة** ﴿① تلا، تلا تلاوةً (ن): لوستل ②دخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل ③ اجزاته، اجزا اجزاءً: کفايت کول

**تشريح**﴿ **جوازالسجدة عن تلاوتين الخارجية والصلاتية**﴿په دےعبارت کښي د سجده تلاوت د تداخل بيان دی.مسئله داده.که چا خارج د مانځه نه آيت د سجدے تلاوت کړو.اوسجده نې اونکړه.ترد ے چه په څه نفل يا فرض مونځ کښي داخل شو. بيا نې هم ددےسجدے آيت دوباره تلاوت کړو.او په مانځه کښي نې د تلاوت سجده اوکړه.نودا به د دواړو تلاوتونو دپاره کافی وی.

**دليله**﴿دليل دادی.چه دويمه سجده اقوی ده.او اقوی ځکه ده.چه داد مونځ سجده ده.بهرحال دويمه سجده چه اقوی ده.نو ړومبئ چه خارج د مانځه نه واجب شوی وه.ددی تابع ده.او چونکه متبوع تابع ته متضمن وی. ددی وجې دويمه سجده به ړومبئ سجدے ته متضمن وی.او په دويمے سجدے اداکولو سره به ړومبنئ سجده هم ادا شی.([1])

**دخارجي تلاوت دپاره سجده کول اوبيا په مانځه کښي هم هغه آيت لوستل**

| وَإِنْ تَلَاهَا فِي غَيْرِالصَّلَاةِاوکه خارج د مانځه نه نې آيت د سجدے اولوستلو فَسَجَدَهَااوسجده نې اوکړه. ثُمَّ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ. بيا په مانځه کښي داخل شو فَتَلَاهَا.اوهم هغه آيت د سجدے نې تلاوت کړو سَجَدَهَا ثَانِيًا.نوددې دپاره دے دوباره سجده اوکړی وَلَمْ تُجْزِءْهُ السَّجْدَةُ الاولٰی اوکافی نه ده لره اولنئ سجده |
|---|

**حل اللغة** ﴿① تلاها، تلا تلاوةً (ن): لوستل ② فسجد، سجد سجدةً (ن): سجده کول ③ دخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل

[1] **رواية النوادر:-** په زير بحث مسئله کښي په نادر روايت کښي دی.چه په مانځه کښي د سجده تلاوت په کولو يوه سجده ادا کيږی. دويمه سجده د مونځ نه د فراغت نه پس اداکول ضروری دی.

**تشریح> عدم كفاية السجدة الصلاتية عن الخارجية الآية واحدة>** مسئله داده.که چا د مانځه نه بهر د سجدے آیت تلاوت کړو.اوسجده دتلاوت ئې اوکړه.بیا په مانځه کښې داخل شو.اوهم ددې آیت د سجدے تلاوت ئې اوکړو.نو په ده مانځه کښې د تلاوت کولو په وجه سجده تلاوت واجب شوه.

**دليله>** دلیل دادې.چه په مخکښې مسئله کښې تیرشوی دی.چه دویمه سجده دمونځ سجده کیدو په وجه اقوی ده.اوداقوی کیدو په وجه هغه رومبۍ سجدے لره تابع جوړونکې ده.اوچه دویمه سجده د رومبۍ سجدے لره تابع جوړونکې ده.نودویمے سجدے رومبۍ سجدےسره د پیوست کولو هیڅ وجه نشته .ځکه چه که سجده ثانیه دویمےسجدے سره پیوست کړې شوه. نوددې مطلب به داوی.چه د دویمے سجدے دپاره تلاوت روسته شوېدې.اوسجده مخکښې اوکړې شوه.اوداخبره ښکاره ده. چه د سجده تلاوت د وجوب سبب تلاوت دې.نوپه دے صورت کښې د سبب تاخیراودحکم تقدیم لازمیږی.حالانکه داخبره ټیك نه ده. نو ثابته شوه. چه په دے صورت کښې تداخل متعذر دې.او چه تداخل متعذرشو.نودویمه سجده به د دویم تلاوت په وجه واجب وی.

**په یومجلس کښې د یو ایت په تکرار سره د سجدې حکم**

| وَمَنْ كَرَّرَتِلَاوَةَ سَجْدَةٍ وَاحِدَةٍ فِي مَجْلِسٍ وَاحِدٍ اوکه چا په یومجلس کښې آیټ د سجدے مکررتلاوت کړو. أَجْزَأَتْهُ سَجْدَةٌ وَاحِدَةٌ نوده له یوه سجده کافی کیږی. |
|---|

**حل اللغة >** ① کرر، کرر تکریرا: باربار وئیل ② اجزاته، اجزا اجزاء: کفایت کول

**تشریح> الصورتان لوجوب سجدة التلاوة>** صورت د مسئلې دادے ① چه یوکس په یومجلس کښې یو آیت د سجدے بار بار تلاوت کړو.نود ټولوتلاوتونو دپاره یوه سجده کافی کیږی. ② دویمه مسئله دا ده.چه یوکس په یومجلس کښې آیت د سجدے تلاوت کړو.اوسجده ئې اوکړه.بیا چرته لاړو.اوواپس راغې.نوبیا ئې هم هغه آیت اولوستلو.نودوباره دے سجده د تلاوت اوکړی.اوکه ده د رومبی مجلس سجده نه وی اداکړې. نو په ده به دوه سجدے واجب وی.

**دليله>** ① جبرئیل امینؑ به په نبی کریمﷺ یو آیت دسجدے راوړلو.اودا به ئې باربار اولوستلو.خونبی کریمﷺ به ددې دپاره یوه سجده کوله.حالانکه د سجده تلاوت سبب چه څنګه تلاوت دې.دغه شان سماع هم ده.

② دغه شان د حضرت ابو موسیٰ اشعری رضی الله عنه نه نقل دی چه هغوی رضی الله عنه د کوفے په مسجد کښې ناست وو . اوخلقوته ئې د قران تعلیم ورکولو.اوکه آیت د سجدے به راتلو.نودا به هم باربارلوستلو.چونکه مجلس به یو وو.ځکه به ئې یوه سجده کوله. (الکفایه.عنایه)

**تحقق تغیرالمجلس>** پاتې شوه داخبره.چه دمجلس بدلیدل به کله متحقق وی.نو په دې باره کښې صاحب دکفایه وائی.د رومبی مجلس نه که پاسیدو.اوچرته لرے لاړو.نودمجلس بدلیدوحکم به لګولې شی.اوکه نیزدے لاړو.نواتحاد مجلس به باقی پاتې وی.اوپه نیزدے اولرےکښې فاصل دا دې.چه دوه یا درې قدمه مقدار نیزدے دې.اوددےنه زیات بعید دې.

**دسجدې کولوطریقه**

| وَمَنْ أَرَادَ السُّجُودَ اوچاکه د سجده تلاوت کولو اراده اوکړه كَبَّرَ.نوتکبیردے اووائی وَلَمْ يَرْفَعْ |
|---|

يَدَيْهِ.اولاسونه دے نه اوچتوی وَسَجَدَ.او سجده دے اوکړی ثُمَّ كَبَّرَ.بیا دے تکبیر اووائی وَرَفَعَ رَأْسَهُ.اوخپل سردے اوچت کړی وَلَاتَشَهُّدَعَلَيْهِ وَلَاسَلَامَ.او په ده نه تشهد شته او نه سلام

**حل اللغة** ◄①اراد، اراد ارادة: اراده کول، غوښتل ②لم يرفع، رفع رفعاً (ف): اوچتول ③يد جمع ایدی: لاس ④راس جمع رءوس: سر

**تشريح** ◄ **كيفية سجدة التلاوة**◄په دې عبارت کښې دسجده تلاوت دکیفیت بیان دې.نو کیفیت دا دې.چه کله دسجدے د تلاوت کولو اراده اوکړی.نو بغیرد دواړو لاسونو اوچتولو دے تکبیر اووائی. اوسجده دے اوکړی.بیا دے تکبیر اووائی.اوخپل سردے اوچت کړی.

**دليله**◄دلیل د مونځ په سجده قیاس دې.هم داد عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه نقل دی.دا په ذهن کښې ساتئ: چه ددې دواړه تکبیرونه مسنون دی.واجب نه دی.

**عدم التشهد والسلام فيها**◄صاحب د هدایه رحمه الله وائی.دسجده تلاوت کونکی باندې نه تشهد شته اونه سلام..

**دليله**◄ځکه چه تشهد اوسلام دمونځ نه د وتلودپاره مشروع شوې دې.اود مونځ نه وتل تقاضا کوی.چه مخکښې تحریمه وی.او تحریمه دلته کښې معدوم ده.نوتحلیل به هم نه کیږی.اوچه تحلیل نشته.نوتشهد اوسلام هم نشته.

**فوائد**◄دقدوری اودهدایه عبارت په دې باره کښې خاموش دې.چه په سجدهٔ تلاوت کښې به څه وائی .نو په دے سلسله کښې بعضےدا وائی.چه دمونځ په سجده کښې چه څه وئیلےشی.هم هغه دےپه سجده تلاوت کښې وائی. ②اود بعضوقول دې.چه په سجدهٔ تلاوت کښې دے دا وائی. ﴿سُبْحٰنَ رَبِّنَآ اِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُوْلًا﴾

**د مسافر د مونځ بيان**

## بَابُ صَلَاةِ الْمُسَافِرِ

**ترجمه**◄دا باب دمسافر دمونځ (په بیان )کښې دې.

**تشريح**◄ **الربط بما قبله**◄ چونکه د تلاوت په شان سفرهم دهغې عوارضوځنےدې.چه دهغې انسان کسب کوی.په دې وجه دسجده تلاوت احکام بیانولونه پس.دسفراحکام ذکرکړې شول.او چونکه تلاوت اوسجده تلاوت عبادت دې.اوسفرعبادت نه دې.په دې وجه سجده تلاوت مقدم اود سفراحکام مؤخر کړې شول.

**المعني اللغوی والشرعي للسفر**◄دسفرلغوی معنې دمسافت طےکول ده.اود شریعت په اصطلاح کښې سفر هغه دې.چه په هغےاحکام متغیرکیږی.مثلاً دمونځ قصر.په رمضان کښې د افطار اجازت. د مسح موده تر درې ورځو پورې اوږدیدل.داخترونو. دجمعې او د قربانئ دوجوب سقوط بغیر محرمه د آزادے ښځې د وتلو حرمت خیال ساتل پکار دی.چه دسفرشرعاً اعتبار به هغه وخت وی. چه د سفرنیت وی.اوعملاً سفرموجود شی.که چا د دریو ورځودمسافت دنیت نه بغیردپوره دنیا چکر اولګولو. نو دا کس د شریعت په نظر کښې مسافر نشی کیدې. اوکه دسفرنیت ئې اوکړو.خوعملاً ئې سفر اونکړو. نو هم به مسافرنه وی. د سفر په وجه په احکامو کښې تغیر هغه وخت وی.چه کله نیت دسفراو فعل

سفر دواره. علی سبیل الاجتماع موجود شي.

**السوال**> د اقامت دپاره صرف نیت کافی دي.خودسفردپاره صرف نیت کافی نه دي. بلکه فعل د سفرهم ضروري دي.داسې ولې ده؟

**الجواب**> سفرفعل دي.اوپه فعل کښې صرف اراده اوقصدکافی نه وی.بلکه دعمل ضرورت وی. مثلاً مونځ یو فعلي څیز دي.په دي کښې صرف نیت کافی نه دي.بلکه د نیت سره که قیام رکوع، سجده، وغیره وی.نومونځ به وی ګڼی نه به وی.او اقامت د ترك فعل نوم دي.اوترك فعل صرف په نیت حاصلیږی.

**د سفر شرعي مسافت**

| |
|---|
| **السَّفَرُ الَّذِي يَتَغَيَّرُ بِهِ الْأَحْكَامُ** هغه سفرچه په هغې احکام بدلیږی.**هُوَ أَنْ يَقْصِدَ الْإِنْسَانُ** هغه دا دي چه انسان د تلو اراده اوکړی.**مَوْضِعًا** داسې ځائې **بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمَقْصَدِ** چه په مینځ د ده او د ده د مقصود. کښې **مَسِيرَةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ** دري ورځې (او دري شپې) مسافت وی **بِسَيْرِ الْإِبِلِ** د اوښ په رفتار **وَمَشْيِ الْأَقْدَامِ** یا د قدمونو په چال سره۔ |

**حل اللغة** >①یتغیر، تغیر تغیراً: بدلول ②یقصد، قصد قصداً (ض): قصدکول،اراده کول ③مسیرة: مسافت، فاصله ④مشی: تګ

**تشریح**> **تقدیرالمسافة بثلاثة أیام ولیالیها**>صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه په کوم سفر احکام متغیرکیږی.هغه سفردادي.چه انسان دري ورځې اودري شپې دتلو اراده اوکړی. په چال کښې د اوښ چال معتبر دي.یا پیاده یا د ربړے . دا خبره په ذهن کښې ساتل پکاردی. چه دهرملك په کال کښې د تولو نه وړه ورځ معتبرده.لکه چه زمونږ دلته شاملی په هندکښې په سخته یخنۍ کښې دتولونه وړه ورځ وی.دغه شان شپه ورځ ۲۴ ګنټې تلل مراد نه دی. بلکه هره ورځ د سحر نه ترزوال وخته پورې تلل مراددی.ځکه چه ۲۴ ګنټې تلل نه دانسان په وس کښې دی.اونه دسوارلۍ ځاروی په طاقت کښې.بهرحال هره ورځ دسحرنه ترزواله یو منزل ته په رسیدو دے آرام کوی. په دري شپو . اودري ورځوکښې چه کوم مسافت اوکړی.هغه مسافت دسفردي.

**دلائله**> ① ددري ورځو اودري شپو په تقدیرپه حدیث رسول ﷺ **یمسح المقیم کمال یوم ولیلة والمسافر ثلثة ایام ولیالیها** [1] سره استدلال شوي دي.وجه د استدلال داده. چه "المسافر"کښې الف لام استغراقی دي.نود مسح رخصت به هرمسافر ته شامل وی.یعنی هرمسافردري ورځې اودري شپې د مسح په قدرت قادروی.اوهرمسافردري شپې ورځې په مسح کولو هغه وخت قادروی. چه اقله موده دسفردري شپې ورځې وی.که اقله موده دسفر ددي نه کمه اوګڼړلې شي.نود هر مسافر دري ورځې اودري شپې په مسح قدرت ممکن نه پاتې کیږی. حالانکه په حدیث کښې د هرمسافردپاره دري ورځې اودري شپې د مسح کولوقدرت ثابت دي.نوثابته شوه.چه دسفرکم نه کم موده دري ورځې اودري شپې ده.

(۱) من حدیث عائشة رضي الله عنها اخرجه مسلم في الطهارة رقم ۸۵)۔

② زمونږ دمذهب تائيد ددې حديث نه هم کيږي. [لا تسافر المرأة فوق ثلاثة أيام ولياليها إلا ومعها زوجها أو ذو رحم محرم منها] په حديث کښې لفظ فوق زائد دې.لکه ﴿ فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا ﴾کښې لفظ فوق زائد دې.اوس به دحديث مطلب دا شي.چه هيڅ يوه ښځه دې درې ورځې اودرې شپې سفرنه کوي.خوداچه دې سره يادې خاوند وي.يا ذي رحم محرم وي.دا خبره منو.چه ښځې دپاره دسفرد مودې نه دکم مسافت دپاره بغير د محرم نه سفرکولو اجازت دې.نوچونکه په حديث کښې درې ورځې اودرې شپې ښځه بغيرد محرم نه د سفر کولو نه منع شوې ده.په دې وجه د سفرموده به درې ورځې اودرې شپې وي.

**په سمندر کښې د اوچې رفتار معتبرنه دې**

| وَلَا يُعْتَبَرُ او نشته اعتبار فِي ذَٰلِكَ په دې باره کښې بِالسَّيْرِ فِي الْمَاءِ تګ لره په اوبو کښې |
|---|

**حل اللغة** ① لايعتبر، اعتبر اعتباراً: معتبر کيدل ② سير: تلل]

**تشريح ﴿ الإعتبار إلى سيرالوسط البرى في البحر** ﴾صورت دمسئلې دادې.چه په سمندرکښې که په کشتۍ کښې سفر اوکړې شي.نوددې دحال مناسب به اعتبارکولې شي.يعنى که هوا موافق وي.مخالف نه وي.نوپه دې کښې درې ورځو اودرې شپوکښې چه څومره مسافت کولې شي.هغه به موده د سفر بللې شي.لکه څنګه چه د غرونو په سفر کښې د درې ورځو اودرې شپومسافت معتبردې.اګرچه په هواره زمکه کښې دومره مسافت ددې نه په کمه موده کښې پوره کيږي.

**توضيح العبارة** ﴾دمتن دعبارت حاصل دادې.چه په سمندرى سفرکښې د اوچې رفتارمعتبرنه وي.مثلاً يومقام ته درسيدو دوه لارې وي.يود سمندر.اودويمه د اوچې.د اوچې په لاره کښې دغه مقام ته رسيدو دپاره درې ورځې اود درې شپومسافت دې.اود سمندر په لاره د دوو ورځو مسافت دې. نوکه يوکس دا مسافت د اوچې په لاره پوره کوي.نوده ته به د مسافر رخصت حاصل وي . اوکه په سمندرى لارلاړو.نودسفر رخصت به حاصل نه وي.

**د قصرمونځ شرعى حيثيت**

| وَفَرْضُ الْمُسَافِرِ عِنْدَنَا فِي كُلِّ صَلَاةٍ الرُّبَاعِيَّةِ رَكْعَتَانِ اوفرض د مسافر په هر څلوررکعته مونځ کښې دوه رکعته دى وَلَا تَجُوزُ لَهُ الزِّيَادَةُ عَلَيْهِمَا ..اوجائز نه دې ده لره زيادت په دې باندې |
|---|

**حل اللغة** ① رباعية: څلور رکعته ② لايزيد ، زاد زيادة (ض): زياتول

**تشريح ﴿ نوعية القصر** ﴾قدورى رحمه الله فرمائي .زمونږ په نيزڅلور رکعته مونځ په مسافر دوه رکعته فرض دې.په دې اضافه کول جائزنه دى.حاصل دا چه زمونږ په نيزدمسافر په حق کښې قصر رخصت اسقاط دې.يعنى په څلور رکعته مونځ کښې دوه رکعته ساقط شوى دى.اودوه رکعته پاتې دى. (١)

---

١ ) **مسلک الشافعي**:- امام شافعى فرمائي دمسافرپه حق کښې قصر،،رخصت ترفيه،، دې.او پوره کول افضل دى.يعنى دمسافر دسهولت پيش نظرده ته دوور کعتونوکولواجازت ورکړې شوې دې .ګنې په څلور رکعته مونځ کښې په ده څلور رکعته فرض دى.اوهم څلوررکعته کول افضل دى .د دې قائل امام محمد رحمه الله هم دې. او دا امام مالک رحمه الله هم يوقول دې.

**دلائله** ﴿ ①دلیل دادي. كه مسافرقصراوكړي.اوآخری درې ركعته پرېږدی.نود اقامت نه پس نه ددې قضا شته.اونه ددې په پرېخودوګناهګاربږی.اود قضا نه واجبېدل,اونه ګناهګاربدل د دویمې شفعې د نفلیت علامت دې.نو ثابته شوه.چه په مسافرپه څلور ركعته مونځ كښې صرف دوه ركعته واجب دی.②دویم نقلی دلیل [عن عائشة رضىالله عنها قالت فرضت أى الصلوة ركعتين ركعتين فأقرت صلوة السفر و زيدت فى الحضر](بخارى ومسلم) حضرت عائشة رضى الله عنها فرمائی.مونځ دوه دوه ركعته فرض شوېدې. نودسفرمونځ (هم په دې حالت) باقی پاتې شو.اودحضر په مانځه كښې اضافه اوكړې شوه.

③[عن ابن عباس ﷺ قال فرض الله الصلوة على لسان نبيكم فى الحضر أربع ركعات و فى السفر ركعتين] ابن عباس ﷺ فرمائی.الله تعالی ستاسود رسول په ژبه په حضر كښې څلورركعته فرض كړل.او په سفر كښې دوه ركعته.

## د قصر په ځائې د اتمام حكم

| وَإِنْ صَلَّى أَرْبَعًا اوكه مسافرڅلور ركعته اوكړل وَقَدْ قَعَدَ فِي الثَّانِيَةِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ.او په دویم ركعت كښې د تشهد په مقدار كیناستو أَجْزَأَتْهُ الرَّكْعَتَانِ عَنِ الْفَرْضِ.نواولنی دوه ركعته به دفرضونه دده دپاره كافی شي وَكَانَتِ الْأُخْرَيَانِ لَهُ نَافِلَةً.او روستنی دوه ركعته به دده دپاره نفل شي وَإِنْ لَمْ يَقْعُدْ فِي الثَّانِيَةِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ اوكه په دویم ركعت په قدرد تشهد نې ناسته اونكړه فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ په اولنو ركعتونو كښې بَطَلَتْ صَلَاتُهُ.نود ده مونځ باطل شو |
|---|

**حل اللغة** ﴿①صلی، صلی صلاةً: مونځ كول،دعاكول ②قعد، قعدقعوداً (ن): كیناستل ③یصیر، صار صیراً (ض): كېدل ④ بطلت، بطل بطلاً (ن): باطل كېدل

**تشریح** ﴿ **صيرورة الركعتين نفلاً بالإتمام** ﴿صورت دمسئلې دادې.چه مسافر په ځائې د دوو ركعتونو څلور اوكړی.اود تشهد په مقدارپه دویم ركعت هم كېنی.نو اولنی دوه ركعته فرض او روستنی دوه ركعته نفل شمارلې شی.

**دليله** ﴿ صاحب دهدایه ﷫ دسحر په مانځه قیاس كړې دې.یعنی كه دسحر نې څلور ركعته اوكړل.او په دویم ركعت كیناستو.نو دسحر دوه ركعته فرض به اداشی.البته په سلام كښې د تاخیرپه وجه به ګناهګاروی.

**بطلان الفريضة بعدم القعود على الركعتين** ﴿اوكه دا مسافر په دویم ركعت د تشهد په مقداركینه ناستو.نودده مونځ به باطل شی.

**دليله** ﴿دلیل دادې.دفرض اركان مكمل كېدو نه مخكښې دفرضو سره نفل مخلوط شو. اركان ځكه مكمل نشو.چه قعده آخره ركن دې.هغه نې پرېخوده.اود فرض اركان مكمل كولو نه مخكښې فرض د نفلوسره مخلوط كول باطلونكې د مونځ دې.ځكه دده مونځ باطل شو.

## د قصرشروع كولو مقام

**وَمَنْ خَرَجَ مُسَافِرًا** اوكله چه اوځی مسافر **صَلَّى رَكْعَتَيْنِ** نودوه ركعته دې كوی **إِذَا فَارَقَ بُيُوتَ الْمِصْرِ** كله چه دښاركورونه پرېږدی

**حل اللغة** ﴿① فارق، فارق، مفارقةً: جداكېدل② بیوت واحد بیت: كور ③ مصر جمع امصار: ښار ④ صلی، صلی صلاةً، مونځ كول

**تشریح**> **إبتداء القصر بالتجاوز عن البنيان**>سوال دادې.چه دسفر د شروع نه پس قصرکول کله شروع کيږی؟ نو ددےحکم دادې.چه کله د آبادئ نه بهراوځی.نو په ده قصرکول واجب شو.

**دلائله**> ① دليل دادې.چه مسافرکله دخپل وطن د ښار په آبادئ کښې داخليږی.نود اقامت حکم ورسره متعلق کيږی.نوچه ددې آبادئ نه بهراوځی.نودسفرحکم به پورې متعلق کيږی.

② په دے سلسله کښې دحضرت علی رضی الله عنه اثرهم منقول دې. [لوجاوزناهذا الخص لقصرنا] (١)خص وانی.د بانړس يا لرګی کوډنۍ ته.حاصل داچه حضرت علی رضی الله عنه فرمانيلی دی.که مونږددےکوډنۍ نه وړاندې تير شو . نود قصرمونځ به کوو.هم ددې تائيد د إنس رضی الله عنه حديث نه هم کيږی [قال صليت مع رسول الله ﷺ الظهربالمدينه اربعا والعصربذی الخليفة ركعتين]حضرت انس رضی الله عنه فرمانی.چه مارسول الله ﷺ سره په مدينه منوره کښې د ماسپخين څلور رکعته اوکړل.او د مازيګر مے په ذوالحليفه کښې دوه رکعته اوکړل.

**د اقامت د مودې حد**

| وَلَايَزَالُ عَلَى حُكْمِ السَّفَرِ اودسفر په حکم به هميشه باقی پاتې وی حَتّٰى يَنْوِيَ الْإِقَامَةَ فِي بَلْدَةٍ أَوْقَرْيَةٍ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا فَصَاعِدًا تردےچه په يو ښاريا کلی کښې پنځلس ورځې.يا ددې نه د زياتو د قيام نيت اوکړی فَيَلْزَمُهُ الْإِتْمَامُ نو لازميږی په ده باندې پوره مونځ کول فَإِنْ نَوَى الْإِقَامَةَ أَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ..اوکه اقامت نيت ئې د دې نه کم نيت اوکړو لَمْ يُتِمَّ نو مونځ دې نه پوره کوی |
|---|

**حل اللغة**>①لايزال، زال زوالاً (س): باقی پاتې کيدل، نه زائل کيدل ②ينوی، نوی نية (ض): نيت کول ③بلدة جمع بلاد: ښار

**تشريح**> **أقل مدة الإقامة**>مسئله داده.چه د سفرحکم به هغه وخت باقی پاتې وی.ترکومے چه په يوښار ياکلی کښې د پنځلسو ورځو يا ددې نه زيات د قيام نيت اونکړی.اوچه د پنځلسو ورځو يا ددې نه دزيات قيام نيت اوکړی.نو دسفرحکم به ختم شی.اوداکس به مقيم شمارلے شی.اوکه د پنځلسوورځونه د کمو اوسيدو نيت اوکړی.نو زمونږ په نيز به داکس مقيم نه وی.بلکه قصرمونځ به کوی.

**دليله**>صاحب د هدايه رحمه الله فرمانيلی دی.د اقامت دمودے پنځلس ورځې کيدل. دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه نقل کړی دی.لکه چه مجاهد روايت کړې دے [عن ابن عباس وابن عمر رضی الله عنهم قالا إذا أدخلت بلدة وأنت مسافر وفی عزمك أن تقيم بها خمسة عشر يوما فأكمل الصلوة وإن كنت لاتدری متی تظعن فاقصر (٢)]يعنی دےدواړوحضرات صحابو رضی الله عنهم فرمانلی دی.چه ته کله يو ښار ته داخل شے.په داسې حال کښې چه ته مسافر ئې.اوستا اراده د پنځلسو ورځو د قيام وی.نوته مونځ پوره کوه.اوکه تاته دا

(١) أورده في ،،سنن الصلاة،، عن أبي حرب بن أبي الأسود أن عليا خرج من البصرة فصلى الظهر أربعا فقال أما انا إذا جاوزنا هذا الخص صلينا ركعتين اخرجه ابن ابي شيبة في الصلاة باب من كان يقصر الصلاة رقم ٨١٦٩ وثق رجاله النيموی آثارالسنن في الصلاة باب القصر إذا فارق البيوت رقم ٨٣٢)۔

(١) قال الزيلعي رحمه الله اخرجه الطحاوی عنهما قالا إذا قدمت بلدة وأنت مسافر وفي نفسك ان تقيم خمسة عشر يوماً أكمل الصلاة بها وإن كنت لا تدری متى تطعن فاقصرها إنتهى نصب الراية ١٩٠/٢)۔

علم نه وی.چه کله به سفر کوم. نو قصر کوه.صاحب دهدایه فرمائی.د پنخلسو ورځو تحدید دمقدراتو شرعیه څنے دې.اود ورځو تقدیراوتحدید داسے خیزدې.چه په دې کښې په عقل سره لاره نشی موندې.اوقاعده ده.چه په [مالایعقل] کښې اثر دصحابی ﷺ په منزله دخبراو د حدیث وی.ګویا چه ابن عباس او ابن عمر ﷺ د پنخلسو ورځو تعین د نبی کریمﷺ نه اوریدلے دې.نو ځکه بیان کړې ئې دې.(۱)

**الروایتان في نية الإقامة في الصحراء**> صاحب دهدایه وائی. ①دامام ابوالحسن قدوری ﷫ د اقامت دپاره دښار یا قریه قید لګولو کښې دے ته اشاره ده.چه په ځنګل کښې د اقامت نیت کول ټیک نه دی.هم دا ظاهر راویت دې. ②اګرچه قاضی ابویوسف ﷫ فرمائی.که ګډبانه (شپونکی) دګیاه او اوبو په ځائې کښې خیمې اولګوی.اود پنخلسو ورځو ایساریدو نیت اوکړی.نومقیم به شمارلی شی.

**بغیرد نیت د قیام نه په یوځائې کښې د قیام حکم**

| وَمَنْ دَخَلَ بَلَدًا او څوک چه داخل شو یو ښار ته وَلَمْ يَنْوِ أَنْ يُقِيمَ فِيهِ او نیت ئې نه وی کړې چه اوسیږی به په دې کښې خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا.پنخلس ورځې وَإِنَّمَا يَقُولُ غَدًا أَخْرُجُ أَوْ بَعْدَ غَدٍ او وائی دې چه صبا ته به روانیږم او پس د صبا نه حَتَّى بَقِيَ عَلَى ذَلِكَ سِنِينَ تردې چه باقی پاتې شو په دې حالت کښې کلونه صَلَّى رَكْعَتَيْنِ نو مونځ دې کوی دوه رکعته |
|---|

**حل اللغة**> ①دخل، دخل دخولاً (ن): داخلیدل ② غدا: صبا (۳)لم ینوی، نوی نیة (ض): نیت کول (۴) سنین جمع سنة : کال ]

**تشریح**> **قصرالصلاة مالم ینوالإقامة**>په مخکښې مسئله کښې تیرشو.چه د اقامت دپاره پنخلس ورځې د قیام نیت کول ضروری دې.هم په هغې باندې دا مسئله متفرع کوی او فرمائی.که مسافر یوښارته په دے نیت داخل شی. چه صبا یا بله ورځ به روانیږی.د اقامت دمودے یعنی د پنخلسو ورځود قیام نیت ئې نه وی کړې تردے چه هم په دے نن صبا کښې څوکاله
تیرشو.نودے به قصرکوی.مقیم به نشی ګنړلی.

**دلیله**>دلیل دادې.چه حضرت عبدالله بن عمر ﷺ د آذر بائیجان په مقام شپږ میاشتې قیام کړې وو. چونکه حضرت ابن عمر ﷺ په یووخت پنخلس ورځې دقیام نیت نه ووکړې. په دې وجه به هغه دقصرمونځ کولو.هم ددې په شان د نورو صحابو ﷺ نه نقل دی.لکه د سعدابن ابی وقاص ﷺ په باره

---

[1] ) په زیربحث مسئله کښې حضرت امام مالك .اوامام شافعی ﷫ فرمائی.دڅلور ورځو دقیام په نیت به مقیم کیږی.د امام شافعی ﷫ یوقول دادې.که دڅلورو ورځونه ئې زیات قیام اوکړ.نودے مقیم شو.که نیت اوکړی اوکه اونکړی.حاصل دا چه زمونږ اود امام شافعی ﷫ په مینځ کښې دوه ځایه اختلاف دې.یواختلاف دا چه دمقیم کیدو دپاره کم ازکم د څومره ورځو دقیام نیت ضروری دے؟ ①نوزمونږ په نیز د پنخلسو ورځو په نیت مقیم شمارلے شی.②او ددوی په نیز د څلورو ورځو په نیت مقیم شمارلے شی.دویم اختلاف دادې.چه د اقامت دپاره زمونږ په نیزاصل نیت شرط دې.زمونږ په نیز به بغیرد اقامت د نیت نه مقیم نه وی.اګرکه د پنخلسو ورځونه زیات قیام اوکړی.② د امام شافعی ﷫ په نیزد اقامت دپاره نیت شرط نه دې.

کښې نقل دی.چه دوی د نیشاپور په یوکلی کښې دوه میاشتې قیام کړې وو.اوقصر به ئې کولو.دغه شان علقمه بن قیس رحمه الله په خوارزم کښې دوه کاله قیام کړې وو.اوقصرمونځ ئې کولو.

**په دارالحرب کښې د لښکرد اقامت د نیت حکم**

| وَإِذَادَخَلَ الْعَسْكَرُفِي أَرْضَ الْحَرْبِ اوکله چه اسلامی لښکر دکافرانو ملك ته داخل شی فَنَوَوْاالْإِقَامَةَ اودپاتې کیدو نیت اوکړی. خَمْسَةَعَشَرَيَوْمًا د پنځلس ورځو لَمْ يُتِمَّ الصَّلَاةَنو نه به پوره کوی مونځ |
|---|

**حل اللغة** ﴿۱عسکر جمع عساکر: لښکر ﴿۲حرب جمع حروب: جنګ

**تشریح** ﴿ **عدم إعتبارنية الإقامة في دارالحرب للعسكر** ﴿چه اسلامی لښکر دارالحرب ته داخل شی.اود پنځلسو ورځود قیام نیت اوکړی.نوبیاهم حکم دادې.چه دا اسلامی لښکر دے قصرمونځ کوی.

**دلیل** ﴿ځکه چه د اقامت د نیت محل هغه ځائې وی.کوم ځائې کښې چه انسان ته یقیمی آرام اوامن حاصل وی.اودلته کښې صورت دادې.چه اسلامی لښکر دقرار او فرار په مینځ کښې متردد دې.ځکه چه د شکست په صورت کښې به د تیښتې لاره اختیاروی.اود فتح په صورت کښې به ایساریږی. نو د تیښتې او پاتې کیدو په حالت کښې دارالحرب د اسلامی لښکر دپاره دارالاقامت نشی کرځیدې . لکه چه په دارالاسلام کښې ځنګل داراقامت نه دې.هم دا وجه ده چه په ځنګل کښې د اقامت نیت معتبرنه دې.

**د مسافر دپاره دمقیم د اقتداء حکم**

| وَإِذَادَخَلَ الْمُسَافِرُاوکله چه داخل شی مسافر فِي صَلَاةِالْمُقِيمِ په مانځه د مقیم کښې مَعَ بَقَاءِالْوَقْتِ سره د باقی والی دوخت نه أَتَمَّ الصَّلَاةَنو پوره دې کوی مونځ. |
|---|

**حل اللغة** ﴿۱دخل:داخل شی، یعنې اقتدی اوکړی ﴿۲مسافر:سفرکونکې ﴿۳مقیم: یوځائې حصار ﴿۴اتم، اتم تمامًا: پوره کول

**تشریح** ﴿ دے ځائې کښې د دوو خبروحکم بیان شوېدې.یودمسافر په مقیم پسې داقتداء کولو حکم. دویم د مقیم په مسافر پسې داقتداء حکم.اولنےصورت په وخت کښې جائزدې. خود وخت وتلونه پس جائز نه دې.اودویم صورت په وخت کښې هم جائزدې.اودوخت نه پس هم.صاحب د قدوری رحمه الله د اولنی صورت بیانولونه پس فرمائی.که مسافر په وخت کښې په مقیم پسې اقتداء اوکره.یعنی په څلور رکعته مونځ کښې مسافردمقیم اقتداء اوکره. نو مسافر به پوره څلور رکعته کوی.

**دلیل** ﴿دلیل دادې.چه مسافردې کس دمتابعت التزام کړې دې.اودهغه فرض مونځ څلور رکعته دی.اوخوك چه د هغه کس د متابعت التزام اوکړی.د چا فریضه چه څلور رکعته وی.نود تابع کیدو په وجه دده فریضه په څلورو رکعتونو بدلیږی.لکه ځنګه چه د اقامت په نیت دمسافر فریضه څلور رکعتو کښې تبدلیږی.

**د مسافر په فوت شوی مونځ کښې په مقیم پسې اقتداء**

| وَإِنْ دَخَلَ مَعَهُ فِي فَائِتَةٍاوکه مسافر.مقیم سره په یوفوت شوی مونځ کښې شریك شولَمْ تُجْزِصَلَاتَهُ خَلْفَهُ.نوجائزنه دې مونځ د هغه (مسافر) روسته دده (مقیم)نه |
|---|

**حل اللغة** ﴿① دخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل ②فائتة: فوت شوې ③ لم يجز، جاز جوازاً (ن):جائز كيدل

**تشريح** ﴿ عدم جوازاقتداء المسافر بالقيم في الفائتة﴾ مسئله داده.كه مسافرپه قضا مونځ كښې د مقيم د اقتداء نيت اوكړو.نودا جائز نه ده.

**دليله**﴿ځكه چه د وخت تيريدو نه پس دمسافرفريضه نه بدليږي.ځكه چه دفرض مونځ سبب خو وخت دې.او اقتداء چه كوم تغيركوي.هغه چه دسبب سره متصل شي.نو اثر كوي. او چونكه قضا مونځ كښې سبب يعنى د وخت تيريدو په وجه دا اتصال موجود نشو. په دې وجه دمسافر فرض د دوو ركعتو نه په څلورو ركعتو كښې نه بدليږي.لكه چه قضا مونځ په نيت داقامت سره نه بدليږي.حالانكه نيت د اقامت هم دوه ركعته په څلور ركعته كښې بدلوي.

**د مسافرمقيمينو ته د امامت حكم**

| وَإِذَا صَلَّى الْمُسَافِرُ بِالْمُقِيمِينَ اوكله چه مسافرمقيمينو ته مونځ كوى صَلَّى رَكْعَتَيْنِ نومونځ دې كوى دوه ركعته وَسَلَّمَ.اوامام مسافردے سلام واړوى ثُمَّ أَتَمَّ الْمُقِيمُونَ صَلَاتَهُمْ.اوبيا دې مقيم خلق خپل مونځ پوره كړى |
|---|

**حل اللغة** ﴿① صلى، صلاة: مونځ كول ② مسافر: سفركونكې ③ سلم، سلم تسليماً: سلام ګرځول، سلام كول ④ اتم، اتم اتماماً : پوره كول

**تشريح**﴿ صورت دمسئلےدادې.كه مقيم خلقوپه مسافرپسې اقتداء اوكړه.نومسافردے دوى ته دوه ركعته اوكړى .او قعدے نه پس دے سلام واړوى.اومقيم خلق دے خپل مونځ پوره كړى.

**دليله**﴿ دليل دادې.چه مقيم مقتدى امام مسافر اوګنړلو.نو په دوورکعتونوكښې ئې د موافقت التزام كړې وو. او د كوم چه ئې التزام كړې وو.هغه اداكړې شو.حالانكه د مقيم مقتدى مونځ اوسه پورې نه دے پوره شوې. ددې وجې نه به مقيم مقتدى په باقى دوو ركعتونوكښې منفرد وى.لكه چه د امام د سلام اړولونه پس مسبوق منفرد وى.

**مسافر امام دپاره [اتموا صلاتكم فانا قوم سفر] وئيل مستحب دى**

| وَيُسْتَحَبُّ لَهُ اوددامام دپاره مستحب دى إِذَا سَلَّمَ.چه كله دے سلام واړوى أَنْ يَقُولَ لَهُمْ نومقتديانو ته داسےاووائى. أَتِمُّوا صَلَاتَكُمْ. تاسوخپل مونځ پوره كړئ. فَإِنَّا قَوْمٌ سَفْرٌ مونږ مسافريو |
|---|

**حل اللغة** ﴿①يستحب، استحب استحباب:مستحب كيدل ② سلم، سلم، يسلم تسليماً: سلام ګرځول، سلام كول ③يقول، قال قولاً (ن): وينا كول ④اتموا ،اتم اتماماً: پوره كول ]

**تشريح**﴿ إخبارالإمام للقوم بحاله من السفر﴾ امام كه مسافر وى.نو په دوو ركعتونو سلام اړولو نه پس دے مقتديانو ته داسې اووائى. تاسوحضرات خپل مونځ پوره كړئ.زه مسافريم.

**دليله**﴿ دليل د ابو داؤد او ترمذى روايت كړې حديث دے [عن عمران بن حصين رضي الله عنه قال غزوت مع رسول الله ﷺ وشهدت معه الفتح فأقام بمكة ثمان عشرة ليلة لا يصلي إلا ركعتين يقول يا أهل مكة صلوا أربعا فإنا قوم سفر] عمران بن حصين رضي الله عنه وائى.چه ما د رسول الله ﷺ سره غزاګانے كړى دى.د نبى كريم ﷺ سره په فتح مكه كښې شريك شوې يم.نبى كريم ﷺ اتلس شپې په مكة كرمه كښې قيام اوكړو. په دې موده كښې ئې (په

څلوررکعته مونځ)کښې صرف دوه رکعته کول.اوفرمائيل به ئې.اے د مکے خلقو.تاسوڅلور رکعته کوئ.څه خو مسافر يم.

## وطن ته په واپس کيدو د اتمام حکم

| وَإِذَادَخَلَ الْمُسَافِرُمِصْرَهُ اوکله چه مسافرخپل وطن کښې داخل شی أَتَمَّ الصَّلَاةَ نو پوره مونځ دے کوی وَإِنْ لَمْ يَنْوِالْإِقَامَةَ فِيهِ..اګرچه په دې کښې ئې د قيام نيت نه وی کړې |
|---|

**حل اللغة** ﴿①دخل، دخل دخولاً (ن) داخليدل ② مصر جمع امصار: ښار ③اتم،اتم اتماماً : پوره کول ④ لم ينو، نوی نية (ض): نيت کول ⑤الاقامة: استوګنه

**تشريح﴿ الإقامة بمجردالدخول مصره﴾** صورت دمسئلې دادې:کله چه ٠مسافرددرې ورځو مسافت اوکړی .اوسفر مکمل کړی.بيا دے خپل وطن اصلی ته داخل شی.نوپه آبادئ کښې داخليدو سره مقيم شو . اګرچه داقامت نيت ئې نه وی کړې.

**دليله﴾**دليل دادې.د خدائې رسولﷺ اود هغوی صحابوؓ به سفرکولو.او دسفرپوره کيدونه پس چه به وطن ته واپس راغلل.نوبغيرد اقامت د نيت نه به مقيم کيدل.([1])

## د اقامت وطن په وطن د اقامت سره باطليږی

| وَمَنْ كَانَ لَهُ وَطَنٌ اودچا چه يووطن وو فَانْتَقَلَ عَنْهُ بيا دهغې وطن نه دے منتقل شو وَاسْتَوْطَنَ غَيْرَهُ..اوددې نه علاوه ئې بل خائې وطن جوړکړو ثُمَّ سَافَرَ.بيا ئې سفراوکړو فَدَخَلَ وَطَنَهُ الْأَوَّلَ.اوخپل اولنی وطن ته داخل شو لَمْ يُتِمَّ الصَّلٰوةَ نومونځ دےنه پوره کوی |
|---|

**حل اللغة** ﴿①كان، كان كوناً (ن) :كيدل ②فانتقل، انتقالاً: منتقل كيدل، وربدليدل ③استوطن، استيطاناً: وطن جوړول④ فدخل، دخل دخولاً (ن): داخليدل

**تشريح﴿ الأقسام الثلاثة للوطن﴾**عامو مشائخو ﷺ د وطن درې قسمونه بيان کړی دی

①وطن اصلی د انسان خپل پيدا ښتی خائې دې.يا هغه ښار چه په هغې کښې دده اهل وعيال اوسيږی. اوددې نه دمنتقل کيدواراده نه لری.

②وطن اقامت هغه ښار ياکلےدې.چه په هغې کښې مسافرد پنځلسو ورځودقيام اراده کړې وی. ددے دويم نوم وطن د سفرهم دې.

③ وطن سکنیٰ هغه ښاردې.چه په هغےکښې مسافر د پنځلسوورځونه کم قيام اراده کړې وی.

**قسمي الوطن عندالمحققين﴾**محققينودوطن دوه قسمونه بيان کړی دی.وطن اصلی اووطن اقامت .دے حضراتود وطن سکنی اعتبار نه دےکړې.ځکه چه په وطن سکنی کښې اقامت نه ثابتيږی .بلکه دسفرحکم باقی پاتې وی. قاعده داده.چه وطن اصلی په وطن اصلی باطليږی. اونه په وطن اقامت باطليږی.اونه په سفرکولوسره.اووطن داقامت په وطن اقامت په سفراوپه وطن اصلی درې واړو باطليږی.

---

[1] ، قال ا لزيلعي لم اجده شاهداً والمصنف إستدل به على أن المسافر إذا دخل مصره اتم الصلاة وإن لم ينوالإقامة نصب الرأية ۱۹۵/۲)_

**دليله**>دليل د دے دادي.چه څيزد خپل ځان نه په لوئي څيز باطليږي.يا په برابر.اودا خبره منلے شوي ده.چه په وطن اصلي بل څيز پورته نشته.نووطن اصلي به په خپل برابر يعنى په وطن اصلي سره باطليږي.صورت د ددي دا دي.چه ديوكس يو وطن وى.هغه ددي نه منتقل شي.اوبل ځائي خپل وطن جوړكړي.نواولنے وطن اصلي باطل شو.نوكه دسفرشرعي نه پس دے خپل اولني وطن ته داخل شي.نومقيم به نشي شمارلي.بلكه قصريه كوي.هم دغه وجه ده.چه د صاحب شريعتﷺ وطن اصلي مكه مكرمه وو. خو نبي كريمﷺ چه هجرت اوكړو. او مديني منورې ته ئي تشريف يوړو.اومدينه ئي خپل وطن جوړكړو.نومكه وطن اصلي پاتي نشو.هم دا وجه ده.چه دهجرت نه پس نبي كريمﷺ مكي مكرمي ته تشريف يوړلو. نو خپل ځان ئي مسافر شمارلو. اوفرمائيل ئي [اتموا صلاتكم فانا قوم سفر][1]

وطن اصلي د وطن اقامت نه اوچت دي.نو په وطن اصلي باندي وطن اقامت باطليږي.او وطن اقامت د وطن اقامت برابر دي.نووطن اقامت په وطن اقامت هم باطليږي.اووطن اقامت په سفر سره ځكه باطليږي.چه سفر د وطن اقامت ضد دي.اوقاعده ده چه څيز په خپل ضد سره باطليږي.

**الإعتراض**>اوكه سوال اوشي.چه سفرخود وطن اصلي هم ضد دي.نووطن اصلي هم په سفر سره باطليدل پكار دي.حالانكه داسے نه ده.

**الجواب**>دوطن اصلي په سفرسره باطليدل د اثر په وجه دي.ځكه نقل دي.چه نبي كريمﷺ غزاگانو دپاره د مديني منورے نه وتلو.اولرے علاقو ته به ئي تشريف اوړلو.خوددي باوجود مدينه منوره د هغويﷺ وطن اصلي وو.نبي كريمﷺ چه به كله د سفرنه واپس تشريف راوړو.نود اقامت نيت به ئي نه كولو.كه وطن اصلي په سفرسره باطليدلو.نو په واپسئ به نبي كريمﷺ د اقامت نيت ضرور كولو.

## په دوو ښارونو كښي د اقامت د نيت حكم

| وَإِذَا نَوَى الْمُسَافِرُ اوهركله چه مسافر نيت اوكړي. أَنْ يُقِيمَ بِمَكَّةَ وَمِنًى خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا په مكه او منى كښي د پنځلسو ورځو د اقامت لَمْ يُتِمَّ الصَّلَاةَ نو پوره مونځ به نه كوي |
|---|

**حل اللغة**>①نوى، نوى نية (ض): نيت كول ②ان يقيم، اقام اقامة: حصاريدل، قيام كول

**تشريح**> صورت دمسئلے دادي.چه مسافر په داسې دوو ځايونو كښي د پنځلسو ورځو د پاتي كيدو نيت اوكړي .چه په دې كښي يو هم مستقل نه وى.مثلاً دا چه په مكه اومنى كښي د اقامت نيت اوكړي،نو دے به مقيم نه وى.اومونځ به قصركوي.

**دليله عدم إعتبار نية الإقامة في موضعين**>ځكه چه په دوو ځايونوكښي د نيت معتبركيدل د دې خبرے مقتضى دي.چه د دوو نه په زياتو ځايونوكښي هم نيت معتبر شي.گني ترجيح بلا مرجع به لازميږي .اود مسافر په ډيروځايونو كښي د قيام نيت كول ممتنع دى.ځكه چه سفر په گنړو ځايونوكښي د قيام كولو نه خالي نه وى.بلكه په ډيروځايونوكښي قيام كول ضروري وى.نوكه په گنړوځايونوكښي د اقامت د نيت اعتبار اوكړې شي.نو ددې مطلب به دا وى.چه سړې كله هم مسافر نه وى.

---

[1] ، قال الزيلعي رحمه الله يشهد له حديث أنس رضي الله عنه خرجنا مع النبيﷺ من المدينة إلى مكة فكان يصلي ركعتين ركعتين حتى رجعنا إلى المدينة قيل كم أقمتم بمكة ؟قال أقمنا بها عشراً أخرجه البخاري في تقصير الصلاة باب ١، رقم ١٠٨١ ومسلم في صلاة المسافرين وقصرها رقم ١٥ وابوداود في صلاة السفر باب ١٠ رقم ١٢٣٣ والترمذي في الجمعة باب ٤٠ رقم ٥٤٨ والنسائي في السنن الكبرى (٥٨٧/١) رقم ١٩١٠ وابن ماجه في الإقامة باب ٧٦ رقم ١٠٧٧ واحمد في المسند (٢٨٢/٣)۔

**صحة إعتبار الإقامة في موضع المبيت>** اوکه صورت دا شی چه په دوو ځايونوکښې د پنځلسو ورځو د اقامت نيت اوکړی او په دې دواړوکښې يو متعين ځائې کښې د شپې تيرولو نيت اوکړی. نو دا نيت به معتبر وی.اوس که دا سړې مخکښې هغه ځائې ته لاړوکوم ځائې کښې ئې چه ئې د ورځې تيرولو نيت وی.نو دے به مقيم نه وی.اوکه اول هغه ځائې ته لاړوکوم ځائې کښې ئې چه ئې د شپې تيرولو اراده کړې وی.نو دےکلی ته داخليدلو سره به مقيم شی.بيا به هغه کلی طرف ته په تلو باندې مسافر نه وی کوم ځائې کښې چه ئې د ورځې تيرولو نيت کړې وی.ځکه چه د سړی اقامت د شپې تيرولو ځائې طرف ته منسوب کيږی،تاسو اوګورئ چه کوم سړې په بازارکښې کاروبارکوی که دده نه تپوس اوکړې شی چه دےوخت ته کوم ځائې کښې اوسيږے،نودےبه د هغې محلےپته ښائی کوم ځائې کښې چه دے شپه تيره وی.

| وَالْجَمْعُ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ لِلْمُسَافِرِ او جمع کول په مينځ د دوؤ مونځونو کښې د مسافر دپاره جائز دی يَجُوْزُ فِعْلاً وَلَا يَجُوْزُ وَقْتًا په اعتبار د فعل سره او جائز نه دی په اعتبار د خت سره **وتجوز الصلوة في السفينة قاعدا على كل حال عن ابي حنيفة رحمه الله وعندهما لا تجوز الا لعذر** او جائزدې مونځ کول په کشتئ کښ په ناستې سره په هرحال کښ په نزد دامام ابوحنيفه رحمه الله اود امام ابويوسف او امام احمد رحمهما الله په نزد جائزنه دې مګر د عذر د وجې نه. |
|---|

**تشريح>** دا باب د سفر د مونځ په بيان کښې دې د سفر په مسائلو کښې يوه مسئله دا هم ده چې مسافر په حالت د سفر کښې دوه مونځونه په يو ځائې ادا کولې شی خو بيا په دې کښې اختلاف دې چې دا جمع کول به حقيقی وی اوکه صوری.

**صورتي الجمع>** جمع حقيقی دې ته وائی چې يو مونځ په خپل وخت کښې اوکړی اود بل وخت مونځ هم په دغه وخت کښې اوکړی.په خپل وخت کښې يې اونکړی او جمع صوری دې ته وائی چې اولنې مونځ بيخی په آخری وخت کښې اوکړی او دويم مونځ په اولنی وخت کښې اوکړی.مثلاً د ماښام مونځ دومره روستو کړی چې آخری وخت شی.نو ادا ئې کړی او چې کله د دې نه فارغ شی د ماسخوتن وخت ورپسې داخل شی.نو د ماسخوتن مونځ په اولنی وخت کښې اوکړی.په دې صورت کښې هريو مونځ په خپل خپل وخت کښې اوشو.صرف په وخت کښې دننه تقديم او تاخير اوشو.

**مسلک الحنفية>** صاحبين او امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چې جمع صوری جائز ده او جمع حقيقی جائز نه ده.

**دلائله>** ① قرآنی آيت دې «إِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا» په دې کښې الله تعالی فرمائيلی دی چې مونځ په مسلمانانو په خپل وخت کښې فرض شوې دې.د دې آيت نه د مونځ په خپل وخت کښې د ادا کولو فرضيت معلوميږی.

② عن انس رضی الله عنه عن النبی ﷺ اذا عجل عليه السفر يؤخر الظهر الی اول وقت العصر فيجمع

بينهما ويؤخر المغرب حتى يجمع بينها وبين العشاء حين يغيب الشفق ([1])
دحضرت انس ﷺ نه روايت دې دوی دنبی کريم ﷺ نه روايت کوی چې کله به دوی په سفر کښې په تلوار وو.نو د ماسپخين مونځ به يې د مازيګر اول وخت ته روستو کړو.اوبيا به يې دواړه په يوځائې اوکړو.اود ماښام مونځ به ئې روستو کړونو دا اود ماسخوتن مونځ به يې په يوځائې اوکړو چې شفق (سورخی) به ختمه شوه. د دې حديث نه هم معلوميږی.چې نبی کريم ﷺ به هر مونځ په خپل وخت کښې کولو.البته به يو مونځ به ئې په آخر وخت کښې اوکړواو بل به ئې په اول وخت کښې اوکړو.

**د سفر د مونځ په حضرکښې او ددې په عکس**

| وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَاةٌ فِي السَّفَرِاود چا نه چه په سفرکښې مونځ فوت شی قَضَاهَا فِي الْحَضَرِ رَكْعَتَيْنِ.نو په حضرکښې به دوه رکعته قضا راوړی وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَاةٌ فِي الْحَضَرِ.او د چا نه چه په حضرکښې مونځ فوت شی قَضَاهَا فِي السَّفَرِ أَرْبَعًا نو ددې به په سفرکښې څلور رکعته قضا راوړی |
|---|

[**حل اللغة** ➊فائتة، فات فوتاً (ن): فوت کيدل ➋ قضاها، قضی يقضی قضاءً (ض): قضا کول، اداکول ➌عدم: نشت کيدل ]

**تشريح** ﴿ **حكم فائتة السفر في الحضر وعكسه** ﴾ صورت د مسئلې دادے چه د سفر په حالت کښې که څلور رکعتيز مونځ فوت شی.او په حضر کښې ئې د هغې قضا راوړل اوغوښتل.نو دوه رکعته دے قضا راوړی.اودحضر په زمانه کښې که څلور رکعتيز مونځ فوت شی.بيا د سفر په حالت کښې ئې د هغې قضا راوړل اوغوښتل.نود څلورو رکعتو قضا به راوړی.

**دليله** ﴾دليل دادې.چه قضاء د ادا موافق واجب وی.يعنی په کوم سړی چه ادا څلور رکعته واجب شول.نودے به قضا هم څلور رکعته کوی.او په چاچه دوه رکعته ادا واجب شی.په ده باندې به قضا هم دوه رکعته واجب وی.

**اعتبار اخر الوقت** ﴾په اداکښې د وخت آخر معتبردې.د آخری وخت نه مراد مقدار د تحريمې دې.مثلاً که د ماسپخين په اول وخت کښې مقيم وو.بيا د وخت ختميدلو نه مخکښې د سفر دپاره اووتلو.اود آبادئ نه هغه وخت بهرشو.چه وخت صرف د يو رکعت يا کم باقی وو.نو په ده باندې به دوه رکعته قضا واجب وی.ځکه چه په آخری وخت کښې دے مسافرشو.او هم دا معتبر دې.او په اداکښې د وخت آخر ځکه معتبر دے چه په وخت کښې دننه د اداکولو په صورت کښې د مونځ د وجوب په سببيت کښې آخرے وخت معتبردې.

**الإعتراض** ﴾په دے ځائې کښې يو اعتراض کيدے شی.هغه دا چه زمونږکلام په قضا مونځ کښې دې.اومونځ چه کله دخپل وخت نه فوت شی.نو د اصول فقه د بيان مطابق پوره وخت د مونځ سبب وی.نه دا چه آخری جزء.

**الجواب** ﴾د بعضے مشائخوپه نيز د مونځ فوت کيدو په صورت کښې د وخت آخری جزء سبب وی. ممکنه ده چه مصنف د هدايه هم دا اختيارکړی وی.

---

[1] مسلم باب جواز الجمع بين الصلاتين في السفر )

**په قصر کښې د نافرمان او تابعدار برابري**

وَالْعَاصِي وَالْمُطِيعُ فِي السَّفَرِ اوخوك چه په سفركښې فرمانبرداروی اوكه نافرمان فِي الرُّخْصَةِ سَوَاءٌ (دواړه) په رخصت كښې برابر دی

**حل اللغة** ﴿١﴾عاصی: گناهگار،نافرمان ﴿٢﴾مطیع: حکم منونکي

**تشریح** ﴿ **الأقسام الثلاثة للسفر**﴾د فقهاؤ د بیان مطابق د سفردرې قسمونه دی﴿١﴾سفر دطاعت لکه حج اوجهاد،﴿٢﴾مباح سفر لکه سفر د تجارت

﴿٣﴾ سفر د معصیت لکه د ډاکې اچولو دپاره سفرکول یا دښځې بغیر د محرم نه حج دپاره سفرکول، په دې سفر کښې هم د قصر کولو رخصت شته [1]

**الدليلان للاحناف** ﴿١﴾زمونږ دلیل د نصوصو اطلاق دې.یعنی په کومو نصوصوکښې چه رخصت راغلې دې.هغه علی الاطلاق هر مسافر ته شامل دی.مثلاً الله تعالی فرمائیلی دی﴿فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾نبیﷺ فرمائیلی دی [فرض المسافر ركعتان] په بل ځائې کښې ارشاد دې.[يمسح المقيم يوما وليلة والمسافر ثلاثة ايام ولياليها] په دې نصوصوکښې د مطیع اوعاصی هیڅ تفصیل نشته.بلکه هرمسافر ته شامل دې.خواه که په خپل سفرکښې مطیع وی یاعاصی.

﴿٢﴾ نفس سفر معصیت نه دې.ځکه چه سفرنوم دے د مسافت قطع کولو،اوپه دے معنٰی کښې هیڅ معصیت نشته.معصیت خوهغه دې.چه کوم د مسافت قطع کولو نه پس وی.مثلاً ډاکه اچول یا غلا کول یا نورڅه معصیت،چه د سفر په دوران کښې کیږی.لکه د غلام تښتیدل،نوهرکله چه نفس سفرمعصیت نه دې.نو دے سره رخصت متعلق کیدے شی والله اعلم

**د جمعې دمونځ بیان**

# بَابُ صَلَاةِ الْجُمُعَةِ

**ترجمه** ﴿ (دا) باب د جمعې د مانځه (په بیان کښې )دې.

**تشریح** ﴿ **الربط بما قبله**﴾دا باب د مخکښې باب مناسب دې.ځکه چه په دواړوکښې تنصیف دې. البته په قصرکښې د سفر په وجے سره نیموالے شوېدې.او په جُمعه کښې د خطبې په واسطے سره ، خوچونکه سفر هر رباعی مونځ لره نیمونکے دې.او دجمعې خطبه صرف د ماسپخین مونځ نیموی . ددې وجې سفر د هر رباعی مونځ نیمولوته عام شو.اوخطبه صرف د ماسپخین مونځ نیمولو ته خاص ده.او د خاص ذکر چونکه د عام نه پس وی .په دې وجه د سفرد مونځ نه پس د جمعې د مونځ ذکرشو.

**ووجه تسميتها**﴾جمعې ته جُمعه ځکه وائی.چه خلق په دے ورځ کښې راجمع کیږی،

**الحركتان في الجمعة** ﴿١﴾جُمعه د اجتماع نه ده.لکه څنګه چه فرقت د افتراق نه دې.لفظ دجمعې په ضمه د میم دې.او په سکون سره هم ونیلےشوې دې. ﴿٢﴾بعضې حضراتو د میم په فتحه سره هم نقل کړې دې.

---

[1] **مسلك الشافعي**:- اولنی دوه قسمونه په اتفاق سره د رخصت سبب دې. او دریم قسم زمونږ په نیز د رخصت سبب دې.په زیربحث مسئله کښې دامام شافعی رحمه الله په نیز دریم قسم سبب نه دې.

**تاریخ فرضیة الجمعة**> کله چه نبی ﷺ د مکې نه هجرت اوکړلو.او مدینې منورې طرف ته ئې تشریف یوړلو.نو هغوی په قباء کښې دننه د عمرو بن عوف رضی الله عنه په محله کښې څوارلس شپې قیام کړې وو.هم په دې دوران کښې هغوی ﷺ دیو جومات بنیاد کیخودو.چه ورته په اسلام کښې د ټولو نه اولنې جومات ونیلې شي.چه قران حکیم ترې نه په ﴿لَمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ﴾ (الآیة) سره تعبیر کړې دې..بیا کله چه نبی ﷺ د قباء نه د مدینې په طرف دجمعې په ورځ روان شو.نو په لاره کښې د سالم بن عوف په محله کښې د جمعې د مانځه وخت راغې.نو نبی ﷺ د سورلۍ نه راکوز شو . په دې جومات کښې ئې د جمعې مونځ اداکړو.او دا د خوړ په مینځ کښې دې.دا په اسلام کښې د ټولو نه اولنې اداکړې شوې جُمعه وه.په دې جُمعه کښې په سوونو مسلمانان شریك شول.په اسلام کښې د ټولو نه د اولنۍ جمعې،او خطبې پوره تفصیل اصح السیر،سیرت مصطفی شرح سیر کبیر کښې اوګورئ .

**الشروط المتعلقة بالمصلي لفرضیة الجمعة**>دجمعې د فرضیت دولس شرطونه دی.شپږ شرطونه خو داسې دی.چه د هغې د ذات په مونځګذار کښې وجود ضروری دې. ① آزاد وی.په غلام جُمعه فرض نه ده② سړې وی. په ښځه فرض نه ده③ مقیم وی.په مسافر فرض نه ده④ تندرست وی. یعنی داسې بیمارنه وی چه په جُمعه کښې شرکت د تکلیف سبب وی⑤د پښو سلامتیا ⑥ د سترګو سلامتیا ، په شَل او نابینا باندې فرض نه ده.

**الشروط المتعلقة بذات المصلي**>شپږ شرطونه داسې دی.چه د هغې تعلق د مونځ کونکی د ذات سره نه دې. ①ښار② جومات ③ بادشاه ④ وخت⑤ خطبه ⑥ عام اجازت

**د جُمعې د صحت شرطونه**

| لَا تَصِحُّ الْجُمُعَةُ إِلَّا فِي مِصْرٍ جَامِعٍ أَوْفِي مُصَلَّى الْمِصْرِجُمعه نه صحیح کیږی مګر په جامع ښارکښې یا دښار په فناء کښې وَلَا تَجُوزُ فِي الْقُرَىٰ اوجُمعه په کلی کښې جائزنه ده |
|---|

**حل اللغة** >①لاتصح،صح صحیحًا (ض): صحیح کیدل ②مصر جمع امصار: ښار ③لاتجوز،جاز جوازًا (ن): جائز کیدل ④قری واحد قریة: کلی]

**تشریح**> **صلاة الجمعة في القریة**>صورت دمسئلې دادې.چه دجمعې مونځ په ښار او په فناء دښار دواړو ځایونو کښې جائز دې. البته په کلی کښې جائزنه دې.([1])

**دلیله** > دلیل دنبی ﷺ قول [لاجمعة ولاتشریق]([2]) حدیث دې.یعنی دجمعې مونځ، تکبیرات تشریق،وړوکې اختر،او لوې اختر صرف په ښارکښې جائزدې.دا قول علامه مرغینانی رحمه الله دنبی ﷺ قول ګڼلې دې.خو صحیح خبره داده.چه دا دنبی ﷺ قول نه دې.بلکه د حضرت علی رضی الله عنه قول دې لکه

---

[1] ، امام مالك اوامام شافعي رحمهما الله په کلی کښې هم دجمعې د جواز قائلین دی.امام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی.چه په کوم کلی کښې څلویښت آزاد مقیم خلق آباد وی.د خانه بدوشو پشان دګرمۍ اویخنۍ په موسم کښې کډې نه اوړی. نو په دوی به جُمعه فرض وی.

[2] ، قال الزيلعي رحمه الله غريب مرفوعاوإنما وجدته موقوفاً على علي رضي الله عنه ورواه عبدالرزاق ..وابن أبي شيبة في الصلاة باب من قال لا جمعة ولا تشريق إلا في مصر جامع رقم ٥٠٦٠(٤٣٩/١)_

ځنګه چه صاحب د فتح القدير ليکلی دی.چه ابن ابی شيبه دا قول په حضرت علی رضی الله عنه باندې موقوف کړې دې.

**شرائط د صحت ادا، رومبی شرط سلطان دی**

| وَلَا تَجُوْزُ إِقَامَتُهَا إِلَّا لِلسُّلْطَانِ اوجُمعه قائمول جائزنه دی.مګردخليفه دپاره أَوْلِمَنْ أَمَرَهُ السُّلْطَانُ يادهغه چا دپاره چې خليفه ورته اجازت ورکړې وی. |
|---|

**حل اللغة** ۞ ①لاتجوز، جاز جوازا (ن): جائز کيدل ②اقامة: قائم کول ③امره، امر امرا (ن): حکم ورکول

**تشريح** ۞ **شرطية الإمام لإقامة الجمعة** ۞ ①دجمعې اداکولو دپاره دسلطان وجود هم شرط دې.سلطان هغه والی وی.چه دده نه پورته بل والی نه وی.لکه خليفه يا هغه سړې چه هغه ته سلطان حکم او اجازت ورکړې وی.لکه امير، قاضی يا خطيب، په دې شرط چه دوی ته دجمعې قائمولو اجازت وی. (1)

**دليله** ۞ دليل دادې.چه جُمعه يو عظيم جماعت سره اداکولې شی.ځکه چه دا جامع الجماعات دې. او حال دادې.چه کله په وړاندې کيدوکښې جګړه پيښيږی. ①يو وائی چه زه به امامت کوم.او بل وائی چه زه به امامت کوم. ②اوکله په وړاندې کولوکښې هم جګړه واقع کيږی.يوه ډله وائی چه مونږ فلانکې بزرګ امام کوو.او دويمه ډله وائی چه نه،بلکه فلانکې به امام کوو.اوکله د تقديم او د تقدم نه علاوه په بله خبره کښې جګړه پيښيږی. ③مثلا څه خلق وائی چه زمونږ په جومات کښې دې جُمعه ادا کړې شی. ④اودڅه خلقو رائې ددې خلاف وی.څه وائی چه زر دې ادا کړې شی.اوڅه روستو کول غواړی.نود مجمع عظيم په دې اختلاف سره شيطان ته د فتنې اچولو ښه موقع ملاويږی.په دې وجه مونږ وايو.چه دجمعې اداکولو دپاره دخليفه يا دده نائب وجود ضروری دې.خيلفه که عادل وی اوکه ظالم،

**د جمعې د مانځه دپاره د وخت شرطيت**

| وَمِنْ شَرَائِطِهَا الْوَقْتُ اودجمعې په شرائطوکښې يو وخت دې فَتَصِحُّ فِي وَقْتِ الظُّهْرِ پس جُمعه به د ماسپخين په وخت کښې صحيح کيږی وَلَا تَصِحُّ بَعْدَهُ او د ماسپخين د وخت نه پس به نه صحيح کيږی |
|---|

**حل اللغة** ۞ ①فتصح، صح، صحيحا (ض): صحيح کيدل

**تشريح** ۞ **شرطية الوقت للجمعة** ۞ دجمعې د شرائطو نه وخت هم دې. يعنی دجمعې مونځ د ماسپخين په وخت کښې صحيح دې.

**دلائله** ۞ ①دليل دادې چه نبیﷺ مصعب بن عمير رضی الله عنه کله مدينې منورې ته اوليګلو. نو فرمائيلی ئې وو[اذا مالت الشمس فصل بالناس الجمعة] يعنی هرکله چه نمر زائله شی.نوخلقو ته دجمعې مونځ اوکړه.د

---

(1) حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دجمعې اداکولو دپاره د سلطان يا دده د نائب کيدل شرط نه دی.(عنايه)

بخاری روایت دے [عن انس کان النبی ﷺ یصلی الجمعة حین تمیل الشمس] (١) دحضرت انس رضي الله عنه نه مروی دی.چه رسول خدا ﷺ چه به کله نمر زوال اوکړو دجمعې مونځ به ئې کولو.

② په مسلم کښې دی [عن سلمة بن الاکوع رضي الله عنه کنا نجمع مع رسول الله ﷺ اذا زالت الشمس] یعنی مونږ خلقو به دجمعې مونځ کولو کله چه به نمرزائله شو.

**د جمعې دپاره د خطبې شرطیت**

| وَمِنْ شَرَائِطِهَا الْخُطْبَةُ اودجمعې په شرائطوکښې خطبه ده. |
|---|

**تشریح**> **شرطية الخطبة للجمعة**> دجمعې یوشرط خطبه دې.دخطبې نه بغیر دجمعې مونځ نه کیږی.

**دليله**> دلیل دادے چه بانی د شریعت مطهره ﷺ په خپل ژوند کښې هیڅ یوه جمعه بغیر د خطبې نه نه ده کړې.که چرے خطبه دجمعې په شرائطوکښې نه وې.نو د بیان جواز دپاره به یوځل نبی ﷺ خطبه ضرور پریخودے وه.دجمعې خطبه دجمعې دمونځ نه مخکښې او د زوال نه پس واجب ده.(٢)

| قَبْلَ الصَّلَاةِ او خطبه د جُمعې د مونځ نه مخکښې شرط دې |
|---|

**تشریح**> **وقت الخطبة**> اوکه دجمعې مونځ نه پس یا د زوال نه مخکښې ئې اوونیله.نوجائز نه ده.

**دليله**> دلیل دادې.چه جُمعه د ماسپخین قائم مقام خلاف قیاس ده.اوسنت هم په دې طریقه وارد شوې دې.چه جُمعه په خطبےسره مقید ده.لکه څنګه چه حدیث کښې راغلی دی.چه رسول خدا ﷺ هیڅ یوه جُمعه بغیر د خطبې نه نه ده کړې.(٣)او قاعده ده چه کوم څیزخلاف قیاس ثابت وی.هغه د خپل مورد سره خاص وی.نودجمعې مشروعیت به هم په دې طریقه وی.خطبه به دمونځ نه مخکښې وئیلےشی.

| يَخْطُبُ الْإِمَامُ خُطْبَتَيْنِ او دوه خطبې دے وائی، يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا دواړوخطبو په ما بینځ کښې به بِقَعْدَةٍ په ناستې سره جدائی راولی |
|---|

**تشریح**> **وجوب الخطبتين**> ابوالحسین قدوری رحمه الله فرمانی.چه دوه خطبې واجب دی.د دواړو په منځ کښې به د درې آیاتونو په مقدار ناستې سره فصل کوی.

---

(١) قال الزيلعي رحمه الله غريب وخرجت في تاليفي سنن الصلاة لوقت الجمعة عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الْجُمُعَةَ حِينَ تَمِيلُ الشَّمْسُ كذا في البخاري في الجمعة باب وقت الجمعة إذا زالت الشمس رقم ٨٥٣)_

(٢) كما خرجت في ،،سنن الصلاة،، لشرطية الخطبة(عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْمَلَائِكَةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلَى أَبْوَابِ الْمَسَاجِدِ يَكْتُبُونَ النَّاسَ عَلَى مَنَازِلِهِمْ جَاءَ فُلَانٌ مِنْ سَاعَةِ كَذَا جَاءَ فُلَانٌ مِنْ سَاعَةِ كَذَا جَاءَ فُلَانٌ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ جَاءَ فُلَانٌ فَأَدْرَكَ الصَّلَاةَ وَلَمْ يُدْرِكِ الْجُمُعَةَ إِذَا لَمْ يُدْرِكِ الْخُطْبَةَ) رواه احمد في مسندالمكثرين الباقي المسندالسابق رقم ٨١٦٧ رجاله ثقات إلا على بن زيد وأوس بن خالد فإنهما ضعيفان )_

(٣) قال الزيلعي رحمه الله يؤخذ هذا من حديث السائب بن يزيد رضي الله عنه رواه البخاري (أى في الجمعة باب ٢١، رقم ٩١٢، ٩١٣، ٩١٥) قال كان الأذان على عهد رسول الله ﷺ وأبي بكر وعمر يوم الجمعة حين يجلس الإمام ،فلما كان عثمان رضي الله عنه وكثر الناس أمر بالأذان الثاني على الزوراء) ووجه ان الأذن لا يكون إلا قبل الصلاة فإذا كان الأذان حين الإمام على المنبر للخطبة دل على أن الصلاة بعدالخطبة كذا في نصب الراية ٢/٢٠٤)_

**دليله** هم په دے توارث راروان دي.يعنی د بزرگانو نه نسل په نسل هم دغه شان راتلل منقول دی.([1])
**حکم الجلسة بين الخطبتين** دا قعده شرط نه ده.بلکه د استراحت دپاره ده.([2])

**دليله** دليل د جابربن سمره رضي الله عنه حديث دے [ان النبي ﷺ كان يخطب قائما خطبة واحدة فلما اسن جعلها خطبتين يجلس بينهما جلسة] يعنی نبی ﷺ به په ولاړه يوه خطبه ونيله ، هرکله چه هغوی بوډا توب ته اورسيدل . نونبی ﷺ به دوه خطبے ونيلے په دې دواړوکښې به ئې جلسه کوله.دے نه معلومه شوه چه په يوه خطبه باندې اکتفاء کول جائزدی.

## په خطبه کښې د قيام حکم

| وَيَخْطُبُ قَائِمًا عَلَى طَهَارَةٍ اوخطبه دے په طهارت سره په ولاړه وائي |
|---|

**حل اللغة** ①يخطب، خطب، خطبة : تقريركول ،وعظ کول، د حاضرين په وړاندې خطبه لوستل ②قائمًا: په ولاړه

**تشريح** **حكم القيام في الخطبة** ①صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه خطبه دے په ولاړه په طهارت سره اووئيلے شی.په خطبه کښې قيام زمونږ په نيز سنت دې

**دليله** د قيام في الخطبة دپاره دليل دا حديث دې عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ قَائِمًا ثُمَّ يَقْعُدُ ثُمَّ يَقُومُ كَمَا تَفْعَلُونَ الْآنَ([3])

## په خطبه کښې په ذکر باندې د اکتفاء حکم

| فَإِنِ اقْتَصَرَ عَلَى ذِكْرِ اللهِ کہ خطيب په ذکرالله باندې اکتفاء وکړه جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نودابوحنيفه رحمه الله په نيزجائز ده |
|---|

**حل اللغة** ① اقتصر، اقتصر اقتصاراً: قصر کول ②جاز، جاز جوازاً (ن): جائزکيدل

**تشريح** **قدرالخطبة** دخطبه په مقدارکښې په خپله د احنافو عالمانو رحمهم الله اختلاف دی. ①دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په نيزکه دخطبے په اراده صرف "الحمدلله" اووائی يا "سبحان الله" اووائی،يا "لا اله الا الله" اووائی.نو جائز ده.او که د انتوشی په وجه خطيب "الحمدلله" اووائی يا د تعجب په وجه "سبحان الله" اووائی.نو په اتفاق سره خطبه جائز نه ده.[4]

---

[1] ) وخرجت للفصل بين الخطبتين في ،،سنن الصلاة عَنْ سِمَاكٍ قَالَ أَنْبَأَنِي جَابِرُ بْنُ سَمُرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَخْطُبُ قَائِمًا ثُمَّ يَجْلِسُ ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ قَائِمًا فَمَنْ نَبَّأَكَ أَنَّهُ كَانَ يَخْطُبُ جَالِسًا فَقَدْ كَذَبَ فَقَدْ وَاللهِ صَلَّيْتُ مَعَهُ أَكْثَرَ مِنْ أَلْفَيْ صَلَاةٍ) مسلم في الجمعة باب ذكر الخطبتين قبل الصلاة وما فيهما من الجلسة رقم ٢٤٢٧)۔

[2] )په دې مسئله کښې دا قعده دامام شافعی رحمه الله په نيز شرط ده.تردے چه ددوی په نيز په يوه خطبه باندې اکتفاء کول جائز نه دی.

[3] ) رواه البخاري في الجمعة باب الخطبة قائماً رقم ٨٦٩)۔

[4] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٥٩٨\١) والهندية (١٤٦\١) نقلاً عن القول الراجح (١٤٢\١)۔

**دلائله** ﴿ ①د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل د باري تعالى قول ﴿فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ (الآية).په دې طريقه چه دټولو مفسرينو رحمهم الله په نيز د ذكرالله نه خطبه مراد ده.او په دې كښې دقليل اوكثير څه تفصيل هم نشته.دے نه ثابته شوه.چه مطلقاً به په ذكرالله سره خواه كه قليل وى اوكه كثير واجبه خطبه ادا شى.

②دحضرت عثمان رضي الله عنه حال مروى دې.دخليفه جوړيدلو نه پس چه كله په ورومبى خل دجمعې اداكولو دپاره منبر ته اوختلو اوالحمدلله ئې اووئيله.نو ددوى ژبه بنده شوه.دوى د منبر نه راكوز شول.اوخلقو ته ئې دجمعې مونځ اوكړو.(١) په دغه وخت صحابه عالمان رضي الله عنهم هم موجود وو.خو چا هم دحضرت عثمان رضي الله عنه په دے فعل باندې نكير او نه اوكړلو .نو د صحابو رضي الله عنهم د سكوتي اجماع نه هم ثابت شو.چه د الله په ذكر باندې اكتفاء كولوسره خطبه جائز ده .

③ هم دغه وجه ده.چه نبي ﷺ هغه سړى ته چاچه [من يطع الله ورسوله فقد رشد ومن يعصهما فقد غوى] اوئيل.[بئس الخطيب انت] فرمائيلي وو.اوګورئ په دومره مقدار كلام كولوسره ئې ده ته خطيب اوونيلي.دے نه معلومه شوه.چه دخطبې دپاره طويل ذكر ضرورى نه دې.(فتح القدير)

| وَقَالَا: لَابُدَّ مِنْ ذِكْرٍ طَوِيلٍ يُسَمَّى خُطْبَةً اوصاحبينو رحمهما الله فرمائلى دى.چې طويل ذكر چې هغې ته خطبه وئيلےشى ،ضرورى دې |
|---|

**تشريح** ﴿ صاحبين رحمهما الله فرمائى چه دومره قدرې اوږدوالے ضرورى دې.چه عادتًا عرفًا ورته خطبه وئيلےشى.

**الأقوال الثلاثة في الخطبة المتعارفة** ﴿ ①متعارفه خطبه داده.چه خطيب د الله حمد بيان كړى.په رسول ﷺ باندې درود اووائى.اودټولومسلمانانو دپاره دخيردعا، اوكړى.

②دامام كرخى رحمه الله په نيز د متعارف خطبه مقدار درې آياتونه دى.

③اود بعضو په نيز د تشهد مقدار دې.يعنى د"التحيات"نه د "عبده ورسوله" پورې.

**دليلهما** ﴿ دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه واجب خو هغه دې.چه ورته خطبه اووئيلے شى.او "الحمدلله" وئيل يا "سبحان الله" وئيل يا "لااله الا الله" وئيل، ددې نوم خطبه نه دې.كه خطيب صرف داكلمه اووائى .نوواجب خطبه ادا نشوه.

**الجواب عنه** ﴿ خودا قول چه لفظ د"الحمدلله" ته عرفًا خطبه نشى وئيلې.بيشكه دے ته عرفًا خطبه نشى وئيلې.خولغةً ورته خطبه وئيلےشى.

| فَإِنْ خَطَبَ قَاعِدًا أَوْغَيْرَ طَاهِرَةٍ جَازَاو كه په ناسته ئې خطبه او وئيله، يا بغير د طهارت نه.نوهم جائزدى وَيُكْرَهُخودا مكروه دى |
|---|

**تشريح** ﴿ **كراهية الخطبة قاعدًاومحدثًا** ﴿ ابوالحسين قدورى رحمه الله فرمائى كه خطبه ئې په ناسته بغير د طهارته اووئيله .نوجائزده.خومكروه ده.جائز دے وجے ده.چه مقصود دخطبې يعنى وعظ او تذكيرحاصل شو.

---

(١) قال الزيلعي رحمه الله غريب واشتهرفي الكتب أنه قال على المنبر الحمد لله فرتج عليه فقال إن أبا بكر وعمر رضي الله عنهما كانا يعدان لهذا المكان مقالاً فإنكم إلى إمام فعال أحوج منكم إلى إمام قوّال،نصب الراية،٢/٢٠٥)۔

**دليله**>او په ناسته خطبه ورکول مکروه په دې وجه دی.چه د توارث خلاف ده.او بغير د طهارته په دې وجه مکروه ده. چه په دې صورت کښې د مونځ اوخطبې په منځ کښې فصل راځي.ځکه چه بغيرد طهارته د(خطبه)ورکولو په صورت کښې به د خطبې نه پس طهارت حاصلوی.بيا به مونځ شروع کوی. دغه شان به يقيناً فصل راځي.

### د جُمعې دپاره دجماعت شرطيت

| وَمِنْ شَرَائِطِهَا الْجَمَاعَةُاودجُمعې په شرائطوکښې جماعت دې وَأَقَلُّهُمْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله ثَلَاثَةٌ سِوَى الْإِمَامِاودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز تعداد د جماعت د امام نه سوا درې سړی دی وَقَالَا: اثْنَانِ سِوَى الْإِمَامِ اوصاحبين رحمهما الله فرمائی.چې د امام نه علاوه دوه سړی دی |
|---|

**حل اللغة** >①اقل: کم ②ثلاث:درې ③سوی: علاوه

**تشريح**> **المذهبان في كم ينعقد بهم الجماعة وفق قول صاحب القدوري**>جماعت په اتفاق سره د جمعې دپاره شرط دې.البته دافرادو په تعداد کښې اختلاف دې. ①د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د امام نه علاوه کم ازکم درې سړی ضروری دی.هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې. ②او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د امام نه علاوه کم ازکم درې سړی ضروری دی.دا قول د صاحب قدوری رحمه الله د بيان مطابق دې.

**نظرصاحب الهداية في المسلكين**> علامه مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی.چه رشتيا خبره داده.چه د امام نه علاوه د دوو مقتديانو وجود فقط دامام ابويوسف رحمه الله قول دې.او پاتې شو امام محمد رحمه الله نود دوی قول د امام صاحب رحمه الله دقول موافق دې.دعلامه مرغينانی د بيان مطابق حاصل دا شو.چه د طرفينو رحمهما الله په نيز دجمعې دجماعت دپاره د امام نه علاوه درې سړی شرط دې[1].او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د امام نه علاوه دوه سړی هم کافی دی.

**دلائل شرطية الجماعة**> ①دجمعې دپاره جماعت ځکه شرط دې.چه جُمعه د جماعت نه مشتق ده.نوجُمعه بغير د جماعت نه نهٔ متحقق کيږی.لکه ضارب چه د ضرب نه مشتق دې.نو ضارب بغير د ضرب نه نهٔ متحقق کيږی .

② بيشکه جُمعه د اجتماع په معنی دلالت کوی.خو د الله تعالی ارشاد ﴿فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ﴾(الآية) په ذريعه خطاب جمعې سره دې.يعنی دخطاب دپاره دجمع صيغه ذکر شوې ده.اود جمع صحيح اطلاق کم ازکم په دريو باندې کيږی .ځکه چه د دريو شميرد نوم اومعنی دواړوپه اعتبارسره جمع ده.په دې وجه مونږ وايو.چه د امام نه علاوه کم ازکم د درې سړووجود ضروری دې.

③دغه شان د دې حديث نه هم د جمعې د مانځه دپاره د جماعت شرطيت ثابتيږی عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اثْنَانِ فَمَا فَوْقَهُمَا جَمَاعَةٌ[2]

**دليل أبي يوسف رحمه الله** >دجماعت دعدد په سلسله کښې د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه دجمعې لغوی معنی د جمع کيدو ده.او په دوو کښې د اجتماع معنی موجود ده.په دې طريقه چه په دې کښې

---

[1] )القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في الكفاية في صدر فتح القدير(۲\۳۲) وردالمحتار(۱\۶۰۰) والهندية (۱\۱۴۸) والتاتارخانية (۲\۵۷) والفقه الإسلامي (۲\۲۷۵) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۴۳)-

[2] ) أخرجه البخاري في الأذان باب الإثنان فما فوقهما جماعة رقم ۶۱۸_

يو د بل سره جمع كيږي.چه د جمعې لغوي معنى د دوو د شمير نه متحقق ده.نو د امام نه علاوه د دوو سړو وجود د جمعې د جواز دپاره كافي دې.

| يَجْهَرُ الْإِمَامُ بِقِرَاءَتِهِ فِي الرَّكْعَتَيْنِ او جهر به كوي امام په قراءت خپل سره په دوو ركعتونو كښې وَلَيْسَ فِيهِمَا قِرَاءَةُ سُورَةٍ بِعَيْنِهَا اونشته په دې دواړو ركعتونو كښې لوستل د يو سورت معين |
|---|

**تشريح>** په دې عبارت كښې صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي چې د جمعې په دوؤ ركعتونو كښې به امام قراءت په زوره او جهر سره لولي.

**دليله>** استخلف مروان ابا هريرة على المدينة ... قال ابوهريرة رضي الله عنه انى سمعت رسول الله يقرا بهما يوم الجمعة يعنى سورة الجمعة واذا جاءك المنافقون [1] د دې حديث نه معلوميږي.چې د جمعې په مانځه كښې به نبي كريم ﷺ قراءت په جهر سره لوستل كه جهر نه وې نو ابوهريره رضي الله عنه په څنګه دا فرمائيل چه ما به د نبي كريم نه د جمعې په مانځه كښې سورة جمعه او منافقون اوريدل.

**القراءة المستحبة فيهما>** صاحب د قدوريؒ چې دا فرمائيلي چې په دې كښې د معين سورتونه لوستل نشته.د دې مطلب دا دې چې د معين سورتونو لوستل په كښې فرض نه دى.البته ضرور دى.چه نبي كريم ﷺ د جمعې په مانځه كښې سورة جمعه او منافقون لوستل.نو د دې لوستل مستحب دى.

**په كومو افرادو باندې جُمعه فرض نه ده**

| وَلَا تَجِبُ الْجُمُعَةُ اوجُمعه واجب نه ده عَلَى مُسَافِرٍ په مسافر باندې وَلَا امْرَأَةٍ او نه په ښځه باندې وَلَا مَرِيضٍ او نه په بيمار باندې وَلَا صَبِيٍّ او نه په ماشوم باندې وَلَا عَبْدٍ او نه په غلام باندې وَلَا أَعْمَى. اونه په ړوند باندې |
|---|

**حل اللغة>** ① لاتجب، وجب وجوبا(ض): واجب كيدل ② مريض: ناجوړه ③ عبد: غلام ④ اعمى: ړوند، نابينا

**تشريح>** **من لاجمعة عليهم>** د جمعې اداكول نه په مسافر باندې واجب دى،نه په ښځه باندې ، نه په بيمار باندې ، نه په غلام باندې او نه په نابينا باندې ،

**دليله>** دليل دادے چه مسافر بيمار او نابينا ته دجمعې په حاضريدو كښې تكليف پېښيږي.او غلام د خپل مالك په خدمت كښې او ښځه دخپل خاوند په خدمت كښې مشغوله وى.نو د دوى نه د تكليف او ضرر لرے كولو په غرض دا حضرات دجمعے حاضريدو نه معذور اوګرځولي شول.

**د معذورو خلقو په جمعه كښې د شركت حكم**

| فَإِنْ حَضَرُوا كه داخلق حاضر شول وَصَلَّوْا مَعَ النَّاسِ او دوى دخلكو سره جُمعه اوكړله أَجْزَأَهُمْ عَنْ فَرْضِ الْوَقْتِ نو ددې وخت د فرضو نه دوى له جُمعه كافي شوه |
|---|

**حل اللغة>** ① حضروا، حضر حضوراً (ن): حاضريدل ② صلو، صلى صلاة : مونځ كول

---

[1] مسلم فصل في قراءة سورة الجمة في صلاة الجمعة )–

**تشريح> صحة أداء جمعة المعذورين>** کوم خلق چه د جمعې ادا کولو نه معذورګڼړلی شوی دی . که دوی جمعه ته حاضرشول.او د خلقو سره ئې د جمعې مونځ اداکړو.نوډ دوی د وخت فرض ادا شو.

**دليله>** دليل دادې.چه ددې خلقو نه دجمعې ساقطيدل دداسې معنې په وجه نه وو.چه په مونځ کښې اومونډلے شي.بلکه ددوی نه حرج او ضرر لرے کولو په غرض دجمعې فرضيت پورته کړې شوېوو.خوچه کله دوی حرج او مشقت برداشت کړو.او په همت سره ئې دجمعې مونځ اداکړو.نو دا خلق د هغې مسافر په شان شول.چاچه دسفر په حالت کښې روژه اونيوله. حالانکه دمشقت د وجے مسافر ته په رمضان المبارك کښې د روژو نه نيولو اجازت وو.نوکه ده روژه اونيوله جائز ده. بلکه افضله ده.ځکه چه ده د مقيم په نسبت زيات مشقت برداشت کړلو.دغه شان که دےخلقو مشقت اوچت کړو.او د جمعې مونځ ئې اوکړو.نو جائزدی.

## خول خول د جُمعې امامت ڪولي شي

| وَيَجُوزُ لِلْمُسَافِرِ وَالْعَبْدِ وَالْمَرِيضِ أَنْ يَؤُمَّ فِي الْجُمُعَةِ اود غلام اومسافر، او بيمار دپاره په جُمعه کښې امام جوړيدل جائزدی |
|---|

**حل اللغة >** ①يجوز،جاز جوازًا (ن): جائز کيدل ②عبد: غلام

**تشريح> صحة إمامة المعذورين في الجمعة>** ①مسئله دا ده.چه مسافر، بيمار او په غلام باندې اګرچه جُمعه فرض نه ده.خو په جُمعه کښې د دوی امام جوړيدل جائزدی.

**دليله >** دليل دادې.چه مسافر،غلام او په بيمار باندې دجمعې نه فرض کيدل د رخصت د وجے وو.يعنې جُمعه په هر يو باندې فرض عين ده.ځکه چه خطاب ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ عام دې.خو مسافر وغيره ته دحرج لرے کولو دپاره په جُمعه کښې دنه حاضريدو اجازت ورکړې شوېدې. خوچه دا خلق دجمعې اداکولو دپاره حاضرشول.او د حرج د ضرر مشقت ئې برداشت کړلو.نودا مونځ به فرض وی نفل به نه وی،لکه چه مونږ بيان کړی دی.نوهرکله چه د مسافر وغيره دجمعےمونځ فرض واقع شو.نوددوی امام جوړيدل هم جائز دی.

په زير بحث مسئله کښې امام زفر رحمه الله فرمائی.چه په دوی کښې دچا هم امام جوړيدل جائزنه دی.

**دليله>** د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه په جُمعه نه فرض کيدوکښې دا درې واړه د نابالغ ماشوم او ښځې په شان دی.نوځنګه چه د ماشوم اوښځې دجمعې امامت جائزنه دې.دغه شان ددوی امامت هم جائزنه دې.

**الجواب عنه >** پاتې شو ماشوم او ښځه باندې قياس نو دا صحيح نه دې.ځکه چه نابالغ ماشوم کښې د امامت اهليت نشته .اود امامت اهليت په کښې ځکه نشته،چه دالله تعالى خطاب ده ته شامل نه دې.نوکله چه ماشوم د امامت اهليت نه لری.نود ده امام جوړول به څنګه درست شي!

**الجواب من القياس على المرأة>** او پاتې شوه ښځه نو په دې کښې دښځو د امامت اهليت شته.خو د سړو د امامت اهليت نشته.اوهرکله چه د سړو د امامت اهليت نشته،نو ښځې ته به د سړو د امامت د جواز حکم هم حاصل نه وی.

**جمعې د مانځه نه وړاندې په کور کښې دماسپخين دمونځ حکم**

وَمَنْ صَلَّى الظُّهْرَفِي مَنْزِلِهٖ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ صَلَاةِ الْإِمَامِ اوچاچې دجمعې په ورځ په خپل مقام باندې د امام دمونځ نه مخکښې د ماسپخين مونځ اوکړو. وَلَاعُذْرَلَهٗ حالانکه ده ته څه عذرهم وو كُرِهَ لَهٗ ذٰلِكَ نودده په حق کښې دا مکروه دې. وَجَازَتْ صَلَاتُهٗ اومونځ نې جائزشو

**حل اللغة** ◄ ①صلى، صلى صلاةً: مونځ کول،دعا کول ②منزل: ځائ مقام ③قبل: وړاندې ④جازت، جاز جوازًا (ن):جائز کيدل

**تشريح** ◄ **صحة أداء الظهر في البيت قبل الجمعة** ◄صورت د مسئلې دا دې. ①که چا دجمعې په ورځ د امام دجمعې مونځ کولو نه مخکښې په خپل کورکښې دماسپخين مونځ اوکړو . حالانکه ده ته څه عذرهم نه وو.نودده دا مونځ جائزشو.خو مکروه دې.

**دلائله** ◄ ① دليل دادې.چه دجمعې په ورځ اصلاً دماسپخين مونځ فرض دې.لکه چه په نورو ورځو کښې دماسپخين مونځ فرض دې.دليل دنبیﷺ قول [اول وقت الظهرحين تزول الشمس ]دې. په دې طريقه چه حديث مطلق دې.دهيڅ ورځې تخصيص نشته.نود نمرد زوال نه پس په ټولو ورځوکښې بغير داستثناء نه دماسپخين وخت دې

② دويم دليل دادې.چه تکليف د قدرت په اندازه وی.لکه چه ارشاد ربانی دے﴿لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا﴾او په دے وخت کښې دننه دمونځ مکلف ،په خپله دماسپخين مونځ اداکولو باندې قادر دې.دجمعې په اداکولو باندې نه دے قادر ،ځکه چه جُمعه په داسې شرائطو باندې موقوف ده.چه په ځانله يوسړی سره نه پوره کيږی.مثلا د امام وجود ،دجماعت کيدل وغيره نو په جمعه مکلف جوول د تکليف مالا يطاق د قبيلےځنے دې.دومره خبره ضرور ده.چه دجمعې په ورځ دجمعې په اداکولو سره دماسپخين مونځ ساقطولو حکم ورکړې شوې دې.نود قدرت باوجود د جمعې نه اعراض کول اود ماسپخين مونځ اداکول جائز ،خو سره د کراهته.

په زيربحث مسئله کښې امام زفر رحمه الله فرمائی.چه جائزنه دې.هم دا د امام مالك او امام شافعی رحمهما الله قول دې.

**دليله** ◄ددې حضراتو دليل دادې.چه دجمعې په ورځ دجمعې مونځ اصلاً فرض دې.او ماسپخين ددې بدل دې.ځکه دجمعې دمونځ په طرف د سعی امر شوې دې. اودکومے پورې چه جمعه فوت شوې نه وی.دماسپخين کولو نه منع کړې شوې ده.نو دجمعې مونځ مامور بالاداء کيدل او د ماسپخين ممنوع کيدل د جمعې د مونځ د فرضيت اصلی کيدو دليل دې.او دا خبره منلے شوې ده.چه دکومے پورې په اصل باندې قدرت وی.نودبدل په طرف رجوع نشی کيدې.نودجمعې په مانځه باندې دقدرت لرلو په صورت کښې د ماسپخين اداکول درست نه دی.

**ځانله د ماسپخين مونځ کونکی جمعې ته حاضريدلی شی**

فَاِنْ بَدَالَهٗ اَنْ يَّحْضُرَ الْجُمُعَةَ بيا که دده په رائې کښې ظاهره شوه چې جمعې ته حاضرشی فَتَوَجَّهَ اِلَيْهَا نوجمعې طرف ته متوجه شو. بَطَلَتْ صَلَاةُ ظُهْرِهٖ عِنْدَ اَبِي حَنِيْفَةَ رحمه الله بِالسَّعْيِ اِلَيْهَا نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدتلوسره دده د ماسپخين مونځ باطل شو وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ لَا تُبْطِلُ حَتّٰى

**يَدْخُلْ مَعَ الْإِمَامِ** او امام ابويوسف رحمه الله او امام محمد رحمهما الله فرمائي چه ترهغې پورې نه باطليږي ترڅو چه امام سره نه وي شامل شوې.

**حل اللغة** ﴿١﴾بدا، بدا بدوا(ف): ښکاره کيدل ﴿٢﴾حضور: حاضريدل ﴿٣﴾فتوجه،توجه توجها: متوجه کيدل ﴿٤﴾بطل، بطل بطلاً (ن): باطل کيدل ﴿٥﴾ سعي: کوشش کول

**تشريح** ﴿ **الصورتان في السعي إلى الجمعة بعد أداء الظهر** ﴿صورت دمسئلې دادې.چه يوسړى د جمعې په ورځ په خپل کورکښې د ماسپخين مونځ اوکړو.په داسې حال کښې چه تر اوسه پورې دجمعې مونځ نه وى ادا شوې.بيا ده ته خيال راغے چه دجمعې په مانځه کښې شرکت پکاردې.په دے اراده دا سړې جامع جومات طرف ته روان شو.نوددې دوه صورتونه دى.

① که د امام سره ئې دجمعې مونځ بيامونندلو.نو دده دماسپخين د مونځ فرضيت باطل شو.خوپه نفلو به بدل شي.

②اوکه چرے دا سړې دجمعې دپاره روان شو.اودا هغه وخت وو.چه امام دجمعې په مانځه کښې وو.خو دده په رسيدو رسيدوکښې امام دجمعې دمانځه نه فارغ شو.اودے سړى دجمعې مونځ د امام سره بيا نه موندلو.

**مذهب ابي حنيفه** ﴿ ① نو په دې باره کښې د امام الهمام قدوة الانام امام اعظم رحمه الله مذهب دادې.چه دکور نه په تلوسره دده دماسپخين مونځ باطل شو.اوس چونکه دده ته دجمعې مونځ ملاؤ نه شو.او ادا شوې دماسپخين مونځ ئې باطل شو.په دې وجه دماسپخين مونځ دے دوباره اوکړى.[1]

**دليله** ﴿دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه سعي يعنى دجمعې دپاره تلل دجمعې په خصائصو کښې دى.ځکه چه جُمعه يوداسې مونځ دې.چه دا هرځائې کښې نشي اداکيدې. بلکه ددې دپاره مخصوص ځائې ضرورى دې.نو بغيرد سعى الى الجُمعه نه دجمعې اداکول ممکن نه دى.نو ثابته شوه.چه سعى الى الجُمعه، دجمعې سره مخصوص ده.اوهرکله چه سعى دجمعې په خصائصو کښې ده.نوسعى الى الجُمعه به دجمعې په مرتبه کښې وى.نو څنګه چه دماسپخين اداکولو نه پس دجمعې په مونځ کښې شريکيدل ماسپخين باطلوى. دغه شان دجمعې دمونځ په طرف سعى کول هم ماسپخين باطلوى.په شرط ددې چه کوم وخت ئې سعى کړې وى.دغه وخت امام دجمعې په مونځ کښې وو.

**مذهب الصاحبين** ﴿اود صاحبينو رحمهما الله مذهب دادې.چه صرف په تلوسره دماسپخين مونځ نه باطليږي. بلکه دجمعې په مانځه کښې په شرکت سره باطليږي.يعنى ددې سړى درسيدلونه مخکښې که امام دجمعې د مانځه نه فارغ شو.نو دده ماسپخين مونځ به باطل نشو.اوکه د امام سره دجمعې په څه حصه کښې شريك شو.نو دده ماسپخين به باطل شي.

**دليلهما** ﴿د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه جمعې ته سعى کول په خپله مقصود نه دې.بلکه دجمعې اداکولو وسيله ده.او د ماسپخين فرض مقصود دې.په دې وجه جمعې ته سعى په نسبت دماسپخين ادنى اوکمتر ده. او قاعده دا ده.چه اعلى د ادنى په وجه نه باطليږي.په دې وجه صرف جمعې ته په

---

[1] القول الراجح هو قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٣٤\٢) وردالمحتار(٦٠٤\١) وهكذا في الهندية نقلاً عن القول الراجح (١٤٥\١)—

سعي باندې د ماسپخين مونځ نه باطليږي . اوجمعه چونکه دماسپخين نه اعلى او اوچته ده .څکه جمعه دماسپخين مونځ باطلوی.

**الجواب عنه** >ددې په خلاف ني كه دجمعې دمانځه نه دفراغت نه پس سعى اوكړى.نو دا سعى ماسپخين نه باطلوی.څکه چه دا سعى دجمعې په مرتبه كښې نه ده.او دجمعې په مرتبه كښې څكه نه ده چه دا د جمعې په طرف سعى نه ده.

**ثمرة الإختلاف بين المذهبين**>د امام صاحب او دصاحبينو رحمهم الله په مينځ كښې ثمره داختلاف به په دې صورت كښې ظاهريږى.چه يوسړى په خپل كوركښې دماسپخين اداكولونه پس دجمعې دپاره هغه وخت لاړو،چه امام دجمعې په مانځه كښې مشغول وو.خو دده د رسيدلو پورې امام دجمعې نه فارغ شو.نود امام صاحب رحمه الله په نيز چونكه سعى الى الجمعه سره ماسپخين باطل شوې دې.په دې وجه دماسپخين اعاده به كوى.او دصاحبينو رحمهم الله په نيز چونكه ماسپخين نه دے باطل شوې.په دې وجه به د ماسپخين اعاده نه كوى.

## د جمعې نه وړاندې په ښار كښې دننه د معذورينو د ماسپخين جماعت كول

| وَيُكْرَهُ أَنْ يُصَلِّيَ الْمَعْذُورُ الظُّهْرَ بِجَمَاعَةٍ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اود معذور دجمعې په ورځ په جماعت سره دماسپخين مونځ اداكول مكروه دى وَكَذٰلِكَ أَهْلُ السِّجْنِ دغه شان د قيديانو هم، |
|---|

**حل اللغة** >①مصر جمع امصار: ښار ②سجن: قيد ، قيدى ③اخلال: خيال كول، كوتاهى كول ④ جامعة: جمع كونكې، يونيورستى ته هم ونيلې شى ⑤يقتدى، اقتدى اقتداءً: اقتداكول، پيروى كول ]

**تشريح**> **كراهة جماعة المعذورين يوم الجمعة**> مسئله داده.چه معذور خلق مثلاً غلام، مسافر،د جمعې په ورځ په ښار كښې دننه دجمعې مونځ نه مخكښې يا وروسته كه په جماعت سره دماسپخين مونځ اوكړى.نودا عمل مكروه دې.هم دغه شان د قيديانو دجمعې په ورځ په جماعت سره دماسپخين مونځ كول مكروه دى.

**دليله**> دجمعې په ورځ ماسپخين په جماعت سره ادكولوكښې په ظاهرى صورت د جمعې معارضه او مقابله معلوميږى.

## په جمعه كښې د امام رالاندې كولو حكم

| وَمَنْ أَدْرَكَ الْإِمَامَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اوچاچې امام دجمعې په ورځ بيا موندلو صَلّٰى مَعَهُ مَا أَدْرَكَ نوده سره دے اوكړى.هغه چې كوم ده اوموندلو وَبَنٰى عَلَيْهِ الْجُمُعَةَ او هم په دے دے جمعه بناء كړى |
|---|

**حل اللغة** >①ادرك، ادرك، ادراكاً: موندل ②صلى، صلى صلاةً: مونځ كول، دعا كول

**تشريح**> **إدراك الإمام في الجمعة**>مسئله داده.كه چا دجمعې په ورځ امام دجمعې په مانځه كښې بياموندلو او ددويم ركعت په ركوع كښې امام سره شريك شو.نو په اتفاق سره دے دا سړې د امام سره دجمعې مونځ ادا كړى.او يو ركعت كوم چه فوت شو.دادے د امام دسلام گرځولونه پس پوره كړى.دده دا مونځ به دجمعې مونځ شمارلے شى.د ماسپخين نشى شمارلې.

**دليله**>دليل دادے چه نبى ﷺ فرمائى [ماادركتم فصلوا وما فاتكم فاقضوا] په حديث كښې دننه دصاحب

حدیث مراددي چه [مافاتكم من صلوة الامام] خکه چه د [ماادركتم فصلوا] معنی ده [من صلوة الامام][1] یعنی د امام دمونځ چه کومه حصه بیامومئ هغه کوئ.اوچه کومه حصه فوت شوه دهغې قضاء راوړئ.یعنی د امام دسلام اړولو نه پس يې کوئ.دا خبره ښکاره ده چه د امام د مونځ کومه حصه فوت شوې ده.هغه جمعه ده.نو مقتدی به هم جمعه کوی.بل مونځ به نه کوی.

**تشهد یا سجده سهو کښې دامام رالاندې کول**

| وَإِنْ أَدْرَكَهُ فِي التَّشَهُّدِ أَوْفِي سُجُودِ السَّهْوِاوكه امام په تشهد یا په سجده سهو کښې بیا مومی.بَنَى عَلَيْهَا الْجُمُعَةَ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَنود شیخینو ﷫ په نیز به په دې باندې دجمعې بناء کوی. |
|---|

**حل اللغة** ⟨① ادرك، ادرك ادراكا: موندل

**تشریح**⟨ **المذهبان في إدراك أقل الجمعة**⟨ ①صورت دمسئلې دادې.که چا امام دجمعې په مانځه کښې په تشهد کښې بیا موندلو.یا ئې په سجده کښې بیا موندلو.نود شیخینو ﷫ په نیز به دا سړې دجمعې مونځ پوره کوی.[2]

**دليلهما** ⟨دشیخینو ﷫ دلیل دادې.چه داسړې په دےحالت کښې دجمعې موندونکے دې.تردے چه ده دپاره دجمعې نیت کول شرط دې.که دجمعې نیت نې اونکړو.نودده اقتداء نه صحیح کیږی،حاصل دا چه په تشهد یا په سجده سهو کښې د امام سره شریك شو.او جُمعه ئې اوموندله.او دجمعې موندونکے هم جُمعه اداکوی.ماسپخین نه ادا کوی، اودجمعې چونکه دوه رکعته دی.خکه به دا سړې دوه رکعته کوی. څلور رکعته به نه کوی،

**تائید منهب الشیخین** ﷫ ⟨دشیخینو ﷫ دمذهب تائید د ابوهریره﷜ ددې حدیث نه هم کیږی. [قال قال رسول الله ﷺ اذا اتيت الصلوة فلا تأتوها تسعون وأتوها وعليكم السكينة فما ادركتم فصلوا وما فاتكم فاتموا وفي لفظ فاقضوا] یعنی چه کله دجمعې مونځ اودریږی.نوهغه طرف ته په منډه مه راځئ.بلکه په آرام او په سکون سره راځئ.نوچه څه تاسو د امام سره اوموندلو،هغه کوئ.اوچه څه فوت شو.دهغې قضا راوړئ.یعنی د امام دسلام اړولو نه پس هغه پوره کوئ.

| وَقَالَ مُحَمَّدٌ ﷫ إِنْ أَدْرَكَ مَعَهُ أَكْثَرَ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِاو امام محمد ﷫ فرمائی.که د امام سره ئې د دویم رکعت اکثره حصه بیا موندله بَنَى عَلَيْهَا الْجُمُعَةَنو په دې به جُمعه بناء کوی وَإِنْ أَدْرَكَ مَعَهُ أَقَلَّهَااوکه د هغه سره ئې د دویم رکعت کمه حصه ئې اوموندله بَنَى عَلَيْهَا الظُّهْرَنو په دې به د ماسپخین بناء اوکړی |
|---|

[1] ) من حديث أبي هريرة ﷜ اخرجه البخارى في الأذان باب ٢، والجمعة باب ١٨ ومسلم في المساجد ومواضع الصلاة رقم ١٥١، ١٥٥ وأبوداود في الصلاة باب ٥٤ رقم ٥٧٢ والترمذى في الصلاة باب ١٢٧ والنسائي في الإمامة باب ٢ وابن ماجه في المساجد باب ١٤ والدارمى في الصلاة باب ٥٩ ومالك في الصلاة رقم ٤ واحمد في المسند (٢/٢٣٨)۔

[2] ) القول الراجح هو قول الشيخين ﷫ كذا في فتح القدير(٣٦\٢) وردالمحتار(٦٠٥\١) وبدائع الصنائع (٢٦٧\١) والهندية (١٤٩\١) والفقه الإسلامى (٢٧٣\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٤٧\١)۔

**تشریح** ﴾ په زیربحث مسئله کښې امام محمد رحمه الله فرمائی که ده اکثره حصه د دویم رکعت بیاموندله.مثلاً ددویم رکعت په رکوع کښې امام سره شریك شو.نو د جمعې مونځ دې پوره کړي.اوکه ددویم رکعت اکثره حصه ئې اونه موندله.مثلاً د رکوع نه پس امام سره شریك شو. نود ماسپخین مونځ دې پوره کړي.هم دا قول د امام مالك او امام شافعي رحمهما الله دي.

**دليله** ﴾ د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه په تشهد يا په سجده سهوه کښې امام سره شريکيدونکے د ده مونځ من وجه جُمعه ده او من وجه ماسپخين دې.جمعه خوځکه ده چه د جمعې نيت کول ضروري دې.او ماسپخين ځکه چه دده په حق کښې د جمعې بعضې شرطونه مثلاًدجماعت فوت کيدل،ځکه چه د امام دسلام اړولو نه پس دا سړې يواځې د جمعې مونځ اداکوي.پس ددې سړي مونځ چه هرکله په يو اعتبارسره جمعه ده او په بل اعتبارسره ماسپخين،نو د ماسپخين اعتبارسره به څلور رکعته کوي.او د جمعې په اعتبار سره په دوو رکعتو په يقين سره کيني.اوچونکه په آخرو دوو رکعتوکښې د نفلو احتمال دې. په دې وجه به دے کښې دسورة فاتحه نه علاوه دسورت قرات هم کوي.

**الجواب عنه** ﴾ د امام محمد رحمه الله د احتياط په نظر سره جُمعه او ماسپخين په دواړو باندې عمل کول.نو دا غلط دې.ځکه چه جُمعه او ماسپخين دوه مختلف مونځونه دی.نو په دې کښې د يود بل په تحريمه باندې بناء کول څنګه درست کيدے شي.

**تائيد مذهبه** ﴾د امام محمد رحمه الله دمذهب تائيد شارح د نقايه ملاعلي قاري رحمه الله پيش کړي دابوهريره رضي الله عنه حديث نه هم کيږي.دحديث الفاظ دادي [من ادرك الركوع من الركعة الاخيرة يوم الجمعة فليضف اليها اخرى ومن لم يدرك الركوع من ركعة الاخيرة فليصل الظهر اربعاً] يعنې چاچه د جمعې په ورځ د دويم رکعت رکوع بياموندله نو دےسره دے دويم رکعت ملاؤ کړي.او چاچه د دويم رکعت رکوع او نه موندله.نو د ماسپخين څلور رکعته دے اوکړي.

**الجواب عنه** ﴾ خود دې حديث جواب دا دې چه دا محدثينو ضعيف ګرځولې دې.(عنايه)

**د خطبې دپاره د امام د راوتلو نه پس د نفلو حکم**

| وَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اوچې کله دجمعې په ورځ امام راوځي تَرَكَ النَّاسُ الصَّلَاةَ وَالْكَلَامَ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ نوخلق دے مونځ هم پريږدي.اوخبرے هم،تردےچې امام د خطبے نه فارغ شي |
|---|

**حل اللغة** ﴾①خرج، خرج خروجاً(ن): وتل ②ترك، ترك تركاً (ن): پريخودل ③يفرغ،فرغ فراغة (ن): اوزګاريدل

**تشريح** ﴾ **الكلام بعد خروج الإمام**﴾ ①مسئله داده.چه دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د جمعې په ورځ چه کله امام د خطبے ورکولودپاره دخپلے حجرے نه راوځي.او منبر طرف ته روان شي.نوخلق به نه نفل کوي اونه سنت.اونه به خبرے اترے کوي.تردے چه امام دخطبے نه فارغ شي.البته دقضاء مونځ اجازت شته.دغه شان د اصح قول په بناء باندې دتسبيح ونيلو اجازت هم شته.بعضو ونيلي دی.چه مطلقاً کلام ممنوع دې.خواه که تسبيح وي يا غير تسبيح وي.[1]

---

[1] ) القول الراجح هو قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٣٧\٢) والدرالمختار(٦٠٦\١) وشرح الوقاية (٢٠١\١) نقلاً عن القول الراجح (١٤٨\١)۔

**دليله** ﴿ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل د ابن عمر او ابن عباس رضی الله عنهما روايت دے [النبي ﷺ قال اذا خرج الامام فلاصلوة ولا كلام] [1] په دې حديث كښې دخطبه نه مخكښې او د خطبه نه پس هيڅ تفصيل نشته .په دې وجه د امام دخطبې د پاره دحجرے نه راوتلو نه پس مونځ او خبرے ممنوع گرځولې شوی دی. دخطبې شروع كولو نه مخكښې هم او دخطبې ختميدو نه پس د تكبير نه مخكښې هم د مونځ او خبرو ممانعت شوېدې.

وَقَالَا: لَابَأْسَ بِأَنْ يَتَكَلَّمَ اوصاحبينو رحمهما الله وئيلی دی.چې كله امام بهر ته راوځی.نودخطبه شروع كولو نه مخكښې په كلام كولو كښې څه باك نسته مَالَمْ يَبْدَأْ بِالْخُطْبَةِ ترڅو هغه شروع نه وی كړې په خطبه كښې

**حل اللغة** ﴿ ① لاباس: هيڅ باك نشته ② يخطب، خطب خطبة (ن): خطبه وركول ③ تمتد، امتد امتداداً: اوږديدل ④ فاشبه، اشبه اشباهًا: په شان كيدل ]

**تشريح** ﴿ صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه د خطبې شروع كيدونه مخكښې اودخطبې نه پس د تكبير نه مخكښې په كلام اوخبرو كولو كښې هيڅ باك نشته .البته په دې اوقاتو كښې د مونځ كولو اجازت نشته.

**دليلهما** ﴿ دصاحبين رحمهما الله دليل دا دې.چه كلام خو فی نفسه مباح دې.خود خطبې په وخت كلام كول په خطبه كښې خلل پيداكوی.حالانكه دخطبې اوريدل فرض دی.نوچونكه كلام په فرض استماع (اوريدو) كښې خلل پيدا كوی.څكه عين د خطبې په وخت كلام كول ممنوع اوگرځولې شو.اوچونكه د خطبې شروع كولونه مخكښې اودخطبې ختميدو نه پس د تكبير نه مخكښې د هيڅ څيز اوريدل فرض نه دی.په دې وجه دے دواړو وختونو كښې كلام خلل نه پيداكوی.او چه خلل پيدا نه پيدا كيږی.نو په دې دواړو وختونو كښې كلام كول هم ممنوع نه دی.

**وجه عدم جوازالصلاة عندهما** ﴿ پاتې شودا چه په دې دواړو وختونوكښې دمونځ كولو اجازت ولې نشته .نوددې وجه دا ده.چه مونځ كله اوږديږی ،مثلاً امام دحجرے نه راوځی.او منبر طرف ته روان شی.چا په دغه وخت كښې سنت شروع كړل.نو امام منبر ته اوختلو او خطبه ئې شروع كړه.او ددې صاحب سنت ختم نشو.نو په دې صورت كښې خطبه اوريدلوكښې خلل واقع شو.څكه مونږه په دې دواړو وختونوكښې دمونځ كولو اجازت نه دے وركړې.البته د خبرو كولو اجازت شته.

**الجواب عنه** ﴿ خو د دې نه جواب دا دې.چه دمونځ په شان كله كلام هم اوږديږی.څنگه چه د خطبې شروع كيدو نه مخكښې اود خطبې ختميدو نه پس،د تكبير نه مخكښې مونځ مكروه دې.دغه شان په هغه وختونو كښې كلام كول هم مكروه دې.

**په اولنی اذان د خرڅولو او اخستلو ممانعت**

وَإِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُونَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ الْأَذَانَ الْأَوَّلَ اوچې كله د جمعې په ورځ اذان كونكښې ړومبے اذان

---

[1] غريبه الزيلعی رحمه الله مرفوعاً وقال البيهقی رفعه وهم فاحش إنما هو من كلام الزهری إنتهی ثم قال ورواه مالك في المؤطا (أی برواية الشيبانی (ص،۸۷) رقم (۲۲۸) عن الزهری قال خروجه يقطع الصلاة وكلامه يقطع الصلاة،نصب الراية ۲/۲۱۰)۔

اوکړی. تَرَكَ النَّاسُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ نوخلق دے اخستل خرڅول پريږدی وَتَوَجَّهُوا إِلَى الْجُمُعَةِ اودجمعې طرف ته دے متوجه شی

**حل اللغة** ﴿①اذن، اذن تاذينا: اذان ورکول ②ترك،ترك ترکا(ن): پريخودل ③بيع: خرڅول ④توجهوا، توجه توجها: متوجه کيدل

**تشريح﴾ حرمة البيع بالأذان** ﴿مسئله دا ده.چه اذان کونکی چه کله رومبے اذان اوکړی.نوخلق دے اخستل خرڅول پريږدی.اوجمعې طرف ته دے متوجه شی.

**دليله﴾** دليل د الله تعالى ارشاد دے: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾

فَإِذَا صَعِدَ الْإِمَامُ الْمِنْبَرَ جَلَسَ اوچې کله امام منبرته اوخيژی. اوکينی وَأَذَّنَ الْمُؤَذِّنُونَ بَيْنَ يَدَيِ الْمِنْبَرِ نواذان کونکی کښې دے دمنبر مخې ته اذان ورکړی. ثم يخطب الامام واذافرغ من خطبة اقاموا الصلوة بيا به امام خطبه اووائی اوکله چه د خطبې نه فارغ شی نو مونځ به اوکړی.

**تشريح﴾ وجه صيغة الجمع المؤذنون في القدوری**﴿صاحب د قدوری رحمہ اللہ مؤذن دجمع په صيغه سره ذکر کړې دې.ځکه چه دجمعې د اذان په سلسله کښې عادت دا وو.چه ډيرو مؤذنينو به اذان کولو.چه ددوی آوازونه دښار اطرافو او اړخونو ته اورسی.

**تشريح﴾ حرمة البيع بالأذان الثاني**﴿پاتې شوه داخبره چه هغه کوم يو اذان دې.چه دهغې نه پس خرڅول اخستل حرام اوسعی واجبيږی. نو په دې باره کښې اختلاف دې.① امام طحاوی رحمہ اللہ فرمائی چه د بيع حرمت اوسعی الی الجمعه په وجوب کښې هغه اذان معتبردې.کوم چه د امام دحجرے نه د راوتلو نه پس د منبر مخې ته کيږی.

**دليله﴾**ځکه چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې اوپه عهد صديقی او په عهد فاروقی کښې دجمعې دپاره هم دا اذان اصل وو.کله چه د دريم خليفه حضرت عثمان رضی اللہ عنہ په زمانه کښې خلق زيات شول. نو اولنے اذان ايجاد کړې شو.[1] نو په قرآن پاك کښې چه دکومې نداء ذکرشوېدې.دهغې نه اذان ثانی مراد دې. اذان اول مراد نه دے،

**حرمة البيع بالأذان الأول﴾** ②حسن ابن زياد رحمہ اللہ د ابوحنيفه رحمہ اللہ نه روايت کړې دې.فرمائی چه حرمت د بيع اوسعی الی الجمعه کښې اولنے اذان معتبردې.

**دليله﴾**دليل دادې.که يو سړې په دويم اذان باندې اخستل خرڅول پريږدی.اوسعی الی الجمعه اوکړی .نو د جمعې نه مخکښې سنت به فوت شی.د خطبې اوريدل به فوت شی.اوکه کور د جامع مسجد نه لرے وی.نوجمعه فوت کيدےشی.په دې وجه اولنے اذان معتبردې.په شرط ددې چه د زوال نه پس اوکړې شی.ځکه چه مقصد د اعلان ددې نه حاصل شوېدې.

..........

[1] ) من حديث سائب بن يزيد رضی اللہ عنہ اخرجه البخاری في الجمعة باب ۲۱ وأبوداود في الصلاة باب ۲۱۹ رقم ۱۰۸۷ والترمذی في الجمعة باب ۲ وابن ماجه في الإقامة باب ۹۷ رقم (۱۱۳۵)۔

د اخترونو د مونځونو بیان

# بَابُ صَلٰوةِ الْعِيْدَيْنِ

**ترجمه>** (دا) باب د وړوکي اودلوی اختر (د احکامو) په بیان کښې دې.

**تشریح> الربط بما قبله>** د جمعې اوداخترونوپه مونځ کښې مناسبت دادې.چونکه دواړه د ورځې مونځونه دي. نودواړه په کثیر جماعت سره ادا کولې شي.په دواړو کښې دننه جهری قرات کولی‌شي. اوهم هغه شان چه کوم شرطونه په جُمعه کښې دي.هم هغه شرطونه داخترونو دي.سوا دخطبې نه.ځکه چه خطبه دجمعې دمونځ دپاره شرط ده.خود اخترونو دپاره شرط نه ده.او په چاچه جُمعه واجب وي .په هغه باندې د اخترونو مونځ هم واجب دې.

**الوجهان لتسمية العيد>** ①داختر نوم عید په دې وجه کیخودې‌شو.چه په دې کښې الله تعالی په خپلو بنده ګانو باندې د احسان اعاده فرمائي. ②دویمه وجه داچه دعاد یعود معنی عود کول او واپس کیدل دي. چونکه دا مقدسه ورځ هرکال عود کوي او راواپس کیږي.په دې وجه ددې نوم ،،عید،، (اختر) کیخودې شو،

**وجه تقديم الجمعة على العيدين>** ①چونکه جُمعه د فرضیت په وجه سره قوي ده.او د اخترونو مونځ د عدم فرضیت په وجه ددې په مقابله کښې اضعف دې.په دې وجه دجمعې احکام مخکښې ذکرشول.اود اخترونو احکام روسته. ②یا دا چه جُمعه کثیرالوقوع ده.په دې وجه جُمعه د اخترونو د باب نه مقدم کړې شوې ده.

**وجه إظهار يوم العيدين>** ① په هرقوم کښې یوه نه یوه ورځ داسې ضرور وي.چه په هغې کښې عام طورخوشحالي کولی‌شي.ښائسته کپړې اغوستےشي.او ښه خوراکونه خوړلی شي.لکه چه په حدیث کښې دي [لكل قوم عيد وهذا عيدنا] د هرقوم یو اختر وي او دا زمونږ اختر دې. ② داهغه ورځ ده چه کله خلق دخپلو روژو نه فارغ شي او یو قسم زکاة ادا کوي.نو په دغه ورځ دوي دپاره دوه قسمه خوشحالئ جمع کیږي.طبعي او عقلي،طبعي خوشي خوځکه حاصلیږي.چه د روژې دسخت عبادت نه فارغ شي.اومحتاجو ته صدقه ملاویږي.اوعقلي خوشحالي داده.چه الله تعالی دفرض عبادت اداکولو دوی ته توفیق ورکړو.او ددوی اهل وعیال ته دے کاله پورې د باقي ساتلو په دوی باندې انعام اوکړو.په دې وجه ددې خوشحالیانو د اظهار حکم دې.

**أصل وجوبها>** دوړوکي اخترمونځ د ټولونه اول په اوله هجری کښې شوې دې.(شرح نقایه) داخترونو دمونځ په مشروعیت کښې اصل د ابوداؤد روایت دے [عن انس رضي الله عنه قال قدم رسول الله ﷺ المدينة ولهم يومان يلعبون فيهما فقال ما هذان اليومان قالوا كنا نلعب فيهما في الجاهلية فقال رسول الله ﷺ ان الله قد ابدلكم بهما خيرا منهما يوم الأضحى ويوم الفطر] انس رضي الله عنه فرمائي چه دمدینے خلقو دپاره دوه ورځې دلوبو وې. چه کله رسول الله ﷺ مدینے منورے ته تشریف راوړلو.نو ونې فرمائیل الله تعالی ستاسو دپاره ددې دواړو نه بهترے دوه ورځې په بدل کښې درکړې. یو لوے اختر او بل وړوکے اختر.

**حكمة مشروعية العيدين>** د عباداتو په وختونو مقررکولوکښې دا هم حکمت دے چه په هغه وخت کښې انبیاء علیهم السلام دالله تعالی کوم طاعت اوعبادت کړی وي.او الله تعالی هغه قبول کړی وي. د

هغې وخت په راتلوسره د هغوی د قربانئ یاد تازه کولو دپاره د هغې عبادت طرف ته رغبت او شوق وی.نودا دلوے اختر ورځ هغه ورځ ده.چه حضرت ابراهیم ﷺ خپل خوے حضرت اسماعیل ﷺ د الله تعالی په حکم د الله تعالی په دربارکښې د ذبح کولو او د پیش کولو اراده کړې وه.اوالله تعالی د حضرت اسماعیل ﷺ د وجود په بدله کښې یوه عظیمه ذبیحه ورکړله.په دې وجه په لوے اخترکښې قربانی په دې مصلحت سره مقررکړې شوه.چه په دې کښې د ملت ابراهیمی د امامانو (حضرت ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام) حالات اوددوی جان ومال دخدائې تعالی په فرمانبرداریٔ کښې خرچ کولو او دهغوی د انتهائی درجے صبرکولو یاد تازه کولو خلقو ته عبرت ورکړې شوې دې.اودغه شان د حاجیانو سره تشبیه او ددوی عظمت پیدا شی.اوپه کوم کار کښې چه هغه حاجیان مصروف وی.هغه طرف ته نورو خلقو ته ترغیب ورکړې شی.(المصالح العقلیه)

**وجوب صلاة العیدین** > د قدوری رحمه الله د بیان مطابق د اخترمونځ واجب دې.څکه چه قدوری فرمائی چه د اختر مونځ په هغه سړی باندې واجب وی.په چا باندې چه جمعه واجب وی.

**دلیل وجوبها** > داخترونو په مونځ باندې نبیﷺ بغیر دپریخودلونه مواظبت اوهمیشوالې کړې دې. څکه چه د نبی کریم ﷺ همیشوالې د وجوب دلیل دې.([1])

**روایة سنیة صلاة العدین** > دجامع صغیر د بیان مطابق د اخترمونځ سنت دې.څکه چه امام محمد رحمه الله په جامع صغیرکښې وئیلی دی.که په یوه ورځ کښې دوه اخترونه جمع شی. یعنی دجمعې په ورځ ووړکے اختر یا لوے اختر راشی.نو اولنے یعنی د اختر مونځ مسنون او د جمعې مونځ به فرض وی.

**تشریح** > **دلیلها** > د مسنونینت دلیل دادې.چه د اهل نجد نه یو اعرابی سړې پریشان حاله راغې.دده د سفر مقصد د اسلام په باره کښې معلومات حاصلول وو.نبیﷺ د اسلام د یو جزء په بیان کښې فرمائی چه په شپه ورځ کښې پنځه مونځونه دی.ددې په اوریدو سره هغه اوونیل [هل علی غیرهن] آیا په ما باندې ددې پنځو مونځونو نه علاوه څه مونځ شته دې.نبیﷺ په جواب کښې ارشاد اوفرمائیل. [لاالا أن تطوع] ([2]) نه، البته دا چه د نفلو په طور ئې کوې.دے حدیث نه معلومیږی.چه د پنځه مونځونو نه علاوه باقی ټول مونځونه غیر فرض دی.یعنی نفل دی.نود اخترونو دمونځ عدم وجوب ثابت شو.

**الجوابان عنه** > ددې جواب دادې.چه سوال کونکې د کلی اوسیدونکے وو.او په کلی والو باندې د اختر مونځ واجب نه وی.څکه نبیﷺ دده دحال مطابق جواب ارشاد اوفرمائیل. ⓶دویم جواب دا ورکړې شوې دې.چه دیره ممکن ده.چه د نبیﷺ دا گفتگار د اخترد مونځ د وجوب نه وړاندې وی.د اختر دمونځ په واجب کیدو باندې د الله تعالی قول [وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ] (الایه)هم دلالت کوی.څکه چه د [وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ] تفسیر د اخترونو په مونځ سره شوې دې.او دا د امر صیغه ده.چه ددې موجب وجوب دې.

---

[1] (قال الزیلعی رحمه الله هذا معروف ای مواظبة النبی ﷺ علی صلاة العیدین ،،نصب الرایة ۲/۲۱٦)

[2] ) تقدم تخریجه في أكثرمن موضع)_

**تاويل قول محمد في الجامع الصغير** > پاتې شود امام محمد رحمه الله په جامع صغير كښې د اختر مونځ ته سنت ونيل،نو ددې مطلب دادې.چه د اختر دمونځ وجوب په سنت سره ثابت دې.دا مطلب هرګز نه دې.چه د اختر مونځ سنت دې.

## د اخترونو مسنون اعمال

| |
|---|
| وَيُسْتَحَبُّ فِي يَوْمِ الْفِطْرِ أَنْ يَطْعَمَ الْإِنْسَانَ شَيْئًا قَبْلَ الْخُرُوْجِ إِلَى الْمُصَلّٰى مستحب دا دى.چې د وړوکښې اختر په ورځ انسان عيدګاه ته دتلو نه مخکښې څه څيز أوخوري وَيَغْتَسِلَ او غسل اوکړى وَيَتَطَيَّبَ خوشبو اولګوى |

**حل اللغة** > ①يستحب، استحب استحبابا: مستحب كيدل ②يطعم، طعم طعما: خوراك خوړل ③ خروج: وتل ④مصلى: عيدګاه ⑤يغتسل، اغتسل اغتسالاً: غسل كول

**تشريح** > **مسنونية الأكل قبل الصلاة في عيد الفطر** > د اختر د ورځې په مستحباتو كښې يو دادى.چه عيدګاه ته د تلو نه مخكښې څه خوږ څيز خوړلو.

**دليله** > امام بخارى رحمه الله د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت كړې دې. [قال كان رسول الله ﷺ لا يغدو يوم الفطر حتى يأكل تمرات ويأكلهن وترا] (۱)حضرت انس رضي الله عنه فرمائي.چه رسول الله ﷺ به د وړوكى اختر په ورځ (داختر مانځه) دپاره تشريف نه اوړلو.ترڅو چه طاق شمير چوارے به ئې نه وے خوړلې .او په ترمذى اوابن ماجه كښې دى [ان رسول الله ﷺ كان لايخرج يوم الفطر حتى يأكل وكان لا يأكل يوم النحر حتى يصلى] يعنى د وړوكى اختر په ورځ به بغير دڅه خوراك نه نهٔ وتلو.او د لوے اختر په ورځ به بغيردمونځ كولو نه څه نه خوړل.

**سنية الغسل يوم العيد** > دويم مستحب عمل غسل دې.

**دلائله** > ① لكه چه ابن ماجه د فاكهٔ ابن سعد حديث روايت كړې دې.[ان رسول الله ﷺ كان يغتسل يوم الفطر ويوم النحر ويوم العرفة] يعنى رسول الله ﷺ د وړوكى اختر په ورځ، د لوے اختر په ورځ اودعرفې په ورځ غسل كولو.

② عقلى دليل دادې.چه د اخترونو ورځ دخلقو د راجمع كيدو ورځ وى.په دې وجه دےكښې غسل كول.او خوشبولګول مسنون دى.لكه څنګه چه دجمعې په ورځ دادواړه اعمال مسنون دى.

| |
|---|
| وَيَلْبَسُ أَحْسَنَ ثِيَابِهِ اوپه خپلو جاموكښې دے ښے جامے واغوندى |

**تشريح** > **سنية لبث الثياب الجديدة** > دريم مستحب عمل دادې.چه په خپلو موجوده كپړوكښې چه كومے ښےاو نوے وى.هغه دے واغوندى.

---

[۱] ، قال الزيلعي رحمه الله هما حديثان ،نصب الراية ۲/۲۱۷) وخرجت للأكل يوم العيد في ،،سنن الصلاة،، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَغْدُو يَوْمَ الْفِطْرِ حَتَّى يَأْكُلَ تَمَرَاتٍ وَقَالَ مُرَجَّأُ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسٌ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَأْكُلُهُنَّ وِتْرًا) رواه البخاري في العيدين باب الأكل يوم الفطر قبل الخروج رقم ۹۰۰) وللغسل يوم العيد عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْتَسِلُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَيَوْمَ الْأَضْحَى اخرجه ابن ماجه في الصلاة باب الإغتسال في العيدين رقم ۱۳۰۵ رجاله ثقات إلا جبارة بن المغلس وحجاج بن تميم فإنهما ضعيفان )ـ

دليله﴾ ځکه چه د نبي کريم ﷺ د فنك يا وړئ چوغه وه، اختر وغيره موقع باندې به نبي ﷺ دا اغوستله.(١) فنك يو ځناور دې.چه دده د څرمنې پوستکے ډير ښه وی.په يو بل روايت کښې دی.[عن جابر بن عبدالله ﷺ قال كان النبي ﷺ يرد احمر يلبسه في الجمعة والعيد] جابر بن عبدالله ﷺ فرمائي.چه دنبي ﷺ دکيرخو والا سُور يعنی څادر وو.چه دا به نبي ﷺ په جُمعه اواختر وغيره کښې اغوستلو.

## د صدقة الفطر(سرسايه) ورکولو وخت

| وَيَتَوَجَّهُ إِلَى الْمُصَلّٰى او عيدگاه طرف ته متوجه شي |
|---|

حل اللغة ﴾① يتوجه، توجه توجهاً: متوجه کيدل ② مصلی: عيدگاه ③ طريق جمع طرق: لاره ④ ورد ،ورد ورودا:وارد کيدل، راتلل ]

تشريح﴾ إستحباب المشي إلى المصلي﴾د صدقه فطر اداکولو نه پس دے عيدگاه طرف ته متوجه شي . ښکاره دے وی.چه عيدگاه ته پيدل تلل مستحب دی.ځکه چه حضرت عمر ﷺ فرمائيلی دی. عيدگاه ته پيدل تلل سنت دی.اوکه څه خلق دځپل ضعف د وجه عيدگاه ته د تلو نه معذوروی.نو د وخت امام دے څوك مقررکړی.چه په ښار کښې دننه دوی ته په جومات کښې مونځ ورکړی.ځکه چه روايت کړې شوېدې.چه [ان علياً لما قدم الكوفة استخلف من يصلي بالضعيف صلوة العيدين في الجامع وخرج إلى الجبانة مع خمسين شيخا يمشي ويمشون]يعنی حضرت علی ﷺ چه کله کوفے ته تشريف يوړلو.نويو داسې سړې ئې خيل خليفه مقرر کړو.چه کمزورو خلقو ته په جومات کښې د اخترونو مونځ ورکړی.او دوی په ځپله ماښمانو او بوډاګانو سره صحراطرفته اووتل.دوی په ځپله هم پياده وو.او دغه پنځوس سړی ورسره هم پياده روان وو.

| وَلَا يُكَبِّرُ فِي طَرِيقِ الْمُصَلّٰى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اود ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د عيدگاه په لاره کښې تکبير نه وائي. |
|---|

تشريح﴾ الجهر بالتكبير في الطريق﴾ په دې مسئله کښې اختلاف دې.چه د وړوکی اختر په ورځ عيدگاه ته د تلو په وخت په لاره کښې تکبير په اوچت آواز سره وائی او که په ورو آواز ،حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي.چه په اوچت آواز سره دے نه وائي.[٢]

دليله﴾دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه په ذکر کښې دننه خو اصل اخفاء ده.لکه چه د باری تعالی ارشاد دے﴿ وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ ﴾ او دنبي ﷺ ارشاد دې.[خيرالذكر الخفي

(١) غربه الزيلعي رحمه الله وقال روى البيهقي في سننه (أي في السنن الكبرى (٣/٢٩٧) رقم ٦١٣٧) من طريق الشافعي ..... ان النبي ﷺ كان يلبس برد حبرة في كل عيد، وروى الطبراني في معجمه الوسيط .....(كما عزاه الهيثمي في المجمع الزوائد (٢/١٩٨) إلى معجم الطبراني )عن ابن عباس قال كان رسول الله ﷺ يلبس يو العيد بردة حمراء ، واخرج البيهقي في ،،المعرفة،، ..عن جابر بن عبدالله ﷺ قال كان للنبي ﷺ بردا حمراء يلبسه في العيدين والجمعة (نصب الراية ٢/٢١٨)_

(٢) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في رد المحتار(١\٦١٤) والخانية (١\٨٨) والهندية (١\١٥٠) نقلاً عن القول الراجح (١\١٤٩)_

[وغيرالرزق ما يكفى] بنه ذكر، پټ ذكر دي. او ښه رزق هغه دے چه دكفايت په اندازه وی.نه د ضرورت نه زيات او نه كم وی.

| وَيُكَبِّرُ عِنْدَهُمَا اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به تكبير وائى |
|---|

تشريح> صاحبين رحمهما الله فرمائى.چه په اوچت آواز دے وائى.

دليلهما> د صاحبينو رحمهما الله دليل په لوے اختر باندې قياس دې.يعنى څنګه چه په لوے اختركښې تكبير په اوچت آوازسره مشروع دې.دغه شان په وړوكى اختركښې هم په اوچت آواز سره مشروع دې.

الجواب عنه > په ذكر كښې اصل اخفاء ده.خو دلوے اختر په ورځوكښې په جهر سره تكبير باندې خلاف قياس نص وارد شوې دې.الله تعالى فرمائى ﴿وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ﴾ مفسرينو فرمانيلى دى .چه دلته د لوے اختر په ورځوكښې تكبيرجهرى مراد دې.او وړوكے اختر د لوے اختر په معنى كښې هم نه دې.څكه چه په لوے اختر د حج په اركانوكښې يو ركن سره مخصوص دې. يعنى په دغه ورځ كښې بعضې د حج اركان اداكولې شى.او په وړوكى اختر كښې دا خبره نشته.نوهركله چه وړوكے اختر د لوے اختر په معنى كښې نه دې.نو وړوكے اختر په لوے اختر باندې قياس كول هم مناسب نه دى.

## په عيدګاه كښې دمونځ نه مخ كښې د نفلو كولو حكم

| وَلَا يَتَنَفَّلُ فِي الْمُصَلّٰى قَبْلَ صَلٰوةِ الْعِيْدِ اوداختردمونځ نه مخكښې به په عيدګاه كښې نفل نه كوى. |
|---|
| وَيَتَنَفَّلُ بَعْدَهَا او نفل بيا وروستو كولې شى. |

حل اللغة > ①لايتنفل،تنفل، تنفلاً: نفل كول ②قبل: وړاندې

تشريح> كراهية الصلاة بعدالعيد مطلقا> مسئله،داخترد مونځ نه مخكښې نفل كول مكروه دى په عيدګاه كښې هم اود عيدګاه نه علاوه په نورو ځايونوكښې هم، دامام دپاره هم مكروه دى.اودمقتدى دپاره هم،

دليله> دابن عباس رضي الله عنهما قول دے [ان رسول الله ﷺ خرج فصلى بهم العيد لم يصل قبلها ولا بعدها][1] يعنى نبى ﷺ د كور نه رابهرشو.خلقو ته ئې د اختر مونځ وركړو.نه ئې د اختر نه مخكښې مونځ اوكړو.او نه د اختر نه پس،حالانكه نبى ﷺ مونځ ته بيحده ليواله وو.كه د اختر نه مخكښې يا روستو د نفلوكولو اجازت وے نو د الله رسول به ضرور كړى وو.

## داخترد مونځ وخت

| فَإِذَا حَلَّتِ الصَّلٰوةُ بِارْتِفَاعِ الشَّمْسِ او كله چې په نمر اوچت راختلوسره مونځ حلال شى دَخَلَ وَقْتُهَا إِلَى الزَّوَالِ نوداخترد مونځ وخت داخل شو.دنمر د زوال پورې فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ اوكله چې د نمر زوال اوشى خَرَجَ وَقْتُهَا نود اختردمونځ وخت تير شو |
|---|

[1]) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه البخارى في العيدين باب ٢٦ رقم ٩٨٩، مسلم في صلاة العيدين رقم ١٣، وابوداود في الصلاة باب ٢٥٠ رقم ١١٥٩ والترمذى في العيدين باب ٣٥ واحمد في المسند (٢٨٠/١، ٣٤٠)۔

**حل اللغة** ➢ ①حلت، حل حلالا (ض): حلاليدل، شروع كيدل ②ارتفاع: اوچتيدل ③دخل، دخل، دخولاً (ن):داخليدل ④خرج،خرج خروجاً(ن): وتل

**تشریح** ➢ په دې عبارت کښې د اختر دمونځ د وخت د اول اوآخریان شوېدې.لکه چه امام ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه داخترد مونځ اول وخت د نمر يوه نيزه يا دوه نيزے اوچتيدلو سره شروع كيږي.اود نمر د زوال پورې باقي پاتې كيږي.

**دليله** ➢ په ابتداء د وخت باندې دليل دا حديث دې.چه نبی ﷺ به مونځ هغه وخت كولو.چه كله به نمر يوه نيزے يا د دوه نيزو په اندازه اوچت شو.([1])

**د اختر د مونځ طريقه**

وَيُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ او امام دے دخلقو سره دوه ركعته اوكړی يُكَبِّرُ فِي الْأُولَى تَكْبِيرَةَ الْإِحْرَامِ په اولنی رکعت کښې دے د افتتاح دپاره يو تكبير وانی وَثَلَاثًا بَعْدَهَا او ددې نه پس دے درې تكبيرونه وانی ثُمَّ يَقْرَأُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُورَةً مَعَهَا ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيرَةً يَرْكَعُ بِهَا بيا دے فاتحه او هغې سره دې يو سورت اووانی.او يو تكبير دے اووانی.دے سره دے ركوع اوكړی ثُمَّ يَبْتَدِئُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ بِالْقِرَاءَةِ بيا دے د دويم ركعت شروع په قرات اوكړی فَإِذَا فَرَغَ مِنَ الْقِرَاءَةِ كله چه فارغ شی د قرات نه كَبَّرَ ثَلَاثَ تَكْبِيرَاتٍ نو پس دے درې تكبيرونه اووانی وَكَبَّرَ تَكْبِيرَةً رَابِعَةً يَرْكَعُ بِهَا او څلورم تكبير دې اووانی اوپه دې به ركوع اوكړی

**حل اللغة** ➢ ①يصلي،صل صلاة: مونځ كول ②يقرا، قرا قراءة (ف): لوستل ③يبتدء، ابتدا ابتداء: شروع كول ④يركع، ركع، ركوعًا (ف): ركوع كول

**تشريح** ➢ **كيفية صلاة العيد** ➢صاحب د قدوری رحمه الله داخترد مونځ كيفيت داسې بيان كړې دې.چه دے امام خلقو ته دوه ركعته داسې اوكړی.چه رومبے تكبيرتحريمه اووانی.بيا دے ثنا اووانی.اود دريو نه زيات تكبيرونه اووانی.بيا دے قرات د فاتحے او ضم دسورت اوكړی. بياد ركوع تكبير اووانی.او ركوع دے اوكړی.اوسجده دے اوكړی.دغه شان به اولنے ركعت پوره شی.په دويم ركعت كښې دے اول قرات فاتحه او ضم د سورت اوكړی.بيا دے زياتی تكبيرونه اووانی.اود ركوع تكبيردے اووانی.اوركوع دے اوكړی. ددې تفصيل مطابق په دواړو ركعتوكښې نهه تكبيرونه شول.شپږ زوائددوه د ركوع تكبيرونه او يو تكبير تحريمه،

**دليله** ➢ ① علامه مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی.چه دا د ابن مسعود رضی الله عنه قول دې.گويا چه د ابن مسعود رضی الله عنه په نيز د اختر په دواړو ركعتونو كښې ټول نهه تكبيرونه دی.هم دغه د احنافو عالمانو رحمهم الله مذهب دې.د ابن مسعود رضی الله عنه قول څكه دې.چه روايت كړې شوېدې. [كان ابن مسعود رضی الله عنه جالساً وعنده حذيفة وابو موسى الأشعرى رضي الله عنهما فسألهم سعيد بن العاص رضی الله عنه عن التكبير في صلوة العيد فقال حذيفة رضی الله عنه سل الأشعرى رضی الله عنه فقال الأشعرى رضی الله عنه سل عبد الله رضی الله عنه فانه أقدمنا وأعلمنا فسأله فقال ابن مسعود رضی الله عنه يكبر أربعا ثم يقرأ ثم يكبر فيركع ثم يقوم في الثانية فيقرأ ثم يكبر أربعا بعد القراءة] يعنی ابن مسعود ،حذيفه او ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه تشريف فرما

---

[1] ، خرجه الزيلعي رحمه الله نصب الراية ٢/٢٢٠)

وو.چه ددوی نه سعید ابن العاص ﷺ د اخترد مونځ دتکبیرونو په باره کښې تپوس اوکړو.حذیفه ﷺاوونیل.داشعری ﷺ نه تپوس اوکړه.اشعری ﷺاوونیل.د عبدالله ﷺ نه تپوس اوکړه.ځکه چه عبدالله ﷺ په مونږ کښې قدیم العهد هم دې.او صاحب دعلم هم.نوهغه د ابن مسعود ﷺ نه تپوس اوکړه.نو ابن مسعود ﷺ اوفرمائیل. څلور تکبیرونه اووایه.په رومبی رکعت کښې چه دکومو څلورو تکبیرونو ذکر شوېدې.په دې کښې یو تکبیرتحریمه اودرې زوائد دی او په دویم رکعت کښې په څلورو تکبیرونو کښې یو تکبیر د رکوع او درې زوائد دی.بهرحال د ابن مسعود ﷺددې قول نه د نهو تکبیرونو ثبوت ملاویږی.([1])

## د اخترونو په تکبیرونو کښې د رفع یدین حکم

| وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي تَكْبِيرَاتِ الْعِيدَيْنِ د اخترونو په تکبیرونو کښې به خپل دواړه لاسونه اوچتوی |
|---|

**تشریح**> **رفع الیدین** > د طرفینو په نزد د اخترونو په تکبیرونو کښې د غوږونو پورې لاسونه اوچتولی شی.هم دا د امام شافعی او امام احمد ﷺ مذهب دې.[2]

**دلیله**>دلیل دنبی ﷺ قول [لاترفع الأیدی إلا فی سبع مواطن] دې.په دې اووه ځایونو کښې د اخترونو زوائد تکبیرونه هم دی.([3])

**عدم رفع الیدین** >دامام ابویوسف رحمه الله نه مروی دی.چه د اخترونو په تکبیرونو کښې به لاسونه نه اوچتوی.

**دلیله**>دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.چه د لاسونو اوچتول د افتتاح سنت دی.چونکه په زوائد تکبیرونو کښې دمونځ افتتاح نشته،ددې وجه به رفع یدین هم نه کیږی.لکه چه د رکوع په تکبیرکښې رفع یدین نشته.

**الحجة علی أبی یوسف رحمه الله** >دامام ابویوسف رحمه الله خلاف حدیث [لاترفع الأیدی] حجت دې. پاتې شوه دا خبره چه په زواندو تکبیرونو کښې هیڅ مسنون نه دی.

## د مونځ نه پس د خطبې حکم

| ثُمَّ يَخْطُبُ بَعْدَ الصَّلَاةِ خُطْبَتَيْنِ فرمائی چې د اختر د مونځ نه پس دے امام دوه خطبې اووائی يُعَلِّمُ النَّاسَ فِيهِمَا صَدَقَةَ الْفِطْرِ وَأَحْكَامَهَا داختر په وارد شوې خطبه کښې دےخلقو ته د صدقه فطر او ددې احکام بیانی |
|---|

**حل اللغة** >یخطب، خطب، خطبة (ن): تقریرکول، خطبه ورکول ـ یعلم، علم تعلیما: خودنه

---

[1]) **المذاهب الثلاثة**:- ①چه د احنافو ﷺ په نیز د اختر په دواړو رکعتونو کښې تکبیرات زوائد شپږ دی.②او د امام مالك او امام احمد ﷺ په نیز لس دی.③او د امام شافعی په نیز دولس یا دیارلس دی. (شرح نقایه) تفصیل په هدایه کښې وګورئ

[2]) القول الراجح هو قول الطرفین ﷺ كذا في العناية على هامش الفتح (۲\٤٥) والخانية (۱\۸۹) والهندية (۱\۱٥٠) والبحرالرائق (۲\۱٦۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱٥٠)-

[3]) قال الزيلعي رحمه الله تقدم في ،،صفة الصلاة،، وليس فيه تكبيرات العيدين نصب الراية،۲/۲۷٦)

**تشريح> الخطبة بعد صلاة العيدين >**صاحب دكتاب فرمائي.چه د اختر د مونځ نه چه فارغ شي.نو امام دې دوه خطبې اووائي.هم په دې باندې نقل اوعمل شائع شوېدې.

**دلائله>** ① په بخاري او مسلم كښې دابن عمر رضي الله عنهما دحديث الفاظ دا دی.چه [**قال كان النبي ﷺ ثم ابوبكر وعمر يصلون العيدين قبل الخطبة**]

②اود ابن عباس رضي الله عنهما قول دې.[**شهدت العيدين مع رسول الله ﷺ وابي بكر وعمر وعثمان رضي الله عنهم كلهم كانوا يصلون العيدين قبل الخطبة**] (رواه الشيخان) ددواړو حديثونو حاصل دادې.چه رسول الله ﷺ اودرې واړه خليفگانود اخترونو مونځ مخكښې اوخطبه روسته كوله. البته داختر خطبه دجمعې دخطبې نه په دوو خبروكښې مخالف ده.اوله دا چه جمعه بغير دخطبې نه جائز نه ده.او د اختر مونځ دخطبې نه بغير هم جائزدې.دويمه دا چه د جمعې خطبه د جمعې مونځ باندې مقدم ده.اود اخترونو خطبه د مونځ نه مؤخر ده.نوكه د اختر خطبه دمونځ نه مقدم كړې شوه.نوهم جائز ده.داختر دمونځ نه پس د اعاده ضرورت نشته .واضح دې وی.چه د وړوكی اختر په خطبه كښې صدقة الفطر اوددې داحكامو تعليم وركړې شي.ځكه چه دا خطبه هم ددې مقصد په لحاظ سره مشروع شوېده.

**د منفرد دپاره د اختر دمونځ قضاء راوړلوحكم**

| وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَاةُ الْعِيدِ مَعَ الْإِمَامِ اود چا نه د اخترمونځ د امام سره فوت شو لَمْ يَقْضِهَا نودې به ددې قضاء نه كوی. |
|---|

**حل اللغة >**① فائتة، فات فوتا (ن): فوت كيدل ② لم يقضها ، قضى قضاء (ض): قضاكول، اداكول

**تشريح> قضاء صلاة العيد>**صورت دمسئلې دادې. كه امام د اختر مونځ اداكړو.او يو سړې باقي پاتې شو.دۀ داخترمونځ اداكړې نه دې.نوددې قضاء راوړلواجازت نشته.هم دا د امام مالك رحمه الله قول دې.

**دليله >** دليل دادې.چه د اختر مونځ قائمولو دپاره څه داسې شرطونه دی. چه په خانله سړی سره نه پوره كيږی.مثلاً جماعت،د وخت سلطان. نوپه منفرد كښې دا شرطونه نشی موجودې دې. ددې وجې دد دپاره د اختر مونځ كول هم جائزنه دی.

**د رمضان د مياشتې په وريځه كښې پټيدل**

| فَإِنْ غُمَّ الْهِلَالُ عَنِ النَّاسِ بياكه د خلقو نه مياشت په اوريځه كښې پټه شوه وَشَهِدُوا عِنْدَ الْإِمَامِ بِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ بَعْدَ الزَّوَالِ اوخلقو د زوال نه پس امام ته د مياشت ليدو گواهي وركه صَلَّى الْعِيدَ مِنَ الْغَدِ نو امام دې په دويمه ورځ د اختر مونځ اوكړی فَإِنْ حَدَثَ عُذْرٌ مَنَعَ النَّاسَ مِنَ الصَّلَاةِ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي اوكه داسې عذر پيدا شی .چې په دويمه ورځ ئې خلق د اختر د مونځ نه پاتې كړل لَمْ يُصَلِّهَا بَعْدَهُ نوددې نه پس به دا مونځ نه كوی. |
|---|

**حل اللغة >**①غم، غم غماما (ن): پټيدل ②شهدوا، شهد شهادة (س): گواهی وركول، حاضريدل ③رؤية: كتل ④ منع، منع منعا (ف): بندول، منع كول

**تشريح> أداء صلاة العيد في اليوم الثاني>**صورت دمسئلې دادې.چه ۲۹ رمضان باندې كه مياشت په اوريځه كښې پټه شوه،اوپه ۳۰ رمضان دزوال نه پس خلقو امام ته د سپوږمۍ ليدوگواهی وركړه.

اوامام ددوی گواهی هم قبوله کړه.نو روژه دے ماته کړی.او امام دے په دویمه ورځ خلقوته مونځ اوکړی.

**دليله**>دليل دادې.چه دا تاخير د عذر په وجه دې.په دې وجه دے تاخيرکښې هيڅ باك نشته.اوددې تاخير په سلسله کښې حديث هم موجود دې.په هدايه کښې داحديث هم داسې ذکر شوې دې.[**ولما شهدوا بالهلال بعد الزوال امر بالخروج الى المصلى من الغد**]اوکه په دويمه شپه باندې هم څه داسې عذر پيښ شی.چه د اختر دمونځ دپاره مانع وی.

**عدم تاخيرها إلى اليوم الثالث**>نواوس ددې نه پس په دريم شوېل باندې د اختر دمونځ کولو اجازت نشته.ځکه چه د اختر په مونځ کښې اصل خو دا دې.چه ددې قضاء راوتړلے شی.لکه څنگه چه دجمعې فوت کيدو په صورت کښې ددې قضاء نشی راوړې.خو د عذر په وجه د دويمے ورځې پورې مؤخر کولو کښې د ذکر شوی حديث په وجه دا اصل پريخودے شوېدې. نوچونکه په حديث کښې صرف ددويمے ورځې پورې د روستوکولو د صورت تصريح شوې ده.په دې وجه به د دويم شوېل پورې داخترد مونځ روستو کولو اجازت وی.ددې نه پس به اجازت نه وی.

**د لوئې اختر مستحبات**

| |
|---|
| وَيُسْتَحَبُّ فِي يَوْمِ الْأَضْحَى أَنْ يَغْتَسِلَ وَيَتَطَيَّبَ اود لوے اختر په ورځ غسل کول او خوشبو لگول مستحب دی. وَيُؤَخِّرَ الْأَكْلَ حَتَّى يَفْرُغَ مِنَ الصَّلَاةِ اوخوراك دے روستوکړی.ترڅو چې د مونځ نه فارغ شی |

**حل اللغة** >①يستحب، استحب، استحبابًا: مستحب كيدل ②ان يغتسل، اغتسل اغتسالاً: غسل كول ③يتطيب، تطيب تطيبًا: خوشبوئ لگول

**تشريح**> **سنة الغسل والطيب**>صاحب دقدوری فرمائی.چه دلوےاختريه ورځ غسل کول او خوشبو لگول مستحب دی.دليل مخکښې تيرشوې دې.

**تاخيرالأكل من الصلاة**>او دا هم مسنون دی.چه خوراك دمونځ نه پس اوکړی.اود خپلے قربانئ نه اوخوری.

**دليله**>دليل دنبیﷺ عمل دې.چه دوی به د لوے اختر په ورځ د اختر دمونځ نه پس خوراك کولو.اودخپلے قربانئ نه به ئې خوراك کولو.([1]) که څوك قربانی نه کوی.بيا هم د اختر دمونځ نه مخکښې دے خوراك نه کوی.ځکه چه د اختر دمونځ نه مخکښې خوراك نه کول جدا سنت دی.او د خپلے قربانئ نه خوړل جدا سنت دی.اودکلی والو دپاره جائز دی.ځکه چه هلته کښې مونځ واجب نه دې.

**په لاره کښې په جهر سره د تکبير ويلوحکم**

| |
|---|
| وَيَتَوَجَّهُ إِلَى الْمُصَلَّى وَهُوَ يُكَبِّرُاو عيدگاه ته به ځی په داسې حال کښې چې تکبير به وائی وَيُصَلِّي الْأَضْحَى رَكْعَتَيْنِ كَصَلَاةِ الْفِطْرِاو امام دے د وروکښې اختر په شان خلقو ته دوه رکعته مونځ اوکړی |

[1] ) خرجته في ،،سنن الصلاة،، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتَّى يَطْعَمَ وَلَا يَطْعَمُ يَوْمَ الْأَضْحَى حَتَّى يُصَلِّيَ رواه الترمذي في العيدين باب ما جاء في الاكل يوم الفطر قبل الخروج رقم ۱۹۷ اخرجه الترمذي)_

وَيَخْطُبُ بَعْدَهَا خُطْبَتَيْنِ اودمونځ نه پس دے دوه خطبے اووائی وَيُعَلِّمُ النَّاسَ فِيهَا الْأُضْحِيَةَ وَتَكْبِيرَاتِ التَّشْرِيقِ په دواړو خطبو کښې دے د قربانۍ اود تشريق د تکبيرونو تعليم ورکړی

**حل اللغة** ﴿۱﴾يتوجه، توجه توجهاً: متوجه کيدل ﴿۲﴾ يخطب، خطب خطبة (ن): د امام د خلقو په وړاندې خطبه ورکول، تقرير کول، وعظ کول ﴿۳﴾يعلم علم تعليماً : خودنه ]

**تشريح** ﴿ **الجهربالتكبير في طريق المصلي** ﴾مسئله دا ده.چه عيدګاه ته په تلوتلو کښې به په لاره کښې به اوچت آواز سره تکبيرووائی. ځکه چه نبی ﷺ به هم دا عمل کولو.([1])

او د اختر مونځ د وړوکی اختر په شان دوه رکعته دي.د امام صاحب نه هم دا منقول دی.([2])

**تعليم الاضحية وتكبيرات التشريق** ﴾دمونځ نه پس دے په خطبه کښې د قربانۍ او د تشريق د تکبيرونو احکام اوبنائی.ځکه چه هم په دې ورځو کښې هم دا ځيزونه مشروع دی.اوخطبه هم دد ےځيزونودتعليم دپاره مشروع شوې ده.([3])

## د لوئي اختر مونځ دويمې او دريمې ورځې ته روستو کول

فَإِنْ حَدَثَ عُذْرٌ مَنَعَ النَّاسَ مِنَ الصَّلَاةِ فِي يَوْمِ الْأَضْحَى که څه عذر داسې پيښ شوچه په لسمه د ذی الحجه ئې خلق د مونځ کولو نه منع کړل. صَلَّاهَا مِنَ الْغَدِ وَبَعْدَ الْغَدِ نو په دويمه يا په دريمه ورځ دے مونځ اوکړی وَلَا يُصَلِّيهَا بَعْدَ ذَلِكَ اودے نه پس دے نه کوی

**حل اللغة** ﴾﴿۱﴾ يمنع، منع منعاً (ف): بنديدل، منع کيدل ﴿۲﴾غد: صبا ﴿۳﴾لايصليها، صلى صلاةً: مونځ کول

**تشريح** ﴾ **تاخيرصلاة عيدالأضحي إلي اليوم الثالث** ﴾مسئله داده.که د ذی الحجه په لسم تاريخ باندې دمونځ مانع عذر پيښ شو.نو په يوولسم تاريخ دے مونځ اوکړی.اوکه په يوولسم تاريخ باندې هم عذر موجود وو.نو په دولسم باندې دے د اختر مونځ اوکړی.اوکه په دې کښې هم عذر موجود وو.نو ددې نه پس د تاخير اجازت نشته.

**دليله** ﴾دليل دادې.چه د لوے اختر مونځ د اُضحيه (قربانۍ) سره تعلق ساتی.په دې وجه د مونځ وخت هم د قربانۍ د ورځو سره تړلے وی.نودقربانۍ د دريمے ورځې پورې هره ورځ د نمر راختلو نه پس زواله پورې داخترد مونځ وخت دې.اوکه تاخير کول بغير دعذر وی.نوهم مونځ جائز دې.خو بغير دعذرنه په تاخيرکولوبه ګناهګاروی.ځکه چه نبی ﷺ اودخلفائې راشدينو نه داسې تاخير منقول نه دې.دا خيال ساتل پکاردی چه دا مونځ ددې باوجود چه په تاخير سره اوکړې شی.ادا دے قضاء نه دې.ځکه چه په خپل وخت کښې واقع شوې دې.

---

[1] ) خرجته في ،،سنن الصلاة،، عن نافع عن بن عمر انه كان يخرج في العيدين من المسجد فيكبرحتى يأتي المصلى كذا في المستدرك في العيدين رقم ۱۱۰۶ (۱/۴۳۸)_

[2] ) تقدم تخريجه عن قريب)_

[3] ) قد خرجته في ،،سنن الصلاة،، زُبَيْد عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ قَالَ عُمَرُ صَلَاةُ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَانِ وَصَلَاةُ الْفِطْرِ رَكْعَتَانِ وَصَلَاةُ الْأَضْحَى رَكْعَتَانِ وَصَلَاةُ السَّفَرِ رَكْعَتَانِ تَمَامٌ غَيْرُ قَصْرٍ عَلَى لِسَانِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخرجه الدارمي في الصلاة باب صلاة العيدين بلا أذان ولا إقامة رقم ۱۵۵۲ (رجاله ثقات)_

**المغه.ان في حكم التكبيرات>** تكبير تشريق واجب دی يا سنت، ① نواكثر عالمان د وجوب قائل دی. ② اوبعضےد مسنونيت قائل دی.دوجوب دليل د الله تعالى قول [وَاذْكُرُوا اللَّهَ فِيٓ أَيَّامٍ مَّعْدُودَٰتٍ] دې.او د سنيت قائلينو په دې باندې دنبی ﷺ مداومت اوهميشوالي دليل گرځولي دې.

| |
|---|
| وَتَكْبِيرُ التَّشْرِيقِ أَوَّلُهُ اوتكبير تشريق شروع د دې به عَقِيبَ صَلَاةِ الْفَجْرِ روسته د صبا د مانځه نه وی مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ په ورځ د عرفې باندې وَآخِرُهُ عَقِيبَ صَلَاةِ الْعَصْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ اود قربانۍ په ورځ به نې د مازيگر نه پس ختموی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (داحكم)د ابوحنيفه رحمه الله په نيزدې |

**تشريح> ابتداء التكبيرات>** ① اكابرين صحابه حضرت عمر،علي،ابن مسعود رضي الله عنهم فرمانيلي دی.چه د تكبيرات تشريق ابتداء دعرفې په ورځ يعنی د ذی الحجه د نهم تاريخ نه كولې شی.دا قول احنافو عالمانو رحمهم الله په اتفاق سره اختيار كړې دې.

**انتهاء التكبيرات>** ① دانتها په سلسله كښې دامام اعظم مذهب دا دې چه دنحرد ورځو رومبۍ ورځ يعنی د لسمې ذی الحجه د مازيگر مونځ دې.مطلب دا چه د ذی ا لحجه په لسم تاريخ د مازيگر د مانځه نه پس دے تكبيرات اووائی اوختم دے كړی.نود امام اعظم په نيز تول د اته مونځونو نه پس يعنی د نهمې ذی الحجه د صبا دمانځه نه پس د لسمې د مازيگر پورې به تكبير تشريق ونيلې شی.

**دليله>** ① پورته چه د امام اعظم كوم مذهب بيان شو دا د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قول دې.([1])

② د امام ابوحنيفه رحمه الله كمتر او اقل اختيارول په دې وجه دی.چه په اوچت آواز سره تكبير ونيل بدعت دی.خكه چه الله تعالى فرمانيلي دی. ﴿وَاذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ﴾ اوپه حديث كښې دی [راى النبي ﷺ أقواما يرفعون أصواتهم عند الدعاء فقال إنكم لن تدعوا أصم ولا غائبا] يعنی رسول الله ﷺ يو قوم اوليدلو.چه د دعا په وخت كښې به نې خپل آوازونه اوچتول.نونبی ﷺ ورته اوفرمانيل.چه تاسوخلق نه خوكونړ ته آواز كوئ او نه غائب ته.ددوی (ﷺ) مراد دادې.چه الله چاته چه تاسو آواز كوئ.نه خو هغه كونړ دےاو نه غائب دې.بلكه سميع ( ډير اوريدونكے) دې.او په هر ځائې كښې موجود دې. خكه په اوچت آواز ده ته د آواز كولو بيخی ضرورت نشته.ددې آيت اوروايت نه معلومه شوه.چه په دعا او ذكر كښې اصل اخفاء ده.اوجهرخلاف اصل او بدعت دې.

③ دامام صاحب دويم دليل دا دې.چه د تكبير ابتداء په داسې ورځ كښې كيږی.چه په هغې كښې د حج يو ركن يعنی وقوع عرفه ادا كيږی.پس دا منقطع كول هم په دې نحر ورځ كښې مناسب دی.چه په دې كښې دحج دويم ركن يعنی طواف زيارت اداكيږی.چه دتكبير ابتداء اوانتهاء دواړه برابرشی.دا ياد ساتئ: چه عمل اوفتوی د صاحبينو رحمهما الله په قول ده.

| |
|---|
| وَأَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ إِلَى صَلَاةِ الْعَصْرِ مِنْ آخِرِ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ اوصاحبين رحمهما الله فرمائی.چې د آخری ورځ د تشريق به نې د مازيگردمونځ نه پس ختموی. |

[1] ) حديث ابن مسعود رضي الله عنه رواه ابن أبي شيبة ورواه الطبراني في الكبير كما اشار إلى ذلك الهيثمي في مجمع الزوائد(۲/۱۹۷)_

**تشریح> مسلک الصاحبین>** صاحبین فرمائي .چه تکبیر تشریق به د تشریق د ورځو په آخره ورځ یعنی دیارلسم ذی الحجه د ماز یګر په مانځه ختمولے شي.د صاحبینو په نیز تول د ۲۳ مونځونو نه دی.یعنی د نهمې ذی الحجه د صبا مانځه نه پس د دیارلسمے ذی الحجه د مازیګر پورې تکبیر ونیلی شي.[1]

**دلیله>** د صاحبینو دا مذهب په اصل کښې د حضرت علی قول دې [2] نوصاحبینو ﷺ اکثر اختیار کړې دے اودحضرت علی په قول باندې ئې اعتماد کړې دې.ځکه چه تکبیر هم عبادت دې.او په عباداتو کښې دننه احتیاط هم په دې کښې دې.چه اکثر واخستلے شي.

> وَالتَّكْبِيرُ عَقِيبَ الصَّلَوَاتِ الْمَفْرُوضَاتِ: اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ وَلِلهِ الْحَمْدُ
>
> اوتکبیرروسته د فرض مونځونو نه دا دې .چې یوځل اووائی. [الله اکبر الله اکبر لا اله الا الله ،والله اکبرالله اکبر ولله الحمد]

**تشریح> عدد التکبیرات>** صاحب دقدوری رحمه الله فرمائي.چه د ذکر شوی تکبیر کلمات[الله اکبرالله اکبر..الخ]یو ځل ونیل دی.

**تاریخ ابتداء الکلمات>** داکلمات دسیدنا ابراهیم ﷺ نه منقول دی.ددې کلماتو تاریخی پس منظر دادې.چه کله د الله تعالی په حکم ابراهیم ﷺ دخپل زره ټکرې اسماعیل ﷺ ذبح کولو دپاره دده لاسونه او پښے اوتړ لې.اوپه زمکه ئې په تندی باندې سملولو.او چاړه ئې راښکله.نوځټ ئې پرے نکړو. بل خوا جبرئیل ﷺ ته حکم اوشو.چه د اسماعیل ﷺ په ځائې هغه ګډ راوله اوسملوه کوم چه هابیل نذرالله په غره باندې ایخودے وو.او هغه قبول شوې وو.چه تراوسه پورې په جنت کښې ځریدلو.جبرئیل ﷺ چه کله اوکتل.چه ابراهیم ﷺ دالله د اطاعت دپاره په ذبحه کښې ډیر عجلت کوی.نوئې فرمائیل. [الله اکبرالله اکبر] ابراهیم ﷺ ځټ اوچت کړو.او وے کتل. او د جبرئیل ﷺ آواز ئې واوریدلو.نوبےاختیاره ئې د ژبې نه دا اووتل. [لااله الاالله والله اکبر]ذبیح الله ﷺ ته چه کله معلومه شوه.اودپلار بزرګواراود جبرئیل کلمات ئې واوریدل.نود الله تعالی دحمد دپاره دده ژبه ګویا شوه.او وے ونیل. [الله اکبرالله اکبرولله الحمد] داکلمات د قیامته پورې دیو نیک فرزند اود الله تعالی په عشق کښې د دلیواله پلار یاد تازه کوی.قرآن حکیم په څومره بلیغ انداز کښې وائی چه ﴿وَقَالَ إِنِّي ذَاهِبٌ إِلَىٰ رَبِّي سَيَهْدِينِ﴾

**شروط من تجب علیه التکبیرات عند أبي حنیفة رحمه الله>** دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د هر فرض مونځ نه پس تکبیر ونیل واجب دی.① په دے شرط چه دا خلق مقیم وی،په ښار کښې دننه وی،② او په مستحب طریقه باندې په جماعت سره مونځ شوې وی.③ په فرضو پسې سمدستی وی ځکه که د فرض مونځ نه پس بل عمل اوموندلے شي.مثلا دجومات نه اووتلو.یا په خبرو کښې مشغول شو.نودا سرې دے تکبیر نه وائی.④ اوچه فرض مونځ نو وی دجنازے مونځ، وتر،د اخترونو مونځ او نفل وی

---

[1] ) القول الراجح هو قول الصاحبين ﷺ كذا في الكفاية في صدر فتح القدير(٢\٤٩) وردالمحتار(١\٦٢١) والفقه الإسلامي (٢\٣٨٣) والهندية (١\١٥٢) نقلاً عن القول الراجح(١\١٥١)

[2] ) قال الزيلعي رحمه الله أما قول علي رضي الله عنه فرواه ابن ابي شيبة في مصنفه ورواه الحاكم في المستدرك (٢٩٩/١) ورواه محمد بن الحسن في الآثار(ص،٣٦)۔

نو تکبیرات به نه وائی⑤ چه مقیم وی نو که مسافر وی.هغه باندې هم تکبیر نشته.⑥ چه په ښار کښې وی ځکه چه په کلوکښې دننه د تکبیر تشریق وجوب نشته ⑦ چه د جماعت د مونځ نه پس وی نو په منفرد باندې تکبیرات ونیل واجب نه دی ⑧ چه مستحب جماعت وی که ښځې په جماعت سره مونځ اوکړی په هغوی واجب نه دی ځکه چه د هغوی جماعت مکروه دې البته که دښځو امام سړې وی.اودمسافرو امام مقیم وی.نو په دے ښځو اومسافرو باندې هم تکبیر واجب دې.

**ولأنه** ⟩ ①د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل هغه حدیث دې.کوم چه مونږ مخکښې ذکر کړې دې.یعنی [لا جمعة ولا تشریق ولا فطر ولا أضحی إلا في مصر جامع] دد حدیث نه د تکبیر تشریق دپاره دښار شرطیت معلوم شو.د لغت امام خلیل ابن احمد رحمه الله نه منقول دی.چه تشریق دجهری تکبیرنوم دې.

② دویم دلیل دا دې.چه تکبیر په اوچت آواز ونیل خلاف سنت،یعنی بدعت دې.په استثناء د هغه ځائې کوم ځائې کښې چه شریعت وارد شوی وی.اودجهری تکبیر په سلسله کښې د شریعت ورود په هغه صورت کښې شوې دې.چه په هغې کښې ټول شرطونه جمع وی.یعنی ښار،جماعت مستحبه، اقامت وغیره،اوکه ښځې د سړی پسې اقتداء اوکړی.یا مسافر د مقیم اقتداء اوکړی.نو په ښځو او مسافرو باندې به هم تکبیر واجب وی.دا وجوب به د تبعیت په طریقه وی. یعنی امام کوم چه متبوع دې. چه په ده باندې تکبیر واجب دې.نو دده په تابع باندې به هم واجب وی.لکه څنګه چه د مقیم په اقتدا کولو باندې په مسافر باندې څلور رکعته لازمیږی.

**من تجب علیه التکبیر عند الصاحبین** رحمهما الله ⟩ صاحبینو رحمهما الله فرمائیلی دی.چه په هر هغه سړی تکبیر واجب دې.چه هغه فرض مونځ اوکړی خواه که دښارے وی اوکه کلی وال،مسافر وی اوکه مقیم یا منفرد.که سړې وی او که ښځه.هم دغه قول د امام مالك او امام شافعی رحمهما الله دې.

**ولهما** ⟩ دد حضراتو دلیل دادې.چه تکبیر دفرض مونځ تابع دې.نو چه څوك فرض اوکړی هغه به تکبیر وائی.[1]

**یقولها المأموم عند نسیان الإمام** ⟩ صاحب دهدایه رحمه الله په هدایه کښې د یوے واقعے په ذریعه تنبیه ورکړې ده.که امام تکبیر ونیل هیر کړو .نو مقتدی دے تکبیر نه پریږدی.بلکه په اوچت آواز دے تکبیر اووائی .او امام دے هم خبر کړی.ددے په خلاف که امام سجده سهو پریخوږدی. نومقتدی دے هم پریږدی .وجه داده.چه سجده سهوه دمونځ په مینځ کښې ادا کولې شی. ځکه په سجده سهو کولو یا نه کولو کښې د امام اتباع ضروری وی.اوتکبیر دمونځ په مینځ کښې نه اداکیږی.بلکه دمونځ نه فراغت نه پس ونیلے شی.ځکه په تکبیر ونیلو کښې د امام وجود واجب نه دې.بلکه مستحب دې.نوکه امام تکبیر اونه وائی. مقتدی دے ضرور وائی. واقعه داده.چه امام ابویوسف(یعقوب) بیان کړی دی.چه یوځل ما خلقوته دعرفې په ورځ دماښام مونځ ورکولو.اتفاقاً مانه تکبیر تشریق هیرشو.نو استاذ مکرم حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د شانه نه تکبیر اوونیل.اوزه ئې خبر کړم،نو بیا ما هم تکبیر اوونیل.دد واقعے نه د امام ابویوسف رحمه الله د اوچت شان او مرتبے پته لږی.چه حضرت امام صاحب دے امام جوړ کړې وو.او په خپله ئې وریسې اقتداء کړې وه.والله اعلم

[1] ) القول الراجح هو قول الصاحبین رحمهما الله كذا في الدرالمختار(٦٢٠\١) والبحرالرائق (١٦٦\٢) والفقه الإسلامي وأدلته (٣٨٣\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٥٢\١)-

د نمر د تندر نیولو د مونځ بیان

# بَابُ صَلٰوۃِ الْکُسُوْفِ

**ترجمه**> دا باب د نمر د تندر نیولو د مونځ په بیان کښې دې.

**تشریح**> **الربط بما قبله**>داخترمونځ،دکسوف مونځ او د استسقاء مونځ په درې وارړه مونځونو کښې مناسبت ښکاره دې. په دې شان چه درې وارړه مونځونه په ورځ کښې بغیرد اذان او اقامت نه ادا کولې شي په دې کښې د اختر مونځ چونکه واجب دې.او دکسوف مونځ د جمهورو په نیز مسنون دې.او د استسقاء د مونځ مسنونیت مختلف فیه دې.په دې وجه ددرې وارو بابونو مناسب ترتیب ښکاره شو.

**الأقوال في الکسوف والخسوف**>دکسوف معنی ده نمر توریدلو طرف ته مائل کیدل.په دې کښې بو لغت خسوف دې.امام منذری رحمه الله فرمائیلی دی.چه دکسوف مونځ د۱۹ راویانو نه مروی دې. ① بعضو په کاف سره کسوف اوبعضو په خاء سره خسوف ذکر کړې دې. معلومه شوه .چه دا دواړه لفظونه مترادف دی. ② بعضو ونیلی دی.چه د نمرد تندر نیولو دپاره کسوف اود سپوږمۍ د تندر نیولو دپاره خسوف استعمالیږی. ③یا کسوف د نمر سره مخصوص دې.اوخسوف عام دے، نمر اوسپوږمۍ دواړوته شامل دې.

**إصطلاح الفقهاء**>د فقهاؤ هم دا اصطلاح ده هم ددې تائید د الله تعالی قول ﴿فَإِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ وَخَسَفَ الْقَمَرُ﴾ کوی.دکسوف دمونځ سبب کسوف یعنی د نمر تندر نیول دی.اوددې شرطونه هم هغه دی.کوم چه د نورو مونځونو دی.دکسوف د مونځ په مشروعیت باندې د پوره امت اجماع ده.چاهم ددې نه انکار نه دے کړې.

د نمر د تندر نیولو دمونځ طریقه

> إِذَا انْکَسَفَتِ الشَّمْسُ کله چې نمر تندر اونیسی صَلَّی الْإِمَامُ بِالنَّاسِ رَکْعَتَيْنِ کَهَيْئَةِ النَّافِلَةِ نو امام دے خلقو ته د نفل په شان دوه رکعته مونځ اوکړی فِي کُلِّ رَکْعَةٍ رُکُوعٌ وَاحِدٌ چه په هر رکعت کښې یوه رکوع ده

**حل اللغة** > ①انکسفت، انکسف،انکسافا: د نمر تندر نیول ② صلی،صلی صلاة: مونځ کول ③ هیئة: حالت ④ قرب: نیزدیوالې ]

**تشریح**> **صلاة الکسوف مثل النفل**>مسئله دا ده.که نمر تندر اونیولو.نو دجمعې امام دے په جامع مسجد یا عیدګاه کښې خلقو ته دنفل په شان دوه رکعته نفل مونځ اوکړی.یعنی څنګه چه نفل داذان اواقامت نه بغیرکیږی.نوهم دغه شان داذان او اقامت نه بغیر دکسوف مونځ ادا کیږی.

**اعدد رکوع الکسوف**> ①په یورکعت کښې یوه رکوع ده.دا زمونږ د احنافو مذهب دې (۱)

**دلیله** > دلیل دعبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنه روایت دې. [قال انکسفت الشمس علی عهد رسول الله ﷺ فقام رسول الله ﷺ فلم یکد یرکع ثم رکع فلم یکد یرفع ثم رفع فلم یکد یسجد ثم سجد فلم یکد یرفع ثم رفع فلم یکد یسجد ثم

---

۱ ، په زیربحث مسئله کښې امام مالك امام شافعی او امام احمد رحمهم الله فرمائیلی دی.چه دکسوف په مونځ کښې به یو رکعت کښې دوه رکوع ګانې دی.

سجد فلم يكد يرفع ثم رفع وفعل في الركعة الأخرى مثل ذلك][1] يعني په عهد رسالت كښې نمر تندر اونيولو.نورسول الله ﷺ دومره اوږد قيام اوكړلو.چه لكه نبی ﷺ ركوع نه كوی.بيا نبی ﷺ دومره اوږده ركوع اوكړله.چه معلوميدله چه نبی ﷺ سرنه اوچتوی.بيا ئے اوچت كړلو.نو معلوميده چه نبی ﷺ سجده نه كوی.بيا ئې سجده اوكړه.نو د سجدے نه د سر اوچتولو امكان په نظر نه راتلو.بيا ئې سراوچت كړو.نود دويمے سجدے امكان په نظر نه راتلو.بيا هغوی ﷺ سجده اوكړه.نو داسې ښكاريده چه سر نه اوچتوی.خو نبی ﷺ سر اوچت كړو.هم دا عمل نبی ﷺ په دويم ركعت كښې اوكړلو. ددې حديث نه داخبره معلومه شوه.چه نبی ﷺ په يو ركعت كښې يوه ركوع ګانڼے كړې دی.اګر چه ركوع اوسجده ډيره اوږده وه.

**د اوږد او په پټه قرات كولو حكم**

| وَيُطَوِّلُ الْقِرَاءَةَ فِيهِمَا اوپه دواړو ركعتونو كښې به قرات اوږدوی |
|---|

**حل اللغة** ➊يطول، طول تطويلاً: اوږدول ➋قراءة: لوستل ➌يخفى،اخفى اخفاء: پټول ➍يجهر، جهر،جهراً (ف): ښكاره كول

**تشريح** ﴿ قدرتطويل القراءة ﴾ مسئله داده.چه دكسوف دمونځ په دواړو ركعتونو كښې به اوږد قرات كوی.اوپه بعضو احاديثو كښې دی.چه اول ركعت به په اندازه دسورة بقره او دويم ركعت په اندازه د آل عمران وی

**فضيلة التطويل** ﴿ حاصل دا دې چې دلته دوه خبرې دی يو د قرايت اوږدول او بل په قرات كښې جهر يا اخفاء كول خو افضل دی.خكه چه دا ثابت دی.چه په اولنی ركعت كښې د رسول الله ﷺ قيام په اندازه د سورة بقره او په دويم ركعت كښې په اندازه د آل عمران وو.نو په قرات كښې اوږدوالی كښې د رسول الله ﷺ متابعت دې.اوكه زړه ئې اوغواړی.نو په قرات كښې دے تخفيف اوكړی.يعنی قرات دے مختصر كړی.خكه چه مسنون خو دا دی.چه د تندر نيولو وخت په مونځ او دعا سره راګير كړې شی.نوكه په يو كښې تخفيف اوكړی.نو په بل كښې به اوږدوالے كوی. علامه ابن ايهام رحمه الله فرمائيلی دی[والحق ان السنة التطويل والمندوب مجرد استيعاب الوقت] يعنی حق دا دې. چه قرات اوږدول مسنون دی.اوپه كسوف كښ د وخت استيعاب كول مستحب دې. لكه چه په حديث مغيره بن شعبه رضی الله عنه كښې دی[فاذا رأيتموها فادعوا الله وصلوا حتى تنجلی](صحيحين) بيا چه كله تاسو داسې څيزونه اوګورئ. (كسوف وغيره) نو دالله تعالى نه دعا غواړئ. او مونځ كوئ. تردے چه دا روښانه شی.اوګورئ د نمر روښانه كيدو پورې دمونځ اوږدولو حكم وركړې شوې دې.اودا به هغه وخت وی.چه كله قرات اوږدكړې شی. نو معلومه شوه .چه قرات ته طول وركول مسنون دی.

| وَيُخْفِي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اود ابوحنيفه رحمه الله په نيز به پټ قرات كوی |
|---|

---

[1] ) قال الزيلعي رحمه الله لم أجده من رواية ابن عمر وانما وجدناه عن ابن عمروبن العاص رضی الله عنهما ولعله تصحف على المصنف ثم ذكر رواية ابن عمر رضی الله عنهما عازياً إلى أبي داود والنسائي والترمذي في الشمائل (وهو في ابوداودفي صلاة الاستسقاء باب ۹ رقم ۱۱۹۴ وفي النسائي في السنن الكبرى (۵۷٤/۱) رقم ۱۸٦۷ واحمد في المسند (۱۹۱/۲)والمستدرك (۳۲۹/۱) وقال زين الدين قاسم بن قطلوبغا في ،،فيما فات الزيلعي منية الألمعي،، قلت بل نسخ المعجم يوجد فيها ،،عمر،، بغيرواو يقول العبدالضعيف شاه فيصل لكن لم يصرح بالمعجم الذى ادعى وجوده فيه لمن هو مع ان المعاجم كثيرون۔

**تشريح> الجهر والإخفاء>** ① كه قرات جهري اوكري يا سري، حضرت امام صاحب رحمه الله فرمائي. چه دكسوف په مانځه كښې به سري قرات كوي. ددې قائل امام مالك امام شافعي او جمهورفقهاء رحمهم الله هم دي.[1]

**دلائله >** د امام ابوحنيفه دليل د ابن عباس او سمره بن جندب حديث دې. ① د ابن عباس رضي الله عنهما دحديث الفاظ دادي. [عن ابن عباس صليت مع النبي ﷺ الكسوف فلم اسمع منه حرفا من القراءة] ([2]) يعني ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي. چه ما د نبي ﷺ سره دكسوف مونځ كړې دې. خو د دوى د قرات نه مې يو حرف هم نه وو اوريدلې.

② هم ددې په شان د سمره بن جندب رضي الله عنه حديث دې. [صلى بنا في كسوف الشمس لانسمع له صوتا] ([3]) يعني مونږ ته د كسوف شمس په حالت كښې مونځ اوكړو. اومونږ ددوى آواز نه اوريدلو.

| وَقَالَاأَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌيَجْهَرُ او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دي. چې جهر به كوي. |
|---|

**تشريح>** اوصاحبين فرمائي. چه جهربه كوي. دا قول د امام احمد هم دې. دا امام طحاوي هم اختيار كړې دې.

**دليلهما >** په جهري قرات كولو باندې د صاحبينو دليل د عائشه رضي الله عنها حديث دې. [قالت جهرالنبي ﷺ في صلوة الخسوف بقرأته] ([4]) عائشه رضي الله عنها فرمائي. چه رسول اكرم ﷺ دكسوف په مانځه كښې په جهر قرات كړې وو.

**مرجوحية رواية عائشة رضي الله عنها >** صاحب دهدايه رحمه الله د قرات په جهري اوسري كولو كښې تعارض دحديث داسې لرې كړې دې. چه د ابن عباس اوسمره بن جندب روايت ته نې دعائشه رضي الله عنها په روايت باندې ترجيح وركړې ده. او وجه د ترجيح دا ده. چه په مونځ كښې سړې چونكه امام ته زيات نيزدې وي. ځكه دښځو په نسبت د دوى حال زيات واضح وي. او د امام د مونځ كيفيت او دقرات په جهر اواخفاء كولو كښې دسړو قول راجح وي.

**تائيد قول ابي حنيفة>** صاحب دهدايه دامام صاحب مذهب مضبوطولو دپاره زوردارو الفاظو كښې فرمائي. چه دكسوف په مونځ كښې به اخفاء دقرات ولې نه وي. حالانكه دكسوف مونځ د ورځې مونځ

---

[1] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٢\٥٦) والعناية (٢\٥٦) وبدائع الصنائع (١\٢٨١) والبحر(٢\١٦٧) والمنية (١\١٥٣) والدرالمختار(١\٦٢٢) نقلاً عن القول الراجح (١\١٥٣)-

[2] ) أخرجه أحمد في مسنده (١/٢٩٣، ٣٥٠) وابويعلى الموصلي في مسنده والبيهقي في السنن الكبرى (٣/٤٦٦) رقم (١٣٤١) والطحاوي في شرح الآثار (١/١٩٧) وابونعيم في الحلية في ترجمة عكرمة والطبراني في معجمه بحواله مجمع الزوائد للبيهقي (٢/٢٠٧) والبيهقي في ،،المعرفة،، من طريق ابن لهيعة ورواه أيضاً في السنن الكبرى (٣/٤٦٦) من طريقه)_

[3] ) أخرجه أبوداود في الإستسقاء باب ٤ رقم ١١٨٤ والنسائي في السنن السنن الكبرى (١/ ٥٧٥)رقم ١٨٦٩) وأحمد في المسند (٥/١٦، ١٧)والحاكم في المستدرك (١/٣٣٠)_

[4] ) أخرجه البخاري في الكسوف رقم ١٠٤٤و مسلم في الكسوف رقم ١،ابوداو في صلاة الإستسقاء باب ٤ ٤ رقم ١١٨ والترمذي في الجمعة باب ٤٤ والنسائي في الكسوف باب ٦ وابن ماجه في الإقامة باب ١٥٢ رقم ١٢٦٣ ومالك في صلاة الكسوف باب ١ رقم ١ وأحمد في المسند (٦/٥٣ )_

دي.او د ورځې د مونځونو په باره کښې رحمت دو عالم ﷺ فرمانيلي دی. [صلوة النهار عجماء] يعني د ورځې مونځ ګونګړوی.مراد دادې.چه د ورځې په مونځونوکښې قرات په پټه کولې شی.په اوچت آواز نشی کولې.

**ملحوظه>** اګرچه زمونږ مذهب اخفاء بالقراءة ده.خو چونکه دا مونځ اوږد وی. ددې وجې متاخرينو عالمانو فرمانيلی دی.که دمقتديانو د ستومانه کيدو ويره وی.نوپه صلاة الکسوف کښې جهر هم کولې شی.(درس ترمذی (۳۵۴/۲)۔

## دمونځ نه پس د دعا حکم

**ثُمَّ يَدْعُو بَعْدَهَا حَتّٰى تَنْجَلِيَ الشَّمْسُ** اودمونځ نه پس دې دعا اوکړی.تردې چې نمر روښانه شی

**حل اللغة >** ① يدعو، دعا دعاء (ن): رابلل،دعاکول ② تنجلی،انجلی انجلاء: کولاويدل، روښانه کيدل

**تشريح> کيفية الدعاء بعد الصلاة>** فرمائی چه دکسوف د مونځ نه پس د نمر د روښانه کيدو پورې دعااوکړې شی.دعا دې مخ په قبله کينی او اوکړی.يادې په ولاړه اوکړی.اګرکه خلقو ته مخ کړی .اودعا اوکړی.اوخلق مخ په قبله وی.او د امام په دعا دې آمين وائی.

**دلائله>** دليل د نبیﷺ دا قول دې.① [اذا رأيتم من هذه الأفزاع شيئاً فارغبوا إلى الله بالدعاء] (1)

② صاحب دکتاب فرمائی.چه په دعاګانو کښې مسنون دا دی.چه د مانځه نه پس وی.د ابوامامه نه مروی دی. [قيل يا رسول الله أيّ الدّعاء أسمع قال جوف الليل الأخير ودبر الصلوة المكتوبة] (2) د نبیﷺ نه تپوس اوکړې شو.چه کومه دعا زياته مقبوله ده.وې فرمائيل.چه د آخرې شپې مينځنۍ حصه کښې.اود فرض مونځ نه پس،ددې حديث ن صرف د فرض مونځ نه پس د دعا مسنونيت معلوم شو.دې نه علاوه مغيره بن شعبه رضی الله عنه فرمائی.چه نبیﷺ به د هر مانځه نه پس دعا کوله.(بخاری فی التاريخ الاوسط)

## دجمعې امام به دصلوة الکسوف امامت کوی

**وَيُصَلِّي بِهِمُ الْإِمَامُ الَّذِي يُصَلِّي بِهِمُ الْجُمُعَةَ** اودکسوف مونځ دې خلقو ته هغه امام ورکړی.څوک چې دوی ته جُمعه ورکوی **فَإِنْ لَمْ يَحْضُرِ الْإِمَامُ** اوکه امام حاضرنه وی **صَلَّاهَا النَّاسُ فُرَادٰى** نو خلق دې خانله مونځ اوکړی.

**حل اللغة >** ① يصلی، صلی صلاة: مونځ کول، دعاکول ② لم يحضر، حضر حضوراً (ن) حاضريدل ③ فرادی: خان له

---

(1) خرجه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم خرج وفي الصحيحين من حديث مغيرة بن شعبة رضی الله عنه فإذا رأيتموها فادعوالله وصلوا واخرجا ايضاً عن ابی موسٰی الأشعری رضی الله عنه (فإذا رأيتم شيأ من ذلك فافزعوا إلى ذكر الله ودعائه واخرجا ايضاً عن عائشة رضی الله عنها (وإذا رأيتموهما فكبروا وادعوا وصلوا) نصب الراية (۲۴۲/۲) يقول العبد الضعيف اما حديث مغيرة رضی الله عنه ففی البخاری كتاب الجمعة باب الدعاء في رقم ۱۰۰۰ وأما حديث أبي موسى الأشعری رضی الله عنه ففی البخاری في كتاب الجمعة باب الذكر في الكسوف رقم ۹۹۹ وأما حديث عائشة رضی الله عنها ففی البخاری في كتاب الجمعة باب هل يقول كسف الشمس أو خسفت رقم ۹۸۹)۔

(2) قال الزيلعی رحمه الله اخرج الترمذی في جمعه في كتاب الدعوات والنسائی في كتاب اليوم والليلة عن عبدالرحمن بن سابط عن ابی أمامة قيل يا رسول الله ﷺ ای الدعاء اسمع؟قال جوف الليل الأخير ودبرالصلوات المكتوبات إنتهى نصب الراية ۲۴۲/۲)۔

**تشریح﴾ من یصلی صلاة الکسوف؟ ﴿**مسئله دا ده.چه دکسوف په مانځه کښې هغه امام مقررشی . څوك چه خلقو ته دجمعې اواخترونو مونځونه ورکوی.اوکه دجمعې امام موجود نه وی.نو خلق دې خانله خانله مونځ ادا کړی.

**دلیله﴾** ځکه چه په دې کښې د فتنې امکان دې.اودجماعت په صورت کښې د فتنې غالب امکان دې.په دې طریقه چه هرسړې به دامام جوړیدو کوشش کوی.یا به دخپلې خوښې امام مخکښې کوی.ددې شور شغب نه بهتره هم داده چه خانله خانله دکسوف مونځ اداکړی.

## د سپوږمۍ په تندر نیولو کښې دجماعت حکم

| وَلَيْسَ فِي خُسُوفِ الْقَمَرِ جَمَاعَةٌ او دسپوږمۍ په تندر نیولو کښې جماعت نشته وَلَيْسَ فِي خُسُوفِ الْقَمَرِ جَمَاعَةٌ او هرسړې به په خپله خپل مونځ کوی وَإِنَّمَا يُصَلِّي كُلُّ وَاحِدٍ بِنَفْسِهِ او مونځ به کوی هریو خانله خانله |
|---|

**حل اللغة ﴾**① خسوف:د سپوږمئی تندر نیول ② تعذر: سختی مشکل ③اجتماع: راجمع کیدل ④ خوف: ویره

**تشریح﴾ صلاة الخسوف منفرداً﴾**مسئله:د سپوږمۍ د تندر نیولو په صورت کښې که مونځ کوی.نو په دې کښې جماعت نشته ،یا خو په دې وجه چه په شپه کښې دخلقو یوځائې کیدل متعذر وی.او یا په دې وجه چه په شپه کښې د فتنې ویره وی.نوهر سړې دې په خپله خانله مونځ کوی.

**دلیله﴾**دلیل د نبیﷺ قول [اذا رأیتم شیئاً من هذه الأهوال فافزعوا الی الصلوٰة] وجه د استدلال دا ده.چه په حدیث کښې دجماعت تصریح نه ده شوې.او اصل عدم جماعت دې.ځکه وئیلی شوی دی.چه په خسوف قمر کښې جماعت نشته.

**السوال﴾**دلته یوسوال دې.هغه دا چه [فافزعوا الی الصلوٰة]د امرصیغه ده.اوامردوجوب دپاره راځی. ځکه مناسب به وی چه دکسوف مونځ واجب اوگرځولې شی.

**الجواب﴾**جواب:چونکه دکسوف مونځ د شعائر اسلام څخه نه دې.بلکه دعارض (دکسوف) د وجې دې.ځکه دکسوف مونځ واجب نه دې.خوچه نبی ﷺ کړې دې.ځکه مسنون دې.او په حدیث کښې دننه د امر صیغه د ندب دپاره ده. د وجوب دپاره نه ده.

| وَلَيْسَ فِي الْكُسُوفِ خُطْبَةٌ او په کسوف کښې خطبه نشته |
|---|

**تشریح﴾ عدم الخطبة فی الکسوفین﴾** ①امام ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه دکسوف او خسوف په مانځه کښې خطبه نشته.

**دلیله﴾**صاحب د هدایه د دې دا دلیل بیان کړې دې چه خطبه په دوو خبروکښې د یو دپاره مشروع شوې ده.یا خوخطبه د جواز صلوٰة شرط ده.لکه چه د جمعې په مانځه کښې ده.یاد تعلیم احکام دپاره

ده.لکه څنګه چه د اخترونو په مانځه کښې ده.دکسوف په مانځه کښې په دې دواړو خبروکښې یو هم نشته.څکه د کسوف د مونځ دپاره خطبه مشروع نه وی.(١)

### د استسقاء د مونځ بیان

## بَابُ الْاِسْتِسْقَاءِ

**ترجمه** (دا) باب داستسقاء(په احکامو کښې) دې.

**تشریح** **معنی الإستسقاء ووجه مشروعیته** استسقاء خړوبول غوښتلو ته وائی.ښکاره ده.چه استسقاء په داسې مقام باندې وی.چه چرته کښې نهر،تالاب،اوچینه نه وی.چه ددې نه خپله اوبه اوڅکی. او څاروو باندې اوبه اوڅکوی.یا دا څیزونه وی.خو ددوی ضرورت دپاره کافی نه وی.اوکه دا څیزونه کافی وی نوخلق به د استسقاء دپاره نه اوځی.څکه چه استسقاء دسخت ضرورت په وخت کښې کیږی.بیا چه کله د استسقاء اراده وی.نومستحب دا دی.چه امام دوی ته د درې ورځو پورې د روژې نیولو او د توبې ویستلوحکم اوکړی.بیا په څلورمه ورځ د دوی سره اوځی.

### په استسقاء کښې دامام اعظم رحمه الله په نیزعدم جماعت

| |
|---|
| قَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ رحمه الله لَيْسَ فِي الْإِسْتِسْقَاءِ صَلَاةٌ مَسْنُوْنَةٌ بِالْجَمَاعَةِ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائیلی دی.چې په استسقاء کښې د جماعت سره هیڅ مسنون مونځ نشته فَإِنْ صَلَّى النَّاسُ وُحْدَانًا جَازَ نوکه خلقو څانله څانله مونځ اوکړی.نوجائزدی وَإِنَّمَا الْإِسْتِسْقَاءُ الدُّعَاءُ وَالْإِسْتِغْفَارُ او استسقاء خو صرف دعا اواستغفاردې |

**حل اللغة** ①وحدانًا: څان له ②جاز، جاز جوازًا (ن) : جائز کیدل ③استسقاء:اوبه غوښتل

**تشریح** **عدم الصلاة في الإستسقاء عند أبي حنيفة رحمه الله** په دې باره کښې اختلاف دې.چه استسقاء څه څیز دې.صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز استسقاء فقط د دعا او استغفار نوم دې.په استسقاء کښې په جماعت سره هیڅ مسنون مونځ نشته.که څانله څانله مونځ اوکړې شی.نوجائزدې.

**دلیله** ①دلیل دالله تعالی قول: ﴿فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ۖ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ۝ يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا﴾ دې.(نوما اووئیل چه دخپل رب نه معافی غواړئ.بیشکه هغه ډیر بخونکې دې.په تاسو به راولیګی دآسمان نه پرله پسې باران،وجه د استدلال داده.چه الله تعالی د باران نازلیدل په استغفار باندې معلق کړی دی. په مانځه پورې نه دی.نومعلومه شوه.چه په استسقاء (سیرابی غوښتلو)کښې اصل دعاء او استغفار دې.

### دصاحبینو رحمهما الله نقطه نظر

| |
|---|
| وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ يُصَلِّي الْإِمَامُ رَكْعَتَيْنِ اوصاحبینو رحمهما الله وئیلی دی.چه امام دې دوه رکعته اوکړی. |

١) غلط الزيلعي رحمه الله قول صاحب الهداية من عدم نقل الخطبة في الكسوف ثم نقل حديث اسماء :ثم انصرف بعدان تجلت الشمس فقام فخطب الناس، الحديث،، نصب الراية ٢/٢٤٣)۔

**تشریح** > **سنية صلاة الإستسقاء عند الصاحبين** رحمهما الله > په استسقاء کښې د صاحبينو رحمهما الله مذهب دادې چه امام دے خلقو ته دوه رکعته اوکړی.هم دا قول د امام مالك امام شافعی او امام احمد رحمهم الله دې.[1]

**دليلهما** > ① دليل د ابن عباس رضي الله عنهما قول دے [**خرج رسول الله ﷺ متبذلاً متواضعاً متضرعاً حتی أتی المصلی فلم يخطب خطبتکم هذه ولکن لم يزل في الدعاء والتضرع والتکبير وصلی رکعتين کما يصلي في العيدين**] ([2]) يعنی رسول الله ﷺ په ډيره عاجزۍ او انکسارۍ سره راووتلو.او عيدګاه طرف ته ئې تشريف يوړلو. خوخطبه ئې اونه ونيله.او برابر په دعا او ژړا زارۍ کښې لګيا شو.او نبیﷺ دوه رکعته مونځ اوکړو.څنګه چه په اخترونو کښې کولې شی.

**الجواب عنه** > خو د دې نه جواب دا دې.چه دوی په استسقاء کښې کله مونځ کړې دے اوکله ئې پريخودے دې.نوځکه ددې نه د استسقاء مونځ خو ثابتيږی.خو مسنونيت نه ثابتيږی.او ښکاره ده.چه د جواز نه مونږ هم انکار نه کوو.بلکه کلام د استسقاء دمونځ په مسنونيت اوعدم مسنونيت کښې دې.اوسنت هغه دے چه په هغې باندې نبی کريم ﷺ هميشوالې فرمائيلی وی.

**په استسقاء کښې په قرات باندې د جهرکولو حکم**

| **وَيَجْهَرُ فِيهِمَا بِالْقِرَاءَةِ** او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلی دی.چې په دواړه رکعتوکښې به په جهر سره قرات کوی. **ثُمَّ يَخْطُبُ** بيا به خطبه وائی |
|---|

**حل اللغة** > ①يجهر،جهر جهراً (ف): ښکاره کول ②يخطب، خطب، خطبة (ن):تقريرکول، وعظ کول،د امام خلقو ته خطبه ورکول ]

**تشريح** > **الجهر بالقراءة في صلاة الإستسقاء** > صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه د اخترد مونځ په شان به د استسقاء په دواړه رکعتونو کښې قرات بالجهر کوی.(لکه څنګه چه د اختر دوه رکعته دی.اود ورځې دی.او په هغې کښې قرات په جهر سره وی.نودغه شان به د استسقاء په مانځه کښې هم قرات په جهر سره وی.

**خطبة الإستسقاء** > بيا دے خطبه وائی.ځکه چه د نبیﷺ نه خطبه ونيل ثابت ده.([3])

**المذاهب الثلاثة في الخطبة** > ①خود امام محمد رحمه الله په نيز د اختر په شان دوه خطبے دی.د دواړو په مينځ کښې به کينی اوفصل به کوی. ②اود امام ابويوسف رحمه الله په نيزيوه خطبه ده.په زمکه به اودريږی .او خلقو طرف ته به په توجه سره ئې وائی[1].

---

[1] القول الراجح قال العلامة ابن العابدين رحمه الله ،،قوله بل هي،، أی الجماعة جائزة لا مکروهة وهذا موافق لما ذکره شيخ الاسلام من أن الخلاف في السنية لا في اصل المشروعية ثم قال المفتی غلام قادرمدظله العالی والعمل اليوم علی قول الصاحبين رحمهما الله کذا في القول الراجح (١\١٣٤)۔

[2] أخرجه رواه ابوداود في الإستسقاء باب ١، والترمذی في الجمعة باب ٤٤ ، والنسائی في الإستسقاء باب ٣ وابن ماجه في الإقامة باب ١٥٣ واحمد في السند (٢٣/١، ٢٦٩، ٣٥٥)۔

[3] أخرجه رواه ابوداود في الإستسقاء باب ١، والترمذی في الجمعة باب ٤٤ ، والنسائی في الإستسقاء باب ٣ وابن ماجه في الإقامة باب ١٥٣ واحمد في السند (٢٣/١، ٢٦٩، ٣٥٥)۔

③ اود ابوحنیفه رحمه الله په نیز خطبه نشته.ځکه چه خطبه د جماعت تابع وی.او د امام صاحب په نیز جماعت نشته.

## په استسقاء کښې د دعا مستحب طریقه

| وَيَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ بِالدُّعَاءِ او په دعا کښې به قبلې طرف ته متوجه وی |
|---|

**تشریح** > **استقبال القبلة** > د استسقاء په دعا کښې مستحب طریقه دا ده.چه د قبلې په طرف مخ کړی.

**دلیله** > ځکه چه د نبی ﷺ نه په دعا کښې استقبال قبله او د څادر اړول مروی دی.

| وَيَقْلِبُ الْإِمَامُ رِدَاءَهُ او خپل څادر نی اَلټه کړو. |
|---|

**تشریح** > **سنة تحویل الرداء** > صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه خپل څادر دے اَلټه کړی.اوددې طریقه دا ده.که څادر خلور ګوټه وی.نو پورتنی حصه دے لاندې کړی.او لاندینی حصه دے پورته کړی .اوکه مدور(ګول)وی.لکه جبه،نوبښی حصه دے ګس طرف ته کړی.او ګسه حصه دے ښی طرف ته کړی.

**دلیله** > د څادر په اړولو باندې دلیل دا حدیث دې [۲]

صاحب دهدایه رحمه الله وائی.د قلب رداء حکم د امام محمد رحمه الله مذهب دې.هم ددې قائل امام مالك امام شافعی او امام احمد رحمهم الله دی.[۳]

**عدم تحویل الرداء عند أبي حنیفة رحمه الله** > پاتې شو د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب.نوددوی په نیز به څادر اړول نه کوی.هم دا د امام ابویوسف رحمه الله مذهب دې.

**دلیله** > د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه دا دعا ده.نودا به په نورو دعاګانو باندې قیاس کولې شی.او په نوروکښې څادر اړول نشته..ځکه به داستسقاء په دعا کښې هم څادر اړول نه کیږی . او دهغې روایت جواب چه په کښې قلب رداء مروی ده.دادې.چه دا تفاولاً وو یا دا چه نبی ﷺ ته د وحی په ذریعه د آسمان حال متغیر کیدل د قلب رداء په وخت معلوم شوی وی.ځکه نبی ﷺ قلب رداء فرمایلې ده.صاحب د قدوری فرمائی.چه خلق دے خپل څادرونه نه اړوی.ځکه چه دا نه دی نقل شوې.چه نبی ﷺ دوی ته د څادرونه اړولو حکم کړې دې.

| وَلَا يَقْلِبُ الْقَوْمُ أَرْدِيَتَهُمْ او قوم به خپل څادرونه نه اړووی |
|---|

**تشریح** > د قوم دپاره د څادرونو اړول نشته ځکه څادرونه نه اړوی چه د نبی نه دا نه دی نقل چه هغوی صحابه کرامو ته د څادرونو اړولو حکم کړې وی

---

[۱] ) القول الراجح هو قول أبي یوسف رحمه الله كذا في فتح القدیر(۲\۶۰) والكفایة (۲\۶۰) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۵۴)

[۲] ) من حدیث عبدالله بن زید رضي الله عنه اخرجه البخاری في الإستسقاء باب ۱، مسلم في الإستسقاء رقم ۱، ابوداود في الإستسقاء باب ۱ والترمذی في الجمعة باب ۴۳ والنسائی في الإستسقاء باب ۷ وابن ماجه في إقامة الصلاة والسنة فیها باب ۱۵۳ رقم ۱۲۶۷ والدارمی في الصلاة باب۱۸۸ احمد في المسند (۳۹/۴، ۴۱)۔

[۳] ) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في ردالمحتار(۱\۶۲۴) والهندیة (۱\۱۵۴) والبحرالرائق (۲\۱۶۸) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۵۵)۔

**الإعتراض>** که څوك دا اووائي چه دا حديث راغلے دې.چه نبيﷺ څادر واړولو.نوخلقو چه نبيﷺ اوليدلو. خپل څادرونه ئے واړول.اونبيﷺ په هغوی باندې انکاراونکړلو.نوددې نه ثابته شوه.چه د قوم دپاره هم څادرونه اړول سنت دی.

**الجواب>** په دې موقع باندې دخلقوڅادرونه اړول داسې وو.لکه څنګه چه نبيﷺ د مانځه په دوران کښې پنړے اوويستلې.چه صحابوؓ اوليدلو.نوهغوی هم خپلے پنړے اوويستلې. نوهلته د پنړو ويستل حجت نه وو.نو دغه شان به دلته هم دڅادرونو اړول حجت نه وی.او نبيﷺ انکار ددې وجې اونکړلو.چه د څادرونه اړول په اتفاق سره حرام نه دی.بلکه کلام ددې په مسنونيت کښې دې.

وَلَا يَحْضُرُ أَهْلُ الذِّمَّةِ الِاسْتِسْقَاءَاو په استسقاء کښې به ذمی خلق نه حاضريږی

**تشريح> حضورأهل الذمة صلاة الإستسقاء>** صاحب د قدوری رَحِمَهُ اللهُ فرمائی.چه استسقاء کښې دے ذميان خلق نه حاضريږی.

**دليله>** ځکه چه د مسلمانانو وتل د رحمت د نازليدو په غرض د دعا دپاره وی.اود کافرانو په باره کښې الله تعالی فرمائی. ﴿وَمَا دُعَآءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ﴾ يعنی د کافرانو دعا ضائع او په تاوان کښې

**صورة جواز خروج أهل الذمة>** دامام مالك ،امام شافعي او امام محمد رَحِمَهُمُ اللهُ فرمائی.چه ذميانو ته به د استسقاء دپاره د وتلو حکم نشی کولې.اوکه دوی په خپله راوځی.نو منع کولے به هم نشی.خو دا خبره دے يادہ وی.چه ذميان دے يوه ورځ هم يوانځے نه راوځی.بلکه کله چه هغوی راوځی.نوڅه مسلمانان دے ورسره ضرور وی.ځکه چه د استسقاء په ذريعه د رزق طلب مقصود وی.او الله تعالی مومن او کافر ټولو ته رزق ورکوی.نوکه کافر په يوه ورځ کښې خانله د الله تعالی په دربار کښې دعا اوکړی.او په اتفاق سره په هغه ورځ باران اوشی.نو په دې به ډيره فتنه پيدا شی.

# بَابُ قِيَامِ شَهْرِ رَمَضَانَ

زباړه:- دا باب د رمضان د قيام (په بيان) کې دې.

**تشريح:- وجه ذكر لفظ رمضان ®** صاحب دقدوری په عنوان کې د قيام رمضان لفظ دحديث په اتباع کې ذکرکړې دې.ځکه‌چې حضورﷺ فرمانيلی دی.﴿ ان الله تعالى فرض عليكم صيامه و سنت لكم قيامه ﴾يعنی الله تعالی په تاسو باندې د رمضان روژه فرض کړې ده.اوما ستاسو لپاره ددے قيام مسنون کړو.(ابن ماجه) په حديث کې د قيام رمضان لفظ موجود دې.په دے وجه د فصل عنوان هم په دے لفظ سره تجويز کړې شو.

**الربط بماقبله ووجوه الفرق بين النوافل والتراويح®** د تراويح لمونځ چونکه د نوافلو نه لږ شان مختلف دې.ځکه ئې تراويح يعنی قيام الليل په خانله فصل کې ذکر کړلو.تراويح د عامو نوافلو نه په څو خبرو کې مختلف دې. ①اوله داچې څلورم داچې په تراويحو کې يو قرآن ختمول مسنون دی.په نورو نفلونو کې دا سنت نه دی② دوهم داچې نوافل د هيڅ وخت سره خاص نه دی.او تراويح د رمضان د شپو سره مخصوص دی.③ دريم داچې نفلو کې د رکعتونو تحديد نشته دې.او په تراويحو کې د رکعتونو حد شته.④ په عامو نفلونو کې جماعت نشته او په تراويح کې جماعت دې.(عنايه)

**د تراويحو حکم او رکعتونه**

(يُسْتَحَبُّ أَنْ يَجْتَمِعَ النَّاسُ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ بَعْدَ الْعِشَاءِ د رمضان په مياشت کې د ماسخوتن نه روسته د خلګو

راجمع کېدل مستحب دي

**حل اللغة**:① ان يجتمع،اجتمع اجتماعًا جمع کېدل

**تشريح**:- **كيفية اداء التراويح**۞امام قدوري رحمه الله فرمائي چې د ماسخوتن د فرضو نه روسته د رمضان په مياشت کې د تراويحو په غرض سره د خلګو راجمع کېدل مستحب دي.امام به خلګو ته پنځه ترويحې کوي.هره ترويحه به په دوو سلامونو سره ادا کوي.او د هر دوو ترويحو په مينځ کې به د يو ترويحې په مقدار د آرام په غرض کېني.بيا به امام دوی ته وتر لمونځ کوي.

**وجه تسمية التراويح**۞صاحب د عنايه ليکلي دي.چې ترويحه دڅلور رکعتو نوم دې.ځکه چې څلور رکعتونه راحت او آرام ته رسوي.يعني د څلور رکعتونو نه روسته د راحت او آرام اجازت ورکړې شوېدې.

**حكم التراويح**۞د قدوري د عبارت نه معلوميږي.چې د تراويح لمونځ مستحب دې. علامه مرغيناني فرمائي چې صحيح خبره دا ده.چې تراويح سنت موٴکده دی. د سړو لپاره هم او د ښځو لپاره هم.د امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم دا مروي دي.چې تراويح سنت موٴکده دی.

**دليله**:-د سنت موٴکده دليل دا دې.چې خلفاء راشدينو رضي الله عنهم د تراويحو لمونځ باندې مواظبت او هميشوالے کړې دې. اودخلفاء راشدينو رضي الله عنهم په يو عمل باندې مواظبت کول د هغې د مسنونيت دليل دې.ځکه چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي.«عليكم بسنتي و سنة خلفاء الراشدين من بعدي»يعني په تاسو باندې زما او زما نه روسته د خلفاؤ سنت لازم دی.دے حديث نه معلومه شوه.چې څنګه د نبي کريم ﷺ معمول بها طريقې ته سنت وئيلی شي.هم دغه ډول د خلفاء راشدينو رضي الله عنهم طريقې ته هم سنت وئيلی شي.

**الاختلاف في وقت التراويح**۞ ①په دے عبارت کې د تراويحو وخت بيان شوې دې.فرمائي چې د تراويحو وخت د ماسخوتن نه روسته او د وترو نه مخکې دې.عام مشائخ رحمهم الله دد ے قائلين دی.ترديې که د ماسخوتن نه مخکې يا د وترو نه روسته ئې د تراويحو لمونځ اوکړو.نو دا به تراويح نه وی.ځکه چې د تراويح علم د صحابو رضي الله عنهم د فعل نه ثابت شوې دې. نو صحابو رضي الله عنهم چې په کوم وخت کې د تراويحو لمونځ کړې دې.هم هغه به د تراويحو وخت وی.او دا خبره منلے شوې ده.چې صحابو رضي الله عنهم د ماسخوتن نه روسته د تراويحو لمونځ کړې دې.نود تراويحو به هم دا وخت وی.② او د بلخ د متاخرينو مشائخو رحمهم الله مذهب دادې.چې ټوله شپه د سهار صادق پورې د تراويحو وخت دې.د ماسخوتن نه مخکې هم او د ماسخوتن نه روسته هم.ځکه چې د تراويحو نوم قيام ليل دې. دد ے وخت به هم ليل يعني شپه وی.

**ترجيح المذهب الاول**۞اصح قول دادې.چې د تراويحو وخت د ماسخوتن نه روسته د آخري شپې پورې دې.د وترو نه مخکې هم او د وترو نه روسته هم.ځکه چې تراويح نفل دی.چې د ماسخوتن نه روسته مقرر شوی دی.نو د تراويحو لمونځ به د ماسخوتن د لمانځه تابع وی.او تابع د متبوع نه روسته وی. نود تراويح لمونځ به د ماسخوتن نه روسته وی مخکې به نه وی.

| فَيُصَلِّي بِهِمْ اِمَامُهُمْ خَمْسَ تَرْوِيْحَاتٍ.ددوی امام به دوی ته پنځه ترويحې کوي. فِي كُلِّ تَرْوِيْحَةٍ تَسْلِيْمَتَانِ په هره ترويحه دوه سلامونه دي وَيَجْلِسُ بَيْنَ كُلِّ تَرْوِيْحَتَيْنِ مِقْدَارَ تَرْوِيْحَةٍ او د هر دوو ترويحو په مينځ کې د يو ترويحې په مقدار سره به کېنيني ثُمَّ يُوْتِرُ بِهِمْ بيا دے امام دوی ته وتر اوکړي |
|---|

**حل اللغة**:①فيصلي، صلى صلاة: لمونځ کول دعاکول ②ترويحة: د کوم معنی چې مطلقاً کېنېنستل دی، بيا دې ناسته باندې اطلاق اوشوچې په رمضان کې دڅلورو رکعتونه روسته دآرام حاصلولو د پاره کيني. بيا هرو څلورو رکعتوته ترويحه اوونيلې شوه.

**ابتداء عشرين ركعة بجماعة**۞خوداً خبره په ذهن کې ساتئ.چې د هدايه په دے عبارت کې دخلفاء لفظ تغليباً

استعمال شوي دي.گنی دلته کي د خلفاء نه مراد حضرت عمر،عثمان،علی ﷺ مراد دی.ځکه‌چي باقاعده په جماعت سره د شل رکعته تراويحو پيل د فاروق اعظم ﷺ د عهد خلافت نه شوي وه.گنی ددے نه مخکي خلگو به خانله خانله تراويح کولي.حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل.«ان ارى ان اجمع الناس على امام واحد فجمعهم على ابى بن كعب فصلى بهم خمس ترويحات عشرين ركعة»څه خلگ په يو امام باندي راجمع کول غوارم .نو خلگ ئي په ابئ ابن کعب ﷺ باندي راجمع کړل.بيا ابئ ابن کعب ﷺ خلگو ته پنځه ترويحو کي شل رکعته لمونځ اوکړو.

**السوال**⊙چي د تراويح لمونځ سنت مؤکد دي.نو صاحب د قدوری لفظ د يستحب ولے اووئيلے؟

**الاجوبة**⊙ ①متقدمينو مشائخ ﷺ د يستحب لفظ کله د ډير ښه لپاره استعمالوی.او د ډير ښه لفظ واجب ته هم گډ دي.نو ممکن ده.چي د مستحب لفظ دلته کي هم په دے معنی وی.يعنی د تراويح لپاره اجتماع ډير ښه او د فضيلت شی دي.او دا سنت دی.

② شيخ ابوالحسن قدوری ﷺ د خلگو اجتماع ته مستحب وئيلی دی.د تراويح لمونځ ته ئي نه دی وئيلی.نو داسي اووايه .چي په رمضان المبارک کي دننه د ماسخوتن لمونځ نه روسته د خلگو اجتماع مستحب ده.خود تراويح لمونځ سنت دي.

③د خيني صحيح رواياتونه ثابت دی.چي نبی کريم ﷺ د وترو سره د تراويحو يوولس رکعته کړی دی.او د بعضو نه د شلو رکعتو ثبوت ملاويږي. يوولس رکعته د ابوسلمه بن عبدالرحمن دحديث نه ثابت دی.د حديث الفاظ دادی.«سالت عائشة ﷺ كيف كانت صلوة رسول الله ﷺ فى رمضان فقالت ما كان يزيد فى رمضان ولا غيره على احدى عشرة ركعة» (الحديث) (فتح القدير) ابوسلمه بن عبدالرحمن وائی‌چي ما دحضرت عائشه ﷺ نه پوښتنه اوکړو.چي په رمضان کي د رسول الله ﷺ لمونځ څنگه وو.دوی ﷺ اوفرمايل.چي رسول الله ﷺ به په رمضان او غير رمضان کي د يوولس رکعتو نه زيات نه کول .يعنی اته د تراويح، او درے دوترو.او د ابن عباس ﷺ د حديث نه د شلو رکعتو ثبوت ملاويږي.«انه ﷺ كان يصلى فى رمضان عشرين ركعة سوى الوتر»ابن عباس ﷺ وائی‌چي نبی کريم ﷺ به په رمضان المبارک کي د وترو نه علاوه شل رکعته کول.(فتح القدير) اوس بعضو حضراتو په دے دواړو حديثونو کي د تطبيق کاوه کوښښ کړي دي.دوی فرمائی.چي اته رکعته د وترو نه علاوه سنت دی.او شل رکعته مستحب دی.نو کيدي شی.چي صاحب د قدوری هم په دے قول باندي عمل کاوه په وجه يستحب وئيلی وی.يعنی شل رکعته په پنځو ترويحو کي مستحب دی.

**استحباب الترويحة** ⊙ په دے عبارت کي بيان شوی دی.چي د دوي (دوه) ترويحو په مينځ کي او د پنځمے ترويحے او د وترو په مينځ کي کښينستل مستحب دی.

**دليله**⊙دليل د اهل حرمين يعنی د مکي او مديني د خلگو عادت دي.د مکي خلگ د دوو ترويحو په مينځ کي د بيت الله طواف کوی.او د مديني خلگ ددے په عوض کي څلور رکعته نفل لمونځ کوی .او د هر ښار خلگو ته اختيار دي.چي د دوو ترويحو په مينځ کي تسبيح اووائی.يا د کلمے طيبے ورد اوکړی.يا خاموشۍ سره انتظار اوکړی.

## په غير رمضان کي د وتر دجماعت حکم

(وَلَا يُصَلَّى الْوِتْرُ بِجَمَاعَةٍ او وتر به جماعت سره نه کوی فِي غَيْرِ شَهْرِ رَمَضَانَ)د رمضان المبارک نه علاوه

**حل اللغة**:①لايصلى، صلى صلاة لمونځ کول،دعا کول ②شهر مياشت

**تشريح**:- **كراهة الوتربجماعة في غيررمضان**⊙د رمضان المبارک نه علاوه په نورومياشتوکي وتر په جماعت سره مشروع نه دی.ځکه‌چي وتر من وجه نفل دی.او د رمضان نه سوا کي نفل په جماعت سره کول مکروه دی.نو احتياط هم په دے کي دي.چي د رمضان نه سوا وتر جماعت سره اونکړي شی.هم په دے باندي د مسلمانانو

اجماع ده.

**الاختلاف في فضيلة الوتر بجماعة في رمضان**۞البته په رمضان المبارك کې وتر په جماعت سره کول مکروه نه دی.خو په افضليت کې اختلاف دی.① علامه ابن الهمام رحمه الله ونیلی دی.چې د رمضان په میاشت کې وتر په جماعت سره کول افضل دی.ځکه چې عمر رضی الله عنه به وتر په رمضان کې په جماعت سره کول.② او ابوعلی نسفی رحمه الله ذکر کړی دی.زموږ د عالمانو رحمهم الله په نیز جماعت سره نه کول افضل دی.ځکه چې ابی بن کعب رضی الله عنه به وتر د جماعت سره نه کول.والله اعلم.

## د ويرې د مونځ بيان

# بَابُ صَلَاةِ الْخَوْفِ

**ترجمه>** دا باب د ويرے د مونځ په بيان کښې دې.

**تشريح> الربط بما قبله>** قيام الليل د خوشحالئ حالت دې او صلاة الخوف د ويرې حالت دې.او خوشحالی او ويره د يوبل تضاد دې.نو دلته د تضاد په اعتبار سره يو بل سره ربط دې.لکه څنګه چې مونږ په پښتو کښې وايو غم او ښادی ورور خور دی.

د استسقاء اود ويرے مونځ په مينځ کښې مناسبت دادې.چه د دواړود مشروعيت د ويرے عارض دې.خودومره فرق دې.چه په استسقاء کښې عارض يعنی د باران منقطع کيدل، سماوی اوغير اختياری دې.او په صلاة الخوف کښې عارض اختياری دې.يعنی جهاد،چه ددې سبب د کافر کفراو د ظالم ظلم دې.نو غير اختيارئ څيز اقوی وی.ځکه صلاة استسقاء مقدم کړې شو.

### د صلاة الخوف کولو طريقه

| |
|---|
| إِذَا اشْتَدَّ الْخَوْفُ کله چې ويره زياته شی جَعَلَ الْإِمَامُ النَّاسَ طَائِفَتَيْنِ نوامام دے خلق دوه ډلے کړی طَائِفَةً إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ، وَطَائِفَةً خَلْفَهُ يوه ډله دے د دښمن مخے ته پريږدی.اوبله ډله دے خپل شاته کړی فَيُصَلِّي بِهَذِهِ الطَّائِفَةِ رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ نودے ډلے ته دے يورکعت او دوه سجدے مونځ اوکړی فَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ کله چې دے دويمے سجدے نه خپل سراوچت کړی مَضَتْ هَذِهِ الطَّائِفَةُ إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ نو دا ډله دے د دښمن مقابلے ته لاړه شی وَجَاءَتْ تِلْكَ الطَّائِفَةُ او هغه ډله دے راشی فَيُصَلِّي بِهِمُ الْإِمَامُ رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ نو امام دے دوی ته يو رکعت او دوه سجدے اوکړی وَتَشَهَّدَ وَسَلَّمَ اوتشهد دے اووائی.او سلام دے واړوی وَلَمْ يُسَلِّمُوا، وَذَهَبُوا إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ،اوددې ډلے خلق دے سلام نه اړوی.(بلکه هم په دې حالت کښې )دے د دښمن مخے ته لاړه شی وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُولَى او اوله ډله دے راشی فَصَلُّوا وُحْدَانًا رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ بِغَيْرِ قِرَاءَةٍ ددې ډلے خلق دے يورکعت او دوه سجدے خانله خانله بغير قراته پوره کړی وَتَشَهَّدُوا وَسَلَّمُوا وَمَضَوْا إِلَى وَجْهِ الْعَدُوِّ او تشهد دے اووائی.سلام دے واړوی.اوددښمن مقابلے ته دے لاړشی وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى او بله ډله دے راشی وَصَلَّوْا رَكْعَةً وَسَجْدَتَيْنِ بِقِرَاءَةٍ اويورکعت او دوه سجدے دے قرات سره اوکړی وَتَشَهَّدُوا وَسَلَّمُوا او تشهد دے اوکړی.اوسلام دے واړوی. |

**حل اللغة** ◄ ①اشتد، اشتد اشتدادا: سختیدل ② جعل، جعل جعلاً (ف):کول،جوړول ③ وجه: طرف ④ عدو جمع اعداء: دښمن ⑤ رفع،رفع رفعًا (ف): اوچتول ⑥ مضت،مضی مضیا (ض): تیریدل ⑦ وحدانا: خان له کیدو سره

**تشریح** ◄ **القولان في علة رخصة صلاة الخوف** ◄ ①دقدوری عبارت [اذا اشتد الخوف]نه په ظاهره معلومیږی .چه د ویرے د مونځ دجواز دپاره د ویرے سخت والے شرط دے.حالانکه د عامو مشائخو ﷫ په نیز د ویرے سختوالے شرط نه دے. بلکه د صلاة الخوف د جواز دپاره صرف د دښمن نزدیکت کافي دے. ②په دے وجه په مبسوط کښې وئیلی شوی دی.چه د بعضې خلقو په نیزد ویرے نه حقیقة خوف مراد نه دے.بلکه د دښمن وجود مراد دے.نود دښمن وجود د خوف قائم مقام دی.لکه چه نفس سفرد مشقت قائم مقام دے.اود مانځه د رخصت او د روژے د رخصت وغیره سبب دے.

**كيفية صلاة الخوف** ◄ د ویرے دمونځ طریقه دا ده.چه د وخت امام دے خلق په دوو ډلو کښې تقسیم کړی.یوه ډله دے د دښمن مخامخ أودروی.او بله ډلے ته دے یو رکعت اوکړی.نوکله چه امام د اول رکعت د دویمے سجدے نه سر راپورته کړی.دا ډله دے پیدل د دښمن مقابلے له لاړه شی .اوهغه ډله کومه چه دښمن ته مخامخ وی.هغه دے د امام شاته أودریږی.امام به دے خلقو ته یورکعت اوکړی.سلام به واړوی.خو خلق به سلام نه اړوی.بلکه د دښمن مقابلے ته به لاړشی.اوس اولنۍ ډله به خانله خانله خپل رکعت پوره کړی.دا رکعت بغیر د قرات نه شو.ځکه چه دا خلق د تحریمے نه د امام سره د شرکت په وجه لاحقین دی.او په لاحق قرات نشته.ددے ډلے مونځ پوره شو.نودا ډله دے سلام واړوی.ددښمن مقابلےته دے لاړه شی.او دویمه ډله دے خپل رکعت پوره کړی سلام دے واړوی.د دوی یورکعت قرات سره دے.ځکه چه دا خلق په اولنی رکعت کښې د امام سره د عدم شرکت په وجه مسبوقین دی.اوپه مسبوق قرات واجب وی.ځکه به دا خلق قرات کوی.

**دلیله** ◄ علامه مرغینانی ﷫ فرمائیلی دی.چه په صلاة الخوف کښې اصل دعبدالله بن مسعود﷜ روایت دے. الفاظ د حدیث دا دی. [عن ابن مسعود﷜ صلی رسول الله ﷺ صلوة الخوف فقاموا صفاً خلفه وصفاً مستقبل العدو فصلی بهم ﷺ رکعة ثم جاء الآخرون فقاموا الی مقامهم واستقبل هؤلاء العدو فصلی بهم ﷺ رکعة ثم سلم فقام هولاء العدو فصلوا لأنفسهم رکعة وسلموا، ثم ذهبوا، فقاموا مقام اولئك مستقبلی العدو، ورجع اولئك إلی مقامهم فصلوا لانفسهم رکعةً ثم سلموا] (١) دابن مسعود﷜ نه نقل دی.چه رسول الله ﷺ صلاة الخوف اوکړو.نو یوه ډله د نبی کریم ﷺ شاته اودریدله.اوبله د دښمن په مقابله کښې ،نبی کریم ﷺ دوی ته یو رکعت اوکړو.بیا دویمه ډله راغله.اود دوی په ځائے اودریدله.اودا د دښمن مقابلے ته لاړله.نبی کریم ﷺ دوی ته هم یو رکعت اوکړو.بیا نبی کریم ﷺ سلام واړولو.بیا دے خلقو په خپله یو رکعت اوکړو، اوسلام ئے واړولو.اولاړل.د هغوی په ځائے د دښمن په مقابله کښې اودریدل.او هغوی ددوی ځائے ته راغلل.او خانله خانله ئے یو رکعت اوکړو.نو سلام ئے واړولو.

**صورة فضل الجماعتين** ◄صاحب د عنایه ﷫ لیکلی دی.چه د داسې صلوة الخوف اجازت په هغه وخت کښې دے.چه کله یو امام وی.د ده نه سوا خلق بل چا پسې مونځ کولو ته تیار نه وی.اوکه څو امامان

---

(١) حدیث ابن مسعود﷜ اخرجه ابوداود فی صلاة السفرباب ١٧ رقم ١٢٤٤ والبیهقی فی السنن الکبری (٣/٢٧، ٣٧١) رقم ٦٤٤)

وي.اوپه دوی کښې د چا اختلاف هم نه وي.نوافضل دا دی.چه یو امام یوے ډلے ته پوره مونځ اوکړي.اودا د دښمن مقابلے ته اولیږي.او بله ډله کومه چه د دښمن په مقابله کښې وه.په هغې کښې یوکس ته حکم ورکړي. چه دوی ته پوره مونځ ورکړي.

**عدم جواز صلاة الخوف عند أبي يوسف رحمه الله** >دصاحب هدایه رحمه الله د قول مطابق حضرت امام ابویوسف رحمه الله د رسول الله ﷺ د وفات نه پس د صلاة الخوف د مشروعیت نه انکار کړې دې.امام ابویوسف رحمه الله په ابتداء کښې د طرفینو رحمهما الله په شان قائل وو.یعنی چه صلاة خوف جائز دې، بیا ئې دخپل دے قول نه رجوع اوکړله. فرمائی چه د صلوة الخوف مشروعیت د نبی کریم ﷺ د ژوند سره خاص دې.[1]

**دليله**>اودلیل دادې.چه د خوف د مونځ په باره کښې الله تعالی فرمائی.﴿ وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَوٰةَ ﴾(الآية پ۶،ع۱۳) په دې آیت کښې په خاص طور رسول الله ﷺ ته د صلاة الخوف قائمولو حکم شوې دې.چه کله ته امام ئې.نو هره ډله به په تا پسې د مونځ کولو فضیلت حاصلولو کوشش کوی.ددوی د وفات نه پس دا جګړه ختمه شوه.او هره ډله بل امام پسې په پوره مونځ کولو قادر ده.نود تلو راتلو په صفت سره به یویو رکعت ادا کول جائز نه وي.

**دليل جواز صلاة الخوف**>علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت د امام ابویوسف رحمه الله خلاف حجت دې.ځکه چه د ابن مسعود رضی الله عنه روایت کوم چه پورته ذکر دې.په دې کښې په تفصیل سره د رسول الله ﷺ د ویرے مونځ کول ذکر شوی دی.

**عدم إثبات الحجة على أبي يوسف رحمه الله** >څوک څوک دا اووائی چه امام ابویوسف رحمه الله د رسول الله ﷺ په حیات کښې د صلاة خوف مشروعیت انکارکله کړې دې.امام ابویوسف رحمه الله د رسول الله ﷺ په حیات کښې د صلوة خوف د مشروعیت قائل دې.البته د وفات نه پس قائل نه دې.نودا د ابویوسف رحمه الله خلاف څنګه حجت جوړیدے شي.

**الجوابان**> ①ددې جواب دا کیدے شي.چه د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس د صحابو رضی الله عنهم نه د صلوة خوف مونځ کول ثابت دې.لکه چه سعد بن ابووقاص، ابی عبیده بن الجراح او ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه په اسفهان کښې د صلاة خوف کړې دې.او سعد ابی وقاص رضی الله عنه په طبرستان کښې د مجوسیانو سره جنګ اوکړو.اودوی سره حسن بن علی، حذیفه بن اسحاق او عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه وو. نوسعید بن ابی العاص رضی الله عنه دے حضرات صحابو رضی الله عنهم ته صلاة خوف اوکړو.اوچا هم په دې انکار نه وو کړې. نودا عدم انکار په منزله د اجماع شو.د رسول الله ﷺ د وفات نه پس د صلاة خوف په جواز د صحابو رضی الله عنهم د اجماع نه پس د حضرت امام ابویوسف رحمه الله د صلوة خوف د مشروعیت نه انکار کول څه حیثیت نه لري.

② دویم جواب دادې. چه د ابن مسعود رضی الله عنه روایت من حیث العبارة که د ابویوسف رحمه الله په خلاف حجت نه دې.خومن حیث الدلالة حجت دې.په دې طریقه چه د صلاة خوف سبب ویره ده.او ویره چه څنګه د نبی کریم ﷺ په ژوند کښې متحقق وه.د نبی کریم ﷺ د وفات نه پس هم متحقق کیدے شي. نوڅنګه چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د ویرے په وجه د صلاة خوف مشروع وو.هم ددې سبب په

---

[1] ) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في فتح القدير مع الكفاية (۲\۶۴) والهندية (۱۵۴) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۵۶) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۵۶)-

وجه به د نبی کریم ﷺ نه پس هم مشروع وی.

### په صلاة الخوف کښې د مقیم امام امامت

فَإِنْ كَانَ مُقِيمًا که امام مقیم وی صَلَّى بِالطَّائِفَةِ الْأُولَى رَكْعَتَيْنِ وَبِالثَّانِيَةِ رَكْعَتَيْنِ نودوه رکعته مونځ دے اولنئ ډلےسره ،او دوه رکعته دے دویمے ډلےسره اوکړی وَيُصَلِّي بِالطَّائِفَةِ الْأُولَى مِنَ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ، وَبِالثَّانِيَةِ رَكْعَةً وَاحِدَةً اوداولے ډلے سره نی د ماښام دوه رکعته او دویمے ډلے سره یو رکعت کړی وو

**حل اللغة**﴿① مقیما:اقامت کونکې ② رکعتین: دوه رکعته ③ صلی، صلی صلاة: مونځ کول ④تنصیف: نیم کول ]

**تشریح**﴿ **كيفية إمامة المقيم للمسافرين**﴾ مسئله دا ده.که امام مقیم وی.نودوارو ډلو ته دے دوه دوه رکعته اوکړی.

**دلیله**﴿خکه چه نبی کریم ﷺ د اقامت په حالت کښې د ماسپخین مونځ هم په دغه طریقه کړې وو.(١) اود ماښام مونځ دے داسې پوره کړی.چه اولنئ ډلے ته دوه رکعته اوکړی.او دویمے ډلے ته یو رکعت اوکړی.خکه چه په صلاة خوف کښې حکم دا دې.چه امام دے هرے ډلے ته نیم مونځ اوکړی.اود ماښام مونځ نیمه یو پوره رکعت او نیم رکعت دې.اودا خبره منلے شوې ده.چه یو رکعت نشی نیمیدلې.نومونږ وایو.چه اولے ډلے ته دے د تقدم په وجه دوه رکعته اوکړی.اودویمے ډلے ته دے یو رکعت اوکړی.

### په حالت د مونځ کښې د جنګ حکم

وَلَا يُقَاتِلُونَ فِي حَالِ الصَّلَاةِ اوهیڅ یوه ډله دے دمونځ په حالت کښې جنګ نه کوی فَإِنْ فَعَلُوا ذٰلِكَ که دوی جنګ اوکړو بَطَلَتْ صَلَاتُهُمْ نو مونځ به باطل شی

**حل اللغة**﴿① لایقاتلون،قاتل مقاتلة: خپل مینځ کښې قتل کول ② فعلوا، فعل فعلاً (ف): کول ③ بطلت، بطل بطلاً (ن): باطل کیدل

**تشریح**﴿ **فساد الصلاة بالقتال في الصلاة**﴾ مسئله دا ده.چه زمونږپه نیزد مونځ په حالت کښې به هیڅ یوه ډله قتال نه کوی.که قتال ئې اوکړو.نو مونځ به باطل شی.د سر نه شروع کول به لازم شی.

**دلیله**﴿ دلیل دادې.دغزوه احزاب په موقع د رسول الله ﷺ څلور رکعته فوت شوی وو.نبی کریم ﷺ ئې روستو قضاء راوړله.(٢) که د مونځ په حالت کښې قتال جائز وې.نو نبی کریم ﷺ به دا مونځونه ددې په خپلو وختونو کښې اذا کول نه پریخودل.معلومه شوه.چه د مونځ په حالت کښې قتال کول جائز نه دی.

### په سورلئ د مونځ کولو حکم

وَإِنِ اشْتَدَّ الْخَوْفُ بیا که په ویره کښې شدت وی صَلَّوْا رُكْبَانًا وُحْدَانًا نود سوریدو په حالت کښې دے خانله خانله مونځ اوکړی. يُومِئُونَ بِالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ إِلَى أَيِّ جِهَةٍ شَاءُوا رکوع اوسجده دے په اشاره

[1] ) من حدیث جابر اخرجه مسلم في صلاة المسافرین وقصرها رقم ٣١١)۔

[2] ) من حدیث إبن مسعود رضي الله عنه رواه الترمذی في المواقیت باب ١٨ والنسائی في المجتبی (١/١٠٧) و رواه أحمد)

اوکړی.څنګه چې ممکن وی اِذَا لَمْ یَقْدِرُوْا عَلَی التَّوَجُّهِ اِلَی الْقِبْلَةِ که قبلې طرف ته په متوجه کیدو قادر نه وی

**حل اللغة** ۱ اشتد ،اشتد اشتدادا: زیاتیدل، ډیره ویره ۲ فرادی: خان کیدو سره ۳ یومون،امی ایماء: اشاره کول ۴ جهة: طرف ۵ لم یقدروا ، قدر قدرة (ض): قادر کیدل

**تشریح** الصلاة علی الدابة عند شدة الخوف مسئله داده.که د دښمن ویره دومره سخته وی.چه دوی مسلمانانو ته د سوارلئ نه راښکته د مونځ کولو موقع نه ورکوی.نو په دې صورت کښې مسلمانانو دپاره هم په سوارلئ په ناسته خانله خانله مونځ ادا کول جائز دی.د رکوع او سجدے به اشاره کوی. او د استقبال قبله په سلسله کښې حکم دادې.چه که قبلې طرف ته مخ کول ممکن نه وی.نو کوم طرف ته چه غواړی مخ دے کړی.

**دلیله** دلیل د الله تعالی قول [فان خفتم فرجالا او رکبانا] دې.او استقبال د قبلې د ضرورت په وجه ساقط شوې دې.

**تضعیف روایة جواز الجماعة رکبانا** دامام محمد رحمه الله نه یو روایت دا دې.چه په سوارلئ په جماعت سره مونځ کول مستحسن دی.ددې قائل امام شافعی رحمه الله دې.خودا حکم صحیح نه دې.څکه چه د اقتداء د صحت دپاره د مکان اتحاد شرط دې.اودا په دې حالت کښې معدوم دې. او که یو سړې امام سره دده په سوارلئ وی.نو دده اقتداء کول صحیح دی.

**د جنازې د مونځ بیان**

## بَابُ الْجَنَائِزِ

**ترجمه** دا باب د جنازو د احکامو په بیان کښې دې.

**تشریح** الربط بما قبله مرګ چونکه آخری عارض دې.په دې وجه د جنازے مونځ د ټولو په آخر کښې بیان شوېدې.خوکه څوك دا اووائی.چه [الصلوة فی الکعبة]ددې نه مخکښې ذکرکول پکار وو.حالاتکه ددےنه پس ذکر شوې دې.نو ددې جواب دادې.چه [صلوة فی الکعبة]دکتاب الصلاة په آخر کښې په دې وجه ذکر شوې دې.چه د کتاب الصلوة خاتمه په داسې څیز اوشی.چه په هغې حالاً او مکاناً تبرك حاصلیدے شی.

**الحرکات فی الجنازة** جنائز،د جنازه جمع ده.جنازه د جیم په فتح سره د مړی دپاره مستعمل دې.او په کسره سره هغه تختې دپاره مستعمل دې.چه په هغې مړے ایخودے شی.

**وجه فرضیة الصلاة علی المیت کفایة** بعضےفرائض داسې قسم مقررشوی دی.چه دا دیو مقام بعضې کسان اداکړی.نود ټولوطرفه ادا کیږی.وجه ئې دا ده.که ټول دا په جمع باندې اوکړی . نو معاشی انتظام به تباه اوبرباد شی.ددوې د نفع ټول تدبیرونه به معطل شی.نود داسې کارونو دپاره یویو سړې کافی دې.د بیمارانو بیمار پرسی اود جنازے مونځ هم په دې طریقه مشروع شوی دی.چه د بیمارانو اومړو ضائع کیدل هم نه وی.اوبعضې خلق که دا پوره کړی.نو مقصد به هم حاصل شی.(احکام اسلام عقل کی نظر مین)

**الحکمة فی مشروعیة صلاة الجنازة** دعقل تقاضا ده.چه کله یوانسان د ډیرو خلقو ډله د یولوے حاکم مخے له بوځی.اودده دپاره سفارش اوکړی.اودده دمعافئ درخواست اوکړی.اودده دپاره په زارئ او منت

درخواست اوکړی.نو اخر دده قصورمعاف کیږی.هم دا د جنازے د مونځ راز دې.یعنی د جنازے مونځ په دې وجه مقرر شوې دې.چه د مومنانو یوه ډله د مړی سفارش کښې شرکت اوکړی.نودا د الله تعالی د رحمت نازلیدو دپاره ډیر لوے اثر لری.نبی کریمﷺ فرمائی.[ما من مسلم يموت فيقوم على جنازته أربعون رجلاً لايشركون بالله شيئاً إلا شفعهم الله فيه] یعنی هیڅ یوسړې داسې نه مری.چه دده په جنازه کښې څلویښت سړی راجمع وی.چه دوی د الله تعالی سره څوك نه شریکوی.نوددې مړی په حق کښې ددوی سفارش قبلوی.ددې وضاحت دا دې.چه کله دسړی روح د بدن نه اوخی.نودده حس مشترکه وغیره سره حس او ادراك باقی پاتې وی.اوکوم خیالات او علوم چه دده سره وو.د مرګ نه پس دده سره پاتې شی.اوبیا د عالم بالا نه نور علمونه په ده ښکاره کیږی.چه په دې وجه ډیرو ته عذاب یا ثواب ملاویږی.نود الله تعالی د نیکو بنده ګانو همتونه چه کله عالم قدس ته اورسیږی.او ددې مړی دپاره دوی په زړئ اومنت دعا کوی.یا د مړی دپاره ډیر څه صدقه ورکوی.نو د الله تعالی په حکم د مړی په حق کښې دا فائده مند جوړیږی.

### د قریب المرګ د څملولو کیفیت

إِذَا احْتُضِرَ الرَّجُلُ کله چې سړې مرګ ته نزدے شی وُجِّهَ إِلَى الْقِبْلَةِ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ نو په ښی طرف ئی د قبلې طرف ته مخامخ کړئ.

**حل اللغة**> ① احتضر، احتضر احتضاراً: حاضریدل، مرګ ته نیزدې کیدل ② شق: ارخ ③ایمن: ښي

**تشریح**> **وجه تسمية المحتضر**> قدوری مرګ ته دنزدیکت نه تعبیر کولودپاره د [احتضر الرجل] لفظ استعمال کړې دې.یعنی مړکیدونکی کس ته ئې "محتضر"ونیلی دی.یا څکه چه مرګ ده سره حاضر دې.یا د مرګ فرشتے حاضرےدی.

**علامات**> علامات د مرګ دا دی.① چه د قریب المرګ دواړه قدمونه سستیږی.

② اودریدے نه شی. ③ پوزه کګیږی. ④ اود اګو(خصیة) څرمن ئې اوږده شی.

**كيفية وضع المحتضر**> بهرحال د قریب المرګ عمل دادې.چه دے په ښی ارخ قبلې طرف ته څملولے شی.

**دليله**> څکه چه د مړی په قبر کښې د ایخودو هم دا کیفیت مسنون دې ((عن يحيى بن عبد الله بن أبي قتادة عن أبيه أن النبي صلى الله عليه وسلم حين قدم المدينة سأل عن البراء بن معرور فقالوا توفي وأوصى بثلثه لك يا رسول الله وأوصى أن يوجه إلى القبلة لما احتضر فقال ﷺ أصاب الفطرة ([1]) أخرجه البيهقي في الصلاة باب ما يستحب من توجيه المحتضر نحو القبلة رقم ٦٣٩٦(٣/٣٨٤)_

وَلُقِّنَ الشَّهَادَتَيْنِ اوده ته د شهادتینو تلقین اوکړې شی

**تشریح**> **تلقين الشهادتين**> دویم عمل دادې.چه قریب الموت ته د شهادتینو تلقین اوکړی.یعنی ده سره کینی.اوبه اوچت آواز [أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمد رسول الله]اووانی.قریب الموت ته ددې کلمے ونیلو حکم نه کوی.څکه چه په ده ډیرد سختئ وخت وی.نعوذ بالله که ده انکار اوکړو .نو خاتمه به ئې په کفر شی.

[1] ) أخرجه البيهقي في الصلاة باب ما يستحب من توجيه المحتضر نحو القبلة رقم ٦٣٩٦ (٣٨٤/٣)_

**دليله**> عن يحيى بن عمارة قال سمعت أبا سعيد الخدري يقول قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لقنوا موتاكم قول لا إله إلا الله(۱) دليل د نبي كريم ﷺ قول [لقنوا موتاكم شهادة أن لا إله إلا الله] دي.اود موتى نه مراد هغه څوك دے چه مرګ ته نيزدے وي.بالکل مړے مراد نه دي.څکه چه تلقين دده په حق کښې فائده مند نه ثابتيږي.

## دجامو تړل او سترګو بندول

| وَإِذَامَاتَ بيا چې کله مړشي شُدَّ لَحْيَاهُ وَغُمِّضَ عَيْنَاهُ نودده جامے دې اوتړي.اودده سترګے دې بندےکړي |
|---|

**تشريح**> شد اللحيين وتغميض العينين>دريم عمل دا دې.چه د مړي جامےپه جامه وغيره اوتړلےشي. اودده دواړه سترګے به بندے کړې شي.

**دليله**> عن أم سلمة قالت دخل رسول الله صلى الله عليه وسلم على أبي سلمة وقد شق بصره فأغمضه ثم قال إن الروح إذا قبض تبعه البصر(۲) اوصاحب دهدايه فرمائيلي دي چه هم دا طريقه متوارث ده.اوپه داسې کولو کښې د مړي ښائست او تزئين هم دې.نو څکه دا عمل مستحسن او مندوب دې.

**وجه تقديم الغسل**> امام قدوري د ټولو نه مخکښې غسل بيان کړي دې.څکه چه د مرګ نه پس د ټولونه اول هم دد ې ضرورت پيښيږي.

**القول الأول في سبب وجوب غسل الميت**> د مړي دغسل سبب د مړي د مرګ په وجه نجس او پليت کيدل دي.لکه چه نور حيوانات د مرګ په وجه نجس کيږي.

**دليله**>دليل دادې.که چا مړ انسان په خپل بدن کښې اونيولو.اومونځ ئې اوکړو.نودده مونځ جائز نه دې.اوکه څه محدث (بے اودسه) ئې په اوګه پورته کړو.اومونځ ئې اوکړو.نوجائز دې.نومعلومه شوه.چه مړانسان پليت دې.اود پليتئ زوال په غسل سره کيږي.څکه د مړي غسل لازم اوګرځولي شو.دا خيال ساتل پکار دی.که مړ څناور ته غسل ورکړې شو.نو دا به نه پاکيږي.څکه چه د مړ انسان د غسل په وجه پاکيدل،صرف دده د تکريم او تعظيم په وجه دی.

**القول الثاني في سبب وجوب غسل الميت**> د مړي د غسل په سبب کښې اختلاف دې.بعضې وائي. چه د مړي دغسل سبب هغه حدث دې.کوم چه د استرخاء مفاصل په وجه په مړي کښې دننه حلول کوي.څکه چه د مرګ په وجه انسان پليت شي.

**الإعتراض والجواب**>پاتې شوه دا چه کله د مړي د غسل سبب حدث دې.نو د اودس د اندامونو په وينځلو اکتفاء ولےاونکړې شوه.په داسې حال کښې چه د حدث په صورت کښې د اودس په اندامونو وينځلو اکتفاء کولې شي؟

**الجواب**> په ژوند کښې د حدث په وجه د اودس په اندامونو اکتفاء کول د حرج دفع کولو دپاره وه .څکه چه حدث هره ورځ پيښيږي.بلکه په يوه ورځ کښې څوځله پيښيږي.نوکه په ژوند کښې د اودس په اندامونو وينځلو اکتفاء اونکړې شي.بلکه د ټول بدن وينځل ضروري شي.نوخلق به په تکليف او حرج کښې مبتلا شي.په دې وجه په ژوند کښې دحدث په وجه د اودس په اندامونو وينځلو د اکتفاء حکم شوې دې.او پاتې شوهغه حدث چه د مرګ په وجه لاحق شي.نودا مکرر نه وي. بلکه يوځل

(۱) أخرجه ابوداود في الجنائز باب في التلقين رقم ۲۷۱۰ رجاله ثقات)۔

(۲) أخرجه ابن ماجه في الجنائز باب ماجاء في تغميض العينين رقم ۱۴۴۴ رجاله ثقات)۔

پيښيږي.نوچونکه د مرګ په وجه حدث يوځل پيښيدو په وجه د حرج او تکليف احتمال نشته.نوځکه په دې صورت کښې د ټول بدن وينځلو حکم شوې دې.

**حکم غسل الميت على الناس>** د مړي غسل په ژوندوخلقو په اتفاق سره فرض کفايه دې.نوکه يو مړ انسان په اوبو کښې اوموندے شو.نوده ته به هم غسل ورکولې شي.اوکه اوپړسيدو.او اوچودو.نوبه ده به اوبه تيرولې شي.والله اعلم.

**مړي ته د غسل ورکولو طريقه**

| فَإِذَا أَرَادُوا غُسْلَهُ اوچې کله مړي ته د غسل ورکولو اراده اوکړي وَضَعُوهُ عَلَى سَرِيرٍ نودے به په يوه تخته واچوي. |
|---|

**حل اللغة >** ①ارادوا،اراد: اراده کول②وضعوه، وضع وضعاً (ف) : ساتل

**تشريح> وضع الميت على السرير للغسل>** په دې پوره عبارت کښې د مړي د غسل د کيفيت بيان دې. فرمائي چه کله مړي ته د غسل ورکولو اراده وي.نودے به په يوه تخته خملولې شي.او په تخته به ځکه خملولې شي.چه اوبه په مړي اوبهيږي.ځکه که مړے په زمکه خملولې شي.نومړے به په خاوره او خټه کښې خراب شي.صاحب دکتاب خونه د تختے د ايخودو دکيفيت ذکر کړې دې.او نه ئې په دې د مړي ايخودو د کيفيت بيان کړې دې.

| وَجَعَلُوا عَلَى عَوْرَتِهِ خِرْقَةً اودده په شرمګاه به جامه واچوي. |
|---|

**حل اللغة:** ①جعلوا، جعل جعلاً (ف): کول، جوړول ② خرقي: جامه،کپړه

**تشريح> ستر عورة الميت>** دمړي په تخته خملولو نه پس به دده عورت (د عورت په پټولو)کپړه اچولې شي.ځکه چه ستر د عورت فرض دې.نو ددې فرض اداکولوډپاره به دده په عورت کپړه واچوي .وجه ددې داده.چه سړې څنګه په ژوند کښې محترم وي.دغه شان د مرګ نه پس هم محترم وي.نو دده د محترميت تقاضا ده.چه دده د عورت پټ کړې شي.

**الروايتان في حد ستر العورة>** ①علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي دي.چه د آسانتيا دپاره عورت غليظه يعنې د قُبل او دُبر ستر کافي دې.د نوم نه د کونډو پورې ستر ضروري نه دې.هم دا ظاهرالروايۃ دې. ②د نوادر روايت دې.چه د نوم نه د کونډو پورې ستر ضروري دې

| وَنَزَعُوا ثِيَابَهُ اود مړي جامے به اوويستلے شي . |
|---|

**حل اللغت:** ①نزعوا، نزع نزعاً (ف): راکوزول، ويستل

**دليله:** صاحب د هدايه فرمائيلي دي چه دمړي ټولې جامے دے اوويستلے شي.چه خلق په آسانتياسره د مړي په تنظيف او پاکولو قادر وي.وجه داده.چه دغسل نه مقصود د مړي پاکول دي.اوکله چه کپړد سرد مړي ته غسل ورکړې شي.نودا مقصود نه حاصليږي.ځکه چه د غسل په مستعملو اوبو سره چه کله کپړه ناپاکه شي.نو په دې به دوباره د مړي بدن ناپاکه شي.نو غسل به مفيد د طهارت نه وي.اوکله چه په جامو کښې غسل ورکول مفيد د طهارت نه دي.نود مړي د کپړو ويستل واجب دي.

| وَوَضَّؤُوهُ وَلَا يُمَضْمَضُ وَلَا يُسْتَنْشَقُ او مړي له به اودس اوکړې شي .بغيردخولې وينځلو نه.اوبه پوزه کښې اوبو اچولو نه ثُمَّ يُفِيضُونَ الْمَاءَ عَلَيْهِ بيا به په مړي اوبه اُوبَيوي. |
|---|

**حل اللغت:** ①يفيضون، افاض افاضة: بهيول

**تشریح>** **عدم تمضمض المیت واستنشاقه>** قدوری فرمائي. چه بغیردخولے وینځلونه اوبه پوزه کښې اوبه اچولونه، مړی له اودس کول پکاردی.

**دلیله>** اودس خوځکه کول پکار دی.چه اودس دغسل سنت دی.اوخوله وینځل اوپه پوزه کښې اوبه اچول ځکه ترک کړې شوی دی.چه د مړی په خوله اوپوزه کښې اوبه اچول اوبیا ئې ترے راویستل متعذر دی.

> وَيُجَمِّرُ سَرِيرُهُ وِتْرًا اوتختے له به طاق ځل خوشبوئی ورکولې شي

**حل اللغة:** ①یجمر، جمر تجمیراً :لوګې ورکول ② وترا: ناتکے

**تشریح>** **تغسیل المیت وتطییبه>**.قدوری فرمائی.چه داودس کولو نه پس به په مړی اوبه بیولے شی.دلیل د ژوند په حالت قیاس دې. اودمړی تختے له به طاق ځل خوشبوئی ورکولې شی.خوشبوئی په دې وجه ورکولې شی.چه په دې کښې دمړی تعظیم دې.او طاق ځل

**دلیل الایتار>** دلیل دا دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی .[إن الله وتر یحب الوتر] [1] الله تعالی یو دې او یووالي خوښوی .

> وَيُغْلَى الْمَاءُ بِالسِّدْرِ أَوْ بِالْحُرُضِ اواوبه به دبیرے په پاڼړو یاد اشنان په ګیا جوش سره ورکولې شی

**حل اللغة:** ①یغلی، غلی غلیاناً (ض): جوش ورکول ② السدر :د بیري پاڼړې ③ الخرض: یوخاص قسم بوټی دې چه په اوبو کښې واچولې شی نو د پاکولو صفت په کښې پیدا کوی لکه د صابن

**تشریح>** قدوری رحمه الله فرمائی.چه په کومو اوبو مړی ته غسل ورکولې شی.چه په هغې کښې د بیرے پاڼړے یا د اشنان ګیا واچولےشی.اوجوش دے ورکړې شی.ځکه چه په پاکولو او تطهیر کښې دا ډیر فائده مندې دی.

> فَإِنْ لَمْ يَكُنْ بیاکه داسےڅه څیز نه وی فَالْمَاءُ الْقَرَاحُ نوخالصے اوبه. وَيُغَسَّلُ رَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ بِالْخِطْمِيِّ او دده ږیره او سر به په ګل خطمی سره اووینځلے شی

**تشریح>** **إستعمال الماء القراح>** اوکه جوش ورکړې شوې اوبه نه ملاویږی.نو بیا خالصے اوبه هم استعمالو لےشی.د اوبو دا ترتیب د شمس الائمه سرخسی رحمه الله په نیز دې.شیخ الاسلام او صاحب د محیط رحمه الله فرمائی .چه اول دے په خالصو اوبو غسل ورکړې شی.اوبیا دے هغه اوبه استعمال کړې شی.په کومو کښې چه د بیرے پاڼړے اچولے شوې وی.اوجوش ورکړې شوې وی.اوبه دریم ځل دے د کافورو ملاؤ شوې اوبه استعمال کړې شی.

**دلیله:** دغه شان دابن معسود رضی الله عنه نه مروی دی. [قال یبدأ اولاً بالماء القراح ثم بالماء والسدر ثم بالماء وشیء من الکافور وانما یبدأ اولاً بالماء القراح حتی یبتل ما علیه من الدرن و النجاسة ثم بماء السدر حتی یزول ما به من الدرن والنجاسة لأن السدر أبلغ فی التنظیف ثم بماء الکافور تطییباً لبدن المیت کذا فعلت الملائکة علیهم السلام بآدم علیه السلام حین غسلوه] عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه مړی ته د غسل ورکولو په وخت په خالصو اوبو سره ابتداء

[1] ) من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه اخرجه البخاری فی الدعوات باب ٦٩ رقم ٦٤١٠ ومسلم فی الذکر والدعاء والإستغفاررقم ٥، ٦)

اوکړې شي.بيا د بيرے په پاڼړو سره جوش ورکړې اوبه بيا د کافور ملاوشوې اوبه استعمال کړې شي.اول دے خالصے اوبه ځکه استعمال کړی.چه د بدن خيرے اونجاست وغيره لوند شي.بيا جوش ورکړې شوې اوبه په دې وجه استعمالول پکار دی.چه خيرے وغيره لرے شي.ځکه چه د بيرے پاڼړے [ابلغ في التنظيف] دی.بيا د کافورو اوبه د مړی بدن معطر او خوشبودار کولودپاره استعمال کړې شي.هم دا عمل فرښتو آدم ﷺ ته د غسل ورکولو په وخت کړی وو.

ثُمَّ يُضْجِعُهُ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ بيا به دامړے په ګس اړخ څملولے شی فَيُغْسَلُ بِالْمَاءِ وَالسِّدْرِ په اوبو او په بيرو سره به غسل ورکړې شی حَتّٰى يُرَى أَنَّ الْمَاءَ قَدْ وَصَلَ تردے چې اوګوری.چې اوبه هغه ځائې ته اورسيدلې .إِلٰى مَا يَلِي التَّخْتَ مِنْهُ کومه حصه چې تختے سره لګيدلے ده ثُمَّ يُضْجِعُهُ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ بيا دے دا (مړے) په ښی اړخ څملولے شی فَيُغْسَلُ بِالْمَاءِ حَتّٰى يُرَى أَنَّ الْمَاءَ قَدْ وَصَلَ إِلٰى مَا يَلِي التَّخْتَ مِنْهُ او غسل دے ورکولې شی .تردے چې اوګوری.چې اوبه د مړې د بدن هغه حصې ته اورسيدې کومه چې تختے سره لګيدلے ده

**حل اللغة:** ①شق: اړخ ① ايسر:ګس طرف ګس اړخ ②وصل،وصلوصولاً (ض): رسيدل

**تشريح> وضع الميت على الشمال واليمين>** قدوری رحمه الله فرمائی.چه د مړی سراودده ږيره په خطمی سره وينځل پکاردی.ځکه چه خطمی د صابن په شان بدن پاکونکې دې.ددې ټولو کارونو نه د فراغت نه پس به مړے په ګس اړخ څملوی،اوبه جوش ورکړې اوبو سره به اووينځلے شی.اوچه دومره قدرې اوبه واچولےشی.چه لاندينۍ حصه کومه چه تختے سره لګيدلےوی. هغې پورې اوبه اورسيږی.دا ترتيب ځکه مقرر شوې دې.چه د غسل ښی اړخ نه شروع کول موجود شی.
**دليله:** سنت هم دادی.چې شروع د ښی اړخ نه وی ([1])

ثُمَّ يُجْلِسُهُ وَيُسْنِدُهُ إِلَيْهِ بيا به غسل ورکونکې مړے کينوی.اوخپل ځان ته دے ادانه کړی وَيَمْسَحُ بَطْنَهُ مَسْحًا رَفِيقًا اود مړی خيټه دے رُو رُو اومګی.

**حل اللغة:** ①تلويث:ککړول② بطن: خيټه③ رفيقا: په نرمۍ سره،

**تشريح> مسح البطن رفيقا>** بيا دے غسل ورکونکې خپل ځان مړی ته ادانه کړی.اوکينوی دې.اوبه نرمۍ دے د مړی خيټه اومګی.دا مګل په دې وجه دی.که د مړی په خيټه کښې څه څيز وی.هغه اوځی.چه روسته کفن خراب نه کړی.

**دليله>** په دې سلسله کښې اصل دا روايت دې.[ان عليا رضي الله عنه لما غسل رسول الله ﷺ مسح بطنه بيده رفيقا طلب منه ما يطلب من الميت فلم ير شيئا فقال طبت حيا وميتا] يعنی حضرت علی رضي الله عنه چه کله رسول الله ﷺ ته غسل ورکولو.نوپه خپل لاس ئې رو رو ددوی خيټه اومګله .اومقصود هغه څيز طلب کول وو.چه د مړی نه طلب کولےشی.يعنی دحضرت علی رضي الله عنه منشاء دا وه.چه کيدے شی دنبی کريم ﷺ دخيټے نه څه څيز

[1] ) من حديث عائشة رضي الله عنها روه البخاری في الصلاة باب ٤٧ ومسلم في الطهارة رقم ٦٦ وأبوداود في اللباس باب ٤١ والترمذی في الجمعة باب ٧٥والنسائی في الطهارة باب ٨٩ والغسل باب ٧١ وابن ماجه في الطهارة باب ٤٢ واحمد في المسند (٩٣/٦ ) .

اوخي. خوځه هم اونه وتل. نوحضرت علیؓ اوفرمائيل .تاسو په ژوند او مرګ دواړوکښې پاك يئ.

| |
|---|
| فَإِنْ خَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ بيا که د مړی د خيټې نه څه اووتل غَسَلَهُ نوهغه دے اووينځی وَلَا يُعِيدُ غُسْلَهُ وَلَا وُضُوءَهُ اود ده غسل اواودس دے دوباره نه کوی. ثُمَّ يُنَشِّفُهُ بِثَوْبٍ بيا دے د مړی بدن په کپړه اوچ کړی. |

**حل اللغة:** ①خرج: اووتل، ②لا يعيد: نه به راګرځوی، ينشف: اوچ کړی

**تشریح >** عدم إعادة الغسل بعد خروج شيء > دخيټې مګولو نه پس که دمړی د ګيډے نه څه څيز راؤوتلو. نو دا دے اووينځی. او د غسل ورکولو د اعاده ضرورت نشته. اوداودس کولو څه ضرورت نشته.

**دليله >** دليل دا دې چه د مړی غسل مونږ په نص پيژندلے دې. نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی. چه د مسلمان په مسلمان شپږ حقونه دی. په دې کښې يو د مړی غسل دې. بهرحال د مړی غسل چه واجب دې. په يوځل دغسل ورکولوسره حاصل شوې دې. اوس دوباره دغسل ورکولو ضرورت نه دے پاتې. دغسل نه د فراغت نه پس د مړی بدن په پاکې کپړې سره اوچول پکار دی. چه کفن لوند نه شی.

**د مړی د زينت مسنون اعمال**

| |
|---|
| وَيُدْرِجُهُ فِي أَكْفَانِهِ اومړے دے د ده دکفن په کپړو کښې اينغوښتې شی وَيَجْعَلُ الْحَنُوطَ عَلَى رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ او د مړی په سر او ږيره کښې دے حنوط اولګولې شی وَالْكَافُورَ عَلَى مَسَاجِدِهِ اوده دسجدے په اندامونودےکافوراولګولې شی |

**حل اللغة >** ①يدرج، اونغښتې شی ② حنوط: يوقسم خوشبوئی ده ③ حنوط: دا هم يو قسم خوشبوئی ده ④ لحية: ږيره

**تشریح >** جعل الكافور في أكفانه > مړی ته د غسل ورکولونه پس دے ده ته کفن واغوستلے شی. اود مړی په سر او ږيره کښې دے حنوط اولګولې شی. حنوط د يوڅوخوشبوداره څيزونونه د مرکب عطرونوم دې. اوکوم اندامونه چه په سجده کښې په زمکه لګی. (تندے، پوزه، دواړه لاسونه، دواړه کونډئ ، دواړه قدمونه) په دې باندې دے کافور اولګولې شی.

**دليله >** دليل دا دې چه د مړی بدن خوشبوداره کول سنت دی. اوچونکه په ذکر شوی اندامونو سجده کولې شی. په دې وجه دسجدے اندامونه د عزت زيات لائق دی. اود سنتيت دليل دا دې. دأم عطيهؓ حديث دې. چه نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی [واجعلن في الآخرة كافورا أو شيئا من كافور] [1] يعنی په آخر کښې د مړی په بدن کافور يا څه خوشبوئ اولګوئ.

---

[1] ، عن أم عطية الأنصارية ؓ قالت دخل علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم حين توفيت ابنته فقال اغسلنها ثلاثا أو خمسا أو أكثر من ذلك إن رأيتن ذلك بماء وسدر واجعلن في الآخرة كافورا أو شيئا من كافور فإذا فرغتن فآذنني قالت فلما فرغنا آذناه فأعطانا حقوه فقال أشعرنها إياه تعني بحقوه إزاره كذا في الموطا للمالك في الجنائز باب غسل الميت رقم ٤٦٥ رجاله ثقات)۔

## د سړي دپاره مسنون کفن

| السُّنَّةُ أَنْ يُكَفَّنَ الرَّجُلُ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ إِزَارٍ وَقَمِيصٍ وَلِفَافَةٍ سنت دا دی.چې سړی ته په درې جامو ،لنګ قمیص او ځادر کښې کفن ورکړې شي |
|---|

**حل اللغة** ﴿١﴾يكفن، كفن تكفينا: كفن وركول ﴿٢﴾اثواب واحد ثوب: كپړه

**تشريح** په مسلمانانوکفن ورکول فرض کفایه دې.ځکه په فرضو مقدم وی.نوکه مړے مالداروی.نو هم دده د مال نه واجب دې.ګنی په چا چه دده نفقه واجب وی.د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د ښځې کفن په خاوند دې.اګرچه ښځه مالداره وی.اوهم په دې فتوی ده.اوپه مالداره ښځه دغریب خاوند کفن نشته.

**الأقسام الثلاثة للكفن** کفن په درې قسمه دې.﴿١﴾کفن مسنون ﴿٢﴾ کفن کفایه ﴿٣﴾کفن ضرورت

**الكفن المسنون** په دې عبارت کښې د کفن مسنون بیان دې.کفن مسنون د سړو په حق کښې درې کپړې دی.﴿١﴾ازار، یعنی لنګ خود سرنه پښو پورې مراد دې. ﴿٢﴾ کرته د څټ نه قدم پورې بغیرد لستونړو او د کالر نه﴿٣﴾ ځادر د سر نه پښو پورې چه د پورته نه تړلے شي.

**دليله** ﴿١﴾د دریو جامو په مسنونیت دلیل دادې.چه نبی کریم ﷺ ته په سحولیه سپینو جامو کښې کفن ورکړې شوې وو.،سحول،، د سین په فتحه یا ضمه سره د یمن د یوکلی نوم دې.په ابوداؤد کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها حدیث دې.چه نبی کریم ﷺ ته په دریو جامو کښې کفن ورکړې شوې وو.یوه هغه کُرته په کومه کښې چه نبی کریم ﷺ وفات شوې وو.او یوه نجرانی جوړه.او جوړه په دریو جامو مشتمله وی (۱)

﴿٢﴾دویم دلیل دادے چه انسان په ژوند کښې عام طور درې جامے اغوندی.نود مرګ نه پس به هم دده ته درې جامے اغوستلی شي.

## په دوه جامو د اکتفاء کولو حکم

| فَإِنْ اقْتَصَرُوا عَلَى ثَوْبَيْنِ جَازَ اوکه دوی په دوو جامو اکتفا وکړه .نوجائزده |
|---|

**حل اللغة** ﴿١﴾اقتصر، اقتصر اقتصارا: کفایت کول ﴿٢﴾جاز، جاز جوازا(ن): جائزکیدل

**تشريح** **كفن الكفاية** په دې عبارت کښې د سړی د کفن کفایه بیان دې.د سړی په حق کښې دوه جامے دی.یولنګ دویم ځادر.

**دليله:** ﴿١﴾د کفن کفایه دپاره دصدیق اکبر رضی الله عنه په قول استدلال شوې دې.په مصنَف عبدالرزاق کښې دی.[من عائشة رضی الله عنها قالت قال أبوبكر لثوبيه اللذين كان يمرض فيهما اغسلوهما و كفنوني فيهما فقالت عائشة ألا نشتري لك جديدًا فقال لا، الحي أحوج إلى الجديد من الميت] (۲)حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی.چه زما پلار محترم ابوبکر رضی الله عنه اوفرمائیل.د هغه جامو په باره کښې په کومو کښې چه دوی رضی الله عنه بیمار شوی وو.دا دواړه

---

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُفِّنَ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ لَيْسَ فِيهَا قَمِيصٌ وَلَا عِمَامَةٌ اخرجه البخاري في الجنازة باب الكفن بغير قميص رقم ۱۱۹۳

(۲) من حديث عائشة رضی الله عنها اخرجه احمد في المسند في ،،كتاب الزهد،، (ص،۱۳٦)وعبدالرزاق في مصنفه (۴۲۳/۳، ۴۲۴، رقم ٦۱۷۸)

اوبنځې.او ما هم په دې دواړو جامو کښې کفن کړئ.عائشه رضي الله عنها عرض اوکړلو.آیا مونږستا دپاره نوے جامے (کفن) وانخلو؟.نو هغوی اوفرمائیل نه.ژوندے سړې د نوے جامو زیات مستحق دې.په نسبت د مړی.(فتح القدیر)

②عقلي دلیل دادې.چه د ژوندی ادنیٰ لباس دوه جامے دی.نود مړګ نه پس هم په دوه جامو اکتفاء کول جائزدی.

**كيفية الأثواب الثلاثة**> علامه مرغیناني رحمه الله ددې درې واړو تفصیل بیان کړې دې.چه لنګ د سر نه د قدم پورې وی.اوځادر هم ددې په اندازه وی.اوکُرته د څټ نه د قدم پورې وی.خونه په دې کښې جیب وی نه کالر او نه لستونړی.

**په کفن کښې د انغښتلو طریقه**

| وَإِذَا أَرَادُوا لَفَّ اللِّفَافَةِ عَلَيْهِ اوکله چې ورته لفافه اچول اوغواړی ابْتَدَءُوا بِالْجَانِبِ الْأَيْسَرِ نو ددې دګس طرفه دے شروع کړی فَأَلْقَوْهُ عَلَيْهِ بِالْأَيْمَنِ نوګس طرف به په مړی ور واچوی.بیا به ښې اړخ ورواچوی. فَإِنْ خَافُوا أَنْ يَنْتَشِرَ الْكَفَنُ عَنْهُ عَقَدُوهُ اوکه د مړی نه دکفن خوریدو نه ویریږی.نودا دے په پټی اوتړی. |
|---|

**حل اللغة**> ①ارادوا، اراد ارادة: غوښتل، اراده کول ② لف: راغونډول ③ جانب: طرف ④ایسر: ګس ⑤ ان ینتشر ،انتشر انتشاراً: خوریدل،پرانستل ⑥ عقد ، عقد عقداً (ض): غوټه ورکول]

**تشریح**> **كيفية تكفين الميت**>مړی ته د کفن اچولو طریقه دا ده.چه اول ځادر خورکړی.ددې دپاسه لنګ خور کړی.او مړی ته قمیص واغوندی.اوبه لنګ ئې خورکړی.بیا د لنګ ګس طرف راتول کړی .بیا ښې اړخ ،چه ښئ حصه اوچته شی.هم په دغه طریقه ځادر را تول شی.

**إستحباب الثوب البيض**>دکفن دپاره د سوت سپینه جامه افضله ده.ځکه چه د رسول پاک ﷺ ارشاد دے [البسوا من البياض فانه من خير ثيابكم وكفنوا فيها موتاكم](رواه ابوداؤد)یعنی رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه سپینے جامے اغوندئ.ځکه چه دا بهترینے جامے دی.اوهم په دې کښې خپلو مړو ته کفن ورکوئ.

**د ښځې مسنون کفن**

| وَتُكَفَّنُ الْمَرْأَةُ فِي خَمْسَةِ أَثْوَابٍ اوښځه به په پنځو جامو کښې کفن کولےشی دِرْعٍ وَإِزَارٍ وَخِمَارٍ وَلِفَافَةٍ وَخِرْقَةٍ تُرْبَطُ فَوْقَ ثَدْيَيْهَا قمیص،لنګ،لوپټه،ځادر لوپټه او یوه پټی،چې ددې سینے برے اوتړلی شی |
|---|

**حل اللغة** > ① درع: قمیص ② خمار: لوپټه ③ خرقة: ریبنه،پټئی ④ ثدی: سینه ⑤ تخرج، خرج خروجًا (ن): وتل ⑥ حیوة:ژوند ⑦ ممات: مرګیدل،مرګ ⑧ اقتصروا ،اقتصر اقتصاراً: کفایت کول ]

**تشریح**> **سنة الأثواب الخمسة في كفن المرأة**>په دې عبارت کښې د ښځې د سنت کفن بیان دې. فرمائی چه دښځې مسنون جامے پنځه دی.① کُرته ② لنګ ③ ځادر ④ لوپټه ⑤ دجامے هغه پټئ چه په هغې ددې سینے تړ لی شی. یعنی سینه بند ،

**دلائله**:①دلیل داحدیث دې. عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي عُرْوَةَ ابْنِ مَسْعُودٍ يُقَالُ لَهُ دَاوُدُ قَدْ وَلَدَتْهُ أُمُّ حَبِيبَةَ بِنْتُ أَبِي سُفْيَانَ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ لَيْلَى بِنْتَ قَانِفٍ الثَّقَفِيَّةَ قَالَتْ كُنْتُ فِيمَنْ غَسَّلَ أُمَّ كُلْثُومٍ بِنْتَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عِنْدَ وَفَاتِهَا فَكَانَ أَوَّلُ مَا أَعْطَانَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحِقَاءَ ثُمَّ الدِّرْعَ ثُمَّ الْخِمَارَ ثُمَّ الْمِلْحَفَةَ ثُمَّ أُدْرِجَتْ بَعْدُ فِي الثَّوْبِ الْآخَرِ قَالَتْ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ عِنْدَ الْبَابِ مَعَهُ كَفَنُهَا يُنَاوِلُنَاهَا ثَوْبًا ثَوْبًا.[1]

②عقلي دليل دادې.چه په ژوند کښې عام طور ښځه په پنځو جامو کښې اوځی.هم په دې قياس کولوسره د مرګ نه پس هم دے ته پنځه جامے ورکړې شوی دی.[فإن اقتصروا على ثلاثة أثواب] کښې ښځې د کفن کفايه بيان ذکرشوېدې.

| فَإِنْ اقْتَصَرُوا عَلَى ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ جَازَ اوکه اکتفاء ئې وکړه په درې جامو نودا هم جائزده |
|---|

**تشريح>** **كفن الضرورة للمرأة**>د ښځې دکفن کفايه درې جامے دی.① لنګ ② دويم څادر ③ څادر.د دريونه په کمو جاموکښې د ښځې کفن کول.که بغير ضرورته وی.نومکروه دی.ګنی جائزدی.اودے ته به کفن ضرورت ونيلی شی.

**كفن الكفاية للرجل**>هم په دغه طريقه د سړی په کفن کښې په يوے جامےاکتفاء کول مکروه دی .خوکه د ضرورت په وجه وی.نوجائزدی.اود سړی يوه جامه کفن ضرورت دی.

**دليله**:دليل دخباب ابن ارت﷛ حديث دې خباب بن ارت﷛ فرمائی.چه مونږ د رسول الله ﷺ سره صرف د الله تعالی د رضا دپاره هجرت اوکړو.نو زمونږ اجر په الله تعالی دې.په مونږکښې چه کوم خلق تيرشول.اوهغوی په دنيا کښې هيڅ حصه اونه موندله.په هغوی کښې مصعب بن عمير﷛ هم وو.چه د أحد په جنګ کښې شهيد شو .دوی يو کرښے دار څادر پريخودے وو.کله چه به پرے د ده سر پټولو.نو پښےبه ئې ښکاره شوې .اوچه پښے به مو پټولې.نوسربه ئې ښکاره شو.مونږته رسول الله ﷺ حکم اوکړو.چه د مصعب ﷛ سر پټ کړئ.او په پښو ئې دا وابنه واچوئ.[2]

**مړی ته د کفن اغوستلو طريقه**

| وَيَكُوْنُ الْخِمَارُ فَوْقَ الْقَمِيْصِ اوپړونې به د قميص دپاسه وی تَحْتَ اللِّفَافَةِ د لفافې دلاندې وَيُجْعَلُ شَعْرُهَا عَلَى صَدْرِهَا او وبه ګرځولی شی ويخته د دې (د کونسو په صورت کښې) په سينه د دې |
|---|

**تشريح>** عبارت واضح دې.

| وَلَا يُسَرَّحُ شَعْرُ الْمَيِّتِ وَلَا لِحْيَتُهُ اود مړی ويخته او ږيره دے نشی ګومنځ کولې وَلَا يُقَصُّ ظُفْرُهُ او نه دے دده نوکونه کټ کولې شی وَلَا يُقَصُّ شَعْرُهُ او نه دے ويخته کټ کولې شی |
|---|

**تشريح>** **عدم التسريح وتقليم الأظفار**>امام قدوری ﷫ فرمائی.چه دمړی به نه په ويښتو کښې ګومنځ وخلے شی.او نه په ږيره کښې ،اونه به د ده نوکونه کټ کولې شی.اونه ويښته،

**دليله**>دليل دادې.چه دحضرت عائشې ﵂ نه د مړی د ويښتو ګومنځولو په باره کښې

---

[1] ) اخرجه ابوداود في الجنائز باب في كفن المرأة رقم ۲۷۴۵ رجاله ثقات)_

[2] ) عَنْ خَبَّابٍ قَالَ إِنَّ مُصْعَبَ بْنَ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ إِلَّا نَمِرَةٌ كُنَّا إِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَأْسَهُ خَرَجَ رِجْلَاهُ وَإِذَا غَطَّيْنَا رِجْلَيْهِ خَرَجَ رَأْسُهُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَطُّوا بِهَا رَأْسَهُ وَاجْعَلُوا عَلَى رِجْلَيْهِ شَيْئًا مِنَ الْإِذْخِرِ اخرجه ابوداود في الجنائز باب كراهية المغالات في الكفن رقم ۱۱۸۶ رجاله ثقات إلا محمد بن كثير فإنه قد اختلف فيه)_

تپوس اوشو. نو حضرت عائشې ﷺاوفرمائیل. [علام تنصون میتکم](۱) لفظ د ،،علام،، په اصل کښې د ،علی ما، دې. یعنی،، ما ،، استفهامیه،،علی،،حرف جر داخل شوې دې.بیا ددې الف ساقط شو ، لکه د الله تعالی قول په[﴿عَمَّ يَتَسَاءَلُونَ﴾ کښې (نصا ينصوا نصواً) معنی ده. تندے نیول او رابنکل بهر حال حضرت عائشه ﷺ په جواب کښې اوفرمائیل. تاسو دخپل مړی تندے ولے نیسئ اوراکاږئ.گویا حضرت عائشه ﷺ د مړی په ویختو گومنځولود ناراضګئ اوناخوښئ اظهار اوکړلو.او گومنځولو نه ئې دتندی نیولو اورابنکلو سره تعبیرکړې دې.

**وجه إستحباب التسريح وتقليم الظفارفي الحي**>او پاتې شو د ژوندی خلقو په دې څیزونو عمل کول، نو ددې وجه داده.چه د نوکونو او ویښتو وغیره لاندې د خیرے جمع کیدو په وجه د پاکئ دپاره دوی ته ددې اجازت شوې دې.اودا د ختنے په شان شو.لکه چه د ژوندی سړو ختنه مسنون ده.اومړے که بے ختنے وی.نوزمونږاود امام شافعی ﷫ په نیز په اتفاق ختنه نشی کولې.والله اعلم.

## کفن له د خوشبوئي لوګي کولو حکم

| وَتُجَمَّرُ الْأَكْفَانُ خوشبوئی به لوګے کړې شی .کفن ته قَبْلَ أَنْ يُدْرَجَ فِيهَا وِتْرًا مخکښې ددې نه چې مړے په کښې اونغښتے شی |
|---|

**حل اللغة**>① تجمر، جمر تجميراً: لوګې ورکول② يدرج، ادرج، ادراجاً: داخلول

**تشريح**> **سنية تجمير الكفن**>په دې عبارت کښې دکفن ته د خوشبوئی لوګے کولوحکم ذکر شوې دې.اجمار خوشبولوګے کول دی.اوخوشبو لوګے کول طاق ځل سنت دی.

**دليله**>لکه څنګه چه په دې دا حديث شاهد دې. حديث جابر﷜ أن النبي ﷺ قال [إذا أجمرتم الميت فأجمروا ثلاثاً](۲)کله چه تاسو مړې خوشبويه کوئ نو درې ځله ئې خوشبويه کوئ

د کفن نه د فراغت نه پس به په ده د جنازے مونځ کولې شی.څکه چه د جنازے مونځ فرض کفايه دې.

## د جنازې د مونځ فرضيت

| فَإِذَا فَرَغُوا مِنْهُ صَلَّوا عَلَيْهِ اوکله چه د مړی د کفن نه فارغ شی نو په ده باندې به (امام) د جنازې مونځ کوی |
|---|

**تشريح**> **دلائل فرضية صلاة الجنازة**>دجنازے دمونځ په مشروعيت دالله تعالی قول ﴿ وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ﴾دليل دې.او د نبی کريم ﷺ قول [صلوا على كل برو فاجر] دليل دې.او اجماع د أمت ده.(کفايه)

**كون الجنازة فرض كفاية**>دجنازے مونځ فرض کفايه دې.فرض څکه دےچه صل اود رسول الله ﷺ په قول کښې صلوا د امر صيغه ده.اوامرد وجوب (فرض )موجب دې.او کفايه په دې وجه دې.چه په ټولو خلقو

---

۱) عن إبراهيم أن عائشة أم المؤمنين رضي الله عنها رأت ميتاً يسرح رأسه فقالت علام تنصون ميتكم. كذا في كتاب الآثار في الصلاة باب الجنائز وغسل الميت رقم ۲۸۲(۷۸)۔

۲) رواه ابن حبان في النوع السابع والثمانين من القسم الأول و الحاكم في المستدرك (۱/۳۵۵) والبيهقي في السنن الكبرى (۵٦۸/۳) رقم ٦۷۰۲)۔

واجب کول یاخو محال دي.اویا په دې کښې حرج دې.ځکه نې په بعضو اکتفاء کړې ده.لکه څنګه چه په جهاد کښې دی.

**سبب وجوب الجنازة** دجنازے دمونځ د وجوب سبب مړے دې.

**شروط وجوب صلاة الجنازة** ① اوددې دجواز شرط د مړی مسلمان کیدل دی.ځکه چه په کافر مونځ کول جائز نه دې.دالله تعالی ارشاد دے ﴿وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ ۖ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ﴾ ② اودویم شرط د مړی طهارت دې.که دغسل ورکولو نه اول په مړی مونځ د جنازے اوشی.نو دغسل نه پس به دجنازے اعاده کولې شی. ③ دریم شرط دا دې.چه جنازه د مصلی مخے ته وی.نو په غائب دجنازے مونځ کول جائز نه دی. ④ دغه شان که جنازه د مونځګذارشاته وی.نوجائزنه دے.

## په مړی د جنازې د مونځ حقدار

| وَأَوْلَى النَّاسِ بِالْإِمَامَةِ عَلَيْهِ السُّلْطَانُ إِنْ حَضَرَ اوپه مړی دجنازے دمونځ دپاره د ټولونه غوره بادشاه دې .که جنازے ته حاضر شو |
|---|

**حل اللغة** ① حضر،حضرحضوراً (ن): حاضریدل

**تشریح** **استحقاق السلطان وجوبا** دجنازے دمونځ دامامت په استحقاق کښې ترتیب دا دې.که بادشاه حاضرشو.نودجنازے امامت د ټولونه زیات مستحق هغه دې.

**دلیله**:ځکه چه د بادشاه په موجودګئ کښې بل څوك امام جوړیدوکښې د بادشاه توهین دې.حالانکه بادشاه ظل الله دې.نو څوك چه دده عزت کوی.الله تعالی به د هغه عزت کوی.اوڅوك چه دده اهانت (سپکوالې) کوی. نوالله تعالی به د هغه اهانت کوی.اوکه بادشاه رانغلو.نوبیا به قاضی مستحق د امامت وی.ځکه چه قاضی ته په ټولو ولایت عامه حاصل وی.اګرچه دبادشاه په مقرر کولوسره وی. ددې دواړو تقدیم واجب دې.

| فَإِنْ لَمْ يَحْضُرْ نوکه بادشاه رانغلو فَيُسْتَحَبُّ تَقْدِيمُ إِمَامِ الْحَيِّ نودمحلے د امام وړاندې کول غوره دې |
|---|

**تشریح** **استحباب تقدیم امام الحي** اوسلطان حاضرنشو.نودمحلے امام مخکښې کول مستحب دی.

**دلیله**:ځکه چه مړے په خپل ژوندکښې دده په امامت راضی وو.نودمرګ نه پس به هم د هغه دخوښے امام بهتروی.چه د شریعت مخالفت رانشی.بیا ولی د امامت مستحق دې.اودمړی ولیان به د امامت په حق کښې هم په هغه ترتیب وی.کوم ترتیب چه په نکاح کښې مذکوردې.

| ثُمَّ الْوَلِيُّ بیا د مړی ولی بهتردې |
|---|

**تشریح** **الفرق بین ولایة النکاح والجنازة** خوپه نکاح کښې دښځې خوئې د ښځې په پلار مقدم دې.اودلته کښې پلار په امامت کښې غوره دې.اوکه د مړی دوه ولیان برابروی.مثلاً د ده دوه سکه رونړه وی. نو په دوی کښې چه د چا عمر زیات وی.هغه به مقدم وی.خو ده ته دا اختیار نشته.چه په خپل ځائې څوك پردے کس مخکښې کړی.البته دا چه دویم هم راضی وی.

## د غیر ولی د جنازې مونځ کولو صورت

فَإِنْ صَلَّى عَلَيْهِ غَيْرُ الْوَلِيِّ وَالسُّلْطَانِ كه په مړي باندې د ولي یا بادشاه نه سوا بل چا مونځ اوکړو أَعَادَ الْوَلِيُّ نو ولي اعاده کولے شي. وَإِنْ صَلَّى عَلَيْهِ الْوَلِيُّ اوکه په مړي باندې ولي مونځ اوکړو لَمْ يَجُزْ أَنْ يُصَلِّيَ أَحَدٌ بَعْدَهُ نو دده نه پس هیڅ چاته په مړي مونځ کول جائز نه دي

**حل اللغة** ﴿① صلى، صلى صلاة: مونځ کول ②اعاد،عاد اعادة: واپس کول ③ لم يجز،جاز جوازا (ن): جائزکيدل

**تشریح** ﴿ **حکم إعادة الجنازة للسلطان والولي** ﴾مسئله دا ده.که په مړي د ولي او بادشاه نه سوا بل چا مونځ اوکړو.نوولي ته د جنازے د مونځ راګرځولوحق حاصل دې.اوکه بادشاه مونځ اوکړو.یا هغه سړي مونځ اوکړو.څوک چه د جنازے د مونځ د امامت په ترتیب کښې په ولي مقدم دې.نوولي ته د اعادے حق نشته.

**عدم إعادة غیرالولي** ﴿ ①اوکه ولي د جناز ے مونځ اوکړو.نوددې نه پس هیڅ چاته په مړي دمونځ کولو اجازت نشته.دلیل دادې.چه د ولي په مونځ کولو سره فرض ادا شو.اونفل د جنازے په مونځ کښې مشروع نه دي.ځکه د ولي دمونځ نه پس هیڅ چاته د مونځ کولو حق نشته.دا زمونږ مذهب دې.

**دلیله:** دلیل دادې.چه ولي یا بادشاه کښې چه چا مخکښې مونځ کړې وی.د هغه په کولو فرض ادا شوې دی.او د جنازے په مونځ کښې نفل مشروع نه دی.هم دغه وجه ده.چه د نبی کریم ﷺ په قبر مبارك تولو خلقو مونځ کول ترك کړی دی.اوکه د جنازے په مونځ کښې نفل مشروع وے، نو په اجتماعی طور به دا نه شو ترك کولې.په داسې ـ ال کښې چه رسول اکرم سیدالامم ﷺ نن هم په خپل قبر کښې هم هغه شان آرام فرما دې.ځنګه چه نبی کریم ﷺ دفن کړې شوې وو.ځکه چه د نبیانو علیهم السلام غوښه په زمکه حرام ده.د نبیانو علیهم السلام جسم زمکه نشی متغیر کولې.

## د جنازې د مونځ نه کیدو په صورت کښې په قبر د مونځ حکم

فَإِنْ دُفِنَ وَلَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ او که مړے په داسې حال کښې دفن شی .چې په ده مونځ نه وی شوې صُلِّيَ عَلَى قَبْرِهِ نو دده په قبر دے مونځ اوکړې شی إِلَى ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ تر درې ورځو پورې وَلَا يُصَلَّى بَعْدَ ذَلِكَ او د دې نه پس به پرې مونځ نشی کولې

**حل اللغة** ﴿ ①دفن، دفن دفنا (ض): خښول ② ولم يصل صلى صلاة: مونځ کول

**تشریح** ﴿ **الصلاة على القبر** ﴾مسئله داده.که مړے بغیر د مونځ نه دفن کړې شو.نودده په قبر دے مونځ اوکړې شی.

**دلیله:**دلیل دادې.چه یوه انصاری ښځه په داسې حال کښې دفن کړې شوې وه.چه نبی کریم ﷺ په هغې مونځ نه وو کړې.نبی کریم ﷺ ته چه کله ددې علم اوشو.نو ددې په قبر ئې مونځ اوکړو.[1]

---

[1] ) من حديث خارجة بن زيد بن ثابت عن عمه يزيد بن ثابت موارد الظمان إلى زوائد ابن حبان (ص،۱۹۳) رقم ۷۵۹) ورواه ايضاً الحاكم في المستدرك (۵۹۱/۳) واحمد في المسند (۳۸۸/٤) والطحاوي في شرح الآثار (۲۹۵/۱) والبيهقي في السنن الكبرى (۷۹/٤) رقم ۷۰۱۸) وفي ،معرفة السنن والآثار رقم ۲۱۶۳)۔

**حكم الصلاة على القبر الى ثلاثة ايام** ◄ ① صاحب د قدوري رحمه الله فرمائی چه په قبر دمونځ کولو اجازت تر درې ورځو پورې شته ځکه غالبا د درې ورځو نه پس د مړی بدن پرسيږی او رژيږی اوچه کله اوپرسيږی نو هغه خراب شی د دې وجې پرې د مونځ کولو اجازت نشته دا د امام ابويوسف رحمه الله مذهب دې ② علامه مرغينانی رحمه الله ونيلی دی.چه د پرسيدو او چودلو په شناخت کښې غالبه رائې معتبر ده .يعنی دکومې پورې چه غالب گمان دا وی.چه لاش پرسيدلې يا چودلې نه دې.نو په قبر به د جنازې مونځ کولې شی.او کله چه د پرسيدو او چودلو غالب گمان اوشو.نو اوس به دا اجازت نه وی.هم دا صحيح قول دې.

**دليل القول الأصح** ◄ د قول صحيح دليل دادې.چه د لاش خرابيدل د مړی د حال په اختلاف سره مختلف وی.غټ په نسبت د نری اُوچ زر خرابيږی او ريزه کيږی.دغه شان د موسم او مکان په اختلاف سره هم مختلف کيږی.د گرمئ او د باران په موسم کښې په نسبت د يخنئ د موسم زر خرابيږی.او په شړلنه لونده زمکه کښې په نسبت د اوچې زمکې زر خرابيږی.کله چه غالب گمان معتبر دې.نوکه غالب گمان دا وی.چه د دريو ورځو نه مخکښې لاش رژيږی او خرابيږی.نو په دې به مونځ نشی کولې.اوکه غالب گمان دا وی.چه د دريو ورځو نه پس هم نه خرابيږی.نو په دې دريو ورځو نه پس هم د مونځ کولو اجازت شته.

**امام به د مړی د سينې برابر اودريږی**

| وَيَقُومُ الْمُصَلِّي او اودريږی به مونځګذار بِحِذَاءِ صَدْرِ الْمَيِّتِ په برابری د سينې د مړی |
|---|

**حل اللغة** ◄ ① يقوم،قام قياما (ن): اودريدل ② حذاء: مخامخ ③ صدر جمع ئې صدور ده ،سينه يعنی زړه

**قيام الإمام من الميت** ◄ ① مسئله داده.چه جنازه د سړی وی اوکه د ښځې ،د مونځ په وخت به امام د مړی د سينې مخامخ اودريږی.

**دليله**:دليل دادې.چه سينه د زړه محل دې.او په زړه کښې نورد ايمان وی.نود سينې سره اودريدل به دې طرف ته اشاره وی.چه شفاعت دده د ايمان په وجه کيږی.

**رواية عن ابي حنيفة** ◄ د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دا هم نقل دی.چه جنازه که د سړی وی.نو امام به دده سر نه مخامخ اودريږی.اوکه د ښځې وی.نو ددې په مينځ کښې به اودريږی.[1]

**.د مونځ کولو طريقه**

| وَالصَّلَاةُ أَنْ يُكَبِّرَ تَكْبِيرَةً اودجنازې د مونځ طريقه دا ده.چې تکبير اووائی يَحْمَدُ اللّٰهَ عَقِيبَهَا ددې تکبير نه پس د الله تعالی ثناء اووائی |
|---|

**حل اللغة** ◄ ① عقيب: روستو

**تشريح** ◄ **الثناء بعد التكبير الأول** ◄ په دې عبارت کښې د جنازې د مونځ طريقه بيان شوې ده. فرمائی.چه د جنازې مونځ د څلورو تکبيرونو نوم دې.تفصيل دادې.چه د نيت نه پس به تکبير د افتتاح اووائی. او دواړه لاسونه به غوږونو پورې اوچت کړی.دې نه پس به د الله ثناء اووائی.يعنی الحمدلله او ددې په

---

[1] ) القول الراجح هو ظاهر الرواية التى ذكرها المتون كذا في البحرالرائق (١٨٦\٢) والدرالمختار(٦٤٦\١) والفقه الإسلامي وادلته (٤٩٦\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٥٨\١)-

شان كلمات به اووائي.اوبعضو ونيلي دي.چه [سبحانك اللهم وبحمدك ...الخ] دے اووائي.لكه څنګه چه په نورو مونځونو كښي دي.(١)

| ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيرَةً يُصَلِّي عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بيا تكبير اووائي.او په رسول الله ﷺ درود اووائي |
|---|

تشريح> الصلاة على النبي بعد التكبير الثاني>بيا د دويم تكبير ونيلو نه پس به په نبي ﷺ درود اووائي.څكه چه د الله تعالى د ثناء نه پس د [صلوٰة على النبي] درجه ده.لكه څنګه چه په تشهد كښي هم دغه ترتيب دي.اوهم په دې ترتيب خطبات مقرر شوي دي.

| ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيرَةً ثَالِثَةً بيا دې دريم تكبير اووائي يَدْعُو فِيهَا په دې كښې دې دعا اوكړي لِنَفْسِهِ وَلِلْمَيِّتِ وَلِلْمُسْلِمِينَ..د خپل خان دپاره.د مړي دپاره.اود ټولو مسلمانانو دپاره |
|---|

تشريح> الدعاء بعد التكبير الثالث>بيا د دريم تكبير ونيلو نه پس به خپل خان دپاره، مړي دپاره اود ټولو مسلمانانو دپاره دعا اوكړي.كه ياده ئې وي نو دا دعا دے اوكړي.[اللهم اغفر لحينا وميتنا ...الخ]اوكه دا دعا ورته ياده نه وي.نو كومه دعا چه ياده وي.اودے كړي.

دلائله ①د الله تعالى د حمد وثنا او د صلوة على النبي نه پس دعا په دې وجه مقرر شوې ده.چه نبي كريم ﷺ فرمانيلي دي.[إذا اراد احدكم ان يدعوا فليحمدالله وليصل على النبي ثم يدعوا] يعنى كله چه په تاسو كښي څوك ددعا اراده اوكړي.نو د الله حمد دے اووائي.او په نبي كريم ﷺ دے درود اووائي بيا دے دعا اوكړي.

② عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى جَنَازَةٍ فَقَالَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا اللَّهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِيمَانِ وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِسْلَامِ اللَّهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا أَجْرَهُ وَلَا تُضِلَّنَا بَعْدَهُ.(٢)

| ثُمَّ يُكَبِّرُ تَكْبِيرَةً رَابِعَةً وَيُسَلِّمُ بيا تكبير اووائي څلورم تكبير.اوسلام دې واړوي |
|---|

تشريح> السلام بعد التكبير الرابع>بيا څلورم تكبير ونيلو نه پس دے سلام واړوي.

دليله:د څلورم تكبير نه پس سلام اړول په دې وجه دي.چه نبي كريم ﷺ د جنازے د ټولو نه په آخرى مونځ كښي څلور تكبيرونه ونيلي وو.ددې نه مخكښې عمل كه ددې مخالف هم وي.هغه منسوخ شول.دغه شان دا حديث هم په تائيد كښي پيش كولې شي:

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَى النَّجَاشِيَّ فِي الْيَوْمِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ خَرَجَ إِلَى الْمُصَلَّى فَصَفَّ بِهِمْ وَكَبَّرَ أَرْبَعًا.(٣)

(١) مسلك الشافعي:- حضرت امام شافعي رحمه الله د قرات فاتحه خلف الامام د وجوب قائل دي.

(٢) أخرجه ابوداود في الجنائز باب الدعاء للميت رقم ٢٧٨٦ رجاله ثقات إلا يحي بن كثير فإنه ثقة لكن يدلس)_

(٣) اخرجه البخاري في الجنائز باب في الرجل ينعى إلى اهل الميت بنفسه رقم ١١٦٨)_

**عدم رفع اليدين الا في التكبيرة الاولي** > ①مسئله دا ده.چه د تکبیر تحریمې نه بغیر به په تکبیر کښې لاس نشی اوچتولې. که هغه د جنازې مونځ وی اوکه عام مونځ وی

**دليله** > دلیل د ابن عباس رضي الله عنهما حدیث دې.چه (لاترفع الأيدى إلا فى سبع مواطن...الحديث) د ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دی.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.لاس به نشی اوچتولې.مګر په اووه ځایونو کښې ① په تکبیر تحریمه کښې ②تکبیر قنوت کښې ③تکبیرات عیدین کښې ④ تکبیر عرفات کښې ⑤تکبرات جمرتین کښې ⑥تکبیر صفا مروه کښې ⑦تکبیر استلام کښې.

**په جوماتِ کښې د جنازې د مونځ کولو حکم**

| وَلَايُصَلَّى عَلَى مَيِّتٍ فِي مَسْجِدٍ جَمَاعَةٍ اوپه هیڅ مړی به په جامع جمات کښې جنازه نه شی کولی |
|---|

**تشريح** > **صلاة الجنازة في المسجد** > ①صاحب د عنایه رحمه الله ددې عبارت په حل کولو کښې فرمائیلی دی.که صرف جنازه په جومات کښې وی.او امام او څه خلق د جومات نه بهر وی.او باقی په جومات کښې وی.نودا په اتفاق سره مکروه نه ده. ②اوکه جنازه او ټول خلق په جماعت کښې وی نو دا مکروه ده او هم دا صورت په متن کښې ذکر دې

**دلائله** > ①دلیل د ابوهریره رضي الله عنه حدیث دې. (ان رسول الله ﷺ قال من صلى على جنازة فى المسجد فلا اجرله)[1] یعنی نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چا چه په جومات کښې دننه په جنازه مونځ اوکړو. ده دپاره هیڅ ثواب نشته.

② دویم دلیل دادې.چه جومات د فرضو د اداکولو دپاره جوړشوې دې.نو د پنځه وخته مونځونو نه سوا به هیڅ مونځ په جومات کښې نه اداکیږی.

③ دریم دلیل دادې.که جنازه په جومات کښې وی.نو په دې صورت کښې د جومات خرابیدو احتمال دې.نوځکه بغیر د عذر نه په جومات کښې د مړی راوستل مکروه دی.

**حكم الصورة التي يكون الميت خارج المسجد** > او که صرف جنازه د جومات نه بهر وی.او امام او ټول خلق په جومات کښې وی.نو مشائخو اختلاف کړې دې.بعض د کراهت قائل دی.او بعض د عدم کراهت قائل دی.

**د جنازې د کټ اوړلو طریقه**

| فَإِذَا حَمَلُوا الْمَيِّتَ عَلَى سَرِيرِهِ کله چې خلق مړے د هغه په کټ باندې اوچت کړی أَخَذُوا بِقَوَائِمِهِ الْأَرْبَعِ سنود کټ څلور پښے به اونیسی |
|---|

**حل اللغة** > ①حملوا،حمل حملاً (ض): اوچتول ②سرير: کټ ③اخذوا، اخذ اخذًا (ن): اخستل، نیول ④ قوائم: پښې

**سنية التربيع في حمل الجنازة** > په دې فصل کښې د جنازے اوړلو د کیفیت بیان دې. فرمائی.چه مړے به په تخته یا په کټ باندې اوچت کړی.او دکټ څلور واړه پښےدے اونیسی.یعنی څلور کسان دے موجود وی.او هر یو کس دے یوه پښه نیولې وی.مسنون طریقه هم دا ده.

[1] خرجه في ،،سنن الصلاة،، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ فِي الْمَسْجِدِ فَلَيْسَ لَهُ شَيْءٌ اخرجه ابن ماجه في الجنائز باب ماجآء في الصلاة على الجنائز في المسجد رقم ١٥٠٦ رجاله ثقات إلا صالح فإنه قد اختلف فيه)

**دلائله** ⟨ ① د عبدالله بن مسعود ﷺ نه مروی دی. (عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ مَنْ اتَّبَعَ جِنَازَةً فَلْيَحْمِلْ بِجَوَانِبِ السَّرِيرِ كُلِّهَا فَإِنَّهُ مِنَ السُّنَّةِ ثُمَّ إِنْ شَاءَ فَلْيَتَطَوَّعْ وَإِنْ شَاءَ فَلْيَدَعْ)[1] يعنى مسنون دا ده.چه جنازه د هغې د څلورو واړو طرفونو نه اوچته كړې.شى.

② د نبى ﷺ قول دې. (من حمل الجنازة من جوانبها الأربع غفرله له مغفرة موجبة) يعنى چا چه جنازه دهغې د څلورو طرفونونه اوچته كړه.نو دهغه مغفرت به اوشى.

③ په دې كښې تكثير دجماعت دې.څكه كه جنازے سره څوك نه وى.نو بياهم دجنازے اوړلو دپاره خو به څلور كسان خامخا وى.اوښكاره ده.چه د څلورو كسانو يوه ډله وى.او د څلورو په اوچتولو كښې د جنازے عزت دې.په دې طريقه چه يوه ډله ئې په خپلو څټونو باندې پورته كړى.او څوك چه په څټونو باندې پورته كړې شى.دهغه تعظيم او عزت كښې څه شك شته؟

④ دغه شان د څلورو كسانو د پورته كولو په صورت كښې به مړے په زمكه د راغورزيدو نه هم محفوظ وى. ([2])

| وَيَمْشُونَ بِهِ مُسْرِعِينَ دُونَ الْخَبَبِ.او جنازه به په تيزئ سره اوړى.په منډو به نه څى |
|---|

**حل اللغة** ⟨ ① **يمشون، مشى مشيًا (ض)**: تلل ② **مسرعين**: تندى كونكى ③ **خبب**: منډې وهل

**تشريح** ⟨ **سنة السرعة في المشي وكراهة الخبب** ⟨ ماتن رحمه الله فرمائى.چه جنازه به په تيزئ سره اوړى.په منډو سره نه ،

**دليله** ⟨ څكه چه رسول الله ﷺ نه چه كله د جنازے سره د تګ په باره كښې تپوس اوشو.نو نبى ﷺ اوفرمائيل. (مادون الخبب)[3] د خبب معنى منډې وهل دى.يعنى نبى كريم ﷺ په تګ كښې د تيزئ حكم وركړې دې.خو د منډو نه ئې منع فرمائيلے ده.او د سرعت حكم ئې ددې وجې وركړې دې.چه كه جنازه د نيك مړى وى.نو هغه د الله تعالى دربار ته زر اورسوئ. اوكه د بدعمله سړى وى.نودا مصيبت زر د څټونو نه ښكته كوئ.او د منډې نه ئې په دې وجه منع كړې ده.چه په دې كښې دمړى سپكوالے دې.

## د جنازې د كښته كيخودلو نه وړاندې دكيناستو كراهت

| فَإِذَا بَلَغُوا إِلَى قَبْرِهِ اوكله چې دده قبر پورې اورسيږى كُرِهَ لِلنَّاسِ أَنْ يَجْلِسُوا قَبْلَ أَنْ يُوضَعَ مِنْ أَعْنَاقِ الرِّجَالِ نو دجنا زې ستونو نه كوزولو نه وړاندې د خلقو دپاره كيناستل مكروه دى |
|---|

**حل اللغة** ⟨ ① **بلغوا، بلغ بلوغًا (ن)**: رسيدل ② **ان يجلسوا، جلس جلوسًا (ض)**: كيناستل ③ اعناق، **واحد عنق**: سټ

[1] ) خرجته في ،،سنن الصلاة،، اخرجه ابن ماجه في الجنائز باب ماجآء في شهودالجنائز رقم ۱٤٦۷ (رجاله ثقات)۔

[2] ) **مذهب الشافعي في حمل الجنازة**:- حضرت امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه مسنون دا دى.چه دوه كسان جنازه اوچته كى.مخكنى سړى به جنازه د خپل څټ په وېخ باندې كيخودې وى.او روستنے سړې به دا په خپله سينه اوچته كړې وى.

[3] ) من حديث إبن مسعود ﷺ اخرجه ابوداود في الجنائز باب ٤٦٥ رقم ۳۱۸٤ والترمذى في الجنائز باب ۲۷ رقم ۱۰۱۱ واحمد في المسند (۱/۳۹٤)۔

**تشریح>** **كراهية القعود قبل وضع ا لجنازة على الأرض**>مسئله:کله چه مړي واخلي اود هغه قبره پورې اورسي.نوترڅو پورې چه جنازه په زمکه کیخودلےشوېنه وي.نو دخلقو کیناستل مکروه دی.

**دلیله>** ①څکه چه کله کله په جنازه کښې د جنازې اوړونکو سره د مدد ضرورت پیښیږي. او د هغوی سره په وخت باندې مدد کول په هغه وخت کښې ممکن وي.چه دوی ولاړ وي.څکه ونیلی شوی دي.چه دجنازې په زمکه باندې دکیخودلونه وړاندې د خلقو کیناستل مکروه دی. اوکله چه جنازه په زمکه باندې کیخودلےشي.نواوس ولاړ پاتې کیدل مکروه دي،

②دویم دلیل دا دې.چه جنازې ته د حاضرېدو په وخت کښې د مړی عزت کول مستحب دې.اود جنازې کیخودلو نه وړاندې دخلقو کیناستل د مړی دپاره تحقیر دې.نو څکه دے دجنازې کیخودلو نه وړاندې نه کیني.

**كيفية حمل الجنازة**>صاحب دهدایه رحمه الله د جنازې پورته کولو کیفیت بیان کړې دې.چه اول دےد جنازې وړاندینۍ حصه کښې د مړی ښی طرف په خپل ښي اوږه باندې کیږدي.بیا دغه شان د مړی د پښو طرف دے په خپله ښيۍ اوږه باندې کیږدي. بیا دې د جنازې مخکنۍ حصه کښې د مړی گس طرف دے په خپله گسه اوږه باندې کیږدي.اوبیا دغه شان د مړی دگس طرف شاتنۍ حصه په خپله گسۍ اوږه باندې کیږدي.

**دلیله>** دلیل دا دې.چه په دې صورت کښې (ابتداء بالیمین) متحقق کیږي.د جنازې مخکنۍ حصه د اوړونکی په ښۍ اوږه باندې راغله.نودا دمړی هم ښے طرف شو.او د جنازې اوړونکی هم ښے طرف شو.فرمائي.چه دا صورت په هغه وخت کښې ممکن دې.چه د اوړونکو نوبت وي.اوکه اوړونکی صرف څلور کسان وي.نو په یو حالت کښې قبر ته اوړل دي.-

وَيُدْخَلُ الْمَيِّتُ مِمَّا يَلِي الْقِبْلَةَاومړے به د هغه طرف نه داخلولےشي .کوم چې قبلې ته متصل وي. وَيُحْفَرُ الْقَبْرُوَيُلْحَدُاو قبر دې اوکنستي شي او لحد دې جوړکړې شي.

**تشریح>** **كيفية إدخال الميت في القبر>** ① قبر ته د کوزولو مسنون طریقه دا ده.چه مړے د هغه طرف نه داخل کړې شي.کوم چه قبلې سره جخت وي .یعنی جنازه به د قبر قبلې طرف ته کیخودلې شي.بیا به د هغه خانې نه مړےاوچت کړې شي.او په قبر کښې به کیخودې شي.[1]

**دلیله>** دلیل دا دې.چه د قبلې طرف قابل احترام او معظم دې.نوهم د دې طرف نه داخلول مستحب دی.

---

[1] **مذهب الشافعي:**- په دې مسئله کښې امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه مسنون دا دی.چه مړے قبرے ته راښکلې شي.ددې طریقه دا ده.چه جنازه به د قبر پښو طرف ته په دې سے طریقه کیخودې شي.چه د مړی سر په قبر کښې د هغه د قدمونو خانې ته برابر شي.بیا به قبر ته داخلونکے کس د مړی سره اونیسي.اودا به راښکي. او بعضو ونیلي دی.چه ددې صورت دا دې.چه جنازه د قبر سر ته داسې کیخودلې شي.چه دمړی دواړه پښے په قبر کښې د هغه د سر سره برابرشي.بیا به د مړی دواړه پښے اونیوې شي.اول به هغه په قبر کښې ورداخلې کړې شي.او په راښکلو سره به ټول مړے قبر ته ورداخل کړي.

## قبر ته د سپارلو په وخت کښې مسنون دعا

فَإِذَا وُضِعَ فِي لَحْدِهِ کله چې مړے د هغه په لحد کښې کیخودې شی قَالَ الَّذِیْ یَضَعُه:نو وائی به،هغه کس چې دې سپاری بِسْمِ اللّٰهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ شروع کوم په نوم د الله او په دین د رسول الله

**حل اللغة** ◄ ① **وضع، وضع وضعًا (ف)**: ساتل ② **لحد**: قبر ③ **وضع یوضع وضعا**،کیخودل سپارل ④ **یوجه، وجه توجیها**: متوجه کیدل،متوجه کول ⑤ **امر، امرامرًا (ن)**: حکم کول ⑥ **لبن**:کچه خښتې

**تشریح** ◄ **الدعاء عندوضع المیت في القبر** ◄ فرمائی.چه مړے لحد ته ښکته کړی.نودا دعا دے وائی .«بسم الله وعلی ملة رسول الله» او په یو روایت کښې د «بسم الله وعلی سنة رسول الله» الفاظ مروی دی

**دلائله** ◄ ① دلیل دا دې.چې عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا وَضَعَ الْمَيِّتَ فِي الْقَبْرِ قَالَ بِسْمِ اللّٰهِ وَعَلٰى سُنَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یعنی د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ به کله په قبر کښې مړده کیخودلو نو فرمائیل به ئې د الله په نوم او د رسول الله ﷺ په ملت دې سپارم

② او د حاکم په روایت کښې دا الفاظ مروی دی .«إذا وضعتم موتاکم في قبورکم فقولوا باسم الله وعلی ملة رسول الله» کله چه تاسوخپل مړی قبرونو کښې اړدئ.نو «بسم الله وعلی ملة رسول الله» وائي.(فتح القدیر)

وَيُوَجِّهُهُ إِلَى الْقِبْلَةِ او مړے به قبلې طرف ته مخامخ کړی

**تشریح** ◄ **توجیه المیت إلی القبلة في القبر** ◄ په لحد کښې چه مړی اړدی.نو قبلې طرف ته دې وله مخ کولې شي.یعنی په ښی طرف دے سملولې شي.او قبلې ته دې ورله مخ کولې شي.

**دلیله** ◄ دلیل دا دې.چه رسول الله ﷺ خلقو ته ددې حکم کړې دې.په عنایه کښې دا حدیث موجود دې.

«عن علی رضی الله عنه أنه قال مات رجل من بني عبدالمطلب فقال ﷺ یا علی إستقبل به القبلة إستقبالا» حضرت علی رضی الله عنه فرمائی.چه په بنی عبدالمطلب کښې یو سړې مړشو.نو نبی ﷺ اوفرمائیل. اے علی رضی الله عنه دے قبلې طرف ته متوجه کړه.

وَتُحَلُّ الْعُقْدَةُ او د کفن غوټې به پراستنې شی

**تشریح** ◄ **تحلیل عقد الکفن** ◄ فرمائی.چه مړے په لحد کښې کیږدی.نود کفن غوټې به ورله پرانیزی.

**دلیله** ◄ خکه چه اوس د کفن د خویدو ویره پاتې نشوه.

وَيُسَوَّى اللَّبِنُ عَلَى اللَّحْدِ او په لحد به کچې خښتې برابرکړې شي

**تشریح** ◄ **وضع اللبن علی اللحد** ◄ ددې نه پس به په لحد باندې کچه خښتې اولګوی.خکه چه د نبی ﷺ په قبرباندې کچه خښتې لګیدلې شوې وې.

**دلیله** ◄ د حضرت جابر رضی الله عنه نه نقل دی. «کان قبرالنبی ﷺ اللحد ونصبنا علیه اللبن نصبا ورفع قبره من

الأرض شبرا) (۱)یعنی نبی ﷺ په لحد کښې کیخودې شوې وو.اومونږ په لحد باندې کچه خښتې لګولې وې.او د نبی ﷺ قبرمبارك د یو لویشت په اندازه د زمکې نه اوچت ساتلې شوې وو.

**تسجية قبر المرأة**> اود ښځې لحد ته د کوزولو په وخت کښې به په قبر باندې پرده کولې شی . تر دې چه لحد په کچه خښتو بندکړې شی. او د سړی په قبر به پرده نښی کولې

**دليله**>دلیل دا دې.چه د ښځو حال په پرده باندې مبنی دې.اود سړو حال په ښکاره کولو باندې مبنی دې.دغه شان د حضرت فاطمې ﷺ قبر ته د کوزوول په وخت کښې د هغې په قبر پرده کړې شوې وه.

**په قبر کښې د لګیدونکو څیزونواحکام**

| وَيُكْرَهُ الْآجُرُّ وَالْخَشَبُ او پخې خښتې او لرګی لګول مکروه دي |
|---|

**حل اللغة** > ① **اجر**: پخې خښتې ②**خشب**: لرګی ③**بناء**: مضبوطیا ④ **موضع**، ځایْ مقام

**تشریح** > **كراهية الآجر في القبر**> په قبرکښې پخې خښتې او لرګی لګول مکروه دی.

**الدليلان**> ①دلیل دا دې.چه دا دواړه څیزونه د آبادئ د مضبوطتیا دپاره دی.او قبر د اندامونو بوسه کیدو او بربادیدو ځائې دې.نو په داسې ځائې دا سې څیز لګول چه عبث وی.اسراف او مکروه دې.②د پخوخښتو په لګولو کښې وجه دکراهت دا هم ده.چه په پخه خښته باندې د اور اثر وی.نوتفاولاً مکروه دې.لکه چه دده د آخرت کور د اور په مدد سره تیار شوې دې.

| وَلَابَأْسَ بِالْقَصَبِ او بانړس په استعمال کښې څه باك نشته |
|---|

**حل اللغة** > ① **لاباس**: هیڅ باك نشته ② **قصب**، بانړس ③**يهال، هال هيلاً (ض)**: خاوره اچول④ **يربع بربع تربيعًا**: څلور ګوټه جوړول

**تشریح**> **دلیله**> څکه چې دنبی ﷺ په قبر باندې د بانړس یو لرګې لګولې سوی وو(۲)

**سنية إستعمال القصب**> ①د نل او بانړس په استعمال کښې څه باك نشته.په جامع صغیر کښې دی.چه خښته او بانړس لګول مستحب دی.

**رواية الاستحباب** > د قدوری عبارت په استحباب باندې دلالت نه کوی.او د جامع صغیر عبارت ددې څیزونو په استحباب باندې دلالت کوی.څکه چه د هغې عبارت دا دې وَيُسْتَحَبُّ اللَّبِنُ وَالْقَصَبُ او په جامع صغیر کښې دی.چې د کچې خښتې اوبانړس استعمال مستحب دې

**دليله** >دلیل دا دې.چه د رسول الله ﷺ په قبر باندې د بانړس لرګی لګیدلی وو.بیا به په قبر خاورې واچولې شی.

| ثُمَّ يُهَالُ التُّرَابُ بیا به خاوره اچولې شی |
|---|

**تشريح**> **تسنيم القبروعدم تربيعه** > ①او قبر به قب نما جوړولې شی.یعنی د زمکې نه به یو لویشت یا څه زیات اوچت وی. قبربه مسطح یعنی څلورګوټیز نښی جوړولې.

(۱) خرجته في ،،سنن الصلاة،، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ فِي مَرَضِهِ الَّذِي هَلَكَ فِيهِ الْحَدُوا لِي لَحْدًا وَانْصِبُوا عَلَيَّ اللَّبِنَ نَصْبًا كَمَا صُنِعَ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخرجه مسلم في الجنائز باب في اللحد ونصب اللبن رقم (۱۶۰۶)

(۲) من حديث شعبي رواه ابن أبي شيبة في مصنفه (۱۳۳/۳) وابن سعد في الطبقات (۷۳/۶)_

دليله> دليل دا دي.چه نبي ﷺ د قبرونو خلورګوټيز جوړولو نه منع فرمانيلي ده. [1] ابراهيم نخعي رحمه الله فرمانی.چا چه د نبي ﷺ قبر ليدلي وو.اود حضرات شيخينو رضي الله عنهما قبرونه ئي ليدلي وو.هغه ماته خودلي دی.چه ددي حضراتو قبرونه مسنم يعني قب نما وو. [2]

| |
|---|
| وَمَنِ اسْتَهَلَّ بَعْدَ الْوِلَادَةِ او كوم ماشوم چه د پيدائش په وخت آواز اوكړی سُمِّيَ وَغُسِّلَ نو په هغه به نوم ايخودې شي او غسل به ورله ورکولې شي وَصُلِّيَ عَلَيْهِ اود جنازې مونځ به پرې کولې شي وَاِنْ لَمْ يَسْتَهِلَّ او كوم ماشوم چه «د پيدائش په وخت» آواز اونه کړی اُدْرِجَ فِيْ خِرْقَةٍ وَدُفِنَ نو هغه به يوه کپړه کښې راغونډ کړې شي او دفن به ئې کړی وَلَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ اود جنازې مونځ به پرې نه شی کولې. |

تشريح:ـ د ولادت نه پس که په ماشوم کښې داسې څه نښې بيا مونډې شوې چې د هغې نه د هغه ژوند معلوميږی.لکه ژړا کول انتوشې کول اسويلې کول نو په دې صورت کښې به په ده باندې د ژوندی احکام جاری کولی شی غسل به ورکولې شی مونځ به پرې کولې شی اوکه د ژوند څه علامه او نښه بيا نه مونډې شوه نو دې به د کفن په طور په يوه کپړه کښې اونغښتې شي او په کنده کښې به خښ کړې شي اود جنازې مونځ به پرې نشی کولې البته د مختار قول مطابق ده ته به غسل ورکولې شي كذا في انوار القدوری

د شهيد بيان

## بَابُ الشَّهِيْدِ

«دا» باب د شهيد په بيان کښې دې.

تشريح> المقتول ميت باجله>د مقتول په باره کښې د اهل سنت والجماعت عقيده دا ده.چه دے «ميت باجله» دې.يعنی دده مرګ په خپل وخت باندې راغلې دې.خپل وخت نه وراندې نه دے واقع شوې.

الاعتراض> پاتې شوه دا خبره چه کله «ميت باجله»دې.نو بيا په قاتل باندې قصاص يا ديت ولې واجبيږی.

الجواب>ددې جواب دا دې.چه قاتل چونکه د قتل سبب اختيارولو د وجې په نظام کښې خرابی پيدا کړه.نو چونکه ددې نظام د باقی ساتلو دپاره د قاتل دپاره سزا مقرر کړې شوه.

وجه استقلال احكام الشهيد> دشهيد احکام په جدا باب کښې ذکرکړې شول.چه د شهيد مرګ د نورو مرګونو نه په زرهاؤ درجې افضل دې.تر دې چه شهيد في سبيل الله ته مړے وئيل هم منع دی.الله تعالی فرمانی ﴿ وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ يُّقْتَلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتٌ ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ ﴾ د جنائز نه پس د شهد ذکر کول د «ذکر الخاص بعد العام» قبيلې څخه دې.لکه په قرآن پاك کښې د فرښتو د ذکر نه پس د حضرت جبرئيل او ميکائيل ذکر دې.مثلاً دالله عالی فرمان دې.﴿ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ وَجِبْرِيْلَ وَمِيْكٰىلَ فَاِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴾

---

[1] ) من حديث ابي حنيفه اخرجه محمد في كتاب الآثار (ص،٤٢)۔
[2] ) خرجته في ،،سنن الصلاة،، عَنْ سُفْيَانَ التَّمَّارِ اَنَّهُ حَدَّثَهُ اَنَّهُ رَاٰى قَبْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسَنَّمًا اخرجه البخاري في الجنائز باب ماجاء في قبر النبي ﷺ وابي بكر رضي الله عنه وعمر رضي الله عنه رقم ١٣٠٢)۔

**وجوه تسمية الشهيد**> د شهيد نوم ځکه شهيد کيخودلې شوې دې. چه مقتول في سبيل الله ژوندے وي.او د الله تعالى سره موجود وي.نوځکه ورته شهيد ونيلې شي.ځکه چه د شهيد معنى هم موجود اوحاضر ده.②دويمه وجه دا هم ده.چه مقتول في سبيل الله (مشهودله بالجنة)دې.يعنى دده د جنتي کيدو وعده شوې ده.ځکه ورته شهيد ونيلى شي.③دريمه وجه دا ده. چه فرښتے د تکريم او تعظيم دپاره د مرګ په وخت کښې حاضريږي.نو دا به د مشهود په معنى کښې شي.لکه فعيل چه په معنى د مفعول راځي.

**الشهيد في الإصطلاح**> د فقهاؤ په اصطلاح کښې شهيد هغه دې.①څوک چه مشرکانو په ميدان جنګ کښې قتل کړې وي.②يا په ميدان جنګ کښې اوګرندلې شي.او دده په بدن باندې د قتل اثر وي.③يا مسلمانانو په ظلم سره قتل کړې وي.او دده د قتل په وجه ديت واجب شوېنه وي.

**د شرعي شهيد قسمونه**

| الشَّهِيدُ مَنْ قَتَلَهُ الْمُشْرِكُونَ شهيد هغه دې .څوک چې مشرکانو قتل کړې وي أَوْوُجِدَ فِي الْمَعْرَكَةِ وَبِهِ أَثَرُالجراحة يا په ميدان جنګ کښې ملاؤ شي .او په ده باندې زخم اثر وي أَوْقَتَلَهُ الْمُسْلِمُونَ ظُلْمًا يا د مسلمانانو قتل کړې وي په ظلم سره وَلَمْ يَجِبْ بِقَتْلِهِ دِيَةٌ او دده په قتل سره ديت واجب شوې نه وي |
|---|

**حل اللغة** >①قتله، قتل، قتلاً(ن): قتل کول ②وجد، وجد وجداناً(ض): موندل ③الاثر: نښه ④لم يجب،وجب وجوباً(ض): واجب کيدل ⑥ جراحة: زخم

**تشريح**> **اقسام الشهادة**>صاحب د قدورى رحمه الله فرمائي.چه د شهيد څو صورتونه دي.①يو مسلمان مشرکانو قتل کړلو.که په څه آله سره وي اوکه په لرګى وغيره سره وي.②يو مسلمان په ميدان جنګ کښې په دې سےحالت کښې بيا موندلےشو.چه دده په بدن باندې د زخم وغيره اثروي.③يومسلمان مسلمانانو په ظلم سره قتل کړې وي.اوددغه قتل په وجه ديت نه واجبيږي.

**دليله**> دوى حقيقة شهيدان نه دي خو حکما شهيدان دي لکه صاحب د هدايه چې فرمائي چه دوى د احد د شهيدان په حکم کښې دي

| فَيُكَفَّنُ وَيُصَلَّى عَلَيْهِ وَلَا يُغَسَّلُ نو دے به کفن کولې شي .اوپه ده به مونځ کولې شي .اوده ته به غسل نشي ورکولى |
|---|

**تشريح**> **حكم غسل الشهيد والصلاة عليه وتكفينه**> نو په دې درې وارو صورتونو کښې دا حکم دې.چه په اتفاق سره به کفن ورکولې شي.خوپه مونځ کښې اختلاف دې. په شهيدانو به د جنازې مونځ کولې شي. شهيد ته خوکفن د دې وجې ورکولے شي.چه کفن کول د بنيادم د سرو دپاره سنت دې.نو که د شهيد په بدن باندې جامے وي.نو هغه به نشي لرے کولې.ددې نور تفصيل به په راروانو صفحو کښې راشي.

**دليل عدم نزع الثياب وعدم الغسل**>ځکه چه نبي ﷺ د احد د شهيدانو په باره کښې فرمائيلي دي فرمائيلي دي. (زملوهم بكلومهم ودمائهم) او په يو روايت کښې دې. (زملوهم) يعنى دوى په کفن کړئ.د خپلو زخمونو او وينو سره،اود جامو سره.(1)

(1) غربه الزيلعي رحمه الله هذا اللفظ وخرجت لي، سنن الصلاة،، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلَى أُحُدٍ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ ثُمَّ يَقُولُ أَيُّهُمْ أَكْثَرُ أَخْذًا لِلْقُرْآنِ فَإِذَا أُشِيرَ لَهُ إِلَى أَحَدِهِمَا قَدَّمَهُ فِي اللَّحْدِ وَقَالَ

## جُنب شهيد ته دغسل ورکولوحکم

وَإِذَاسْتُشْهِدَالْجُنُبُ اوکه په حالت دجنابت کښې شهيد شو غُسِّلَ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ(١)نود امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نيزبه ده ته غسل ورکولې شي وكذالك الصبي اوهم دغه شان د ماشوم حکم دي

**حل اللغة** ◄ ①**استشهد،استشهدااستشهادًا**: شهادت غوښتل ②**جنب**: په حالت دَ جنابت،جنبي ③**وجب،وجب وجوبًا (ض)**: واجب کيدل ⑤ **مانعة**: منع کونکې ښځه ⑥**انقطاع**: منقطع کيدل ⑦**کرامة**:بزرگی،شرافت ⑧ **ذنب**: گناه

**تشريح** ◄ **غسل الجنب الشهيد** ◄ ①جنب مسلمان که شهيد شو.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزبه ده ته غسل ورکولې شي.هم دا د امام احمد رحمه الله قول دې.

**دليله** ◄ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه شهادت،دمړی دغسل واجبيدونه مانع دې. خوکه د اول نه غسل واجب وی.نودا رفع کونکےنه دې.لکه چه دشهيد په جاموکه نجاست لگيدلې وی.نود دې وينځل ضروری دی.ليکن دده د بدن وينه وينځل ضروری نه دی.نوشهادت چونکه رافع نه دی.ځکه به شهادت جنابت هم نه لرے کوی.اوکله چه جنابت نه لرےکوی.نوجُنب شهيد ته به دجنابت غسل ورکول لازمی وی.

**تائيده**◄ددې تائيد ددې واقعےنه هم کيږی.چه حضرت حنظله ﷜ کله شهيد شو.نوفرښتو ده ته غسل ورکړې وو.حضورﷺ دده بی بی نه تپوس اوکړو.چه حنظله﷜ په کوم حالَ کښې وو. ددوی ښځې اوونيل.چه ماسره ئې جماع کړې وه.کله ئې چه دجنگ اعلان واوريدو. نودغسل کولونه بغير په جنگ کښې شريك شو.اوشهيد شو.نبی کريمﷺ اوفرمائيل.چه هم داسبب دې.

**الإعتراض**◄که دا اعتراض اوشي.چه د بندگانوغسل ورکول واجب دی.دفرښتو نه دی.نوکه جُنب شهيد ته غسل ورکول واجب وے،نونبی کريم ﷺ به حنظله﷜ ته د دوباره غسل ورکولوحکم کړې وو.

**الجواب**◄واجب خو صرف غسل ورکول دی.غسل ورکونکې چه څوك هم وی.تاسو خيال اوکړئ.چه کله فرښتو آدم ﷣ ته غسل ورکړو.نو واجب اداشو.د آدم ﷣ اولاد دغسل اعاده اونکړه.که د فرښتو ورکړې شوې غسل ناکافی وې.نود آدم ﷣ اولاد به د آدم ﷣ دغسل اعاده کړې وه.او رسول اکرم ﷺ به دحضرت حنظله ﷜ دغسل اعاده کړې وه.

**دليله في حکم الصبي** ◄د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ دليل دادې.چه دأحد دشهيدانو په حق کښې توره دغسل نه کافی شوه.ځکه چه توره گناهونه پاکوی.يعنی دأحد شهيدانو ته غسل ځکه ورنکړې شو.چه تورے دوی دگناهونو نه پاك کړی دی.

اوپه ماشوم هيڅ گناه نشته.ځکه به ماشوم دأحد دشهيدانو په معنی کښې نه وی.اوچه دأحد دشهيدانو په معنی کښې نشو.نودأحد دشهيدانو په شان دماشوم نه به غسل هم نه ساقطيږی.بلکه ماشوم ته به غسل ورکولےشی.

---

أنا شهيدٌ عَلَى هَؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَمَرَ بِدَفْنِهِمْ فِي دِمَائِهِمْ وَلَمْ يُغَسَّلُوا اخرجه البخاري في الجنائز باب الصلاة على الشهيد رقم (١٢٥٧)_

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في مجمع الأنهر(١\١٨٩) والكفاية (٢\١٠٧) وفتح القدير(٢\١٠٧) والعناية (٢\١٠٧) ورد المحتار(١\٦٦٩) والبحرالرائق (٢\١٩٨) نقلاً عن القول الراجح (١\١٥٩)-

وَقَالَ: ابويوسف ومحمد لا يُغَسَّلان اوصاحبين رحمهما الله فرمائي چې ده ته به غسل نشي ورکولې

تشريح ‹ مذهب الصاحبين › اوصاحبينو رحمهما الله په نيز به غسل نشي ورکولې.ددې قائل امام شافعي رحمه الله هم دی.

دليلهما ‹ دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه کوم غسل د جنابت په وجه واجب وو.هغه په مرګ سره ساقط شو.ځکه چه دمرګ په وجه دې دجنابت غسل ساقط.اودويم غسل يعنی دمرګ غسل دشهادت په وجه واجب نه دې.ځکه چه شهادت دغسل دوجوب نه مانع دې.ځکه چه دشهيدانو په باره کښې حضور ﷺ فرمائيلی دی.«زملوهم بكلومهم ولا تغسلوهم» په حديث کښې ددې هيڅ تفصيل نشته چه شهيد جُنب وی يا غيرجُنب وی.

دليلهما في الصبي ‹ دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه دشهيد نه غسل ځکه ساقطيږی.چه دده دمظلوميت اثر باقی دې.نوشهيد ته غسل نه ورکول دده د اکرام په وجه دې.اود ماشوم مظلوميت زيات ی. نوماشوم ددې کرامت زيات مستحق دې.

**د شهيد د وينې جامو.اوزياتې ځيزونود وينځلو حکم**

وَلَا يُغَسَّلُ عَنِ الشَّهِيدِ دَمُهُ اودشهيد نه به دده وينه نشی وينځلې وَلَا يُنْزَعُ عَنْهُ ثِيَابُهُ اونه به دده نه جامې اوبنکلې شی وَيُنْزَعُ عَنْهُ الْفَرْوُ وَالْحَشْوُ وَالْخُفُّ وَالسِّلَاحُ اود شهيد نه به جداکولې شی .پوستين دمالوچوغيره نه ډک ځيز ،موزې او وسله

حل اللغة ‹ ①لايغسل، غسل غسلاً (ض): وينځل ②دم جمع دماء: وينه ③لاينزع،نزع نزعًا (ف): ويستل، کوزول ④ فرو: مالوچ ⑤ خف: موزه ⑥

تشريح ‹ نزع الثياب الفاضلة عن الشهيد ‹ ①دشهيد په بدن که دچمړے جامے،پوستين وغيره وی.يا د مالوچوغيره نه ډک شوې ځيز وی.يا وسله اوموزې وی.نودا دے ترے اوويستې شی.دا د احنافو عالمانو مذهب دې

دليله ‹ دليل دابن عباس رضي الله عنهما حديث دې.«قال أمر رسول الله ﷺ بقتلى أحد أن ينزع منهم الحديد والجلود وأن يدفنوا بدمائهم وثيابهم»يعنی رسول الله ﷺ أحد د شهداؤ په باره کښې حکم ورکړې وو.چه د دوی نه اوسپنه او پوستين جدا کړئ.اودوی د وينے سره په جاموکښې دفن کړئ.ښکاره دا ده.چه ذکرشوی دواړه حديثونه متعارض دی.ځکه مونږدواړه پريږدو. اوقياس طرف ته رجوع کوو.او قياس دا دې چه پوستين وغيره اوبنکلې شی.ځکه چه دا ځيزونه دکفن دجنس څخې نه دی.

توافق الثياب المسنونة في كفن الشهيد ‹ دشهيد په بدن که دمسنون عدد نه کمے جامے وی.نو په هغې کښې به اضافه کولې شی.چه مسنون عدد ته اورسی.اوکه دمسنون عدد نه زياتےجامے وی.نوکمولې به شی.چه مسنون عدد باقی پاتې شی.

**د ارتثاث تعريف**

وَمَنْ اُرْتُثَّ غُسِّلَ اوکوم کس چې ارتثاث بيامومی.ده ته به غسل ورکولےشی

تشريح ‹ الإرتثاث وأحكامه ‹ دارتثاث معنی ده،زړيدل. «ثوب رث» زړے جامے ته وائی.صورت دمسئلې دا دې. که مقتول فی سبيل الله د زخمی کيدو نه پس او د مرګ نه مخکښې د ژوند څه منافع حاصلے

كړي. نوونيلے به شي.چه دا شهيد زوړ شو .اوچونكه د ژوند منافع حاصلولو په وجه د ظلم اثر هم سپك كيږي.

**دليله>** څكه دے د احد دشهيدانو په معنى كښې نشو.اوچه د أحد د شهيدانو په معنى كښې نشو.نوده ته به غسل وركولې شي.څكه چه د غسل سقوط د هغه شهيد په حق كښې دې.چه د أحد د شهيدانو په معنى كښې وي.

| وَالْاِرْتِثَاثُ اَنْ يَاكُلَ اَوْيَشْرَبَ اَوْيَنَامَ اَوْيُدَاوٰى اوارتثاث دا دې .چې خوراك څكاك اوكړي.يا اوده شي .يا دده علاج اوشي . اَوْيَبْقٰى حَيًّا حَتّٰى يَمْضِىَ عَلَيْهِ وَقْتُ صَلٰوةٍ وَهُوَ يَعْقِلُ يا دې ژوندې پاتې شي او په ده باندې د يو مونځ كامل وخت تيرشي اودې په هغې باندې پوهيږي هم. |
|---|

**تشريح> تعريف الإرتثاث>** صاحب د قدوری رحمه الله وائى.چه ارتثاث دا دې.چه مقتول فى سبيل الله دمرګ نه مخكښې څه اوخري يا اوڅكي يا علاج معالجه اوكړي.دجنګ نه د راحت په غرض منتقل كړې شي.څكه چه ده د ژوند څه منافع حاصل كړل.حالاتكه د أحد د شهيدانو حال دا وو.چه اوبه دوی ته پيش كولې شوې.خودوی دشهادت د نقصان په ويره قبول نكړې.اوهم دغه شان نې ترقيدو ترقيدوكښې ساه وركړه.

**دليله>** څكه چې ده د ژوندڅه فائدے حاصلے كړی

| اَوْيُنْقَلَ مِنَ الْمَعْرَكَةِ حَيًّا يا دجنګ ميدان نه منتقل كړې شى ژوندې، |
|---|

**تشريح> حكم من انتقل من موضع المعركة>** اوكه يوشهيد د ميدان جنګ نه منتقل كړې شي.دے دپاره په ميدان جنګ كښې نې اسونه د پښو لاندې نكړی.نودا به ارتثاث نه وی.څكه چه ده هيڅ راحت نه دےحاصل كړې .

**حكم من اواه فسطا او خيمة>** اوكه ده ته نې په لويه يا وړه خيمه كښې پناه وركړه. نودې به ارتثاث موندونكے شمارلے شي.

## په حد اوقصاص كښې د مقتول دغسل او جنازې حكم

| وَمَنْ قُتِلَ فِى حَدٍّ اَوْقِصَاصٍ اوكوم كس چې په حد يا قصاص كښې قتل شى غُسِّلَ وَصُلِّىَ عَلَيْهِ نوده له به غسل وركولےشي .او په ده به مونځ كولې شي |
|---|

**تشريح> يغسل ويصلي على من قتل حداً اوقصاصاً>** كوم كس چه په حد يا قصاص كښې قتل شي . نو ده له به غسل هم وركولې شي.اوپه ده به د جنازےمونځ هم كولې شي.

**دليله>** څكه چه ده د واجب حق اداكولو دپاره خان وركړې دې.اود أحد شهيدانوصرف دالله درضا حاصلولو دپاره خانونه قربانى كړی وو.څكه په حد يا قصاص كښې قتل شوې دأحد شهيدانو پورې نشي لاحق كيدې.اونقل دی .چه حضرت ماعز رضی الله عنه سنګسار شو.نودده تره په درباررسالت كښې حاضرشو. داسې نې اووئيل.(قتل ماعزاً كما يقتل الكلاب فما ذا تامرنى أن أصنع به) دالله رسوله ﷺ ماعز رضی الله عنه د سپو په شان قتل شو.اوفرمايئ چه اوس زه دده سره څه اوكړم. رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل.(لا تقل هذا، فقد تاب توبة لو قسمت توبته على أهل الأرض لو سعتهم إذهب فغسله وصل عليه) داسې مه وايه ،ده داسې توبه اويستله. كه دا د ټولې زمكې په خلقو تقسيم شي.نو دټولو دپاره به كافى شي.لارشه.ده له غسل

ورکره. اوپه ده مونځ اوکره.(کفایه)

وَمَنْ قُتِلَ مِنَ الْبُغَاةِ أَوْ قُطَّاعِ الطَّرِيقِ اوپه باغیانو یاډاکوانو کښې که څوك قتل شی لَمْ يُصَلَّ عَلَيْهِ نوپه ده به مونځ نشی کولې

**حل اللغة** ۱ **باغل**: خرج کونکې ۲ **مرضاة**: رضا. خوشحالی ۳ **بغاة**: باغی ۴ **قطاع الطریق**: ډاکو

**تشریح** **الصلاة علي الباغي** ۱ اوکه څوك باغی یا ډاکو قتل کړې شو.نوزمونږ په نیز به په ده مونځ نشی کولې.

**دلیله** دلیل دادې.چه حضرت علی ﷺ خوارجو ته نه غسل ورکړې وو.نه ئې په دوی مونځ کړې وو. حالانکه چه خوارج باغیان وو.حضرت ﷺ ته اوونیلی شو.(أهم كفار)آیا خوارج کافر دی ؟ حضرت علی ﷺ اوفرمائیل.(لا ولكنهم إخواننا بغوا علينا) نا.لیکن زمونږ ورونړه دی.په مونږ ئې بغاوت کړې دې.د ے نه معلومه شوه.چه باغیانواوډاکوانو ته به غسل نشی ورکولې.اومونځ به پرې نشی کولې.دوی ته د سزا ورکولو دپاره اود نورود تنبیه دپاره.لکه چه ډاکویه د دریو ورځو پورې په سولۍ پریخودې شی. ښکاره ده.چه په سولۍ پریخودل دده دپاره سزا اود نورودپاره تنبیه ده. والله اعلم.

**په کعبه کښې دننه دمونځ کولو بیان**

# بَابُ الصَّلٰوةِ فِي الْكَعْبَةِ

**ترجمه** دا باب په کعبه کښې دننه دمونځ کولو په بیان کښې دې.

**تشریح** (صلاة في الكعبة) د(کتاب الصلاة)په آخرکښې خکه ذکرشو.چه د"کتاب الصلاة" اختتام په یومتبرك ځيز اوشی.د بیت الله نوم کعبه خکه کیخودې شوېدې.چه دا مکعب یعنی څلورګوټې ده.

**په کعبه کښې دننه د مونځ کولوطریقه**

الصَّلٰوةُ فِي الْكَعْبَةِ جَائِزَةٌ فَرْضُهَا وَنَفْلُهَا[1] په کعبه کښې مونځ کول جائزدې.که فرض وی اوکه نفل

**حل اللغة** ۱ **جوف**: خیټه

**تشریح** **الصلاة في الكعبة** ۱ په کعبه کښې دننه فرض اونفل مونځ دواړه جائزدی.

**دلیله** دادې.چه د فتح مکه په ورځ نبی کریم ﷺ په کعبه کښې دننه دوه رکعته نفل مونځ اداکړې دې. روایت دادې.(عن ابن عمر أن النبي ﷺ دخل الكعبة هو وأسامة وبلال وعثمان بن طلحة وأغلقها عليه ثم مكث فيها قال ابن عمر فسألت بلالا حين خرج ما صنع رسول الله ﷺ قال جعل عمودين عن يساره وعمودا عن يمينه وثلاثة أعمدة وراءه ثم صلى وكان البيت يومئذ على ستة أعمدة وكان هذا يوم الفتح)[2] ابن عمر ﷺ فرمائی.چه رسول اکرم ﷺ ،اسامه، بلال اوعثمان بن طلحه کعبه کښې داخل شول.او دروازه ئې بنده کره.بیا په دې کښې دوی حصار

---

[1] **مذهب الشافعي** رحمه الله :- ۲ اود امام شافعی رحمه الله په نیزدواړه ناجائزدی.

**مذهب مالک** رحمه الله :- اود امام مالک رحمه الله په نیز نفل جائز دې. البته فرض مونځ جائز نه دې.

[2] من حديث ابن عمر ﷺ أخرجه البخاري في الصلاة باب ۹۶ ومسلم في الحج رقم ۳۸۸ وابوداود في المناسك باب ۹۲ والنسائي في القبلة باب ٦ ومالك في الحج رقم ۱۹۳ وأحمد في المسند (۱۱۳،۱۳۸/۲)

شول.ابن عمر ﷺ وائي.چه ما د بلال ﷺ نه تپوس اوکړو.کوم وخت چه بلال ﷺ بهر راوتلو.چه رسول الله ﷺ څه کول؟ بلال ﷺ اوفرمائيل.چه دوه ستنې خودوی ګس طرف ته کړې.يوښی طرف ته او درې نې شاه طرف ته کړې.بيا دوی مونځ اوکړو.په دغه زمانه کښې د بيت الله شپږ ستنې وې.اودا د فتح مکه ورځ وه.که په کعبه کښې دننه مونځ کول ناجائزوې.نو رسول الله ﷺ به هيڅ کله په کعبه کښې دننه مونځ نه وو کړې.اوکه ته ناسوااووائې.چه هغه نفل مونځ وو.نوموږ به جواب ورکړو.چه د جواز کوم شرطونه د نفل دی.هم هغه د فرض دی.په دې وجه به فرض هم د نفلو په معنی کښې وی.اوچه فرض مونځ دنفلو په معنی کښې دې.نود نفلو په شان فرض کول به هم په کعبه کښې دننه جائزوی.

②دويم دليل دادې.چه کوم مونځ په کعبه کښې دننه ادا شوېدې.په دې کښې د مونځ ټول شرطونه جمع دی.تر دې چه استقبال د قبلې هم اوموندې شو.ځکه چه د ټولې کعبې استيعاب شرط نه دې.اودا ممکن هم نه دی.

**په کعبه کښې جماعت سره د مونځ کولو حکم**

| **فَإِنْ صَلَّى الْإِمَامُ بِجَمَاعَةٍ** که امام په کعبه کښې دننه جماعت سره مونځ اوکړو **فَجَعَلَ بَعْضُهُمْ ظَهْرَهُ إِلَى ظَهْرِ الْإِمَامِ جَازَ** او په مقتديانوکښې بعضوخپله شا د امام شا طرف ته کړه.نوجائزدی |
|---|

**حــل اللغــة** ①صلي صلاة: مونځ کول،دعاکول ②فجعل،جعل جعلاً (ف): کول، جوړول ③ظهر: شا،ملا ④ وجه: مخ، طرف ⑤ لم تجز،جاز جوازاً (ن): جائز کېدل ⑥تقدم: وړاندې کيدل

**تشريح** **صور الصلاة في الكعبة** په کعبه کښې دننه د باجماعت مونځ څلور صورتونه دی.① دمقتدی مخ دامام شا طرف ته وی.② د مقتدی مخ د امام مخ ته وی.③ دمقتدی شا د امام شا ته وی.④ د مقتدی شا د امام مخ ته وی.اول اودريم صورت بغير د کراهته جائزدې.اوڅلورم قطعاً جائزنه دې.

**وجوه احکام الصور الأربعة** د اولنی صورت جواز ښکاره دې.اودويم صورت ځکه جائزدې.چه د امام متابعت موجود شو.اومنع يعنی د امام نه مخکښې کيدل منتفی شو.او په دې صورت کښې کراهت ځکه دې.چه کله د مقتدی مخ دامام مخ ته وی.نود هغه چا سره به مشابه شی.څوك چه دتصوير عبادت کونکې وی.نو په دې صورت کښې به دمقتدی او امام په مينځ کښې ستره ايخودل مناسب وی.چه ددې مشابهت نه بچ شی.ددريم صورت د جواز وجه صاحب دهدايه رحمه الله بيان کړې ده.چه مقتدی د قبلې په طرف هم متوجه دې.اوخپل امام په غلطئ هم نه ګڼړی.اودخپل امام نه مخکښې هم نه دې.

| **وَمَنْ جَعَلَ مِنْهُمْ وَجْهَهُ إِلَى وَجْهِ الْإِمَامِ** او په مقتديانوکښې چاچې خپل مخ د امام مخ طرف ته کړو **جَازَ وَيُكْرَهُ** نو جائز ده خو مکروه ده **وَمَنْ جَعَلَ مِنْهُمْ ظَهْرَهُ إِلَى وَجْهِ الْإِمَامِ** او په مقتديانوکښې چاچې خپله شا د امام مخ طرف ته کړه **لَمْ تَجُزْ صَلَاتُهُ** نودده مونځ جائز نه دې |
|---|

**تشريح** دڅلورم صورت دعدم جواز وجه ښکاره ده.ځکه چه په دې صورت کښې به مقتدی دخپل امام نه مخکښې وی.اوښکاره ده چه دا قطعاً ناجائزده.

فائده:کوم مقتدی چه د امام نه ښی يا ګس طرف ته وی.دده مونځ هم جائز دې.

## په مسجد حرام کښې د جماعت طريقه

وَإِذَا صَلَّى الْإِمَامُ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اوکله چې امام په مسجدحرام کښې مونځ اوکړی فَتَحَلَّقَ النَّاسُ حَوْلَ الْكَعْبَةِ وصلوا بصلاة الامام او خلقو د کعبې نه ګيرچاپيره حلقه واچوله او دامام په امام په مونځ پسې ئې مونځ اوکړو فَمَنْ كَانَ مِنْهُمْ أَقْرَبَ إِلَى الْكَعْبَةِ مِنَ الْإِمَامِ جَازَتْ صَلَاتُهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ فِي جَانِبِ الْإِمَامِ نوکوم کس چې د امام په نسبت کعبېته زيات نيزدے وی.دده مونځ هم جائزدې .خوچې د امام په طرف کښې نه وی

**حل اللغة** >①**فتحلق، تحلق تحلقًا**: حلقه جوړول،دائره جوړول ②**حول**: چاپيره ③**جازت، جاز جوازًا (ن)**: جائز کيدل ④ **تقدم**: وړاندې کيدل ⑤ **تاخر**: روستو کيدل

**تشريح**> **كيفية الجماعة حول الكعبة**>مسئله داده.چه امام په مسجد حرام کښې مونځ اوکړو.خلقود کعبه نه حلقه جوړه کړه.يعنی د کعبې نه ئې ګيرچاپيره صفونه جوړکړل.اود امام په اقتداءکښې ئې مونځ اوکړو.نو کوم طرف ته چه امام نه وی.که په دغه طرف کښې مقتدی دامام په نسبت سره کعبې ته زيات نزدې وی.نو دده مونځ جائزدې.خوچه کوم طرف ته امام وی.که مقتدی په دغه طرف کښې دامام په نسبت کعبېته زيات نيزدے وی.نوددې مقتدی مونځ ټيک نه دې.

**دليله**> خکه چه وړاندې والے او روستوالے په هغه وخت کښې ښکاره کيږی.چه طرف يو وی. نود امام په طرف کښې چه کوم مقتدی دامام په نسبت دکعبې ديوال ته زيات نيزدے وی.نودا د امام نه مخکښې دې.اوکوم مقتدی چه دخپل امام نه مخکښې وی.دده مونځ جائز نه دې.او په کوم طرف چه امام نه وی.دغه طرف ته تقدم اوتاخر نه متحقق کيږی.نو په دغه طرف کښې به دخلقومونځ ټيک وی.

## د خانه کعبې د چت دپاسه د مانځه حکم

وَمَنْ صَلَّى عَلَى ظَهْرِ الْكَعْبَةِ اوچاچې دکعبې په چت مونځ اوکړو جَازَتْ صَلَاتُهُ نودده مونځ جائزدې (۱)

**حل اللغة** >①**ظهر**: شا ، چت ②**جازت،جاز جوازًا (ن)**: جائز کيدل

**تشريح**> **الصلاة على الكعبة**> ① زمونږ په نيز دکعبې په چت مونځ کول جائزدی.اګرچه دده مخې ته ستره نه وی.

**دليله**> په نيز قبله نوم دې.دکعبې،او کعبه دعمارت نوم نه دې.بلکه هغه ميدان کوم خائې کښې چه دکعبې عمارت دې.د هغه خائې نه واخله د آسمانه خکه چې دا منتقل کيدې شی ولے ګوری نه.که چا په ابوقبيس غرمونځ اوکړو نوجائزدې.حالانکه عمارت دده مخې ته نه دې.

**كراهة الصلاة على ظهرالبيت**>ليکن دومره خبره ضرورده.چه دکعبې په چت مونځ کول مکروه دی.دکراهت وجه داده.چه دکعبې په چت ختوکښې دکعبې تعظيم ختميږی.خکه دا مکروه ګرځولې شوې دې.

**دليله**>اودکعبې په چت دمونځ اداکولو نه حضورﷺ هم منع فرمائيلې ده.(عن ابی هريرة ؓ انه قال نهی النبیﷺ

---

(۱) **مذهب الشافعي**:- په زيربحث مسئله کښې امام شافعی رحمه الله وائی.چه دکعبې په چت مونځ کول جائز نه دی.اوکه دده مخې ته ستره وی.نوجائزدی.

من الصلوة في سبع مواطن المجزرة والمزبلة والمقبرة والحمام وقوارع الطريق ومعاطن الابل وفوق ظهر بيت الله تعالى([1])
حضورﷺ په اوه ځايونوکښې دمونځ کولو نه منع فرمائيلې ده.①مذبح ② ډيران ③ اديره ④ نس خانه ⑤ د لارې منځ ⑥د اوښانوترلو ځائي ⑦د بيت الله چت، دې حديث نه معلومه شوه. چه د بيت الله په چت مونځ كول ممنوع دى.والله اعلم بالصواب.

د زکاة بیان

# كِتَابُ الزَّكَاةِ

**ترجمه**> (دا)كتاب (په بيان داحكامو)د زكاة (كښې)دې.

**تشريح> الأقسام الثلاثة للعبادة**>عبادات په درې قسمه دى. ①بدنى لكه مونځ، روژه ②مالي: لكه زكاة ③ ددې دواړو نه مركب لكه حج.

**وجوه ذكر الزكاة بعد الصلاة**> د قياس تقاضا خودا وه.چه د كتاب الصلاة نه پس كتاب الصوم ذكرشوې وې.چه د بدنى دواړو عبادتونو ذكر پرله پسې يوځائي شوې وې.خوداسې اونكړې شو ① د كتاب الصلاه نه پس كتاب الزكاة ځكه ذكركړې شو.چه په دې ترتيب كښې د الله تعالى د كلام اود رسول اللهﷺ د كلام د دواړو اقتداء كيږى.د الله تعالى د كلام اقتداء خو په دې وجه ده.چه الله تعالى زكاة د مونځ نه پس متصل ذكركړيدې.لكه چه ارشاد دې. ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ﴾ اود رسول اللهﷺ دكلام اقتداء داسې ده.چه رسول اللهﷺ فرمائيلي دى.(بنى الاسلام على خمس شهادة أن لا إله إلا الله وأن محمدًا رسول الله وإقام الصلاة وإيتاء الزكاة..الحديث) ②دويمه وجه داده.چه زكاة او روژه دواړه كال ٢هـ كښې فرض شوى دى.خوصاحب د شرح نقايه ملاعلى قارىؒ د بيان مطابق زكاة رومبې فرض شوې دې.او روژه روسته.په دې وجه د زكاة بيان وړاندې اوكړې شو.اود روژې ددې نه پس.اود بعضو حضراتو خيال دې.چه زكاة په اجمال سره د هجرت نه مخكښې فرض شوې دې.خو په تفصيل سره د هجرت نه پس فرض شوې دې.بهرحال د فرضيت ترتيب هم ددې تقاضا كوى. چه زكاة د روژې نه مقدم ذكركړې شى.

**معنى الزكاة لغة**> ①د زكاة لغوى معنىٰ د طهارت ده.لكه ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّىٰ﴾ بې شك كامياب شو هغه كس څوك چه پاك شو②دزكاة معنى صدقه هم ده.ځكه چه صدقه وركول د صدقه وركونكى د ايمان تصديق كوى.اوده د قلبى حالت يعنى صدق اوپاكوالى نښه ده.③ دويمه معنىٰ د نماء (زياتيدلو) ده.ددې معنىٰ په اعتبارسره وجه تسميه داده.چه زكاة چونكه د مال د زياتوالى سبب دې.په دې وجه ددې نوم زكاة كيخودلې شو.او زكاة سبب د نماء ځكه دې.چه زكاة وركونكى ته الله تعالى په دنياكښې ددې عوض وركوى.اوپه آخرت كښې ثواب وركوى.

**معنى الزكاة شرعًا**>د شريعت په اصطلاح كښې زكاة وائى د نصاب حولى يو جزء فقير او دده په شان د بل په ملك كښې وركولته.اوبعض وائى.چه زكاة د مال د هغه مقدار نوم دې.كوم چه د فقير دپاره

---

[1] ) خرجته في ،،سنن الصلاة،، عَنْ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يُصَلَّى فِي سَبْعَةِ مَوَاطِنَ فِي الْمَزْبَلَةِ وَالْمَجْزَرَةِ وَالْمَقْبَرَةِ وَقَارِعَةِ الطَّرِيقِ وَفِي الْحَمَّامِ وَفِي مَعَاطِنِ الْإِبِلِ وَفَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ اللهِ اخرجه الترمذي في الصلاة باب ماجاء في كراهية ما يصلى اليه وفيه رقم ٣١٦ رجاله ثقات إلا زيد بن جبير فإنه ضعيف)-

اوښکلي شوي وي.اود زکاة مال ورته په دي وجه ونيلي شوي دي.چه الله تعالی فرمانی﴿وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ﴾ او ،ايتاء، بغير د ورکولونه محال ده.نومعلومه شوه. چه زکاة د مال نوم دي.

**فرضية الزكاة بالقرآن**﴾ د زکاة فرضيت د کتاب الله سنت اجماع دري وارو سره ثابت دي لکه څنگه چه به په راروان متن کښي درته معلوم شي.

**سبب وجوب الزكاة**﴾ د زکاة د وجوب سبب د نصاب نامی مالك کيدل دی.اوددي شرطونه د صاحب نصاب ازادکيدل، بالغ کيدل،عاقل کيدل،مسلمان کيدل،د قرض نه فارغ کيدل،اوپه مال نصاب باندي د کال تيريدل دی.د زکاة حکم پوره کونکي په دنياکښي د مکلف کيدلوذمه داری نه فارغ کيږی،او په آخرت کښي عذاب نه خلاصي موندل،او ثواب حاصلول دی.

**حكم فرضية الزكاة**﴾ ① په ښار کښي يقيناً هرقسمه خلق کمزوری او حاجت مند وغيره وی.اودا حادثات نن په يوکس اوصباله په بل باندي راتلونکی دی.نوکه د فقر اوحاجت لري کولو طريقه په دوی کښي موجود نه وی.نودا خلق به يقيناً هلاك شی.اود اولږي خلق به مره شی②په دي کښي د اوچت درجه همدردی خودلي شی.دغه شان په خپل مينځ کښي گرم يخ يعنی د امير غريب ملاويدلوسره مسلمان سره يوشی.په مالدارو باندي فرض دی.چه دوی اداکړی.که فرض نه وی.نوهم د انسانی همدردئ تقاضا ده.چه د غريبانانو امداد اوکړي شی.په انسان کښي همدردی اوچت صفت دي.نويه زکاة ورکونکی کښي ددي د اثرنښي ښکاره کيږی.اوپه هرصحيح طبعيت کښي داخبره پرته ده.چه په دي کارکولوسره د عامو انسانانوسره همدردی ده.دا يو داسي صفت دي.چه په دي باندي ډيراخلاق موقوف دی.چه ددي انجام(او نتيجه)د خلقو سره ښه معامله ده.او په کوم کس کښي چه د عامو انسانانو سره د همدردئ جذبه نه وی.په هغه کښي ډير زيات نقصان وی.چه ددي اصلاح په هغه باندي واجب ده.اودا اصلاح عامو غريبانانو انسانانوته په مال ورکولو سره کيږی.③زکاة صدقات گناهونه لري کوی.اود برکاتو زياتولو ډيري غټي ذريعي دی. ④ هرکله چه انسان د الله تعالی دپاره دا خپل خوږ مال په خپل لاس ورکوی.په کومي چه دده د ژوند دارومدار اود معيشت انحصار دي.اوکوم ني چه په محنت،تکليف او په مشقت سره گټلي دي.بيا د بخل پليتی دده نه اوځی.اوپه دي سره په ايمان کښي قوت او پوخوالي پيداکيږی.ځکه چه په محنت سره گټلي شوي خپل مال خاص د الله د رضا حاصلولو دپاره ورکول،دا د خيرکار دي.چه په دي سره د بدن هغه ناپاکی چه کومه د تولو پليتو نه زياته گنده ده.يعنی بخل لري کيږی.ځکه چه دا حالت يعنی د بخل د پاکوالی دپاره خپل مال د الله تعالی په لاره کښي خرچ کول،او په خپل محنت سره حاصل شوي مال خاص دالله تعالی درضا دپاره نوروخلقو ته ورکول دترقئ يوحالت دي.يعنی اوچت حالت دي.سخاوت دي.مال سره محبت کمول دی.اوپه دي کښي صريحی او په ښکاره طور باندي د بخل د پليتئ نه صفائی او پاکی حاصليږی.اود الله تعالی رحيم او کريم ذات سره تعلق زياتيږی.ځکه چه خپل عزيز مال د الله تعالی دپاره پريخودل، په نفس گران وی.په دي وجه ددي تکليف په برداشت کولوسره د الله تعالی سره تعلق هم زياتيږی.او ايمانی قوت او طاقت هم زياتيږی..والله اعلم

## د زکاة د وجوب شرطونه

> الزَّكَاةُ وَاجِبَةٌ عَلَى الْحُرِّ الْمُسْلِمِ الْبَالِغِ الْعَاقِلِ إِذَا مَلَكَ نِصَابًا كَامِلًا مِلْكًا تَامًّا زکاة واجب دي .په آزاد، مسلمان بالغ عاقل، باندي .کله چي دي مالك شی د نصاب په ملك تام سره وَحَالَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ

او: رشی په دې باندې کال.

**حل اللغة** > ① **حال، يحول حولاً (ن)**: تیریدل

**تشریح** > **شروط وجوب الزکاة** > شیخ ابوالحسن قدوری رحمه الله د زکاة د وجوب څوشرطونه ذکرکړي دی. ① ازادکیدل ② مسلمان کیدل ③ بالغ کیدل ④ عاقل کیدل ⑤ د مقدار نصاب مالك کیدل ⑥ ملك تام کیدل ⑦ د نصاب په مال باندې حولان حول (تیریدل د کال)

**فرضیة الزکاة بالأدلة الثلاثة** > علامه مرغینانی رحمه الله په هدایه کښې د زکاة په وجوب باندې درې دلیلونه ذکرکړی دی. ① کتاب الله یعنی ﴿ وَآتُوا الزَّكَاةَ ﴾ ② حدیث مشهور (وأدوا زكاة اموالكم) [1] او (بنى الإسلام على خمس....الخ) ③ اجماع امت یعنی د رسول الله ﷺ د زمانې نه ترنن ورځې پورې چاهم د زکاة د وجوب انکار نه دې کړې.

**المراد من الواجب في المتن** > په متن کښې د واجب نه مراد فرض دې.څکه چه د زکاة ثبوت په دلیل قطعی سره شوې دې.اوددې په ثبوت کښې د زره برابرشبه نشته.اودکوم څیز ثبوت چه په دلیل قطعی سره وی.او په هغې کښې څه شبه نه وی.نوهغه فرض وی.واجب نه وی.پاتې شو دا اعتراض چه په متن کښې د فرض لفظ نه واجب طرف ته عدول ولې شوې دې؟

**الجواب** > نوددې یو جواب دادې.چه د زکاة بعض مقادیر اوحالتونه په اخبار احدیثونوسره ثابت دی. دویم جواب دا دې.چه په فرض او واجب کښې هریو بل په ځائې مجازاً استعمالولې شی.نودلته کښې هم د فرض په ځائې د واجب لفظ مجازاً استعمال شوې دې.

**شرطیة الحریة** > د آزادیدو د شرط دا فائده ده.چه غلام، مدبر، أم ولد اومکاتب باندې زکاة فرض نه وی. **دلیله** > اودا شرط ئې لګولې دې.چه کامل ملکیت په پوره آزادئ سره متحقق کیږی.څکه چه غلام خو د یوڅیز د سره مالك کیدې نشی.

**دلیل شرطیة الاسلام** > مسلمانیدل دې دپاره شرط دی.چه زکاة یوعبادت دې.اودکافرنه هیڅ عبادت نه متحقق کیږی.وجه داده.چه د عبادت امرځکه شوې دې.چه عبادت کونکې ثواب حاصل کړی.اوکافر د ثواب حاصلولواهل نه دې.په دې وجه په کافر زکاة نه دې فرض شوې.

**اشتراط البلوغ والعقل** > دویم شرط بلوغ دې.اودریم شرط عقل دې.اود دویم شرط فائده داده.چه په نابالغه ماشوم باندې په زکاة فرض نه وی. د دریم شرط فائده داده.چه دیوانه او مجنون کس باندې په زکاة فرض نه وی. دعقل اوبلوغ شرط باندې دلیل په راروانو صفحو کښې ذکرکوو.

**عدم وجوب الزکاة على المکاتب** > او مکاتب ته په خپل مملوکه څیزباندې ملك يد (تصرف) خو حاصل وی.لیکن ملك رقبه (ست)، ذات د څیزنشی حاصلیدې.د مکاتب په مال باندې ملك رقبه مولی ته حاصل کیدې شی.بهرحال د مکاتب ملك ناقص وی.اود وجوب زکاة دپاره کامل ملك کیدل ضروری دی. اوکامل ملك حاصلیدې شی په آزادئ سره څکه دوجوب زکاة دپاره حریت شرط ګرځولې شوې دې.

**دلیل شرطیة النصاب** > اود نصاب د مقدارمالك کیدل څکه شرط دی.چه مال د مالك مستغنی کیدو سبب دې.نبی کریم ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه ته اوفرمائیل.(ثم اعلمهم ان الله تعالى فرض عليهم صدقة تؤخذ من اغنيائهم وترد

---

[1] ) من حديث ابي امامة رضی الله عنه اخرجه الترمذى في الجمعة باب ٨٠ رقم ٦١٦ واحمد في المسند (٢٥١/٥) والحاكم في المستدرك (٩/١)_

حل فقرائهم یعنی خلق خبرکړه.چه الله تعالی په دوی صدقه فرض کړېده.چه ددوی د مالدارانو نه به اخستلې شي.اوهم ددوی غریبانانوته ورکولې شي.

**النصاب في الزكاة** بهرحال په حدیث کښې مالداره ته غني ونیلې شوې دې.اوغنی په کثرت مال سره متحقق کیږي.اود کثرت هیڅ معلوم حد نشته.بلکه په دې کښې د خلقوحالات مختلف دي.نو د کثرت مال یعني د غني کیدو هیڅ مقررحد نه وو.په دې وجه صاحب شریعت ﷺ سبب د زکاة یعني غنی ئې د زکاة په مقدار سره مقدرکړې دې.

**دليل قدري النصاب** د ابوسعید خدري رضی الله عنه حدیث دې.(قال قال رسول الله ﷺ ليس فيما دون خمس أواق صدقة وليس فيما دون خمس ذود صدقة وليس فيما دون خمسة اوسق صدقة) حضرت ابوسعید خدري رضی الله عنه فرمائي.رسول الله ﷺ فرمائيلی دی.چه دپنځواوقیونه په کموکښې زکاة نشته.اود پنځو راس(نصاب) نه په کموکښې زکاة نشته.اود پنځواوسقونه په کموکښې زکاة نشته.نورسول خدا ﷺ د زکاة سبب په مقدار سره مقررکړې دې.په دې وجه فقهاء کرامو د زکاة واجبولو دپاره د نصاب د مقدارمالك کیدل شرط ګرځولې دې.

**شرطية حولان الحول** د وجوب زکاة یوشرط حولان حول دې.یعنی د نصاب په مال باندې کال تیریدل ضروري دي.

**دليله** دلیل دا دې.چه زکاة په مال نامی کښې واجب وي.په غیرنامی کښې نه واجبیږي.اود نمو او زیاتوالی معلومولو دپاره د دومره مودې ضرورت وي.چه په دې کښې نمو اود مال زیاتیدل متحقق شي.او شریعت دامودة یوکال مقررکړیده.حدیث دې(لازكاة في مال حتى يحول عليه الحول) ([1]) نو د نمو دپاره شریعت یوکال موده مقررکړیده.په دې وجه فقهاء فرمائي.چه د زکاة د وجوب دپاره په مال نصاب باندې دیوکال تیریدل ضروري دي.

**الحكمة في حولان الحول** علامه مرغیناني رحمه الله په هدایه کښې د حولان حول شرط کیدو شرعی حکمت ذکرکړې دې. فرمائي.چه د یوکال موده د نمو اود مال په زیاتیدو قدرت ورکونکې دې.یعنی په یوکال کښې دننه سرې د تجارت وغیره په ذریعه مال زیاتولې شي.ځکه چه کال په مختلف موسمونو(یخني، ګرمي، بهار اوخزان) باندې مشتمل وي.اوغالب هم دادی.چه په دې فصلونوکښې د نرخونوتفاوت (کمې زیاتې) کیږي.مثلاً یوڅیز په یو موسم کښې ارزان اوپه دویم موسم کښې ګران وي.نو دغه شان سرې په تجارت کښې نفع حاصلولې شي.اوخپل مال زیاتولې شي.دوجوب زکاة مدار اګرچه په نمو او زیاتوالی دې.او داپه یوکال کښې کیدې شي.په دې وجه د زکاة مدار دیوکال موده ګرځولې شویده.که په دې کښې حقیقتاً نمو اوموندې شي.اوکه اونه موندې شي.

**الاعتراض** اوس که څوك دا اعتراض اوکړي.که چاخپل مال په زمکه کښې ښخ کړو.په ده هم زکاة شته.حالانکه دلته کښې هیڅ نمو او زیاتوالې نشته.

**الجواب** نو ددې جواب دادې.چه په دې صورت کښې حقیقةً اګرچه نمو نشته.لیکن تقدیراً نمو شته دې.ځکه چه دا د مالك کم عقل توب دې.چه ده خپل مال د زمکې حواله کړو.حالانکه ده ته په خپل مال باندې دتجارت وغیره قدرت حاصل دې.نو دده قدرت به معتبروي.او بې وقوفي به معتبرنه وي.

---

[1]) من حديث علي رضی الله عنه اخرجه ابوداود في الزكاة باب ٥ رقم ١٥٧٣ واحمد في المسند (١٤٨/١ موقوفاً)

**وجوب الزكاة علی الفور عند الكرخي** ﷫ ﴿ پاتې شوه داخبره چه دكال تیریدونه پس چه كله زكاة واجب الادا شو.نو علی الفور واجب دې اوكه علی التراخی.یعنی فی الفور اداكول واجب دی.او كه تراخی هم جائزده؟ په دې باره كښې د امام كرخی ﷫ قول دادې.چه دكال پوره كیدونه پس فی الفور اداكول واجب دی.د قدرت باوجود د تاخیر په صورت كښې به گناهگاروی.

**دلیله**﴿دلیل دادې.چه په ﴿ وَآتُوا الزَّكَاةَ ﴾ اوحدیث:ادوازكاة اموالكم.كښې امرمطلق دې.او د مطلق امر مقتضی مامور به فی الفور راورل دی.په دې وجه دكال تیریدونه پس به فوراً زكاة اداكول واجب وی.كه د قدرت ممكنه باوجود په زكاة اداكولوكښې تاخیر اوكړی.نو گناهگاربه وی.

**تضعیف دلیل الفوریه**﴿دصاحب هدایه بیان شوی په دې دلیل كښې هیڅ ساه نشته.ځكه چه مطلق امرنه د علی الفور تقاضا كوی.اونه د علی التراخی.بلكه صرف ددې تقاضاكوی.چه ماموربه ادا كړې شی.كه علی الفور وی.اوكه علی التراخی وی.نو د مكلف دپاره امتثال امركښې تراخی او فوراً دواړه جائزوی.

**روایة الفورعن محمد** ﷫ ﴿حضرت امام محمد ﷫ هم د علی الفور زكاة واجبیدوقائل دې.د دوی نه مروی دی.چه چابغیر د عذره زكاة موخركړو.دده شهادت قبول نه دې.

**الفرق بین الزكاة والحج**﴿د تاخیر زكاة او د تاخیرحج په مینځ كښې د فرق كولو دپاره فرمائی. چه د وجوب نه پس به په تاخیرحج گناهگارنه وی.او په تاخیر زكاة سره به گناهگاروی.ځكه چه زكاة د فقراو حق دې.زر ترزره وركول پكاردی.ځكه به ددې د حق (یعنی د زكاة)په موخركولو كښې گناهگار وی.او حج خالصةً دالله تعالی حق دې.اودالله تعالی ذات بې نیازه دې.نو ددې په موخركولو كښې هیڅ باك نشته.نود مرگ نه مخكښې چه كله زړه اوغواړی. حج دې اوكړی.ځوكه بغیرد حج كولونه مړشو. حالاتكه په ده حج فرض وو.نوپه یقین سره به گناهگار وی.

**روایة عن ابي یوسف** ﷫ **في تاخیرالزكاة والحج**﴿د امام ابویوسف ﷫ نه نقل دی.چه په تاخیر زكاة به گناهگار نه وی.البته په تاخیرحج به گناهگار وی.ځكه چه زكاة غیرموقت دې.او حج د زكاة په شان موقت دې.نو زكاة ځوكله اداكیدې شی.ځوكه حج یې اونكړو.نواوس به ده له د یوكال انتظاركول ضروری وی. اود یوكال موده دومره اوږده ده.چه پته نه لگی.ځوك به مری.او ځوك به ژوندی وی.(كون جیتاهے تیری زلف كے سر هونے تك)ځكه به بغیر د عذره د حج د تاخیر په وجه گناهگاروی.

**وجوب الزكاة علي التراخي عند ابیبكر جصاص**﴿د امام ابوبكرجصاص رازی ﷫ قول دې.چه د كال تیریدونه پس د زكاة موخر كول جائزدی.ځكه چه ټول عمر ددې د اداكولو وخت دې.یعنی كه فی الفور یې زكاة ادانكړو.نو بیایې چه كله هم په ژوند كښې اداكوی.ادابه وی قضاء به نه وی.نومعلومه شوه.چه د زكاة اداكولووخت د مرگه پورې دې.اوچه د اداكولووخت د مرگه پورې دې.نو د تاخیرپه وجه به گناهگارنه وی.

**دلیله** ﴿هم دغه وجه ده.چه كله یې په واجب الادا زكاة وركولوكښې كوتاهی اوكړه.او ټال متول ئې كول.بیا ټول مال هلاك شو.نو دې د زكاة د مقدارضامن نشو.كه زكاة فی الفور واجب وو.نوپه دې صورت كښې به ضامن وی.نوثابته شوه.چه دكال تیریدونه پس زكاة فی الفور نه واجبیږی.بلكه ددې موخر كول هم جائزدی.

## په ماشوم او لیوني د زکاة د وجوب حکم

وَلَيْسَ عَلَى صَبِيٍّ وَمَجْنُونٍ وَلَا مُكَاتَبٍ زَكَاةٌ او (واجب) نه دي .په نابالغه او مجنون باندې زکاة [۱]

**تشريح** ◄ **عدم وجوب الزكاة على الصبي والمجنون** ◄ زمونږ په نیز د نابالغه او مجنون په مال کښې زکاة واجب نه دې.

**دليله العقلي** ◄ زمونږ د طرفه عقلي دليل دادې.چه زکاة يوعبادت دې.څکه حضور ﷺ فرمائيلي دی.بني الاسلام على خمس...الخ او د زکاة نه علاوه باقي څلورځيزونه يعنی شهادتين، مونځ، روژه، اوحج ، په اتفاق سره عبادتونه دی.نو دغه شان زکاة هم عبادت دې.اوکوم څيزچه عبادت وی.هغه بغير د اختياره نه اداکيږی.څکه چه عبادت نوم دې.د ابتلاء اود آزمائش، اود آزمائش معنی بغير د اختياره نه متحقق کيږی.نو د ابتلاء او آزمائش معنی ثابتولو دپاره اختيار ضروری دې.اودې دواړوته عقل او پوهه نشته.څکه د دوی دپاره اختيارهم نشته. اوعبادت بغيرد اختياره نه اداکيږی.څکه ددې دواړو د طرفه زکاة هم نه اداکيږی. اوکله چه ددوی دطرفه زکاة نه اداکيږی.نو معلومه شوه.چه په دوی زکاة هم واجب نه دې.

### په مکاتب باندې د زکاة عدم وجوب

**عدم الزكاة على المكاتب** ◄ په مکاتب زکاة فرض نه دې.اګرچه ده سره د نصاب په اندازه مال موجودوی.
**دليله** ◄ دليل دادې.چه مکاتب د خپل مال من کل وجه مالك نه وی.يعنی ده ته ملك تام نه حاصليږی. او ملك تام په دې وجه نه حاصليږی.چه رقيت کوم چه د مالك کيدومنافی دې.په مکاتب کښې موجود دې.د مکاتب په خپل مال باندې ملك تام نه حاصليږی.څکه مکاتب که خپل يوغلام آزادول اوغواړی.نو نشی ازادولې.څکه چه دغلام آزادولو والا دپاره ضروری ده.چه دې په ملك تام سره ددې غلام مالك وی.نوکله چه مکاتب ته په خپل مال کښې ملك تام حاصل نه وی.نوپه ده به زکاة هم فرض نه وی.څکه چه د زکاة د فرضيت دپاره ملك تام سره د نصاب مالك کيدل ضروری دی.(او ملك تام معدوم دې ).

**توضيح الملك الناقص والتام** ◄ پاتې شوه داخبره چه داځنګه معلوم شو.چه مکاتب ته ملك تام حاصل نه دې.نو ددې جواب دادې.چه د ملك دوه صورته دی. ① ملك رقبه يعنی دعين شي اود ذات دشي مالك کيدل ② ملك يد ، يعنی د تصرف مالك کيدل.نومکاتب ته خويه خپل مال کښې ملك يد حاصل دې يعنی د تصرفاتوده ته اختياردې.خوملك رقبه حاصل نه دې.بکله ملك رقبه ده آقا ته حاصل دې.دا مکاتب که دبدل کتابت نه عاجزشو.نو دده ټول مال به دده د آقاوی.حاصل داچه مکاتب ته د ملك يوصورت يعنی ملك يد حاصل دې.او دويم صورت يعنی ملك رقبه حاصل نه دې.اوداخبره ښکاره ده.چه يوصورت ملك ناقص دې.ملك تام نه دې.ملك تام خو د دواړو مجموعه ده.

---

[۱] **مذهب الشافعي**:- امام شافعی، امام مالك،او امام احمد رحمهم الله فرمائی.چه ددې دواړوپه مال کښې زکاة واجب دې.د دوی ولی به د دوی په مال کښې د زکاة اداکولومجاز وی.نو ددې دواړو په مال کښې به د دوی د ښځې نفقه واجب وی.اوکه د دوی سره زمکه وی.نوپه دې کښې به خراج او عشر واجب وی.

## په مقروض د زكاة دوجوب تفصيل

وَمَنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ يُحِيطُ بِمَالِهِ اوپه كوم كس چې (دومره) قرض وي.چې راګيرونکے وي.تول مال دده فَلَازَكَاةَ عَلَيْهِ ([1]) نو نشته دي په ده باندې زكاة

تشريح> حكم إحاطة الدين النصاب> مسئله داده.چه كه په يوكس دومره قرضه وي.چه دده تول مال راګيروي.مثلاً د دوه زره روپوماليت مالك دې.اودومره په ده قرض هم دې.اوددې قرض څوك مطالبه كونكې وي.كه مطالبه دالله تعالى دپاره كوی.لكه زكاة،يا د بندګانو دپاره كوی.لكه قرض،ثمن مبيع،دتلف شوی څيزونوضمان،د زخمونو تاوان،د ښځې مهر،دا قرض كه د نغدو دقبيلې څخه وی.اوكه ددې نه علاوه د مكيل يا وزنى څيزونو د قبيلې څخه وی. قرضه كه حالی وی اوكه موجل وی.په مديون به زكاة واجب نه وی.

دليله> دليل دادې.چه د مديون مال دده په اصلی حاجت كښې مشغول دې.اودا د قرض اداكول دی.څكه چه قرض په دنيا او آخرت دواړوكښې هلاكونكې دې.په دنياكښې خوځكه مهلك دې.چه قرض خواه به د قرض داری ژوند تنګ كړی.اودې قيدكولې هم شی.اوقرضه دآخرت تباهی څكه ده.چه قرضه،د قرض داری او د جنت په مينځ كښې حائل كيږی.بهرحال قرضه ډيرلوءاصلی حاجت دې.او د مقروض تول مال په دې حاجت كښې مشغول دې.نو دا مال دقرضداری سره معدوم شمارلې شی.لكه چه ده سره دا مال موجودنه دې.اوكله چه دده سره مال موجودنه دې.نوپه ده زكاة دكوم څائې نه واجب شو.

مثاله> ددې مثال داسې دې.لكه چه د يوكس سره لږشان اوبه موجودوی.او دلږې لږې پورې اوبه نشته دې.په داسې حالت كښې ده ته د اودس كولوضرورت راپيښ شو.نوكه داكس دا اوبه په اودس كښې استعمال كړی.نوتګے به پاتې شی. اوكه دسكلو دپاره ئې كيږدی. نواودس به ئې پاتې شی.نو په دې صورت كښې داحكم دې.چه تيمم اوكړی او مونځ اوكړی. څكه چه كله دا اوبه د تندې ماتولو دپاره متحقق شوې.نو د اودس په حق كښې لكه چه معدوم شوې.اوپه كوم صورت كښې چه اوبه معدوم شی.په هغه صورت كښې د تيمم حكم دے.د الله تعالى ارشاددې. ﴿فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا﴾(الايه) اولكه د روزانه ضروری كپړې ،او د محنت مزدورئ كپړې ،چه ددې موجودېدل د زكاة په حق كښې معدوم دی.

## د قرض نه په زياتى مال كښې وجوب زكاة

وَإِنْ كَانَ مَالُهُ أَكْثَرَ مِنَ الدَّيْنِ اوكه دده مال زيات وی دده د قرض نه زَكَّى الْفَاضِلَ إِذَا بَلَغَ نِصَابًا نو ادادی كړی زكاة د زياتی.(په شرط ددی ).چې نصاب ته اورشی

تشريح> الزكاة في الفاضل بعد اداء الدين> مسئله داده.كه د مديون سره مال دده د قرض نه زيات وی.نوپه دې زياتی مال كښې به زكاة واجب وی.په دې شرط،چه دا زياتی مال د نصاب په مقدار وی.او دده د اصلی حاجت نه فارغ هم وی.

الدين المانع ماله مطالب من جهة العباد> علامه مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی.چه د دين نه مراد داسې قرض دې.چه ددې څوك مطالبه كونكې دبندګانو دطرفه وی.اګرچه دالله تعالى دپاره مطالبه كوی.نو داسې

---

[1]) مذهب الشافعي:- امام شافعي رحمه الله فرمائی.چه په ده به هم زكاة واجب وی.

قرضه د زكاة وجوب منع كوي.اوكه د بندگانو د طرفه مطالبه نه وي.نو داسې قرض د زكاة دپاره مانع نه دې. لکه د نذر دين،او د كفاره دين، صورت ددې دادې.چه د يوكس سره دوه سوه درهمه دي.او ده څه قدرې درهم د خيرات كولو نذركړل، يايه ده د قسم د كفاره نذرلازم دې.او ده نذر ياكفاره ادانكړه.تردې چه كال تيرشو.نويه ده به د دوه سوه درهمو زكاة واجب وي.ځكه چه نذر ياكفاره دې پخپله اداكوي.امام المسلمين ياقاضي ددې مطالبه نه كوي.

**دين الزكاة مانعها**>علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي دي.چه د زكاة نصاب د باقي پاتې كيدو په صورت كښې دين زكاة،د زكاة وجوب منع كوي. ([1])

**دليله**> ځكه چه دين زكاة اداكولوسره د زكاة نصاب كميږي.صورت دا دې. چه يوكس د دوه سوه درهمومالك شو.اويه دوى يوكال تيرشو.ليكن ده زكاة ادانكړو.تردې چه دويم كال هم تيرشو.نو د دويم كال زكاة به واجب نه وي.ځكه چه د اولنى كال د زكاة وجوب په دويم كال كښې د زكاة د وجوب نه مانع وي.ځكه چه د اولنى كال زكاة يعنى چه پنځه درهمه اوباسى.نونصاب كميږي.او دا ښكاره ده.چه د نصاب نه په كم كښې زكاة واجب نه وي.

**إتلاف المال مانعها**>اوهم داحكم د پوره مال تلف كولونه پس دې.يعنى يوكس د دوه سوه درهمو مالك شو.اويه دې كال تيرشو.بيا د زكاة اداكولونه مخكښې ده ټول نصاب سره د زكاة هلاك كړو.بيا ده ته دوه سوه درهمه ملاؤ شو.اويه دې كال تيرشو.نويه ده ددې ملاؤشوى دوه سوه درهمو زكاة واجب نه دې. ځكه چه د اولنى نصاب د زكاة وجوب دده په ذمه دين دې.او دين زكاة هم د زكاة واجبيدونه مانع وي.دا تفصيل دطرفينو رحمهما الله په نيزدې.

**خلاف زفر رحمه الله في المسئلتين المذكورتين**>امام زفر رحمه الله په دواړوصورتونوكښې مخالف دې.يعنى په هغه نصاب كښې هم په كوم كښې چه زكاة واجب شو.خو اداني نكړو.تردې چه دويم كال تيرشو.اويه هغه نصاب كښې هم چه په هغې كښې زكاة واجب شو.خوټول نصاب ئې هلاك كړو.بيا د نصاب مالك شو. او په دې كال تيرشو.حاصل داچه د امام زفر رحمه الله په نيزيه دواړه صورتونو كښې دين زكاة، د زكاة وجوب نه منع كوي.

**دليل زفر رحمه الله** >د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه د زكاة دين داسې قرضه ده.چه ددې مطالبه كونكې د بندگانو د طرفه هيڅ څوك نشته.نو دا هم د دين نذر،اودكفاره د دين په شان شو.او د كوم دين مطالبه كونكې چه د بندگانو دطرفه نه وي.هغه دين د وجوب زكاة مانع نشى كيدې.نو دين زكاة او دين استهلاك دواړه به د وجوب زكاة مانع نه وي.

**خلاف ابيوسف رحمه الله في مسئلة الإستهلاك**>امام ابويوسف رحمه الله په دويم صورت كښې زمونږ مخالف دې.يعنى د اولنى كال د زكاة دين په دويم كال كښې د زكاة د وجوب نه مانع دې.خوكه دكال تيريدونه پس ټول نصاب هلاك كړى.نو ددې د زكاة مطالبه كونكې د بندگانو دطرفه هيڅ څوك نشته.ددې په خلاف كه نصاب موجوددې.اود حولان حول نه پس ئې هم زكاة ادانكړو. نو عاشر او زكاة وصول كونكې ددې د زكاة مطالبه كولې شى.نويه دې صورت كښې د بندگانو دطرفه مطالبه كونكې موجوددې.ځكه دا دين زكاة د راروان كال د زكاة واجبيدونه مانع وي.او د دين مستهلك هيڅ څوك مطالبه كونكې دبندگانو دطرفه نشته. ځكه به دا مانع نه وي.

---

[1] ) القول الراجح هو هذا القول الأول يعنى دين الزكاة مانع حال بقاء النصاب إلخ كذا في الخانية (١\١٢٣) نقلاً عن القول الراجح (١\١٦٢)_

**دليل الطرفين** ﴿دطرفينو ﷺ دليل دادي.چه ددين زكاة مطالبه كونكي بنده موجود دي. او هغه بنده د خريدونكو څناوروپه زكاة كښې امام المسلمين دي.او دتجارت په نورو مالونو كښې دده نائب دي.

**الاعتراض**﴿خوكه دا اوونيلې شي.چه د امام خوهيڅ څوك نائب نه راځي.نه د څريدونكو څاروو زكاة غوښتلو دپاره،او نه دتجارت د مالونو زكاة غوښتو دپاره.

**الجواب**﴿امام المسلمين په خپله مالكانوته اجازت وركړو.نو د مال مالك په خپله د امام نائب دي.په دې طريقه چه د مال مالك خوپه زكاة اوبنكلوكښې صاحب زكاة دي.اودا زكاة فقيرانوته په وركولو كښې د امام نائب دي.

**الدليلان على كون المالك نائب الخليفة**﴿ اوددې اصل دالله تعالى قول دا ايت دې( خُذْمِنْ اَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً ) دې آيت نه د امام دپاره د هرمال نه د زكاة اخستوحق ثابتيږي.

هم داوجه ده.چه رسول اكرمﷺ او ددوى نه پس صديق اكبر؄ اوفاروق اعظم؄ په څاروو، نغدو.او دتجارت په مالونوكښې دتولو زكاة اخستلو.اوپه حق مصارفوكښې به ئې خرچ كولو.خوكله چه د حضرت عثمان؄ زمانه خلافت شروع شو.نو دوى؄ اوكتل.چه په مسلمانانوكښې زكاة مشهور شو. اودا خطره هم پيدا شوه.چه بادشاهان به د خلقوپه مالونو زور زياتي كوى.خكه ئې مالكان د مال نائب اوګرځول.چه دوى. د خپلومالونو زكاة په خپله اداكړى.نوثابت شو.چه د مال مالك زكاة فقيرانوته په وركولوكښې د امام المسلمين نائب دي.

## په حوائج اصليه كښې د زكاة عدم وجوب

> وَلَيْسَ فِي دُورِ السُّكْنَىٰ وَثِيَابِ الْبَدَنِ وَأَثَاثِ مَنْزِلٍ وَدَوَابِّ الرُّكُوبِ وَعَبِيدِ الْخِدْمَةِ وَسِلَاحِ الْاِسْتِعْمَالِ زَكَاةٌ
> او واجب نه دى .د اوسيدوپه كورونوكښې ،د بدن په كپړوكښې ،د كورنوپه سامانونوكښې ، د سوارلئ په څارووكښې ،د خدمت په غلامانوكښې ،د استعمال په اسلحوكښې ،زكاة

**حل اللغة** ﴿①**دور جمع دار**: كور ②**اثاث جمع اثاثة**: سامان ③**منازل، منزل**: كور ④ **دواب جمع دابة**: دَ سورلئ څناور ⑤ **ركوب**: سورلى ⑥**عبيد جمع عبد**: غلام ⑦**سلاح**: وسله

**تشريح**﴿ **عدم وجوب الزكاة في المشغول بالحاجة الأصلية وغيرالنامية**﴿مسئله داده.چه په متن كښې په ذكرشوى څيزونوكښې زكاة واجب نه دي.خكه چه داڅيزونه په اصلى حاجت كښې مشغول دى. اصلى حاجت دې ته وائى.چه په دې د انسان نه هلاكت اوتكليف لرې كيږى.كه حقيقتاً وى.اوكه تقديراً.اودا څيزونه نامى هم نه دى.حاصل داچه په حاجت اصلى سره مشغوليدل، او نامى نه كيدل، په دې كښې هريو د وجوب زكاة نه مانع دي.اوكله چه دلته كښې دواړه خبرې دى.نوپه درجه اولىٰ به زكاة واجب نه وى.

**عدم الحاجة الاصلية والنماء في الأشياء المذكورة**﴿ ددې څيزونو اصلى حاجت سره مشغوليدل. خو ښكاره دى.اونامى نه كيدل،خكه دى.چه نمو ياخوخلقى (پيدائشى)وى.لكه په سرو ، او سپينو زروكښې ،ياپه تجارت سره وى.لكه دتجارت په مال كښې.او دلته كښې دواړه خبرې نشته.خكه مونږ اوونيل.چه ذكرشوى څيزونه نامى نه دى.

**عدم الزكاة في كتب العلم**﴿صاحب د هدايه ﷫ په هدايه كښې فرمائى دغه شان كه د عالمانو دپاره د علم كتابونه وى.نوپه دې كښې زكاة واجب نه دې.په عبارت كښې دعلم والو قيد اتفاقى دي.خكه چه كه د جاهل سره كتابونه وى.اود تجارت دپاره نه وى.نو په دې كښې هم زكاة واجب نه دې.

**الروايتان في وجوب الزكاة في آلات الحرفة**> هم داحكم د كاروبارى خلقو د الاتودي.لكه د حلوانى ديگونه،و بتى: والا،اود گهرى سازآلات وغيره، په دې كښې زكاة نشته. بعضو حضراتو ونيلى دى.چه د كاروبار په آلاتو كښې هغه څيزونه،چه د هغې اثريه جورشوې څيزونو باقى نه پاتې كيږى.لكه صابن،اشنان دهوبى واخستل، اونانبائى د روټو دپاره مالګه او لرګى واخستل،نوپه دې څيزونوكښې زكاة واجب نه دې. اوكه په جوړشوو څيزونو كښې اثرباقى پاتې كيږى.لكه د رنګساز سم(يوقسم ګل دې چه رس ترې ويستلې شى.او سرې جامې پرې رنګ كولې شى)زعفران،او رنګ واخستلو،چه په أجرت خلقوله كپړې رنګ كړى.اوپه دې كال تيرشو.نوپه دې څيزونوكښې به زكاة واجب وى.په دې شرط چه داڅيزونه د نصاب مقدارته رسيدلې وى.

## په زكاة كښې د نيت شرطيت

| وَلَا يَجُوزُ أَدَاءُ الزَّكَاةِ إِلَّا بِنِيَّةٍ مُقَارِنَةٍ لِلْأَدَاءِ اوجائزنه دى زكاة اداكول.خوپه دې شرط چه نيت متصل وى ادا سره أَوْمُقَارِنَةٍ لِعَزْلِ مِقْدَارِ الْوَاجِبِ يا متصل وى.د مقدار واجب جدا كولوسره |
|---|

**حل اللغة**> ①**مقارنة، قارن، يقارن، مقارنة**: ملاوول ②**العزل**: جدا كول، لرې كول

**تشريح**> **شرطية النية للزكاة**>مسئله داده.چه د زكاة اداكولو دپاره نيت شرط دې.ځكه چه د زكاة فعل عبادت دې.اود عبادت دپاره نيت شرط دې.په دې وجه د زكاة اداكولو دپاره نيت كول شرط شو.

**دليله**>اود عبادت دپاره نيت ځكه شرط دې.چه هيڅ عبادت بغير د اخلاص نه نه اداكيږى.ځكه چه د الله تعالى ارشاددې.﴿وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ يعنى دوى ته داحكم اوشو.چه بندګى اوكړى.اوخالص دالله دپاره كړى بندګى،او اخلاص بغير د نيته نه موجوديږى.نو ثابت شو.چه د عبادت دپاره نيت كول ضرورى دى.او زكاة اداكول هم عبادت دې.ځكه د زكاة اداكولو دپاره هم نيت كول ضرورى دى.

**وقت نية الزكاة**>پاتې شوه داخبره،چه د زكاة اداكولو دپاره دنيت وخت څه دې.نوامام قدورى رحمه الله فرمائى.چه نيت خويا د زكاة اداكولو په وخت اوشى.يا واجب مقدار د مال نه د جدا كيدو په وخت اوشى. يعنى كله چه دپوره مال حساب اوكړى.او د زكاة كوم مقدارجوړيږى.د پوره مال نه ددې د جداكولو اراده اوكړى.نونيت اوشو.

**دليله**>دليل دادې.چه په نيت كښې اصل عبادت سره متصل كيدل دى.لكه په مانځه كښې د مونځ نيت، مونځ سره متصل كولې شى.

**الإعتراض**>ددې دليل تقاضاخو داده.چه د زكاة اداكولوپه وخت نيت،خومعتبردې.ځكه چه د زكاة اداكول عبادت دې.اود نيت عبادت سره متصل كيدل ضرورى دى.ليكن د زكاة مقدار جداكولو په وخت به نيت معتبرنه وى.ځكه چه د زكاة مقدار د مال نه جداكول.اوپه خپل كور كښې ايخودل، دا هيڅ عبادت نه دې.

**الجواب**>ددې جواب دادې.چه واجب مقدارد مال نه جداكولوپه وخت دنيت اعتبارضرورةً د حرج لرې كولودپاره شوې دې.په دې طريقه چه دېركرته انسان په متفرقو وختونوكښې متفرقو خلقو له زكاة وركوى.نوكه هر وارے د وركولوپه وخت نيت كول ضرورى اوګرځولې شى.نو دا كس به په حرج اوضرر كښې مبتلا شى.نو د آسانتيا په لحاظ د مال نه د جداكولو په وخت نيت باندې اكتفاء اوشوه.

**نظیره**>لکه په روژه کښې په تقدیم د نیت باندې اکتفاء شویده.خکه چه اصل خو دادی.چه د روژې نیت د صبا صادق اول جزء سره متصل وی.خوانسان ددې نه عاجزهم دې.او ددې په پوره رعایت ساتلو کښې به ده ته حرج هم لاحق شی.په دې وجه اووئیلې شو.چه که نیت په دې مقدم شو.نوهم څه باك نشته.ددې اعتبار به کولې شی.

## د ټول مال دصدقې په صورت کښې د زکاة حکم

> وَمَنْ تَصَدَّقَ بِجَمِيعِ مَالِهِ وَلَا يَنْوِي الزَّكَاةَ او چاچې صدقه کړوخپل ټول مال.حالاتکه نیت ئې نه دې کړې د زکاة سَقَطَ فَرْضُهَا عَنْهُ نوساقط شوفرض (د زکاة) د ده نه

**تشریح**> **المذهبان فیسقوط الزکاة بتصدق الجمیع** ① >مسئله داده.که چا بغیر د زکاة د نیت نه پوره مال صدقه کړو.نواستحساناً دده نه فرض زکاة ساقط شو. ②اوقیاس دادې.چه فرض زکاة دده نه ساقط نشی.

**وجه القیاس**>د قیاس وجه داده.چه نفل اوفرض دواړه مشروع دی.نو د فرق کولودپاره یومتعین کول ضروری دی.لکه چه په مانځه کښې دی.چه په مطلق نیت سره فرض مونځ نه اداکیږی.بلکه دا متعین کول ضروری وی.دغه شان فرض زکاة بغیر د زکاة دنیت نه نه اداکیږی.اګرچه مطلق نیت موجود شو.

**وجه الاستحسان**>وجه د استحسان داده.چه واجب خو دپوره مال یوجزء یعنی څلویښتمه حصه ده.او دپوره مال په ضمن کښې دا هم متعین دې.او متعین،د تعین محتاج نه وی.خکه په خاص طور ددې د یوجزء یعنی د زکاة د مقدارمتعین کولوهیڅ ضرورت نشته.

**الإعتراض**>دا اعتراض په خپل ځائې هم دغه شان باقی دې.چه د زکاة اداکولو دپاره نیت شرط دې.او نیت موجود نشو.

**الجواب**>نو ددې جواب دادې.چه د اصل عبادت نیت شرط دې.چه د عبادت او عادت په مینځ کښې فرق اوشی.اود اصل عبادت نیت موجود شوې دې.خکه چه زمونږکلام په دې صورت کښې دې.چه پوره مال ئې په کوم یوفقیرصدقه کړې وی.اوپه دې ئې د الله رضا حاصلولو اراده کړې وی.اودا خبره ښکاره ده.چه په فقیرباندې د الله رضاحاصلولودپاره صدقه کول عبادت دې.نو د اصل عبادت نیت موجود شو.

**عدم الضرورة الی تعیین الفرض**>او پاتې شو دفرض زکاة اداکولونیت کول.نو ددې هیڅ ضرورت نشته.خکه چه د فرض زکاة نیت تعین حاصلولو دپاره شرط دې.او د تعین ضرورت به د عدم تعین په وخت راپیښیږی.حالاتکه د زکاة په نصاب کښې واجب زکاة متعین دې.په دې وجه ددې د متعین کولوهیڅ ضرورت نشته.

**نظیره**>لکه چه چاپه رمضان المبارك کښې مطلقاً د روژې نیت اوکړو.نو د رمضان فرض روژه ادا کیږی.حالاتکه ده په خاص طور د رمضان د روژو نیت نه دې کړې.اوپه دې میاشت کښې فرض روژه متعین ده.خکه ددې د متعین کولوضرورت نشته دې.

**مذهب محمد رحمه الله فی اداء الزکاة عند صدقة بعض المال** >اوکه ده د نصاب بعضې حصه صدقه کړه. نو د امام محمد رحمه الله په نیزموږدی یعنی د نصاب هغه مقدار کوم چه فقیرانوته ورکړې شوې دې.د هغې زکاة ساقط شو.اوکوم مال چه باقی پاتې شو.نو د هغې زکاة واجب دې.

**دلیله** >د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه د زکاة څومره مقدار واجب وو.هغه په ټول نصاب کښې خور وو.نوکه دې کس پوره مال صدقه کړې وو.نو پوره زکاة به ساقط شوې وو.خوکله چه ده بعضې مال صدقه کړو.نو ددې بعض زکاة به ساقط شی.حاصل دا چه امام محمد رحمه الله بعض په کل باندې قیاس

کړې دي.مثلاً په دوه سوه درهمو کښې پنځه درهمه وو.او دکال تیریدونه پس ده څلویښت درهمه صدقه کړل.نوپه دې کښې یو درهم زکاة اووتو.اوس په ده باندې د یوسل شپیتو درهمو زکاة څلور درهمه واجب دي.

**مسلک ابي یوسف** رحمه الله ﴿ د امام ابویوسف رحمه الله په نیز به د مؤدي زکاة هم ساقط نه وي.اوکوم مال چه باقي پاتې شو.په دې کښې به هم د پوره نصاب زکاة واجب وي.یعنی د هغې هم کوم نې چه فقیرانو ته ورکړې دي.او د هغې هم کوم چه باقي دې.

**دلیله** رحمه الله ﴿د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه د زکاة دپاره د نصاب هغه بعض متعین نه دي.کوم چه ورکړې شو.ځکه چه څومره قدرې مال باقي دې.هغه هم د زکاة واجبه محل دې.یعنی د زکاة تول مقدار هم ددې نه اداکیدې شي.په خلاف د اولې مسئلې، یعنی کله نې چه تول مال صدقه کړو.نوپوره زکاة ساقط شو.ځکه چه د زکاة واجب مقدارخو لا محاله په دې کښې داخل دې.

**د اوښانو د زکاة بیان**

# بَابُ زَكَاةِ الْإِبِلِ

**ترجمه**﴿دا باب د اوښانو د زکاة په بیان کښې دې .

**تشریح**﴿ **الوجهان لتقدیم ذکرالإبل فیصدقة السوائم①**﴿ علامه قدوری رحمه الله د زکاة د مالونو د تفصیل آغاز د اوښانو د زکاة نه شروع کړې دې.ځکه چه د عربوپه نیز د ټولونه زیات قیمتي مال اوښان شمارلې کیدو.په دې وجه د اوښانو د زکاة ذکرمخ کښې اوشو.. ② دویمه وجه داده. چه رسول اکرم ﷺ حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه ته د زکاة په سلسله کښې کوم خط لیکلې دې.په هغې کښې د ټولونه مخکښې د اوښانو د زکاة بیان دې.نوپه دې ترتیب سره د علامه قدوری رحمه الله په نظرکښې درسول الله ﷺ د خط پیروی کول دي

**د اوښانو د زکاة حکم**

لَيْسَ فِي أَقَلَّ مِنْ خَمْسٍ ذَوْدٍ مِنَ الْإِبِلِ صَدَقَةٌ علامه قدوری رحمه الله فرمائي.چې نشته په کمو د پنځو اوښانو کښې زکاة فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا سَائِمَةً نوکله چې اورسیږي.د پنځو مقدارته.چې دا سائمه وي، وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ او تیرشو په دې کال فَفِيهَا شَاةٌ إِلَى تِسْعٍ نوپه دې کښې یوه چیلۍ ده.ترنهو پورې فَإِذَا كَانَتْ عَشْرًا بیا چې کله لس شي فَفِيهَا شَاتَانِ إِلَى أَرْبَعَ عَشْرَةَ نوپه دې کښې دوه چیلۍ دي.ترخوارلسو پورې فَإِذَا كَانَتْ خَمْسَ عَشْرَةَ بیاچې کله پنځلس شي فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ إِلَى تِسْعَ عَشْرَةَ نوپه دې کښې درې چیلۍ دي.تر نورلسو پورې فَإِذَا كَانَتْ عِشْرِينَ بیاچې کله شل شي فَفِيهَا أَرْبَعُ شِيَاهٍ إِلَى أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ نوپه دې کښې څلور چیلۍ دي. تر څلیرویشتو پورې فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا وَعِشْرِينَ بیاچې کله اورشي پنځه ویشتوته فَفِيهَا بِنْتُ مَخَاضٍ نو وي به په دې کښې یو بنت مخاض دې إِلَى خَمْسٍ وَثَلَاثِينَ ترپنځه دیرشو پورې فَإِذَا بلغت سِتًّا وَثَلَاثِينَ بیاچې کله شپږدیرش شي فَفِيهَا بِنْتُ لَبُونٍ إِلَى خَمْسٍ وَأَرْبَعِينَ نو وي به په دې کښې بنت لبون. تر پنځه څلویښتو پورې فَإِذَا بلغت سِتًّا وَأَرْبَعِينَ بیاچې کله شپږ څلویښت شي فَفِيهَا حِقَّةٌ نو وي به په دې کښې یوه حقه إِلَى سِتِّينَ تر

شپيتو پوری ،فَإِذَا بلغت إِحْدَى وَسِتِّينَ بياچې كله يوشپيته شی فَفِيهَا جَذَعَةٌ )نو وی به په دی كښې جذعه إِلَى خَمْسٍ وَسَبْعِينَ ترد پنځه اويا پوری فَإِذَا بلغت سِتًّا وَسَبْعِينَ بياچې كله شپږاويا شی فَفِيهَا بِنْتَا لَبُونٍ إِلَى تِسْعِينَ نوپه دی كښې دوه بنت لبون دی.تر نوی پوری ،وإِذَا كَانَتْ إِحْدَى وَتِسْعِينَ بياچې كله شی يو نوی فَفِيهَا حِقَّتَانِ إِلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ .نوپه دی كښې دوه حقه دی.تر شپږشلو پوری

**حل اللغة** ﴿①**صدقه**: دلته مراد زكوة دې ②**شاة**: چيلئ ③ **طعنت**: دَ عمر يوې حصې نه بلې ته تلل يعنی دَ يوكال نه دَ دوئم كال كيدل④ **بنت مخاض**: هغه ښځه بچې چه يوكال پوره كولوسره دَدوئم كال شی ⑤ **بنت لبون** هغه ښځه بچې دَ كوم چه دوه كاله پوره شوې وی او په دريم كال كښې وی ⑥**حقه**: هغه ښځه بچې چه دَ هغه دَ عمرڅلورم كاله شروع شوې وی ⑦**جذعه**: هغه ښځه بچې دَ كوم چه پنځم كال شروع شوې وی

**نصاب الإبل**﴿ علامه قدوری رحمه الله د اوښ نصاب او ددې زكاة واجبه ذكركولوكښې فرمائی.چه

① د اوښ نصاب پنځه اوښان دی.ددې نه په كموكښې زكاة واجب نه دې.او د زكاة د وجوب شرط دادې.چه دا سائمه وی.اوپه دې كال تيرشوې وی.نوكه په دې شرطونو سره پنځه اوښان وی.نوپه دې كښې به يوه چيلئ واجب وی.د پنځونه پس تر نهو پورې عفوه دی.(يعنی په شپږم، اووم مقدار كښې څيز واجب نه دې) هم دغه يوه چيلئ به وی.كومه چيلئ چه د زكاة په حساب كښې اخستې شی.ماده به وی.او د پوره يوكال به وی.چه دويم كال ئې شروع وی.②اوكه په ذكرشوی شرطونوسره دچا په ملك كښې لس اوښان وی.نوپه دې كښې دوه چيلئ دی.او د لسو اوښانونه پس تر څوارلسو پورې عفوه ده.په څوارلسوكښې هم دغه دوه چيلئ واجب دی. ③اوكه اوښان پنځلس وی.نوپه دې كښې به درې چيلئ واجب وی.اود پنځلسونه نورلسو پورې عفوه دی. ④كله چه شل اوښان شی.نوپه دې كښې څلورچيلئ دی.اود شلونه پس څليريشتوپورې عفوه دی. ⑤ بياچه كله اوښان پنځويشت شی.نوپه دې كښې يو بنت مخاض واجب دې.د پنځه ويشتو نه پس ترد پنځه ديرشو پورې عفوه دی.

⑥اوكله چه شپږديرش شی.نوپه دې كښې يو بنت لبون واجب دې.اود شپږديرشو نه پس د پنځه څلويښتو پورې عفوه دی.⑦ خوچه كله شپږڅلويښت پوره شی.نوپه دې كښې يوحقه واجب ده.اود شپږڅلويښتونه تر شپيتو پورې عفوه دی. ⑧اوكله چه يوشپيته شی.نوپه دې كښې يوجذعه واجب ده.او يوشپيتونه پس د پنځه اويا پورې عفوه دی.⑨ اوكله چه شپږاويا شی.نوپه دې كښې دوه بنت لبون دی.د شپږاويا نه تر نوی پورې عفوه دی. ⑩اوكله چه يونوی شی.نوپه دې كښې دوه حقه دی.د يونوی نه پس د شپږشلو پورې عفوه دی.

**دليله**﴿ د رسول اكرم ﷺ نه د زكاة فرمان هم په دې تفصيل سره مشهور دې.من جمله د هغې نه يو فرمان هغه دې.كوم چه حضرت صديق رضی الله عنه د حضرت انس رضی الله عنه په نوم ليكلې دې.چه امام بخاری رحمه الله روايت كړې دې.د تبرك په طور د فرمان رسول ﷺ الفاظ ذكر كولې شی.اوګورئ.

(ان أنسا حدثه أن أبابكر الصديق رضی الله عنه كتب له هذا الكتاب لما وجهه إلى البحرين، بسم الله الرحمن الرحيم هذه فريضة الصدقة التي فرض رسول الله ﷺ على المسلمين والتي أمر الله بها رسوله فمن سئلها من المسلمين فليعطها على وجهها

ومن سئل فوقه فلا يعطه في أربع وعشرين من الإبل فما دونها من الغنم في خمس ذو شاة فإذا بلغت خمسا وعشرين إلى خمس وثلاثين ففيها بنت مخاض انثى فإذا بلغت ستا وثلاثين إلى خمس وأربعين ففيها بنت لبون انثى فإذا بلغت ستا وأربعين إلى ستين ففيها حقه طروقة الجمل، فإذا بلغت إحدى وستين إلى خمس وسبعين ففيها جذعة فإذا بلغت ستا وسبعين إلى تسعين ففيها بنتا لبون فإذا بلغت إحدى وتسعين إلى عشرين و مائة ففيها حقتان طروقة الجمل فإذا زادت على عشرين ومائة ففي كل أربعين ابنة لبون وفي كل خمسين حقة ثم ساق بقية الحديث في الغنم. ([1])

**تعريف السوائم**>سوائم.د سائمه جمع ده.د سامة الماشيه نه ماخوذ دې.معنى ئې ده څرول، سائمه هغه څاروى دې.چه په مباح څنګلونوکښې څرولې شي.نو د داسې څاروو په نر،او ماده اوبه ګډو وزو تولو کښې زكاة واجب دې.

**ألمراد من السوائم**>په دې شرط چه ددې نه مقصود پې؛ او د نسل زياتوالې وى.اوكه ددې نه سوارلي يا غوښه مقصود وى.نويه دې كښې به زكاة واجب نه وى.اوكه ددې څاروونه تجارت مقصودوى.نويه دې كښې به زكاة السوائم واجب نه وى.بلكه زكاة التجارة به واجب وى.يعنى په دې صورت كښې د سوائم نصاب نه زكاة واجب نه وى.بلكه د مال تجارت د نصاب اوحساب نه به زكاة واجب وى.

**نصاب السوائم امر توقيفية**>فوائد :د څناورو نصاب زكاة او مقدار زكاة امر توقيفى دې.په دې كښې د عقل او قياس هيڅ د خل نشته.

**ألإعتراض**>اوكه دا سوال اوكړې شي.چه په هرقسمه څاروو كښې هم د هغې نه زكاة اخستې شي.نو د اوښانويه زكاة كښې چيلئ ولې واجبيږى.

**الجوابان**① >ددې يوجواب خو دادې.چه داخبره خلاف قياس په نص سره ثابت ده.په دې وجه دې باره كښې د كلام كولو هيڅ ګنجائش نشته. ②دويم جواب دادې.چه د اوښ نصاب پنځه اوښان دى.اوس كه يو اوښ د زكاة دپاره مقرړشى.نودا د نصاب خُمس يعنى پنځمه حصه ده.حالانكه زكاة د نصاب د مال څلوېښتمه حصه وى.اوكه يواوښ حصې كړې شي. اوددې اتمه حصه وركړې شي.څكه چه د يو اوښ اتمه حصه د پنځو اوښانوڅلوېښتمه جوړيږى.نويه دې صورت كښې په دې اوښ كښې د شركت عيب پيدا كيږى.اودا هم مناسب نه دې.نويه پنځه اوښانوكښې يوه چيلئ واجب شويده.څكه چه په عهد رسالت كښې په عام طور د يوې چيلئ قيمت پنځه درهمه وو.او د تولونه د كم عمر د اوښ دبچې يعنى د بنت مخاض قيمت عام طورڅلوېښت درهمه وو.دغه شان د پنځو اوښانوقيمت دوه سوه درهمه شو.نو د يوې چيلئ په پنځواوښانوكښې واجبول داسې دى.لكه په دوه سوه درهمو كښې د پنځو درهمو واجبول ،او په دوه سوه درهموكښې پنځه درهمه د دوه سوه درهموڅلوېښتمه حصه ده.څكه يوه چيلئ هم د پنځو اوښانو څلوېښتمه حصه ګرخولې شويده.(عنايه)

---

[1]) منه كتاب أبي بكر رضي الله عنه لانس بن مالك رضي الله عنه اخرجه البخارى في الزكاة باب ٣٧ رقم الحديث ١٤٥٣ وكذا كتاب عمر رضي الله عنه اخرجه ابوداود في الزكاة باب ٥ رقم ١٥٦٨ والترمذى في الزكاة باب ٤ رقم ٦٢١ وابن ماجه في الزكاة باب ٩ رقم ١٧٩٨ وكذا كتاب عمربن حزم رضي الله عنه وزياد بن لبيد )۔

د اوښانو په زکاة کښې استیناف اول او ثاني

ثُمَّ تُسْتَأْنَفُ الْفَرِيضَةُ نو واپس به راګرځي فريضه فَيَكُونُ فِي الْخَمْسِ شَاةٌ مَعَ الْحِقَّتَيْنِ نو(واجب) به وي.په (زياتوالی د) پنځو يوه چيلۍ او دوه حقه وَفِي الْعَشْرِ شَاتَانِ ،وَفِي خَمْسَ عَشْرَةَ ثَلَاثُ شِيَاهٍ، وَفِي عِشْرِينَ أَرْبَعُ شِيَاهٍ ، وَفِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ بِنْتُ مَخَاضٍ ، إِلَى مِائَةٍ وَخَمْسِينَ اوپه لسو کښې دوه چيلۍ.اوپه پنځلسو کښې درې چيلۍ.اوپه شلو کښې څلور چيلۍ.اوپه پنځه ويشتو کښې يو بنت مخاض.تر يونيم سلو پورې فَيَكُونُ فِيهَا ثَلَاثُ حِقَاقٍ نوشي به په دې کښې درې حقه

حل اللغة ﴿ ①تستانف،استانف،يستانف استينافًا: د نوي سر نه شروع کول ②الفريضه: دزکوة نصاب

تشریح ﴿ النصاب بعد المائة والعشرين ﴾ په تيروکړخوکښې د شپږشلو اوښانو پورې د زکاة بيان وو. فرمائيلې شوې وو.چه په شپږشلو اوښانوکښې دوه حقې واجب دي.خوچه کله په شپږشلو باندې اضافه اوشوه. او اضافه هم د پنځو اوشوه.نوپه تيرو شوو دوه حقو سره به د يوې چيلۍ اضافه بله کيږي.ددې عبارت نه معلوم شو.چه په شپږشلو باندې که د يو اوښ،يا دوه يا درې يا د څلورو اوښانو اضافه اوشوه.نوپه دې زياتوالي کښې هيڅ زکاة نه واجبيږي. ①که د پنځو اوښانو اضافه اوشوه.نوپه دې اضافه کښې ،د تيرشوې زکاة سره يوه چيلۍ اضافه کيږي. ②اوکه د لسواوښانو اضافه اوشوه.يعنې يوسل او ديرش اوښان شو.نو دوه حقې او درې چيلۍ به واجب وي. ③اوکه د شلواضافه اوشوه.نوڅلورحقه اوڅلور چيلۍ به واجب وي. ④ اوچه د پنځه ويشتو اضافه اوشوه.يعنې يوسل پنځه څلويښت اوښان شو.نوپه دې کښې دوه حقه او يو بنت مخاض واجبيږي. ⑤ بياچه کله په دې باندې يعنې په يوسل پنځه څلويښتوباندې د پنځواضافه اوشوه.اوټول اوښان يونيم سل شو.نوپه دې کښې به درې حقه او يوه چيلۍ واجب وي.

ثُمَّ تُسْتَأْنَفُ الْفَرِيضَةُ بیا د سره شروع کيږي فريضه فَفِي الْخَمْسِ شَاةٌ نووي به په پنځوکښې يوه چيلۍ وَفِي الْعَشْرِ شَاتَانِ اوپه لسوکښې دوه چيلۍ وَفِي خَمْسَ عَشْرَةَ ثَلَاثُ شِيَاهٍ اوپه پنځه ويشتوکښې درې چيلۍ وَفِي الْعِشْرِينَ أَرْبَعُ شِيَاهٍ اوپه شلوکښې څلورچيلۍ وَفِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ بِنْتُ مَخَاضٍ اوپه پنځه ويشتوکښې يو بنت مخاض وَفِي سِتٍّ وَثَلَاثِينَ بِنْتُ لَبُونٍ او په شپږديرشو کښې يو بنت لبون فَإِذَا بَلَغَتْ مِائَةً وَسِتًّا وَتِسْعِينَ نو بياچې کله اورسي د يوسل او شپږنوی پورې فَفِيهَا أَرْبَعُ حِقَاقٍ إِلَى مِائَتَيْنِ نو وي به په دې کښې څلورحقه.تر دوه سوه پورې

تشریح ﴿ الإستيناف الثاني ﴾ اود لسو اوښانو د اضافه په صورت کښې د درې حقو نه علاوه دوه چيلۍ واجب دي. اود پنځلسو د اضافه په صورت کښې به درې حقه او درې چيلۍ واجب وي.اود شلو د اضافه په صورت کښې درې حقه اوڅلورچيلۍ واجبيږي.اود پنځه ويشتو د اضافه په صورت کښې يعنې په يوسل پنځه اويا کښې به درې حقه اويو بنت مخاض واجب وي.اوپه يونيم سل باندې د شپږ ديرشو داضافه په صورت کښې يعنې په يوسل شپږاتيا کښې به درې حقه او يو بنت لبون واجب وي.بياچه کله يوسل شپږ نوی اوښان شي.نوپه دې کښې څلورحقه واجب دي.تر دوه سوه پورې هم دغه څلورحقه واجب دي.

ثُمَّ تُسْتَأنَفُ الْفَرِيضَةُ أَبَدًا كَمَا تُسْتَأنَفُ فِي الْخَمْسِينَ الَّتِي بعد الْمِائَةِ وَالْخَمْسِينَ (١) بیابه واپس کیږي فریضه (هم دغه شان)همیشه.لکه څنګه چې واپس کولی شی .په (هغه) پنځوسو کښې .کوم چې د یونیم سلونه پس دی

**تشریح**> **الإستیناف الثالث**>بیاکه په دوه سوه اوښانوباندې اضافه اوشوه.نو بیا د زکاة فریضه به هم هغه شان دوباره کولې شی.لکه څنګه چه د یونیم سلونه پس په پنځوسوکښې شوې دی.یعنی دوه سوه نه پس د هرپنځوسوحساب به کیږی.په دې طریقه چه د هر پنځودپاره یوه چیلۍ څلیریشتو پورې.بیاپه پنځوسو باندې یو بنت مخاض،اوپه شپږ دیرشو باندې بنت لبون،او په شپږڅلویښتو باندې حقه تر پنځوسو پورې، نو په دوه نیم سوه باندې به پنځه چیلۍ وی.بیا د راروان پنځوسو دپاره هم دغه شان په هر پنځو اوښانو باندې یوه چیلۍ،تردې پورې چه په پنځه ویشتویاندې بنت مخاض اوپه شپږ دیرشوباندې بنت لبون اوپه شپږ څلویښتو باندې تر د پنځوسو پورې حقه ده.نوپه درې سوه اوښانو باندې شپږحقې دی. غرض داچه د هر پنځوسوحساب به هم دغه شان کیږی.

**دلیله**> دلیل دادې.چه رسول الله ﷺ عمروبن حزم‌ؓ ته کوم فرمان ورکړې دې.د هغې په آخرکښې نې دا لیکلی دی (فماکان اقل من خمس وعشرين ففيها الغنم في كل خمس ذود شاة) (٢) یعنی چه کله اوښان د شپږشلونه زیات شی.نوفریضه به د سره اعاده کولې شی.اوکه د پنځه ویشتونه کم وی.نوپه دې کښې یوه چیلۍ ده.په هرپنځه اوښانوکښې یوه چیلۍ ده.

## په مطلق اوښانوکښې د زکاة حکم

وَالْبُخْتُ وَالْعِرَابُ سَوَاءٌ اوبختی او عربی دواړه برابردی

**تشریح**> **معنی البخت والعراب**> بخت،د بختی جمع ده.بختی هغه دې.چه د عربی اوعجمی مخلوط نطفې نه پیدا شوې وی.بخت،د بخت نصرطرف ته منسوب دې.او عراب فرس د عربی جمع ده.لکه چه عرب **دلیله**>د مسئلې حاصل دادې.چه اوښ دکوم قسم هم وی.کله چه دا د نصاب شمیرته اورسی.نوپه دې کښې به زکاة واجب وی.څکه چه په حدیث کښې د ابل لفظ راغلې دې.اودا دواړو ته شامل دې.والله اعلم بالصواب.

---

(١) **اختلاف الشافعي** رحمه الله **في الإستيناف الأول والثاني**> امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه که په شپږشلو باندې یو اوښ زیات شو.نوپه دې کښې به درې بنت لبون واجب وی.اوکه یو سل دیرش اوښان شو.نوپه دې کښې یوه حقه او دوه بنت لبون دی.بیابه په هر څلویښتو او پنځوسوحساب راتاوېږی.نوپه هرڅلویښتوباندې یو بنت لبون،اوپه هر پنځوسو باندې به یوه حقه واجب وی.ددې اصولو لاندې امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په شپږ شلو باندې که د یو اوښ اضافه اوشوه.نوپه دې کښې به درې بنت لبون وی.څکه چه دا د څلویښتو درې چند دې.اوکه اوښان یو سل او دیرش وی.نوپه دې کښې به یوحقه او دوه بنت لبون وی.څکه چه یوسل دیرش،دوه څلویښت،او پنځوس دی.(١٣٠=٤٠+٤٠+٥٠)اوکه یوسل څلویښت وی.نوپه دې کښې دوه حقه او یو بنت لبون دې.څکه چه یو سل څلویښت،دوه پنځوس،او څلویښت دی. (١٤٠= ٥٠ +٥٠ +٤٠) وعلى هذا القياس

(٢) من حديث عمرين حزم‌ؓ اخرجه أبوداود في مراسيله وإسحاق بن راهويه في مسنده والطحاوى في مشكله كذا في نصب الراية ٢/٣٥٠.

د غواګانو د زکاة حکم

# بَابُ صَدَقَةِ الْبَقَرِ

دا فصل د غواګانو(د زکاة په بيان کښي) دی

لَيْسَ فِي أَقَلِّ مِنْ ثَلَاثِيْنَ مِنَ الْبَقَرِ صَدَقَةٌ نشته په کمو د ديرشوغواګانوکښي زکاة فَإِذَا كَانَتْ ثَلَاثِيْنَ سَائِمَةً نوکله چي شی ديرش غواګاني،څريدونکي وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ او تير شي په دی باندی کال فَفِيْهَا تَبِيْعٌ أَوْ تَبِيْعَةٌ نو(واجب دی) په دی کښي يو تبيع يا تبيعه وَفِي أَرْبَعِيْنَ مُسِنٌّ أَوْ مُسِنَّةٌ او په څلويښتو (غواګانو)کښي يومسن يا مسنه (واجب) ده

**حل اللغة** > ①**البقر**،د بقرنه مشتق دي.ددي معنی ده شلول.او د جنس بقر نوم بقرخکه کيخودی شو.چه دا زمکه شلوی.په البقره کښي" ة "دوحدت دپاره ده.د تانيث دپاره نه ده.نو البقريه په نر او ماده دواړو باندي واقع کيږی.② **تبيع** د غوي يوکلن نريځے،اوتبيعه يوکلن ماده بچے،دي ته تبيع يا تبيعه خکه وائی.چه دا دخپل مور تابع وی.هم دي پسےشاته شاته ګرځی.او مسن نر دوه کلن بچے،اومسنه ماده دوه کلن بچے،د بقر په زکاة کښي په مذکراو مونث کښي اختيار ورکړې شوې دې.خکه چه په بقرکښي مونث غوره نه شمارلي کيږی.

**تشريح** > **الربط بماقبله** > علامه قدوری رحمه الله دغواګانو زکاة دچيلو په زکاة خکه مقدم کړي دي.چه غواګاني دخپل غټ والي او قيمت اعتبارسره د اوښ مناسب دی.نو د اوښ د زکاة حکم بيانولونه پس د غواګانو د زکاة حکم ذکرکړي شو

**نصاب البقر** > بهرحال د غواګانو نصاب زکاة ديرش دي.يعنی په ديرشو غواګانوکښي يو تبيع يا تبيعه واجب ده.او په څلويښتوکښي يو مسن يا يو مسنه واجبيږی.

**دليله** > دليل دحضرت مسروق رضي الله عنه حديث دي.(عن معاذ بن جبل ان النبي ﷺ لما وجهه الى اليمن امره أن يأخذ من كل ثلثين بقراً تبيعاً،او تبيعة ومن كل اربعين مسناً اومسنة)[1] مسروق رضي الله عنه وائی.چه نبی کريم ﷺ کله حضرت معاذبن جبل رضي الله عنه د يمن حاکم جوړکړو.او ورته ئي ليګلو.نوددوی ته ئي حکم ورکړو.چه د ديرشو غواګانو نه يو تبيع يا تبيعه اخله.او د هرڅلويښت غواګانونه يومسن يا مسنه اخله.(شرح نقايه)

**التنبيهات** > ①داخيال ساتل پکاردی.چه د بقرلفظ څنګه غوا،غوائی ته وئيلي کيږی.دغه شان ميخ او سنډا ته هم وئيلي شی. ② داهم خيال ساتل پکاردی.چه د بقر په اقسامو کښي د زکاة د وجوب دپاره شرط دا دي.چه دا د پيو او د نسل زياتوالی دپاره وی.ګنی که دا ايوي وغيره چلولو ياپه ريړه وغيره بار او بوج دپاره وی.نوپه دي کښي زکاة نشته.

③ اوکه د تجارت دپاره وی.نو په دي کښي به ،زکاة التجارة، واجب وی.،زکاة السوائم، به واجب نه وی.

[1] ) حديث معاذ رضي الله عنه اخرجه ابوداود في الزكاة باب ٥ رقم ١٥٧٧ والترمذی في الزكاة باب ٥ رقم ٦٢٣ والنسائی في الزكاة باب ٨ رقم ٢٢٩٨ وابن ماجة في الزكاب باب ١٢ رقم ١٨٠٣ والدارمی في الزكاة باب ٥ ومالك في الزكاة باب ٣٤ واحمد في المسند (٢٣٠/٥) وابن حبان في صحيحه مسنداً في النوع الحادی والعشرين من القسم الأول والحاكم في المستدرك (٣٩٨/١)۔

## په غواګانوکښې د څلوېښتونه تر شپيتو پورې عفو

فَإِذَا زَادَتْ عَلَى أَرْبَعِينَ بیاچې کله زیات شی په څلوېښتو(غواګانو)باندی وَجَبَ فِي الزِّيَادَةِ بِقَدْرِ ذَلِكَ إِلَى سِتِّينَ نوواجب به وی په زیاتی کښې په اندازه ددې (زیاتوالی) ترشپیتوپوری عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله په نیزد امام ابوحنیفه رحمه الله. فَفِي الْوَاحِدَةِ رُبْعُ عُشْرِ مُسِنَّةٍ نویه یوزیاتی کښې څلوېښتمه دمسنه ده وَفِي الِاثْنَيْنِ نِصْفُ عُشْرِ مُسِنَّةٍ اویه دوه زیاتی کښې شلمه د مسنه ده، وَفِي الثَّلَاثِ ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِ عُشْرِ مُسِنَّةٍ اویه دریو(زیاتی) کښې دری څلوېښتمې حصه ده د مسنه

**تشريح> الروايات الثلاثة عن ابي حنيفه رحمه الله في زكاة الزائد على الأربعين>** په تیره شوې مسئله کښې ونیلې شوی دی.چه په دیرشوغواګانوکښې به یوتبیعه واجب وی.اویه څلوېښتوکښې یوه مسنه واجب وی.خوکه په څلوېښتوغواګانو باندې زیات شی.نویه دې کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله نه درې روایتونه دی.

**الرواية الأولى>** رومبې روایت چه د ،مبسوط،نه نقل دې.دا دې.چه د څلوېښتونه زیات ترشپیتو پورې به دحساب په اندازه زکاة واجب وی.نوکه په څلوېښتوباندې یوه غوازیاتی شوه.نویه دې کښې به یوه مسنه واجب وی.اویه یوزیاتی کښې به دمسنه څلوېښتمه حصه واجب وی.اوچه دوه زیاتی شی.نود یومسن یا مسنه شلمه حصه به واجب وی.اوچه په څلوېښتودرې زیاتی شی.نودیومسن اومسنه درې څلوېښتمې حصې واجب وی.علی هذا القیاس

**دليلها>** دلیل ددې روایت دادې.چه د دیرش اوڅلوېښتوپه مینځ کښې عفوکښې زکاة نه واجبېدل، خلاف قیاس دنص نه ثابت دی.اودلته یعنی دڅلوېښتونه زیات په عفوکښې هیڅ نص نشته.نود دیرشونه په زیاتی کښې عفویعنی زکاة نه واجبېدل په رائې اوقیاس سره نه ثابتیږی.ځکه چه مال د وجوب زکاة سبب دې.اویه اندازې سره نصاب مقررول جائزنه دی. دغه شان په رائې سره مال د وجوب نه خالی کول،ددې دسبب متحقق کولونه پس جائزنه دی.نوکله چه دڅلوېښتونه زیاتی غواګانې وی.نویه دې زیاتی کښې صرف په خپلې رائې سره عفوثابتول،یعنی زکاة نه واجبول جائزنه دی.

**الرواية الثانيه>** دویم روایت حسن بن زیادعن ابی حنیفه رحمه الله دې.ددې روایت حاصل دا دې.چه د څلوېښتونه په زیاتی کښې هیڅ خیزواجب نه دې.البته زیاتی که پنځوسوته اورسی. یعنی که په څلوېښتو غواګانوباندې د لسو اضافه اوشی.نوپنځوس شوې.نویه دې کښې یومسنه اود یو مسنه څلورمه حصه واجب ده.یا یوه مسنه اود یو تبیعه دریمه واجب ده.خلاصه داچه.دڅلوېښتو او پنځوسوپه مینځ کښې عفو ده.خوپه څلوېښتوکښې زکاة عفودې.

**دليلها>** ددې روایت دلیل دا دې.چه د غواګانو د نصاب بنیاد په دې دې.چه په هردوه، لسوکښې عفو ده.اویه هرلسوباندې واجب دې.نواوقاص(عفوه)غواګانې یعنی د دوه،لسوپه مینځ کښې په نهو غواګانو کښې عفوه ده.په دې کښې به هیڅ زکاة واجب نه وی.لکه څنګه چه د څلوېښتونه مخکښې اود شپیتونه پس یعنی په دیرشوغواګانوکښې یوه تبیعه ده.خود دیرشونه پس تر۳۹پورې هیڅ زکاة نشته.اویه شپیتوکښې دوه تبیعه دی.خو د شپیتونه پس تریوکم اویا پورې هیڅ زکاة نشته.نودغه شان دڅلوېښتواو پنځوسوپه مینځ کښې په نهوغواګانوکښې به هیڅ زکاة نه وی.اوچه کله پنځوس شی.نویه دې زیاتی لسوکښې به زکاة واجب وی.یعنی د مسنه څلورمه یا د تبیعه دریمه به واجب وی.

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ: لَاشَيْءَ فِي الزِّيَادَةِ حَتّٰى تَبْلُغَ سِتِّيْنَ ()او وائی.امام ابویوسف اومحمد رحمهما الله چې هیڅ څیزنه وی (واجب)په زیاتی کښې .تردی چې اورسی شپیتو ته فَيَكُوْنُ فِيْهَا تَبِيْعَانِ أَوْ تَبِيْعَتَانِ نو په دې کښې به دوه بیع یا دوه تبیعان وی

تشریح> الرواية الثالثة وهومذهب الأئمة رحمهم الله >دریم روایت دا دې.چه د څلویښتونه په زیاتی کښې ترشپیتو پورې هیڅ زکاة واجب نه دې.هم ددې قائل صاحبین رحمهما الله دی.اوهم داقول دامام مالك، امام شافعي،اود امام احمد رحمهم الله دې.

دلیله> ددې دریم روایت دلیل دادې.چه نبی کریم ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه ته ارشاد فرمائیلې دې.«لاتأخذمن أوقاص البقرشيئا» (٢) اوشالمانو د،اوقاص،تفسیر د څلویښتو اوشپیتوپه مینځ کښې کړې دې. یعنی د څلویښتو اوشپیتوپه مینځ کښې د غواګانو زکاة مه اخلئ.ځکه چه دا عفوه دې.اوقاص د وقص جمع ده.د دوه فرضو مینځ ته وائی.

جواب أبي حنيفة رحمه الله >زمونږ د طرفه ددې استدلال داجواب ورکړې شوې دې.چه بعضو حضراتو د اوقاص نه مراد ډیر واړه بچی اخستی دی.یعنی کوم بچی چه دپوره کال نه وی.د هغې زکاة مه اخلئ. ددې تاویل نه پس دا روایت د صاحبینو رحمهما الله مستدل نه جوړیږی.

وَفِي سَبْعِيْنَ مُسِنَّةٌ وَتَبِيْعٌ او په اویاکښې یومسنه او یوتبیع ده وَفِي ثَمَانِيْنَ مُسِنَّتَانِ او په اتیاؤ کښې دوه مسنه دی وَفِي تِسْعِيْنَ ثَلَاثَةُ أَتْبِعَةٍ او په لس کم سلوکښې دری تبیعه دی وَفِي مِائَةٍ تَبِيْعَانِ وَمُسِنَّةٌ او په سلو کښې دوه تبیعه اویو مسنه دی وَعَلٰى هٰذَا يَتَغَيَّرُ الْفَرْضُ فِي كُلِّ عَشْرٍ مِنْ تَبِيْعٍ إِلٰى مُسِنَّةٍ اوهم په دی به (حساب) قیاس کولی شی .نو متغیر کیږی به فرض زکاة په لسوکښې .د تبیع نه مسنه په طرف.

تشریح> النصاب بعد الستين >ماتن رحمه الله وائی.چه په شپیتوغواګانوکښې دوه تبیعه دی.اوپه اویا غواګانو کښې یومسنه او یوه تبیعه ده.یعنی دڅلویښتومسنه،اود دیرشوتبیعه،اوهم ددې نه دوه مسنه دی.یعنی په حساب په هرڅلویښتوکښې یوه مسنه،اوپه نوی(لس کم سلو)کښې درې تبیعه دی.اوپه سلوکښې دوه تبیعه اویوه مسنه دی.په دې قیاس به حساب کولې شي.نوفرض زکاة به متغیرکیږی.د هرلسو تبیعه نه د مسنه په طرف،اود مسنه نه د تبیعه په طرف،مثلاً په سلوکښې دوه تبیعه،او یوه مسنه دی.اوپه یوسل لسوکښې دوه مسنه اویوه تبیعه دی.په شپږشلوکښې درې مسنه دی.اوپه یوسل دیرشوکښې درې تبیعه او یوه مسنه دی. علی هذا القياس

دلیله>دلیل د رسول اکرم ﷺ فرمان «فی کل ثلثین من البقر تبیع او تبیعة وفی کل أربعین مسن أو مسنة» (٣)

(١) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في رد المحتار(٢٠\٢) والبحرالرائق (٢١٥\٢) والتاتارخانية (٢٢٢٠\٢) ومجمع الأنهر(١٩٩\١) نقلاً عن القول الراجح (١٦٦\١)-

(٢) من رواية ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه الدارقطني في سننه (٩٩/٢) والبيهقي في السنن الكبرى (١٦٦/٤) رقم ٧٢٩٣)_

(٣) من حديث عبدالله رضي الله عنه أخرجه الترمذي في الزكاة باب ٥ رقم ٦٢٢ وابن ماجة في الزكاة باب ١٢ رقم ١٨٠٤ )_

وَالْجَوَامِيسُ وَالْبَقَرُ سَوَاءٌ او میخي اوغواګاني برابردي

**تشریح>انحاد حکم البقر والجاموس>**ماتن رحمه الله فرمائي.چه د میخې او غواحکم په زکاة کښې برابر دي.تردې چه په دیرشو میخوکښې یوکلن بچې واجب دي.اوپه څلویښتومیخوکښې دوه کلن بچې واجب دي.

**دلیله>** دلیل دا دې.چه د بقر لفظ غوې او میخه دواړو ته شامل دې.او غوني اوسندا هم په دې جنس کښې داخل دی. علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه د بقرلفظ دې دواړو ته ځکه شامل دې.چه میخه هم یوقسم غوې ده.

**د چیلو د زکاة بیان**

# بَابُ صَدَقَةِ الْغَنَمِ

دا باب د ګډو د زکاة په بیان کښې

لَيْسَ فِي أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعِينَ شَاةً صَدَقَةٌ نشته په کم د څلویښتو خریدونکو چیلوکښې زکاة، فَإِذَا كَانَتْ أَرْبَعِينَ سَائِمَةً بیاچې کله څلویښت خریدونکښې (چیلۍ) شی وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ او تیرشی په دی باندی کال فَفِيهَا شَاةٌ إِلَى مِائَةٍ وَعِشْرِينَ نوپه دی کښې یوه چیلۍ ده.ترشپږشلو پوری فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةٌ بیاچې کله ( په شپږ شلو) زیاتی شی یوه (چیلۍ). فَفِيهَا شَاتَانِ إِلَى مِائَتَيْنِ نو وی به په دی کښې دوه چیلۍ.تردوه سوه پورې فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةٌ بیاچې کله زیاتی شی یوه فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ نوپه دی کښې دری چیلۍ دی فَإِذَا بَلَغَتْ أَرْبَعَمِائَةٍ نوکله چې اورسی څلورسوه ته فَفِيهَا أَرْبَعُ شَاةٍ نوپه دی کښې څلورچیلۍ دی ثُمَّ فِي كُلِّ مِائَةٍ شَاةٌ بیا په هرسلوچیلوکښې یوه چیلۍ ده

**حل اللغة >①** غنم نوم ځکه ایخودې شوی دي.چه هیڅ آله د دفاع نشته.ځکه دا د هرطالب دپاره غنیمت دي.اود غنم لفظ اسم جنس دي.چه نر او ماده ټولوته وئیلې شي

**تشریح> الربط بما قبلها>**د چیلو زکاة ئې د اسونو په زکاة مقدم بیان کړې دې.یاخوځکه چه ددوی دکثرت په وجه ددې دبیان ضرورت زیات دې.اویاخوځکه چه د ګډو چیلو زکاة متفق علیه دې.اود اسونو زکاة مختلف فیه دې.اومناسب هم داوی.چه متفق علیه څیز مخکښې بیان کړې شی.

**نصاب الغنم>**فرمائي.چه د چیلونصاب څلویښت چیلۍ دی.د څلویښتونه په کموکښې هیڅ زکاة نشته.البته څلویښتوچیلوکښې یوه چیلۍ واجب ده.په دې شرط چه دا سائمه وی.اوپه دې کال هم تیر شوی وی. نو د شپږ شلو پورې به هم دغه یوه چیلۍ واجب وی.خوچه کله په شپږشلو باندې یوه هم زیاتی شوه.یعنی یوسل یوویشت چیلۍ شی.نوپه دې کښې به دوه چیلۍ واجب وی.تردوه سوه پورې به هم دغه دوه چیلۍ واجب وی.بیاچه کله په دوه سوه باندې یوه چیلۍ زیاتی شوه.یعنی یو دپاسه دوه سوه شی.نوپه دې کښې به درې چیلۍ واجب وی.بیاچه کله څلورسوه شی.نوپه دې کښې به څلورچیلۍ واجب وی.بیاپه هرسلو باندې یوه چیلۍ زیاتیږی.تردې چه په پنځه سوه باندې پنځه اوپه شپږسوه باندې شپږ چیلۍ واجب دی.علی هذا القیاس.

**دلیله> ①**دلیل دا دې.چه دچیلۍ د زکاة په سلسله کښې کوم تفصیل ذکرشوې دې.هم دا تفصیل د

رسول اکرم ﷺ فرمان زکاة کښې وارد شوې دې.اوهم دغه شان دحضرت ابوبکراو حضرت عمر ؓ په ارشاداتوکښې هم بیان کړې شوی دی.④دخلیفه اول حضرت ابوبکر ؓ کوم فرمان چه دحضرت انس ؓ په نوم تلېږوو.د هغې الفاظ لیکلې شی.(وفي صدقة الغنم في سائمتها إذا كانت أربعين إلى عشرين ومائة شاة، فإذا زادت على عشرين ومائة إلى مائتين شاتان، فما زادت على مائتين إلى ثلاث مائة ففيها ثلاث شياه، فإذا زادت على ثلاث مائة ففي كل مائة شاة، فإذا كانت سائمة الرجل ناقصة، من أربعين شاة واحدة، فليس فيها صدقة إلا أن يشاء ربها) [1] (ترجمه واضح ده).⑤ دویم دلیل دا دی.چه د چیلې د زکاة کوم تفصیل بیان کړې شوې دې.هم په دې اجماع منعقد شویده.اوهم دا د سلف اوخلف فقهاؤ او دآئمه اربعه مذهب دې.

**د ګډو اوچیلو د حکم یووالې**

| وَالضَّأْنُ وَالْمَعْزُ سَوَاءٌ او ګډې اوچیلې برابر دی |
|---|

**حل اللغة** > ①**ضأن**: ګډه، ګډ، ②**المعز**چیلې(نر،خیرلې)چیلې

**تشریح** > **وجوب الزكاة في جميع أنواع الشياه** > ګډه، ګډ، چیلې نر ماده د زکاة د نصاب پوره کیدوکښې تول برابر دی.یعنی ګډه،ګډ،اوچیلې که مخلوط دی.اود نصاب مقدار ته رسیدلې وی.نوپه دې کښې زکاة واجب دې.ځکه چه لفظ دغنم ګډه،ګډ،اوچیلې تولوته شامل دې.لکه اسم جنس چه خپلو انواعو ته شامل دې.اونص په لفظ د غنم وارد شوې دې.ځکه د زکاة په نصاب کښې به د تولواعتبارکیږی.او د نص نه مراد درسول الله ﷺ فرمان(في أربعين من الغنم شاة) دې.

**دلیله** > ځکه چې لفظ دغنم شامل دی هریو(ددی دواړو)ته اونص وارد شوی دی په دی باندی

**په اسونوکښې د زکاة فرضیت**

| بَابُ زَكَاةِ الْخَيْلِ |
|---|

دا باب د اسونو(د زکاة په بیان کښې )دی

| إِذَا كَانَتْ الْخَيْلُ سَائِمَةً ذُكُورًا وَإِنَاثًا کله چې وی اسونه څریدونکښې .نر اوماده وَحَالَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ اوپه دې باندې کال تیرشوی وی فَصَاحِبُهَا بِالْخِيَارِ نو مالك د دی ته اختیاردی إِنْ شَاءَ أَعْطَى مِنْ كُلِّ فَرَسٍ دِينَارًا که غواړی.نو ورکړی.د هر اس نه یو دینار وَإِنْ شَاءَ قَوَّمَهَا اوکه غواړی .نو قیمت دی اولګوی د دی فَأَعْطَى عَنْ كُلِّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ خَمْسَةَ دَرَاهِمَ او ورکړی د هردوه سوه درهمونه پنځه درهمه وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اودا(حکم) دابوحنیفه رحمه الله په نیزدی . وَلَيْسَ فِي ذُكُورِهَا زَكَاةٌ مُنْفَرِدَةً عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اور صرف نر اسونو باندې زکوة نشته په نزد دامام ابوحنیفه رحمه الله |
|---|

**حل اللغة** > ①**ذکورا**: نر ②**اناثا**: ښځه ③**خیل**: اس

**تشریح** > **تقسیم الفرس الي حالتین** > شیخ الادب په شرح نقایه (جلد اول صفحه ۱۵۰ حاشیه۵ ) باندې

[1] ) للقدم نمبر(۱۰۲)۔

ليکی.چه اس د دوه حالونه خالی نه دي. ①علوفه:چه په کورکښې ترلې وی.اوخوراك ورکولې شی به وی② او یابه سائمه وی.

**تقسیم العلوفة الي حالتين**﴾که علوفه وی.نودا هم د دوه حالونه خالی نه ده. ①یا خویه دې ته د سوارلی یا بار اوړلو.یا د جهاد فی سبیل الله دپاره ونډه ورکولې شی. ②یا به دتجارت دپاره ونډه ورکولې شی.که اول دې.نوپه دې کښې په اتفاق سره زکاة نشته.خکه چه د زکاة مال هغه دې.چه نامی وی.اود حاجت نه زیات وی.اوکه ثانی دې،نوپه دې کښې په اتفاق زکاة واجب دې.خکه چه په دې صورت کښې دا مال نامی دې.اود حاجت نه زیات دې.خکه چه دا د تجارت دپاره مقررکول د نماء اوحاجت نه د زیاتی کیدو دلیل دې.

**تقسیم السائمة الي حالتين**﴾اوکه سائمه وی.نودا هم ددوه حالونه خالی نه دې. ①یاخویه دا د سوارلی یا بار دپاره یا د جهاد او غزوه دپاره په مباح خنګلونو کښې څرولې شی. ②او یابه د تجارت دپاره څرولې شی.په اول صورت کښې به په اتفاق زکاة واجب نه وی.او په دویم صورت کښې په اتفاق زکاة واجب دې.

**تقسیم ما يتولد إلي حالتين**﴾اوکه دا د پیو اود نسل زیاتوالی دپاره څرولې شی.نو ددې هم دوه صورته دی. ①یاخویه نر او ماده دواړو ګډ وډ وی. ②یا به ګډ وډ نه وی.

**حكم الصورة الأولي**﴾که اولنې صورت دې.نوپه دې کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز زکاة واجب دې. اومالك ته به اختیار وی.چه د هر اس نه یو دینار ورکړی.یا ددې قیمت اولګوی.او د هر دوه سوه درهمو نه پنځه درهمه ورکړی.

**حكم الصورة الثانية**﴾اوکه ثانی صورت دې.نوددې هم دوه صورته دی. ①یاخویه صرف ماده وی. ②یابه نر وی.په دې دواړو صورتونوکښې د امام ابوحنیفه رحمه الله دوه دوه روایتونه نقل دی.یو د وجوب او دویم د عدم وجوب.په خالص ماده کښې راجح روایت دوجوب دې.خکه چه دبل نه نر اس غوښتلو سره تناسل او افزائش نسل ممکن دې.اوپه خالص نرکښې د عدم وجوب روایت راجح دې.خکه چه دابوحنیفه رحمه الله په نیز ددې غوښه نشی خوړلې. اونه ددې نه تناسل ممکن دې.په دې وجه راجح د زکاة عدم وجوب دې.

**شرط وجوب الزكاة في الخيل عند ابي حنيفة رحمه الله**﴾دصاحب هدایه رحمه الله د بیان مطابق حاصل د مسئله دا دې.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزپه اسونوکښې زکاة واجب دې.په دې شرط چه①سائمه وی. ②اونر ماده ګډ وډ وی.خالص نر یا خالص ماده نه وی.البته د مال مالك ته په زکاة ادا کولو کښې اختیاردې. چه د هراس نه یو دینار ورکړی.یا ددې قیمت اولګوی.او په هردوه سوه درهمو کښې پنځه درهمه ورکړی.

**الأقوال في نصاب الخيل**﴾پاتې شوه داخبره،چه د امام صاحب په نیز د اسونونصاب څه دې. ①نوصحیح خبره داده.چه په اسونوکښې هیڅ نصاب معتبرنه دې.که یواس هم وی.نوپه دې کښې زکاة واجب دې. ②بعضو وئیلې دی.چه درې اسونه د زکاة نصاب دې. ③بعضو پنځوته نصاب وئیلې دی. ④اوبعض وائی.چه د نصاب دپاره دوه نران کیدل.اود دوه ماده کیدل ضروری دی.

**دليله**﴾د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل ① د دارقطنی دارروایت دې. **في كل سائمة دينار اوعشرة دراهم** یعنی په هرسائمه اس کښې یو دیناردې.یا لس درهمه دی.

**وَقَالَ ابویوسف ومحمد لَازَكَاةَ فِي الْخَيْلِ(¹)** اوصاحبين رحمهما الله فرمائي.هيڅ زكاة نشته .په اسونو كښي .

**تشريح> عدم وجوب الزكاة في الخيل مطلقاً عند الصاحبين** رحمهما الله>صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه په اسونو كښي زكاة واجب نه دي.كه دا دهرقسم وي.كه علوفه وي اوكه سائمه وي.مخلوط وي.اوكه غيرمخلوط وي.كه دجهاد دپاره وي.اوكه د تجارت دپاره وي.د افزائش نسل دپاره وي.اوكه د سوارلي يا د بار وغيره دپاره وي.هم دا قول د امام شافعي امام مالك اود امام احمد رحمهم الله دي.

**دليلهما>** دصاحبينو رحمهما الله دليل د ابوهريرة رضي الله عنه حديث دي.**(قال قال رسول الله ﷺ ليس على المسلم في عبده ولا في فرسه صدقة)** (²)ابوهريرة رضي الله عنه وائي.چه رسول اكرم ﷺ فرمائيلي دي.چه په مسلمان دده په غلام اواس كښي زكاة نشته.

**الجواب عنه >** په دي روايت كښي فرس غازي مراددي.يعني په غازي مسلمان باندي دده په اس كښي زكاة نشته.دا تاويل د زيد ابن ثابت رضي الله عنه نه نقل دي.دصاحب عنايه د بيان مطابق د مروان په زمانه كښي واقعه راپيښه شوه.چه په اس كښي زكاة واجب دي.اوكه نه.دصحابو رضي الله عنهم نه په دي باره كښي مشوره اوشوه.حضرت ابوهريرة رضي الله عنه **(ليس على الرجل في عبده ولا في فرسه صدقة)** روايت بيان كړو.نو مروان زيد بن ثابت رضي الله عنه ته مخاطب شو.اواوئي وئيل.**(ماتقول يا اباسعيد)** اے ابوسعيد ته څه وائي.ابوهريرة رضي الله عنه اووئيل.چه حيرانتيا ده په مروان،چه زه د رسول كريم ﷺ حديث بيانوم.اودي وائي.**(ماتقول يا اباسعيد)**زيد ابن ثابت رضي الله عنه چه دا واوريدل نو) وي وئيل.چه رسول الله ﷺ رښتيا فرمائيلي دي.خوددي نه مراد فرس غازي دي.اوكوم اس چه د نسل دپاره څرولي شي.په دي كښي زكاة شته.ابوهريرة رضي الله عنه اووئيل.خومره، وسعفرمائيل **(على كل فرس دينار اوعشرة دراهم)**

**دليل وجوب الدينار اوعشرة درهم في فرس>** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه دينار اوپه قيمت لګولو د هردوه سوه درهمونه په پنځو درهموورکولوكښي اختيار وركول، دحضرت عمر رضي الله عنه نه منقول دي.نقل دي.چه**(فان كتب الى ابي عبيدة في صدقة الخيل خيراً ربابها ان اُدى من كل فرس ديناراً والا تقومها وخذ من كل مائتي درهم خمسة دراهم)** (³)يعني حضرت عمر رضي الله عنه ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه ته د اسونو د زكاة په باره كښي اوليكل.اوداسونومالكانو ته ئي اختيار وركړو.چه دوي د هر اس نه يو دينار اداكړي.ګني حاصلونكي دي ددي قيمت اولګوي.اود هردوه سوه درهمونه دي پنځه درهم واخلي.

**عدم وجوب الزكاة في الخيل المنفردة>** مسئله داده.چه په ځانله نراسونوكښي زكاة واجب نه دي.

---

¹) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في الخانية (١٩١\١) والخلاصة (٢٣٦\١) والهندية (١٧٨\١) والفقه الاسلامي وأدلته (٨٤٧\٢) نقلاً عن القول الراجح (١٦٨\١)-

²) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه البخاري في الزكاة باب ٤٥ ومسلم في الزكاة رقم ٩ وأبوداود في الزكاة باب ١١ رقم ١٥٩٥ والترمذي في الزكاة باب ٨ والنسائي في الزكاة باب ١٦ رقم ٢٣١٢ وابن ماجه في الزكاة باب ١٥ رقم ١٨١٢ والدارمي في الزكاة باب ١٠ ومالك في الزكاة رقم ٣٧ وأحمد في المسند (٢٤٢/٢)_

³) غربه الزيلعي رحمه الله ثم ذكرأثرعمر رضي الله عنه انه اخذ في الفرس في رواية عشرة دراهم و في الأخرى ذكراخذالدينار في فرس وليس فيهما ذكرالخيار بين الدرهم والدينار) نصب الراية (٣٦٦/٢)_

**دليله**>دلیل دا دي.چه په سوائموکښې زکاة واجب وی.د نسل دزیاتوالی په وجه.اوتسل صرف د اسونه نه ممکن نه دي.اوپه دي وجه صرف په اسونوکښې زکاة واجب نه دي.چه ترکومه پورې دي سره اسپې هم نه وی.

**الإعتراض**>دلته کښې یواعتراض کیږی.هغه داچه په ځانله نر اوښان،نر غوایان،اوپه نرانو ګډو کښې هم تناسل ممکن نه دي.خوددې باوجودهم په دې کښې زکاة واجب دې؟

**الجواب**>جواب دا دي.چه د زکاة دوجوب دپاره نماء شرط ده.اوپه اسونوکښې نمو په نسل سره کیږی. اوپه ځانله نراسونوکښې تناسل نه کیږی.چه ترکومه دې سره اسپې نه وی.نوپه ځانله نراسونو کښې نمانشته.اوچه نمانشته. نوپه دې کښې زکاة هم واجب نه دی.

اوپه اوښانو،غواګانو،اوګډوکښې چه څنګه په تناسل سره نماء کیږی.دغه شان ددې په غوښه اوددې په ایختو کښې هم نماکیږی.نوداوښانو،غواګانو،اودګډو په نرانوکښې اګرچه په تناسل سره نماء ممکن نه ده.خوپه غوښه او ایختوسره نماء ممکن ده.څکه ددې په ځانله نرانوکښې هم زکاة واجب دي.

**الروايتان عن ابيحنيفة رحمه الله في وجوب الزكاة فيالإناث المنفردة**>دغه شان په ماده اسپوکښې هم دامام ابوحنیفه رحمه الله نه دوه روایته دی.یودوجوب او دویم د عدم وجوب دي.

**دليلها**>د رومبی روایت دلیل دا دي.چه په ځانله اسپوکښې هم د توالد او تناسل په ذریعه نماء نه کیږی.څکه په دې کښې به زکاة هم واجب نه وی.اود دویم روایت دلیل دا دي.چه که دچا په ملك کښې که صرف اسپےوی.نوددې نه توالد اونسل ممکن دي.په دې طریقه چه د جفتی(دمال کولو) دپاره دچا اس مستعار(په کرایه) واخستلې شی.اوچه تناسل ممکن دي.نوپه دې کښې نماء هم موجود شوه.اوکله چه صرف په اسپوکښې نماموجودشوه.نوپه دې کښې به زکاة هم واجب وی.په ځانله اسونوکښې د وجوب زکاة روایت راجح دي.

**رواية الوجوب في الزكور منفرداًعن ابيحنيفة**>دحضرت ابوحنیفه رحمه الله نه یوروایت دا دي.چه په ځانله نرو اسونوکښې هم زکاة واجب دي.

**دليله**>ددې روایت دلیل دا دي.چه سائمه اس دسوائمودټولوقسمونونظیر دي.نوڅنګه چه دنورو سوائمو په نرانوکښې د سوم (په څنګل کښې دڅریدو)په وجه زکاة واجب وی.دغه شان په نر اسونوکښې هم د څریدوپه وجه زکاة واجب وی.

**حاصل الكلام فيالذكورالمنفردة**>حاصل دا دي.چه دامام ابوحنیفه رحمه الله نه په نراسونوپه زکاة کښې دوه روایته دی.یودوجوب اودویم دعدم وجوب دي.خودعدم وجوب روایت راجح دي.

| وَلَاشَيْءَفِي الْبِغَالِ وَالْحَمِيْرِ اوپه خرو او قچرو کښې هیڅ نشته. |
|---|

**تشريح**> **عدم وجوب الزكاة في الحمر والبغال ودليله**>په خرو او قچروکښې زکاة نشته.

**دليله**> دلیل د رسول الله ﷺ فرمان «لم ينزل على فيهما شيء»[1] دي.په ماپه خرو او قچروکښې د زکاة په باره کښې هیڅ څیزنازل شوې نه دي.او مقادیر د زکاة سماعی دی.قیاسی او عقلی نه دي.نوکله چه نبی

---

[1] قال الزيلعي رحمه الله الحديث في الصحيحين وليس فيه البغال ثم ذكره برواية ابي هريرة رضي الله عنه اخرجه البخاري في بدء الخلق باب باب قبل فضائل الصحابة رضي الله عنهم ومسلم في الزكاة (نصب الراية ۳۶۷/۲)۔

کریمﷺ نه په دې باره کښې هیڅ سماع اونشوه.نوپه دې کښې به زکاة واجب نه وی.

إِلَّا أَنْ تَكُونَ لِلتِّجَارَةِ خوپه هغه وخت چې وی دا(قچری اوخره)د تجارت دپاره

تشریح> وجوب الزكاة اذا كانت للتجارة> خوکه خره اوقچرې د تجارت دپاره وی.نوپه دې کښې به تجارتی زکاة واجب وی.

دلیله> خکه چه په دې صورت کښې به زکاة د مالیت سره متعلق وی.لکه د نورو مالونو په تجارت کښې چه زکاة د مالیت سره معتلق وی.

**د مختلفو څاروو په بچوکښې د زکاة حکم**

وَلَيْسَ فِي الْفُصْلَانِ وَالْعَجَاجِيلِ زَكٰوةٌ اونشته د اوښانو په بچوکښې ،د غواګانو (اومیخو) په بچوکښې، اوپه بچو د چیلوکښې زکاة، عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ومحمد إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَعَهَا كِبَارٌ په نیز د امام ابوحنیفه رحمه الله اود امام محمد رحمه الله. خودا چې وی ددی (بچو) سره لوی (څاروی).

تشریح> الرواية الجديدة عن أبي حنيفة في وجوب الزكاة>صاحب دکتاب وائی.چه امام ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نیزد اوښانو،غواګانو،اودچیلودیوکال نه په کمو بچوکښې زکاة واجب نه دې.مراد دادې.که صرف بچې وی. نوپه دې کښې زکاة نشته.خوکه ددې بچوسره لوې هم وی.یعنی د یوکال یا د زیات،نوپه دې کښې به زکاة واجب وی.صاحب ده هدایه رحمه الله فرمائیلی دی چې دا د امام ابوحنیفه رحمه الله آخری قول دې.

دلیلهما >اود امام ابوحنیفه رحمه الله آخیری قول او امام محمد رحمه الله د قول دلیل دا دې.چه په مقادیر د نصاب او مقادیر د زکاة کښې قیاس اود عقل هیڅ دخل نشته.نوشریعت چه کوم څیزواجب کړې دې.ددې وجوب که ممتنع شی.نو وجوب به بالکل ممتنع وی.اوهیڅ څیزبه واجب نه وی.اوس تاسواوګورئ.اسلامی شریعت د پنځه ویشتو اوښانوپه زکاة کښې یو بنت مخاض واجب کړې دې.یعنی د اوښ دپوره کال ماده بچې، اوپه دیرشو غواګانوکښې یو تبیع یا تبیعه واجب کړې دې.یعنی د غوې یوکلن نر یا ماده بچې،اوپه څلویښتوچیلوکښې دپوره کال یوه چیلۍ چه ورته ثنی وئیلې شي) واجب کړې ده. نوکه دڅاسره د اوښ یا غوې یا دچیلۍ صرف دکال نه کم بچې وی.اود لوئې عمرهیڅ نه وی.نودا کس به یاخو هم ددې نه یو بچې د زکاة په طور اداکوی.یاهغه چه نص پرې وارد شوې دې.هغه به اخلی. اوزکاة کښې به نې ورکوی.په اولنی صورت کښې د نص نه خلاف اداشو.خکه چه نص کم ازکم د یوکال بچې دې. او ده د یوکال نه کم ورکړې دې.اوپه دویم صورت کښې پوره مال یا ښه مال ورکړې شو. حالانکه په زکاة کښې نه خوپوره مال ورکړې کیږی.اونه ښه مال،بلکه اوسط درجې والامال ورکړې کیږی.نوکله چه،ماورد به الشرع، واجبول ممتنع شو.نوهیڅ څیزبه واجب نه وی.نه به د لوې عمرڅاروې واجب وی.اونه به ددې بچوکښې څه واجب وی.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله تَجِبُ فِيهَا وَاحِدَةٌ مِنْهَا او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی چې په دې کښې د دې نه یو واجبیږی

تشریح> مذهب ابي يوسف رحمه الله > دامام ابویوسف رحمه الله په نیز په دې مذکوره څیزونو کښې صرف یو بچې واجبیږی د دې نه زیات نه یاد ساتئ چې دا د امام ابوحنیفه رحمه الله درمیانه قول وو اول

کښی دوی د دې ځیزونو په بچو کښې د غټو پشان د وجوب زکاة قائل وو بیا ئې د دې نه رجوع اوکړه او په دې کښې دیوبچی د وجوب قائل شو او بیا ئې د دې نه هم رجوع اوکړه او د دې ځیزونو په بچو کښې د عدم وجوب زکاة قائل شو.اودا روایت امام قدوری په متن کښې ذکر کړې دې او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله آخری قول دې

**دلیله** >دامام ابویوسف دلیل دا دې.چه هم ددې بچونه به د یوکال بچې ورکولوکښې صاحب مال او فقیرانو دواړوته رعایت دې.په دې طریقه چه که مونږ په صغار(وړو)کښې هم هغه څاروې واجب کړو.کوم چه په کبار(د لوې عمرڅاروو)کښې واجبیږی.حالانکه په دې بچوکښې داسې هیڅ یوڅاروې نشته.نوپه دې صورت کښې به صاحب مال ته ضررملاوشی. چه دې د زکاة اداکولو دپاره د لوئې عمرڅاروې تلاش کوی .اود لوې عمر څاروې ډیرکرته د ټولوبچو د مالیت برابروی.نوګویاچه په زکاة کښې ټول مال واخستې شو.په دې صورت کښې به صاحب مال ته ضرر اورسی.

اوکه په صغار(وړو)کښې بالکل زکاة واجب نکړو.نوپه دې کښې د فقیرانونقصان دې.د دواړو د رعایت په نظر سره هم په دې کښې به یوبچے واجب وی.لکه که د چاسره ټول څاروی ډیر زیات کمزوری، اوخوار وی.نوپه زکاة کښې به هم ددې نه یو اخستې شی.د صاحب مال رعایت خو داسې اوشو.چه ده ته د لوئې عمرڅاروې تلاش کول رانغلل.اود فقیرانو رعایت په دې طریقه اوشو.چه دې محروم نکړې شو. بلکه څه نه څه ضرور ملاوشوې دی.

**حکایة الروایات الثلاثة عن ابي حنیفة رحمه الله** >صاحب د عنایه رحمه الله لیکلی دی.چه امام طحاوی رحمه الله ذکرکړې دی.چه د ابوحنیفه رحمه الله دری واړه اقوال په یوحکایت کښې ذکردی.حکایت دا دې.امام ابویوسف رحمه الله وائی.چه زه د ابوحنیفه رحمه الله په خدمت اقدس کښې حاضرشوم. تپوس مې اوکړو.چه د یوکس سره دچیلئ دیوکال نه کم څلویښت(۴۰)بچی وی.نوپه ده به څه واجب وی؟امام صاحب اوفرمائیل .چه مسنه چیلئ به واجب وی.ابویوسف رحمه الله وائی.چه د مسنه چیلئ قیمت ډیرکرته د چیلو د څلویښتو بچو نه زیات وی.اوکه زیات نه وی. نوروسته زیاتیدې شی.نوددې مطلب داشو.چه په زکاة کښې به پوره مال اخستې شی. حالانکه په زکاة کښې څلویښتمه حصه اخستې شی.پوره مال نشی اخستې.

حضرت امام اعظم رحمه الله چه دا واوریدل،نولږ ساعت ئې غور اوکړو.اووې فرمائیل.چه دانه،بلکه هم په دې کښې به یو بچې واجب وی.ابویوسف رحمه الله فرمائی.ما اووئیل.چه په زکاة کښې د یوکال نه کم بچې هم اخستې شی.د ابویوسف رحمه الله مراد داوو.چه په زکاة کښې دپوره یوکال نه کم بچې نشی اخستې.بیادا تاسوولې فرمائې.حضرت امام اعظم رحمه الله چه دا واوریدل،نولږشان سوچ ئې اوکړو.اووې فرمائیل.چه داهم نه،بلکه په بچوکښې به د زکاة په طورهیڅ واجب نه وی.په دې اقوال ثلاثه کښې قول اول امام زفر رحمه الله اختیار کړې دې.اوقول ثانی باندې ابویوسف رحمه الله عمل کړې دې.اوقول ثالث امام محمد رحمه الله اختیارکړو.(عنایه) داخبره دامام صاحب رحمه الله په مناقبوکښې ده.چه په یومجلس کښې ئې دری خبرې اوکړې.اوپه دې کښې یوهم متروک نه دې.

## د واجب شوی نوع د عدم وجود په وخت د زکاة حکم

| وَمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ مِسِنٌّ اوپه چاچې واجب شو مُسن فَلَمْ يُوجَدْ نو بیانئ اونه موندو (ذات دمسن) أَخَذَ الْمُصَدِّقُ أَعْلَى مِنْهَا وَرَدَّ الْفَضْلَ اخلی به زکاة اخستونکښې اعلیٰ ددی نه. واپس کوی به زیاتی أَوْ أَخَذَ دُونَهَا وَأَخَذَ الْفَضْلَ او یادی واخلی کم او وادخلی(قیمت د) زیاتی |
| --- |

**تشریح> عدم وجوه ما یجب>** مسئله داده.چه په زکاة کښې د اوسط درجه څاروے واجب وی.چه نه ډیر کم اونه ډیر زیات. نوکه په چا باندې ،بنت لبون،واجب وی.نوعامل او مصدق (زکاة وصولونکې)به نه داعلیٰ درجه والا بنت لبون اخلی .اونه د ادنیٰ درجه والا.بلکه د دواړو میانه حال به وصول کوی.څکه چه رسول کریمﷺ حضرت معاذ کله دیمن گورنر جوړکړو. اووې ليکلو.نو فرمائیلې ئې وو.(ایاك وکرائم اموالهم) یعنی په زکاة کښې د غوره مال اخستونه ځان ساته.(شرح نقایه)وڅکه چه د اوسط درجه په اخستوکښې د مال مالك اود فقیرانو دواړو رعایت دې.څکه چه د اعلیٰ درجه په اخستلوکښې د مالك مال ضرر او نقصان دې.او په معمولی اخستلوکښې د فقیرانو نقصان دې.

**فقدالواجب ووجوده>** اوس سوال دادې.چه په رب المال باندې کوم څاروې واجب شوې دې.که هغه موجودنه وی.نوڅه اوکړی؟① مثلاً بنت لبون واجب وی.اوبنت لبون دده سره نشته. بلکه حقه ده. ② یا حقه واجب وی.خوموجودنه وی.بلکه بنت لبون موجودوی. ③ یا دوصف په اعتبارسره اوسط درجه والا څاروې موجودنه دې.بلکه داعلیٰ درجه والاڅاروې موجود دې. ④یاد ادنیٰ درجه والاموجوددې.نوپه دې صورتونوکښې به کوم څاروې واجب وی.

**إعطاء القيمة تساوى الواجب وأقلها>** صاحب دقدوری ﷫ فرمائی.چه عامل(زکاة وصول کونکې ) دې اعلیٰ څاروې واخلی.اوزیاتی قمیت دې واپس کړی. ①مثلاً داوسط درجه بنت لبون قیمت زر روپۍ دی.اود اعلیٰ درجه بنت لبون چه د رب المال سره موجود دې.د هغې قیمت پنځلس سوه روپۍ دی.نو عامل دې د اعلیٰ درجه بنت لبون واخلی.اوپنځه سوه روپۍ دې رب المال ته واپس کړی. ②یامثلاً په چاباندې بنت لبون واجب دې.ليکن دده سره بنت لبون څوموجودنه دې.البته حقه موجودده.نوعامل له پکاردی.چه دې حقه واخلی.اودبنت لبون نه زیاتی قیمت واپس کړی. ③ یامثلاً دبنت لبون قیمت زر روپۍ دې.اودحقه قیمت پنځلس سوه روپۍ دې.نوعامل دې حقه واخلی.اوپنځه سوه روپۍ دې رب المال ته واپس کړی. ④ یا دې عامل دادنیٰ درجه څاروېواخلی.او زیاتی (قیمت) دې واخلی.مثلاً داوسط درجه بنت لبون چه کوم په رب المال باندې واجب دې.د هغې قیمت زر روپۍ دې.اود ادنیٰ بنت لبون قیمت اته سوه روپۍ دې.نوعامل دې ادنیٰ درجه والا بنت لبون واخلی.اود زیاتی دې دوه سوه روپۍ واخلی. ⑤یامثلاًپه چاحقه واجب ده.ليکن دده سره حقه خونشته.البته بنت لبون موجودده.اودبنت لبون قیمت زر روپۍ دې.اود حقه قیمت پنځلس سوه روپۍ دې.نوعامل دې بنت لبون واخلی.اود زیاتی دې پنځه سوه روپۍ واخلی.

**الروايتان في من له خيار>** ①د قدوری ذکرشوی عبارت نه ښکاره کیږی.چه په دې باب کښې مصدق اوعامل ته اختیاردې.چه دې اعلیٰ واخلی.اوزیاتی واپس کړی.یا ادنیٰ واخلی.اود زیاتی ترې (قیمت)واخلی. ② خوصحیح داده.چه اختیارهغه چاته دې.په چاچه زکاة واجب دې. څکه چه اختیارهغه کس د سهولت دپاره مشروع شوې دې.په چاچه زکاة واجب شوې دې.

**ما يفهم من تقرير صاحب الهداية >** صاحب دهدایه په دې مقام کښې فرمائیی دی چې په اولنی صورت کښې چه اعلیٰ څاروې یواخلی.د زیاتی واپس کول دی.نومصدق ته اختیاردې.چه دې اعلیٰ وانخلی. بلکه دمالك نه عین واجب یعنی داوسط درجه څاروی مطالبه اوکړی. یامالك داوسط درجه څاروی قیمت ورکړی.

**دليله>** ددې دلیل دادې.چه که مصدق داعلیٰ درجه څاروې واخلی.او زیاتی واپس کړی.نو گویا چه مصدق ددې څاروی یوه حصه اخستې ده.اود اخستو دپاره په چا باندې جبرنشی کیدلې.څکه به په دې

صورت کښې مصدق ته اختیاروی.چه دې اعلی خاروے واخلی.او زیاتی واپس کړی.یاد مالك نه د اوسط درجه څاروی مطالبه اوکړی.نومالك دې د اوسط درجه څاروې ورکړی.یا دې د هغې قیمت ورکړی.

**خیارالمصدق في صورة وجود الأعلي**> اوپه دویم صورت کښې (چه کله مصدق ادنی واخلی اود زیاتی قیمت اخلی)مالك ته اختیاردې.چه دې ادنیٰ درجه څاروې ورکړی.اود زیاتی قیمت ورکړی.اوپه مصدق به جبرکولې شی.چه دې د ادنی درجه څاروې واخلی.اود زیاتی قیمت واخلی.

**دلیله**> ددې دلیل دادې.چه د مصدق ادنیٰ اخستل،اودزیاتی قیت اخستل،دا دمصدق د طرفه هیڅ بیع نه ده. بلکه دمال مالك د قیمت په ذریعه زکاة اداکړې دې.اود قیمت اداکولو په صورت کښې مصدق د دې په اخستلومجبورکولې شی.(عنایه)

## د یو جنس په زکاة کښې د قیمت ورکولوحکم

| وَيَجُوزُدَفْعُ الْقِيَمِ فِي الزَّكَاةِ (١) اوپه زکاة کښې قیمت ورکول دی |
|---|

**تشریح**> **مسئلة أخذ القیمة في زکاة الأجناس**> په تیروشوو صفحوکښې دحیواناتو د زکاة تفصیل ذکرشوې دې.چه په بعضوصورتونوکښې چیلئ واجبیږی.په بعضوکښې بنت مخاض،اوپه بعضوکښې تبیعه واجبیږی . اوس سوال دادې.چه په زکاة کښې کوم څاروې واجب شوېدې. مالك که ددې قیمت ورکړی او زکاة ادا کړی.نو آیا دا جائزدې؟

**جواز الأخذ وأمثاله**> ددې خبرې په جواب کښې صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه زمونږ په نیز په زکاة کښې قیمت ورکول جائزدی.دغه شان په مالی کفاراتوکښې قیمت ورکول جائزدی. ①مثلاً دیمین په کفاره کښې که څوك (په ځائې ددې چه لسو مسکینانوته خوراك ورکړی، یاکپړې واغوستوی) نغد قیمت ورکړی.نوجائزدې. ②اوهم دغه شان په صدقة الفطرکښې غنم یااوربشې وغیره په ځائې ددې قیمت ورکړی.نوجائزدې. ③اوهم دغه شان په عشراونذرکښې قیمت ورکول جائزدی.یعنی دده د زمکې په پیداوارکښې لسمه حصه واجب شوه.ده توله خرڅه کړه.اولسمه حصه قیمت ئې ورکړو.نوجائزدې. ④دغه شان که د اشرفو صدقه کولونذر ئې اوکړو.بیائې ددې په برابردرهم صدقه کړل.نوجائزدې.

**دلیله**> دلیل دادې.چه دالله تعالی﴿وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾ په ذریعه سره فقیرانو ته د زکاة ورکولوامر دوی سره هغه وعده پوره کول دی.کومه وعده چه الله تعالی پوره مخلوق ته درزق رسولو کړې ده.لکه چه ارشاددې.﴿وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا﴾(الایه)یعنی هیڅ څوك نشته د تللو والا په زمکه باندې مگرپه الله ده روزی ده.مطلب دادې.چه په زمکه تللو والا هرساه لرونکې چه ورته درزق حاجت لاحق وی.هغه ته رزق رسول الله تعالی په خپل فضل سره په خپل ځان لازم کړې دی.څومره قدرې روزی چه دده دپاره مقرر ده.هغه به خامخا رسیږی.(اودې لزوم ته لزوم تفضلی وائی)

**الإستدلال من الآیة**>نوبعضوته ئې روزی په دې طریقه اورسوله.چه ددوی دپاره ئې درزق اسباب پیدا کړل.مثلاً زمینداری،لوهاری(اینگری)،ملازمت وغیره.اوبعض داسې دی.چه ددوی دپاره ئې درزق

---

(١) **مذهب الشافعی** :- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په زکاة وغیره کښې د ،ماوجب علیه، (کوم څاروې چه په ده واجب دې) قیمت اداکول جائزنه دی.بلکه هم هغه څاروې دې اداکړی کوم چه په حدیث کښې ذکردې.

اسباب پیدانه کړل.لکه فقیران مسکینان.نودوی ته نې رزق په دې طریقه اوروسولو.چه مالداروته نې حکم ورکړو .چه دوی دالله تعالی په ورکړې شوی مال کښې څلویښتمه حصه دې فقیرانو او مسکینانو ته ورکړی.په حدیث کښې دی.(خذوا من اغنیاءهم وتردوا الی فقراءهم)او دالله تعالی ارشاددې.﴿إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ﴾(الایه) او دالله تعالی قول﴿وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾ دې.نوثابت شو.چه د زکاة مقصدفقیرانوته د دوی موعود(وعده کړې شوې) رزق رسول دی.او رزق په چیلو،غواګانو،او اوښانو وغیره څاروو کښې منحصر نه دې.بلکه دانسان ډیرحاجتونه اوضرورتونه دی.چه داپه دې څاروونه پوره کیږی.څکه دچیلو قید لګول باطل دی.یعنی په خاص طوردچیلو وغیره ورکولوقید نشته.بلکه که ددې قیمت ورکړې شو.نوهم جائزدې.لکه چه په جزیه کښې دقیمت اداکول جائزدی.

**(المعتبرقیمة البلد ویوم الأداء)** دادې په ذهن کښې وی.چه قیمت د اداکولود ورځې معتبردې.اود هغه ښار معتبردې.کوم ځائې کښې چه مال دې.اوکه په ځنګل کښې وی.نوهغه قیمت دې ورکړی.کوم قیمت چه هلته کښې نیزدې آبادئ کښې د داسې څارو وی.

**په کوموڅاروو کښې زکاة نشته؟**

| وَلَيْسَ فِي الْعَوَامِلِ وَالْحَوَامِلِ وَالْعَلُوفَةِ زَكَاةٌ[1] اونشته زکاة په کارکونکو او باروړونکو اوپه کور کښې وابنه خوړونکو کښې |
|---|

**تشریح> تعریف العوامل والحوامل>** عوامل، دعامله جمع ده.هغه څاروې چه دکار دپاره وی.حوامل، د حامله جمع ده.چه دسامان وغیره بارکولودپاره وی.علوفه،هغه څاروې چه ټول کال یا دکال زیات حصه کښې،اوپه قول دصاحب دهدایه رحمه الله یا نیم کال تړلی وی.اوخوراك ورکړې شوې وی.

**عدم وجوب الزکاة فیها >** ①په دې څاروو کښې زمونږ او دشوافعو رحمهم الله په نیززکاة نشته.

**دلائله >** دلیل دادې① چه حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل.چه د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.(لیس فی الابل العوامل صدقة) ([2]) یعنی په بار اوړنکواوښانو کښې زکاة نشته.

②اوحدیث ابن عباس عن النبی ﷺ دې.(لیس فی البقر المثیرة صدقة) یعنی په ایوه کونکی غوایانو کښې زکاة نشته.

③چه د زکاة دوجوب سبب دمال نامی کیدل دی.اودامالونه نامی نه دی.څکه چه دنماء دلیل څاروې په مباحوځنګلونوکښې څرول دی.

یادا دتجارت دپاره ساتل دی.اوپه عوامل اوحوامل کښې اوپه علوفه کښې چونکه په دواړه خبرو کښې یوه هم موجودنه ده.په دې وجه د زکاة دوجوب سبب منتفی شو.اوهرکله چه سبب منتفی شو.نوزکاة به هم منتفی شی.

---

[1]) مذهب مالك رحمه الله:- په زیر بحث مسئله کښې دامام مالك رحمه الله په نیز زکاة شته.

[2]) خرجه الزیلعی رحمه الله هذا ا للفظ ثم اخرج روایة عن ابن عباس رضی الله عنهما وعزاه الی معجم الطبرانی وسنن دارقطنی والکامل لابن عدی (۳۴/۴) ثم اخرج فی المثیرة حدیث جابر رضی الله عنه ان النبی ﷺ قال لیس فی المثیرة صدقة وعزاه الی سنن دارقطنی.نصب الرایة ۳۶۸/۲-

## مصدق به درمیانه څاروي اخلي

وَلَا يَأْخُذُ الْمُصَدِّقُ خِيَارَ الْمَالِ وَلَا رَذَالَتَهُ وَيَأْخُذُ الْوَسَطَ اونه به اخلي مصدق عمده مال اونه بې کاره بلکه داوسط درجې به اخلي

**تشريح>** **أخذ الوسط في صدقة السوائم>** مسئله داده.چه مصدق یعنی زکاة وصول کونکې به نه په اعلی درجه مال اخستلوباندې اصرارکوی.اونه به بالکل ردی اومعمولي مال اخلي.بلکه درمیانه درجه والا مال به اخلي.یعنی چه داعلی مال نه ادنیٰ وی.اود ادنیٰ مال نه اعلیٰ وی.

**دلائله>** ①دلیل د نبی ﷺ قول(لاتأخذ من حزرات) (۱)دې.حزرات،حزرة جمع ده.معنیٰ ئې ده اعلی او بهترین مال،حواشي،دحاشیه جمع ده. علامه مرغیناني رحمه الله د حاشیه تفسیر په وسط سره کړې دې.اوس به مطلب دا وی.چه رسول الله ﷺ داعلی درجه مال اخستلو نه منع فرمائیلې ده.اود درمیانه درجه مال اخستلوحکم ئې فرمائیلې دې

②عقلي دلیل دادې.چه داوسط درجه مال اخستلوکښې د زکاة ورکونکی اود فقیر دواړو رعایت دې.اوپه ښه مال اخستلوکښې صرف دفقیرانو رعایت دې.اوپه بې کاره مال اخستلو کښې صرف د زکاة ورکونکی رعایت دې.نود دواړو درعایت په نظرسره اوسط درجه مال اخستلو امر شوې دې.

## دکال په مینځ کښې د مستفاد مال زکاة

وَمَنْ كَانَ لَهُ نِصَابٌ فَاسْتَفَادَ فِي أَثْنَاءِ الْحَوْلِ مِنْ جِنْسِهِ دچاسره یونصاب وو اودکال په درمیان کښې ددغې پشان نور مال ورسره حاصل کړی فَضَمَّهُ إِلَيْهِ وَزَكَّاهُ بِهِ نودغه به د هغې سره یوځائې کړی زکاة به ئې ورکړی

**تشريح>** **نوعان لمال المستفاد في السوائم>**صورت دمسئلې دادې.چه دیوکس سره دیومال یونصاب وی.مثلاً داوښانو نصاب دې.بیادکال په مینځ کښې څه مال نورهم حاصل شو.نو ددې مستفاد(حاصل شوی) مال دوه قسمونه دی. ①یاخوبه دا داصلي یعنی داوښانوجنس وی. ② اویابه دغیرجنس څیزوی.مثلاً دده سره د اوښانونصاب دې.اودکال په مینځ کښې غواګانې یاچیلۍ حاصلې شوې.

**حكم الصورة الثانية>** نوپه دې دویم صورت کښې په اتفاق سره مال مستفاد اصل سره نشی ملاویدلې .بلکه په مال مستفاد به څانله د سرنه دحولان حول اعتباروی. (۲)

**تقسيم الصورة الاولي إلي صورتين>** اوکه اولنې صورت دې.یعنی مال مستفاد د اصل مال د جنس څخه دې.نوددې هم دوه صورتونه دی. ①څکه چه مال مستفاد به یاهم اصل حاصل شوې وی.مثلاً بچی اومنافع ②او یابه دسبب مقصود نه حاصل شوې وی.

**حكم الصورة الأولي>**نوپه اول صورت کښې بالاجماع مال مستفاد داصل سره ملاوولې شی.اود اصل

---

(۱) خرجه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن عروة عن ابيه ان النبي ﷺ قال لمصدقه ((لاتاخذ من حزرات انفس الناس شيا خذ الشارف والبكر وذوات العيب وعزاه إلى سنن الكبرى للبيهقي (۱۷۱/٤ رقم ۷۳۱۰)_

(۲) **مذهب الشافعي في حكم الصورة الثانية>**امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه په مال مستفاد کښې دزکاة د وجوب دپاره په مال مستفاد باندې دسرنه کال تیریدل شرط دی.اوددې ابتداء دمالك کیدلو د وخت نه کیږي.نوکله چه په مال مستفاد باندې پوره یوکال تیرشی.نوپه دې کښې به زکاة واجب وی.مال مستفاد که دنصاب په اندازه وی اوکه نه وی.

نصاب کال به دمال مستفاد کال شمارلےشی.دمال مستفاد دپاره دوباره دسرنه دحولان حول ضرورت نشته .

**حکم الصورة الثانية** ﴿ ②اوکه دویم صورت دې.مثلاًدچا سره داوښانونصاب دې.اودکال په مینځ کښې څه نور اوښان مستفاد شو.لیکن ددې دحاصلولوسبب اخستل دی،یاهبه ده،یامیراث دې.یعنی ده په مینځ کښې نوراوښان واخستل،یاچا ده ته هبه کړل،یاپه میراث کښې ملاؤشو.نوپه دې صورت کښې زمونږ په نیزمال مستفاد داصل نصاب سره ملاوولې شی. اوپه اصل نصاب چه کال تیرشی.نود(اصل نصاب اومال مستفاد)پوره مال زکاة به واجب وی.په مال مستفاد باندې دسرنه حولان حول شرط نه دې.بلکه په اصل مال باندې دکال تیریدل کافی دی.

**دليله** ﴿ دلیل دادې.چه په اولاد اومنافع کښې د اصل سره د ملاویدلو علت هم دا جنسیت دې.یعنی اولاد هم چونکه ددې دجنس څخےدې.په مال مستفاد کښې فرق کول مشکل دی. ځکه چه د مال مستفاد وجود د کثرت اسباب په وجه سره ډیرزیات دې.په دې وجه د هرمستفاد دپاره د خانله کال تیرولو اعتبار کول ډیرمشکل دی.مثلاً دیوکس سره دچیلو نصاب دې.دځوورځوتیریدلونه پس څه چیلو بچی راوړل.بیاڅو ورځې پس ئې نورې چیلۍ واخستلې.بیا یوڅو ورځې پس څه نوروچیلو بچی راوړل.اوس ددې نه پس دچیلوپه اصل نصاب باندې کال تیرشو.خوپه مینځ کښې په مختلفو وختونو کښې چه کومې چیلۍ مستفادشوې.په دې به حولان حول په یووخت کښې نه وی.بلکه پرله پسےپه په مختلفو وختونوکښې کال پوره کیږی.اوس دهرهر مستفاد دپاره خانله خانله دکال تیریدلو اعتبار کول، او فرق کول چه په کومو باندې کله تیرشو.ډیرګران کاردې.خاص طورباندې کله چه دچاسره د درهمو نصاب وی.او دې دکاندار وی.اوهره ورځ ده ته یودرهم حاصلیږی.نواوس دهرې ورځې حاصل شوې درې هموباندې خانله خانله دکال پوره کیدلواعتبارکول ډیرمشکل کاردې.اودحولان حول شرط آسانتیا پیدا کولودپاره دې.نوکه د هرهر مال مستفاد دپاره دنوی حول شرط اولګولې شی.نودا آسانتیا به په سختۍ کښې بدل شی.په دې وجه مونږ اووئیلې.چه مال مستفاد که داصل جنس څخے وی. نومال مستفاد به داصل تابع وی.اوپه اصل نصاب باندې دکال تیریدل به په مال مستفاد باندې هم کال تیریدل شمارلې شی.نوپه اصل نصاب باندې دکال تیریدلو نه پس به په پوره مال زکاة واجب وی. که دا اصل نصاب وی.اوکه مال مستفاد وی.

> **اَلسَّائِمَةُ هِيَ الَّتِي تَكْتَفِي بِالرَّعْيِ فِي أَكْثَرِ الْحَوْلِ** بیا سائمه هغه ده چې دکال اکثره حصه په پهرځریدو باندې اکتفاء کوی **فَإِنْ عَلَفَهَا نِصْفَ الْحَوْلِ أَوْ أَكْثَرَ فَلَا زَكَاةَ فِيهَا** نو که نیم کال یا زیات ئې په کور کښې خوراك کولو نوپه دې کښې زکاة نشته

**تشريح** ﴿ **تعريف السائمة** ﴿صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه سائمه هغه څاروی ته وائی.چه دکال په اکثره حصه باندې پائی.نوکه نیم کال یا اکثرکال په ترلوخوراك ورکړې شو. نودې ته به علوفه وئیلې شی.داکثرکال په صورت کښې خوپه علوفه ځکه وی.چه قلیل دکثیرتابع وی.نوهرکله چه دکال په اکثره حصه کښې دې ته په ترلوخوراك ورکړې شوې دې.نودکال هغه قلیله موده چه په هغې کښې ئې په څرن اکتفاء کړې ده.هغه به هم ددې کثیرتابع وی. نوګویاچه پوره کال دې ته په ترلوګیا ورکړې شوې ده.اود نیم کال په صورت کښې د زکاة دوجوب د سبب په ثبوت کښې شك شو.په دې طریقه چه که په دې نیم کال باندې نظر اوکړې شی.چه په دې کښې ده په څرن اکتفاء کړې ده.نوزکاة واجب کیدل

پکاردی.اوکه په هغه نیم کال باندې نظراوکړې شي.چه په هغې کښې دې ته په کورکښې په ترلوګیاورکړې شوې ده.نوزکاة واجب کیدل نه دی پکار.نوددې شک په وجه عدم وجوب ته ترجیح ورکړې شوه.او اووئیلې شو.چه نیم کال په ترلو دخوراك ورکولوپه صورت کښې به هم داخاروې علوفه وی.اوپه دې کښې به زکاة واجب نه وی.

## په عفو کښې د زکاة حکم

| |
|---|
| وَالزَّكَاةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ فِي النِّصَابِ دُونَ الْعَفْوِ[1] وزکاة دشیخینو رحمهما الله په نزد په نصاب کښې دی نه که په عفو کښې |

**تشریح** > **الفرق بین النصاب والأصل** > دمسئلې دوضاحت نه مخکښې داپه ذهن کښې کینوئ.چه دمال یو نصاب وی.اویو عفو وی.مثلاً په پنځه اوښانوکښې یوه چیلۍ واجبیږی.اوتر نهو پورې هم یوه چیلۍ واجب وی. کله چه پوره لس اوښان شی.نوپه دې کښې به دوه چیلۍ واجب وی.نوپنځه اوښان اولس اوښان نصاب دې.لیکن په مینځ کښې دشپږونه ترنهوپورې عفوده.دغه شان مثلاً په پنځه ویشتو اوښانوکښې بنت مخاض او په شپږدیرشوکښې بنت لبون دې.اوددې دواړو په مینځ کښې عفوده.

**المذهبان في وجوب الزكاة في العفو** > اوس په دې باره اختلاف دې.چه د زکاة تعلق دعفوسره وی اوکه نه
① نوامام ابوحنیفه اوامام ابویوسف رحمهما الله فرمائی.چه د زکاة تعلق دنصاب سره وی.دعفوسره نه وی.هم داقول د امام مالك،امام احمد،اواما شافعي رحمه الله دې.خودا د امام شافعي رحمه الله قول جدیددې.

**دلائلهما** > ① دشیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه رسول اکرم ﷺ فرمائیلی دی.چه **فی خمس من الإبل السائمة شاة وليس في الزيادة شيء حتى يبلغ عشرا**[2] یعنی په ځنګل کښې څریدونکو پنځو اوښانو کښې یوه چیلۍ واجب ده.اوپه زیاتی کښې هیڅ نشته.تردې چه لس شی.ددې حدیث نه صفا ښکاره ده.چه د پنځواوښانو او دلسواوښانوچه کوم نصاب دې.په دې کښې زکاة واجب دې.اودپنځه اود لسوپه مینځ کښې څلور اوښان کوم ته چه عفووائی.په دې کښې زکاة واجب نه دې.دغه شان په هرنصاب کښې د عفونه دوجوب نفی فرمائیلې شوې ده.دې نه معلومه شوه.چه د زکاة تعلق دنصاب سره وی.دعفوسره نه وی.
② عقلی دلیل دادې.چه عفو،چونکه دنصاب دوجود نه پس ثابتیږی.ځکه به عفودنصاب تابع وی. او کوم خاني چه مال،په اصل او تابع باندې مشتمل وی.اوبیا دهغې نه څه هلاك شی.نوهلاك شوې مال تابع طرف ته ګرځولې شی.داصل طرف ته نشی ګرځولې.یعنی دابه وئیلې شی.چه هلاك شوې هغه مال دې. کوم چه تابع دې.هغه مال نه دې هلاك،کوم چه اصل دې.

**نظیره** > لکه ځنګه چه په مال مضاربت کښې نفع،یعنی یوکس چاته شرکت مضاربت باندې د تجارت مال ورکړو.اوپه دې کښې نفع اوشوه.مضارب برابرتجارت کولو.چه اچانك څه مال هلاك شو.نودا نقصان په اتفاق سره په رومبئ نفع باندې اچولې شی.په رؤس المال باندې نشی اچولې.یعنی وئیلې شی.چه نفع هلاك شوې ده.رؤس المال نه دې هلاك شوې.

---

[1] القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا في التاتارخانية (۲\۲۹۲) والهندية (۱\۱۸۰) والفقه الإسلامي وادلته (۲\۸۵۹) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۷۰)-

[2] خرجه الزيلعي رحمه الله هذا اللفظ ثم ذكرقول ابن الجوزي رحمه الله في بالتحقيق، انه قال روى هذا الحديث قاضي ابويعلى وابواسحاق الشيرازي في كتابيهما ان النبي ﷺ قال ((في خمس من الإبل شاة ولا شيء من الزيادة حتى تبلغ عشراً) نصب الراية (۲/۳۷۱)-

وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ تَجِبُ فِيهِمَا امام محمد اوزفر رحمهما الله فرمائي چې په دواړو کښې دی

تشریح ﴿مذهب محمد﴾ امام محمد اوامام زفر رحمهما الله فرمائی.چه زکاة په نصاب اوعفودواړو کښې شته.مثلاً دڅلوېښتو غواګانو نه زیاتې وی.نوپه دې کښې یوه چیلۍ واجب ده.خودشیخینو رحمهما الله په نیزدا یوه چیلۍ دپنځواوښانو دطرفه زکاة دې.اوباقی څلوراوښان عفودی.ددې سره د زکاة هډوڅه تعلق نشته.اود امام محمداو امام زفر رحمهما الله په نیزداچیلۍ دنهه اوښانوزکاة دې.

دلیلهما ﴿دامام محمد او امام زفر رحمهما الله دلیل دادې.چه زکاة دمال دنعمت شکر ادا کولو دپاره واجب شوې دې.اومال ټول په ټوله که عفووی اوکه نصاب،نعمت دې.لهذا د زکاة تعلق به پوره مال سره وی.اود زکاة چه کوم مقدار واجب شوې دې.دا دټول مال شکرانه ده.

تائید مذهب محمد رحمه الله ﴿ددې تائید دصدیق اکبر رضی الله عنه د زکاة ارشاداتو نه هم کیږی.ځکه چه دصدیق اکبر رضی الله عنه په فرمان کښې دی.(اذا بلغت خمس وعشرين الى خمس وثلاثين ففيها بنت مخاض)یعنی اوښان چه کله پنځه ویشتو ته اورسی.نود پنځه دیرشوپورې یوبنت مخاض دې. دې نه معلومه شوه.چه بنت مخاض دپنځه دیرشو اوښانو دطرفه زکاة دې.حالانکه په دې کښې پنځه ویشت اوښانوته نصاب وائی.اوباقی لسو اوښانوته عفو وائی.دغه شان ئې اوفرمائیل. چه په چیلوکښې د څلوېښتونه ترشپږشلو پورې کښې یوه چیلۍ ده.اوکله چه په شپږشلو باندې زیاتی شی.نوتر دوه سوه پورې دوه چیلۍ دی.بیاچه کله په دوه سوه باندې زیاتی شی.نوتر درې سوه پورې کښې درې چیلۍ دی.ددې نه هم ثابتیږی.چه زکاة په نصاب اوعفو دواړو کښې وی.صرف په نصاب کښې نه وی.

ثمرة الإختلاف فيضوء المثالين﴾ داختلاف ثمره به په دې مثال کښې ښکاره کیږی. ①چه دیوکس په ملك کښې نهه اوښان دی.اوپه دې یوکال تیرشو.بیا ددې نه څلور اوښان هلاك شو.نو دشیخینو رحمهما الله په نیزباقی پنځوکښې به په ده هم یوه چیلۍ واجب وی.اود امام محمداو امام زفر رحمهما الله په نیزبه دچیلۍ دقیمت نهه حصې کولې شی.اوپنځه حصې به په ده واجب وی.اوڅلورحصې به ساقط شی. ②یا مثلاً دیوکس په ملك کښې اتیا چیلۍ دی.دکال تیریدلو نه پس په دې کښې یوه چیلۍ واجبیږی.لیکن دحولان حول نه پس څلوېښت چیلۍ هلاکې شوې.نود شیخینو رحمهما الله په نیزباقی څلوېښت چیلۍ پوره نصاب دې.په دې کښې چه کومه یوه چیلۍ واجب وه.هم هغه به واجب وی.اود امام محمداو امام زفر رحمهما الله په نیزچونکه د زکاة تعلق دنصاب اوعفو دواړو سره وی.نوګویا ددوی په نیزیوه چیلۍ په اتیا چیلوکښې واجب شوه.او دحولان حول نه پس نیمې چیلۍ هلاکې شوې.نوددې دمقدار مطابق به نیم واجب هم ساقط شی.یعنی په ده به دچیلۍ نیم قیمت واجب وی.اونیم به ساقط شی.

## د زکاة د وجوب نه پس د مال هلاکت

وَإِنْ هَلَكَ الْمَالُ بَعْدَ وُجُوبِ الزَّكَاةِ اوکه هلاك شو مال بعد دوجوب د زکاة نه سَقَطَتْ نوزکاة به ساقط شی.( )

[1] ) مذهب الشافعي رحمه الله:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه که په زکاة اداکولوباندې دقدرت لرلو نه پس مال هلاك شو.نوزکاة به نه ساقطیږی.بلکه د زکاة په اندازه به په ده باندې ضمان واجب وی.او په زکاة اداکولوباندې قدرت دادې.چه صاحب دمال دحولان حول نه پس د زکاة مستحق موندونکی باندې کامیاب شوې وی. که دطلب نه پس کامیاب شوې وی.اوکه د طلب نه بغیر.

**تشریح** > **صورة المسئلة** > صورت د مسئلے دادي.چه د زکاة د وجوب نه پس مال بغیرد تعدی نه هلاك شي.
**حکم سقوط الزکاة** > نو زکاة هم ساقط شو.هم دا قول د امام محمد رحمه الله دي.
**دلیله** > دلیل دادي.چه زکاة په ذمه واجب نه وي.بلکه په عین مال کښې واجب وي.یعنی زکاة دنصاب یوجزء دي.ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه**في كل أربعين شاة شاة** په دې قول کښې د «في» کلمه ده.اوکلمه د «في» په جزئیت باندې دلالت کوی.یعنی په څلوېښتو چیلوکښې یوه چیلۍ ده.ددې دامطلب هرګز نه دی.چه دڅلوېښتو چیلوزکاة دادي.چه یوه چیلۍ ددې نه علاوه ورکړې.بلکه مطلب دادي.چه هم ددې څلوېښتونه یوه چیلۍ چه هم ددې څلوېښتوچیلو جزء دي.هم دا ورکړه.اود نصاب یوجزء زکاة مقررکول د آسانۍ دپاره دی. ځکه چه د نصاب یوجزء اوښکل، د انسان په قدرت کښې وی.بهرحال داخبره ثابته شوه.چه زکاة د مال نصاب یوجزء دي.اوداجزء په خپله مال کښې موجود دي.نودا جزء دخپل ځائې په هلاکیدلو سره ساقط شو.ځکه چه هرکله ټول مال هلاك شو.نودا کس ددې جزء په اوښکلو باندې قادرپاتې نشو.اوهرکله چه قادر پاتې نشو.نوپه ده به واجب هم نه وي. بلکه ساقط به وی.

**نظیره**>او دا بالکل داسې ده.لکه چه دیوکس غلام څوك په خطا سره قتل کړی.نوداحکم دی.چه قاتل غلام دې د مقتول ولی ته ورکړې شی.یا دې ددې فدیه ورکړې شی.اومالك دا منظورهم کړی.بیاد سپارلو نه مخکښې هغه قاتل غلام مرشو.نو اوس داورکول ساقط شو.یعنی په مالك به هیڅ څیز واجب نه وی. نو هرکله چه داثابت شو.چه زکاة په ذمه واجب نه وی.بلکه په عین مال کښې واجب وی.اوصدقة الفطر وغیره په ذمه واجب وی.نو زکاة په صدقة الفطر وغیره باندې قیاس کول ټیك نه دی.

**حکم الضمان في صورة طلب الزکاة**>پاتې شوه داخبره چه که ساعی، یعنی زکاة وصول کونکی زکاة اوغوښتلو.او مالك ورنکړو.تردې چه پوره مال هلاك شو. نو شیخ ابوالحسن کرخی رحمه الله فرمائی.چه داکس به د زکاة ضامن وی.تردې چه هرکله ده ته مال په لاس راشی.نودا تاوان به اداکوی.

**دلیله** >دشیخ ابوالحسن کرخی رحمه الله دلیل دادي.چه ساعی چونکه د زکاة وصول کولو دپاره متعین دي.دده دغوښتلو باوجود ده منع کړو.نودده دامنع کول به فوت کول او هلاکول وی.د فوت کولواو هلاکولو په صورت کښې چونکه د زکاة ضمان راځی.په دې وجه په دې صورت کښې به په ده د زکاة تاوان واجب وی.

**مذهب الثاني**> په زیر بحث صورت کښې مشائخ رحمهم الله د ماوراء النهر فرمائی.چه ضامن به نه وی.

**دلیله** >د ماوراء النهرد مشائخو رحمهم الله دلیل دادي.چه زکاة دورکولو نه منع کول تفویت (فوت کول) نه دي.ځکه ممکن ده.چه دده منع کول په بل څه ځائې کښې دورکولوپه اراده وی.نو هرکله چه زکاة دورکولو نه منع کول تفویت نه دي.نودې به ضامن هم نه وی.

**سقوط الزکاة في صورة هلاك البعض**> صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی. که بعض مال هلاك شو.اوڅه باقی دي.نود هلاك شوی به زکاة ساقط شی.اوپه باقی کښې به زکاة واجب وی. ځکه چه بعض به په کل قیاس کولې شی.نوهرکله چه دکل مال هلاکیدلو په صورت کښې پوره زکاة ساقطیږی.نود بعض مال هلاکیدلو په صورت کښې به هم ددې په اندازه زکاة ساقطیږی.

دوه الدې نه د زکاة ورکولو حکم

وَإِنْ قَدَّمَ الزَّكَاةَ عَلَى الْحَوْلِ وَهُوَ مَالِكٌ لِلنِّصَابِ جَازَ که دکال نه مخکښې ئې زکاة ورکړو داسې حال کښې چې دی مالك دنصاب وو نوداهم جائز دی (١)

تشريح > جواز تقديم الزكاة > ①مسئله داده.چه دنصاب مالك له دحولان حول نه وړاندې زکاة اد کول جائزدی.هم دا دامام شافعي او امام محمد رحمه الله قول دې.

دليله > دليل دادې.چه يوکس سبب دوجوب(نصاب) نه پس زکاة اداکړې دې. اود وجوب دسبب نه پس اداکول جائزدی.لکه چه يوکس يومسلمان په خطاء سره په ګولۍ اولی.او داسې ئې ذخمی کړی.چه د ژوند اميد ئې پاتې نشی.نوپه قتل خطاء کښې يوغلام آزادول پکار دی. خوکه داني د مجروح دمرګ نه وړاندې آذاد کړو نوجائزدی.ځکه چه دقتل سبب موندلې شوې دې.دغه شان که چاپه اول وخت کښې مونځ اداکړو.نوجائزدې.ځکه چه مونځ دسبب يعنې د وخت نه پس اوشو.

جواز تقديم زكاة الاكثرمن عام واحد> صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلی دی.چه ديوکال نه په زياتو باندې هم زکاة مقدم کول جائزدی.يعنی که څوك سړے دڅوکالو زکاة وړاندې ورکړی.نوپه دې کښې هيڅ باك نشته.ځکه چه سبب يعنی نصاب کامل موجوددې.

دليله>حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائيلی دی.چه نبی کريم ﷺ دحضرت عباس رضي الله عنه نه د دوه کالو زکاة وړاندې قبول کړې وو.ددې حديث نه هم ښکاره کيږی.چه دڅوکالوزکاة وړاندې ورکولو کښې هيڅ باك نشته دې.

دسپينو زرو د زکاة بيان

## بَابُ زَكَاةِ الْفِضَّةِ

دا باب دسپينو زرو دزكاة په بيان کښې

لَيْسَ فِيمَا دُونَ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ صَدَقَةٌ ددوه سوه درهمو نه په کموکښې زکاة نشته دی فَإِذَا كَانَتْ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ نوهرکله چې دوه سوه درهمه وی اويوکال پری تير شی فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ نوپه دغه کښې پنځه درهمه دی

تشريح> الربط بما قبله> دعربو په نيزسائمه څاروی چونکه قيمتی مال شمارلی شی.په دې وجه دامقدم کړې شو.اوس ددې د بيان نه د فارغيدو نه پس د نورو مالونو د زکاة ذکردې.

وجه تقديم الفضة على الذهب>د سپينو زرو زکاة وړاندې بيان شوې دې.اود سروزرو روسته.ځکه چه د رسول الله ﷺ په فرمان کښې د سپينو زرود زکاة ذکر وړاندې دې.او دسرو زرو د زکاة روسته.دويمه وجه دا ده.چه سپين زرچونکه هرچا سره ملاويږی.په دې وجه ئې دا مقدم کړو.

معنى الأوقية> اوقيه، د وقايه نه ماخوذ دې.دده معنی ده حفاظت کول.اوقيه چونکه دخپل مالك دفقيرئ او محتاجئ نه حفاظت کوی.په دې وجه دې ته اوقيه ونيلې شی.ددې جمع اواق راځی.يو اوقيه د څلويښت درهمو وی.

---

١) مذهب مالك رحمه الله:- اود امام مالك رحمه الله په نيز جائز نه دې.

**عدم وجوب الزكاة في اقل من مائتي درهم** > علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه د سپینو زرو نصاب دوه سوه درهمه دی.د دوه سوه درهمو نه په کم کښې زکاة واجب نه دې.

**دليله** > دنبی کریم ﷺ ارشاد دی چې دپنځو اوقیو نه په کموکښې زکاة نشته (۱) **وَالْأُوقِيَّةُ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا** (۲) اویوه اوقیه څلویښت درهمه ده

**وجوب الزكاة في مائتي درهم** > خوکه سپین زر دوه سوه درهمه وی.اوپه دې کال هم تیرشوې وی.نوپه دې کښې به د پنځو درهمو برابرسپین زر واجب وی.

**دليله** > دلیل دادې.چه رسول الله ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه ته لیکلی وو.چه دهردوه سوه درهمو نه پنځه درهمه اخله.اود شلومثقالو نه نیم مثقال اخله. (۳)

## د دوو سوو روپوله په زیاتوکښې زکاة

| وَلَا شَيْءَ فِي الزِّيَادَةِ حَتَّى تَبْلُغَ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا اوپه زیاتی کښې هیڅ نشته دی تردی چې څلویښتوته اورسی فَيَكُونُ فِيهَا دِرْهَمٌ نو په څلویښتو کښې به یو درهم وی ثُمَّ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (۴) بیا په هرو څلویښتو کښې به یودرهم وی.دا امام ابوحنیفه رحمه الله په نزدده |
|---|

**تشريح** > **زكاة الزائد على النصاب** > ① صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه که په دوه سوه درهمو باندې زیاتوالې اوشی.نوپه زیاتوالی کښې به زکاة واجب نه وی.خوکه دزیاتوالی مقدار څلویښتو درهموته اورسی. (نوبیا به پکښې زکاة واجب وی) نوکه دوه سوه څلویښت درهمه شی.نوپه دې کښې به شپږ درهمه واجب وی.بیابه په هرڅلویښتوباندې یو درهم واجب وی.دا دحضرت امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې.

**دلائله** > ①د ابوحنیفه رحمه الله ①دلیل دادې.چه رسول الله ﷺ حضرت معاذ رضی الله عنه کله دیمن ګورنر جوړ کړو .اولیګلې ئې وو.نوفرمائیلی ئې وو. «لاتأخذ من الكسور شيئا» (۵) یعنی په کسرونوکښې څه مه اخله. بلکه په څلویښتوباندې یو درهم پوره اخله.او دڅلویښتونه کم چونکه کسر وی.په دې وجه د څلویښتو نه په کم کښې نیمه، دریمه وغیره هیڅ مه اخله.

②دویم دلیل دعمرو بن حزم رضی الله عنه حدیث دې.چه «ليس فيما دون الأربعين صدقة» (۶)یعنی دڅلویښتونه په کم کښې زکاة نشته.بلکه په څلویښتودرهموکښې یو درهم دې. دا خیال ساتل پکاردی.چه داحکم د دوه سوه درهمو نه پس دې.یعنی د دوه سوه درهمونه پس د څلویښتو درهمونه په کم کښې زکاة

---

۱ ) من حديث أبي سعيدالخدري رضی الله عنه اخرجه البخاری في الزكاة باب ۴۲ رقم ۱۴۵۹ ومسلم في الزكاة رقم ۱-۵ وابوداود في الزكاة باب ۲ رقم ۱۵۵۸)

۲ ) قال الزيلعي رحمه الله يحتمل أن يكون هذا من تمام الحديث ويحتمل ان يكون من كلام المصنف رحمه الله (نصب الراية ۳۷۳/۲)_

۳ ) اخرجه الدارقطني في سننه (۹۵/۲)_

۴ ) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(۱۶۰\۲) والدرالمختار(۳۴\۲) والهندية (۱۷۹\۱) والفقه الإسلامي وأدلته (۷۶۶\۲) نقلا عن القول الراجح (۱۷۱\۱)_

۵ ) اخرجه الدارقطني في سننه (۹۳/۲)_

۶ ) عزاه الزيلعي إلى ،احكام عبدالحق، ثم ذكرعدم عزو عبدالحق هذا الحديث إلى أحد( نصب الراية ۳۷۷/۲)_

نشته.البته په څلویښتودرهمو کښې زکاة شته دې. څکه د دوه سوه درهمونه وراندې نه په څلویښتو درهمو کښې زکاة شته.اونه دڅلویښتونه په کموکښې زکاة شته دې.

**التعارض بين الحديثين>** پاتې شودا سوال،چه دعمروبن حزم‌ؓ حديث، دعلي‌ؓ دحديث(فإذا زاد على المأتين) معارض شو.څکه چه دعلي‌ؓ په حديث کښې دی.چه په مطلقاً زياتوالی کښې زکاة واجب دې.اود عمروبن حزم‌ؓ په حديث کښې دی.چه که په دوه سوه درهموڅلويښت
درهمه زياتی شو.نوپه زياتوالی کښې زکاة واجب دې.گنی نه دې.

**الجواب>** ددې جواب دادې.چه په دې دواړو حديثونوکښې تعارض نشته.څکه چه دعلي‌ؓ په حديث کښې کـه دا احتمال دې.چه مطلقاً زياتوالےمراددې.نودا احتمال هم شته.چه په دوه سوه باندې دزياتوالی نه مراد د څلویښتو درهمو زياتوالےدې.نود دويم احتمال اخستلو په صورت کښې په دواړو روايتونوکښې هيڅ تعارض نه پاتې کيږي.

②عقلی دليل دادې.چه حرج خوشرعاً لرې شوې دې.حالانکه په کسورو کښې د زکاة په وجوب کښې دا حرج موجوددې.څکه چه دکسورو په حساب باندې پوهيدل متعذر دی. مثلاً ديوکس په ملک کښې دوه سوه او اوه درهمه دی.اود صاحبينو ؒ په نيز په ده باندې د دوه سوه درهموپنځه درهمه،اود اوه درهمو زکاة، د يودرهم په څلويښتوتکرو کښې اوه تکرې واجب دی. نوچه زکاة اوباسی.دده سره به د يودرهم ۳۳ تکرې ،او يودپاسه دوه سوه درهمه باقی پاتې شی.که په دې دويم کال تيرشو.نوپه دوه سوه درهموکښې به پنځه درهمه واجب وی.اوپه يو درهم کښې به ددې څلويښتمه حصه واجب وی.اوپه ۳۳ تکروکښې به ددې څلويښتمه حصه واجب وی.اوس تاسو غور اوکړئ.چه د ۳۳ تکرو حساب لګول،او ددې څلويښتمه حصه اوښکل څومره گران دی.بلکه زمونږ په شان خلقو دپاره نـاممکن دی.نود هغه ان پړو(جتو) خلقو به څه حال وی.چه دسلونه بره شميرهم نه ورځی. حضرت امام ابوحنيفه ؒ هم ددې حرج او مشکلات لرې کولودپاره فرمائيلي دی.چه په کسوروکښې به زکاة واجب نه وی.بلکه په دوه سوه باندې که څلويښت درهمه زياتی شو.نوپه دې کښې به زکاة واجب وی.

| وَقَالَ ابويوسف ومحمد : مَا زَادَ عَلَى الْمِائَتَيْنِ صاحبين ؒ فرمائی چې کوم په دوه سوه زيات شی فَزَكَاتُهُ بِحِسَابِهِ نوپه دغه حساب ئی زکاة دی |
|---|

**التشريح> مذهب الصاحبين>** صاحبين فرمائی.چه مطلقاً په زياتوالی کښې زکاة واجب دې.که دا زياتوالےکم وی اوکه ډير.نوکه په دوه سوه درهموباندې يو درهم زياتی شو.نود پنځو درهمو نه علاوه به ديو درهم په څلويښتوحصوکښې يوه حصه بله هم واجب وی.هم دا دامام شافعی ؒ قول دې.

**دلائلهما >** ①دصاحبينو ؒ دليل دادې.چه دعلي‌ؓ دحديث په آخر کښې دی.چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل.چه په دوه سوه درهمه څه هم زياتی وی.دهغې زکاة به دهغې په حساب سره اداکولې شی.[1] ②دويم دليل دادې.چه زکاة د نعمت مال دشکر اداکولودپاره واجبيږي. اوپه دوه سوه درهمو باندې چه څومره هم زياتی وی.هغه ټول مال دې.که دڅلويښتودرهمونه زياتی وی،اوکه ددې نه کم وی. که زياتی وی.نوپه دې زياتوالی کښې به هم دحساب مطابق شکرانه واجب وی.

[1] ) قال الزيلعی ؒ اخرجه ابوداود (نصب الراية ۲/۳۷۵)۔

**الإعتراض** > که زکاة دنعمت مال شکرانه اداکولودپاره واجب شوې دې.نوپه شروع کښې دنصاب شرط ولې لګولې شوې دې ؟ ځکه چه ځنګه دنصاب په اندازه مال وي.دغه شان دنصاب نه کم هم مال وي.نوکه د وجوب زکاة مقصد، د نعمت مال شکر اداکول دي.نوپه مطلق مال کښې زکاة واجب کېدل پکاردي.که مال دنصاب په اندازه وي.اوکه ددې نه کم وي.

**ألجواب**> جواب دادې.چه زکاة په مالدارو باندې واجب وي.په فقیرانوواجب نه وي.درسول برحق ﷺ ارشاد دې.(خذوا من أغنيائهم وتردوا إلى فقرائهم)نود غنی او فقیر په مینځ کښې د فرق کولو دپاره د نصاب اندازه یوفاصل مقررشوې دې.یعنی په اندازې د نصاب سره به مالك دپاره غنی (مالداری)حاصل شی.اوددې نه په کم سره به غنی نه حاصلیږی.حاصل داشو.چه دغنی ثابتولو دپاره په ابتداء کښې نصاب شرط ګرځولې شوې دې.اوپه (مازاد على المائتين)کښې دزیاتوالی نه دغنی زیاتوالې مراددې.اوپه غنی کښې زیاتوالې قلیل اوکثیر دواړه حاصلیږی.په دې وجه مونږ اووئیل.چه دنصاب په مقدارچه څومره هم زیاتی وي.په هغې کښې به د هغې په حساب سره زکاة واجب وي.

**ألإعتراض علي عدم وجوب الزكاة في الزائد في زكاة السوائم**> لیکن اوس به سوال داوی.چه په سوائمو کښې دنصاب نه پس په مطلقاً زیاتوالی کښې زکاة ولې واجب نکړې شو؟مثلاً په پنځه اوښانو کښې یوه چیلۍ ده.اوس که په دې دڅلورو اوښانو اضافه اوشوه.نوپه دې اضافه کښې هیڅ زکاة واجب نه دې.ترهغه وخته پورې چه دا اضافه دنصاب مقدار ته اونه رسیږی. اوچه اوښان لس شی.نوپه دې کښې به دوه چیلۍ واجب وي.

**ألجواب**>جواب، په سوائموکښې دنصاب نه پس په مطلقاً زیاتوالی کښې د زکاة عدم وجوب، د تکړې کولو نه د بچکولودپاره دی.یعنی که په پنځو اوښانو باندې مثلاً څلور اوښان زیاتی شو.نوددې څلورو اوښانو زکاة به د یوې چیلۍ په پنځوحصوکښې څلورحصې وي.اوپه دې صورت کښې اګرچه دقیمت په اعتبار سره وي.د چیلۍ تکړې کول لازمیږی. نو ددې مشکل نه د بچ کولو دپاره په سوائموکښې د نصاب نه پس هم په مطلقاً زیاتوالی کښې زکاة واجب نکړې شو.بلکه زیاتوالې هم که په اندازه دنصاب وي.نوپه دې کښې به هم زکاة واجب وي.مثلاً په پنځه اوښانو باندې دپنځو اضافه نوره اوشی.نودوه چیلۍ به واجب وي.

### دسرو او سپینو زرو نه دمرکب شوي سکوحکم

| وَإِن كَانَ الْغَالِبُ عَلَى الْوَرِقِ الْفِضَّةَ که چرته په سکو باندې سپین زر غالب وو فَهُوَ فِي حُكْمِ الْفِضَّةِ نوحکم به ئې دسپینو زرو وي وَإِن كَانَ الْغَالِبُ عَلَيْهَا الْغِشَّ اوکه کوټوالی پکښې غالب وو فَهُوَ فِي حُكْمِ الْعُرُوضِ نودغه به دسامان په حکم کښې وي يُعْتَبَرُ أَنْ تَبْلُغَ قِيمَتُهَا نِصَابًا نوبیا به پکښې ددې اعتبار وي چې قیمت ئې نصاب ته اورسی |
|---|

**حل اللغة** >**معني الورق والغش**>ورق،د واؤ فتحه او د راء کسره په سانچه کښې جوړه شوې سکه. غش، د غین کسره او دشین شد،معنی ئې ده.خروالې،خیرې،اوهغه سره زر چه بل دهات ورسره ګډ شوې وي.دلته کښې دغش نه مراد دسپینو زرو او دسرو زرونه علاوه دهاتونه دی.چه په سپینو زرو کښې ملاوولې شی.او سکې ترې جوړولې شی.

**تشريح**> **قسمين الدراهم وحكمها**>اودا خبره منلې شوې ده.چه د سپینو یا سرو زروسکه بغیرد کهوټ(هغه

سرزر چه بل دهات ورسره گډ شوي وي»د ګډوالی نه نشی جوړېدلې.اوس صورت دمسئلې دادې.چه په جوړه شوي سکه کښې ①که سپین زر غالب وو.د بل څیزسره ګډشوې سرزر هغه سرزر چه بل دهات ورسره ګډ شوې وی.یعنی نور دهاتونه مغلوب وو. نودغه سکه به د سپینو زرو په حکم کښې وی.اوپه دې کښې به دسپینوزرو زکاة واجب وی. ②اوکه کهوټه غالب اوسپین زر مغلوب وو.نودا به دسامان په حکم کښې وی.د دې دقیمت اندازه به لګولې شی.اوکتلېبه شی.چه ددې قیمت د زکاة مقدار ته رسیږی.اوکه نه.که دنصاب مقدار ته رسیدلو.نوپه دې کښې به زکاة واجب وی.ګنی واجب به نه وی.

**قوله**> صاحب دهدایه رحمه الله دمسئلےمدلل کولو دپاره فرمائیلی دی.چه درهمو وغیره جوړو شوو سکو کښې د لږشان کهوټ کیدل ضروری دی.خکه چه ددې نه بغیردسکوجوړول ممکن نه دی.البته دکهوټ زیات مقدار ضروری نه دې.نوموږ د قلیل اوکثیر په مینځ کښې غالب (زیاتوالی)حد فاصل مقررکړې دې. او غلبه دا ده.چه دنیمےنه زیات وی.اوهم دا دغلبه حقیقت هم دې.نوکه سپین زر دنیمو نه زیات وی.اوکهوټ د نیمې نه کم وی.نودغه سکه به توله پوره سپین زر شمارلې شی.اوپه دې کښې به دسپینوزرو زکاة واجب وی.اوکه ددې په عکس وی.یعنی کهوټه د نیمے نه زیات وی.اوسپین زر دنیمےنه کم وی.نو دغه سکه به دهات شمارلې شي.او ددې حکم به د نورسامان په شان وی.

**شرطیة نیة التجارة في صورة غلبة الغش**>صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه دکهوټه غالب کیدلوپه صورت کښې د زکاة دوجوب دپاره دتجارت نیت ضروری دې.خکه چه په دې صورت کښې دا دسامان په حکم کښې دې.اوداخیره فیصله شوې ده.چه د سپینو اوسروزرو نه علاوه نورو څیزونوکښې د زکاة دوجوب دپاره دتجارت نیت ضروری دې.که په سکوکښې سپین زرمغلوب دی.خوکه جداکړې شی.نودا دنصاب مقدار یعنی ددوه سوه درهممقدار ته رسیږی.نو په دې سپین زروکښې به دسپینو زرو زکاة واجب وی.نه به په دې کښې د قیمت اعتباروی.اونه به دتجارت نیت معتبر وی.خکه چه په عین سپینو زروکښې ددې دوارو اعتبارنه کیږی.والله اعلم

**دسرو زرو نصاب اومقدار**

| |
|---|
| **ذَكَاةُ الذَّهَبِ** دا باب دی دسرو زرو د زکاة په بیان کښې **لَيْسَ فِيمَا دُونَ عِشْرِينَ مِثْقَالًا مِنَ الذَّهَبِ صَدَقَةٌ** د شل مثقاله سرونه په کمو کښې زکاة نشته **فَإِذَا كَانَتْ عِشْرِينَ مِثْقَالًا** هرکله چې شل مثقاله شی **وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ** اوتیرشی په هغې باندې کال **فَفِيهَا نِصْفُ مِثْقَالٍ** نوپه دی کښې نیم مثقال دی ، |

**تشریح**> **وجوب المثقال في العشرين**>په دې فصل کښې دسرو زرو د زکاة بیان دې.دسروزر نصاب شل مثقاله دی.اوددې نه به په کموکښې زکاة واجب نه وی.اوپه شلو مثقالوکښې به نیم مثقال واجب وی.

**قوله**>دلیل دا روایت دې **(ومن كل عشرين مثقالاً من الذهب نصف مثقال)** [1] په ابن ماجه کښې دا روایت د ابن عمر رضي الله عنه اوحضرت عائشه رضي الله عنها نه په دې الفاظوسره نقل دې.**(أن النبي ﷺ كان يأخذ من كل عشرين دينارا نصف دينار ومن الأربعين دينارا)**(شرح نقایه)

[1] ) قال الزيلعي رحمه الله يشيرإلى حديث معاذ رضي الله عنه المتقدم في زكاة الفضة وقدذكر من جهة الدارقطني رحمه الله وفيه ((من كل أربعين دينارا

**المراد من المثقال**> دمثقال نه مراد هغه مثقال دې.چه دهغې سره دمثقال وزن د لسو درهمو برابر وي.په خلقوکښې هم دا وزن مشهور دې.

**په شلوباندې د زياتې مثقالو د زکاة حکم**

| ثُمَّ فِي كُلِّ أَرْبَعَةِ مَثَاقِيلَ قِيرَاطَانِ بيا په هرو څلورينتو مثقالوکښې دوه قيراطه دي |
|---|

**تشريح**> **وجوب القيراطان في أربعة مثاقيل بعدالعشرين**> صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه په شلو مثقالو باندې كه څلور مثقاله زياتي شي.نودنيم مثقال سره به دوه قيراطه نورهم واجب وي.

**دليله**>خکه چه دڅلورو مثقالوڅلوينبتمه دوه قيراطه وي.خکه چه يومثقال دشلو قيراطو وي. نوڅلور مثقاله د اتياؤ قيراطوشو.اود اتياؤڅلويښتمه دوه وي.خكه به دڅلورو مثقالو زكاة دوه قيراطه واجب وي.

**الفائدة**>يو قيراط د اوربشو د پنځو دانو برابر وي.نو يومثقال به د سلو اوربشو د وزن برابر وي. قيراط په اصل كښې ،د راء په شد سره دې.خكه چه ددې جمع قراريط راخي.بيا يوه راء په ياسره بدله شوه. نو قيراط شو.(عنايه)

**دڅلورو مثقالونه په کم کښې د زکاة حکم**

| وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ أَرْبَعَةِ مَثَاقِيلَ صَدَقَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (١) په كمودڅلويښتو مثقالو كښې صدقه نشته.په نزدد امام ابوحنيفه رحمه الله. |
|---|

**تشريح**> **عدم الزكاة في الزائد دون أربعة مثاقيل** > مسئله داده.چه كه په شلومثقالوباندې د څلورو مثقالونه دكمو اضافه اوشوه. نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دې زياتوالي كښې به هيڅ زكاة واجب نه وي.

| وقالامازادعلى العشرين فزكاته بحسابه اوصاحبين رحمهما الله فرمائي چې په شلو مثقالو باندې كوم زياتي وي د هغې زكاة به د هغې په حساب باندې وي |
|---|

**تشريح**> **مذهب الصاحبين**> دصاحبينو رحمهما الله په نيزبه په قدر دحساب زكاة واجب وي.مثلاً كه په شلومثقالو يو مثقال زيات شو.نو په زكاة كښې به نيم مثقال او نيم قيراط واجب وي.خكه چه د شلو مثقالو څلويښتمه حصه نيم مثقال راخي.اود يومثقال څلويښتمه حصه نيم قيراط جوړيږي.

**بناء الإختلاف على إختلاف مسئلة الكسور**> صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلي دي .چه دا هم هغه د كسور مسئله ده.چه په تير شوی فصل(فصل في الفضة)كښې راغلې وه.يعنی دصاحبينو رحمهما الله په نيز په كسور كښې زكاة واجب وي.اود امام صاحب رحمه الله په نيز نه واجبيږي.دفريقينو دلائل بيان شوی دي.

**القاعدة**> علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي دي .چه په شريعت كښې يو دينار دلسو درهمو برابر وي.او مثقال او دينار دواړه يوشيزدې.نوڅلورمثقاله به دڅلويښتودرهمو برابر وي. نولكه څنګه چه په درهمو

---

دينار)) نصب الراية (٢/٣٧٩)_

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١/١٢٠) والتاترخانية (٢/٢٣١) والهندية (١/١٧٩) ومجمع الأنهر(١/٢٠٥) نقلاً عن القول الراجح (١/١٧٢)-

کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د څلویښتودرهمو نه دکمو په زیاتوالی کښې زکاة نشته دي.دغه شان په نصاب باندې دڅلورو مثقالونه د کمو په زیاتوالی کښې به هم زکاة واجب نه وی.

**سوال>** دلته کښې یوسوال کیدلې شي.هغه داچه په تیرشوی فصل کښې د وزن سبعه تحقیق بیانولو کښې ونیلې شوی وو.چه اووه مثقاله دلسودرهمو د وزن برابروی.اومثقال او دینار یوشیزدي.اودلته کښې اوونیلې شو.چه یودینار دلسودرهمو برابروی؟

**جواب>** جواب دادې.چه په تیرشوی فصل کښې د وزن بیان وو.یعنی دلسو درهمووزن اووه مثقاله یا د اووه دینارو برابروی.اودلته کښې دقیمت بیان دی.یعنی یو دینار،چه دایومثقال سره زر دی.شریعت ددې قیمت لس درهمه سپین زر مقررکړې دې.مثلاً په قتل خطاء کښې که د دیت اداکول په دینارسره اوغواړی.نو زر دیناره دې ورکړی.اوکه په درهم سره کول غواړی.نولس زره درهمه دې ورکړی.

**ملاحظه>** خوداخیال کول پکاردی.چه داحساب دهغه زمانې نرخ مطابق وو.اونرخ چونکه کمیږی اوزیاتیږی.په دې وجه په هره زمانه کښې به د هغه زمانې د نرخ مطابق قیمت مقرر کولې شي.

**د سرو اوسپینو زرو مخلوطوغیرونو زکاة**

وَفِي تِبْرِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَحُلِيِّهِمَا وَالْآنِيَةِ منهما الزَّكَاةُ دسرو سپینو په تکړو اوددی په زیوراتواو ددی په لوخوکښې هم زکاة دی (۱)

**حل اللغة >** ① تبر: سست، ډیله ②حلیهما: کالی ③اواني: لوښی

**تشریح> وجوب الزكاة في الذهب غيرالمنقوشة>** (تبر،(غیر مضروب چاندی...هغه سپین زر چه قالب شوې نه وی.د سپینوزرو توټه ،د سپینو او سرو زروکالی چه ښځې ئې د ښائست او زینت دپاره استعمالوی.
①زمونږ په نیز د ګډ شوی نه بغیر په سرو او سپینوزروکښې ددوی په کالواو لوخوکښې زکاة واجب دې.

**دلیله >** دلیل دادې.چه د وجوب زکاة سبب مالی نامی او نمو وی. او نمو په دوه قسمه ده. ①یوخلقی، لکه په سرو او سپینوزروکښې چه ده. ②دویمه فعلی، یعنی دتجارت په ذریعه. دلته کښې دنمو دلیل موجوددې.یعنی پیدائشی او خلقی طور باندې دا دتجارت دپاره حاصلیدل.اوهم دلیل معتبر دې. نو هرکله چه دنمو دلیل موجوددې.نودچا په باطلولو سره داخلقی نماء نه باطلیږی.

**په سامان تجارت کښې د زکاة حکم**

# بَابُ زَكَاةِ الْعُرُوضِ

**فصل دی دتجارت داسباب په زکاة کښې**

الزَّكَاةُ وَاجِبَةٌ فِي عُرُوضِ التِّجَارَةِ كَائِنَةً مَا كَانَتْ إِذَا بَلَغَتْ قِيمَتُهَا نِصَابًا مِنَ الْوَرِقِ أَوِالذَّهَبِ په اسباب دتجارت کښې زکاة واجب دی .هرڅه چې وی هرکله چې ئې قیمت نصاب ته اورسی د سپینو زرو یا د سرو زرو

---

۱) **مذهب الشافعي رحمه الله:-** حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه دښځوکالی اودسرو دسپینو زروګتمه کښې زکاة واجب نه دي.امام مالك او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دی.

**تشریح>** **وجوب الزكاة في عروض التجارة>** عروض دعرض جمع ده.معنیٰ ئې ده.دسپینو او سرو زرونه علاوه د دنیا سامان،مسئله داده.چه دتجارت که هرقسم وی.په دې کښې زکاة واجب دې.په دې شرط چه د دې قیمت د سپینو یا سرو زرو نصاب ته رسیږی.

**دلائله>** ① دلیل دادې.چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دی.چه دسامان تجارت قیمت به اولګوې. اوپه هر دوه سوه درهمه کښې به پنځه درهمه زکاة اداکړې.اود سمره بن جندب رضی الله عنه نه نقل دی.(أن رسول الله ﷺ كان يأمرنا أن نخرج الصدقة من الذي يعد للبيع) (1) یعنی رسول اکرم ﷺ به حکم فرمائیلو.چه مونږ د هغه څیزونو زکاة اوباسو.کوم چه د خرڅ دپاره تیاریږی.

② دویم دلیل دادې.چه په سامان کښې دبنده دتجارت نیت کولوسره دا سامان هم مال نامی جوړیږی.اوچونکه په مال نامی کښې زکاة واجب وی.په دې وجه په سامان تجارت کښې به هم زکاة واجب وی.لکه څنګه چه په سپینو او سرو زروکښې زکاة واجب وی.ځکه چه دا د شریعت د طرفه مال نامی دې.

## د فقراو دپاره د انفع اعتبار

| يُقَوِّمُهَا بِمَا هُوَ أَنْفَعُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ مِنْهُمَا دعروض قیمت به هغې سره لګوی کوم چې د فقیرانو او مساکینو دپاره نفع وی. (2) |
|---|

**تشریح>** **وجوب الزكاة بما هو أنفع للفقراء>** په تیره شوې مسئله کښې وئیلي شوی وو.چه په سامان تجارت کښې د وجوب زکاة دپاره ضروری دی.چه ددې قیمت د سپینو یا دسرو زرونصاب ته رسیږی.

خواوس سوال دادې.چه دقیمت اندازه به دسپینوزرو یعنی دراهمو سره کوی.اوکه د سروزرو یعنی دنانیرو سره به کوی.نو په دې باره کښې څلور اقواله دی.① رومبےقول کوم چه په اصالی کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت هم دې.دادې.چه دسامان دقیمت اندازه په دې دواړو کښې هغه سره کیږی.په کومو کښې چه فقیرانواومسکینانو ته فائده وی.مثلاً دتجارت یوقسم سامان دې.چه دا دوه سوه درهمودې.خود شلو مثقالو نه دې.نودا به د درهمو سره اندازه کولې شی.اوکه سپین زر ګران وی او سره زر ارزان وی.اودا سامان شل مثقاله سروزرو مالیت ته رسیږی.خودوه سوه درهمه سپینو زرو مالیت ته نه رسیږی.نوددې دقیمت اندازه به مثقالوسره کولې شی.درا همو سره به نشی کولې.دا قول د فقیرانو اومسکینانو دحق په وجه په احتیاط مبنی دې.یعنی احتیاطاً به د فقیرانو د رعایت په لحاظ داسې کولې شی.

| وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ يُقَوِّمُهَا بِمَا اشْتَرَاهُ به اوامام ابویوسف رحمه الله فرمائی چې په هغې نقد سره به قیمت |
|---|

---

(1) قال الزيلعي رحمه الله يشير إلى حديث معاذ رضی الله عنه المتقدم في زكاة الفضة وقدذكر من جهة الدارقطني رحمه الله وفيه ((من كل أربعين دينارا دينار)) نصب الراية (۲/۳۷۹)۔

(2) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(۲\۱۶۷) والعناية (۲\۱۶۷) والوقاية (۱\۲۲۹) و رد المحتار(۲\۲۷) ثم قال وقال العلامة ابن الهمام رحمه الله في الجمع بين الروايتين بأن المذكور في الاصل في التخيير هو ما إذا كان التقويم بكل منهما لا يتفاوت انتهى كلامه ) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۷۳)۔

لګوی په کوم چې ئې اخستلی وی **فَإِن اشْتَرَاهُ بِغَيْرِ الثَّمَنِ** که دا ئې د ثمن نه بغير اخستې وو **يُقَوَّمُ بِالنَّقْدِ الْغَالِبِ فِي الْمِصْرِ** نو چه په ښار کښې کوم نقدزيات رائج وی په هغې سره به ئې قيمت لګوی

**تشريح> وجوب الزكاة وفق وسيلة العروض>** دويم قول د امام ابويوسف رحمه الله دې.اوهم ددې قائل امام شافعی دې.دوی دا فرمائی.چه دا سامان په دواړه نغدينو(سپين او سره زر)کښې چه دکوم په عوض کښې اخستلې شوې دې.هم دهغه سره به ددې دقيمت اندازه لګولې شی.که د درهمو په عوض کښې اخستلې شوې وی.نود درهمو سره به ئې اندازه لګولې شی.اوکه د دنانيرو په عوض کښې اخستلې شوې وی.نود دنانيرو سره به ئې اندازه لګولې شی.اوکه د درهمواو دنانيرونه علاوه دبل څه په عوض کښې اخستلې شوې وی. نوبيا چه په درهمو او دنانيروکښې دکوم رواج اوچلن زيات وی.دهغه سره به اندازه لګولې شی.

**دليله>**ددې قول دليل دادې.چه په دواړه نغدونوکښې چه دکوم په عوض کښې داسامان اخستلې شوې دې.دهغې سره به د ماليت پيژندګلو زياته وی.ځکه چه يوځلې په دغه نغديت سره ددې قيمت ښکاره شوې دې.په دې وجه په دويم ځلی اندازه لګولوکښې به هيڅ مشکل نه وی.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ بِغَالِبِ النَّقْدِ فِي الْمِصْرِ عَلَى كُلِّ حَالٍ** او امام محمد رحمه الله فرمائی چې په ښار کښې کوم زيات رائج وی په هر حال د هغې سره قيمت لګوی.

**تشريح> وجوب الزكاة وفق نقد البلد>** دريم قول د امام محمد رحمه الله دې.دوی فرمائی.چه په هرحال کښې به د بلد دغالب نغديت سره اندازه لګولې شی.يعنی په نغدينوکښې چه دکوم چلن زيات وی.هم دهغه سره به دقيمت اندازه لګولې شی.

**دليله>**ددې دليل دادې.چه د الله تعالى په حق کښې دقيمت اندازه کول به د بنده په حق کښې د قيمت په اندازه باندې قياس کولې شی.اود بنده ګانو په حق کښې د بلد غالب نغديت سره اندازه کولې شی.مثلاً که چا يوڅيزغصب کړو.اوهغه دغاصب نه ضائع شو.او هغه څيزد ذات القيم څنې وی.نو په غاصب به دهغې قيمت واجب وی.اودقيمت اندازه به په نغدينوکښې هغه يوسره کيږی.دکوم چه چلن زيات وی.دغه شان که چا دبل کس څه سامان هلاك کړو.اودا د ذات القيم څنې وی.نوپه هلاکونکی به دقيمت ضمان واجب وی. او د قيمت اندازه به دهغه نغديت سره کيږی.دکوم چه چلن زيات وی.نوځنګه چه په حقوق العباد کښې د قيمتونو اندازه په غالب نغديت سره کيږی.دغه شان دحقوق الله يعنی د زكاة وغيره اداکولو دپاره به هم د قيمتونو اندازه په غالب نغديت سره کولې شی.

**وجوب الزكاة وفق رضا المالك>** د دې دريو وارو اقوالو نه علاوه يو بل روايت په مبسوط کښې ذکر دې. هغه دا دې.چه مالك ته اختياردې.که غواړی درهمو سره د دې اندازه اوکړی.اوکه غواړی دينارسره دې اوکړی.

**دليله>**ددې قول دليل دادې.چه قيمت په دې وجه لګولې شی.چه دماليت مقدار معلوم شی.اوپه دې مقصد کښې درهم او دنانير دواړه برابردی.نو په يوبل باندې به ترجيح نشی ورکولې.

**په دواړو اړخونو دکال کښې د نصاب د تکميل اعتبار**

**وَإِذَا كَانَ النِّصَابُ كَامِلًا فِي طَرَفَيِ الْحَوْلِ** اوهرکله چې نصاب پوره وو دکال په دواړوطرفونوکښې **فَنُقْصَانُهُ فِيمَا بَيْنَ ذَلِكَ لَا يُسْقِطُ الزَّكَاةَ** نوددی کميدل دکال په ما بينځ کښې زكاة

نه ساقط کوی

**تشریح> وجوب النصاب في جميع السنة>** ①شیخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائي.چه د وجوب زکاة دپاره دکال په اول او آخر کښې کامل نصاب کيدل شرط دی.دکال په مينځ کښې دنصاب کميدل زکاة نه ساقطوی.یعنی دکال په اول کښې هم پوره نصاب موجوددې.او په آخرکښې هم پوره شو.خوپه مينځ کښې څه کم شوې وو.نوپه دې صورت کښې به زکاة واجب وی.ساقط به نه وی.

**دليله>**دلیل دادې.چه د کال په مينځ کښې د نصاب د پوره کيدو اعتبارکولو کښې مشقت دې. نوځکه دکال په مينځ کښې د نصاب دپوره کيدو شرط اونښولګولې.پاتې شو په اول اوآخر کښې د نصاب خبره نوپه دې کښې د نصاب کمال شرط دې.په اول کښې خو ددې وجې چه د زکاة سبب منعقد شی.اوغنا متحققه شی.اوپه انتها کښې ددې وجې چه د زکاة وجوب متحقق شی.اودکال په مينځ کښې چونکه دواړه خبرې نشته.ددې وجې دکامل په مينځ کښې د نصاب د پوره والی شرط اونه لګیدلو.

**حکم هلاک الکل>** مسئله دا ده چې دکل په مينځ کښې د نصاب کموالې زکاة نه ساقطوی. البته دا چه ټول نصاب هلاک شی. نوزکاة نه واجبيږی.ځکه چه دکال یوه حصه بیخی بې نصابه پاتې وه.نود حوالان حول شرط موجود نشو.حالانکه د زکاة د انعقاد شرط موجود شی. نوددې نه پس حولان حول شرط دې. اوپه اولنۍ مسئله کښې داسې نه ده.یعنی کله د کال په مينځ کښې نورنصاب هلاک شی.خوڅه حصه باقی وی.نوځکه د انعقاد سبب هم باقی دې.اوهرکله چه د انعقاد سبب باقی دې.نود زکاة وجوب به هم باقی وی.

## دسرو او سپينو زرو سره دسامان تجارت ګډون

| وَيُضَمُّ قِيمَةُ الْعُرُوضِ إِلَى الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ او پیوست کوی به قيمت داسباب دسرو سپينو سره **وكذلك يضم الذهب الى الفضة بالقيمة** او دغه شان به پیوست کولی شی سره زر د سپينو زرو سره د قيمت په اعتبار سره حَتَّى يَتِمَّ النِّصَابُ تردې چه نصاب پوره شی |
|---|

**تشریح> ضم العروض الى الذهب والفضة لتكميل النصاب ومثاله>** مسئله داده.چه که ديوکس په ملك کښې دتجارت سامان د نصاب په اندازه نه وی.خودده سره دنصاب پوره کولودپاره دتجارت د سامان قيمت به دسرو اوسپينوزرو سره ملاوولې شی. ①مثلاً ديوکس سره پنځوس درهمه دی.اود يونيم سلو درهمو ماليت برابرسامان تجارت دې.نوپه ده به د دوه سوه درهمو سپينو زرو زکاة واجب وی. ②یا مثلاً د یوکس سره اته مثقاله سره زر دی.اود دولسو مثقالو د ماليت سامان تجارت دې.نوپه ده به دشلو مثقالو دسرو زرو زکاة واجب وی.دا حکم بالاجماع دې.

**دليله>**دلیل دادې.چه په هرڅيزکښې د زکاة دوجوب سبب دنصاب نامی مالك کيدل دی.او نماء په سامان تجارت کښې هم موجودده.اوپه سرو اوسپينو زروکښې هم، اګرچه د نماء حيثيت مختلف دې.یعنی په سامان تجارت کښې د بنده ګانو د طرفه نماء متحقق کيږی. ځکه چه بنده ګان دا د تجارت دپاره حاصلوی.اوپه سرو اوسپينو زروکښې نماء من جانب الله موجودده.ځکه چه الله تعالی دادواړه دتجارت دپاره پيداکړی دی.نو هرکله چه اصل یعنی نماء دواړه خايونوکښې وجود ده.نود سامان تجارت قيمت به دسرو اوسپينو زرو سره ملاوولې شی.او زکاة به واجبولې شی.

### دسامان تجارت مکدون اعتبار په اجزاو اوکه په قیمت

وَقَالَا لَايُضَمُّ الذَّهَبُ إِلَى الْفِضَّةِ بِالْقِيمَةِ اوصاحبين فرمائي چې نه به شي پيوست كولې سره زر دَ سپينو سره د قيمت په اعتبار سره وَيُضَمُّ بِالْأَجْزَاءِ او پيوست كولي به شي په اعتبار د اجزاؤ سره

**تشريح> الضم بإعتبار القيمة عند ابي حنيفه ﷫ >** ملاوول به دقيمت په اعتبارسره كيږي.اوكه اجزاؤ په اعتبار سره.نويه دې باره كښې اختلاف دې. د امام ابوحنيفه ﷫ په نيزيه دقيمت په اعتبارسره كيږي.هم دا يوروايت دامام محمد ﷫ دې. ()

**دليله >** امام ابوحنيفه ﷫ فرمائي.چه ضم كول دهم جنس كيدلوبه وجه دى.اوهم جنس كيدل دقيمت په اعتبارسره متحقق كيږي.دصورت په اعتبارسره نه متحقق كيږي.نود قيمت په اعتبارسره ضم كولې شي.دصورت په اعتبارسره به نه كيږي.اود اجزاؤ اعتبار،چونكه دصورت اعتبار دې.په دې وجه د صورت په اعتبارسره ضم نه كيدل،گويا د اجزاؤ په اعتبارسره ضم نه كيدل دى.نوثابت شو.چه دضم دپاره د اجزاؤ اعتبار نه كيږي.بلكه د قيمت اعتباركيږي.والله اعلم.

**الضم بإعتبار القيمة عند ابي حنيفه ﷫** اود صاحبينو ﷬ په نيزيه د اجزاؤ په اعتبارسره كيږي.هم دايو روايت دامام ابوحنيفه ﷫ دې.او هم ددې قائل امام مالك ﷫ دې.اوهم دا يوروايت د امام احمد ﷫ دې.

**دليلهما >** د صاحبينو ﷬ دليل دادې.چه په سرو او سپينو زروكښې وزن معتبردې.قيمت معتبرنه دې.تردې كه د يوكس سره د سپينوزرو څه لوښي يا كالي وي.اوددې وزن دوه سوه درهمو نه كم وي.خوددې قيمت د دوه سوه درهمونه هم زيات جوړيږي.نويه دې كښې په اتفاق سره زكاة واجب نه دې.ددې نه معلومه شوه.چه اعتبار د وزن دې.د قيمت نه دې.نوكه دوزن په اعتبارسره نصاب پوره شو.نو زكاة به واجب وي.گنې واجب به نه وي.

**ثمرة الإختلاف>** داختلاف ثمره به په دې صورت كښې ښكاره كيږي.چه ديوكس سره سل درهمه سپين زروې. او پنځه مثقاله سره زردې.اود پنځومثقالو سروزرو قيمت سلو درهم ته رسيږي.نويه دې صورت كښې به د امام ابوحنيفه ﷫ په نيززكاة واجب وي.څكه چه دقيمت په اعتبارسره نصاب پوره شوې دې.

اوداجزاؤ په اعتبارسره چونكه نصاب پوره نه دې.په دې وجه دصاحبينو ﷬ په نيزيه زكاة هم واجب نه وي.اوكه د يوكس سره لس مثقاله سره زروې.اوسل درهمه سپين زروې.يا په دې دواړوكښې د يو دريمه حصه وي.اود بل دويمه حصه وي.يا د يوځلورمه حصه وي.اود بل دريمه حصه وي.نويه دې صورت كښې به په اتفاق سره (دواړه)ضم كولې شي.او زكاة به واجب كولې شي.

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة ﷫ كذا في رد المحتار(٢\٣٧) والبحرالرائق (٢\٢٣٠) وتبيين الحقائق (١\٢٨١) نقلاً عن القول الراجح (١\١٧٤)-

د فصلونو اود میوو د عشر بیان

# بَابُ زَكَاةِ الزُّرُوْعِ وَالثِّمَارِ

**ترجمه>** (دا) باب د فصلونواود میو په عشرکښي دي.

**تشریح> وجوب العشرفي الزروع والثمار>** د زمکي په پیداوار او میووکښي د عشر(لسمه حصه) واجبیږي.او دلته کښي هم د زکاة نه مراد عشردي.لکه څنګه چه په تیرشوي باب کښي مصدق(زکاة راټولونکي)ته مجازاً عاشر ونیلي شوي دي.دغه شان دلته کښي هم عشر مجازاً په لفظ د زکاة سره تعبیر شوي دي.زکاة چونکه خالص عبادت دي.اوعشر د زمکي مؤونت دي.البته په دي کښي د عبادت معنی شته.په دي وجه زکاة مخکښي او دعشر احکام روسته ذکرشوي دي.

**د زمکي په پیداوارکي د عشرنصاب**

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ فِي قَلِيلِ مَا أَخْرَجَتْهُ الْأَرْضُ وَكَثِيرِهِ الْعُشْرُ واجب امام ابوحنیفه رحمه الله فرماني چي کوم څیز دزم کښي نه پیداکیږي که کم وی اوکه زیات په هغي کښي عشر واجب دي سَوَاءٌ سُقِيَ سَيْحًا أَوْ سَقَتْهُ السَّمَاءُ ، إِلَّا الْحَطَبَ وَالْقَصَبَ وَالْحَشِيشَ (۱) پدی کښي عشر دی .اګرچي په جاری ابو اوبه کیږی اوکه په باران سره .سوي دبانړسونو خشاك او واښو نه

**حل اللغة>** ①**سیحا**: جاری اوبه ②**حطب**: لرګي ③**قصب**: بانړس

**تشریح> نصاب العشر>** حضرت امام اعظم رحمه الله فرماني.چه مطلقاً د زمکي په پیداوار کښي عشر واجب دي.پیداوار کم وی.اوکه زیات وی.بغیرد تدبیر اختیارولونه د یوکاله پوري باقي پاتي کیدونکي وی.زمکه په نهری وغیره جاری اوبوسره اوبه کړي وی.یا د باران په اوبوسره اوبه شوي وی.په هرصورت کښي به عشر واجب وی.سوي د نلو،د سوزلو لرګو اود ګیا نه.چه په دي څیزونوکښي د حضرت امام صاحب رحمه الله په نیزعشر واجب نه دي.

وقال ابو یوسف ومحمد لَا يَجِبُ الْعُشْرُ إِلَّا فِيمَا لَهُ ثَمَرَةٌ بَاقِيَةٌ إِذَا بَلَغَت خَمْسَةَ أَوْسُقٍ صاحبین رحمهما الله فرماني چي عشرواجب دی. مګر په هغه کښي چي میوه نی باقی پاتی کیږی کله چي اورسی پنځه وسق ته ، وَالْوَسْقُ سِتُّونَ صَاعًا بِصَاعِ رَسُولِ اللَّهِ اووسق شپیته وړی دی دنبی کریم ﷺ په وړی سره

**تشریح> مذهب الصاحبین>** صاحبین رحمهما الله فرماني.چه د زمکي په پیداوار کښي په دوه شرطونو سره عشر واجب وی.یوداچه هغه څیزکوم چه د زمکي نه پیداکیږی.بغیر دځه علاجه د یوکال پوري باقي پاتي کیدي شی.لکه غنم،اوربشي اوریجي وغیره.که د یو کال پوري باقي نه پاتي کیږی.نویه دي کښي به عشر واجب نه وی.لکه انګور ،خربوزه ، تربوزه، سیب وغیره.دویم شرط داچه پیداوار د پنځه وسقو په مقدار وی.ددي نه په کم کښي به عشر واجب نه وی.او یو وسق د نبی کریم ﷺ په صاع سره شپیته صاعه جوړیږی.نو پنځه وسق د دري سوه صاع برابر وی.او یوصاع څلور منه وی.نوګویا پنځه وسق دولس سوه منه وی.

---

۱ ) القول الراجح هو هذا قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (۱\۲۳۲) وردالمحتار(۲\۲٤٥) والهندية (۱\۱۸۹) والخلاصة (۱\۲٤۹) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۸۰)۔

**الإختلاف في شيئين** > حاصل دا چه د امام صاحب رحمه الله او د صاحبینو رحمهما الله اختلاف دوه ځایه دي. ① یو دا چه حضرت امام صاحب رحمه الله په نیز د عشر وجوب دپاره د نصاب مقدار کیدل شرط نه دي. او د صاحبینو رحمهما الله په نیز شرط دي. ② دویم دا چه د امام صاحب رحمه الله په نیز د یو کال پورې باقي پاتې کیدل شرط نه دي. او د صاحبینو رحمهما الله په نیز شرط دي.

**دلیل ابي حنیفة رحمه الله في عدم شرطیة النصاب** > او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل د الله تعالی د قول ﴿أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ﴾ (الایه) عموم دي. په دې طریقه چه د زمکې مطلقاً پیداوار کښې د انفاق حکم ورکړې شوې دي. د قلیل او کثیر هیڅ تفصیل نشته.

**دلائل الصاحبین رحمهما الله فی شرطیة النصاب** > د عشر د وجوب دپاره د نصاب شرط لګولو کښې د صاحبینو رحمهما الله ① رومبي دلیل د نبي کریم ﷺ قول **لیس فیما دون خمسة أوسق صدقة** [1] دي. په حدیث کښې د صدقة نه مراد عشر دي. خکه چه زکاة خو پنځه وسق نه په کم کښې هم واجب وي. په شرط د دې چه د دې قیمت دوه سوه درهمه ته رسي. او س د حدیث ترجمه دا شوه. چه د پنځه وسق نه په کمو کښې عشر نشته. نو معلومه شوه. چه د عشر د وجوب دپاره پنځه وسق ضروري دی.

**الجواب منه** > خو د دې تاویل دا دې. چه په دې کښې د تجارت زکاة مراد دي. یعني په مال تجارت کښې د زکاة د وجوب دپاره پنځه وسق ضروري دی. او وجه د دې داده. چه د صحابو رضي الله عنهم په زمانه کښې به خلقو د وسق په حساب سره اخستل خرخول کول. او د یو وسق کجورو قیمت خلویښت درهمه وو. نو د پنځه وسق قیمت به دوه سوه درهمه وو. او دوه سوه درهمه د زکاة نصاب دي.

② او د زکاة په شان عشرهم په کافر نه واجب کیږي. او د عشر مصرف هم هغه دي. کوم چه د صدقاتو مصرف دي. نو ثابته شوه. چه عشر د زکاة په شان دي. او د وجوب زکاة دپاره د نصاب کیدل شرط دي. چه غناء متحقق شي. نو دغه شان د وجوب عشر دپاره به هم نصاب کیدل شرط وي. چه مالداری او غناء متحقق شي.

**الجواب منه** > خو د دې جواب دا دې. چه په عشر کښې ملك معتبر نه وي. هم دغه وجه ده. چه عشر په مکاتب ماشوم او مجنون په زمکه کښې هم واجبیږي. او په موقوفه زمکو کښې هم عشر واجب وي. حالانکه په موقوفه زمکو هیڅ څوك مالك نه وي. نو هرکله چه په باب د عشر کښې مالك اعتبار نشي کیدلې. نو د دې د صفت یعني مالداری او غناء اعتبار به هم نه کیږي. او هرکله چه د غناء اعتبار نشي کیدلې. نو په مطلق پیداوار کښې به عشر واجب وي پیداوار که قلیل وي. او که کثیر وي. او په عشر کښې مالداری معتبر نه ده. په دې وجه حولان حول هم شرط نه دي. خکه چه د حولان حول شرط د نماء حاصلولو دپاره وي. او پیداوار ټول په ټوله نماء ده.

**دلائل ابي حنیفة رحمه الله في شرطیة البقاء** > ① د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل ذکر شوې آیت ﴿أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ﴾ دي. خکه چه دا ایت مطلق دي. د باقي پاتې کیدلو او د نه پاتې کیدلو هیڅ قید نشته. نو مطلقاً به د زمکې په پیداوار کښې عشر واجب وي. که پوره کال باقي پاتې کیدې شو. او که نشو پاتې کیدلې. ② د امام صاحب رحمه الله په مذهب باندې عقلي دلیل دا دې چه د عشر د وجوب سبب د زمکې نامی کیدل دی. او کله د زمکې نه په داسې څیز سره هم نماء حاصلیږي. چه هغه باقي پاتې

[1] ) (تقدم تخریجه )

کیدونکي نه وي.نوکه د زمکي نه ترکارياني او سبزياني پیداکړي شوي. اوعشر واجب نکړي شي.نود سبب به بغیر دحکم نه موجود کیدل لازم شي.اودا تیك نه ده.په دې وجه ترکاریانو او سبزیانوکښې هم عشرواجب کړې شو.

**نظیره»** هم دغه وجه ده.چه په خراجي زمکه کښې که ترکارياني او سبزياني اولګولې شوې.نو په دې کښې به خراج واجب وي.نوځنګه چه په باقی نه پاتې کیدونکوځیزونوکښې خراج واجبیږي.دغه شان عشر به هم واجب وي.

**دلیلهما »**په دویم شرط کښې د صاحبینو رحمهما الله دلیل د نبی کریم ﷺ قول لیس فی الخضروات صدقة» دې.اودا روایت په،دارقطني، کښې داسې دې.«أن رسول الله ﷺ نهی أن یوخذ من الخضروات صدقة»[۱] په حدیث کښې د صدقه نه مرادعشر دې.ځکه چه سبزیانې که دتجارت دپاره وي.نوپه دې کښې بالاتفاق زکاة واجبیږي.نومعلومه شوه.چه په حدیث کښې د زکاة نفی نه ده شوې. او هرکله چه زکاة غیرمنفی دې.نوعشریه متعین وي.اود حدیث مطلب به داوي.چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دي. چه په سبزیانوکښې عشر واجب نه دې.اوپه سبزیانوکښې د عشرد عدم وجوب علت ددې باقی نه پاتې کیدل دی.نوکوم ځیزونه چه پوره کال بغیرد څه علاجه باقی نه پاتې کیږي.په دې کښې به عشر واجب نه وي.

**الجواب عنه »**اود «لیس فی الخضروات صدقة»مطلب دادې.چه که څوك سرې ترکارياني او سبزياني دخان سره واخلي.اود عاشر په خواکښې تیرشي.اومالك د قیمت ورکولونه انکار اوکړي.نو عاشرین به د ترکاریانو عشر نه وصول کوي.ځکه چه عاشر بالعموم د ښار نه لرې اوسیږي. اوهلته کښې فقیران موجود نه وي.نوپه داسې صورت کښې که په سبزیانوکښې عشروصول کړي. نو د دې دخرابیدو امکان دې.په دې وجه او وئیلې شو.چه عاشر به د سبزیانو عشر نه اخلي. بلکه مالك په خپله فقیرانو ته ورکړي.اوهرکله چه ئې مالك پخپله فقیرانو ته ورکړي.نو دوی به دا اوخوري.اوس به ددې د خرابیدو هیڅ امکان پاتې نشي.حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله هم ددې حدیث هم په دې محمل باندې عمل کوي.دامطلب نه دې.چه په سبزیانو کښې بالکل عشرواجب نه دې.لکه څنګه چه صاحبین رحمهما الله فرمائي.

**الصورتان في وجوب العشر في القصب»** ①دحضرت امام صاحب رحمه الله مذهب ذکرکولو کښې چه د خشاکو د لرګو،نلونو اود ګیا استثناء شوې وه.یعنی په دې ځیزونوکښې عشرواجب نه دې.ځکه چه عادة دا ځیزونه په باغونوکښې نه راخیجي.بلکه ددې ځیزونو نه باغونه صفا کولې شي. ②خوکه د پتی مالك زمکه د نرکل پتې یا د خشاکو د ونو باغ یا د ګیا لګولو ځائې جوړ کړي.اوددې ځیزونوحاصلول مقصود کړي.نو په دې کښې به عشر واجب وي.

**وجوب العشر في قصب السكروقصب الذريرة»** علامه مرغینانی رحمه الله په هدایه کښې فرمائیلی دی .چه په متن کښې د قصب نه مراد فارسی نرکل دې.چه قلمونه ترې جوړیږي.او پاتې شوګنې، اود ذریره نل «داپه هندوستان کښې یو مشهور نل دې.چه خوشبودار دې.په مرلونې خوشبوئي خوریږي.کذافی حلیة السعایة» نوپه دې کښې عشرواجب دې.ځکه چه ددې دوارو نه د زمکې حاصلات مقصود وي.یعنی ګنی اود ذریره نل قصداً راخیجولې شي.اوددې نه نفع اخستل مقصد وي.اوکوم ځیز چه راخیجولې شي.په

---

[۱]) من حدیث معاذ رضي الله عنه اخرجه الترمذي في الزكاة باب ۱۳ رقم ۶۳۸)ـ

هغې کښې عشر واجب وي.په دې وجه به په دې کښې عشر واجب وي.ددې په خلاف د کجورو ښاخونه او بوس،چه په دې کښې عشر واجب نه وي.ځکه چه دا دواړه څیزونه مقصود نه وي.بلکه د کجورو میوه او دانه یعني میوې مقصود وي.

| وَلَيْسَ فِي الْخَضْرَاوَاتِ عِنْدَهُمَا عُشْرٌ ونشته په سبزو کښې عشر ددوی په نزد |
|---|

**تشریح**> د صاحبینو رحمهما الله په نیز سبزیانو کښې عشر واجب نه دې.ځکه چه ددې د یو کال پورې باقي پاتې کیدل بغیر د علاجه ممکن نه دي.

**نوټ**> د دې مسئلې پوره وضاحت د شرطیة البقاء په اختلافي بحث کښې تیرشو۔

**د نیم عشر وجوب**

| وَمَا سُقِيَ بِغَرْبٍ أَوْ دَالِيَةٍ أَوْ سَانِيَةٍ اوکوم چې اوبه کولی شی په غټه بوکه یا آرټ یا په اوبښ فَفِيهِ نِصْفُ الْعُشْرِ عَلَى الْقَوْلَيْنِ نوپدی کښې نیم عشر دی .په دواړو قولو باندی |
|---|

**حل اللغة**> **غرب**:لوې ډول.دالیه:آرټ، چه ډیرې ډولچې پرې ترلې شوې وي.بیا دا په غواني وغیره تاوولې شي. دالیه ،سرخ، ته هم وائي.سرخ دادې.چه د لرګی یوه تنه چه ددې په سر باندې د خرمنې یو ډول شان ترلې شوې وي.بیا دا په اوبو کښې ورښکته کوي.اوبتې پرې اوبه کوي②.**سانیة**:هغه اوښه چه د هغې په ذریعه پټې اوبه کولې شي.

**تشریح**> **وجوب نصف العشر في الخارج بالسقي**>صورت دمسئلې دادې.چه که پټې په لوې ډول یا آرټ یاد اوښې په ذریعه خروب کړې شوې وي.نود امام صاحب رحمه الله او صاحبین رحمهما الله دواړو په نیز دې کښې نصف عشرواجب دې.خوددې اختلاف سره د امام صاحب رحمه الله په نیزنه نصاب شرط دې.اونه د بقاء اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به د دواړو شرطونو لحاظ ساتلې شي.

**دلیله**> دلیل دادې چه په دې صورتونو کښې زیات مشقت اوچتولې شي.په نسبت د باران یا د دریاب نه د اوبه کولو،چونکه په باران یا دریاب سره اوبه کولو کښې مشقت کم وي.په دې وجه به په دې کښې عشرواجب وي.اوپه آرټ وغیره سره خروبولو کښې مشقت زیات وي.په دې وجه په دې صورتونو کښې به دعشر نیمه یعني شلمه حصه واجب وي.

**إعتبار اكثر الحول في الخارج بالسقي والمطر**>اوکه پټې د دریاب په اوبوسره هم سیراب کړې شوې وي.اوپه ډول سره هم اوبه راوښکلې شوې وي.اوسیراب کړې شوې وي.نود کال د اکثر اعتبار به کولې شي.یعنی که اکثرکال په دریاب سره سیراب کړې شو.اوځه ورځې په ډول سره سیراب کړې شو.نو عشر به واجب وي.اوکه ددې په عکس دې نونصف به واجب وي.

**نظیره**> لکه څنګه چه په سائمه څاروو کښې د کال د اکثرې حصې اعتبارکولې شي.یعنی که دکال په اکثره حصه کښې څاروې څرولې شوې وي.اوځه ورځې په کورکښې په ترلې شوې خوراك ورکړې شوې وي.نودا به سائمه څاروې شمارلې شي.اوپه دې کښې به زکاة واجب وي.اوکه ددې په عکس وي.نودې ته به علوفه ونیلې شي.اوپه دې کښې به زکاة واجب نه وي.

| وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ : فِيمَا لَا يُوسَقُ كَـالزَّعْفَرَانِ ، وَالْقُطْنِ امام ابویوسف رحمه الله فرمائي چې کوم څیزونه په وسق سره نه شي خرڅولی لکه زعفران اومالوچ يَجِبُ فِيهِ الْعُشْرُ إِذَا بَلَغَتْ قِيمَتُهُ قِيمَةَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ مِنْ أَدْنَى |
|---|

مَايدخل تحت الوسَق نو پدے کښې عشر واجب دی .کله چې قیمت ئې د ادنی درجې هغه چې په وسق کښې داخلیږی

**تشریح** > **مسلک ابي یوسف** رحمه الله > صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه د داسې څیزونو باره کښې د حضرت امام ابویوسف رحمه الله قول دادې.چه زعفران وغیره غیر وسقی څیزونو قیمت که د ادنی درجه وسقی څیزونو سره پنځه وسق پوره کیدې شی.نوپه دې کښې به عشرواجب وی. مثلاً دوه سوه گرامه زعفرانو قیمت د پنځه وسق جوارو قیمت ته رسی.نوپه دوه سوه گرامه زعفرانوکښې به عشرواجب وی.اگرچه د زعفرانو اخستل خرڅول په وسق سره نه کیږی.

**دلیله** > دلیل دادې.چه په غیر وسقی څیزونوکښې شرعی نصاب یعنی د پنځه وسقو اندازه کول ممکن نه دی.په دې وجه به ددې د قیمت اعتبارکولې شی.لکه څنگه چه د تجارت په سامان کښې شرعی نصاب یعنی دوه سوه درهمو اندازه کول ناممکن دی.نوددې د قیمت اعتبار شوې دی.یعنی سامان تجارت که دوه سوه درهمومقدار ته اورسیږی.نوپه دې کښې به زکاة واجب وی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَجِبُ الْعُشْرُ إِذَا بَلَغَ الْخَارِجُ خَمْسَةَ أَمْثَالٍ مِنْ أَعْلَى مَا يُقَدَّرُ بِهِ نَوْعُهُ امام محمد رحمه الله فرمائی چې عشرواجب دی کله چې اورسی پیداوار پنځه عدده دهغه مقدار ته په کوم سره چې اندازه کولی شی . د دغی شان دڅیزونو فَاعْتُبِرَ فِي الْقُطْنِ خَمْسَةُ أَحْمَالٍ نوپه مالوچو کښې دپنځه بوجونو اعتبار دی وَفِي الزَّعْفَرَانِ خَمْسَةُ أَمْنَاءٍ اوپه زعفرانوکښې پنځه منه

**تشریح** > **مسلک محمد** رحمه الله >اود امام محمد رحمه الله قول دادې.چه په غیر وسقی څیزونوکښې د اعلی درجه معیار معتبر دې. یعنی په کوم معیار سره چه اندازه کولې شی.کوم چه د تولونه اعلی معیار دې.که دا د پنځوتعداد ته اورسی.نوپه دې کښې به عشرواجب وی.کنی واجب به نه وی.لکه چه په مالوچوکښې د تولو نه اعلیٰ او لوپه اندازه کولو والا آله اومعیار حمل (بکسرالحاء)دې.حمل د یوې اوښې بوجه ،نوکه مالوچ پنځه حمله وی.نود امام محمد رحمه الله په نیز به په دې کښې عشر واجب وی.یوحمل تقریباً درې سوه منه وی.اوپه زعفرانو کښې د تولونه اعلیٰ معیار ،مَن، وی.نو که زعفران پنځه منه مقدار ته اورسی. نو په دې کښې به عشرواجب وی.

**دلیله** >دلیل دادې.چه په کیلی(ناپ) څیزونوکښې د تولونه اعلیٰ درجه معیار او اندازه کولو والا آله وسق وی.نومعلومه شوه.چه د وسق اعتبار په دې وجه شوې دې.چه دا د تولونه اعلیٰ او لوې معیار دې.حاصل داشو.چه کوم څیز په کوم معیارسره اندازه کولې شی.په هغه معیارکښې چه کوم د تولو نه لوې معیار وی.دهغه اعتباربه کولې شی.نوکه دغه څیزپه اعلی معیار سره پنځه شی.نوپه هغې کښې به عشرواجب وی.

## د عشری زمکې په شهدوکښې زکاة

وَفِي الْعَسَلِ الْعُشْرُ إِذَا أُخِذَ مِنْ أَرْضِ الْعُشْرِ اوپه گبین کښې عشر دی کله چې د عشرزمکښې نه واخستلی شی ([1])

[1] ) **مذهب الشافعي** رحمه الله :- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په شهدوکښې عشرواجب نه دې.هم دا قول د امام مالك رحمه الله دې.

**تشريح> وجوب العشر في العسل>** ① مسئله داده.كه شهد د عشرى زمكښې نه حاصل كړې شو.نو په دې كښې به عشرواجب وى.

**دلائله >** ① دليل د رسول اللهﷺ حديث (عن أبي هريرةؓ أن رسول اللهﷺ كتب إلى أهل اليمن أن في العسل العشر) دې. ([1]) يعنى نبى كريمﷺ يمن والوته اوليكل.چه په شهدو كښې عشر واجب دې.

② دويم دليل دادې.چه دشهدو مچۍ ګلونه او ميوې خورى.لکه چه د الله تعالى ارشاد دې **(ثُمَّ كُلِي مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ فَاسْلُكِيْ)** (الايه) او په ګلونو او ميووكښې عشرواجب دې.نوكوم څيز چه ددې نه پيدا كيږى. يعنى شهد،په دې كښې به هم عشرواجب وى.

| قَلَّ أَوْكَثُرَ()بيا د امام ابوحنيفه ﷫ په نزد په ګبين كښې عشرواجب دى .كم وى اوكه زيات |
|---|

**تشريح> نصاب عشرالعسل>** ①صاحب د قدورى ﷫ فرمائى.چه په شهدو كښې به عشر واجب وى.كه شهد كم وى اوكه زيات.څكه چه حضرت امام اعظم ﷫ په وجوب عشر كښې د نصاب اعتبار نه كوى.

| وَقَالَ أَبُويُوسُفَ فيه حتى تبلغ عشرة ازقاق اوابويوسف ﷫ فرمائى چې په ګبين كښې هيڅ نشته تردى چې لس مشكيزو ته اورسى |
|---|

**تشريح> مذهب ابي يوسف﷫ >** ابويوسف ﷫ فرمائى چې په ګبين كښې هيڅ نشته تردى چې لس مشكيزو ته اورسى

**دليله >** دليل د بنى شبابه حديث دې.په عنايه كښې دا حديث داسې دې.چه د بنى جرهم يو قوم بنو شبابه سره د شهدو مچۍ وې.دې خلقويه په هرلسو مشكونوكښې يو مشك رسول اللهﷺ له وركولو.او رسول اللهﷺ به ددوى د علاقې حفاظت كولو. ([2]) بياهركله چه دحضرت اميرالمؤمنين عمربن الخطابؓ د خلافت زمانه راغله.اودوى سفيان بن عبدالله ثقفيؓ عامل مقرر كړو.نودې خلقو د عشر وركولو نه انكار اوكړو .سفيان بن عبدالله ثقفيؓ حضرت عمرؓ ته اوليكل.نوحضرت عمرؓ په جواب كښې اوليكل.چه د شهدومچۍ خو د باران مچۍ دى.الله تعالى چه كوم خائې اوغوارى هلته كې ئې بوځى.كه دغه خلق تاله عشر دركړى .كوم ئې چه رسول اللهﷺ له وركولو.نوتاسو ددوى د علاقې حفاظت كوئ.كنى د دوى دعلاقه او دخلق په مينځ كښې لارخالى كړئ.ددې جواب نه پس دغه خلقو عشر وركول شروع كړل. د حضرت عمرؓ د جواب حاصل داوو.چه كه دغه خلق عشروركړى.نوددوى د علاقې ددوى دپاره حفاظت كوه.كنى چه څوك غوارى شهد دې اوباسى.او اورى دې.بهرحال ددې حديث نه معلومه شوه.چه د بنوشبابه خلقو په لسومشكونوكښې يومشك عشر وركولو.يومشك لس رطله وى.

| وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ خَمْسَةُ أَفْرَاقٍ وَالْفَرَقُ سِتَّةٌ وَثَلَاثُوْنَ رِطْلًا بِالعِرَاقِى اوامام محمد ﷫ فرمائى چې د |
|---|

[1]) من حديث أبي هريرةؓ اخرجه العقيلي في كتاب الضعفاء (نصب الراية ۲/۴۰۵)-

[2]) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة ﷫ كذا في فتح القدير(۱۹۱\۲) والخانية (۱۳۲\۱) وردالمحتار(۵۳\۲) والهندية (۱۸۶\۱) نقلا عن القول الراجح (۱۸۱\۱)-

[3]) من حديث عمربن شعيب عن ابيه عن جدهؓ اخرجه الطبراني في معجمه(نصب الراية ۲/۴۰۷)

پنځه فرقو اوفرق شپږ دیرش رطله عراقی مروی دی

**تشریح** > **مذهب محمد** رحمه الله > امام محمد رحمه الله فرمائی چه پنځه فرق نصاب دي.یعنی په پنځه فرق شهدو کښې عشر واجب دي.او يو فرق شپږ ديرش رطله وی.

**دلیله** > خکه په کومو پیمانوسره چه د شهدو اندازه کیږی.په دې کښې د ټولو نه اعلی پیمانه فرق دي.

**الروایتان في وجوب العشر في العسل الجبلي** > ① اوپه غرونوکښې چه کومې میوې اوشهد دي.په هغې کښې هم عشر واجب دي. ② اود ابویوسف رحمه الله نه يو روايت دادې.چه په دې کښې عشر واجب نه دې.خکه چه د وجوب عشر سبب اونه موندلې شو.اوهغه د زمکې نامی کیدل دی.زیات بنه به وو.که داسې نې ونیلې وې.چه د وجوب عشر سبب مملوکه زمکه ده.او ظاهرالروایة یعنی د وجوب عشر دلیل دادې.چه کوم مقصود دې.هغه حاصل دې.یعنی پیداوار حاصل دې.نوهرکله چه پیداوار موجود دې.نوپه دې کښې به عشر هم واجب وی.

وَلَيْسَ فِي الْخَارِجِ مِنْ أَرْضِ الْخِرَاجِ عُشْرٌ اود خراجی زمکې نه چې کوم پیداوار راوخی په هغې کښې عشر نشته

**تشریح** > **عدم العشر في الارض الخراجي** > که د خراجی زمکې نه څه پیداوار راوخی نو په هغې کښې عشر نشته

**تعریف الارض العشری** > عشری زمکه هغه زمکې ته وائی چې د هغې مالك مسلمان وی یا د طاقت په ذریعه یو ښار یا ملك فتح شوې وی او د هغې زمکه په مجاهدینو کښې تقسیم شوې وی

**تعریف الارض الخراجي** > هرهغه زمکه خراجی ده کومه چه په زور سره فتح شوې وی او د هغې کافران اوسیدونکی هلته باقی پاتې کړې شوی وی او زمکه هم د هغوی په واك اختیار کښې پریخودې شوې وی

## چاته چه زکوة ورکول جائز دی او چاته نه دهغې بیان

# بَابُ مَنْ يَجُوزُ دَفْعُ الصَّدَقَةِ إِلَيْهِ وَمَنْ لَا يَجُوزُ

**ترجمه**: (دا) باب(په بیان) د هغه کس (کښې دې) چه جائزوی ورکول د زکاة ده ته اوچاته چه نه وی جائز.

**تشریح** > **الربط بما قبله** > زکاة اوددې د متعلقاتونه فارغ شو.نو اوس په دې باب کښې د زکاة اوصدقاتو مصارف بیانه وی.

## د زکاة د مصارفو بنیاد او اصل

قَالَ اللَّهُ تَعَالَى الله تعالی فرمانیلی دی { إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ } الآية بیشکه زکاة چه دې پس دغه حق د فقیرانودې (الایه).

**تشریح** > **الأصل في مصارف الزكاة** > ① د زکاة په سلسله کښې اصل د الله تعالی قول دې.﴿إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِينِ وَالْعَامِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ فَرِيضَةً مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ یعنی زکاة چه دې.داحق دې.د غریبانانو او محتاجو، اود زکاة په کاریاندې د تلونکو،اود چاچه په زړه سره غوښتل منظور وی.اود څتونو په آزادولو کښې اوقرضدارو ته.اود الله

تعالی په لاره کښې ، اود لارې مسافر، مقررشوې دې د الله، او الله تعالی په هرڅه پوهیږي، حکمت والادې.(تهانوی)

**مصارف الزکاة**> په حدیث کښې رسول اکرمﷺ فرمائی.چه الله تعالی زکاة او صدقات تقسیم په نبی یا غیرنبی په هیڅ چا په مرضئ باندې نه دې پریخودې.بلکه په خپله ئې ددې مصارف متعین کړي دی.چه اته دی. ①فقیران( چه دوی سره هیڅ نه وی) ②مسکینان(چه دحاجت په اندازه ورسره وی. ③ عاملین(چه د اسلامی حکومت د طرفه د صدقاتو په حاصلولو وغیره کارونو باندې مقرر وی. ④مؤلفة القلوب(چه ددوی د اسلام راوړلو امیدوی یا په اسلام کښې کمزورې وی) ⑤رقاب(یعنی د غلامانوبدل کتابت اداکول چه آزادی ورته ملاؤ شی.یاواخستلې شی او آزاد کړې شی، یاد قید یانوفدیه ورکړې شی او آزاد کړې شی)

⑥ غارمین(چه په دوې څه حادثه پریوتلې وی اوقرضداری شوی وی یا په څه ضمانت وغیره کښې اینختې وی) ⑦ فی سبیل الله(په جهاد وغیره کښې د تلونکو مدد اوکړې شی)

⑧ ابن السبیل(مسافرچه د سفرپه حالت کښې مالك دنصاب نه وی اګرچه په کورکښې دولت مندوی)(مرشد تهانوی رحمه الله)

| فَهٰذِهٖ ثَمَانِيَةُ أَصْنَافٍ نو دا اته قسمه خلق دی وَقَدْ سَقَطَ مِنْهَا الْمُؤَلَّفَةُ قُلُوْبُهُمْ دکومو نه چه مولفه القلوب ساقط شو. لِأَنَّ اللّٰهَ تَعَالٰی أَعَزَّ الْإِسْلَامَ وَأَغْنٰی عَنْهُمْ ځکه چه اسلام الله ﷻ غالب کړې دې او ددوی نه بې حاجته کړې دې |
|---|

**تشریح**> **الاقسام الثلاثة للمؤلفة قلوبهم**> صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی .چه په دې اتو قسمونو کښې یوقسم مؤلفة القلوب ساقط شو.یعنی د نبی کریمﷺ د وفات نه پس داقسم پاتې نشو.په عنایه کښې دی.چه د مؤلفة القلوب درې قسمه وو. ①هغه کافران چه دوی ته به نبی کریمﷺ په دې وجه ورکول.چه ددوی زړونه ددې بې قدره ذلیله دنیا نه اسلام طرف ته راشی. ②هغه کافران چه دوی له به ئې په دې وجه ورکولو.چه ددوی د شر او فساد نه مسلمان بچ شی. ③ هغه خلق چه اسلام ئې راوړلو.خوددوی اعتقاد کمزورې وو.نودوی له به ئې په دې وجه ورکولو.چه ثابت قدم پاتې شی.

**اسماء المؤلفة قلوبهم**> په مؤلفة القلوب کښې ښکاره خلق دادې.عیینه بن حصن، اقرع بن حابس، عباس بن مرداس.دا درې واړه د قریش د سردارانو څنې دی.ددوی نه علاوه ابوسفیان، صخربن حرب اموی، حارث بن هشام مخزومی، عبدالرحمن بن یربوع مخزومی، سهیل بن عمرو العامری،حویطب بن عبدالرحمن عامری، عبدالعزیٰ اسدی،حکیم بن حزام اسدی وغیره دی.

**انقطاع حصة مؤلفة القلوب**> مؤلفة القلوب په عهد رسالت کښې وو.خود صدیق اکبر رضی الله عنه په زمانه کښې ختم شو.نقل دی.چه عیینه بن حصن فزاری او اقرع بن حابس تمیمی دواړه حضرت ابوبکر رضی الله عنه خواله د خپلې زمکې د معافئ غوښتلو دپاره راغلل.نوصدیق اکبر رضی الله عنه فرمان اولیکلو.بیا دواړوحضرت عمر رضی الله عنه ته ګواهی راوړله.نوحضرت عمر رضی الله عنه دهغه ګواهی اوشلوله.او وې فرمائیل.چه داخوپه نبی کریمﷺ تاسو ته په دې وجه درکول.چه اسلام طرف ته ستاسو د زړونو تالیف اوشی.او اوس الله تعالی اسلام غالب کړې اوستاسو نه ئې بې پرواه کړې دې.نوکه تاسو په اسلام باندې ثابت قدم اوسئ.نو غوره خبره ده.ګنی زمونږ اوستاسو په مینځ کښې توره فیصله ده.دوی دواړه واپس شول.او حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته لاړل.او وې فرمائیل.چه تاسوخلیفه ئې اوکه عمر رضی الله عنه ؟ دوی اوفرمائیل.انشاءالله دوی خلیفه دی.دهغه وخت نه

دمؤلفة القلوب حق ختم شو.اوچونکه په صحابو ﷺ کښې هيڅ چادې انکار اونکړو.بلکه ټولو په دې سکوت اختيار کړو. نو ګويا دمؤلفة القلوب په ساقطيدلو باندې د صحابو ﷺ سکوتي اجماع هم منعقد شويده.(فتح القدير)

## د فقير او مسکين تعريف

وَالْفَقِيرُ مَنْ لَهُ أَدْنَى شَيْءٍ او فقير هغه د ي.چه کوم سره چه لږ مال وی وَالْمِسْكِينُ مَنْ لَا شَيْءَ لَهُ(١) اومسکين هغه دې چه هيڅ ورسره نه وی(٢)

**تشريح> تعريف الفقير والمسكين>** د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی.چه فقير هغه کس دې.چه دهغه سره څه وی.خود نصاب نه کم وی. يا د نصاب په اندازه وی.خونصاب غيرنامی وی.اودې په خپلوضروریاتو کښې اينختې وی.اومسکين هغه کس دې.چه دهغه سره قطعاً هيڅ څيزهم نه وی.نه دده سره نان شبينه(د شپې خوراك)وی.اونه د بدن پټولودپاره څه کپړه وی.ګويا د امام صاحب رحمه الله په نيزمسکين زيات د غربت په حال کښې وی.په نسبت د فقير.

**دلائله >** ① چه الله تعالی فرمائيلی دی.( لِلْفُقَرَآءِ الَّذِينَ أُحْصِرُوا فِي سَبِيلِ اللهِ لَا يَسْتَطِيعُونَ ضَرْبًا فِي الْأَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ أَغْنِيَآءَ مِنَ التَّعَفُّفِ تَعْرِفُهُمْ بِسِيمٰهُمْ لَا يَسْئَلُونَ النَّاسَ إِلْحَافًا ) (الايه).خيرات د هغه خلقو دپاره دې.کوم چه بند کړې شوی دی.د الله په لاره کښې.ګرځيدې نشی په ملك کښې ،خيال کوی په دوی ناخبره مالداره په سوال نه کولوسره،ته به پيژنې دوی د مخونونه چه سوال نه کوی د خلقونه په اينختيدلو سره، په دې آيت کښې دوی ته داسې فقير ونيليی شوی دی.چه په سوال نه کولو سره ناخبره خلق دوی باندې د مالداره خيال کوی.اوداخبره به هغه وخت ممکن وی.چه ددوی ښکاره حال ښه وی.اوهرکله چه ښکاره حال ئې ښه وی.نو معلومه شوه.چه د فقير سره څه ناڅه ضرور وی.ددې نه هم د حضرت امام صاحب رحمه الله دقول تائيد کيږی. ②دويم دليل دادې. دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه الله تعالی فرمائيلی دی.( أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ ) يعنی مسکين چه خاك آلود(په خاورو لت پت)دې.مطلب دادې.چه مسکين سره نه د ساه بچ کولوخوراك وی.اونه د بدن پټولو دپاره کپړه وی.نوثابت شو.چه دمسکين حالت، دفقير په مقابله کښې زيات خراب وی.

**ألمذهبان في كون الفقير والمسكين صنفان أم صنف واحد>** پاتې شوه داخبره چه فقير او مسکين دواړه يو قسم دی.اوکه دوه قسمه دی.نوددې تفصيل خوبه په کتاب الوصايا کښې راځی.خودلته کښې دومره عرض دی. ①چه دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزفقير او مسکين دوه قسمه دی.②اود امام ابويوسف رحمه الله په نيزدواړه يوخانې يوقسم دې.

**ثمرة الإختلاف>** ثمره د اختلاف به په دې مثال کښې ښکاره شی.چه يوکس د خپل ثلث مال وصيت زيد، فقيرانو اومسکينانو دپاره اوکړو.نود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به د ثلث مال نيمه زيد ته ورکولې شی.اونيمه به فقيرانو اومسکينانوته ورکولې شی.ځکه چه ددوی په نيزفقيران اومسکينان دواړه

---

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٢\٢٠٤) والكفاية (٢\٢٠٣) والعناية (٢\٢٠٣) والبحرالرائق (٢\٢٤٠) نقلاً عن القول الراجح (١\١٨٥)_

(٢) مذهب الشافعي رحمه الله:- د امام شافعی رحمه الله مذهب ددې په عکس دې.يعنی ددوی په نيز د مسکين په مقابله کښې د فقير حالت زيات خراب او بې کاره وی.

يوځاي يوقسم دي.اود امام صاحب رحمه الله په نيز به دا ثلث مال په دري حصوکښي تقسيمولې شي.يوه حصه به زيد ته ورکولې شي.اويوه فقيرانوته اويوه به مسکينانو ته ورکولې شي.ځکه چه د امام صاحب رحمه الله په نيز فقيران او مسکينان دواړه جداجدا قسمونه دي.

| وَالْعَامِلُ يَدْفَعُ إِلَيْهِ الْإِمَامُ إِنْ عَمِلَ بِقَدْرِ عَمَلِهِ او.عامل. له به ورکوی امام که ده عمل کړې وی دده دکار په قدر(¹) |
|---|

**تشريح> تعريف العامل >** په قرآن پاك کښي د زکاة دريم قسم عاملين ذکرشوې دي.عاملين د عامل جمع ده.عامل هغه کس دې.چه امام المسلمين د صدقات وغيره وصول کولو دپاره مقررکړې وی.د عامل دويم نو ساعی هم دې.

**دليله >** دليل دادې.چه دعامل استحقاق په طريقې دکفايت وی.د زکاة په طريقه نه وی.که صاحب مال په خپله زکاة امام له راوړو.او ورنې کړو.نوعامل به قطعاً مستحق نه وی.او عامل که مالدار وی.اوده کار هم کړې وی.نودې به د زکاة د مال نه د کفايت په اندازه خپل حق اخلی.که عامل ته د زکاة په طريقه ورکولې شوې.نود مالدارکيدو په صورت کښي به دې مستحق نه وو.نود عامل د مالدارکيدلو باوجود اخستل،ددې خبرې دليل دې.چه دده استحقاق د کفايت په طريقه دې.د زکاة په طريقه نه دې.

**نوعية مايعطي العامل >** داهم په ذهن کښي ساتل پکاردی.چه عامل ته څه هم ورکولې شي.داد اجارې په طور نشی ورکولې.ځکه چه د اجارې دپاره د عمل معلوميدل ضروری دی.د مودې او اجرت معلوميدل ضروری‌دی.اودلته کښي څه هم معلوم نه دی.په دې وجه به عامل ته د اجرت په طورباندې نشی ورکولې.بلکه څومره وخت چه دده په تلو راتلواود صدقاتو په وصولولو کښي صرف شوې دې.د هغه وخت پوره خرچه به ورکولې شي.په دې وجه چه ده ددې کار دپاره خپل ځان محبوس(بند)کړې دې. اوکوم کس چه خپل ځان د امورمسلمين د کارونو دپاره فارغ کړی.نو دده نان نفقه هم په دوی واجب وی.لکه د قاضيانو اود جهاد کونکو نفقه چه په عامة المسلمين باندې واجب وی.اود ښځې نفقه په ښاوند باندې واجب وی.

**کم يعطي العامل >** امام المسلمين به د زکاة د مال نه عامل او دده سره کارکونکوته ددوی د عمل په اندازه ورکوی.خودا خيال به ساتی.چه د عامل اودده مددګارانو دپاره کافی شي.خوکه د عامل اودده د مددګارانو ضروريات ددوی د وصول کړې شوې د زکاة پوره مال راګيروی.نود نصف نه به زيات نشی ورکولې.اوکه خلقو د زکاة مال پخپله راوړلو.او امام ته ئې ورکړلو.نوعامل به مستحق نه وی.ځکه چه عامل ته دده دعمل په وجه ورکولې شي.اوعمل اونه موندې شو.په دې وجه به دې مستحق هم نه وی.

**القدر المدفوع إلي العامل >** ① هرکله چه داخبره ثابت شوه.چه عامل ته د اجرت په طور نشی ورکولې.نو په اندازه د کفايت چه څه دوی ته ورکولې شي.نوهغه به د اتمې حصې وغيره دڅه مخصوص مقدار سره به هم متعين نه وی.يعنی دابه نه وی.چه عامل کوم زکاة وصول کړې دې.د هغې اتمه حصه به ورکولې شي.

---

(¹) **مذهب الشافعي رحمه الله:-** په زيربحث مسئله کښي امام شافعی رحمه الله فرمائی چه هم د هغه نه به ورته زکاة ورکوی کوم چه ئې راجمع کړې وی

## د مرئي آزادول

وَفِي الرِّقَابِ أَن يُعَانَ الْمُكَاتَبُونَ فِي فَكِّ رِقَابِهِمْ د ،،في الرقاب، مطلب دادې.چه مدد اوشي دمکاتبو غلامانو ددوی په آزادولو کښي دامنقول دی.

تشريح> الصورتان لعتق الرقاب>د مصارف زکاة اتم قسم ،وفي الرقاب،دې.ددې په تفسير کې درې صورتونه بيان کړې شوې دی. ①يو داچه د زکاة په مال غلام واخستلې شی.او آزاد کړې شی. ②دويم دا چه د مکاتب په بدل کتابت اداکولو کښې مدد اوکړې شي.

تعين الصورة الأولى>صاحب د قدوری رحمه الله هم دا دويم صورت اختيارکړې دې.اوپه طبرانی کښې حسن بصری،امام زهری اوعبدالرحمن بن يزيد بن اسلم نه هم د،،وفي الرقاب،،هم دا تفسيردې.دې حضراتو فرمانيلي دی.(وفي الرقاب هم المكاتبون)يعنی د،،وفي الرقاب،،نه مراد دادې.چه د زکاة رقم مکاتب نه ورکړې شي.چه دې خپل مولا ته بدل کتابت اداکړې.خپل ستې آزاد کړی.

عدم جواز الصورة الثانية>ددې نه معلومه شوه.چه که د زکاة په رقم سره غلام واخستلې شی.او آزاد کړې شی.نوزکاة به نه اداکيږی.ځکه چه د زکاة اداکولو دپاره مالک کول شرط دی.اوپه دې صورت کښې د مالك کيدلومعنیٰ نشته.ځکه چه په خالص غلام کښې د مالك جوړيدلو صلاحيت نه وی.

## د قرض داري د مصرفيت بيان

وَالْغَارِمُ مَنْ لَزِمَهُ دَيْنٌ او غارم هغه دې کوم په ذمه چه قرضه وی[1]

تشريح> تعريف الغارم>د صاحب قدوری رحمه الله د بيان مطابق د مصارف زکاة پنځم قسم غارم دې. ①غارم هغه کس دې.چه دده په ذمه دخلقو قرض وی.اود قرض نه د زياتی مقدار نصاب مالك نه وی.مثلاً د يوکس سره زر درهمه وی.اودې د نهه سوه درهمو قرضدار وی. نو ده ته زکاة ورکول جائز دی.ځکه چه په نهه سوه درهمو سره د قرض غوښتونکوحق متعلق کيدلو په وجه معدوم شو.يعنی دا نهه سوه درهم ګويا دده ملك پاتې نشو.اوپاتی شو سل درهم، نودا په قدر د نصاب نه دې.په دې وجه دده دپاره د زکاة مال اخستل جائز دی.

## د في سبيل الله د مصرفيت بيان

وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ مُنْقَطِعُ الْغُزَاةِ[2] اود في سبيل الله نه مراد دادې چه دغازيانو نه پاتې شی

[1] ، مذهب الشافعي رحمه الله:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه غارم هغه کس دې.چه ده دوه متحارب (جنګ کونکی)مسلمانانولو په مينځ کښې د صلح کولو اود دښمنئ اورمړکولو په خاطر څه مالي تاوان برداشت کړو.نودا کس اګرچه مالدار وی.خوددې مقصد دپاره زکاة اخستلې شی.او زمونږ په نيز داکس زکاة نشی اخستلې.خوکه اصلاح بين الناس باندې د خرچ کولو نه پس د مقدار نصاب مالك پاتې نشو.نو اخستلې شی.خودا اخستل د غارم په وجه نه دی.بلکه فقير يعنی د مقدارنصاب دنه مالك کيدلوپه وجه دی

[2] ، القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في ردالمحتار(۲\۶۷) والهندية (۱\۱۸۸) ومجمع الأنهر(۱\۲۲۱) والبحرالرائق (۲\۲۴۲) والفقه الإسلامي وأدلته (۲\۸۷۴) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۸۵).

**تشریح** > **تعریف من هو .في سبيل الله** > د مصارف زکاة شپږم قسم .فی سبیل الله، دي. د .فی سبیل الله، په مراد کښې اختلاف دی. ① امام ابویوسف رحمه الله فرمائي چه د .فی سبیل الله، نه مراد داسې غازي دي چه دده په کورکښې خومال موجود دي خوپه دې وخت دجهاد په سفرکښې دده سره مال نشته.

**دلیله** > ځکه لفظ د .فی سبیل الله، چه کله مطلق او ویلې شي نودې نه هم دا مراد اخستلې شي.

**مذهب محمد رحمه الله** > په دې مسئله کښې امام محمد رحمه الله فرمائي چه د .فی سبیل الله، نه مراد هغه حاجي دي چه دده په کورکښې خو مال موجود دي خود حج په سفرکښې دده سره مال پاتې نشو.

**دلیله** > اودلیل دادې چه یوکس خپل اوښ .فی سبیل الله، کړې وو نو رسول اکرم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه په دې حاجیان سواره کړئ. ( ) ددې نه معلومه شوه چه د .فی سبیل الله، اطلاق د حج په سفر باندې تللو والا باندې کیږي.

## د مسافر مصرفیت

| |
|---|
| وَابْنُ السَّبِيلِ مَنْ كَانَ لَهُ مَالٌ فِي وَطَنِهِ او ابن السبیل هغه دې چه دده مال په وطن کښې وی وَهُوَ فِي مَكَانٍ آخَرَ لَاشَيْءَ لَهُ فِيهِ اوپخپله بل ځائې وی هلته دده سره هیڅ څیز نه وی. |

**تشریح** > **مصرفیة ابن السبیل** > اووم قسم .ابن السبیل، دې. د ابن سبیل نه مراد هغه مسافر دې چه دده په وطن کښې دده ډیر مال موجود دي خوپه دې وخت کښې دده سره هیڅ نشته. نوګویا داکس په دې وخت کښې فقیردې. اود فقیر دپاره زکاة اخستل جائزدي. خوددہ دپاره دضرورت نه زیات اخستل جائزنه دي. عالمانو لیکلی دی چه غوره داده چه داکس قرض واخلی. اوچه کورته لاړشي نوادا ئې کړی.

## اټه قسمه مصارف دي مستحق نه دي

| |
|---|
| فَهٰذِهِ جِهَاتُ الزَّكَاةِ صاحب دکتاب فرمائي چه دادزکاة مصارف دی وَلِلْمَالِكِ أَنْ يَدْفَعَ إِلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ نومالك ته اختيار دې که غواړی پدوی کښې دې هر یو ته ورکړی ،وَلَهُ أَنْ يَقْتَصِرَ عَلَى صِنْفٍ وَاحِدٍ اوکه غواړي نوپدوی کښې دې په یو صنف (قسم) اقتصار اوکړی (¹) |

**تشریح** > **هم مصارف الزکاة فقط** > ذکرشوی اووه قسمه خلق زمونږ په نیز د زکاة مصارف دی. خود زکاة مستحق نه دی. که مالك د مال په دې اقسامو کښې هرچاته ورکړی . نوهم جائزدي. اوکه پوره زکاة یو قسم خلقو ته ورکړی. یائې یوکس ته ورکړی نوهم جائزدی.

**دلیله** > دلیل دادې چه د .للفقراء، لام د اختصاص دپاره دې. د استحقاق دپاره نه دې. یعنی د صدقاتو مصرف صرف دا اووه اقسام دی. ددې نه علاوه نه دی په دې کښې چه چاته هم صدقه ورکړې شی. په خپل مصرف کښې به خرچ شی. دا مطلب نه دې چه دا اووه واړه اقسام د صدقاتو حقدار دی. چه ترکومه پورې تولو ته ورنکړې شی نو صدقه به نه اداکیږی. اووجه ددې داده. چه زکاة په اصل کښې د

---

¹) **مذهب الشافعي رحمه الله**:- امام شافعی رحمه الله فرمائي چه دا اووه واړه قسمه خلق د زکاة مستحق دی. نوپه اووه واړه قسمه کښې چه د هرقسم درې درې کسانوته زکاة ورکول ضروری دی. ګویا امام شافعی رحمه الله په نیزکه د هرقسم درې درې کسانو ته زکاة ورکړې شو چه ددوی ټول مجموعی تعداد یویشت جوړیږی. نو زکاة به ادا وی. ګنې ادا به نه وی.

الله تعالی حق دي.اود فقيرئ او محتاجئ دعلت په وجه داخلق مصارف شو.ځکه چه الله ﷻ غني دې.ده ته دهيڅ څه حاجت نشته.نوهرکله چه دزکاة مصرف کيدلوعلت فقيری او محتاجي ده.نود محتاجئ مختلف وجوهاتوطرف ته به التفات(توجه)نشی کيدې.يعنی محتاجي که په وجه د فقر وی.يا په وجه د مسکينئ،يا په وجه د غرامت، يا په وجه د مسافرئ وی.ددې لحاظ به نشی کيدلې.بلکه کوم خائې کښې چه هم محتاجی بياموندې شی.هم هغه به د زکاة مصرف وی.

**تائيده بمذهب الصحابة** > دا مذهب دحضرت عمر اود حضرت ابن عباس ؓ دې.په طبرانی کښې ددې آيت تفسير نقل دې.(عن ابن عباس ؓ في قوله تعالى ﴿إِنَّمَا الصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ﴾ (الآيه) قال في أي صنف وضعته أجزأك)يعنی ابن عباس ؓ ﴿إِنَّمَا الصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ﴾ په تفسير کښې فرمائيلې دی.چه کوم قسم ته هم ورکوې.زکاة به اداکيږی.اود حضرت عمر ؓ نه نقل دی.(قال أيما صنف أعطيته من هذا أجزأ عنك) حضرت عمر ؓ فرمائی.چه کوم قسم ته هم ته زکاة ورکړې.نوکافی به وی.

## ذمی ته د زکاة ورکولو حکم

| وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَدْفَعَ الزَّكَاةَ إِلَى ذِمِّيٍّ اوجائز نه دی چه ورکړی ذمی ته |
|---|

**تشريح** > عدم جواز أداء الزكاة إلى الذمي > ذمی ته زکاة ورکول جائز نه دې.

**دليله** > دليل د ابن عباس ؓ حديث دې.(أن رسول الله ﷺ بعث معاذا إلى اليمن فقال إنك تأتي قوما أهل الكتاب فادعهم إلى الشهادة،أن لا إله إلا الله، وإني رسول الله ﷺ فإن هم أطاعوك لذالك فاعلمهم أن الله فرض عليهم خمس صلوات في كل يوم وليلة فإن هم أطاعوك لذالك فإياك وكرائم أموالهم واتق دعوة المظلوم فإنه ليس بينها وبين الله حجاب)[1] (شرح نقايه بحواله کتب سته) يعنی د ابن عباس ؓ نه نقل دی.چه رسول الله ﷺ حضرت معاذ ؓ ديمن قاضی جوړ کړو.اووې ليګلو.نووې فرمائيل.چه ته د اهل کتاب يوقوم ته ورځې.دوی ته د کلمه شهادت(لا إله إلا الله، وإني رسول الله)دعوت ورکړه.که دوی په دې باره کښې ستا فرمان برداری اوکړه.نو دوی ته اووايه.چه الله تعالی په دوی په شپه ورځ کښې پنځه مونځونه فرض کړې دی.اوکه په دوی په دې باره کښې هم ستا اطاعت اوکړی.نودوی خبر کړه.چه الله تعالی په دوی زکاة فرض کړې دې.چه ددوی د مالدارو نه به اخستلې شی.اوددوی فقيرانو ته به ورکولې شی.اوکه ستا په دې کښې هم تابعداری اوکړی.نو ددوی د ښه مال نه بچ اوسه.اود مظلوم بد دعاء نه اوبريږه.ځکه چه د مظلوم بد دعاء اود الله تعالی په مينځ کښې پرده نه وی.حاصل داچه د مسلمانانو نه به اخستلې شی.اوپه فقيرانو کښې به تقسيمولې شی.نود (فتؤخذ من أغنيائهم فترد على فقرائهم)لفظ دلالت کوی.چه غير مسلم ته زکاة ورکول جائز نه دی.

---

[1] من حديث ابن عباس ؓ أخرجه البخاري في الزكاة باب ۹ ومسلم في الإيمان رقم ۲۹ وأبوداود في الزكاة باب ٥ والترمذي في الزكاة باب ٦ والنسائي في الزكاة باب ٤٦ وابن ماجه في الزكاة باب ۱ وأحمد في المسند (۲۳۳/۱)۔

**إعطاء الصدقات إلى الذمي>** اود زکاة نه علاوه ذمی ته هره صدقه ورکول جائزدی.که داصدقه واجب وی اوکه مستحب وی.([1])

**دليله >** دليل دادې.چه نبی کریمﷺ فرمائيلي دی.(تصدقوا على أهل الأديان كلها) ([2]) يعنی د ټولومذهبونو خلقو ته صدقه ورکوئ.داحديث په دوه خبرو دلالت کوی.يودا چه حربی او مستامن ته هم صدقه ورکول جائزدی.خکه چه د ټولو دينونو په خلقوکښې دې هم شامل دې.دويم داچه زکاة ورکول هم جائز دی.خکه چه د تصدقوا لفظ زکاة ته هم شامل دې.

**الاعتراض والجواب>** داحديث بې شکه ددې تقاضاکوی.چه ذمی ته زکاة ورکول هم جائزدی. خود معاذؓ دحديث په وجه مونږ ددې دجواز قائل نه يو.حاصل داچه د نبی کریمﷺ قول (تصدقوا على أهل الأديان كلها) تقاضا کوی. چه ذمی او غيرذمی ټولو ته زکاة ورکول جائزدی.اود معاذؓ حديث د ذمی دپاره دعدم جواز تقاضاکوی.نومونږ د زکاة په سلسله کښې خو د معاذؓ په حديث باندې عمل اوکړو.چه مونږ اوونيل.زکاة صرف مسلمان ته ورکولې شی. ذمی وغيره ته نشی ورکولې.اود نوروصدقاتوپه باره کښې مونږپه حديث(تصدقوا على أهل الأديان كلها) باندې عمل اوکړو.چه مونږ اوونيل.ذمی ته د زکاة نه علاوه نور صدقات مثلاً صدقة الفطر، کفارات وغيره ورکولې شی.

| وَلَايُبْنى بِهَامَسْجِدٌاونه به جوړوی په زکاة مسجد وَلَايُكَفَّنُ بِهَامَيِّتٌاونه به پرې کفن کوی مړی لره. |
|---|

**تشريح > عدم جواز بناء المسجد وتكفين الميت بالزكاة>** مسئله داده.چه د زکاة په مال نه جومات جوړول جائزدی اونه مړی ته کفن ورکول جائزدی.

**دليله >** خکه چه د زکاة رکن مالك جوړول دی.په دې وجه چه الله تعالى زکاة په صدقاتو سره تعبير کړې دې اود صدقه معنی ده.فقير د مال مالك جوړل.نومعلومه شوه.چه د زکاة اداکولو دپاره تمليك يعنی مالك جوړول شرط دی.اوپه جومات جوړولوکښې د تمليك معنی نشته.په دې وجه د زکاة په رقم سره د جومات جوړول جائزنه دی.اوچونکه په مړی کښې هم د مالك جوړيدلو صلاحيت نشته.په دې وجه د زکاة په رقم سره به ده ته کفن ورکول هم جائزنه وی.

**عدم جواز أداء دين الميت بالزكاة >** صاحب دا هدايه ﷫ دا هم فرمائيلی دی چې د زکاة په مال سره د مړی قرض ادکول هم جائزنه دی.خکه چه غيريعنی د مړی قرض اداکول.ددې تقاضانه کوی.چه دا مال د اول نه دمړی په ملك کښې ورکړې وو.بيا دده د طرفه قرض غوښتونکی ته ورکړې شوې دې.خکه چه په مړی کښې داصلاحيت نشته.چه په خپل ملك کښې ئې واخلی.نوچه په دې صورت کښې هم د تمليك معنی نشته.نو زکاة به نه اداکيږی.

**صورة جواز أداء الزكاة في الدين عن الميت>** خوکه ژوندی کس چاته حکم اوکړو چه زما دطرفه زما قرضه اداکړه.ده د زکاة په مال سره قرضه اداکړه.نوزکاة اداکيږی.خکه چه په دې صورت کښې گويا زکاة مديون ته ورکړې شو.بيا قرض غوښتونکی دهغه د طرفه وکيل جوړشو.او قبضه ئې اوکړه.نو مديون

---

[1] مذهب الشافعي﷫:-امام شافعی ﷫ فرمائی.چه ذمی ته هيڅ قسمه صدقه ورکول جائز نه دی.هم دا قول د امام مالك ﷫ دې اوهم دا يو روايت د امام ابويوسف ﷫ دې.

[2] من حديث سعيد بن جبيرؓ أخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه (۳/۳۹)۔

کښې دمالك جوړيدلو معنی اوموندلې شوه.اوچه د مالك جوړيدلو معنی اوموندلې شوه.نودده زکاة به هم اداشي.

| وَلَاتُشْتَرَى بِهَا رَقَبَةٌ تُعْتَقُ اونشی اخستلې په مال دزکاة غلام چه آزاد کړې شي. (۱) |
|---|

**تشريح > تحرير الرقبة بالزكاة >** ①مسئله داده.که د زکاة په مال غلام یا وینځه واخلی.او آزادکړی.نو زکاة به ادا نه وی.

**دليله >** دليل دادې.چه اعتاق د ملك ساقط کولو نوم دې.یعنی د مملوك د سټ نه خپل ملك لرې کول.اعتاق د تمليك(مالك کولو)نوم دې. حالانکه د زکاة رکن تمليك دې.نوچه په اعتاق کښې د مالك کيدلو معنیٰ موجود نه ده.بلکه د ملك د ساقطولو معنیٰ موجود ده.نو زکاة به هم نه اداکيږي.

| وَلَاتُدْفَعُ إِلَى غَنِيٍّ اونه به شي ورکولې زکاة غنی ته (۲) |
|---|

**تشريح > إعطاء الزكاة إلي المجاهد الغني >** يعنی کوم کس چه د نصاب مالك وی.هغه ته زکاة ورکول جائز نه دی.

**دلائله >** ①دليل د رسول اللهﷺ حديث(لاتحل الصدقة لغني) (۳) دې.

② او دغه شان حديث دمعاذ رضي الله عنه لکه چه مونږ روايت کړې دې. (۴)

**چاته زكاة وركول جائز نه دي**

| وَلَايَدْفَعُ الْمُزَكِّي زَكَاتَهُ إِلَى أَبِيهِ وَجَدِّهِ وَإِنْ عَلَا اونه به ورکوی زکاة ورکونکې دخپل مال زکاة خپل پلار ته اونه خپل نيکه ته.اګرچه پورته وی. وَلَا إِلَى وَلَدِهِ وَوَلَدِ وَلَدِهِ وَإِنْ سَفَلَ اونه خپل خوئی ته او نه دخوئی خوئی ته اګر چه دلاندې درجې وی ولاالي امه وجداته وان علت او نه به ورکوی زکاة مور ته او نه نياګانو ته اګرچه پورته وی |
|---|

**تشريح > عدم جواز إعطاء الزكاة إلي الاصول والفروع >** مسئله داده.چه زکاة ورکونکې د خپل مال زکاة نه خپل پلارته ورکولې شی.اونه نيکه ته.اونه دا خپل اوچت اصولو ته يعنی د نيکه پلار، اود هغه نيکه وغيره ته، دغه شان نه مورته ورکولې شی.اونه نياګانوته،(يعنی د پلار مور اود مور مورته)اونه به اولاد ته ورکولې شی.اونه به د اولاد اولاد ته(يعنی نمسو ته)حاصل دا چه نه به اصولوته زکاة ورکوی دچا نه چه دې پيدا شوې دې.اونه به فروع ته ورکولې شی.کوم چه دده نه پيدا شوی دی.غرض داچه دچاسره ئې د ولادت رشته ده.هغوی ته د خپل مال زکاة ورکول جائز نه دې.

**دليله >** دليل دادې.چه د املاك منافع ددې خلقو په مينځ کښې متصل وی.اومشترك وی.نو دوی ته به د زکاة ورکولو په صورت کښې تمليك پوره طورمتحقق نه کيږی.حالانکه تمليك د زکاة رکن دې.

---

۱ ) مذهب مالك رحمه الله:- د حضرت امام مالك رحمه الله په نيز زکاة اداکيږی.

۲ ) مذهب الشافعي رحمه الله:- امام شافعی رحمه الله مالداره غازيانو دپاره د زکاة ورکولو اجازت ورکړې دې.تفصيل ئې مخ کښې تيرشو.خودا حديث اوحديث د معاذ رضي الله عنه «لفترد لی فقرائهم» د دوی خلاف دې.

۳ ) من حديث عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما اخرجه بوداود في الزكاة باب ۲۴ رقم ۱۶۳۴ والترمذی في الزكاة باب ۲۳ رقم ۶۵۲ واحمد في المسند(۲/۱۶٤)

۴ ) تقدم تخريجه من قريب)-

وَلَا إِلٰى امْرَأَتِهِ)اونه به ورکوی خپلې ښځې ته په وجه دمشترك كيدو دتفعو عادتا

تشريح> عدم جواز إعطاء الزكاة إلى الزوجة>اود خاوند خپلې ښځې ته زكاة وركول جائز نه دی.ځكه چه عام طور د ښځې خاوند په مينځ كښې هم منافع مشترك وی.يعنی دښځې مال د خاوند مال، اود خاوند مال د ښځې مال شمارلې شی.اوهر يو د بل د مال نه نفع اوچتوی.

دليله>رسول الله ﷺ فرمائی. ﴿وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنٰى﴾ (الايه)او وې موندلې ته مفلس،بيانې بې پرواه كړې . ددې په تفسيركښې ونيلې شوې دی.چه نبی كريم ﷺ د دوی د بی بی په مال غنی او مالداره شو .معلومه شوه.چه د ښځې په مالداره كيدو سره خاوند مالدار شمارلې شی.اوددې په عكس هم،نوهركله چه داسې ده.نود خاوند خپلې ښځې ته زكاة وركول گويا چه د يوجيب نه اوبل جيب ته اچول دی.اوبنكاره ده چه په دې سره زكاة څنگه اداكيدې شی.

وَلَا تَدْفَعُ الْمَرْأَةُ إِلٰى زَوْجِهَا) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله [1] اونه به وركوی ښځه خپل خاوند ته.په نزد د امام صاحب رحمه الله وَقَالَا: تَدْفَعُ إِلَيْهِ اوصاحبين رحمهما الله فرمائی چه وركوی به ورته

تشريح> إعطاء الزكاة إلى الزوج> ①اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ښځې خپل خاوند ته هم زكاة وركول جائز نه دې.

دليله>دليل دادې.چه د املاك منافع د ښځې او خاوند په مينځ كښې متصل وی.اومشترك وی.نو دوی ته به د زكاة وركولو په صورت كښې تمليك پوره طورمتحقق نه كيږی.حالانكه تمليك د زكاة ركن دې.

مذهب الصاحبين> اوصاحبين رحمهما الله فرمائی.چه دښځې خپل خاوند ته زكاة وركول جائزدی.د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل خودادې.كوم چه وړاندې تيرشو.چه منافع په ښځه خاوند كښې مشترك وی.

دليلهما >اود صاحبينو رحمهما الله دليل هغه حديث دې.كوم چه صحيحين او امام نسائی روايت كړې دې. په فتح القدير كښې داروايت داسې ذكردې. د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه بی بی زينب رضي الله عنها اوونيل چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل .چه اې دښځو ټولگيه، تاسوصدقه وركوئ.اگرچه ستاسو د كالو ځنې وی.زينب وائی چه زه بيا واپس شوم.دعبدالله مسعود رضي الله عنه ته راغلم.اوما اوونيل.چه د سپك ملك مالك نې.او رسول الله ﷺ مونږ ته د صدقه وركولو ارشاد اوفرمائيل .نوته لاړ شه.اود رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړه.كه ماله دا كافی وی.چه دا زه تاته دركړم.گنی چه زه ستاسو نه سوې بل چاته وركړم.زينب وائی.چه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ماته اوونيل.چه هم ته لاړه شه اود رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړه زينب وائی.زه روانه شوم.چه راغلم نوما د رسول الله ﷺ په دروازه باندې يوه انصاری ښځه اوليدله.كوم چه زماحاجت وو.هم هغه د انصاری ښځې هم حاجت وو.(يعنی كوم مقصد چه زما د حاضرئ وو.هم هغه ددې د حاضرئ وو) زينب رضي الله عنها وائی.چه په نبی كريم ﷺ باندې دبدبه او رعب اچولې شوې وو (يعنی ددوی ﷺ په ذات اقدس باندې رعب وو خلقو به چه ددوی سره خبره كوله نوويريدل به) زينب وائی.چه بلال بهر راغې نوما اوونيل.چه ته رسول الله ﷺ ته لاړشه.او خبر وركړه چه په دروازه كښې دوه ښځې دی.ستاسو نه تپوس كول غواړی.چه آيا ددوی دواړو د طرفه ددوی صدقه وركول.خپلو خاوندانو ته او خپلو

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الدري لمختار(٦٩\٢) والبحرالرائق (٢٤٤\٢) والهندية (١٨٩\١) نقلاً عن القول الراجح (١٨٦\١)-

يتيمانو بچوته کافي دی.اودا مه وايه.چه مونږ دواړه ښوك يو.زينب وائي.چه بلال د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضرشو.اوتپوس ئې اوکړو.رسول اللهﷺ بلال ته اوفرمائيل.چه دا دواړه ښځې څوك دي.بلال ورته اووئيل.چه يوه خوانصاري ښځه ده.اويوه زينب ده. رسول اللهﷺ ورته اوفرمائيل.کومه زينب.وې وئيل.چه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنهما بيګم ده. نبی کريمﷺ اوفرمائيل.چه دې دواړو دپاره دوه اجره دی.يود قرابت اجر،اوبل د صدقه اجر. [1] ددې تفصيلی حديث نه معلومه شوه.چه دښځې دپاره خپل خاوند ته زکاة ورکول جائزدی.

**ألجواب عنه ﴾** ددې جواب دادې.چه دا روايت په نفلي صدقاتو باندې محمول دې.يعنی ښځه که نفلي صدقه خپل خاوند ته ورکوی.نودې ته به دوچند اجرملاويږی.يود صله رحمي او دويم د صدقه.د صاحبينو رحمهما الله دطرفه چه کوم حديث پيش شوې دې.د هغې نه هم داښکاره کيږی.خکه چه زينب د خپل خاوند اود خپل تيرشوی خاوند د يتيمانو بچو په باره کښې تپوس کړې وو. اونبی کريمﷺ دواړو ته د ورکولو اجازت ورکړې دې.حالانکه اولاد ته زکاة ورکول بالاتفاق جائزنه دې. نومعلومه شوه.چه په دې حديث کښې نفلی صدقات مراد دی.زکاة نه دې مراد.

## خپل هرقسمه غلام ته د زکاةورکولو عدم جواز

| وَلَايَدْفَعُ إِلٰى مُكَاتَبِهٖ وَلَا مَمْلُوْكِهٖ اونه به ورکوی خپل مکاتب اومملوك غلام ته |
|---|

**تشريح ﴾ عدم جواز إعطاء الزكاة إلي غلامه ﴾** مسئله داده.چه خپل مدبر ته هم زکاة ورکول جائزنه دې.مدبرکه مطلق وی،اوکه مقيد وی.مدبر مطلق هغه دې.چه ده ته آزادی مالك په خپل مرګ سرء معلق کړې وی. مثلاً وې وئيل.چه ته زما د مرګ نه پس آزاد ئې.او مدبر مقيد هغه دې.چه ده ته مولا آزادی په خپل يوخاص قسم مرګ باندې معلق کړې وی.مثلاً وئيلي ئې وی.چه که په فلانکې بيماری کښې مړشوم.نوته آزاد يې.او خپل مکاتب او خپل ام ولد ته هم زکاة ورکول ناجائزدی.

**دليله ﴾** دليل دادې.چه په دې درې واړو کښې تمليك اونه مونده شو.خکه چه مدبر او ام ولد ،من کل وجه، مملوك وی.اود مملوك ګټه د مولا دپاره وی.اود مکاتب په ګټه کښې د مولا حق وی.نودوی ته زکاة ورکول داسې دی لکه چه خپل خان ته ورکول.اود خپل مال زکاة په خپله خپل خان ته ورکولوسره نه اداکيږی.خکه چه د زکاة ادا کولو دپاره د غيرمالك کول شرط دی.اودا معنی دلته موجود نشوه.په دې وجه دوی ته زکاة ورکول تيك نه دی.

**إعطاء الزكاة لإعتاق البعض ﴾** د مسئله صورت دادې.چه يوغلام د دوه کسانو په مينځ کښې مشترك دې.په دوی کښې يوخپله حصه آزاده کړه.اودا آزادونکې تنګدست (غريب)دې نو دويم شريك خپله حصه ازاده کړی.يا په غلام باندې مزدوری اوکړی اود خپلې حصې قيمت وصول کړی. که دويم شريك دخپلې حصې قيمت اخستل اختيارکړل. نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا غلام د دې بل شريك په حق کښې د مکاتب په منزله کښې دې. [2]

---

[1] ) من حديث زينب إمرأة ابن مسعود رضي الله عنهما اخرجه البخاري في الزكاة باب ٤٨ رقم ٧٧٨ ومسلم في الزكاة رقم ٤٥ والترمذي في الزكاة باب ١٢ رقم ٦٣٥ والنسائي في الزكاة باب ٨٢ رقم ٢٤٢١ وابن ماجه في الزكاة باب ٢٤ رقم ١٨٣٤ والدارمي في الزكاة باب ٢٣ واحمد في المسند(٦/٢٦٣)-

[2] ) القول الراجح هو هذا قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في الدري لمختار(٢/٧٠) وخلاصة الفتاوى (١/٢٤٢) والهندية (١/١٩١) نقلاً عن القول الراجح (١/١٨٧)-

**دلیله>** ځکه چه دا داسې شو.لکه چه څوك خپل قرضدارته د خپل مال زکاة ورکړی.بیا هم ددې مال نه خپل قرض وصول کړی.نو په دې کښې هيڅ باك نشته.دغه شان د شريك آخر دپاره جائزدی.چه دې د خپل مال زکاة دې ،معتق البعض،غلام ته ورکړی.

**مذهب الصاحبين>** اود صاحبينو رحمهما الله په نيز آزاد دې.خو دده قرضدار دې.

**دليلهما>** د صاحبينو په نيز دې آزاد مقروض دې او ازاد مقروض ته زکاة ورکول جائز دی نو ده ته هم ورکول جائز شو

**ثمرة الإختلاف>** نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزچونکه دا غلام د بل شريك په حق کښې په منزله د مکاتب دې.اوخپل مکاتب ته زکاة ورکول جائزنه دې.په دې وجه ددې بل شريك دپاره خپل دې غلام ته زکاة ورکول جائزنه دې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيزچونکه دا غلام پوره په پوره ټول آزاد شوې دې.خوددې دويم شريك قرضداردې.په دې وجه دا دويم شريك که ده ته زکاة ورکول اوغواړی.نو شرعاً جائزدې.

### د مالدار غلام ته زکاة ورکول

| وَلَا إِلَى مَمْلُوكِ غَنِيٍّ اونه به ورکوی دمالداره غلام ته. |
|---|

**تشريح> عدم إعطاء الزكاة إلي غلام الغني>** مسئله داده.چه د مالداره مملوك ته زکاة ورکول جائزنه دې.مملوك که غلام محض وی.اوکه مدبر،اوکه ام ولد وی.

**دليله>** دليل دادې.چه د مملوك هرمال د مولا ملك وی.نوکه د مالداره مملوك ته زکاة ورکړې شو.نودا د زکاة مال به د مالداره په ملك کښې داخل شی اود غنی دپاره زکاة جائز نه دې.په دې وجه به دده د مملوك دپاره هم جائز نه وی.البته د مالداره مکاتب ته زکاة ورکول جائزدی.او وجه د جواز نص قرآنی {وَفِي الرِّقَابِ} دې.

### د مالدار ځوی ته زکاة ورکول

| وَلَا إِلَى وَلَدِ غَنِيٍّ إِذَا كَانَ صَغِيرًا اونه به ورکوی دمالداربچی ته کله چه هغه نابالغ وی. |
|---|

**تشريح> عدم جواز إعطاء إلي ولد الغني>** مسئله داده.چه د مالداره نابالغ بچی ته هم زکاة ورکول جائز نه دې.

**دليله>** ځکه چه نابالغه اولاد د خپل پلار د مال په وجه مالداره شمارلې شی.

**جواز اعطاء الزكاة الي ولد الغني الكبير>** اوکه د مالداره اولاد بالغ وی او فقيران وی.نو زکاة ورکول جائز دی.

**دليله:** ځکه چه بالغ اولاد د خپل پلار د مالداره کيدلو په وجه مالداره نه شمارلې کيږی. اگرچه ددوی نفقه ددوی په پلار باندې واجب ده.خو چونکه دې په حقيقت کښې پخپله فقير دې.په دې وجه دوی ته زکاة ورکول جائز دی.

### بنوهاشم ته د زکاة ورکولو حکم

| وَلَا يَدْفَعُ إِلَى بَنِي هَاشِمٍ اوزکاة به نه ورکوی بنوهاشم ته |
|---|

**تشريح> عدم جواز إعطاء الزكاة إلي بني هاشم>** بنوهاشم ته هم زکاة ورکول جائز نه دی.

**دليله>** دليل د رسول الله ﷺ ارشاد دې.علامه ابن الهمام رحمه الله دا حديث په دې الفاظوسره ذکرکړې دې.

(یابنی هاشم إن الله کره لکم غسالة أیدی الناس وأوساخهم وعوضکم منها بخمس الخمس)([1]) یعنی ای بنوهاشم الله تعالی ستاسو دپاره د خلقود لاسونو وینځلی شوي (اوبه) اود هغې خیرې ناخوښه کړې دي.اود هغې په عوض کښې تاسې ستاسو دپاره د خمس، خمس درکړې دي.یعنی دمال غنیمت د پنځوحصو نه څلورحصې خو په غازیانوکښې تقسیمیږی. اوپاتې شوه یوه حصه، نوددې به بیا پنځه حصې کولې شی.په دې کښې یوه حصه خود بنوهاشم ده.او باقی څلور حصې به په نورو مصارفو کښې خرچ کولې شی.

**جوازإعطاء الصدقة التطوع إلي بني هاشم**< په خلاف د نفلی صدقاتوچه دا بنوهاشم ته ورکولې شی. دلیل دا دې.چه مال دلته کښې د اوبو په شان دې.نوکه اوبه د فرض ساقطولو دپاره یعنی د حدث لرې کولو دپاره استعمال کړې شی.نو اوبه ګنده شمارلې شی.دغه شان کوم مال چه د فریضه ساقطولو دپاره استعمال کړې شی.هغه به هم دخیرونه ډک اوګنده شمارلې شی.اوکه څوک غیرمحدث وی.اودې بیا د یخوالی حاصلولودپاره اوبه استعمال کړی.نودا اوبه پاکې او مطهرې دی.تردې چه په دې اودس کول هم جائز دې.دغه شان د نفلی صدقاتومال هم پاك دې.د بنوهاشم دپاره ددې اخستل جائزدې.

## د بنوهاشم مصداق

| وَهُمْ آلُ عَلِيٍّ وَآلُ عَبَّاسٍ وَآلُ جَعْفَرٍ وَآلُ عَقِيلٍ وَآلُ حَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ اوبنو هاشم، آل علی،آل عباس او آل جعفراو آل دعقیل او آل دحارت بن عبدالمطلب وَمَوَالِيهِمْ او ددوی موالی دی. |
|---|

**تشریح** < **من هم بنو هاشم**< په دې عبارت کښې خودلې شوې دی چه بنوهاشم کوم خلق دی.نو فرمائی.چه دحضرت علی﷛ اولاد که د فاطمه ﷝ د بطن نه وی.اوکه د نورو بیبیانو د بطن نه وی.اوپه خپله حضرت علی﷛ هم په بنوهاشم کښې داخل دې.اود حضرت عباس﷛ اولاد سره د عباس﷛ نه.اوجعفر﷛اود جعفر﷛ اولاد ،او عقیل﷛ اود عقیل﷛ اولاد ،اوحارث بن عبد المطلب﷛ او ددوی اولاد ،اوددوی آزاد شوی غلامان ټول بنوهاشم کښې داخل دی.

**دلیل عدم استحقاق بني هاشم** < ذکرشوی حضرات او ددوی اولاد بنوهاشم په دې وجه دی.چه دا ټول حضرات د نبی کریمﷺ جد اعلی هاشم بن عبدمناف طرف ته منسوب دی.اوقبیله بنوهاشم، د هاشم بن عبد مناف طرف ته د منسوب کیدلو په وجه ورته هاشمی ونیلې شی.

**دلیل عدم استحقاق موالي بني هاشم** < او ددوی موالی یعنی آزاد شوی غلامانو ته هاشمی په دې وجه ونیلې شی.چه په ابوداؤد کښې تفصیلی روایت موجود دې.(عن أبي رافع مولا رسول اللهﷺأن النبی﷛بعث رجلاً من بنی مخزوم علی الصدقة فقال لأبي رافع أصحبني فإنك تصیب منها قال حتی آتی النبیﷺ فأسله فأتاه فسأله، فقال مولا القوم من أنفسهم وأنا لاتحل لنا الصدقة)([2])د نبی کریمﷺ آزاد شوي غلام ابورافع نه روایت دې.چه رسول اللهﷺ د بنومخزوم یوکس د صدقاتو په وصولولو باندې عامل مقررکړو.ده ابورافع ته اوونیل.چه ماسره

---

[1]) غربه الزیلعی ﷬ بهذا اللفظ ثم ذکرحدیث عبدالمطلب بن ربیعه مرفوعاً إن هذه الصدقات إنما هي أوساخ الناس وانها لا تحل لمحمد ولآل محمد الحدیث (نصب الرایة (۴۲۰/۲)ـ

[2]) من حدیث أبي رافع مولی رسول الله﷩ أخرجه أبوداود في الزکاة باب ۲۹ رقم ۱۶۵۰ والترمذی في الزکاة باب ۲۵ رقم ۶۵۷ والنسائي في الزکاة باب ۹۷ رقم)ـ

لاړشه.چه د صدقاتو نه تاته هم ملاوشی.ابورافع اوونیل.چه نه.تردې چه زه نبی کریمﷺ ته لاړشم اوتپوس اونکړم.بیا ابورافع په دربار رسالت کښې حاضرشو.تپوس نې اوکړو.(چه ماله صدقه حلاله ده ؟)نبی کریمﷺ اوفرمانیل.چه د یوقوم مولا(غلام)هم د هغه قوم کس وی.اومونږ خلقو ته صدقه حلاله نه ده.یعنی دبنوهاشم موالی هم چونکه په بنوهاشم کښې شامل دی.په دې وجه د بنوهاشم په شان ددوی دپاره هم صدقه حلال نه ده.

**جواز أخذ الصدقة لأولاد أبي لهب**>ددې خبرې لحاظ به ساتلې شی.چه ابولهب چه د نبی کریمﷺ تره دې .اود هاشم بن عبد مناف په اولاد کښې دې.که دده په اولادکښې څوك مسلمان وی.نو دده دپاره صدقه حلاله ده.څکه چه د بنوهاشم دپاره صدقه ددوی د اکرام په لحاظ سره حرامه شویده.اودا اکرام خو رومبې د آباء(نیکونو)دپاره ثابت دې. بیاددوی په وجه ددوی د اولاد دپاره ثابت دې.اود بنوهاشم اکرام په دې وجه ضروری شوې دې.چه دوی د جاهلیت اود اسلام په زمانه کښې د رسول اکرمﷺ نصرت اومدد کړې دې. اوبدبخت ابولهب معصوم نبیﷺ ته اذیت ناك تکلیفونه رسولی دی.په دې وجه نه دې د اکرام مستحق دې. اونه دده اولاد د اکرام مستحق دې.اګرچه دده اولاد مسلمان وی.په دې وجه دده د مسلمان اولاد دپاره هم صدقه حلاله ده.

## مستحق ګنړل او زکاة ورکول

| قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ: امام ابوحنیفه اوامام محمد رحمهما الله فرمانی إِذَا دَفَعَ الزَّكَاةَ إِلىٰ رَجُلٍ يَظُنُّهُ فَقِيرًا ثُمَّ بَانَ أَنَّهُ غَنِيٌّ أَوْهَاشِمِيٌّ أَوْكَافِرٌ هرکله چه زکاة ورکړو یوسړی ته چه ګمان نې پرې د فقیر وو.بیا ښکاره شوه چه هغه غنی وو یا هاشمی وو یاکافر وو أَوْدَفَعَ فِي ظُلْمَةٍ إِلىٰ فَقِيرٍ فَبَانَ أَنَّهُ أَبُوهُ أَوِابْنُهُ فَلَا إِعَادَةَ عَلَيْهِ (۱)یا نې په تیاره کښې فقیر ته ورکړو نو ظاهره شوه چه هغه دده پلار یا نې خوئې وو. پدد اعاده نشته دې. |
|---|

**تشریح**> **الصور الثلاث في إعطاء الزكاة إلى غير المستحق**>مسئله داده.چه یوکس څوك د زکاة مصرف اوګنړلو.او زکاة نې ورکړو.نو اوس ددې درې صورتونه دی. ①دا چه روسته معلوم شو.چه چاته نې زکاة ورکړې دې.هغه د زکاة مصرف دې. ②داچه مزکی(زکاة ورکونکی) ته دده حال قطعاً معلوم نشو.چه چاته زکاة ورکړې شوې دې.دا د زکاة مصرف دې اوکه نه. ③داچه مزکی ته معلوم شو.چه چاته زکاة ورکړې شوې دې.دا د زکاة مصرف نه دې.مثلاً چاته چه د زکاة د مصرف په خیال زکاة ورکړې شوې دې.هغه مالداره دې.یا هاشمی کورنۍ سره تعلق ساتی.یاکافر دې.یا د مزکی پلاردې یا دده خوئې دې.په رومبو دوه صورتونوکښې به په اتفاق سره زکاة ادا کوی.

**الصورة الثالثة**>اوپه دریم صورت کښې د طرفینو رحمهما الله په نیز خوجانزدې. ①د طرفینو رحمهما الله په نیز به په دې صورت کښې دوباره زکاة ورکول لازمې نه وی.بلکه کوم چه ورکړې شوې دې.هم هغه کافی دې.

**دلیلهما**>د طرفینو رحمهما الله دلیل د امام بخاری رحمه الله دبیان مطابق د معن بن یزید حدیث دې. علامه ابن الهمام رحمه الله په فتح القدیر کښې او ملاعلی قاری رحمه الله په شرح نقایه کښې دا حدیث په دې الفاظوسره ذکر کړې دې.(عن معن بن يزيد قال بايعت رسول اللهﷺ أنا وأبي وجدي وخطب على فأنكحني وخاصمت إليه وكان أبي يزيد

(۱) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة ومحمد رحمهما الله كذا في العناية (۲\۲۱٤) وردالمحتار(۲\۷٤) والبحرالرائق (۲\۲٤۸) والهندية (۱\۱۹۰) والفقه الإسلامي وأدلته (۲\۸۸۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۸۸)۔

اخرج دنانير يتصدق بها فوضعها عند رجل في المسجد فجئت فاخذتها فاتيته بها فقال والله ما اياك اردت فخاصمته الى رسول الله ﷺ فقال لك مانويت يا يزيد ولك ما اخذت يا معن) (۱) معن بن يزيد وائي.چه ما او زمامور او پلار او زما نيكه رسول الله ﷺ سره بيعت اوكړو.اوهم دوى زما د نكاح پيغام وركړو.اوهم دوى زما نكاح اوكړه.اوما په يوه مسئله كښې دوى سره مخاصمه (جګړه) اوكړه.(معن بن يزيد دخپل تعارف نه پس اوفرمائيل)چه زماپلار يزيد د اشرفو يوه تهيلۍ راويستله.چه داصدقه كړى.نودا ئې په جومات كښې يوكس سره كيخودله.بياما دغه اشرفۍ راواخستلې. او راغلم.(زما پلار يزيد)اووئيل.چه والله ما ستا نيت نه ووكړې.نوما دا معامله په دربار رسالت كښې پيش كړله.نونبى كريم ﷺ اوفرمائيل.اى يزيده ! ستادپاره هغه ثواب دې.كوم چه تا نيت كړې دې.او اى معن ستا دپاره دا اشرفۍ دى.كومې چه تا راخستې دى.

**الإستدلال**﴿په دې حديث كښې يزيد ته د دوباره كولو او معن ته د واپس كولوحكم نه دې وركړې شې. حالانكه معن ته دده د پلار(يزيد)وكيل د پلار صدقه وركړې وه.ددې حديث نه معلومه شوه.چه كه روسته په غيرمصرف كښې د زكاة وركولو علم اوشو.نوپه مزكى به د زكاة اعاده واجب نه وى.بلكه ړومبې زكاة به ادا شمارلې شى.كه څوك دا اووائى.چه ممكن ده.يزيد دَ نفلى د صدقه اشرفۍ وركړې وى.اونفلى صدقه د خوى دپاره جائزده.نودا حديث د طرفينو ﷫ مستدل څنګه كيدې شى.نوددې جواب دادې.چه بې شكه چه دا احتمال شته. خود رسول اكرم ﷺ په قول(لك مانويت)كښې د ما موصوله په وجه عموم دې. يعنى د هر نيت صدقه كښې جواز دې. يعنى كه د نفلى صدقه نيت اوكړى. نو ددې ثواب به ملاويږى. اوكه د زكاة(مفروضه صدقه)نيت اوكړى.نوددې ثواب به ملاويږى.

②دطرفينو ﷫ دويم دليل دادې.چه په ذكرشوې څيزونو باندې معلومات حاصلول ممكن دى.داخبره منو.خوددې څيزونو علم به د ظن غالب په طوروى.د يقين په طوربه نه وى.څكه چه داخبره ډيره مشكله ده.چه په قطعى طور دڅا محتاجى معلومه كړې شى.نوپه دې څيزونوكښې د حكم بنياد به هم په هغه اجتهاد اوظن غالب باندې وى.كوم چه دده په نيز واقع شى.تردې كه دده په نيز دا اعتقاد واقع شو.چه داكس فقيردې.نوده ته به د زكاة په وركولو سره د الله تعالى دحكم اطاعت اوشى.او زكاة به ادا شى.

**نظيره**﴿اودا داسې ده.لكه چه په مونځ كونكى باندې د قبله طرف مشتبه شى.بيا ده تحرى اوكړه.او مونځ ئې اوكړو.نودده مونځ اداشو.اګرچه روسته معلوم شى.چه ده صحيح طرف ته مخ كولوسره مونځ نه دې كړې.څكه چه ددې بنياد په اجتهاد دې.په يقين باندې نه دې.نو څنګه چه تحرى واقع شى.هغه طرف ته به مونځ اداوى.دغه شان زكاة اداشو.اګرچه روسته معلومه شى.چه چاته زكاة وركړې شوې دې.هغه د زكاة مصرف نه وو.

**وَقَالَ أَبُويُوسُفَ عليه الْإِعَادَةُ**)او امام ابويوسف ﷫ فرمائى چه پده اعاده لازمه ده.

**تشريح**﴿ **مذهب ابي يوسف**﷫ ﴾ او امام ابويوسف ﷫ فرمائى.چه په دې صورت كښې به زكاة ادا نه وى.بلكه په مزكى به دوباره زكاة وركول لازم وى.او مزكى چه كوم مال د زكاة په طور وركړې دې.هغه به د هغه نه واپس نه اخلى.

---

(۱) من حديث معن ﷺ اخرجه البخارى في الزكاة باب ۱۵)_

**دلائله**> د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه مزکی ته په یقین سره معلوم شوې ده.چه ما په زکاة اداکولو کښې غلطی کړیده.او زکاة مې په غیر مصرف کښې ورکړې دې.اود مزکی دپاره په دې څیزونو باندې خان خبرول،چه چاته مې زکاة ورکړې دې.هغه مالداره دې اوکه نه دې.هاشمی دې اوکه غیرهاشمي دې.کافر دې اوکه مسلمان دی.دده پلار یا خوې دې اوکه نه دې، ممکن هم وو. نو هرکله چه په دې څیزونو خبریدل ممکن وو.او مزکی ته په یقین سره د خپلې غلطۍ علم هم اوشو.نو ونیلې به شی.چه د زکاة مصرف د نه موجودیدلو په وجه دده زکاة ادا نشو.اوچه زکاة ادا نشو.نوددې اعاده به واجب وی.

④ اوځکه چه پدې څیزونو خبرداري په ذریعه د اجتهاد ده نه که په قطعی طور. نوبناء دکار به پدې څیزونو کښې په دې اجتهاد وی کوم چه دده په نزد واقع وی

**جواب**> د دې جواب د طرفینو د دویم دلیل په ضمن کښې شوې دې په هغې باندې یوځل بیا نظر واچوه او جواب باندې خان پوهه کړه

④ **نظائره** >اودا بالکل داسې دې. ①لکه چه لوښې د ناپاکه لوښو سره ملاؤشی.چا تحری اوکړه.اود یو لوښی په اوبوسره ئې اودس اوکړو.بیابنکاره شوه.چه ددې لوښې اوبه ناپاکه وې.نوپه دې صورت کښې د اودس اعاده لازم ده. ②دغه شان که پاکې کپړې د ناپاکه کپړوسره ملاؤ شوې.اوځه داسې علامت هم نشته.چه په هغې سره ددې پاك یا ناپاك کیدل معلوم شی.نوپه دې کس د مونځ اعاده واجب ده.امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه څنګه په دې دواړه صورتونوکښې د اودس اود مونځ اعاده لازمی ده.دغه شان د زکاة په مسئله کښې به د زکاة اعاده هم لازمی وی.اوپه غیرمصرف کښې ورکړې شوې مال به واپس په دې وجه نه اخلی.چه د زکاة د فاسد کیدلوجهت(وجه) ادا نشی ماتولې.نو رومبې ادا به په خپل حال باقی پاتې وی.خود اداکولو د طریقې فاسدکیدلو په وجه به په ده دوباره زکاة ورکول لازمی وی.

**الروایتان عن ابي حنیفة في إعطاء الزکاة إلی الغني**①>د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دا دې.چه د زکاة ورکولو نه پس دا ښکاره شی.چه چاته زکاة ورکړې شوې دې.هغه مالداره دې.نو زکاة ادا شو.دوباره د ورکولو ضرورت نشته.اوکه ښکاره شی.چه چاته زکاة ورکړې شوې دې.هغه هاشمی دې.یا کافردې.یادده پلاردې.یادده خوې دې.نو زکاة ادا نشو.بلکه ددې اعاده ضروری ده.ددې رائې دلیل دا دې.چه غنی فی الجمله د زکاة مصرف دې.لکه عامل او ساعی اګرچه مالداره وی.دوی ته زکاة ورکول جائزدی.خو هاشمی کافر،د مزکی پلار اودده خوئې قطعاً د زکاة مصرف نه دی.په دې وجه که مالداره فقیراوګڼړی.او زکاة ورکړی.نوزکاة به اداوی.ځکه چه مالدار فی الجمله د زکاة مصرف دې.اوپه باقی صورتونو کښې به زکاة ادا نه وی.ځکه چه هاشمی او کافر وغیره په هیڅ حال کښې هم د زکاة مصرف نه دې.صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی.چه ظاهرالروایة رومبې قول دې.یعنی په ټولو صورتونو کښې زکاة ادا شو.چه کله ده مصرف ګنړلې وی.او زکاة ئې ورکړې وی.

**جوازأداء الزکاة بعد التحری**> صاحب د هدایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه په غیرمصرف کښې زکاة ورکولو سره د زکاة ادا کیدل هغه وخت دی.چه کله زکاة ورکونکی تحری کړې وی.او زکاة ئې ورکړې وی.او دده غالب ګمان داوو.چه داکس د زکاة مصرف دې.اوکه مزکی ته شك وی. چه د زکاة مصرف دې.اوکه نه دې.خوددې باوجود ئې تحری اونکړه.بلکه بغیر د تحری نه ئې هغه ته زکاة ورکړو.یا تحری ئې اوکړه.او زکاة ئې ورکړو.خوغالب ګمان ئې داوو.چه داد زکاة مصرف نه دې.نوپه دې دوارو صورتونو کښې به زکاة ادا نه وی.خوکه روسته ښکاره شی.چه چاته ئې زکاة ورکړې دې.هغه فقیر دې.نو زکاة به

اداشي.اوهم دا صحيح قول دي.

**خپل مکاتب يا غلام ته زکاة ورکول**

| |
|---|
| وَلَوْدَفَعَ إِلَى شَخْصٍ ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ عَبْدُهُ مُكَاتَبُهُ لَمْ يُجْزِئْ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا که چاته ئې زکاة ورکړو بيا معلومه شوه چه دا دده غلام دي.يا ئې مکاتب دي.نونه دي ادا شوې |

**تشريح**> **عدم جواز الزکاة إلي المکاتب والغلام**>مسئله داده.چه يوکس بغيرد شناخت نه يوکسس ته زکاة ورکړو.بيا معلومه شوه.چه چاته ئې زکاة ورکړې دي.هغه دده غلام دي.يادده مکاتب دي.نودده دا زکاة به ادا نه وي.

**دليله**>خکه چه په غلام کښې د ملك اهليت نشته.په دې وجه تمليك بالکل موجود نه دې.حالانکه د زکاة اداکولو رکن تمليك(مالك کيدل)دې.اومکاتب چونکه رقبةً مملوك دې. اگرچه يداً آزاد دې.نوپه يو اعتبارسره مکاتب،او دده د مال مالك هم مولا دې.په دې وجه خپل مکاتب ته زکاة ورکولوکښې تمليك موجود شو.خو ناقص تمليك اوموندې شو. حالانکه د زکاة اداکولو رکن کامل تمليك دې. ناقص تمليك نه دې.

**صاحب نصاب ته زکاة ورکول**

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ دَفْعُ الزَّكَاةِ إِلَى مَنْ يَمْلِكُ نِصَابًا اوجائز نه دی ورکول دزکاة هغه چاته چه مالك دنصاب وی. مِنْ أَيِّ مَالٍ كَانَ اگر چه د هرچا مال نه چه وی. |

**تشريح**> **عدم جواز أداء الزکاة إلي مالك النصاب**> مسئله داده.که څوك د نصاب په مقدار مالك شو.که داد سرو اوسپينو زرو نصاب وی.اوکه د څاروو نصاب وی.اوکه د نوروسامانونو نصاب وی.اوکه د مال، که نامی وی.او که غيرنامی.

**دليله**>دليل دا دې چه په شريعت کښې د غنا او مالدارئ دارومدار په نصاب دې چې يو کس د نصاب مالك وی نو هغه مالدار دې که د هر قسم نصاب مالك وی

**توضيح الحاجة الأصلية**> په دې شرط چه د حاجت اصليه نه زياتی وی.نوده ته زکاة ورکول جائزنه دې.حاجت اصليه لکه چه دده په ذمه قرض وی.يادہ ته ددې د استعمال ضرورت وی.مثلاً د يو عالم سره دومره قدرې کتابونه وی.چه ددې قيمت د نصاب اندازه ته رسی.خودې ددې کتابونو محتاج دې.اوپه درس تدريس کښې پکار راځی.نه دې عالم له زکاة اخستل جائزدی. خکه چه دې اگرچه د نصاب مال دې. خودا نصاب د حاجت اصليه نه زياتی نه دې. په دې وجه ده له د زکاة اخستل ټيك نه دی.

**ألسوال والجواب**> اوباتې شوه داچه صاحب نصاب ته د زکاة ورکولوعدم جواز دپاره د نصاب کيدلوهيځ شرط اونه لګولې شو.نوددې جواب دادې.چه د مال نامی کيدل د زکاة دوجوب شرط دې.د زکاة اخستلودپاره دعدم جواز شرط نه دې.نوکه څوك د نصاب غيرنامی مالك وی.نوپه ده به زکاة خو واجب نه وی.خوچونکه دې د شريعت په نظرکښې مالداره دې.په دې وجه دده دپاره زکاة اخستل جائزنه دی.

**د نصاب نه کم مالك ته زکاة ورکول**

| |
|---|
| وَيَجُوزُ دَفْعُهَا إِلَى مَنْ يَمْلِكُ أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ اوهغه ته زکاة ورکول جائز دی کوم چه ددې نه دکم (مال) مالك وی وَإِنْ كَانَ صَحِيحًا مُكْتَسِبًا اگر چه وی تندرست اوګټه کونکې. |

**تشريح**> **دفع الزکاة إلي مالك أقل النصاب**> ① مسئله داده.چه زمونږپه نيزڅوك د نصاب نه دکم مال مالك

وي. اګرچه تندرست او ګټونکې وي. ده ته زكاة وركول جائز دي.

**دلائله** ① زمونږ دليل دادې چه كوم كس د نصاب مالك نه وي. د شريعت په نظر كښې دې فقير شمارلې شي. غنى نشي شمارلې. اود زكاة مصرف فقيران وي. نوهركله چه داكس شرعاً فقير دې. نوده ته به زكاة وركول هم جائز وي.

② دويم دليل دادې. چه د فقر اومحتاجي په حقيقت باندې خبريدل خو ډيرزيات ګران دي. ځكې چه فقر او محتاجي يو پټ امردې. اوقاعده ده. چه كوم امرخفى (پټ) وي. نوددې دليل به ددې قائم مقام ګرځولې شي. په دې دليل به ددې حكم لګولې شي. لكه چه انزال موجب دغسل دې. خوكه چا دخپلې ښځې سره جماع اوكړه. تردې چه دخول هم موجود شو. خو انزال اونشو. نوپه دې صورت كښې هم التقاء د ختانينو د انزال قائم مقام ګرځولې شي. اوپه دې به د غسل د وجوب حكم لګولې شي. اودغه شان كه چا خپلې ښځې ته اوونيلې. «إن كنت تحبيني فأنت طالق» دې جواب وركړو. «أحبك» يعنى كه ته ماسره محبت كوې. نه تاته طلاق دې. هغې اوونيل. زه ستاسره محبت كوم. نوطلاق به واقع شي. ځكه چه محبت يومخفى څيز دې. نوددې قول «احبك» قائم مقام ګرځولې شي. او په دې به حكم لګولې شي. دغه شان فقر امر خفى دې. خوددې دليل يعنى دنصاب كيدل يوښكاره امر دې. په دې وجه به دا د فقر قائم مقام ګڼړلې شي. او ونيلې به شي. چه كوم كس د نصاب مالك نه وي. هغه فقير دې. اوفقير ته زكاة وركول جائزدي. نوده ته به هم زكاة وركول جائز وي.

## د يوښار نه بل ته زكاة منتقل كول

| |
|---|
| **وَيُكْرَهُ نَقْلُ الزَّكَاةِ مِنْ بَلَدٍ إِلَى بَلَدٍ آخَرَ** اومكروه دي د زكاة مال د يوكلي نه بل كلي ته اوړل. **وَإِنَّمَا يُفَرِّقُ صَدَقَةَ كُلِّ قَوْمٍ فِيهِمْ** بلكه دهرقوم زكاة به په دوى كښې تقسيمولې شي. |

**تشريح** **كراهة نقل الزكاة من بلد إلى بلد** مسئله داده. چه د زكاة مال د يوښار نه بل ښار ته منتقل كول مكروه دي. بلكه د كوم قوم نه چه زكاة اخستلې شوې دې. هم په هغه قوم كښې دا تقسيم كړې شي.

**دلائله** ① دليل خود معاذ رضي الله عنه حديث «خذ من أغنيائهم وترد إلى فقرائهم» دې.[1] يعنى دكوم خانې د مالدارونه چه زكاة اخستلې شوې دې. هم د هغه خانې په فقيرانو باندې تقسيم كړې شي. ② دويم دليل دا دې. چه د زكاة به نه منتقل كولوكښې د ګاونډى توب د حق رعايت دې. اوپه منتقل كولوكښې ددې ترك كول لازميږي.

| |
|---|
| **إِلَّا أَنْ يَحْتَاجَ أَنْ يَنْقُلَهَا الْإِنْسَانُ إِلَى قَرَابَتِهِ** مګر داچه ضرورت وي ددې چه يوسى بنده دا خپلوانو ته **أَوْ إِلَى قَوْمٍ هُمْ أَحْوَجُ إِلَيْهِ مِنْ أَهْلِ بَلَدِهِ** اويا د يو داسې قوم دپاره چه ددې ښار دخلقونه زيات محتاج وي. |

**تشريح** **عدم الكراهة** خوكه په دويم ښار كښې خوك رشته دار اوسيږي. يا دبل ښارخلق دده دښار دخلقو نه زيات محتاجه وي نومنتقل بغير دكراهته جائزدي

**دليله** په دې صورت كښې عدم كراهت په دې وجه دې چه كه په دويم ښاركښې دده رشته دار وي. نودوى نه په زكاة وركولو كښې د زكاة دثواب نه علاوه صله رحمى هم ده. اوكه دبل ښار خلق زيات

[1] تقدم تخريجه

محتاج وی.نوبه دې وجه (مکروه نه دې)چه د زکاة مقصود د محتاج حاجت لرې کول دی.اوکوم کس چه زیات محتاج وی.هغه زیات مستحق وی.

**نفس جواز النقل مع الكراهة**> څوکه د رشته دارانو اود زیات محتاج خلقو نه علاوه دنورو خلقو دپاره بل ښارته زکاة منتقل کړی.نوهم جائز دې.اګرچه داسې کول مکروه دی.ځکه چه په قرآن پاك ﴿إِنَّمَا الصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ﴾ (الایه) کښې د زکاة مصرف مطلقاً فقیران خودلې شوی دی.د ګاوند فقیران یاد یوځائې دفقیرانو څه تخصیص نه دې بیان شوې.او الله ښه پوهیږی.

**د صدقة الفطر بیان**

# بَابُ صَدَقَةِ الْفِطْرِ

(دا) باب د صدقة الفطر (په بیان کښې ) دې.

**تشریح**> **ألربط بما قبله**> په صدقة الفطر او زکاة کښې مناسبت ښکاره دې.چه دواړه مالی عبادتونه دی. خوصدقة الفطرواجب دې.او زکاة فرض دې.په دې وجه صدقة الفطر په نسبت د زکاة یوه درجه کمتر دې.په دې وجه د صدقة الفطر احکام د زکاة د احکامو نه روسته ذکرکړې شو.

**وجه تسمية الصدقة**> د صدقه معنی،عطیه،ده.خومراد هغه عطیه ده.کومه چه د تقرب الهی په امید سره ورکړې شی.اود صدقه نوم ایخودلو وجه داده.چه په دې سره په ثواب حاصلولو کښې د شوق صداقت ښکاره کیږی.لکه څنګه چه په صداق(مهر)سره د ښځې په سلسله کښې د سړی د شوق صداقت ښکاره کیږی (عنایه)

**معني الفطر**>او فطر،د فطرت نه ماخوذ دې.په معنیٰ د نفس اوخلقت،ځکه چه دا صدقه د هرنفس د طرفه ورکولې شی.تردې چه د اختر په روښانه شپه کښې د صباصادق نه وړاندې چه کوم ماشوم پیداشی.د هغه د طرفه هم ورکولې شی.

**الفطر في الشريعة**>اوپه شریعت کښې صدقة الفطرهغه صدقه ده.کومه چه د عبادت،اود صله په طور دمهربانئ په خیال ورکولې شی.

**سببه**> د صدقة الفطر مشروع کیدلو سبب په سنن ابی داؤد او ابن ماجه کښې دادې(**عن ابن عباس رضي الله عنه فرض رسول الله ﷺ زكاة الفطر طهرللصائم من اللغو والرفث وطعمة للمساكين من أداها قبل الصلاة فهي زكاة مقبولة ومن أداها بعد الصلاة فهو صدقة من الصدقات**) حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه نقل دی.چه نبی کریم ﷺ صدقة الفطر فرض اوفرمائیل. چه د روژه نیولودپاره لغو اود بې هوده نه پاکونکې دې.اود مسکینانودپاره طعام دې.نوچاچه دا دمونځ نه وړاندې اداکړله.نودا مقبول زکاة دې.اوچاچه د مونځ نه پس اداکړله.نود نورو صدقاتو په شان یوه صدقه ده.

**تاريخ وجوب صدقة الفطر**>دا په ذهن کښې ساتل پکاردی.چه د صدقة الفطر وجوب د زکاة د حکم نه مقدم دې.لکه څنګه چه حافظ ابن حجرد نسائی او ابن ماجه په حواله سره دحضرت قیس بن سعد بن عباده رضي الله عنه روایت نقل کړې دې.چه(**أمرنا رسول الله ﷺ بصدقة الفطر قبل أن تنزل الزكاة.....الحديث**) یعنی رسول اکرم ﷺ مونږ ته د نزول زکاة نه وړاندې دصدقة الفطرحکم راکړې وو.

**د صدقة فطر شرعی حکم**

**صَدَقَةُ الْفِطْرِوَاجِبَةٌ عَلَى الْحُرِّ الْمُسْلِمِ** صدقه فطرواجب ده په آزاد مسلمان **إِذَاكَانَ مَالِكًا لِمِقْدَارِ النِّصَابِ**

فَاضِلًا عَنْ مَسْكَنِهِ وَثِيَابِهِ وَأَثَاثِهِ وَفَرَسِهِ وَسِلَاحِهِ وَعَبِيدِهِ للخدمة هركله چه مالك وى دمقدار دنصاب كوم چه فاضل وى دده د رهائش جامو اسباب اواس دده او وسلې دده او خدمتې غلامانودده نه.

**تشريح**> **حكم صدقة الفطر**> زمونږ په نيز صدقة الفطرواجب ده. يعني په داسې دليل سره ثابت ده.چه په هغې كښې شبه ده.

**شروط وجوب صدقة الفطر**> په چاچه صدقة الفطر واجب وى.دهغه دپاره يوڅوشرطونه دى① آزاد وى ② مسلمان وى ③د نصاب په مقدار مالك وى.

دانصاب كه نامى وى.اوكه نامى نه وى.خوچه دضروريات اصليه نه زياتي وى.مثلاً د اوسيدو كور،د اغوستلو كپړې، دكور د استعمال سامان،د سوارلۍ اسونه،(نن صبا دخان داستعمال دپاره سائيكل، موټر سائيكل، موټر وغيره د استعمال اسلحه،اود خدمت د غلامانو نه زياتي وى.نوكه دچاسره دوه كورونه وى.چه په يوكښې اوسيږى. او په بل كښې نه اوسيږى.كه هغه نې په كرايه باندې وركړې وى.ياني په كرايه باندې نه وى وركړې.په غنىٰ (مالدارۍ)كښې به ددې قيمت معتبروى.ترڅې چه كه ددې قيمت دوه سوه درهمه برابروو. نوپه ده به صدقة الفطر واجب وى.

**دليل الوجوب**> دليل دادې.چه نبى كريمﷺ په خپله خطبه كښې اوفرمائيل.(أدّوا عن كل حر وعبد صغير او كبير نصف صاع من بر او صاعاً من شعير)[1] په حديث كښې صغير اوكبير دعبد صفتونه دى. نه د حر اود عبد دواړو.څكه چه غلام به ياصغير وى.يابه كبيروى.د دواړو د طرفه به په مولا باندې صدقة الفطر واجب وى.ليكن آزاد اولاد كه كبير وى.نوددوى دطرفه به په پلار باندې صدقة الفطرواجب نه وى. صرف د صغير اولاد د طرفه به واجب وى . بهرحال داحديث كوم چه ثعلبه بن صعيرعدوى روايت كړې دې.خبر واحد دې.اوخبر واحد دليل ظني وى.دليل قطعي نه وى.اوپه دليل ظني سره وجوب ثابتيږى. خو فرضيت نه ثابتيږى.په دې وجه مونږ وايو.چه صدقة الفطر واجب ده.فرض نه ده.اود ابن عمرؓ حديث كښې لفظ دفرض نه اصطلاحي فرض مراد نه دې.چه ددې منكر كافروى.بلكه د فرض نه مراد معنىٰ د امر ده.اوپه امرسره وجوب ثابتيږى.فرضيت نه ثابتيږى.

**وجه شرطية الحرية**>د صدقه د وجوب دپاره آزادكيدل په دې وجه شرط دى.چه دزكاة په شان د صدقة الفطر اداكولو دپاره هم تمليك يعني د دويم كس مالك كول ركن دې.اوغلام په خپله د خپل خان مالك نه وى.نود مال مالك به څنګه شى.اوكله چه په خپله د مال مالك نه دې. نوبل به څنګه مالك كولې شى.په دې وجه صدقة الفطر په خپله په غلام باندې نه واجبيږى. بلكه د غلام دطرفه دده په مالك باندې واجبيږى.

**وجه شرطية الإسلام**> اومسلمان كيدل په دې وجه شرط دى.چه صدقةُ الفطر يوعبادت اوقربت دې. اوهيڅ يوعبادت دكافر دطرفه نه متحقق كيږى.په دې وجه د صدقه اداكولو دپاره مسلمان كيدل ضرورى دى.

**شرطية النصاب**> دريم شرط د نصاب مالك كيدل دى. ①خود صدقه د وجوب دپاره د نصاب د مقدار مالك كيدل زمونږ په نيز شرط دى.

---

[1] اخرجه ابوداود في الزكاة باب ۲۱ رقم ۱۶۲۰ـ

**دلیله** ① دلیل دادې چه نبی کریمﷺ ارشاد اوفرمائیلو. «لاصدقة إلاعن ظهرغنیٰ»[1] په حدیث کښې د .ظهر .لفظ زائد دې.اوس به ترجمه داشی.چه صدقة الفطر واجب نه دې.خوپه مالداره باندې.اوپه شریعت کښې مالداره هم هغه کس ته ونیلې شی.چه د نصاب دمقدار مالك وی. ددې نه معلومه شوه.چه د صدقة الفطر د وجوب دپاره مالدار کیدل شرط دی.

**ألغني مقدر بالنصاب** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه مالداره کیدل دنصاب سره مقدر دی. یعنی مالدار به هغه کس ته ونیلې شی.چه د نصاب مالك وی.خکه چه په شریعت کښې غنی اومالدار هم ده ته وائی.خودا ضروری ده.چه دا نصاب د ذکرشوې څیزونو یعنی د حاجات اصلیه نه زیاتی وی.خکه چه نصاب که په حاجات اصلیه کښې مشغول وی.نودا به معدوم (نشت) شمارلې شی.لکه چه د سفر په حالت کښې د یوکس سره د څکلو اوبه وی .اوددې نه سوې نورې اوبه موجود نه وی.نودا اوبه به د متیمم (تیمم کونکی) په حق کښې معدوم شمارلې شی .اودده دپاره به تیمم کول جائزوی.دغه شان که په حاجت اصلیه کښې مشغول مال د نصاب په اندازه وی.نود مالداره کیدلوپه حق کښې به دا مال معدوم شمارلې شی.

**عدم إشتراط النمو في صدقة الفطر** صاحب د هدایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه د صدقه د وجوب په نصاب کښې نموشرط نه ده که څوك په قدر د نصاب د مال غیرنامی مالك وی.نوپه ده به هم صدقة الفطر واجب وی وجه دا ده. چه د صدقة الفطر د وجوب دپاره قدرت ممکنه شرط دې.قدرت میسره شرط نه دې.اود نمو نه یسر متحقق کیږی .نود کوم وجوب چه په قدرت میسره سره دې.لکه زکاة .نوددې دپاره د نموشرط اولګولې شو.اود کوم وجوب چه په قدرت ممکنه سره دې.لکه صدقة الفطر.نوددې دپره د نموشرط اونه لګولې شو.د تفصیل دپاره د اصول فقه کتابونه اوګوری.

**ألأقسام الثلاثة للنصاب** [۱] د نصاب درې قسمه دی.یوهغه نصاب چه په هغې کښې نموشرط دې.ددې نصاب سره د زکاة اود مال ټول احکام متعلق کیږی.[۲] دویم هغه نصاب چه دهغې سره څلور احکام متعلق کیږی. ①د صدقه اخستلوحرمت ② د قربانئ وجوب ③ د صدقة الفطر وجوب ④اود اقرب نفقه. په دې نصاب کښې نه نموشرط ده، نه تجارت اونه حولان حول.[۳] دریم نصاب هغه دې.چه په هغې سره د سوال کولوحرمت ثابتیږی.هغه دادې.چه د یوکس سره د یوې ورځې روزی وی.او بعض وائی.چه د پنځوس درهمومالك وی.نو دده دپاره سوال کول حرام دی.

## دخپل ځان دپاره صدقه فطر ورکول

| (یُخْرِجُ ذٰلِكَ عَنْ نَفْسِهِ فرمائی اوباسی به دا خپل طرف نه |
|---|

**تشریح** **إخراج صدقة الفطر عن نفسه** **مسئله**: په صاحب نصاب واجب دی.چه دې دخپل ځان صدقه ادا کړی.

**دلیله** دلیل د ابن عمر رضی الله عنهما حدیث دې.پوره حدیث دادې «فرض رسول اللهﷺ زکاة الفطر على الذكر والأنثى والحر والمملوك صاعاً من تمر او صاعاً من شعير»[2] یعنی په حقه نبیﷺ صدقة فطر فرض کړه. په سړی

---

[1] ) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه أحمد في المسند (۲/ ۲۳۰) ومسلم في الزكاة باب رقم ۹۵)۔

[2] ) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاري في الزكاة باب ۱۷ رقم ۸۰٤ ومسلم في الزكاة رقم ۱۲، ۱٦) والترمذی في الزكاة باب ۳۵ رقم ٦۷۵)۔

باندي، اوپه ښځه باندي، په ازاد باندي، اوپه مملوك(مرئي) باندي، دکجورو يوصاع، يا د اوربشو يوصاع.

### د نابالغه اولاد صدقة الفطر

| وَعَنْ أَوْلَادِهِ الصِّغَارِ او اوباسي به دخپل وړوکي اولاد دطرفه |
|---|

**تشريح**﴾ **إخراج صدقة الفطر عن الأولاد الصغار**﴾ **مسئله**﴾ د مقدار نصاب مالك به د خپل نابالغه اولاد د طرفه هم صدقة الفطر اداكوي.

**دليله**﴾دليل دادي.چه د صدقة الفطر د وجوب سبب داسي نصاب اوداسي ذات دي.چه په هغي سري خرچ كوي.اوپه دي متولى وي.هم دغه وجه ده.چه صدقة الفطر د راس(نصاب) طرف ته مضاف كولي شي. او زكاة الراس(د نصاب زكاة) وئيلي شي.اود شئ طرف ته اضافت ددي د سبب كيدلو علامت دي. نو معلومه شوه.چه د صدقة الفطرد وجوب سبب راس او ذات دي.

**الإعتراض**﴾خو دلته كه څوك اعتراض اوكړي.چه اضافت خو فطر(وړوكي اختر)طرف ته هم كيږي. لكه چه صدقة الفطر وئيلي كيږي.نوددي مطلب داشو.چه فطرهم د صدقه واجب كولوسبب دي. حالانكه د ستاسو په نيز داسي نه ده؟

**الجواب**﴾ددي جواب دادي.چه فطر طرف ته اضافت په دي وجه نه دي.چه فطر ددي سبب دي.بلكه په دي وجه دي.چه فطر ددي وخت دي.هم دغه وجه ده.چه د راس او ذات په متعدد كيدلوسره صدقات متعدد كيږي.حالانكه د فطر ورځ صرف هم يوه ده.نومعلومه شوه.چه هم راس سبب دي.اود سبب په متعدد كيدلوسره مسبب متعدد كيږي.

**الإعتراض الثاني**﴾خوكه څوك دا سوال اوكړي.چه كه راس او ذات د صدقه د وجوب سبب دي.نوپه يوكس باندي په ټول عمركښي هم يوه صدقه واجب كيدل پكار دي.خكه چه په ټول عمركښي راس صرف هم يو وي.هركال واجب كيدل پكار نه دي.حالانكه تاسو هركال صدقه واجب كوئ؟

**الجواب**﴾ راس مطلقاً د وجوب صدقه سبب نه دي.بلكه په وصف د مؤنت سره موصوف كيدلوسره سبب دي.اومؤنت د زماني په تيريدلوسره مكرركيږي.نود مؤنت د وصف په مكرر كيدلوسره راس حكماً د متكرر په شان شو.نوكله چه راس(سبب)مكررشو.نوصدقة الفطر به هم مكرر شي.فلا اشكال.

**الإعتراض الثالث**﴾اوكه څوك دا سوال اوكړي.چه دوجوب صدقه سبب كه راس دي.نوپه صاحب نصاب په خپله خپله صدقه واجب كول پكاردي.د اولاد صغار ،اوممالیك واجب كول نه دي پكار؟

**الجواب**﴾ددي جواب دادي.چه دصدقة الفطر په وجوب كښي اصل خود مالك نصاب راس دي.خكه چه دي په هغه باندي خرچ كوي.اودهغي متولى دي.نوثابته شوه.چه دوجوب صدقه سبب راس يعني د ذات خرچ برداشت كول دي.اوپه دي متولى كيدل دي.اوس چه په كوم خاني كښي مؤنت د ولايت اوموندي شي.هم هغه به د مالداره سره لاحق كولي شي. مثلاً اولاد صغار،چه هم پلار ددوي مؤنت برداشت كوي. اوهم پلار په دوي متولى وي.په دي وجه د اولاد صغار صدقة الفطربه هم په پلار واجب وي.په دي شرط چه پلار مالك نصاب وي

### د غلامانو صدقه فطر

| وَعَبِيْدِهِ لِلْخِدْمَةِ او دخپلو غلامانو دطرفه |
|---|

**تشريح**﴾ **وجوب صدقة الفطر عن عبيده للخدمة**﴾**مسئله**﴾ د عبيدو نه مراد غلام،مدبر،ام ولددي د دوى صدقه ددوى په مولا باندي واجب وي.

**دلیله**>او دلیل دادي چه ددوی خرچ هم مولابرداشت کوی.اوپه دوی ولایت هم مولا ته حاصل وی.صاحب د هدایه رحمه الله فرماني.چه دممالیك صدقه په مولا باندې هغه وخت واجب وی.کله چه دا دخدمت دپاره وی.که دا دتجارت دپاره وی.نوزکاة واجب وی.صدقة الفطر به نه وی.

**إخراج صدقة الفطر عن الأولاد الصغار الأغنياء**>اود اولاد صغار صدقه په پلار باندې هغه وخت واجب وی.چه کله د اولاد صغارسره مال قطعاً موجود نه وی.اوکه اولاد صغار سره مال موجود وی. نود شیخینو رحمهما الله په نیز به هم ددوی دمال نه ددوی صدقه ادکولې شی[1]

**دلیلهما**>د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه صدقة الفطر شرعاً مؤونت قائم مقام دې.هم دغه وجه ده.چه په سړی باندې دغیر د طرفه صدقه واجب کولې شی.نوصدقة الفطر د نفقه په شان شو.اوکه د صغیر سره مال وی.نودده صدقه به هم دده په مال کښې واجب وی.نودغه شان صدقه به هم د ده په مال کښې واجب وی.په دې شرط چه دده سره مال وی.

**مذهب محمد رحمه الله**> د امام محمد رحمه الله په نیزبه د اولاد صغار د مال نه صدقه نه اداکوی.پلار به پخپله د خپل مال نه ادا کوی. تردې که پلار د اولاد صغار د مال نه اداکړه.نوپلار به ددې ضامن وی.

**دلائله**> ① د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه صدقة الفطر په شریعت کښې زکاة دې.لکه د مال زکاة.او د صغیر په مال کښې زکاة واجب نه وی.نوصدقة الفطر به هم ددوی په مال کښې واجب نه وی. ②دویم دلیل دادې.چه صدقة الفطر عبادت دې.اوصغیر د وجوب عبادت اهل نه دې.په دې وجه به دده په مال کښې صدقه هم واجب نه وی.

## دښځې صدقه فطر

| وَلَايُؤَدِّي عَنْ زَوْجَتِهٖاو نه به اداکوی د خپلې بی بی دطرف نه. |
|---|

**تشريح**> **عدم وجوب الفطر عن الزوجة**> **مسئله**>په مالداره خاوند باندې دده د ښځې صدقه واجب نه ده.

**دليله**>ځکه چه په ښځه باندې د خاوند ولایت هم ناقص دې.او مؤونت هم ناقص دې.ولایت خوپه دې وجه ناقص دې.چه خاوند ته په ښځه باندې د نکاح د أمورو نه علاوه هیڅ ولایت نشته.بلکه صرف د نکاح په أمورو کښې ولایت حاصل دې.نوخاوند ته کامل ولایت حاصل نشو.اومؤونت په دې وجه ناقص دې.چه خاوند د ښځې صرف هم هغه مصارف برداشت کوی.کوم چه شرعاً ثابت دی.مثلاً نان نفقه، سکنی، اوددې نه علاوه مؤونت برداشت کول واجب نه دی.مثلاً که ښځه بیماره شی.نوددې علاج معالجه په خاوند باندې واجب نه ده.نوهرکله چه ولایت او مؤونت دواړه ناقص دی.نوپه خاوند به د ښځې صدقه هم واجب نه وی.ځکه چه د صدقة الفطر وجوب په ولایت کامله اوپه مؤونت کامله سره کیږی.

## د بالغ اولاد صدقة الفطر

| وَلَاعَنْ أَوْلَادِالْكِبَارِوَإِنْ كَانُوافِي عِيَالِهٖاو نه به اداکوی دخپل بالغ اولاد د طرف نه اگر چه هغوی دده په عیال کښې وی |
|---|

**تشريح**> **عدم وجوب الفطر عن الأولاد الكبار**> **مسئله**>په پلارباندې دبالغ اولاد صدقه واجب نه ده.اگرچه کبار

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا في العناية (٢٢١\٢) و رد المحتار(٨١\٢) والهندية (١٩٢\١) والبحرالرائق (٢٥٣\٢)نقلاً عن القول الراجح (١٨٩\١)-

اولاد دده په عیال کښې داخل وي.

**دلیله** دلیل دا دی چه پلارته په بالغ اولاد باندې هیڅ ولایت نه وي.

**جواز الأداء عنهم** خوکه پلار د بالغ اولاد دطرفه اداکړه.یاخاوند دخپلې ښځې د طرفه اداکړه.اودا اداکول بغیر دده دحکم نه اوموندلې شوه.نوهم استحساناًصدقه ادا شوه.ځکه چه اجازت عادةً ثابت دی. اوکوم څیزچه عادةً ثابت وي.هغه داسې دی.لکه چه په نص او صراحت سره ثابت وي.

**د مکاتب، مدبر،او ام ولد صدقة الفطر**

| وَلَا يُخْرِجُ عَنْ مُكَاتَبِهِ اونه به اوباسي دخپل مکاتب دطرفه. |
|---|

**تشریح** **عدم وجوب الفطر عن المكاتب علي المولي** **مسئله** په مولا باندې دمکاتب صدقة الفطر واجب نه ده.

**دلیله** دلیل دا دی چه د مکاتب یداً اود تصرفاتو په اعتبارسره د آزادیدلو په وجه مولا ته په ده باندې مکمل ولایت حاصل نه دی.حالانکه د صدقه د وجوب سبب کامل ولایت وي.

**عدم وجوب الفطر علي المكاتب** اوپه مکاتب پخپله هم خپله صدقة الفطر اداکول واجب نه دی.ځکه چه مکاتب خو د بدل کتابت اداکولومحتاج وي.په دې وجه کوم مال چه دده سره وي.هغه ټول د مولا مملوك وي.اوهرکله چه دا د مولا مملوك شو.نومکاتب فقیر پاتې شو. اوپه فقیر باندې صدقة الفطر واجب نه وي.په دې وجه په مکاتب باندې په خپله دخپل طرفه صدقة الفطر ادا کول واجب نه ده.

**وجوب صدقة الفطر عن ام ولد والمدبر** او پاتې شو مدبر،او ام ولد ،نوچونکه په دوی باندې مولا ته رقبةً اویداً دواړه قسمه کامل ولایت حاصل وي.اوددوی مؤونت هم مولا برداشت کوي.په دې وجه د دوی د طرفه به صدقة الفطرهم په مولا باندې واجب وي.

| وَلَا يُخْرِجُ عَنْ مَمَالِيكِهِ لِلتِّجَارَةِ اونه به اوباسي دخپلو تجارتي غلامانو دطرفه. [1] |
|---|

**تشریح** **عدم وجوب الفطر عن العبد للتجارة** ① اوکوم غلامان او وینځې چه د تجارت دپاره وي.د دوی صدقه به هم په مولا باندې واجب نه وي.

**دلیله** د غلام د صدقه وجوب په مولا باندې وي.لکه څنګه چه د زکاة وجوب په مولا باندې وي.نوکه د تجارت د غلامانوصدقه په مولا باندې واجب کړې شوه.نو په دې غلامانوکښې به په یوکال کښې دوه خله مالي فریضه واجب کول لازم شي.یو په صورت د صدقة الفطر،او دویم په صورت د زکاة،حالانکه په یوکال کښې دوه خله مالي فریضه واجب کول جائز نه دی.لکه څنګه چه د رسول ﷺ حدیث لاثنى في الصدقة دی.ثنى،د ثاء په کسره او په الف مقصوره سره دی.یعنی په کال کښې به دوه خله صدقه نشی اخستلې.

**د غلام مشترك صدقه فطر**

| وَالْعَبْدُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ لَا فِطْرَةَ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا اوکوم چه غلام د دوه شریکانو نه په مینځ کښې وي نوفطر په دواړو کښې په یو نشته. |
|---|

**تشریح** **عدم وجوب الفطر عن غلام واحد** مسئله داده.چه که یوغلام د دوه کسانوپه مینځ کښې مشترك وي. نو بالاتفاق په دواړوکښې به په چاهم ددې غلام صدقة الفطر واجب نه وي.

---

[1] مذهب الشافعي رحمه الله: امام شافعي رحمه الله فرماني.چه د تجارت د غلامانو او وینځو د طرفه به صدقه اوباسي.

**دليله** ﴾ خکه چه د دواړو ولايت هم ناقص دې. او مؤونت هم ناقص دې.اوداخبره تيره شويده.چه د صدقة الفطر د وجوب سبب ولايت کامله او مؤونت کامله دې. نو هرکله چه سبب موجود نشو.نوصدقة الفطربه هم واجب نه وي.

| وَيُؤَدِّي الْمُسْلِمُ الْفِطْرَةَ عَنْ عَبْدِهِ الْكَافِرِ اواداکوي به مسلمان فطره دخپل کافر غلام دطرفه[1] |
|---|

**تشريح** ﴾ **وجوب صدقة العبد کافر** ﴾ مسئله داده. ①چه مسلمان مالك نصاب کـه د کـافرغلام مالـك وي.نوپه ده به دکافرغلام صدقة الفطرهم واجب وي.

**دلائله** ﴾ ①زمونږ دليل دادې.چه په اول باب کښې دثعلبه بن صغير حديث**(أدوا عن کل حر وعبد... الحديث)** ( )ورکوئ د هر آزاد او غلام دپاره که يهودي وي اوکه نصراني وي اوکه مجوسي وي نو دا مطلق دې.چه عبد مسلم اوعبدکافر دواړو ته شامل دې. ②دويم دليل د ابن عباس‌ حديث دې.علامه ابن الهمام د دارقطنی په حواله دا حديث داسې ذکرکړې دې. **(قال رسول الله ﷺ أدوا صدقة الفطر عن کل صغير وکبير ذکر وانثى يهودي اونصراني حر اومملوك نصف صاع من بر اوصاع من تمراوشعير)** ③د صدقة الفطر د وجوب سبب اوموندې شو.خکه چه مسلمان مولا ته په کافرغلام باندې ولايت کامله حاصل دې.اوودده مکمل طورمؤونت هم برداشت کوي. او مولا د وجوب صدقه اهل هم دې.اګرچه غلام دکفر په وجه اهل نه دې.خوچه کله سبب اوموندې شو.اوپه مولاکښې اهليت هم موجود دې.نوپه مولا به د کافرغلام د طرفه صدقه واجب وي. ه ادا کړي دهر آزاد او غلام دطرف نه يهودي وي اوکه نصراني وي اوکه مجوسي وي (الحديث).او خکه چه سبب متحقق شو اوآقا ددې اهل دې

- **عدم وجوب صدقة العبد المسلم علي الکافر** ﴾اوکه مسئله په عکس وي.يعنی غلام مسلمان وي.اومولا کافر وي.نوپه اتفاق به صدقه واجب نه وي.زمونږ په نيزخوپه دې وجه چه مولا دکفرپه وجه نه د صدقه دوجوب اهل دې.اونه د صدقه اداکولو،اود امام شافعي رحمه الله په نيز اګرچه وجوب په غلام وي.ليکن ادا کول به ئې په مولا وي.اومولا د کفرپه وجه د عبادت اداکولو اهل نه دې.په دې وجه به په دې صورت کښې بالکل صدقه واجب نه وي.

**په غنمو، اوړو،اوربشو او کهجوروکښې د صدقة الفطر مقدار**

| الْفِطْرَةُ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ صدقه فطر نيم صاع ده.د غنمو نه يا أَوْصَاعٌ مِنْ تَمْرٍ أَوْزَبِيبٍ أَوْشَعِيرٍ اويا نيم صاع دې د کجورو نه او د اوسکو نه او د اوربشو نه، ([2]) |
|---|

**حل اللغة** ﴾①**بر**:غنم ②**تمر**: کهجورې ③ **شعير**:اوربشې ]

**تشريح** ﴾ **قدر الفطرة** ﴾د صدقة الفطر مقدارد حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په غنمو. يا ددې په

---

[1] ) **مذهب الشافعي** رحمه الله:- د امام شافعي رحمه الله په نيزد کافرغلام د طرفه به مسلمان مولا صدقه نه اداکوي.هم دا قول د امام مالك اوامام احمد رحمهما الله دې.

[2] ) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه الدارقطني في سننه (۲/ ۱۵۰) لکن ليس فيه ذکرالمجوسي (نصب الراية ۲/ ۴۳۰)_

[3] ) **مذهب الأئمة الثلاثة**:- امام شافعي،امام مالك،او امام احمد رحمهم الله فرمائي.چه په صدقة الفطرکښې په هرخيز کښې يوصاع واجبيږي.تردې چه د اوربشو وغيره په شان د غنموبه هم يوصاع واجب وي.

اورو، یا ستوانو، یا اوسکو سره که فطر ادا کولې شي.نوددې مقدار نیم صاع دې.اوپه کجورو یا اوربشو سره که اداکولې شي.نوددې مقدار به یوصاع وي.

**دلائله** ◄ ① دلیل هغه حدیث دې.کوم چه په اول باب کښې ذکر دې.چه د هغې الفاظ دادي.(أدوا عن کل حر وعبد صغیر او کبیر نصف صاع من بر او صاعاً من تمر او صاعاً من شعیر)() په دې حدیث کښې په صراحت سره ذکر دی. چه دغنمو نیم صاع واجب دې. ②د احنافو د مذهب تائید د ترمذی په دې حدیث سره هم کیږي. (أن النبي ﷺ بعث منادیاً فی فجاج مکة ألا أن صدقة الفطر واجبة علی کل مسلم ذکر او انثی حر او عبد صغیر او کبیر مدان من قمح او سواه صاع من طعام) یعنی رسول الله ﷺ د مکې په کوخوکښې یو آوازکونکې اولیګلو.چه صدقة الفطر واجب ده.په هر مسلمان باندې که سړې وي.اوکه ښځه، آزاد وي اوکه غلام، نابالغه وي اوکه بالغ، دوه مد یا ددې نه علاوه د غلې یو صاع.په یو صاع کښې څلور مد وي.نود دوه مده نیم صاع شو.نوثابته شوه.چه د غنمو نیم صاع واجبیږي. ③ دغه شان په طحاوی شریف کښې د اسماءبنت ابی بکر روایت دې. (قالت کنا نؤدي زکاة الفطر علی عهد رسول الله ﷺ مدین من قمح) یعنی مونږ خلقو به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې په صدقة الفطر کښې دوه مد غنم ادا کول. ④ صاحب دهدایه فرمائیلی دی .چه د صحابو ؓ د یو جماعت مذهب هم دادې.اود خلفاء راشدینو ؓ مذهب هم دادې.چه په صدقة الفطر کښې د غنمونیم صاع واجبیږي.یو صاع نه واجبیږي. ([2])

**قول فطر الزبیب** ◄ لکه څنګه چې وړاندې ذکر شو چې صدقة الفطر که په اوسکو سره ادا کوی نو د حضرت امام ابوحنیفه په نیز ددې مقدار نیم صاع دې.

**دلیله** ◄د امام ابوحنیفه دلیل دادې.چه زبیب اوغنم د معنی په اعتبارسره دواړه نیزدې نیزدې دی. څکه چه په دې دواړو کښې هر یو په خپلوټولو اجزاؤ سره خوړلې شي.

**مذهب الصاحبین** ◄د صاحبینو مذهب هم دغه دې.خوصرف دومره فرق دې.چه ددې په نیز اوسکې د اوربشو په حکم کښې دی.یعنی د اوربشو په شان اوسکې به هم یوصاع واجب وي.د امام ابوحنیفه نه هم یو روایت دادې.اود رومبنی یعنی اوسکونه نیم صاع واجب کیږي.دجامع صغیر روایت دې.خو فتوی په دې نه ده. ([3])

**دلائلهما** ◄ ① د صاحبینو د مذهب تائید دحضرت ابوسعید خدری ؓ دحدیث نه هم کیږي. (قال کنا نخرج علی عهد رسول الله ﷺ صاع تمر او شعیر او اقط او زبیب....الحدیث) په دې حدیث سره په عهد رسالت کښې د اوسکو یوصاع اوښکل ثابت دی.

② زبیب (اوسکې) د کجورو په منزله کښې کېدلو باندې د صاحبینو دطرفه دا دلیل دې.چه اوسکې او کجورې مقصود یعنی په خوند او لذت حاصلولوکښې نیزدې نیزدې دی. په دې وجه د

---

[1]) یشیر إلی حدیث عبدالله بن ثعلبة المتقدم فی أول الکتاب )

[2]) نقل الزیلعی الأحادیث التی یثبت منها مذهب الخلفاء الراشدین فراجعه إن تریدالإطلاع علیها نصب الرایة /٤٤٤)_

[3]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبین کذا فی فتح القدیر(٢\٢٢٥) والکفایة (٢\٢٢٥) وردالمحتار(٢\٨٣) ومجمع الأنهر(١\٢٢٩) والهندیة (١\١٩١) نقلاً عن القول الراجح (١\١٩١)-

صدقه په اداکولو کښې د دوارو حکم برابر دې.يعنی د دوارو به يوصاع واجب وی.او ورانديې د ابوسعيد حديث.او.«صاعاً من زبيب». تيرشوي دي.

**الجواب عنه>** دکجورو هډوکی غورزولې شی.اود اوريشو بهوس غورزولې شی.نو زبيب به په غنمو باندې قياس کول مناسب دی.په کجورو او اوريشو باندې به مناسب نه وی.په دې تقرير سره د غنمواوکجورو په مينځ کښې فرق ښکاره شو.يعنی د کجورو چونکه بعض اجزاء لکه هډوکی غورزولې شی.اود غنمو ټول اجزاء د کار اود خوراك دی.په دې وجه د غنمونصف صاع اود کجورو يو صاع مقرر کړې شو.

| وَالصَّاعُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ ثَمَانِيَةُ أَرْطَالٍ بِالْعِرَاقِيِّ.[1] اوصاع د طرفينو په نزد اته رطله عراقی دې. |
| --- |

**تشریح> قدر الصاع >** طرفين فرمائی.چه صاع هغه دې.چه پکښې عراقی اته رتله وزن برابرغنم وغيره څه څيز راځی.يعنی صاع دعراقی اته رتلو برابروی.او په يو صاع کښې څلور، مد ، وی. او يو رطل شل ،استار، وی.اويو استار شپږنيم درهمو وزن برابر وی.ګويا چه يو رطل د يوسل ديرشو درهمو وی.

**دلائلهما >** ① دليل د حضرت انس ﷺ اود حضرت جابر ﷺ دا روايت دې.«أنه ﷺ كان يتوضأ بالمد رطلين ويغتسل بالصاع ثمانية أرطال»[2] يعنی رسول هاشمی ﷺ يو مد يعنی په دوه رطله اوبوسره اودس کولو.او يوصاع يعنی اته رطله اوبوسره به ئې غسل کولو. ② اوهم دغه شان دحضرت عمر ﷺ صاع وو.[3] بهرحال ددې حديث نه معلومه شوه.چه صاع اته رطله وی.

| وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ : خَمْسَةُ أَرْطَالٍ وَثُلُثُ رِطْلٍ اوامام ابويوسف ﷫ فرمائی چه پنځه رطله او دريمه حصه درطل ده. |
| --- |

**تشریح> مذهب ابي يوسف ﷫ >** و امام ابويوسف ﷫ فرمائی.چه يوصاع پنځه رطله اود د يورطل د دريمې حصې برابر وی.هم دا قول د امام شافعی امام مالك او امام احمد ﷭ دې.

**دلائله >** د امام ابويوسف ﷫ ①دليل دا حديث دې.«صاعنا اصغرالصيعان»[4] يعنی زمونږ صاع د ټولو صاعونو نه وړوکې وی.اوښکاره ده.چه پنځه رطله اود يورطل دريمه حصې برابر صاع په نسبت د اته رطلووالا د صاع نه وړوکې وی.په دې وجه مونږ وايو.چه صاع د پنځه رطلواو د يورطل د دريمې حصې برابر وی. ② علامه ابن الهمام ﷫ دحسن بن وليد قريشی ﷫ روايت بيان کړې دې.چه امام ابويوسف ﷫ چه کله دحج نه واپس شو.او زمونږ خواله راغې.او وې وئيل.چه زه غواړم.چه په تاسو باندې د علم يوه دروازه کلاؤ کړم.څه چه زه په ډيرفکر کښې اچولې ووم.نوددې لټون مې اوکړو.نو زه مدينې منورې ته لاړم.اوما د صاع په باره کښې معلومات اوکړل.نوخلقو اووئيل.چه زمونږ دا صاع د

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول الطرفين ﷫ كذا في فتح القدير(۲۳۱\۲) وبدائع الصنائع (۷۳\۲) والهندية (۱۹۲\۱) وتبيين الحقائق (۳۰۹\۱) وردالمحتار( ۸۳\۲) نقلاً عن القول الراجح (۱۹٤\۱)۔

[2] ) من حديث أنس ﷺ اخرجه الدارقطني في سننه (۱٥٤/۲)۔

[3] ) من رواية حسن بن صالح اخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه في الزكاة (۴۳۰/۲)۔

[4] ) من غريبه الزيلعي ﷫ هذا اللفظ ثم ذكرماهو بمعناه من حديث ابي هريرة ﷺ اخرجه ابن حبان في النوع التاسع والعشرون من القسم الرابع (نصب الراية ۴٤٦/۲)۔

رسول اللهﷺ صاع دې.مـا اوونيـل. چه تاسوسره ددې څه دليـل دې.چه دا درسول اللهﷺ صاع دې.دوی اوونيل.چه مونږ به صباله په اول وخت کښې تاسوته دليل پيش کړو.کله چه صباشو.نوزما خوالـه تقريباً پنځوس کسـان بوداګـان راغلـل.چه دا د انصـار او مجاهدينو اولاد وو.دهر يو د خـادر لاندې يوصاع وو.اوهر يو دخپل نيکه نه سند بيان کړو.وې ونيل.چه دا د رسول اللهﷺ صاع دې. نوکله چه ما دا اوکتل .نوتول برابروو.اوما چه ددې ناپ تول اوکړلو.نوپنځه رطله اود يورطل دريمه حصه کمه اوختـل.کله چه ما دا اوکتل.نوما دحضرت الاستاذ قول ترک کړلو.

**الجواب عنه** ﴿ اود امام ابويوسف رحمه الله دطرفه د پيش کړی روايت(صاعنا أصغر الصيعان)کښې د اصغرصاع نه مراد دادې.چه د اتو رطلو والاصاع د هاشمي صاع نه ورو کې دی.ځکه چه هاشمي صاع د دوه دېرشورطلو وی.اوخلقويه هم دا استعمالولو.رسول اکرمﷺ به عراقی صاع (چه پکښې اته رطله وو) استعمالولو .نود هاشمي صاع په مقابله کښې او ونيلې شو.چه (صاعنا أصغر من صيعان)

**طرق معرفة الصاع**﴿ د صاع وزن معلومولو درې طريقې دی. ① د صاع وزن د مثقال په حساب سره يو مثقال خلور ماشې اوخلور تې وی.د مثقال په حساب سره د صاع وزن درې زره او دوه سوه خلويښت ماشې جوړيږی .يعنی دوه سوه اويا تولې.په دې حساب سره درې سيره اود شپږ چټاکو پوره صاع شو.او يونيم سير د درې چټاکو نيم صاع شو. ② د درهمو په اعتبارسره يو درهم د دريو ماشو او يوه رتۍ ، اود يوې رتۍ د پنځمې حصې برابر وی.په دې حساب سره يوصاع دوه سوه او درې اويا تولې شو.او نيم صاع د يوسل شپږ ديرشو تولو اود شپږو ماشو جوړيږی.ګويا د انګريزی سير په حساب سره پوره صاع درې سيره شپږ چټاکۍ اود دريو تولو برابر وی.او نيم صاع د نيم سير ،دريوچټاکو اود يوې نيمې تولې برابر وی. ③ د مد په اعتبار سره يو مد اته شپيته تولې اود درې ماشو وی.په دې حساب سره يو صاع د دوه سوه اتيا تولې او څه ماشې جوړيږی.اونيم صاع يوسل خلويښت تولې اود دريو ماشو وی.ګويا پوره صاع درې نيم سيره اود شپږماشو شو.اونيم صاع پاوباندې دوه سيره درې ماشې شو.بنکاره دې وی.چه يوصاع څلور مد وی.(درس ترمذی ج۲ص۴۹۴)

**اختيار الطرق الثلاثة**﴿د صاع د وزن چه کومې درې طريقې ليکلې شوې دی.په دې کښې چه کومه يوه طريقه اوحساب هم چه اختيارکړې شی.نو صدقة الفطر اداکيږی.خوچونکه په آخری حساب کښې زياتوالې دې.په دې وجه ددې مطابق اداکولوکښې زيات احتياط دې.يعنی پاوباندې دوه سيره او درې ماشې غنم يا درې نيم سيره او شپږ ماشې اوربشې وغيره په فطره (سرسايه)کښې اداکولې شی.

**د صدقه فطر د وجوب وخت**

| وَوُجُوبُ الْفِطْرَةِ يَتَعَلَّقُ بِطُلُوعِ الْفَجْرِ الثَّانِي مِنْ يَوْمِ الْفِطْرِ اود فطرې وجوب ديوم فطر دصبا ختلوسره متعلق دې. [1] |
|---|

**تشريح**﴿ **وقت وجوب صدقه الفطر** ﴿ ① د ورو کی اختر د صبا نه د صدقة الفطر اداکول واجبيږی.هم دا قول د امام مالك رحمه الله دې.

[1] ) **مذهب الشافعي رحمه الله**:- امام شافعی رحمه الله فرماني.چه د رمضان په آخری ورځ د نمر د پريوتلو نه پس اداکول واجبيږی.حاصل دا چه د اختريه شپه د شوافعو رحمهم الله په نيز د واجب صدقة الفطر اداکولو وخت د نمر پريوتلو نه پس شروع کيږی.او زمونږ به نيز د صباصادق په راختلوسره شروع کيږی.

**دلیله** > دلیل دادې چه په صدقة الفطر کښې د صدقه اضافت فطر طرف ته د اختصاص دپاره دې.یعنی صدقه فطرسره مختص ده.اود فطر نه مراد د صوم ضد دې.اود صوم تعلق د ورځ سره وی. دشپې سره نه وی.نود فطر تعلق به هم ورځ سره وی.شپې سره به نه وی.اودا معلومه شوې ده.چه صدقه د فطرسره خاص ده.اود فطر نه مراد ورځ ده.نو صدقه به ورځ سره مختص وی.او ورځ د صباصادق نه شروع کیږی په دې وجه د صدقة الفطر وجوب اداکول به هم د اختر د شپې د صباصادق سره متعلق وی.

| فَمَنْ مَاتَ نو څوك چې مړ شو قَبْلَ ذٰلِكَ د دې نه وړاندې لَمْ تَجِبْ فِطْرَتُهٗ نو د ده فطرانه واجب نشوه وَمَنْ أَسْلَمَ أَوْوُلِدَبَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِاو چا چې اسلام قبول کړو او پیدا شو پس د راختلو صبا نه لَمْ تَجِبْ فِطْرَتُهٗ نو د ده فطرانه واجب نشوه |
|---|

**تشریح** > **التفریع علیه** > د تیرشوې قاعدې مطابق چې څوك د اختر د ورځې نه وړاندې وفات شو نو په ده باندې صدقه فطر نشته دغه شان چې چا د اختر په ورځ د صبا راختو نه اسلام قبول کړو او یا پیدا شو نو د دوی صدقه فطر نه واجبیږی

**دلیله** > دلیل دا دې چه د صدقه فطر د وجوب دپاره شرط دا دې چې د اختر د صبا په وخت کښې دې موجود وی نو کوم کس چې وړاندې مړ شو د ده په حق کښې شرط موجود نشو نو مشروط چې وجوب د صدقه فطر دې هغه هم نشته دغه شان کوم کس چه د صبا راختو نه پس اسلام قبول کړو نو دې د صبا راختو په وخت کښې د شریعت په احکامو مکلف نه وو ځکه چه د کافر نه اول د ایمان مطالبه کیږی بیا به ورته روستو د فرعی احکامو حکم کولې شی دغه شان کوم کس چې د صبا نه پس پیدا شو نو دې هم د صبا راختو په وخت کښې موجود نه وو نو صدقه فطر واجب نشوه

**د صدقه فطر مستحب وخت**

| وَالْمُسْتَحَبُّ أَنْ يُخْرِجَ النَّاسُ الْفِطْرَةَ يَوْمَ الْفِطْرِ قَبْلَ الْخُرُوْجِ إِلَى الْمُصَلّٰى اومستحب دی چه اوباسی خلق فطره په ورځ د اختر مخکښې دوتلو نه عیدگاه ته. |
|---|

**تشریح** > **إخراج صدقة الفطر قبل الخروج إلي المصلي** > **مسئله** > د صدقة الفطر په اداکولو کښې مستحب عمل دادې چه د خلقو عیدگاه ته د تللونه مخکښې اداکړی.

**دلائله** > دلیل د ابن عمر رضي الله عنهما حدیث دې.حدیث دادې. (كان يأمرنا أن نخرجها قبل الصلاة وكان رسول الله ﷺ يقسمها قبل أن ينصرف إلى المصلى ويقول أغنوهم عن الطواف في هذا اليوم) ([1]) یعنی رسول الله ﷺ به مونږ ته حکم فرمائیلو .چه مونږ د اختر دمانځه نه مخکښې مخکښې صدقه اداکړو.او پخپله به نبی کریم ﷺ هم عیدگاه ته د تللونه مخکښې مخکښې صدقه تقسیموله.اوفرمائیل به ئې.چه فقیرانو ته په دې ورځ در په در گرځیدلونه بې پرواه کړئ یعنی بغیر د غوښتلو نه د مونځ نه مخکښې دوی ته صدقه ورکوئ.

---

[1] ) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الحاكم في علوم الحديث باب الأحاديث التي إنفرد بها راو واحد ورواه البيهقي في السنن الكبرى (٢٩٢/٤) رقم ٧٧٣٩)_

② دویم دلیل دادي چه دفقیرانو د بې پرواه کولو حکم هم ددې مقصد دپاره دې چه دوی د سوال کولو په وجه د اختر د مانځه نه پاتې نشي اودا مقصد به هم په دې صورت کښې پوره کیږی چه صدقه د اختر د مانځه نه مخکښې ورکړې شی په دې وجه تقدیم (مخکښې ورکول) مستحب او مندوب اوګرځولې شو.

**صدقه فطر د وخت نه وړاندې اداکول**

| فَإِنْ قَدَّمُوهَا قَبْلَ يَوْمِ الْفِطْرِ جَازَ که د اختر دورځې نه نې وړاندې ورکړه.نوجائز ده |
|---|

**تشریح** ﴿ جواز تقدیم الصدقة یوم الفطر ﴾ مسئله داده.که چا د اختر د ورځ نه مخکښې صدقه ادا کړه.نو جائز ده.

**دلائله** ﴿ ① دلیل دادې.چه صدقة الفطر د وجوب د سبب متحقق کیدلو نه پس اداشوې ده.او سبب هغه راس دې.چه ددې مؤنت برداشت کوی.اوپه دې باندې ولایت حاصل دې.نوکله چه د سبب متحقق کیدلو نه پس ادا کړی.نو ادا به وی. ② اودا داسې ده.لکه چه د حولان حول نه مخکښې د وړاندې نه زکاة ورکړې شی.نو زکاة ادا کیږی.ځکه چه نصاب کوم چه سبب دې.هغه موجود شو. ③ اود ابن عمر رضی الله عنهما حدیث دې.(وکانوا یعطون قبل الفطر بیوم أو یومین) یعنی صحابو رضی الله عنهم به یوه ورځ یا دوه ورځې مخکښې فطره ورکوله.

**عدم التفصیل في مدة تقدیم الصدقة** ﴿ ① ددې هیڅ څه تفصیل نشته.چه څومره مخکښې صدقه ورکول جائز دی او څومره موده مخکښې جائز نه ده.بلکه مطلقاً وړاندې ورکول جائز دی. اوهم دا صحیح قول دې. ② او نوح بن ابی مریم رحمه الله فرمائی.چه د نصف رمضان نه وړاندې صدقه ورکول جائزدی.ددې نه وړاندې ورکول جائز نه دی. ③ اوبعض وائی.چه د رمضان په آخری عشره کښې ورکول جائز دی ددې نه مخکښې ورکول جائز نه دی.(عنایه)

**د وخت نه روستو کولو حکم**

| وَإِنْ أَخَّرُوهَا عَنْ يَوْمِ الْفِطْرِ لَمْ تَسْقُطْ اوکه داختر دورځې نه نې روستو کړه نو نه ساقطیږی. وَكَانَ عَلَيْهِمْ إِخْرَاجُهَا خو دده په ذمه به نې اداکول لازم وی. (۱) |
|---|

**تشریح** ﴿ عدم سقوط الصدقة بخروج وقتها ﴾ ① اوکه خلقو د اختر په ورځ فطرانه اداکړه.اود اختر ورځ تیره شوه.نوصدقه ددوی د ذمې نه ساقط نشوه.بلکه په دوی به واجب پاتې وی.اوپه دوی به دا اوبنګل لازم وی.که هرڅومره تاخیر اوشی.

**دلیله** ﴿ ځکه چه دا مالی صدقه ده.اوهر وخت د فقیرانو حاجت لرې کولو دپاره مشروع شوې ده.نوپه دې کښې به د ادا کولوڅه مقرروخت نه وی. او د وجوب نه پس به د زکاة په شان بغیر د اداکولونه نه ساقطیږی

---

(۱) روایة الحسن رحمه الله:- اوحسن بن زیاد رحمه الله فرمائی چه د اختر ورځ تیره شی.نو ساقط به وی.ځکه چه صدقه داسې عبادت دې.چه د ورځی اخترسره مخصوص دې.نود قربانئ په شان شو

د روژې بيان

# كِتَابُ الصَّوْمِ

(دا) كتاب (په بيان) د روژې (كښې) دې.

**تشريح﴿ الربط بما قبله﴾** امام محمد ﷫ په جامع صغيركښې كتاب الصوم د كتاب الصلاة نه پس ذكركړې دې.او وجه ئې دا بيان كړې ده.چه دواړه د بدن د عبادتونو د قبيلې خنې دى.په خلاف د زكاة چه دا عبادت ماليه دې.او دلتـه پـه قـدورى او هدايـه كـښې د كتاب الـصلاة نـه پـس كتاب الزكاة ذكرشوې دې.چه د قرآن عظيم ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَآتُوا الزَّكٰوةَ﴾ اقتداء اوشى.

**تاريخ فرضية الصوم﴾** روژه د كلمه توحيد نه پس د اسلام دريم ركن دې.اود رمضان د روژو فرضيت دهجرت په دويم كال د شعبان په مياشت كښې اوشو.يعنى د هجرت نه اتلس مياشتې پس د شعبان په مياشت كښې د قبلې د تحويل نه پس د رمضان روژې فرض شوى دى.اوددې نه وړاندې به رسول اكرم ﷺ اوصحابه كرامو ﷺ د عاشوره اود ايام بيض(د قمرى مياشتې ديارلسم،څوارلسم، پنځلسم تاريخ) روژې نيولې.

**معنى الصوم﴾** په لغت كښې د صوم معنىٰ مطلقاً امساك (بنديدل) راځي.كه د څه څيزنه هم بندشى. لكه چه (صامرعن الكلام) د كلام او خبرو اترو نه د بنديدلو نوم صوم دې.

**ألمذهبان في فرضية الصوم﴾** بيا په دې كښې اختلاف دې.چه د عاشوره او ايام بيض روژې هغه وخت فرض وې اوكه نه؟① حنفيه وائى.چه دا روژې هغه وخت فرض وې.خو شوافع ﷭ ددې قائل دى.چه د رمضان روژو نه مخكښې هيڅ روژه فرض نه وه.بلكه د عاشوره وغيره روژې مخكښې هم سنت وې.او اوس هم سنت دى.

**ألتدريج في فرضية صيام رمضان﴾** د رمضان د روژو فرضيت په تدريج سره شوې دې.په شروع كښې د ﴿يَآأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ﴾ په ذريعه مطلقاً روژه فرض كړې شوه.يعنى اې ايمان والو! فرض كړې شوه په تاسوروژه لكه څنګه چه فرض كړې شوې وه.ستاسونه مخكښې خلقوباندې.بيا د ﴿أَيَّامًا مَّعْدُودٰتٍ﴾ په ذريعه تعين اوكړې شو.چه دا د شميريو څو ورځې دى. اوددې نه مراد د رمضان مياشت ده.يعنى د رمضان روژې فرض كړې شوې. خودا اختيار ووچه كه غواړى.روژه اونيسى.اوكه نه ئې نيسى.اوددې په ځائې فديه وركړى. يعنى يومسكين ته په مړه ګيډه دوه وخته خوراك وركړى.په آيت﴿وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ﴾ كښې هم دا اختيار بيان شوى دې.يعنى د كومو خلقوچه د روژه نيولوطاقت شته.دوى دپاره ددې بدله ده.يوفقير ته خوراك وركول.خود اختيار وركولو باوجود دا هم اوفرمائيل.چه روژه نيول بهتردى.لكه چه ارشاد دې. ﴿وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ بياڅو ورځې پس دا اختيارمنسوخ كړې شو.اوپه هره تندرست مقيم باندې روژه ساتل لازم كړې شوه.لكه چه د الله تعالى ارشاد دې﴿فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ يعنى څوك چه په تاسوكښې دا مياشت بيامومى.نو روژه دې ضرور اونيسى.په دې آيت روژه ساتل ضرورى شو.او فديه وركول، اود روژې پرېخودلو اجازت باقى پاتې نشو.

**نسخ حرمة الجماع بعدالنوم في الليل﴾** بهرحال د رمضان روژه خولازم كړې شوه.خوپه شروع كښې دا حكم

.و چه په روژه کښې د شپې په شروع کښې د خوراك سكاك اوښخو سره د صحبت كولو اجازت وو.خود اوده کیدلونه پس ددې څیزونو ممانعت وو.بعض حضرات صحابه کرام ﷺ ددې خلاف اوكړو اود اوده کیدلونه پس ئې جماع اوکړه.بیا نبی کریم ﷺ له راغلل.اود خپل قصور اقرار اود ندامت اظهار ئې اوكړو. اود توبه دپاره ئې ددوی نه سوال اوكړو.نوبه دې دا آيت نازل شو ﴿أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ ۚ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۗ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ ۖ فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ ۚ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۖ ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ ۚ﴾ شو تاسوته د روژې په شپه بې پردګۍ(صحبت) خپلوښځوسره.دوی لباس دې ستاسو او تاسو لباس ئې ددوی.الله ته معلومه ده.چه تاسوخیانت کوئ. خپلو خانونوسره.نومعاف کړلوتاسوته اوبخښنه ئې اوکړه تاسوته. نو ملاویږئ(صحبت)کوئ خپلوښخوسره اوطلب کوئ هغه چه لیکلی دی الله تعالی ستاسو دپاره.اوخورئ سکئ ترهغه پورې چه صفاپه نظر راشي تاسوته تارسپین د صبا جدا د تور تارد شپې نه.بیا پوره کړئ روژه د شپې پورې.

| (الصَّوْمُ ضَرْبَانِ: وَاجِبٌ وَنَفْلٌ درروژې دوه قسمونه دی واجب او نفل. |
|---|

تشریح> الأقسام الثلاثة للصوم>شیخ ابوالحسن قدوری ﷫ د روژې تقسیم کړې دې. فرمانی. چه د روژې دوه قسمه دی. ①واجب ② نفل.حالانکه د روژې درې قسمه دی. ① فرض ② واجب ③ نفل یعنی غیر واجب چه سنت مستحب او نفل ټولو ته شامل دې.ددې جواب دادې. چه واجب لفظ فرض او واجب دواړو ته شامل دې.خکه چه د واجب معنئ ثابتول دی.نوکه په دلیل قطعی سره ثابت وی نوفرض ده.اوکه په دلیل ظنی سره ثابت وی.نو واجب ده.صاحب د قدوری ﷫ د دواړو بیانولو دپاره صرف واجب(ثابت) استعمال کړې دې.

| فَالْوَاجِبُ ضَرْبَانِ :بیا دواجبو دوه قسمونه دی مِنْهُ مَا يَتَعَلَّقُ بِزَمَانٍ بِعَيْنِهِ كَصَوْمِ رَمَضَانَ وَالنَّذْرِ الْمُعَيَّنِ یو هغه چه د خاص زمانې سره تعلق ساتی لکه درمضان دمیاشتې او د نذر معین روژه |
|---|

تشریح> القسمان للصوم الواجب>بیا د واجب دوه قسمه دی. ① معین ② غیر معین یعنی یو هغه چه د متعین زمانه سره متعلق وی.لکه د رمضان روژې.اود نذر معین روژې.مثلاً یوکس اووئیل چه په ما د الله دپاره د دې میاشتې په اوله جمعه روژه لازم ده.نوددې میاشتې اوله جمعه متعین شوه.دویم هغه چه دیر متعین زمانه سره متعلق نه وی.لکه د رمضان قضاء روژې.چه ددې هیڅ متعین وخت نشته.بلکه د «منهی عنها»(ممنوع) ورځونه علاوه چه کله غواړی.قضاء دې راوړی.

| فَيَجُوزُ صَوْمُهُ بِنِيَّةٍ مِنَ اللَّيْلِ نودا جائز ده پداسې نیت سره چه دشپې نه وی فَإِنْ لَمْ يَنْوِ حَتَّى أَصْبَحَ أَجْزَأَهُ النِّيَّةُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الزَّوَالِ )که نیت ئې اونکړو تر سحره پورې نوکافی دې ده دپاره نیت کول دسحر د زوال په مینځ کښې. (۱) |
|---|

[1]) مذهب الشافعي ﷫:- په زیربحث مسئله کښې امام شافعی ﷫ فرمانی.که د رمضان روژې یا د نذر معین روژې په شپه کښې نیت اونکړې شی.بلکه د صبا راختلونه پس نیت اوکړی.نوجائزنه دې.البته د نفلی روژې نیت د صبا نه پس کول هم جائز دې .هم دا قول د امام محمد ﷫ دې.

**تشریح> دلیل فرضیة صوم رمضان>** په دې مقام کښې صاحب د هدایه رحمه الله په مختلف فیه مسئله کښې د فریقینو دلیلونو بیانولو نه مخکښې دتمهید په طور یوڅوخبرې ذکر کړی دی.

① اوله خبره خودا چه د رمضان روژه فرض ده.اوپه فرضیت باندې د الله تعالی قول ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ﴾ اود امت اجماع د لیل دې.هم دغه وجه ده. چه د رمضان د روژو د فرضیت نه انکار کونکې کافرشمارلې شي.

**المذهبان في سبب وجوب رمضان>** ① په دې مقام کښې صاحب د هدایه رحمه الله فرمانیلی دی.چه د رمضان روژوسبب د رمضان میاشت ده. هم دغه وجه ده.چه د صوم اضافت رمضان طرف ته کیږی.اوصوم رمضان(د رمضان روژې) وئیلې کیږی.او اضافت د سبب کیدلو علامت دې. نو ثابته شوه.چه د رمضان د روژوسبب د رمضان میاشت ده.اوچونکه د سبب تکرار د مسبب تکرار ته مستلزم وی.په دې وجه د رمضان میاشت په مکرر کیدلوسره د رمضان روژې هم مکرر کیږی . بعضو مشانخوهم دا اختیارکړی دی.چه د رمضان میاشت د رمضان د روژو سبب دې.② علامه فخرالاسلام فرمانی .چه د هرې ورځې د روژې د وجوب سبب هم هغه ورځ ده. ځکه چه د رمضان روژې د متفرقو عباداتو په شان دی.په دې وجه دواړوپه مینځ کښې داسې زیاتی وخت(شپه) راځی.چه په هغې کښې مطلقاً د روژې صلاحیت نشته.نه د ادا اونه د قضاء.نود رمضان روژې د مونځونوپه شان دی.لکه څنګه چه د هرمونځ سبب ددې مونځ وخت دې.دغه شان هره ورځ ددغه ورځې د روژې سبب دې.

**دلیل وجوب النذر>** اود نذر روژه واجب ده.دلیل د الله تعالی قول﴿وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ﴾ دې. ځکه چه﴿وَلْيُوفُوا﴾ د امر صیغه ده.او امر په وجوب دلالت کوی.

**سبب نذر معین>**اود نذر معین روژې سبب نذر دې.اونیت ددې شرط دې.«إن شاء الله» د روژو د ټولو شرطونو ذکر به په راروانوصفحوکښې کولې شي.

**مبیت النیة للصوم الواجب المعین>** صاحب د قدوری رحمه الله رومبې د واجب معین احکام ذکرکړی دی. ① فرمانی.چه د رمضان اود نذر معین روژې د نورو قسمونو روژو په شان په شپه کښې نیت کولوسره جائزکیږی .او که د رمضان یا د نذر معین روژو په شپه کښې نیت اونشی.تردې چه صباشو.نوکه د صبا اود زوال په مینځ کښې نیت اوکړې شو.نوهم جائز دې.

**دلائله >** ① دلیل دادې.چه کله یو اعرابی(بانډیچی)د رمضان میاشت دلیدلو ګواهی ورکړه. نو رسول اکرم ﷺ اوفرمانیل.چه کوم کس څه خوړلې وی.هغه دې باقی ورځ څه نه خوری. اوچاچه نه دی خوړلې.هغه دې روژه اونیسی([1]) یعنی د روژې نیت دې اوکړی.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه دصبا نه پس د روژې نیت کول جائزدی.په قول ملاعلی قاری رحمه الله د شرح نقایه داحدیث غیرمشهور دې.

خوپه سنن اربعه کښې د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې.(قال جاء أعرابي إلى رسول الله ﷺ فقال إني رأيت الهلال قال الحسن في حديثه يعني رمضان فقال أتشهد أن لا إله إلا الله قال نعم قال أتشهد أن محمداً رسول الله قال نعم قال يا بلال أذن في الناس فليصوموا)یعنی ابن عباس رضی الله عنه فرمانی.چه په دربار رسالت کښې یو بانډیچی حاضرشو.اوهغه

---

[1] ) غربه الزيلعي ثم قال وذكره ابن جوزى رحمة الله في «التحقيق، وقال إن هذا حديث لا يعرف وإنما المعروف أنه شهد عنده برؤية الهلال فأمر أن ينادى في انسا أن تصوصموي غداً وقد رواه الدارقطنى (١٥٨/٢) بلفظ صريح أن أعرابياً جاء ليلة شهررمضان فذكر الحديث وفي لفظ أبي يعلى الموصلى رحمة الله قال أبصرت الهلال اللية الحديث (نصب الراية ٤٥٥/٢)۔

اوونیل.چه ما میاشت لیدلې ده.حسن په خپل حدیث کښې اوفرمائیل.چه د رمضان میاشت،نبی کریمﷺ اوفرمائیل.چه آیا ته د کلمه توحید ګواهی ورکوې؟هغه اوونیل.آو، نبی کریمﷺ اوفرمائیل.چه آیاته د محمد د رسول کیدلوګواهی ورکوې.هغه اوونیل.آو، نبی کریمﷺ اوفرمائیل.چه بلاله ! په خلقوکښې اعلان اوکړه.چه دوی روژه اونیسی.دا روایت هم په ښکاره طور زمونږ مستدل نه جوړیږی.
ځکه چه په روایت کښې ددې تصریح نه ده شوې.چه د شهادت دا واقعه دمیاشت لیدلو نه پس هم په شپه کښې راپیښه شوې ده.یا په راروانه ورځ د صبا راپیښه شوې وه.که په شپه کښې راپیښې شوی وی.نودا روایت زمونږ دلیل نشی جوړیدلې .اوکه په راروانه ورځ د صبا راپیښه شوې وی.نو په یقین سره زمونږ دلیل جوړیږی.ځکه چه په راروانه ورځ د صبا ددې واقعې راپیښیدلو مطلب دا دې.چه نبی کریمﷺ هم په دې ورځ د روژې نیولوحکم ورکړې دې.اودا ښکاره ده.چه ددې ورځ دا روژه به د شپې په نیت سره نه وی. اوهرکله چه نیت د صبا نه پس اوشو.نوثابته شوه.چه په شپه کښې نیت کول شرط نه دی. ④ دې مذهب په تائید کښې واضح حدیث دادې.چه د سلمه ابن الاکوع نه بخاری اومسلم روایت کړې دې. حدیث دادې. (أنه ﷺ أمر رجلاً من أسلم أذن في الناس أن من أكل فليصم بقية يومه ومن لم يكن أكل فليصم فإن اليوم يوم عاشوراء)یعنی رسول پاکﷺ د قبیله اسلم یوسړی ته حکم اوکړو.چه په خلقوکښې اعلان اوکړی.چه چاڅه خوړلې یا سکلی وی.هغه دې باقی ورځ روژه اونیسی.اوچاچه نه وی خوړلې.هغه دې روژه اونیسی.یعنی د روژې نیت دې اوکړی.ځکه چه دا ورځ د عاشوره ورځ ده.دا واقعه دهغه وخت ده.کله چه دعاشوره روژه فرض وه.او فرضیت په رمضان سره نه وومنسوخ شوې.نوددې نه ثابته شوه.چه دفرض روژې نیت په ورځ کښې کول جائز دی.
⑤ عقلی دلیل دادې.چه درمضان ورځ اود نذرمعین ورځ هم د روژه ورځ ده.ځکه چه په دغه ورځ روژه فرض ده.نوهرکله چه دا ورځ د روژې دپاره مقرر ده.نود ورځ په شروع کښې چه کوم امساک یعنی د خوراک سکاك اود جماع نه بندیدل موجود شو.هغه به هم په هغه نیت باندې موقوف وی.کوم چه مؤخر دې.اود ورځ اکثرې حصې سره مقترن(پیوست) دې.لکه څنګه چه په نفلی روژه کښې دی.نوکه یو کس د صبا راختلونه د خوراك سکاك او د جماع نه بند شو. نودا امساك په راروان نیت باندې موقوف دې.نوکه ده د راروانې روژې نیت اوکړو.او اوس د ورځ زیاته حصه باقی ده.نو وئیلې به شی.چه د ورځ د اولنۍ حصې امساك هم روژه ده.اوکه د راروان ورځ نې د افطار نیت اوکړو.نو وئیلې به شی.چه د شروع امساك هم روژه نه وه.نومعلومه شوه.چه د شروع امساك په راروان نیت باندې موقوف وی.
**وجه توقف الإمساك على النية** > په دې مقام کښې صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی.چه د شروع ورځ امساك په راروان نیت باندې موقوف کیدل په دې وجه دی.چه روژه یو رکن دې.خو درې ز(اوګد) دې.اوس په دې کښې داهم احتمال دې.چه دا رکن دعادت په طور وی.اودا هم احتمال شته.چه د عبادت یعنی د روژه په طور وی. نودا متعین کول،چه دا امساك خالص د الله دپاره دې.اودا د عبادت په طور دې.د عادت په طورنه دې.دا هم په نیت سره کیدلې شی.په دې وجه اوونیلی شو.چه د شروع ورځې امساك په راروان نیت باندې موقوف دې.اوس که دا نیت د ورځ په اکثره حصه کښې موجود شو.نوچونکه اکثر دکل قائم مقام وی.په دې وجه د کثرت په وجه سره د وجود طرف ته به د عدم وجود په طرف باندې ترجیح ورکولې شی.او وئیلې به شی.چه نیت په ټوله ورځ کښې موجود شوې دې.اوهرکله چه نیت په ټوله ورځ کښې موجود شوې دې نو روژه به ټیك وی.نوثابته شوه.چه د روژې په شپه کښې نیت کول ضروری نه دی.

**شرطية النية في إبتداء الصلاة والحج** ددې په خلاف مونځ اوحج دي.چه په دې دواړو کښې د شروع نه نيت کول ضروري دي.په دې دواړوکښې به د(للأکثرحکم الکل)قاعده نشي جاري کولې.ځکه چه د دې دواړو څوځو ارکان دي.لکه چه په مانځه کښې قيام، رکوع ، سجده، د قران قرات وغيره ارکان دي. اوپه حج کښې وقوف عرفه او طواف ارکان دي.اوس که د تکبير تحريمه په وخت په اول د مانځه کښې نيت اونکړې شو.اود احرام په وخت په اول دحج کښې دحج نيت اونکړې شو.نو بعض ارکان به بغير د نيت نه پاتې شي.اوکوم ارکان چه بغير دنيت نه ادا شي.هغه به باطل وي.او بغير ددې ارکانو نه مونځ اوحج نه اداکيږي.په دې وجه دې دواړوکښې په شروع کښې نيت کول ضروري دي.روسته که نيت اوکړې شو.نوهغه به معتبر نه وي.

**الاشکال** دا سوال کيدې شي چه هرکله روژه يو ممتد رکن دې.نود نيت پيوست کول د ورځې قليل اوکثير دواړوسره برابرکيدل پکار ي.يعنی که نيت د ورځ په اکثرحصه کښې موجود شي.يا په کمه حصه کښې موجود شي.په دې طريقه چه د زوال نه پس ئې نيت کړې وي.نوپه دواړو صورتونوکښې روژه ټيک کيدل پکاردي.حالانکه د زوال نه پس د نيت کولو په صورت کښې روژه نه جائزکيږي؟

**ألجواب** اصل خودا وو.چه نيت د ورځ په شروع حصه کښې اوشي.يعنی چه په صبا صادق کيدلو سره د روژې نيت اوشي.خوکه د ورځ اکثر حصې سره د نيت اقتران موجود شو.په دې طريقه چه د زوال نه مخکښې مخکښې نيت اوکړې شي.نود(للأکثرحکم الکل) قاعدې په وجه سره دا اصل مونږ پريخودلو. اوچونکه د زوال نه پس دنيت کولوپه صورت کښې د ورځ په اکثره حصه کښې نيت موجود نشو.په دې وجه په دې صورت کښې دعدم وجود(چه نيت پکښې نه دې شوې)طرف ته ترجيح ورکړې شوه.او او وئيلې شو.چه پوره ورځ نيت اونه موندې شو.او روژه بغير د نيت نه ساتلې شوې ده.اوښکاره ده.چه بغير د نيت نه روژه معتبر نه وي.په دې وجه د زوال نه پس نيت کولو په صورت کښې هم روژه معتبر نه وي.

**جواز صوم المعين بمطلق النية** مسئله داده.چه دا قسم يعنی واجب معين په مطلق سره هم ادکيږي.اود نفل په نيت سره هم اود واجب آخر په نيت سره هم.د قدوري دمصنف رحمه الله په عبارت کښې لره شان تسامح ده.په دې طريقه چه په واجب معين کښې د رمضان روژه اود نذر معين روژه دواړه داخل دي.نوددې مطلب داشو.چه لکه څنګه چه د رمضان روژه په مطلق نيت، د نفل په نيت،اود واجب آخر په نيت سره اداکيږي.دغه شان د نذرمعين روژه هم په ذکرشوی نيتونوسره اداکيږي.حالانکه داسې نه ده. ځکه چه د نذر معين روژه په مطلق نيت اود نفلو په نيت سره اداکيږي.خود واجب آخر مثلاً په قضاء ياکفاره په نيت سره نه اداکيږي.بلکه که د نذر معين د ورځ په شپه کښې د واجب آخر نيت اوکړې شي.نو واجب آخر به اداشي.خو د نذر معين روژه به ادا نه وي.بهرحال د احنافو رحمهم الله مذهب دادې.چه د رمضان روژه په مطلق نيت سره هم اداکيږي.مثلاً داسې ئې اووئيل.چه زه به صباله روژه نيسم.اود نفلو په نيت سره هم اداکيږي.مثلاً داسې اووائی.چه صباله به نفلی روژه نيسم.اود واجب آخر په نيت سره هم ادا کيږي.مثلاً اووائی.چه زه به صباله د کفاره يا د تيرې مياشتې د رمضان قضاء روژه نيسم.

**واجب غير معين روژې**

وَالضَّرْبُ الثَّانِي مَا يَثْبُتُ فِي الذِّمَّةِ او دويم قسم هغه دې کوم چه په ذمه ثابت وی كَقَضَاءِ رَمَضَانَ لکه درمضان دمياشتې قضا. وَالنَّذْرِ الْمُطْلَقِ وَصَوْمِ الْكَفَّارَةِ فَلَا يَجُوزُ صومه او روژه دکفارې نو د دې

روژه جائز نه ده (اِلَّا بِنِيَّةٍ مِنَ اللَّيْلِ) مگر دشپې نه په نيت سره وكذلك صوم الظهار او دغه شان روزه د ظهار ده

**تشریح** > **وجوب مبيت النية في الواجب الغير المعين** > د روژې قسم ثاني كوم چه ثابت في الذمه وي. او ددې دپاره هيڅ وخت متعين نه وي.لكه د رمضان قضاء روژې، دكفاره يمين روژې، دظهار د كفاره روژې، د نتل د كفاره روژې،د صيد د جزاء روژې،اود نذر مطلق روژې. ددې قسم حكم دادې.چه د شپې نه يا په صباصادق كيدلو كښې كه نيت اوكړې شي.نوجائز دې.اوكه د صبا راختلونه پس ئې نيت اوكړو.نو روژه به ټيك نه وي.ځكه چه ددې قسم روژو هيڅ وخت متعين نه وي.بلكه په پوره كال كښې د رمضان اود «منهى عنها»ورځونه علاوه هركله نيولې كيدې شي.په دې وجه به د ورځ د شروع نه متعين كول ضروري وي.او ورځ شروع كيږي.د صبا په راختلوسره، په دې وجه د صبا راختلو نه مخكښې نيت اوكړې شي.يا د صباپه راختلوكښې نيت اوكړې شي.

وَالنَّفَلُ كُلُّهُ يَجُوزُ او نفل ټولې روژې مخكښې د زوال نه (بِنِيَّةٍ قَبْلَ الزَّوَالِ) په نيت سره جائز دي [1]

**تشریح** > **شرطية نية النفل قبل نصف النهار** > ① اود نفلي روژو دپاره د نصف نهار نه مخكښې مخكښې نيت كول ضروري دي.د نهارشرعي نصف حصه تيريدلو نه پس كه نيت اوكړې شو. نو روژه به معتبر نه وي.

**دلائله** > ① زمونږ دليل دحضرت عائشه رضي الله عنها حديث دې.(أن رسول الله ﷺ كان يدخل على نسائه و يقول هل عندكن من غداء فإن قلن لا،قال إني إذا الصيام) [2] يعني رسول الله ﷺ به خپلو بيبيانو ته تشريف اوړلو.او فرمائيل به ئې.چه تاسو سره څه دخوراك دپاره شته.نوكه دوى به وئيل چه نه،نو فرمائيل به ئې.چه اوس زه روژه دار يم.يعني د صباكيدلو نه پس به چه دوى ته د خوراك څه څيز ملاؤ نشو .نودوى به د روژې نيت كولو.ددې نه معلومه شوه.چه د نفلي روژې نيت د نمر راختلونه پس هم جائز دې. ②او عقلي دليل دادې.چه درمضان المبارك نه علاوه پوره كال دنفلي روژو دپاره مشروع دې.نود ورځ په اوله حصه كښې امساك يعني د خوراك څښاك اود جماع نه د بنديدلو نوم روژه كيدل په نيت باندې موقوف دي.په دې شرط چه نيت د ورځ په اكثرحصه كښې موجود شي.اونيت به د ورځ په اكثره حصه كښې هغه وخت متحقق كيږي.چه د نصف النهار نه مخكښې مخكښې اوكړې شي.

**نية صوم النفل بعد الزوال** > ①اوكه د نفلي روژې نيت د زوال نه پس اوكړې شو.نو زمونږ په نيز جائز نه دي.[3]

**دليله** >اوزمونږ په نيز چونكه روژه نه ټكړې كيږي.په دې وجه به د روژې اعتبار د اول نهار (شروع د ورځ) نه معتبر وي.اووجه داده.چه روژه د نفس مغلوب كولو يوعبادت دې.اودا عبادت يو مقدار اوپه

---

[1] **مذهب مالك** رحمه الله:- امام مالك رحمه الله فرمائي.چه دنفلي روژې دپاره هم د شپې نه نيت كول ضروري دي.كه د صبا راختلونه پس ئې نيت اوكړو.نو نفل روژه به هم معتبر نه وي.

[2] من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه مسلم في الصيام رقم ۱۶۹ وابوداود في الصوم باب ۷۲ رقم ۲٤۵۵ والنسائي في الصيام باب ۶۷ واحمد في المسند (۴۹/۶)_

[3] **مذهب الشافعي** رحمه الله:- البته د امام شافعي رحمه الله په نيز جائز دې.خود امام شافعي رحمه الله په نيز به روژه دار د هغه وخت نه شمارلې شي.د كوم وخت نه ئې چه د روژې نيت كړې دې.

معین امساك سره متحقق دي.اود امساك دا مقدار پوره یوه ورځ ده. یعنی د صبا راختلونه د نمر پریوتلو پورې ده.نود نیت اقتران به د ورځ اکثر حصې سره معتبر وي.یعنی که د ورځ اکثرحصه کښې نیت موجود شو.نو روژه به معتبر وي.ګنې معتبر به نه وي.

## د میاشت د لیدو حکم

(وَيَنْبَغِي لِلنَّاسِ أَنْ يَلْتَمِسُوا الْهِلَالَ فِي الْيَوْمِ التَّاسِعِ وَالْعِشْرِينَ مِنْ شَعْبَانَ د رویت حلال په باره کښې خلقو لره پکار دی چه په غور سره اوګوری میاشت د شعبان په یوکم دیرشم تاریخ باندې دشعبان ،فَإِنْ رَأَوْهُ صَامُوا که ونې لیدله نو روژه دې اونیسی وَإِنْ غُمَّ عَلَيْهِمْ أَكْمَلُوا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلَاثِينَ يَوْمًا ثُمَّ صَامُوا)اوکه وریځ پټه کړه نوپوره دې کړی شمیر دیرش ورځې دَ شعبان بیا دې روژه کړی

**تشریح> لزوم الصوم برؤية الهلال او تكميل شعبان>** علامه ابن الهمام ﷫ په فتح القدیر کښې لیکلی دی.چه په ۲۹ شعبان د رمضان المبارك میاشت(سپوږمۍ)کتل واجب علی الکفایه دی.ځکه چه میاشت کله د ۲۹ ورځو وی.اوکله د دیرشو وی.نوکه په ۲۹ شعبان میاشت په نظر راغله.نو روژه به نیولې شی.اوکه میاشت په نظر رانغله.نود شعبان ۳۰ دیرش ورځې به پوره کولې شی.اوبه راروانه ورځ به روژه نیولې شی.

**دلائله>** ① دلیل د رسول الله ﷺ قول(**صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته فان غم عليكم الهلال فأكملوا عدة شعبان ثلاثين يوماً**) [1] دې. ② عقلی دلیل دادې.چه اصل هم دادې.چه د شعبان میاشت باقی وی.ځکه چه د شعبان میاشت د مخکښې نه په یقین سره راروانه ده.نو بغیر د دلیل نه به ددې نه رمضان طرف ته انتقال نه کیږی.او دلته کښې هیڅ دلیل نشته.ځکه چه په ۲۹ شعبان په یقین سره میاشت په نظر رانغله.بلکه د وریځ په وجه شك دې.اود شك په وجه یقین نه زائل کیږی.نو په ۲۹ شعبان د سپوږمۍ د شك په صورت کښې به د شعبان میاشت ختمه نه وی.بلکه ۳۰ تاریخ پورې به د شعبان میاشت باقی وی.

## د یوکس د رمضان د میاشتې ګواهی رد کیدل

وَمَنْ رَأَى هِلَالَ رَمَضَانَ وَحْدَهُ صَامَ چا چه یواځې درمضان میاشت اولیده نودې به روژه نیسی وَإِنْ لَمْ يَقْبَلِ الْإِمَامُ شَهَادَتَهُ اګر چه امام دده شهادت قبول نکړی.

**تشریح> وجوب الصوم علي الرائي وإن رد شهادته>** مسئله داده.که یوکس یواځې میاشت اولیدله.مطلع صفا وو.اود بیدارۍ(ویخې) په حالت کښې ښکاره اولیدله.په خوب کښې نه.نودا کس به پخپله روژه نیسی اګرچه امام دده ګواهی په څه وجه نه وی قبول کړې.

**دلائله>** ① دلیل دادې.چه نبی کریم ﷺ فرمانیلې دی.(**صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته**) [2] نوکله چه دده په حق کښې رؤیت هلال(د سپوږمۍ لیدل) موجود شو.نوپه ده به روژه نیول واجب وی. ②او چه کله ده د بیدارۍ په حالت کښې ښکاره میاشت اولیدله.نودده په حق کښې د میاشت شهود موجود شو.یعنی دده په حق کښې رمضان موجود شو.او الله تعالی فرمانیلی دی. ﴿فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ چه د

---

[1] ) من حديث أبي هريرة ﷺ أخرجه البخاري في الصوم باب ۱۱ رقم ۱۹۰۹ ومسلم في الصوم رقم ۱۷)۔

[2] ) من حديث أبي هريرة ﷺ أخرجه البخاري في الصوم باب ۱۱ رقم ۱۹۰۹ ومسلم في الصوم رقم ۱۷)۔

چا په حق کښې رمضان موجود شی.په هغه باندې د رمضان روژه فرض شوه.نو آيت او روايت دواړه دده په حق کښې د رمضان د روژو په وجوب باندې دلالت کوی.

**وجوب القضاء فقط عند الفساد**> اوکه دې کس په دې ورځ کښې روژه ماته کړه.اګرچه په جماع ئې ماته کړې وی.نو په ده به ددې روژې قضاء واجب وی.کفار به واجب نه وی.(۱)

**دليله** > دليل دادې.چه هرکله قاضی دده شهادت رد کړو.نودا کس شرعاً دروغژن کړې شو.او قاضی دده شهادت هم په شرعی دليل سره رد کړې دې.اوشرعی دليل د غلطئ الزام دې.خکه چه مطلع صفا وو.او ددې باوجود هم صرف ده ته مياشت په نظر راغله.نور هيڅ چاته په نظر رانغله.حالانکه په دې ورځ د مسلمانانو ګنړه وی.او ټول د مياشت ليدلو کوشش کوی.نو يواځی ده ته مياشت په نظر راتلل.او نورو ته په نظر نه راتلل.په دې سره د مياشت په نظر راتلوکښې يوقسم شبه پيدا کيږی.او کفاره د شبهاتو په وجه ساقط کيږی.نو په دې صورت کښې به هم په دې کس باندې د روژې ماتولو په وجه سره کفاره واجب نه وی.

| |
|---|
| **وَلَوْ أَفْطَرَ قَبْلَ أَنْ يَرُدَّ الْإِمَامُ شَهَادَتَهُ اخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيهِ** اوکه ده ماته کړه مخکښې ددې نه چه امام دده شهادت قبول نکړی.و ددې په بابت کښې مشائخواختلاف کړې دې |

**تشريح**> **ألمذهبان في وجوب الكفارة قبل رد شهادته**> اوکه امام تر اوسه پورې دده ګواهی نه ده رد کړې.بلکه دې کس ددې نه مخکښې روژه ماته کړه.نود کفاره په وجوب کښې د مشائخو ﷺ اختلاف دې. ① بعضې فرمائی.چه په دې صورت کښې به کفاره واجب وی.خکه چه شبه پيدا کونکې قاضی دده شهادت رد کول وو.اود قاضی د طرفه د شهادت رد کول موجود نشو.په دې وجه شبه هم اونه موندې شوه. اوهرکله چه د رمضان په ثبوت کښې څه قسمه شبه اونه موندې شوه.نو په رمضان کښې د روژه ماتولو په وجه سره به په ده باندې د قضاء سره کفاره هم واجب وی. ② خوصحيح قول دادې.چه په دې صورت کښې به کفاره واجب نه وی.

**دليل القول الأصح**> خکه چه د شهادت رد کولونه مخکښې هم شبه موجود ده.خکه چه امام ترمذی او ابوداؤد ﷺ د حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت نقل کړې دې.**چه(أنه قال الصوم يوم تصومون والفطر يوم تفطرون)** يعنی نبی کريم ﷺ فرمائی.چه په کومه ورځ تاسو روژه نيسئ:هغه د روژې ورځ ده.او په کومه ورځ چه تاسو افطار کوئ.هغه ورځ د افطار ده.حاصل داچه په کومه ورځ عام خلق روژه نيسی.هغه د فرض روژې ورځ ده.او په کومه ورځ چه عام خلق افطار کوی.هغه د فرض افطار ورځ ده.ددې حديث نه معلومه شوه.چه فرض روژه به هغه وخت شمارلې شی.چه کله عام خلق په دې ورځ روژه اونيسی.او په ذکرشوی صورت کښې عامو خلقو روژه نه ده نيولې.په دې وجه به فرض روژه هم نه شی شمارلې.نوددې روژې په فرض کيدلو کښې شبه پيدا شوه.اوچونکه شبهات کفاره دفع کوی.په دې وجه په دې صورت کښې هم د روژې په ماتولوسره کفاره نه واجب کيږی.

**عدم جوازالإفطار عند تكميل ثلاثين**> اوس که دې کس ۳۰ روژې پوره کړې.اود امام او د عامو مسلمانانو ۲۹

---

(۱) **مذهب الشافعي** ﷺ:- امام شافعی ﷺ فرمائی.چه که په جماع سره ئې دا روژه ماته کړې ده.نو په ده باندې به د قضاء سره د روژې کفاره هم واجب وی.اوکه په خوراك څكاك سره ئې ماته کړې ده.نو په ده به د روژې کفاره واجب نه وی.هم دا قول د امام مالك او امام احمد ﷺ دې.

شوي.او په ۲۹ رمضان باندې د اختر میاشت(سپوږمۍ) په نظر رانغله.نودا کس به هم په دې خیال افطار نه کوي.چه زما ۳۰ روژې پوره شوې.بلکه د امام سره به افطار کوي.اود امام سره به راروانه ورځ روژه نیسي.

**دلیله>** ځکه چه د رمضان میاشت دده په خانله لیدلو باندې یواځې په ده باندې احتیاطاً روژه واجب کړې شوه.د رمضان قطعی فرض روژه په خیال باندې نه واجب کړې شوې.او دلته کښې د افطار په تاخیر کښې احتیاط دې.ځکه ممکن ده.چه د رمضان په میاشت کښې ده ته دهوکه شوې وی.یعنی اولنۍ روژه کومه چه ده د رمضان روژې په خیال سره نیولې ده.هغه د رمضان نه وی.بلکه د شعبان وی.نودده به د رمضان روژې ۲۹ وی.نو احتیاطاً به داکس هم د امام وخت سره افطار کوي.

**عدم وجوب الکفارة بعد تکمیل ثلاثین>** خوکه ددې باوجود ده خپلې ۳۰ روژې پوره کړې.او یواځې ئې خانله افطار اوکړو.نو په ده به کفاره واجب نه وی.ځکه چه په ۳۰ روژو پوره کولو باندې ددې کس په خپل خان باندې یقین دې.چه نن د اختر ورځ ده.نود اختر د شبه په وجه به په ده باندې کفاره واجب نه وی.

(وَإِذَا كَانَ فِي السَّمَاءِ عِلَّةٌ قَبِلَ الْإِمَامُ شَهَادَةَ الْوَاحِدِ الْعَدْلِ فِي رُؤْيَةِ الْهِلَالِ اوکله چه په آسمان کښې علت وی نو قبوله دې کړی امام ګواهی دیو عادل په لیدو دمیاشتې باندې. رَجُلًا كَانَ أَوِامْرَأَةً حُرًّا كَانَ أَوْعَبْدًا) سړې وی که ښځه.آزاد وی اوکه غلام وی.

**تشریح>** **قبول شهادة الواحد في يوم غيم>** مسئله داده.چه که مطلع صفا نه وی.بلکه وریخ وی.یا دوړه یا لوګې وغیره وی. نود رمضان د میاشت رؤیت(لیدل) د یو کس په ګواهۍ سره ثابتیږی.دا کس که سړې وی،اوکه ښځه وی، آزاد وی اوکه غلام وی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه دا یوه دینی معامله ده.یعنی دې کس دا خبر ورکړو.چه په خلقو باندې د رمضان روژې فرض شوی دی.او په خلقو باندې د رمضان د روژو واجبیدل ښکاره خبره ده.چه دا دینی امردې.اود امر دینی ثابتولو دپاره عدالت خو شرط دې.خو عدد، آزادی، او مذکرکیدل شرط نه دی.لکه څنګه چه د احادیثو روایت کول یو دینی کار دې. نود احادیثو په روایت کولوکښې نه عدد شرط دې.نه آزادی شرط ده.اونه مذکر کیدل شرط دی.بلکه د احادیثو روایت د یوکس هم قبول وی.د غلام هم ،اود ښځې هم قبول وی.

**عدم شرطية لفظ الشهادة في الشهادة>** رؤیت هلال چونکه یو دینی امردې.په دې وجه ددې د ثابتولو دپاره لفظ د شهادت شرط نه دې.یعنی دا ونیل شرط نه دی.چه زه ګواهی ورکوم، یا زه شهادت ورکوم، چه ماد رمضان میاشت لیدلې ده.لکه څنګه چه په دنیاوی امورو کښې د ګواهی ورکولو دپاره لفظ د شهادت ضروری وی.

### د مطلع د صفا والی په صورت کښې د رؤیت ثبوت

(فَإِن لَمْ تَكُنْ فِي السَّمَاءِ عِلَّةٌ لَمْ تُقْبَلِ الشَّهَادَةُ اوکه نه وو په آسمان کښې علت نوګواهی به نشی قبلولې حَتَّى يَرَاهُ جَمْعٌ كَثِيرٌ يَقَعُ الْعِلْمُ بِخَبَرِهِمْ تر څو پورې چه اووینی کثیر ټولګې دکومو په بیان سره چه یقین راشی

**حل اللغة >** ① **علة:** یعنی چه په اوریځو څه څیز وی

**تشریح>** **شرطية الجمع الغفير عند عدم الغيم>** مسئله داده.چه که په آسمان باندې وریځ،دوړه وغیره نه وی بلکه مطلع بالکل صفا وی.نوبه رؤیت هلال کښې به د دومره لوې جماعت ګواهی قبلولې شی چه

ددوی په خبرسره د میاشت لیدلو یقین حاصل شی.ځکه چه مطلع صفا وی.نو په دې صورت کښې صرف د یوکس میاشت لیدل،اود باقی خلقو نه لیدل د غلطئ وهم پیدا کوی.یعنی دا وهم پیداکیږی.چه که میاشت موجود وه.نو نورو ته به هم په نظر راغلې وه.نوداسې معلومیږی.چه د یوکس دوه د میاشت په لیدلوکښې غلطی واقع شوې ده.

**حکم الشهادة عند العلة بالسماء** خوکه په آسمان باندې وریځ وی.نود یوکس دوه ګواهی به هم قبلولې شی.ځکه چه د وریځ په صورت کښې کله داسې کیږی.چه د میاشت په ځانې کښې وریځ جدا شی.اوکوم یو کس ته په نظر راشی.او وریځ بیا یوځائې شی.

**ألأقوال في الجمع الغفير** پاتې شوه داخبره چه دکثیر مقدار څه دې.نو① د بعض حضرات فرمانی. چه د کثیر نه مراد د محله ټول خلق دی.یعنی پوره محله خلقومیاشت او کتله، نو رؤیت به ثابت وی. ②اود امام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه دکثیر نه مراد پنځوس کسان دی.امام ابویوسف رحمه الله دا په قسامت باندې قیاس کړې ده.یعنی که په محله کښې څوك مقتول بیا موندې شو.او قاتل معلوم نه دې.نود محله د پنځوسو کسانو نه به په لاعلمئ (ناخبرئ) باندې قسم اخستلې شی.نولکه څنګه چه دلته کښې د پنځوسو کسانو د قسم نه د قاتل په باره کښې د لاعلمئ یقین کیږی.دغه شان د میاشت په باره کښې هم د پنځوسو کسانو په لیدلوسره رؤیت ثابتیږی.

**ألقولان في مقام الروايتين** صاحب د هدایه رحمه الله فرمانیلی دی.چه که مطلع صفا وی.نود یوکس دوه ګواهی به نه قبلیږی.چه ترکومه پورې کثیرجماعت نه وی.اوس دا ګواهی ورکونکی حضرات به① هغه وی.چه په ښار او آبادئ کښې ئې میاشت لیدلې ده. ②یا به هغه وی.چه د ښار نه بهر ئې کتلې وی.او راغلی وی.په دواړوصورتونوکښې د کثیر جماعت کتل شرط دی.امام طحاوی رحمه الله فرمانی.چه میاشت کتونکې که د آبادئ نه بهر لیدلی وی.او راغلې وی.نود یوکس شهادت به هم قبلولې شی.ځکه چه دښار نه بهر د لیدلو مواقع کم دی.یعنی په ښار کښې دننه خو لوګې، اوګرد وغبار وی.خوبهر هیڅ نه وی.په دې وجه به دده قول قبلولې شی.په کتاب الاستحسان کښې هم دې قول طرف ته اشاره ملاویږی.اود امام طحاوی رحمه الله په نیز دغه شان که یوکس په ښار کښې دننه په اوچت ځائې اودریدلو.او میاشت ئې اولیدله.نود یوکس ګواهی به قبلولې شی.

| وَوَقْتُ الصَّوْمِ مِنْ حِيْنِ طُلُوْعِ الْفَجْرِ الثَّانِي إِلَى غُرُوْبِ الشَّمْسِ او دروژې وخت دصبا ثانی دختونه تر پریوتلو دنمر پورې دې. |
|---|

**تشریح** اول وقت الصوم و آخره په دې عبارت کښې د روژې اول او آخر بیان شوې دې.فرمانی. چه دروژې وخت د صباصادق راختلو د وخت نه تر د نمر پریوتلو پورې وی.

**دلیله** دلیل د الله تعالی قول دې(حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ) اوددې نه پس فرمانی. (ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ) په آیت کښې د خیط ابیض نه مراد د صبارڼا ده.اود خیط اسود نه مراد د شپې تیاره ده.نوپه دې آیت کښې د شپې تیاره په تورخط،او د صبا رڼا په سپین خط په مثال سره د روژې شروع کیدلو،اود خوراك څکاك د حرام کیدلو صحیح وخت متعین کړې شوې دې.

**د روژې تعریف**

| وَالصَّوْمُ هُوَ الْإِمْسَاكُ عَنِ الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ وَالْجِمَاعِ نَهَارًا مَعَ النِّيَّةِ او روژه چه ده منع کیدل دی دخوراك |
|---|

خكاك اوجماع كولو نه د ورځې نه.سره د نيت نه په شروع كنبې

**تشريح> تعريف الصوم لغة>** دلته كنبې د روژې تعريف شوې دې.فرمائي.چه په شريعت كنبې روژه په نيت سره دخوراك څكاك اود جماع نه د بنديدلو نوم دې.څكه چه په لغت كنبې د صوم لفظ مطلقاً د امساك په معنى كنبې ده.په دې وجه چه د اسلام نه مخكنبې هم دا لفظ د امساك معنى كنبې استعماليدلو.خو په شريعت كنبې په دې باندې د نيت اضافه اوكړې شوه.چه د نيت په وجه سره د عبادت په طور امساك اود عادت په طور امساك په مينځ كنبې فرق اوشي.

**دلائله>** اوشرعى صوم ورځ سره خاص ده. ① د الله تعالى د قول(وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ) او(ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ) په وجه سره، څكه چه په دې آيت كنبې صوم د صبا راختلونه د شپې پورې بيان شوې دې. ② او عقلي دليل دادې.چه صوم وصال يعنى د شپې ورځې روژه ساتل، خو متعذر دى.څكه چه مسلسل يوه مياشت شپه او ورځ خورك څكاك نه كولو سره د مرګ قوى امكان دې.نو په شپه ورځ كنبې به يود روژې دپاره متعين كول ضرورى وى.نود عقل تقاضا داده.چه ورځ متعين كول اولى دى.چه د ورځې خوراك څكاك نه بنديدل د عادت خلاف واقع وى.اود عبادت بنياد هم په دې باندې دې.چه دا د عادت اوخواهشاتو خلاف وى.

(فَإِنْ أَكَلَ الصَّائِمُ أَوْ شَرِبَ أَوْ جَامَعَ نَهَارًا نَاسِيًا لَمْ يُفْطِرْ)كه څه اوخورى روژه دار يا دا چه څه اوڅښى اويا جماع اوكړى په هيره سره نو روژه نه ماتيږى [1]

**تشريح> فساد الصوم بالمفطرات>** مسئله: ①كه روژه دار په هيره خوراك اوكړى.ياڅكاك اوكړى. يا جماع اوكړى. نو د ده روژه به نه ماتيږى.

**وجه الإستحسان>** ① وجه د استحسان داحديث دې.چه يوكس د روژې په حالت كنبې څه اوخوړل، يا ئې اوڅكل،نوده ته نبى كريمﷺ اوفرمائيل.چه ته خپله روژه پوره كړه.څكه چه الله تعالى په تاخوراك څكاك كړې دې. ([2]) ② او په يوحديث كنبې دى.(أن من أفطر في شهر رمضان ناسياً فلا قضاء عليه ولا كفارة) يعنى كوم كس چه په هيره په روژه كنبې افطار اوكړو.نو نه په ده قضاء شته، اونه كفاره.بهرحال دا ټول حديثونه په دې خبرد دلالت كوى.چه په هيره خوراك څكاك سره روژه نه ماتيږى. ③(عن أبي هريرة رضي الله عنه عن النبيﷺ قال من نسي وهو صائم فأكل أو شرب فليتم صومه فإنما أطعمه الله وسقاه)يعنى رسول اكرمﷺ فرمائيلي دى.كوم كس چه هيركړو.حالانكه دې روژه داردې.بيا ده اوخوړل،يا اوڅكل،نو خپله روژه دې پوره كړى.څكه چه الله تعالى په ده خوراك كړې دې. او څكاك كړې دې ④ اوپه دارقطنى كنبې دى.(أن رجلاً سأل رسول اللهﷺ

---

[1] ، **مذهب مالك رحمه الله**:- دقياس تقاضا داده.چه روژه ماته شى.هم دا د امام مالك رحمه الله قول دې. د قياس وجه داده.چه خوراك څكاك اوجماع كول د روژې ضد دې.اود شئ ضد شئ معدوم كوى.څكه چه په يو وخت كنبې د ضدينو موجود كيدل محال دى.نوهركله چه د روژې ضد يعنى خوراك څكاك وغيره موجود شو.نوروژه معدوم شوه.

[2] ) من حديث ابي هريرة رضي الله عنه اخرجه البخارى في الصوم باب ٢٦ ومسلم في الصوم رقم ١٧ وأبوداود في الصيام باب ٤٠ رقم ٢٣٩٨ والترمذى في الصوم باب ٢٦ رقم ٧٢١ وابن ماجه في الصيام باب ١٥ رقم ١٦٧٣ والدارمى في الصوم باب ٢٣ واحمد في المسند (٢/٣٩٥)_

فقال إني كنت صائماً فأكلت وشربت ناسياً، فقال ﷺ أتم صومك فإن الله أطعمك وسقاك) يعني يوكس د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوكړه .او وي ويل چه زما روژه وه .ما په هيره خوراك څكاك اوكړو .نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل .چه نه خپله روژه پوره كړه .څكه چه الله تعالى په تا خوراك څكاك كړې دې.

**الإعتراض**﴾ پاتې شو دا اعتراض چه داحديث د كتاب الله متعارض دې .څكه چه په كتاب الله كښې دى. (ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ) اود صيام او صوم معنى ،امساك، ده .يعنى بنديدل ،او په هيره د خوراك څكاك په صورت كښې امساك موجود نشو .نوپه هيره د خوراك څكاك په صورت كښې آيت دلالت كوى .په بطلان د صوم باندې .او حديث دلالت كوى .په بقاء د صوم باندې.

**الجواب**﴾ ددې جواب دادې .چه په كتاب الله كښې د نسيان په معاف كيدلو دلالت دې .لكه چه ارشاد دې. (رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا) نوهركله چه نسيان معاف دې .نوپه حديث او كتاب الله كښې هيڅ تعارض باقى پاتې نشو.

**الاشكال**﴾ دلته يو .سوال دې .چه په هيره خوراك څكاك سره د روژې نه ماتيدل ،خلاف قياس په نص (حديث) سره ثابت دى .اوكوم څيز چه خلاف قياس ثابت وى .هغه غير طرف ته نه متعدى كيږى .نود روژې دنه ماتيدلوحكم په هيره جماع كولو طرف ته متعدى كيدل نه دى پكار ،يعنى په هيره جماع كولوسره روژه ماتيدل پكاردى .حالاتكه تاسو په هيره جماع كول، په هيره خوراك څكاك باندې قياس كړى دى .اوپه دې هم د روژې ماتيدلو حكم لګولې دې.

**الجواب**﴾ ددې جواب دادې .چه په هيره جماع كولوسره د روژې نه ماتيدل، دقياس نه ثابت نه دى. بلكه دلالت النص سره ثابت دى .په دې طريقه چه د خوراك څكاك اود جماع كولونه بنديدل .د روژې په ركن كيدلوكښې تول برابر دى .نوجماع ،د خوراك څكاك په شان شو. او چونكه د نص (حديث) په وجه سره نسياناً د خوراك څكاك په حق كښې د صوم دعدم فساد حكم ثابت دې .نو نسياناً د جماع په حق كښې به هم دلالة د صوم د عدم فساد حكم ثابت وى.

**په شيطانى خوب د روژې ماتيدل**

| فَإِنْ نَامَ فَاحْتَلَمَ لَمْ يُفْطِرْ) نوكه اوده شو او احتلام ئې اوشو نونه ماتيږى |
|---|

**تشريح**﴾ **عدم الفساد بالإحتلام**﴾ مسئله :كه روژه دار اوده شو .اوده ته په هم په دې حالت كښې احتلام اوشو .نودده روژه به فاسد نه وى.

**دلائل**﴾ ① څكه چه په حديث (ثلاث لايفطرن الصيام ألقئ والحجامة والإحتلام) [1] كښې درې څيزونه مفسد د صوم نه دى .يو بې اختياره قئ راتلل، دويم ښكر لګول، دريم احتلام كيدل. ② دويم دليل دا دې .چه په احتلام كښې جماع نه صورةً موجود شوه .او نه معنىً .صورةً خوڅكه چه د جماع صورت دادې .چه يو شرم ګاه په بل شرمګاه كښې داخل شى .او په احتلام كښې داخبره نه وى .او معنىً جماع په دې وجه موجود نشوه .چه معنىً جماع داده .چه ښځه اوسړې په شهوت سره خپلوكښې ملاوشى .او ادخال اونشى. خو انزال اوشى .نود احتلام په صورت كښې چه هركله نه صورةً جماع موجود شوه .اونه معنىً جماع موجود شوه .نود روژې فاسدكيدلو هدو سوال پاتې نشو.

[1] ) من حديث أبي سعيد الخدري ﷺ اخرجه الترمذى في الصوم بب ٢٤ رقم ٧١٩)_

## د ښځې شرمګاه ته په کتلو انزال کېدل

| اَوْنَظَرَاِلٰى امْرَأَته فَاَنزَلَ) دغه شان که ښځې ته ئې اوکتل اومنی ئې اووتله |
|---|

**تشريح> عدم الفساد بالإنزال بوجه النظر إلي فرج>** که يو روژه دار يوښانسته شان ښځې يا ددې شرمګاه ته اوکتل.اود غريب منی اووتله.نودده روژه به فاسد نه وی.

**دليله>** ځکه چه په دې صورت کښې هم جماع نه صورةً موجود شوه.او نه معنیً.اودا داسې شولکه چه يو روژه دار د يوښانسته ښځې په تصور کښې کيناستلو.او هم په دې تصور کښې ئې منی خارج شوه.نودده روژه به فاسد نه وی.

| (اَوْادَّهَنَ اوکه تيل ئې اولګول (اواحْتَجَمَ) اويا ئې رګ اووهی |
|---|

**تشريح> عدم فساد الصوم بالدهن>** مسئله:په بدن يا سرکښې تيل لګول،روژه نه فاسدوی.

**دليله>** ځکه چه روژه هغه وخت فاسديږی.چه کله د روژې منافی څه څيز موجود شی.او تيل لګول د صوم منافی نه دی.په دې وجه دې سره روژه نه فاسديږی.

**عدم الفساد بالحجامة>** اوښکر لګول هم مفسد د صوم نه دی.

**دلائله>** ① يوخو په دې وجه چه ښکر لګول د صوم منافی نه دی.② دويم دهغه حديث په وجه سره کوم چه مونږ وړاندې روايت کړې دې.يعنی «لايفطر الصيام القئ والحجامة والإحتلام»

| اَوْاکْتَحَلَ اوکه رانجه ئې پورې کړل |
|---|

**تشريح>** اوکه رانجه ئې اولګول، بيابه هم روژه فاسد نه وی.اګرچه په حلق کښې ددې مزه محسوسه شی.

**دلائله>** ① ملاعلی قاری رحمه الله په شرح نقايه کښې د ابن ماجه په حواله سره د عائشه صديقه رضي الله عنها حديث نقل کړې دې.(أنه ﷺ إكتحل وهو صائم)دا ټول روايتونه ددې خبرې شاهد دی.چه رسول الله ﷺ به د روژې په حالت کښې رانجه استعمالول.② صاحب د کفايه رحمه الله د ابو رافع رضي الله عنه حديث بيان کړې دې.(أن النبي ﷺ دعا بمكحلة أثمد في رمضان فاكتحل وهو صائم)يعنی نبی کريم ﷺ د اثمد رانجو رانجړومه (د رانجو ساتلوکسوړئ) په رمضان کښې اوغوښتله.بيادوی په حالت د روژه کښې رانجه اولګول.③د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث دې.(قال خرج رسول الله ﷺ عاشورا من بيت أم سلمة وعيناه مملوتان كحلاً كحلة أم سلمه رضي الله عنها) يوځلې رسول الله ﷺ د عاشوره په ورځ د ام سلمه رضي الله عنها دکورنه په داسې حال کښې راووتلو.چه ددوی دواړه سترګې د رانجو نه ډکې وې.ام سلمه رضي الله عنها هم رانجه لګولی وو.عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمانی.چه دا دهغه وخت خبره ده.کله چه د عاشوره روژه فرض وه.او بيا منسوخ شوه.④ اوځکه چه په سترګو اودماغ په مينځ کښې لاره نشته.په دې وجه د رانجو په حلق کښې تلل ممکن نه دی.

**الإعتراض والجواب>** اوياتې شو داچه هرکله په سترګو او دماغو په مينځ کښې هيڅ لاره نشته.نو په حلق کښې ددې مزه ولې محسوس شوه.نوددې جواب دادې.چه مزه د رانجو اثر دې.نه د عين رانجو، او روژه د عين رانجو په حلق کښې تللوسره ماتيږی.د رانجو په اثر سره نه ماتيږی.

**الإعتراض الثاني>** اوياتې شو دا اعتراض چه دسترګو او دماغو په مينځ کښې چه هرکله هيڅ لاره

نشته.نو اوښکې د کوم ځائې نه راوځي.

**الجواب**﴿ددې جواب دادې.چه اوښکې دخولو پشان د مساماتو دننه نه راوځي.او دمساماتو په ذريعه داخليدونکي څيزد روژې منافي نه دې.نوپه دې سره به روژه نه ماتيږي. لکه که يو روژه دار په يخو اوبوسره غسل اوکړو.اود يخوالي اثر زړه او دماغوته اورسيدلو.نوپه دې سره به روژه نه ماتيږي.ځکه چه د يخوالي حاصليدلو ذريعه مسامات دي.

**الإعتراض الثالث**﴿خوکه دا سوال اوکړې شي.چه د حديث نه معلوميږي.چه د روژې په حالت کښې رانجه لګول منع دي.ځکه چه معبد بن هوذه انصاري‌﷜ د الله د رسول‌ﷺ نه روايت کوي.چه رسول الله‌ﷺ اوفرمائيل.(عليكم بالأثمد المروح وقت النوم وليتقه الصائم)يعني ته د اوده کيدلوپه وخت آرام ده.اثمد رانجه لګوه.او روژه دار دې ددې نه ځان ساتي.ددې حديث نه معلومه شوه.چه روژه دار دې د رانجو استعمال نه کوي.

**الجواب**﴿صاحب د عنايه ﷫ فرمائي.چه رسول اکرم‌ﷺ د عاشوره روژه او په دغه ورځ رانجه لګول مستحب ګرځولي دي.او امت د عاشوره په ورځ رانجو لګولو باندې اتفاق هم کړې دې.نودا روايت د تيرشوي روايت نه راجح دې.

### بغير د انزال نه د ښکلولو حکم

| |
|---|
| **اَوْقَبَّلَ لَمْ يُفْطِر** او که ښځه ئې ښکل کړه نو روژه ئې نه فاسديږي |

**تشريح**﴿ **عدم فساد الصوم بالقبلة**﴾ مسئله داده.که روژه دار ښځه ښکل کړله.او دده انزال اوشو.نو دده روژه به فاسد نه وي.

**دليله**﴿ ځکه چه بغير د انزال نه د کوکې اخستلو په صورت کښې جماع نه صورةً موجود شوه.او نه معنیً موجود شوه.حالانکه مفسد د صوم جماع وي.که صورةً وي.اوکه معنی وي.

### په ښکلولو سره د انزال حکم

| |
|---|
| **فَاِنْ اَنْزَلَ بِقُبْلَةٍ اَوْلَمْسٍ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَلَاكَفَّارَةَ عَلَيْهِ** که په ښکولو يا مسه کولونې انزال اوشو نوپه ده باندې قضاء د کفارې پرې نشته دې. |

**تشريح**﴿ **وجوب القضاء بالإنزال دون الكفارة**﴾که روژه دار د ښځې نه کوکې واخستله.يا دې ته لاس يوړلو.او انزال اوشو .نو دده روژه فاسد شوه.اوس به په ده باندې ددې روژې قضاء واجب وي.کفاره به واجب نه وي.

**دليل وجوب القضاء**﴿قضاء خوبه په دې وجه واجب نه وي.چه جماع صورةً اګرچه نه ده موجود شوې.ځکه چه ښځه اوسړې په شهوت سره ملاوشي.او انزال اوشي.دې ته معنیً جماع وائي.او احتياطاً قضاء واجبولو دپاره د صوم منافي موجودکيدل کافي دي.که صورةً موجود شي.او که معنی موجود شي.

**دليل عدم وجوب الكفارة**﴿او پاتې شو.د کفاره نه واجبيدل.نوددې وجه داده.چه کفاره هغه وخت واجبيږي.چه کله جرم مکمل طور باندې متحقق شي.او دلته کښې صورةً جماع نه موجود کيدلوپه وجه سره جرم سپك شو.بلکه يوقسم د عدم جماع شبه پيدا شوه.اودا خبره منلې شوې ده.چه د شبهاتو په وجه سره کفارات لرې کولې شي.کله څنګه چه د شبهاتو په وجه سره حدود لرې کولې شي.

### په نفس د قابو په وخت کښې د ښکلولو اجازت

| |
|---|
| **وَلَابَأسَ بِالْقُبْلَةِ اِذَا اَمِنَ عَلٰى نَفْسِهٖ)** اوپه ښکلولو کښې باك نشته دې کله چه پخپل نفس قابومومی |

**تشریح ﴿ عدم كراهة القبلة عند الأمن من الإنزال ﴾** مسئله: روژه دار که په خپل نفس باندې اطمینان لری.نوده ته د خپلې ښځې نه دکوکئ په اخستلوکښې هیڅ باك نشته.یعنی په جماع کښې د واقع کیدلو نه که اطمینان وی.اود منی خارجیدلو نه اطمینان وی.نود روژې په حالت کښې د کوکئ په اخستلوکښې هیڅ باك نشته.

**دلائل عدم كراهة القبلة ﴾** بهرحال ثابت شو.چه د امن په حالت کښې د روژه دار دپاره کوکئ اخستل بلاکراهت جائزدی. ①په صحیحین کښې دی. (أنه ﷺ كان يقبل ويباشر وهو صائم) یعنی رسول اللهﷺ به د روژې په حالت کښې د ښځې کوکئ اخستله.او خپلوکښې به یوځائې کیدل. ②حضرت ام سلمه ﷝ نه نقل دی. (أنه كان يقبلها وهو صائم) ام سلمه ﷝ فرمائی.چه رسول اللهﷺ به ددې نه د روژې په حالت کښې کوکئ اخستله.ددې دواړو روایتونو نه هم د روژه دار دپاره د کوکئ اخستلو اجازت معلومیږی.

| وَيُكْرَهُ إِنْ لَمْ يَأْمَنْ )اومکروه دی کله چه اطمینان نه وی (١) |
|---|

**تشریح ﴿ كراهة القبلة عند خوف الإنزال والجماع ﴾** اوکه اطمینان نه وی.بلکه په جماع کښې د مبتلا کیدلو ویره وی.یاد منی خارجیدلو خطره وی.نوپه داسې صورت کښې د روژه دار دپاره کوکئ اخستل مکروه دی.

**دلیله ﴾** ځکه چه کوکئ اخستل پخپله خو روژه نه ماتوی.خو ډیرکرته د انجام په اعتبار سره د صوم د فساد سبب جوړیږی.په دې طریقه چه روژه دار دخپلې ښځې نه کوکئ واخستله.او صبر ئې اونکړې شو.نوصحبت ئې اوکړو.یادومره لګیا شو.چه په کوکئ اخستلواخستلو ئې انزال اوشو.نو په دې دواړو صورتونوکښې به روژه فاسد وی.نوکه روژه دار په دې خبره مطمئن وی.چه د بد انجام وخت به نه راځی.نوخاص د کوکئ اعتبار به کولې شی.اود کوکئ اجازت به ورکولې شی.خوکه دا اطمینان نه وی.نود انجام اعتبار به کولې شی.او مکروه به ګرځولې شی.

**په قئ باندې د روژې ماتیدل**

| وَإِنْ ذَرَعَهُ الْقَيْءُ لَمْ يُفْطِرْ که روژه دار قئ اوکړو نو روژه ئې نده ماته |
|---|

**حل اللغة ﴾** ①ذرعه: پخپله قې راتلل ②قئ: قې

**تشریح ﴾ عدم الفساد بالقئ ودلیله ﴾** مسئله داده.که قئ پخپله اوشو.نو روژه به فاسد نه وی.قئ که قلیل وی.اوکه کثیر

وی.دلیل داحدیث دې.(من قاء فلا قضاء عليه ومن استقاء عامداً فعليه القضاء) (٢)
یعنی د کوم کس چه په خپله قئ اوشی.نو په هغه باندې قضاء نشته.

---

[١] ، **مذهب الشافعي** ﷬ ﴾ حضرت امام شافعی ﷬ په امن او غیر امن دواړه حالتونوکښې کوکئ بغیر د کراهته جائزګرځولې ده.خو زمونږ د طرفه بیان شوې دلیل د امام شافعی ﷬ خلاف حجت دې.

[٢] ) من حديث أبي هريرة ﷜ أخرجه ابوداود في الصوم باب ٣٣ رقم ٢٣٨٠ والترمذی في الصوم باب ٢٥ رقم ٧٢٠ وابن ماجه في الصيام باب ١٦ رقم ١٦٧٦ والدارمی في الصوم باب ٢٥ واحمد في المسند(٤٩٨/٢)_

فساد الصوم بالإستقاء و دليله> كوم كس چه قصدا قئ اوكړو.په هغه قضاء واجب ده.د ترمذي الفاظ دي

چه«من ذرعه القئ وهو صائم فليس عليه القضاء ومن استقاء عمداً فليقض»يعنى روژه دار له كه پخپله قئ راغلو.نويه ده باندې قضاء واجب نه ده.او كوم كس چه په قصد سره قئ اوكړو. هغه به قضاء راوړي.
صاحب د هدايه رحمه الله فرمائيلى دى.چه هم په دې حكم كښې په ډكه خوله قئ ، اود ډكې خولې نه كم دواړه برابردي.يعنى كه قئ بغير د اراده نه پخپله اوشو.نوكه دا په ډكه خوله وى.اوكه د ډكې خولې نه كم وى.په دواړو صورتونوكښې به روژه فاسد نه وى.ځكه چه حديث مطلق دې.په دې كښې د قليل اوكثير هيڅ تفصيل نشته.

(وَإِنْ اسْتَقَاءَ عَامِدًا مِلْءَ فِيهِ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ) كه قي نې اوكړو قصداً په ډكه خوله نو په ده قضاء ده

تشريح> فساد الصوم بالإستقاء عمداً مل ء الفم>كه د ډكې خولې نه كم وتلې شوې قئ نې په خپله اراده سره دننه واپس كړو.نود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به روژه فاسد نه وى. ځكه چه خروج اونه موندې شو.اود امام محمد رحمه الله په نيز به فاسد وى.ځكه چه قئ دننه داخلولوكښې د روژه دار اختيارى فعل اوموندلې شو.

دليله>ددې دليل هغه حديث دې.كوم چه په تيره شوې مسئله كښې تيرشوې دې.يعنى«من استقاء عامداً فعليه القضاء»
ألإعتراض> اوس به سوال داكيږي.چه هركله په قصد سره په ډكه خوله قئ كول مفطر اومفسد د صوم دى.نو په قصد سرد د افطار كولو په وجه سره د قضاء سره كفاره هم واجب كيدل پكار وو.حالانكه په دې صورت كښې كفاره نه ده واجب. كړې شوې.
ألجواب> ① په قصد سره په ډكه خوله قئ كولو په صورت كښې صورةً افطار موجود نشو. ځكه چه د افطار صورت دپاره د يوڅيزدننه داخلولو ضرورى دى.اود قئ په صورت كښې دخول موجود نشو.بلكه د معدې نه خروج شوې دې.نوهركله چه د افطار صورت موجود نشو.نوجنايت كامله هم موجود نشو. اوهركله چه كامل جنايت موجود نشو.نوكفاره به هم واجب نه وى.ځكه چه كفاره په كامل جنايت سره واجبيږي. ② دويم جواب دادې.چه په قئ كولوسره د روژه ماتيدل خلاف قياس د حديث نه ثابت دى.اوپه حديث كښې فقط د قضاء ذكر دې.دكفاره ذكر نه دې.نود حديث په مورد باندې د انحصار په لحاظ سره به صرف قضاء واجب وى. كفاره به واجب نه وى.

## د ګټكې يا اوسپنې تيرول

(وَمَنْ ابْتَلَعَ الْحَصَاةَ أَوْ الْحَدِيدَ اونواة أَفْطَرَ وقضى )دكوم روژه دار چه ګټكې يا اوسپنه يا د قجورې اړوكې تير شو نوماته شوه او قضاء به نې راوړي

تشريح> فساد الصوم بإبتلاع الحديد دون الكفارة>مسئله: كه يوكس څه كانړې يا د اوسپنې يوه ټكړه اوخوړله.نو په ده به قضاء واجب وى.خوكفاره به واجب نه وى.قضاء خوبه په دې وجه واجب وى.چه د افطار صورت موجود شو. دليله>ځكه چه يوڅيز خيټې ته رسولې شوې دې.
عدم الكفارة> اوكفاره به په دې وجه واجب نه وى.چه معنى افطار نه دې موجود شوې.ځكه چه معنىٰ افطار. د يونفع وركونكى څيز خيټې ته دننه داخلول دى.كه دغه څيز د غذا د قبيلې څنې وى.اوكه د دوائى د قبيلې څنې وى.نو چونكه د افطار معنىٰ نه ده موجود شوې.په دې وجه سره جنايت ناقص

شوې دې.په دې وجه به كفاره هم واجب نه وي.

**په احد السبيلين كښې د جماع حكم**

| وَمَنْ جَامَعَ عَامِدًا فِي أَحَدِ السَّبِيلَيْنِ كه چا روژه دار جماع اوكړه په يو د دواړو لاروكښې په قصد سره أَوْ أَكَلَ أَوْ شَرِبَ مَا يَتَغَذَّى بِهِ أَوْ يَتَدَاوَى بِهِ اوكه وې خوړلو يا ئې اوڅښلو داسې څيز چه غذا يا دوائي پرې كولې شي فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ وَالْكَفَّارَةُ نو په ده قضا او كفاره دي. |
|---|

**تشريح> وجوب القضاء والكفارة بالجماع>** مسئله داده.كه روژه دار په قصد سره جماع اوكړه.كه په فرج كښې وي،كوم چه حلال محل دې.اوكه په مقعد كښې وي.كوم چه حرام محل دې.نو په ده باندې قضاء هم واجب ده.اوكفاره هم واجب ده.قضاء خو په دې وجه واجب ده.چه فوت شوې مصلحت او نيكى حاصله كړې شى.د روژې مصلحت د نفس اماره مغلوب كول دى. اود جماع په وجه دا مصلحت فوت شوې دې.څكه چه د روژې په حالت كښې جماع كول، نفس اماره غالب كول شو.مغلوب كول نشو.نو هركله چه د جماع په وجه د روژې مصلحت فوت شو.نو روژه هم باقي پاتې نشوه.او هركله چه روژه باقي پاتې نشوه.نو ددغه ورځې روژې قضاء به واجب وي.او كفاره به په دې وجه واجب وي.چه جنايت په كامله درجه موجود شو.يعنى د يوشرمگاه د بل په شرمگاه كښې داخلول موجود شو.اودا صورةً هم جماع ده او معنى هم جماع ده.

**عدم شرط الإنزال لوجوب الكفارة>** صاحب د هدايه رحمه الله فرمائيلى دى.چه د جماع په وجه د كفاره د وجوب دپاره انزال شرط نه دې.يعنى كه روژه دار په قبل يا دُبر كښې جماع اوكړه.نو كفاره به واجب وي.كه انزال شوې وي.اوكه نه وي شوې.د كفاره د وجوب دپاره ادخال شرط دې.انزال شرط نه دې.

**دلائله>** ① صاحب د هدايه رحمه الله د كفاره وجوب د غسل په وجب باندې قياس كړيدى.په دې طريقه چه لكه څنگه ، ادخال فرج في الفرج، سره غسل واجبيږى.اگرچه انزال نه وى شوې.دغه شان بغير د انزال نه به كفاره هم واجب وي.② د كفاره د وجوب دپاره د انزال په نه شرط كيدلو باندې صاحب د كفايه رحمه الله يو دليل دابيان كړې دې.چه د حد واجب كولودپاره انزال شرط نه دې.يعنى كه د يو فرج د بل په فرج كښې ادخال موجود شو.نو حد به واجب وي.اگرچه انزال نه وى شوې.حالانكه حد صرف يو عقوبت او سزا ده.نوكفاره كوم چه عبادت او عقوبت دواړو ته شامل دې.ددې د وجوب دپاره به په درجه اولى انزال شرط نه وي.

**الروايتان في وجوب الكفارة بالدخول في الدبر>** ①دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دادې.چه په دبر كښې جماع(لواطت)كولوسره كفاره نه واجب كيږى.حضرت امام اعظم رحمه الله دا په وجوب حد باندې قياس كړې دې. يعنى لكه څنگه چه په دې غيرفطرى اوناخوښه حركت باندې حد نه واجبيږى.دغه شان به په دې حركت سره د روژه كفاره هم نه واجبيږى.او علتِ مشتركه د جنايتِ كامله نه موجود كيدل دې.يعنى دحد او كفاره دواړو د وجوب دپاره د جنايت كامله كيدل ضرورى دى.او حضرت امام اعظم رحمه الله دا كامل جنايت نه دې شمار كړې.څكه چه روغ تبيعت د څناورتوب ددې كارنه نفرت كوى.

② اود حضرت امام اعظم رحمه الله دويم روايت دادې.كه فاعل او مفعول دواړه روژه دار وى.نو په دواړو به كفاره واجب وى.هم دا دصاحبينو رحمهما الله قول دې.اوهم دا زيات صحيح دې.څكه چه په دبر كښې دننه دجماع په وجه هم چونكه شهوت پوره كيږى.په دې وجه دې صورت كښې هم جنايت په كامله درجه موجود شو. اوجنايت كامله موجب د كفاره دې.نوپه دې صورت كښې به هم كفاره واجب وى.

**وجوب الكفارة بالأكل والشرب** ① مسئله داده.که روژه دار د غذا یا د دوائی په طورخه څیز په قصد سره اوخوړلو.یا ئي اوڅکلو.نو په ده به قضاء اوکفاره دواړه واجب وي.[1]

**دليله** دليل دادي.چه د كفاره تعلق د افطار جنايت سره دي.كوم چه په رمضان كښي علىوجه الكمال، موجود شي.او جنايت كامله چه څنګه د جماع په صورت كښي موجود وي.دغه شان د خوراك څكاك په صورت كښي هم موجود وي.نوځكه به د خوراك څكاك په صورت كښي هم كفاره واجب وي.

**د روژې كفاره**

(وَالْكَفَّارَةُ مِثْلُ كَفَّارَةِ الظِّهَارِ) د رمضان كفاره د كفارې دظهار په شان ده.

**تشريح** كفارة الصوم امام قدوري رحمه الله فرمائي.چه د روژې كفاره، د ظهار د كفاره په شان دي.اود ظهار كفاره داده.چه مظاهر يعني ظهار كونكي يو رقبه ازاد كړي.اوكه ددې قدرت نه وي.نو بلاناغه دې دوه مياشتې روژې اونيسي.اوكه داهم طاقت نه وي.نو شپيتو مسكينانو ته د خوراك وركړي.

**دلائله** ① د اتيشتمي سيپاري په رومبئ ركوع كښي دي.﴿وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا﴾ (سورة المجادله آيت ۳) يعني كوم خلق چه مور اووانئ خپلو ښځوته، بيا كول اوغواړي هغه كوم ئي چه وئيلي دي.نو ازاد دې كړي يوه رقبه مخكښي ددې نه چه يوبل ته لاس يوسي.په دې به تاسوته نصيحت وي.او الله خبر اخلي دهغه كوم چه تاسو كوئ.بياچه څوك اونه مومي.نو روژې دې دوه مياشتې لګاتار، مخكښي ددې نه چه يوبل ته لاس يوسي.بياچه څوك داسې اونكړې شي.نو خوراك وركول دي.شپيتو محتاجو ته.بهرحال كفاره د صوم، بالكل د ظهار مطابق ده.يعني په ذكرشوي درې څيزونو (د غلام آزادول،دوه مياشتې روژې،د شپيتو مسكينانو خوراك) كښي به هم د هغه ترتيب لحاظ ساتلې شي.كوم چه په كفاره د ظهار كښي ذكر دې.يعني غلام دې آزاد كړي. كه په دې قدرت نه وي.نوپه دې صورت كښې دې دوه مياشتې لګاتار بلاناغه روژې اونيسي. اوكه په دې هم قدرت نه وي.نوپه دې صورت كښي دې شپيتو مسكينانوته خوراك وركړي.

② هغه حديث هم دليل دې.كوم چه په تيره شوې مسئله كښي ذكر دې. يعني(من أفطر في رمضان فعليه ما على المظاهر)په دې حديث كښي هم د صوم كفاره د ظهار په كفاره باندې قياس شوې ده.اود ظهار په كفاره ترتيب او تتابع دواړه شرط دي.نود صوم په كفاره كښي به هم دواړه څيزونه شرط وي.③ بل دليل د باندېچې حديث دې.كوم چې علامه ابن الهمام د كتب سته په حواله سره په دې الفاظوسره ذكر كړې دې.(عن ابي هريرة رضي الله عنه قال أتى رجل النبي صلى الله عليه وسلم قال هلكت قال ما شانك قال وقعت على إمرأتي في رمضان قال فهل تجد رقبة تعتقها قال لا، قال فهل تستطيع أن تصوم شهرين متتابعين قال لا، قال فهل تستطيع أن تطعم ستين مسكيناً قال لا، قال إجلس فأتي النبي صلى الله عليه وسلم بعرق فيه تمر فقال تصدق به قال على أفقر مني يا رسول الله صلى الله عليه وسلم فوالله ما بين لابتيها يريد الحرتين اهل بيت أفقر من أهل بيتي فضحك صلى الله عليه وسلم حتى بدت ثناياه وفي لفظ أنيابه وفي لفظ نواجذه ثم قال خذه

[1] **مذهب الشافعي رحمه الله**: امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه په ده به كفاره واجب نه وي.هم داقول دامام محمد رحمه الله دي.

فأطعمه أهلك وفي لفظ أبي داؤد زاد الزهري وإنما كان هذا رخصة له خاصة) (١) یعنی حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه یوکس په دربار رسالت کښې راغې.چه ایٔ د الله رسوله ﷺ ازه خو برباد شوم.رسول الله ﷺ اوفرمائیل.څه اوشو؟ هغه اووئیل.چه درمضان په ورځ مې خپلې ښځې سره جماع اوکړه.رسول الله ﷺ اوفرمائیل.رقبه شته چه ته هغه آزاد کړې؟ هغه اووئیل نه.رسول الله ﷺ اوفرمائیل.مسلسل د دوه میاشتو روژو نیولو طاقت شته؟ هغه اووئیل.نه.رسول الله ﷺ اوفرمائیل.چه شپیتو مسکینانو ته د خوراك ورکولو طاقت شته؟ هغه اووئیل.نه.رسول الله ﷺ اوفرمائیل کینه.نو جناب رسول الله ﷺ یوه ټوکرئ چه دې ته «عرق» وئیلې شي.راوړله.په هغې کښې کجورې وې.رسول الله ﷺ اوفرمائیل.دا صدقه کړه.هغه اووئیل.اې د الله رسوله ﷺ ! آیا زمانه هم زیات څوك محتاج شته؟ په خدائې قسم ! ددې دوه تورو کاڼو والا زمکو په مینځ کښې یعنی په مدینه کښې هیڅ یوه کورنئ زما د کورنئ نه زیاته محتاجه نه ده.رسول الله ﷺ چه دا خبره واوریدله) نو وې خندل.تردې چه د نبی کریم ﷺ مخکنی غابښونه ښکاره شو.او په یو روایت کښې انیاب(غابښونه)او په یو روایت کښې د «نواجذ» لفظ دې.بیا نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه واخله. او خپلې ښځې او ماشومانو باندې اوخروه.اود ابوداؤد په روایت کښې امام زهری رحمه الله دا زیادت کړې دې.چه دا رخصت خاص طور هم د هغه د پاره دې.هم دا روایت په لږشان لفظی تغیر سره (٢)

## د فرج نه علاوه په بل ځائې کښې په دخول سره انزال

| وَمَنْ جَامَعَ فِيمَا دُونَ الْفَرْجِ فَأَنْزَلَ فَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ)او چا چه جماع اوکړه په غیر فرج کښې نو انزال نې اوشو نویده باندې قضا ده. وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ)اوکفاره پرې نشته دې |
|---|

**تشریح>** وجوب القضاء دون الكفارة بالإنزال بما دون الفرج☆ د فرج نه مراد قبل او دُبر دې.اوس مطلب داشو.که د قبل او دبر نه علاوه کښې مثلاً په پتونانو کښې یا په خیټه کښې د روژې په حالت کښې ذکر استعمال کړې شو.او انزال اوشو.نو په ده به قضاء واجب وی.کفاره به واجب نه وی.

**دلیله>** قضاء خو به خکه واجب وی.چه معنیً جماع موجود شوه.او کفاره به خکه واجب نه وی.چه صورةً جماع نه ده موجود شوې.خکه چه دصورةً جماع دپاره ادخال د «فرج في الفرج» ضروری دې.اودا نه دې موجود شوې.

---

(١) من حديث أبي هريرة ﷺ أخرجه البخارى في الصوم باب ٣٠ ومسلم في الصيام رقم ٨١ وأبوداود في الصوم باب ٣٧ رقم ٢٣٩٠ والترمذى في الصوم باب ٢٨ رقم ٧٢٤ وابن ماجه في الصيام باب ١٤ رقم ١٦٧١ والدارمي في الصوم باب ١٩ وأحمد في المسند(٢/٥١٦) قال الزيلعي رحمة الله أما قوله ((تجزئك ولاتجزئ أحداً بعدك)) لم أجده في شئ من طرق الحديث ولا رواية ) نصب الراية (٢/٤٧٦)_

(٢) **مذهب مالك**رحمه الله :- اوامام مالك رحمه الله د روژو نیولو په صورت کښې دتتابع(لګاتار نیولو) په شرط کښې اختلاف کوی یعنی ددوی په نیز دوه میاشتې روژې لګاتار واجب نه دی.بلکه بغیر د تسلسل نه نې که دوه میاشتې روژې اونیولې.بیا به هم کفاره اداشی.نو زمونږ دلیل د دوی خلاف هم حجت دې.

## د رمضان نه علاوه په نورو روژوکښې عدم کفاره

وَلَيْسَ فِي إِفْسَادِ صَوْمِ غَيْرِ رَمَضَانَ كَفَّارَةٌ اونشته دې درمضان نه سوې دبلې روژې په ماتولو باندې کفاره.

**تشریح>** عدم وجوب الكفارة في إفساد صوم غير رمضان☆مسئله:كه په غیر رمضان کښې روژه اونیسی.او په قصد سره ئې ماته کړی.نوددې په وجه به په ده باندې کفاره واجب نه وی.

**دلیله>**دلیل دادې.چه په رمضان کښې روژه ماتول ډیر لوې جرم دې.په نسبت ددې چه په غیر رمضان کښې ماته کړې شی.څکه چه په رمضان کښې د روژه ماتولو په صورت کښې دوه جنايتونه دی.يو جنايت على الصوم،دويم جنايت على شهر رمضان، او په غير رمضان كښې صرف يو جنايت دې يعنى جنايت على الصوم.بهرحال په رمضان کښې د روژه ماتولو جنایت اقوىٰ دې.او په غیر رمضان کښې د روژه ماتولو جنایت ادنىٰ دې.او په اقوىٰ کښې دننه په حکم ثابتولوسره په ادنى کښې ددې حکم ثابتول نه لازميږی.په دې وجه د کفاره د ثبوت حکم په رمضان کښې دننه د روژې ماتولوسره متعلق کیږی.خو په غیر رمضان کښې دا حکم نه ثابتیږی.اود رمضان روژه ماتولوسره کفاره خلاف قیاس د نص نه ثابت ده.څکه به په دې باندې د نورو روژو ماتولو قیاس نشی کیدلې.

## په دوائی وغیره خوړلو د روژې فساد

وَمَنِ احْتَقَنَ أَوِاسْتَعَطَ أَوْأَقْطَرَفِي أُذُنِهِ اوچا چه حقنه اوکړه یا ئې پوزه کښې دوائی واچوله یائې په غوږ کښې دوائی واچوله أَوْدَاوَى جَائِفَةً أَوْآمَّةً بِدَوَاءٍرطب كه علاج ئې اوكړو د خيټې يا دماغو دزخم په څه تردې دوائې سره فَوَصَلَ إِلَى جَوْفِهِ أَوْدِمَاغِهِ )نوهغه خیټه یا دماغو ته اورسیدو أَفْطَرَ نورروژه ئې ماته شوه.

**حل اللغة >** ①**جائفه**: دخیټې د زخم دارو ②**آمة**: د دماغوزخم

**تشریح>** فساد الصوم بالتداوی دون الكفارة>مسئله:كه روژه دار حقنه اوکړه.یعنی د ډك اودس ماتې په لاره ئې دننه دوائی اورسوله.یائې د پوزې په ذریعه دوائی اورسوله.یاپه غوږ کښې دوائی او څسولې شوه.نو په دې دریواړو صورتونوکښې به په هرصورت کښې روژه ماتیږی.

**دلائله>** ①دلیل دادې.چه نبی کریمﷺ فرمائیلی دی. (الفطر مما دخل وليس مما خرج) [1] يعنى د څه څیز دننه په خیټه کښې تللوسره روژه ماتیږی.او په وتلوسره نه ماتیږی.② دویم دلیل دادې.چه په ذکرشوی صورتونو کښې د افطار معنىٰ موجود ده.څکه چه د افطار معنىٰ ده.یو څیز د بدن د نفع دپاره معده او کیدې ته رسول.

**فساد الصوم بتداوی جائفة اوآمة**☆صورت د مسئلې دادې.چه روژه دار په جائفه یعنی د خیټې په زخم کښې یا د سر په زخم کښې لونده دوائی واچوله.اوهغه خوره شوه.اوکیدې یا دماغوته اورسیدله. ① نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دده روژه فاسد شوه.

**دلیله >**د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه د کیدې یا د سر په زخم کښې اچولې شوې دوائی دخیټې یا دماغو پورې د رسیدلو یقینی علم خو متعذر دې.څکه چه دا یو باطنی څیز دې.خو ښکاره هم

---

[1] ) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه ابويعلى الموصلي في مسنده (٢/٤٥٤) وكذا اخرجه الهيثمى رحمة الله في مجمع الزوائد_

داده.چه هرکله د دوانی رطوبت(لوندوالي) د زخم رطوبت سره ملاوٗ شي. نو دننه طرف ته به ددې په میلان کښې زیاتوالي کیږي.اوهرکله چه دننه طرف ته په میلان کښې زیاتوالي اوشو.نودا به په یقین سره خیټې او دماغوته دننه رسیږي.اوهرکله چه خیټې یا دماغوته دننه اورسیدل.نو روژه به فاسد وي..

**مذهب الصاحبین** ﴿ په دې مسئله کښې دصاحبینو رحمهما الله اختلاف دې هغوی فرمائی چې فاسده نشوه.

**دلیلهما** ﴿ دلیل دادې.چه د زخم دننه طرف د ګیډې یا دماغو پورې د دوانی رسیدلو لاره خو کله بنده وي.اوکله کلاوٗ وي.نو دننه پورې د دوانی رسیدلو یقین نشته.او هرکله چه یقین نشته. بلکه شك دې.اود شك په وجه سره روژه نه فاسدیږي.په دې وجه به په دې صورت کښې روژه فاسد نه وي.لکه څنګه چه د اوچې دوانی اچولو په صورت کښې روژه نه فاسدیږي.

**ألجواب عنه** ﴿ خو د دې جواب دا دې چه کله دا په زخم باندې واچولې شي.نودا د زخم رطوبت خپل خان ته جذب کوي.اود زخم خوله بنده وي.او هرکله چه د زخم خوله بنده شوه.نو په خیټه کښې دننه د دوانی رسیدلو امکان باقی پاتې نشو.په دې وجه د اوچې دوانی اچولو په صورت کښې به روژه فاسد نه وي.او لونده دوانی به په اوچه دوانی باندې قیاس کول هم ټیك نه وي.

## د ذکر په سر کښې دوائی اچول

| وَلَوْ أَقْطَرَ فِي إِحْلِيلِهِ لَمْ يُفْطِرْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ [1]اوکه د ذکر په سوری کښې ئې دوانی اوڅڅوله نونه ماتیږي.په نیز دامام صاحب او امام محمد. وَقَالَ أَبُوْيُوسُفَ: يُفْطِرُ اوفرمائی ابویوسف رحمه الله چه ماتیږي. |
|---|

**حل اللغة** ﴿①احلیل: دَ ذکر سوری ته وائی

**تشریح** ﴿ **فساد الصوم بالتقطیر في الإحلیل** ﴿ مسئله داده.که روژه دار د خپلو متیازو د خاني په سوره کښې دوانی واچوله. نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نیز به روژه فاسد نه وي.

**مذهب ابي یوسف رحمه الله** ﴿ اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز به فاسد وي.

**بناء الإختلاف** ﴿علامه مرغیناني رحمه الله فرمانیلی دي.چه ددې اختلاف بنیاد په دې باندې دې.چه د متیازو د خاني د سورې اود خیټې ترمینځه څه داسې لاره شته اوکه نشته.چه په هغې سره څه بهیدونکې څیز .داخل کړې شي.حضرت امام ابویوسف رحمه الله فرمائي.چه د سورې او خیټې ترمینځه داسې لاره موجود ده.او دلیل د دې دادې.چه متیازې د دننه طرف نه هم په دې لارې راوځي.اوکه هیڅ لاره نه وې.نو متیازې به څنګه راوتلې.نوهرکله چه د خیټې اود ذکر د سورې په مینځ کښې لاره موجود ده.نو دوانی کومه چه د ذکر په سوره کښې اچولې شوې ده.هغه به ګیډې ته اورسي.او خیټې ته د څه څیز د بدن د اصلاح دپاره رسول مفسد د صوم دی.نو په دې سره به هم روژه فاسد شي.کله څنګه چه په حقنه سره فاسدیږي.اوحضرت امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.چه د میتازو د خاني د سورې او خیټې په مینځ کښې مثانه حائل ده.او پاتې شو.د متیازو وتل.نو هغه ددې نه څاځي.نو هرکله چه د امام صاحب رحمه الله د تحقیق مطابق د خیټې او سورې په مینځ کښې مثانه حائل ده.نو د ذکر په سوره کښې اچولې شوې دوانی به خیټې ته نشی رسیدلې.او هرکله چه خیټې ته نشی رسیدلې.نو روژه به هم فاسد نه وي.

[1] ) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(۲\۱۰۹) والبحرالرائق (۲\۲۷۹) والهندية (۱\۲۰٤) نقلاً عن القول الراجح (۱\۱۹۹)_

**محاکمة صاحب الهدایة بین المذهبین**> علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی چه د خیتې او د ذکر د سوړې ترمینځه د لارې موجود کیدل یا نه کیدل د فقه مسئله نه ده.بلکه ددې تعلق د ډاکټرانو د علم «تشریح الأبدان» سره دې.په دې وجه به په دې مسئله کښې هم دوی طرف ته رجوع کیږي.که ډاکټران اووائی.چه د خیتې اود ذکر د سوړې په مینځ کښې لاره شته.نود صوم فاسد کیدلوحکم به لګولې شي. لکه څنګه چه د قاضی ابویوسف رحمه الله مذهب دې. اوکه اووائی.چه لاره نشته.نود عدم فساد حکم به لګولې شي.لکه څنګه چه د امام الهمام قدوة الانام سیدناحضرت امام اعظم رحمه الله مذهب دې.

**په خوله د یوڅیز څکل**

| وَمَنْ ذَاقَ شَيْئًا بِفَمِهِ لَمْ يُفْطِرْ اوچا چه اوڅکلو څه څیز ئې پخپله خوله نونه ماتیږی (وَيُكْرَهُ لَهُ ذٰلِكَ او دا دده دپاره مکروه دی. |
|---|

**تشریح**> **عدم فساد الصوم بذوق شیئ**> مسئله:که یوکس په خپلې خولې سره څه څیز اوڅکلو.نو روژه نه ماتیږی.

**دلیله**> څکه چه په دې صورت کښې خو نه صورةً افطار شو.چه څه څیز ئې تیر کړې وی.اونه معنیً افطار شو.چه د بدن د اصلاح دپاره څه څیز خیټې ته رسولې شوې وی.نوهرکله چه نه صورةً افطار شو.اونه معنیً افطارشو.نو روژه به څنګه فاسد وی؟

**کراهة الذوق**> خودا عمل مکروه ضرور دې.

**دلیله**> وجه د کراهت داده.چه په دې عمل کښې روژه فاسد ته پیش کول دی.

**د ښځې د ماشوم دپاره په خوله کښې څه پستول**

| وَيُكْرَهُ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَمْضَغَ لِصَبِيِّهَا الطَّعَامَ او مکروه دی ښځې له جونیل دخوراك دبچی دپاره إِذَا كَانَ لَهَا مِنْهُ بُدٌّ که ددې نه بغیر کیدلو |
|---|

**حل اللغة**> ① **تمضغ**: شوخوند وهل ② **بد**: لاره، خلاصې

**تشریح**> **الصورتان فی مضغ المراة شیئاً للولد**> ① د روژې په حالت کښې د ښځې دپاره خپل بچی ته خوراك په جونیلو جونیلو سره خوړل مکروه دی.په دې شرط چه ددې ښځې دپاره څه بله یوه لار موجود وی.مثلاً دده سرد څوك داسې کس ناست دې.چه په هغه روژه فرض نه وی.او هغه دې بچی ته په جونیلو خوړلې شي.نو په داسې صورت کښې ښځې له جونیل مکروه دی.او وجه د کراهت هم هغه ده.چه په دې صورت کښې روژه په فساد باندې پیش کول لازمیږی.

② اوکه په خپله جونیلو نه بغیر څه بله لاره نه وی. نو بیا هیڅ حرج نشته.څکه چه دبچی حفاظت هم ضروری دې.

**دلیله**> تاسو اوګورئ.که د پیوخوړونکی بچی د زیاتې اولګې د لاسه د هلاکیدلو خطره وی. او په ښځه کښې د روژې په حالت کښې پې نه راځی.نو په دې صورت کښې د ښځې دپاره د افطار اجازت دې.

**د روژه دار دپاره د جولې جونیل**

| وَمَضْغُ الْعِلْكِ لَا يُفْطِرُ الصَّائِمَ اوجونیل د جولې نه ماتوی روژه |
|---|

**تشریح**> **الأقوال الثلاثة فی فساد الصوم بمضغ العلك** ☆ مسئله: ① که روژه دار جوله اوچوږی.نو دده روژه به فاسد نه وی.لکه څنګه چې په متن کښې ذکر دی څکه چه جوله به د خپل اینختیدلو په وجه غابښونو پورې

اینخلی.او خیتی ته به نه رسی.اوکوم څیز چه خیتې ته نه رسی.هغه روژه نه فاسد کوی. ②او بعض فقهاء فرمانی.که جوله حل شوی نه وی.بلکه میده میده ریزې وی.نوددې په جونیلو سره به روژه فاسدیږی.ځکه چه په دې صورت کښې د جوله بعض اجزاء خیتې ته رسی. ③او بعض حضرات فقهاء فرمانی.که جوله تور رنګ کښې وی. نو ددې په جونیلوسره به روژه فاسدیږی.اګرچه دا حل شوې وی.ځکه چه تور رنګ جوله ریزه ریزه کیږی.اود ریزه ریزه کیدلو په وجه ددې بعض اجزاء خیتې ته رسی.

| وَيُكْرَهُ اودا چه د روژه دار دپاره مکروه دی |
|---|

**تشریح> کراهیة مضغ العلک☆**بهرحال که د جوله په جونیلوسره روژه فاسدیږی.بیا هم د روژه دار دپاره جوله جونیل مکروه دی.

**دلائله>** ①ځکه چه په دې کښې روژه په فاسد باندې پیش کول دی.ځکه چه کیدلې شی.چه څه اجزاء د حلق نه لاندې کوز شی. ②دویم دلیل دادې.چه خلق به دې په افطار سره متهم کړی.یعنی کله چه څوك دې اوګوری.چه څه خوری.نودې به په روژه نه نیولو باندې متهم کوی.اوخلق به دا بدګنړی.اوکوم فعل چه په ښکاره خلقو ته بد په نظر راځی.نو هغه مکروه وی.په دې وجه دا هم مکروه دی.

**عدم کراهیة مضغ العلک للمرأة>** صاحب د هدایه رحمه الله فرمائیلی دی که ښځه روژه داره نه وی.نو دې له جوله جونیل مکروه نه دی. ځکه چه د ښځې په حق کښې جوله جونیل، دمسواك كولو قائم مقام دې.اوجوله دمسواك قائم مقام په دې وجه ګرځولې شوې دې.چه ښځې ډیرې کمزورې او نازکې وی.او ددوی غاښونه هم کمزور او اوریِ هم نازك وی.نو دوی د مسواك په شان بدن خراش (بدن باندې خارښ لګونکې)څیز ځنګه برداشت کولې شی.

**الکراهة للرجال>** اوکه د سړو څه قسمه بیماری نه وی.نوددوی دپاره جوله جونیل مکروه دی.او بعضو فرمانی. چه د سړو دپاره جوله جونیل مباح دی.خو مستحب نه دی.او مستحب په دې وجه نه دی.چه د سړو دپاره د جوله جونیلو په صورت کښې د سړو د ښځو سره مشابه کیدل لازمیږی.او تشبیه بالنساء قطعاً مناسب نه ده.په دې وجه د سړو دپاره جوله جونیل مکروه یاغیر مستحب ګرځولی شوی دی.

**د مرض د زیاتیدو په وجه د افطار حکم**

## فَصْلٌ (وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا فِي رَمَضَانَ

فصل دې څوك چه مریض وی په رمضان کښې

| فَخَافَ إِنْ صَامَ ازْدَادَ مَرَضُهُ أَفْطَرَ وَقَضَى او ویریږی چه که روژه نیسی نومرض ئې زیاتیږی ماته دې کړی اوقضا دې راوړی ([1]) |
|---|

**تشریح> الأعذار المبیحة للإفطار☆**د اوسه پورې د روژو د مسئلو ذکروو.په دې فصل کښې به هغه عذرونه بیانولې شی.د کومو په وجه چه روژه نه نیول مباح او جائزدی.په قول د علامه ابن الهمام رحمه الله چه

---

[1] ) **مذهب الشافعی رحمه الله**:- په زیر بحث مسئله کښې حضرت امام شافعی رحمه الله فرمانی.چه داسې بیمار دې روژه نه پریږدی.بلکه روژه نیول ضروری دی.خوکه د روژې نیولو په وجه د هلاکیدلو یره وی.یا د کوم یو اندام خرابیدلو یره وی.نودافطاراجازت دې.

دکومو عذرونو په وجه افطار مباح کیږی.هغه اووه دی.①بیماری ②سفر ③ حمل کله چه روژه د ښځې یا د حمل دپاره ضررناك وی. ④رضاعت (یئ ورکول)کله چه روژه د بچی دپاره ضررناك وی. ⑤ بوډهاتوب چه کله په روژه باندې طاقت نه لری.⑥ سخته تنده ⑦ سخته اولګه چه کله د روژې په وجه د ژوند یاد عقل د نقصان خطره وی.

لمعنیٰ العرض>د تبولو نه ړومبې عذر بیماری ده.خود افطار رخصت صرف په نفس بیمارئ سره نه متعلق کیږی.بلکه د بیمارئ دوه قسمه دی①یوهغه چه په هغې کښې روژه زیاتوالې راولی②دویم هغه چه په هغې کښې روژه کموالې راولی.نو په کومه بیمارئ کښې چه د روژې په وجه تخفیف راځی.یعنی روژه په دې بیمارئ کښې فائده منده وی.نودې بیمارئ سره د افطار رخصت نه متعلق کیږی.او د روژې په وجه چه کومه بیماری زیاتیږی

یاد روژې په وجه بیماری اوردیږی.نود هغه بیمارئ سره د افطار رخصت متعلق کیږی.

الإفطار لخوف زیادة العرض>ماتن رحمه الله هم دا بیماری بیان کړې ده.لکه چه فرمائی. که څوك په رمضان المبارك کښې بیمار شو.اوده ته دا یره پیدا شوه.که روژه نې اوساتله.نو بیماری به زیاته شی.نوپه داسې صورت کښې زمونږ په نیز افطار کول جائزدی.او په صحت راتلو باندې به ددې قضاء راوړی.

دلیله > دلیل د الله تعالی قول(فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ) دې.په دې آیت کښې دهر بیمار دپاره د افطار اباحت دې.خوچونکه دا خبره منلې شوې ده.چه د افطار مشروعیت د حرج لرې کولو دپاره دې.اود حرج تحقق متعلق کیږی، زیاتوالی د بیمارئ یا د بیمارئ بنه کیدلو په تاخیرسره.په دې وجه د افطار اجازت به هم په دې صورتونوکښې وی.

| وَإِنْ كَانَ مُسَافِرًا لَا يَسْتَضِرُّ بِالصَّوْمِ که داسې مسافر وی چه په روژه کښې نیولوکښې ورته تکلیف نه وو فَصَوْمُهُ أَفْضَلُ نوروژه نې افضله ده وَإِنْ أَفْطَرَ وَقَضَى جَازَ اوکه افطار کوی او قضا راوړی نودا هم جائز دی. |
|---|

تشریح> فضل الإفطار للمسافر> مسئله داده. ①که مسافر په روژه نیولوکښې تکلیف نه محسوسوی.نو دده دپاره روژه نیول افضل دی.خوکه افطار نې اوکړو.نوجائزدی

دلیله> .دلیل دادې.چه نفس سفر د مشقت سبب دې.په دې وجه نفس سفر عذر مقرر کړې شو. او اونیلی شو.چه مطلقاً د مسافر دپاره افطارکول جائزدی.که ده ته په روژه نیولوکښې تکلیف وی اوکه نه وی.

دلیل عدم الفضل مطلقا> ① دلیل دادې.چه د مسافر دپاره د رمضان د روژو دوه وختونه دی.یو وخت خو په خپله د رمضان میاشت ده.لکه څنګه چه د (فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ) عموم دلالت کوی.چه مسافر اومقیم دواړه دې په رمضان کښې روژې اونیسی.او دویم وخت د رمضان نه علاوه دې.لکه چه په(فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ) کښې ذکر دی.او(مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ) د رمضان خلیفه دې.او خلیفه د اصل برابر نشی کیدلې.خکه غیر رمضان د رمضان برابرنشی کیدلې.بلکه د رمضان وخت افضل دې.اود یوعبادت په افضل وخت کښې ادا کول هم افضل وی.په دې وجه په رمضان کښې د مسافر دپاره روژه ساتل د افطار کولو نه افضل دی.

## په حالت د مرض يا سفر کښې مرګ راتلل

(وَإِن مَاتَ الْمَرِيضُ أَوِ الْمُسَافِرُ وَهُمَا عَلَى حَالِهِمَا لَمْ يَلْزَمْهُمَا الْقَضَاءُ)هرکله چه مړشو مريض اومسافر او دواړه پخپل حال وو نوپه دوی قضا لازمه نده.

**تشريح**> عدم القضاء علي المريض والمسافراذا ماتا في تلك الحالة> مسئله داده.که بيمار د بيمارئ په حالت کښې مړشو.اومسافر د سفر په حالت کښې مړشو.نو ددوی په ذمه به قضاء لازم نه وی. يعنی د بيمارئ اود سفر په وجه چه د رمضان کومې روژې قضاء شوې دی.دهغې په وجه به عندالله ماخوذ نه وی. اونه به ددې څه فديه واجب وی.

**دليله**> څکه چه په دوی د قضاء وجوب هغه وخت کيږی.چه د بيمارئ اود سفرختميدلو نه پس دومره زمانه بيامومی.چه په هغې کښې روژې اونيسی.او دلته کښې صورت دادې.چه دوی ته د قضاء وخت قطعاً ملاؤ نشو.په دې وجه به په دوې باندې قضاء لازم نه وی.

## په صحيح او مقيم د قضاء لزوم

(وَإِن صَحَّ الْمَرِيضُ وَأَقَامَ الْمُسَافِرُ ثُمَّ مَاتَا لَزِمَهُمَا الْقَضَاءُ)اوکه مريض تندرست اومسافر شو بيامړشو نولازمه به وی په دوی قضا بِقَدْرِ الصِّحَّةِ وَالْإِقَامَةِ په اندازه د صحت او مقيم کيدو

**تشريح**> وجوب القضاء علي الصحيح والمقيم>مسئله داده.که بيمار تندرست شو.او مسافر مقيم شو. بيا دوی مړه شول. نو په دوی به قضاء راوړل لازم وی.نوکه د تندرست کيدلونه پس اود مقيم کيدلو نه پس دومره ورځې ژوندی پاتې شول .څومره ورځې روژې چه فوت شوې وې.نود فوت شوو ټولو ورځو قضاء به لازم وی.اوکه يو څو ورځې ژوندې پاتې شو.نود صحت په اندازه اود اقامت په اندازه به د روژو قضاء راوړل واجب وی.مثلاً د بيمارئ يا د سفر په وجه شل روژې فوت شوې.بياد تندرست کيدلو نه پس يا د مقيم کيدلو نه پس لس ورځې ژوندې پاتې شو.اود بل څه سبب په وجه مړشو.نو په ده به د لسو ورځو روژو قضاء راوړل واجب وی.

**دليله**>څکه چه د بيمار او مسافر په باره کښې د قرآن پاك ارشاد دې.(فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ) يعنی چه څومره ورځې د بيمارئ يا د سفر په وجه سره نې د رمضان روژې اونه نيولې.د دغه اومره ورځو قضاء به واجب وی.اود څومره ورځو قضاء چه واجب ده.دومره ورځې ژوندی پاتې کيدل هم ضروری دی.څوچه هرکله دا کس دچا چه شل روژې د بيمارئ يا د سفر په وجه سره فوت شوی دی.د صحت اود اقامت نه پس ژوندې صرف لس ورځې پاتې شو.نود لسو ورځو روژو قضاء راوړل به هم واجب وی.څکه چه ددې نه د زياتی قضاء راوړلو باندې قدرت ثابت نشو.

## ددې په تقسم او اقسامو غور کول

(وَقَضَاءُ رَمَضَانَ إِنْ شَاءَ فَرَّقَهُ وَإِنْ شَاءَ تَابَعَهُ)اودرمضان قضا روژې که غواړی جدا جدا دې اونيسی اوکه غواړی نو پرله پسې دې اونيسی.

**تشريح**> أقسام الصوم> صاحب د عنايه رحمه الله فرمائی.چه په کتاب الله کښې د اته قسمه روژو ذکر دې.
① صوم رمضان ② صوم کفارهٔ قتل: ③کفارهٔ ظهار④کفارهٔ يمين: ⑤ قضاءِ رمضان: ⑥ صوم متعه: ⑦ کفارهٔ حلق راس.⑧ صوم جزائي صيد:

**مايشترط فيها التتابع ومالا**>په دې کښې رومبنو څلورو کښې تتابع اوبلاناغه اداکول شرط دی.اوپه

آخروخلوروکښې اختیار دې.چه که غواړی نوپه متفرق طورباندې دې اداکړی.اوکه غواړی نو په تتابع سره دې بلاناغه اداکړی.د رمضان په روژه کښې د تتابع اوتسلسل په وجوب کښې هیڅ کلام نشته.

**الضابطة في التتابع وعدمه**﴾او ددې نه په علاوه کښې مشائخو یو قاعده ذکرکړې ده.قاعده دا ده.چه په کوم ځائې کښې عتق رقبه مشروع ده.هلته په روژوکښې تتابع شرط دې.اوکوم ځائې چه عتق رقبه مشروع نه ده.هلته په روژوکښې تتابع شرط نه دې.نوددې قاعدې په رڼرا کښې قرآن پاك کښې چه کوم ځائې د صوم رمضان د قضاء ذکر دې.هلته کښې د عتق رقبه د مشروعیت بیان نه دې شوې.یعنی داسې نه ده.چه د رمضان د قضاء په ځائې عتق رقبه کافی شی.نود رمضان په روژو کښې به متابعت اوتسلسل واجب نه وی.دویم دلیل دادې.چه نص.﴿ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ ﴾ مطلق دې.نوددې د اطلاق په وجه به نه تتابع شرط وی. اونه به عدم تتابع شرط وی.بلکه اختیار به وی.که په تتابع سره ئې ادا کوی.او که بغیر د تتابع نه ئې اداکوی.

**الإعتراض**﴾دلته کښې یوسوال دا دې چه قضاء د ادا خلیفه وی.اود صوم رمضان په ادا کښې تتابع واجب ده.نوددې په خلیفه یعنی د رمضان دروژو په قضاء کښې هم تتابع واجب کیدل پکاردی.

**الجواب عنه**﴾د رومبی سوال جواب دادې.چه یو ځلې د رسول اکرمﷺ نه یو کس د رمضان قضاء په متفرق طور باندې اداکولو په باره کښې تپوس اوکړو.نو نبی کریمﷺ اوفرمائیل. «ذالك إليك أرأيت لوكان على أحدكم دين فقضاء الدرهم والدرهمين ألم يكن قضاء، قال نعم قال فالله أحق أن يعفو ويغفر»یعنی نبی کریمﷺ تپوس اوکړو.چه تاته ددې اختیار دې.بیانبی کریمﷺ اوفرمائیل. ښه دا راته اووایه.که په تاسو کښې په یو کس قرضه وی.اودې یو یو درهم او دوه دوه درهمه ادا کوی.نو آیا دابه اداکول نه وی؟ سوال کونکی اوونیل.بې شکه ادا به وی.بیا نبی کریمﷺ اوفرمائیل.الله تعالی زیات لائق دې.چه خپل حق معاف کړی.او بښنه اوکړی. مطلب دادې. چه کله بنده خپله قرضه په متفرق طورسره وصول کولې شی.نود الله تعالی قرضه که په متفرق طور باندې ادا کړې شوه.نو ولې به ادا نه وی.اوس تاسو اوګورئ.که معامله هغه وئ. کومه چه تاسو ذکر کړې ده.یعنی د رمضان په قضاء کښې تتابع شرط کیدل.نو رسول اللهﷺ به دا جواب نه ورکولو.کوم ئې چه سائل ته ورکړې دې.

**السوال الثاني**﴾دویم سوال دادې.چه د حضرت ابی بن کعب قرات دې. ﴿فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾، متتابعات نوځنګه چه په کفاره د یمین کښې د حضرت عبدالله بن مسعودؓ د قرات، متتابعات، اعتبار شوې دې.دغه شان د رمضان په قضاء کښې هم د ابی بن کعب د قرات متتابعات اعتبار کول پکار دی.

**الجواب عنه**﴾د دویم سوال جواب دادې.چه د ابی بن کعبؓ قرات دومره مشهور نه دې. څومره چه دحضرت ابن مسعود ؓ قرات مشهور دې.نود ابی بن کعب قرات د خبرواحد په مرتبه کښې شو.اویه خبر واحد سره په کتاب الله باندې زیاتوالې نشی کیدلې.په دې وجه د ابی بن کعب قرات،متتابعات، سره په کتاب الله یعنی.﴿فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ﴾ باندې زیاتوالې نشی کیدلې.

**إستحباب التتابع في قضاء رمضان**﴾ علامه مرغینانی ؒ فرمائیلی دی.چه په قضاء د رمضان کښې تتابع اګرچه شرط نه ده.خو مستحب ضرور ده.چه په واجب ادا کولو کښې مسارعت (جلتی) اوشی.

## د رمضان قضاء دویم رمضان پورې روسته کول

وَإِنْ أَخَّرَهُ حَتَّى دَخَلَ رَمَضَانٌ آخَرُ صَامَ رَمَضَانَ الثَّانِيْ اوکه دومره تاخير ئې اوکړو چه بل رمضان داخل شو نوددې بل رمضان دې اونيسي

**تشريح**> **وجوب القضاء بالتاخير إلي رمضان**> ① مسئله داده.چه په کوم کس باند د رمضان قضاء واجب ده.که ده قضاء مؤخر کړه.تردې چه دویم رمضان راغې.نود دویم رمضان روژې دې اونيسي.
**دليله**> خکه چه هغه روژې په خپل وخت کښې دی.او ددې دويم رمضان روژې په ده باندې متعين دی.په دې وجه په دې کښې د نورو روژو گنجائش نشته.اود تير رمضان روژو قضاء به ددې دويم رمضان نه پس ادا کوی.خکه چه دا زمانه هم د قضاء ده.

وَلَا فِدْيَةَ عَلَيْهِ او فديه پرې نشته دې

**تشريح**> **عدالكفارة بالتاخير**> اوددې تاخير په وجه به په ده باندې فديه واجب نه وی.
**دليله**> دليل دادې.چه الله تعالى د قضاء امر مطلق فرمائيلې دې.اود امر مطلق موجب،على الفور، نه وی. بلکه ،على التراخی، وی.هم دا وجه ده.که يوکس د رمضان تيريدلو نه پس د رمضان د قضاء نه مخکښې نفلی روژې اونيولې.نو په اتفاق سره جائزدی.که د رمضان قضاء ،على الفور، واجب وې.نود رمضان د قضاء نه بغير به نفلی روژې جائز نه وې.نو هرکله چه د رمضان قضاء ،على التراخی ، واجب دی.نويه ژوند کښې د مرگ نه وړاندې وړاندې کله چه اوغواړی.قضاء دې پوره کړی.پوره ژوند د قضاء وخت دې.

## د حاملې او مرضعې په ځان د هلاکت په ويره د روژې ماتول

وَالْحَامِلُ وَالْمُرْضِعُ إِذَا خَافَتَا عَلَى أَنْفُسِهِمَا أَوْ وَلَدَيْهِمَا أَفْطَرَتَا وَقَضَتَا حامله او پئ ورکونکې ته چه کله ويره وه پخپل نفس باندې يا پخپلو بچو باندې نو افطاربه کوی اوقضا به راوړی

**تشريح**> **جواز الإفطار للحامل والمرضعة إذا خافتا الهلاک علي نفسه**>مسئله داده.چه حامله ښځه يا پئ ورکونکې ښځې ته که د روژې په وجه د خپلوځانونو خطره وی.يا دخپلو بچو ويره وی.يعنی حاملې ته د خيټې د بچی ويره وی.او پئ ورکونکې ښځې ته د پئ څکونکی بچی ويره وی. نودا دواړه دې افطار اوکړی.او روسته دې ددې روژو قضاء راوړی.

وَلَا فِدْيَةَ عَلَيْهِمَا اونه په دوی فديه شته دې. ([1])

**تشريح**> **عدم وجوب الفدية عليهما**> ① په دې دواړو باندې فديه واجب نه وی.

## د شيخ فانی دپاره د افطار حکم

وَالشَّيْخُ الْفَانِي الَّذِي لَا يَقْدِرُ عَلَى الصِّيَامِ يُفْطِرُ دير زوړ سړې چه روژه نشی نيولې نو افطار دې کوی وَيُطْعِمُ لِكُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينًا كَمَا يُطْعِمُ فِي الْكَفَّارَاتِ اوطعام دې ورکوی دهرې ورځې دپاره ديو مسکين ته لکه چه طعام ورکولې شی په کفاراتو کښې

[1]) **مذهب الشافعي**:- امام شافعی فرمانی.که حامله يا مرضعه د خپل بچی ضائع کيدلو په وجه روژه افطار کړی.نو په دوی به د قضاء سره فديه هم واجب وی.

**تشریح** > **جواز الإفطار للشیخ الفاني** > د شیخ فانی نه مراد هغه بوډها سړی دی.چه په روژو نیولو قدرت نه لري.او فانی په دې وجه ونیلی شوی دی.چه دې فناء ته نیزدې شوي دې.یا داچه دده قوت فناء شوې دې.

**وجوب الفدیة علیه** > شیخ فانی به روژه نه نیسی.اود هرې روژې په بدله کښې به فدیه ورکوی.لکه څنګه چه په کفاراتو کښې فدیه ورکولې شی.

**دلیل جواز الإفطار** > علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه په دې باره کښې اصل دالله تعالی قول ﴿وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ﴾ دې.مفسرین فرمائی.چه ددې معنی ﴿لایطیقونه﴾ده. یعنی څوك چه د روژې طاقت نه لري.یعنی شیخ فانی وی.په هغوی فدیه واجب ده.لکه چه دالله تعالی قول﴿يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ أَنْ تَضِلُّوا﴾یعنی﴿أن لا تضلوا﴾ الله تعالی ستاسو دپاره بیانوی.چه تاسو بې لارې نشئ.ددې نه په استدلال باندې یو اشکال دی.

**الاعتراض** > هغه داچه کله دا آیت نازل شو.نو مالدارو خلقو به روژه نه نیوله.بلکه د روژو فدیه به ئې ورکوله.او فقیرانو به روژه نیوله.او وجه ددې داوه.چه د اسلام په ابتداء کښې به خلقو ته اختیار وو.چه دوی روژه نیسی.اوکه فدیه ورکوی.بیا دا اختیار د الله تعالی د قول﴿وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ﴾ په وجه منسوخ شو.اود منسوخ نه استدلال کول جائز نه دی؟

**الجواب** > ددې جواب دادې.که دا آیت د شیخ فانی په حق کښې نازل شوی دې.لکه څنګه چه د اسلافو رائې ده.نو ددې آیت نه په استدلال کښې هیڅ باك نشته.اوکه د روژه او فدیه په مینځ کښې د اختیار په سلسله کښې نازل شوي دې.نو مونږ وایو.چه د، قادر علی الصوم،په حق کښې منسوخ شوی دې.خود شیخ فانی په حق کښې په خپل حال باندې باقی دې.لکه څنګه چه دمنسوخ کیدلو نه مخکښې وو.

**بطلان حکم الفدیة بعد القدرة علی الصوم** > علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی .که شیخ فانی روژه اونه نیوله.او فدیه ئې ادا کړه.بیا دې په روژو باندې قادرشو.نود فدیې حکم به باطل شی.څکه چه خلیفه یعنی د فدیه واجبیدلوشرط دائمی عجز دې.خو هرکله چه دا کس په روژه باندې قادرشو.نو دائمی عجز اونه موندې شو.او هرکله چه دائمی عجز اونه موندې شو. نود فدیه وجوب هم ثابت نشو.او هرکله چه فدیه واجب نشوه.نو ادا څه شو؟ فدیه، کأن لم یکن، په مرتبه کښې شوه.اود روژې قضاء به واجب وی.

### د فدیې دپاره وصیت کول

| |
|---|
| وَمَنْ مَاتَ اوڅوك چه مړ شو وَعَلَيْهِ قَضَاءُ رَمَضَانَ اوپه هغه باندې قضا د رمضان وه فَأَوْصَى بِهِ نو هغه وصیت اوکړو د هغې أَطْعَمَ عَنْهُ وَلِيُّهُ خوراك به ورکوی د هغه د طرفه ولی د هغه لِكُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينًا د هر مسکین دپاره نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ نیمه دړئ د غنمو أَوْصَاعًا مِنْ تَمْرٍ اویا یوه دړئ د قجورو أَوْشَعِيرٍ اویا د اوربشو |

**تشریح** > **وجوب الفدیة للصوم علی العاجز** > صورت د مسئلې دادې.چه یو داسې کس چه په هغه باندې د رمضان قضاء روژې واجب وې.مرګ ته نیزدې شو او ده خپلو وارثانو ته د فدیه ورکولو وصیت اوکړو.نو دده ولی به دده د طرفه د هر روژې په بدله کښې یو محتاج ته د غنمو نیم صاع

ورکوی.یا به د اوربشو یا کجورو یو صاع ورکوی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه هرکله دا کس په آخری عمر کښې د قضاء روژو نیولو نه عاجز شو.نود شیخ فانی په شان شو.نولکه څنګه چه په شیخ فانی باندې د هرې روژې فدیه واجب وی. دغه شان به په ده باندې هم د هرې روژې فدیه واجب وی.

| وَمَنْ دَخَلَ فِی صَوْمِ التَّطَوُّعِ ثُمَّ أَفْسَدَهُ قَضَاهُ چا چه نفل روژه شروع کړه او بیا ئې فاسده کړل قضابه ئې راوړی. ([1]) |
|---|

**تشریح> حکم قضاء ما أفسده>** صورت د مسئلې دادې.چه که نفلی روژه ئې شروع کړه.بیا ئې دا فاسد کړه.نو په ده باندې ددې قضاء راوړل واجب دی.

**دلیله >** دلیل دادې.چه نفلی روژه کومه چه شروع کړې شی.هغه عبادت اوعمل دې.او اعمال د باطلیدلو نه بچکول واجب دی.لکه چه د الله تعالی ارشاد دې﴿ وَلَا تُبْطِلُوٓا أَعْمَالَكُمْ﴾ او اعمال د باطلیدلونه بچکول داسې کیدې شی.چه دا پوره کړې شی.بهرحال د شروع کولو نه پس عمل پوره کول واجب دی. او هرکله چه عمل پوره کول واجب دی.نود فساد په صورت کښې به ددې قضاء راوړل هم واجب وی.

**فساد الصوم من غیر عذر>**صاحب د هدایه رحمه الله فرمائیلی دی .چه دعذر په وجه نفلی روژه ماتول په اتفاق سره جائز دی.خو بغیر د عذره ماتولوکښې دوه روایتونه دی.یود جواز،او بل د عدم جواز.په عدم جواز باندې دلیل د الله تعالی قول﴿وَلَا تُبْطِلُوٓا أَعْمَالَكُمْ﴾ دې.

**جواز الإفطار لأجل الضیافة>** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه ضیافت هم عذر دې.یعنی که څوك د یوکس دعوت اوکړی.اود هغه نفلی روژه وی.نوکه دې دا نفلی روژه د ضیافت او دعوت په وجه ماتول اوغواړی.نو ماتولې شی.

**دلیله>** اود قول اول دلیل دا حدیث دې. (أنه ﷺ کان فی ضیافة رجل من الأنصار فأمتنع رجل من الأكل وقال إنی صائم،فقال إنما دعاك أخوك لتكرمه فأفطر واقض یومًا مكانه) ([2]) یعنی نبی کریم ﷺ د یو انصاری په دعوت کښې شریك وو.یوصاحب د خوراك نه منع شو.او وې وئیل.چه زما روژه ده. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه ستا رور تاته دعوت درکړې دې.تاله دهغه اکرام کول پکار دی.ته افطار اوکړه. اوددې په ځائې د یوې ورځې قضاء راوړه.

**روایة الضیافة لیس بعذر>** په زیر بحث مسئله کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه د حسن بن زیاد روایت دې.چه ضیافت عذر نه دې.

**دلیله >**څکه نقل دی.چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی. (إذا دعی أحدكم فلیجب فإن كان مفطرا فلیأكل وإن كان صائما فلیصل)یعنی که په تاسوکښې د یوکس دعوت اوشی.نو قبول ئې کړئ. بیاکه دې روژه دار نه وی.نو اوخرئ.اوکه روژه دار وی.نو دعوت کونکی ته دخیر دعا اوکړئ.ددې نه معلومیږی. چه ضیافت عذر نه دې.په دې وجه د روژې ماتولو اجازت نه دې ورکړې شوې.

---

[1]) مذهب الشافعی رحمه الله :- امام شافعی او امام احمد رحمه الله فرمائی.چه په ده باندې مطلقاً قضاء واجب نه ده.

[2]) من حدیث أبی سعید الخدری رضی الله عنه أخرجه أبوداود الطیالسی رحمة الله فی مسنده (ص،۲۹۳) والدارقطنی فی سننه (۱۷۷/۲/۲)۔

**قول بعض المشائخ في الإفطار وعدمه**> بعض مشائخ رحمهم الله فرمائي.چه کوربه (ملمستیاکونکي) که صرف په حاضري کولوخوشحاله وي.اوپه نه خوراك سره تکلیف محسوس نکړي.نو افطار به نه کوي.اوکه په نه خوراك سره تکلیف محسوس کړي.نو افطار کول پکار دي.او روسته به ددې قضاء کوي.خو دا خیال ساتل پکاردي.چه د افطار اجازت د زوال نه وړاندې دې.د زوال نه پس افطار نه دی کول پکار.خو که د افطار نه کولو په صورت کښې د مورپلار یا په دې دواړو کښې د یونافرماني کیږي.نو بیا د زوال نه پس هم افطار کول جائزدي.

## د ماشوم بلوغ اود کافر اسلام په رمضان کښې

| |
|---|
| **وَإِذَا بَلَغَ الصَّبِيُّ أَوْأَسْلَمَ الْكَافِرُفِي رَمَضَانَ** هرکله چه بچي بالغ اوکافر مسلمان شو په رمضان کښې **أَمْسَكَا بَقِيَّةَيَوْمِهِمَا** دواړه به د خوراک څکاک نه ځان بندوي باقي ورځ، |

**تشریح> القاعدة في الباب**> ددې مسئلې مدار په یوه قاعده باندې دې.قاعده داده.چه د رمضان په ورځوکښې که څوك د ورځ په آخري حصه کښې په داسې صفت اوحالت کښې شو.چه که دې د ورځ په اوله حصه کښې په دې حالت باندې وي.نو په ده به روژه نیول فرض وو.نوپه دې کس به د ورځ په باقي حصه کښې امساك یعني د روژه دارو په شان اوسیدل واجب وي.

**دلیله**> اوامساك ځکه واجب دې چه امام محمد رحمه الله د مبسوط په کتاب الصوم کښې ذکر کړی دی. (فلیصم بقیة یومه) او(فلیصم) امر دې.اود امر صیغه په وجوب دلالت کوي.اود حائضه په باره کښې ني فرمائیلي دي.(اذا طهرت في بعض النهار فلتدع الأكل والشرب)او (لتدع)هم د امر صیغه ده.چه په وجوب باندې دلالت کوي.

| |
|---|
| (**وَصَامَا مَا بَعْدَهُ**)اوددغې ورځې نه پس به روژه نیسي (**وَلَمْ يَقْضِيَا مَا مَضَى**) اوچې کومې روژې ترې تیرې شوې وي د هغې قضا به نه راوړي |

**تشریح> عدم القضاء علي الصبيّ والكافر بعد البلوغ والإسلام**> هم ددې قاعدې لاندې دامسئله ده.چه د رمضان په ورځ کښې یو نابالغ ماشوم بالغ شو.یاکافر مسلمان شو.نودا دواړه حضرات به باقي ورځ د خوراك څکاك اوجماع وغیره نه ځان ساتي.چه د روژه دارو سره مشابهت اختیارولو په وجه د رمضان د مقدس وخت حق پوره شي.ځکه دا بده خبره ده.چه ټوله دنیا خو په روژې سره وي.او دې خوراك څکاك کوي.په دې وجه دوی له هم د مفطراتو نه بندیدل پکار دي.خوددې باوجود که نابالغ د بالغ کیدلو نه پس اوکافر د مسلمانیدلو نه پس د رمضان په ورځ څه خوراك څکاك اوکړو.نو په دوی به ددې ورځې قضاء واجب نه وي.

**دلیله**> ځکه چه په دوی باندې ددې ورځې روژه د سره واجب شوې نه ده.بلکه ددې ورځې باقي امساك یعني د خوراك څکاك نه بندیدل واجب دي.او قضاء د روژې واجبیږي.د امساك نه واجبیږي.په دې وجه به په دوی باندې ددې ورځې قضاء واجب نه وي.خو ددې ورځې نه پس چه د رمضان کومې ورځې دي.ددې روژې به په دوی باندې فرض وي.ځکه چه اوس په دوی کښې د روژو نیولو.لیاقت او اهلیت هم شته.چه عاقل، بالغ او مسلمان دي.او د شرعي عذرونو نه پاك دي.اود صوم د فرضیت سبب یعني رمضان هم موجود دې.نو هرکله چه اهلیت هم موجود دې.اوسبب هم متحقق دې.نود روژو په فرضیت

کښې څه اشکال دې.البته د تیرو شوو ورځو اود بالغ کیدلو د ورځې اود اسلام قبلولو د ورځې قضاء به واجب نه وی.ځکه چه په دغه ورځ دا دواړه حضرات د سره د شریعت مخاطب نه وو.

## د بې هوشئ د ورځ د روژې عدم قضاء

مَنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ فِيْ رَمَضَانَ لَمْ يَقْضِ الْيَوْمَ الَّذِيْ حَدَثَ فِيْهِ الْإِغْمَاءُ څوک چه بیهوشه شو په رمضان کښې نو قضا به نې راوړی.ددغه ورځې دروژې چه پکښې بې هوشی راغلې وی. وَقَضٰى مَا بَعْدَهٗ او د دې نه پس چې کومې روژې دې د هغې قضا به راوړی

**تشریح** ﴿ عدم وجوب قضاء يوم الذي أغمي فيه ﴾ مسئله داده.که د رمضان په میاشت کښې د صبا راختلو نه پس په یوکس باندې بې هوشی راغله.اود څو ورځو پورې بې هوشه پروت وو.نود کومې ورځې نه چه بې هوشی شروع شوې ده.ددې ورځې قضاء خوبه نه راوړی.البته ددې نه د روستو ورځو قضاء راوړل به واجب وی.ددې ورځې قضاء خو په دې وجه واجب نه ده.چه ددې ورځې روژه موجود شوه.

**دلیله** ﴾ په دې طریقه چه داکس د روژې نیت سره د مفطرات صوم نه منع شو.اود نیت تحقق په دې طریقه اوشو.چه دا کس مسلمان دې.اود رمضان په شپوکښې د مسلمان ښکاره حال دادې.چه دده هیڅ یوه شپه بغیر د نیت نه نه تیریږی.نوهرکله چه د ښکاره حال د تقاضې مطابق په نیت سره د مفطرات نه بندیدل موجود شو.نو روژه موجود شوه.او هرکله چه ددې ورځې روژه موجود شوه.نوددې د قضاء راوړلو هیڅ ضرورت نشته.او ددې نه د روستنو ورځو چونکه نیت نه دې موجود شوې.په دې وجه به په دې ورځو کښې(بغیر د نیته)د مفطرات نه بندیدل روژه نشی شمارلې.اونیت په دې وجه نه دې موجود شوې.چه اغماء یعنی بې هوشی راتلل، د نیت مانع دی.

## په بعضې رمضان کښې د لیونتوب حکم

وَإِذَا أَفَاقَ الْمَجْنُوْنُ فِيْ بَعْضِ رمضانَ قَضٰى مَا مَضٰى منه [1] که لیونې درمضان په بعضې وخت کښې ښه شو نو دتیرو ورځو قضا به راوړی وصام مابقی او چې کومې باقی پاتې وی د هغې روژه دې اونیسی [2]

**تشریح** ﴾ وجوب القضاء بعد الإفاقة من المجنون ﴾ صورت د مسئلې دادې. که مجنون ته د رمضان په څه حصه کښې افاقه اوشوه.نود تیروشوو ورځو دې قضاء اوکړی او راروانې روژې دې اونیسی

**دلیله** ﴾ دلیل دادې.چه کوم کس د رمضان په بعضو ورځو کښې مجنون پاتې شو.او بیا افاقه اوشوه.نو دده په حق کښې د روژې د وجوب سبب موجود شو.او سبب شهود شهر دې. ځکه چه د الله تعالی ارشاد دې.﴿ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ﴾ اوداخبره فیصله شوې ده.چه په آیت کښې د شهر نه مراد بعض شهر دې.ځکه که پوره شهر سبب اوګرځولې شی.نو روژه به په شوال کښې نیول پکار وی. ځکه چه د مسبب وجود دسبب نه پس وی.نو اوس به تقدیری عبارت داسې وی ﴿ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمْ بعض الشهر فَلْيَصُمْ الشهر كله﴾ په دې آیت کښې د ﴿ فَلْيَصُمْهُ ﴾ د مفعول ضمیر، مرجع لفظ د﴿ الشَّهْرَ ﴾ دې.کوم چه په

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول الجمهور ﷺ كذا في الكفاية (۲۸۵\۲) والعناية (۲۸۵\۲) نقلاً عن القول الراجح (۲۰۱\۱)

[2] ) اختلاف زفر والشافعي ﷺ :- حضرت امام زفر او امام شافعي ﷺ فرمائی چه په ده به د تیرو ورځو قضاء واجب نه وی.هم دا د امام محمد ﷺ قول دې.

عبارت کښې ذکر دي. بعض شهر نه دي.کوم چه مقدر منلې شوي دي.اوس به مطلب دا شی.چه دکوم کس جنون، د رمضان پوره میاشت راګیره نکړه.نوده بعض میاشت بیا موندله.نو ده له به د پوره میاشت روژې نیول پکار وی.خوچونکه د جنون په وجه ئې د بعض ورځو روژې اونه نیولې. په دې وجه به ددې قضاء راوړی.او باقی به ادا کوی.

**تعريف الجنون الأصلي والعارضي**> جنون اصلی دادې.چه یوکس د بالغ کیدلو نه مخکښې مجنون وو.بیا بالغ هم د جنون په حالت کښې شو.اوجنون عارضی دادې.چه بالغ خود عاقل په حالت کښې شو.خو روسته مجنون شو.

**عدم الفرق بين الجنون الأصلي والعارضي**> علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی چه د جنون اصلی اوجنون عارضی په مینځ کښې هیڅ فرق نشته.یعنی په تیرشوی حکم کښې دواړه برابر دی.بعض حضرات فرمائی .چه دا عدم فرق د ظاهرالروية مطابق دي.او امام محمد رحمه الله د دواړو په مینځ کښې فرق کړې دې.دوی فرمائیلی دی.چه د جنون اصلی په صورت کښې که د رمضان په څه حصه کښې افاقه اوشوه.نو په ده به د تیروشوو ورځو قضاء واجب نه وی. لکه ماشوم که د رمضان په مینځ کښې بالغ شو.نو په ده به د تیروشوو ورځو قضاء واجب نه وی.اود جنون عارضی په صورت کښې به د تیروشوو ورځوقضاء واجب وی.دحضرت امام محمد رحمه الله بیان شوې فرق د بعض متاخرینو خوښ مذهب دې. ([1])

**په حائضه او نفاسه د روژې قضاء**

| وَإِذَا حَاضَتِ الْمَرْأَةُ أَوْ نَفِسَتْ أَفْطَرَتْ وَقَضَتْ اذا طهرت اوهرکله چه ښځې ته حیض یا نفاس راغلو نوافطار دې اوکړی نوقضا به راوړی کله چې پاکه شي |
|---|

**تشریح**> **وجوب القضاء علي الحائض والنفساء**> مسئله: د رمضان په میاشت کښې که یوې ښځې ته د حیض وینه شروع شوه.یا د ماشوم ولادت(پیدائش) اوشو.نوددې حکم دادې چه د حیض اونفاس په حالت کښې به روژه نه نیسی.او ددې روژو به د رمضان نه پس قضاء راوړی.په خلاف د مانځه.یعنی د حیض اود نفاس په وجه د روژو قضاء نه ساقطیږی.البته د مونځ قضاء ساقطیږی.

**وجه الفرق بين الصلاة والصوم**> وجه د فرق داده.چه د مونځونو کثرت،او هره میاشت په حیض کښې د مبتلا کیدلو په وجه د مونځونو قضاء ساقط کړې شوې ده.او روژه چونکه په کال کښې یوځل راځی.نود روژو په قضاء راوړلو کښې هیڅ حرج نه پیښیږی.په دې وجه د روژو قضاء باقی اوساتلې شوه.د حیض او نفاس په وجه دا ساقط نکړې شوه.

**په رمضان کښې د حیض نه پاکیدل**

| وَإِذَا قَدِمَ الْمُسَافِرُ أَوْ طَهُرَتِ الْحَائِضُ فِي بَعْضِ النَّهَارِ کله چه واپس راشی مسافر یا پاکه شی حائضه دورځې په څه حصه کښې أَمْسَكَا عن الطعام والشراب بَقِيَّةَ يَوْمِهِمَا نود خوراك څکاك نه دې امساك دې کوی باقی ورځ دواړه.([2]) |
|---|

[1] ) الفول الراجح هو هذا ظاهر الرواية يعنى لا فرق بين الأصلى والعارضى كذا في العناية (۲۸۷\۲)وردالمحتار(۱۳٤\۲)نقلاً عن الفول الراجح (۲۰۲\۱)-

[2] ) **ملعب الشافعي** رحمه الله:- حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په دوی د باقی ورځ امساك واجب نه دې.دا اختلاف د هرهغه کس په باره کښې دې.چه د ورځ په څه حصه کښې د روژې کامل اهل شی.مثلاً کافر مسلمان شی.یا ماشوم

**تشریح﴾ وجوب الإمساك علي المسافر والحائض إذا أقيم اوطهرت﴿** صورت د مسئلې دا دې. كه يومسافر د رمضان په ورځ خپل وطن ته واپس راغې.يا حائضه پاكه شوه. نو زمونږ په نيز په دې دواړو باندې د ورځ په باقي حصه كښې د مفطرات نه امساك واجب دې.يعني د دوی دواړو دمخكښې نه روژه نه وه.خودې باوجودبه دمابنامه پورې دروژه دارو پشان وخت تيروی.

**علیله ﴾** دلیل دادې.چه د روژه دارو مشابهت اختیارول د روژې خلیفه دی.ځكه چه د روژه دارو سره مشابهت د ورځ په بعض حصه كښې موجود شوې دې.او روژه د ټولې ورځې وی. اود بعض شئ خلیفه نه وی.نو ثابته شوه.چه په بعض حصه كښې د مفطرات نه بندیدل،د روژې خلیفه كیدلو په وجه نه دی.بلكه د وخت یعنی د رمضان حق ادا كولو دپاره واجب شوې دې.ځكه چه د رمضان ورځ یو معظم وخت دې.

**غلط فهمیٔ سره د صبا نه پس یا د غروب نه وړاندې خوراك څكول**

| وَمَنْ تَسَحَّرَ وَهُوَ يَظُنُّ أَنَّ الْفَجْرَ لَمْ يَطْلُعْ چا چې پیشنمې نې اوكړو پدې خیال چه صبا نه شوې نه دې حال دادې چه هغه شوې وی ،أَوْ أَفْطَرَ وَهُوَ يَرَى أَنَّ الشَّمْسَ قَدْ غَرَبَتْ یا نې روژه ماته كړه پدې خیال چه نمر پریوتلې دې ثُمَّ تَبَيَّنَ أَنَّ الْفَجْرَ كَانَ قَدْ طَلَعَ بیا ښكاره شوه چې صبا راښتلې وو أَوْ أَنَّ الشَّمْسَ لَمْ تَغْرُبْ اویقینا نمر نه وو ډوب شوې |
|---|

**تشریح﴾ وجوب القضاء بالأكل بعد الصبح وقبل الغروب﴿** مسئله داده.چه د رمضان په شپه كښې یوكس په دې خیال سره پیشنمې اوكړو.چه اوس لاصبا صادق نه دې راختلې.روسته تحقیق اوشو.چه صبا صادق راختلې وو.یا یوكس په دې خیال افطار اوكړو.چه نمر پریوتلې دې.بیا معلومه شوه.چه اوس لانمر نه دې پریوتلې.نودې ورځې روژې قضاء واجب ده.خودا كس به په دې خپل فعل باندې ګناهګار نه وی.اونه به په ده باندې كفاره واجب وی.

| قَضَى ذٰلِكَ الْيَوْمَ نو د دغه ورځې قضا به راوړی |
|---|

**تشریح﴾ دلیل وجوب القضاء﴿** او قضا په دې وجه واجب ده.چه روژه یو داسې شرعی حق دې. چه مضمون بالمثل دې.یعنی ادا په فوت كیدلو سره نه ساقطیږی.بلكه شرعاً ددې ضمان بالمثل واجب وی.یعنی د روژې په بدله كښې به روژه واجب وی.لكه څنګه چه د بیمار اومسافر په حق كښې دا ضمان واجب دې.

| وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ اوپده كفاره نشته دې. |
|---|

**تشریح﴾ دلیل عدم وجوب الكفارة﴿** ① اوكفاره به په دې وجه واجب نه وی.چه دا ناقص جرم دې.ځكه چه دده د صباصادق نه روسته پیشنمې كول،یا د نمر پریوتلو نه مخكښې افطار كول، بالاراده نه دی.بلكه د شپې په خیال سره پیشنمې اوكړو.اود نمر پریوتلو په خیال سره نې افطار اوكړو.بهرحال جرم قاصر دې.او د قاصر جرم په وجه كفاره نه واجبیږی.د كفاره د وجوب دپاره كامل جرم كیدل ضروری دی.

---

بالغ شی.یا مجنون ته افاقه اوشی.نو زمونږ په نیز په دوی د ورځ په باقی حصه كښې امساك واجب دې.خود امام شافعی رحمه الله په نیز واجب نه دې.

④ ددې تائيد د فاروق اعظمؓ د قول نه هم کيږي.نقل دي.چه يو ځل د رمضان په مياشت کښې د نمر پريوتلو په وخت حضرت عمرؓ اوبعض صحابه د مسجد کوفه په صحن کښې ناست وو.چه د پيو يوه پياله راوړلې شوه.حضرت عمرؓ پخپله هم اوڅکل،او صحابو هم اوڅکل.او مؤذن ته نې اوونيل.څه آذان اووايه.نو کله چه دې د اذان د پاره بره اوختلو.نو وې کتل.چه اوس نمر موجود دې.نو ده په چغه اوونيل. «والشمس يا اميرالمؤمنين»يا اميرالمؤمنين نمر اوس هم موجود دې لاته دې پريوتې.حضرت عمرؓ اوفرمائيل. «بعثناك داعيًا ولم نبعثك راعيًا ما تجانفنا لإثم لقضاء يوم علينا يسير»يعنى مونږ ته داعى اوليګلې.راعى مو نه وې ليګلې. مونږ(الله دې نکړى)د ګناه اراده نه ده کړې.مونږ ته د يوې روژې قضاء راوړل آسان دى. (¹) د دې واقعې نه معلوميږي.چه په داسې اجتهادى غلطۍ سره که روژه فاسد شي.نو صرف قضاء به واجب وى.نه به ګناهګار وى. اونه به کفاره واجب وى.

### د اختر په مياشت کښې د يوعادل د شهادت حيثيت

| وَمَنْ رَأَى هِلَالَ الْفِطْرِ وَحْدَهُ لَمْ يُفْطِرْ)چا چه د وړوکى اختر مياشت يواځې اوليده نو افطار به نه کوى |
|---|

**تشريح**> **عدم الفطر برؤية الواحد هلال شوال**> مسئله داده.که يوکس يواځې د اختر مياشت اوليدله.که مطلع صفا وى اوکه صفا نه وى.نودا کس به احتياطاً افطار نه کوى.

**حکم الافطار**>اوکه افطار ئې اوکړو.نوپه ده به قضاء واجب وى.اوپه روژه ماتولوسره به قضاء واجب نه وى.اود رمضان د مياشتې په صورت کښې احتياط په روژه واجب کيدلوکښې دې. په دې وجه د رمضان مياشت د خانله د يوکس د کتلو په ګواهۍ باندې روژه واجب کړې شوې ده.

### د وريځ په ورځ د ګواهانو د شمار تفصيل

| وَإِذَا كَانَ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ اوکله چه په آسمان کښې څه علت وو لَمْ يُقْبَلِ الامامُ فِي هِلَالِ الْفِطْرِ نه به قبلوى امام په مياشت داخترکښې إِلَّا شَهَادَةَ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ مګر شهادت د دوو کسانو يا ديوسړى او ددوو ښځو |
|---|

**تشريح**> **شروط ثبوت الرؤية في الفطر**>مسئله داده.چه ۲۹ رمضان که په آسمان وريځ يا ګرد وغبار وغيره وى.نود وړوکى اخترد سپوږمۍ په ثبوت کښې ①د دوه سړو يا د يوسړى اود دوه ښځو ګواهى ضرورى ده.د يوکس ګواهى به کافى نه وى. ② اود ګواهانو آزادکيدل،او، محدود في القذف،نه کيدل هم ضرورى دى.،محدود في القذف،که توبه کړې وى.نوبيا هم د وړوکى اختر په مياشت کتلوکښې به دده شهادت معتبر نه وى. ③دغه شان ددې ګواهۍ په لفظ د شهادت سره کيدل ضرورى دى.

**دليله**>دليل دادې.چه د وړوکى اختر سپوږمۍ سره د بندګانو نفع متعلق ده.اوهغه د فطر نفع ده.يعنى په رمضان کښې چه د خوراك څکاك کومې پابندیانې وې.د اخترمياشت سره هغه ټولې ختمې شوې.او ښکاره ده.چه په دې کښې د بندګانو نفع ده.اوهرکله چه په دې کښې د بندګانو نفع ده.نودا خالص دينى امر پاتې نشو.بلکه دا دحق العباد مشابه شو.اود حقوق العباد ثابتولو دپاره شهادت کامله ضرورى وى.يعنى دوه سړى يا يوسړې اودوه ښځې به ګواهى ورکوى.په دې شرط چه دوى آزاد

---

¹) من حديث أنس بن مالكؓ اخرجه البخارى في الصوم باب ۲۰ رقم ۹۷۷ ومسلم في الصيام رقم ٤٥ والترمذى في الصوم باب ۱۷ رقم ۷۰۸ والنسائى في الصيام باب ۱۸ وابن ماجه في الصيام باب ۲۲ واحمد في المسند (۳۲/۳)۔

وی.مسلمان وی. عادل وی.، محدود في القذف، نه وی.او په لفظ د شهادت سره نې ګواهی ورکړې وی.نوهر کله چه د وړوکی اختر د میاشت معامله هم د حق العباد مشابه ده.نوددې د ثابتولودپاره هم شهادت کامله ضروری دې.د یوسړی ګواهی به کافی نه وی.

**د اختر د نبوت دپاره د جم غفیر شرطیت**

| وَإِنْ لَمْ يَكُنْ بِالسَّمَاءِ عِلَّةٌ لَمْ يُقْبَلْ اوکه په آسمان کښې څه نه وو نونه به شی قبلولولې. إِلَّا شَهَادَةَ جَمَاعَةٍ يَقَعُ الْعِلْمُ بِخَبَرِهِمْ)مګر دداسې ټولګی شهادت د کومو خبرو چه یقینی شی |
|---|

**تشریح**> عبارت واضح دې.او وړاندې ددې تفصیل هم تیرشوې دې.هلته نې اوګورئ.
د روژې د وخت ابتداء او انتهاء

**د اعتکاف بیان**

| بَابُ الْإِعْتِكَافِ |
|---|

(دا) باب د اعتکاف(په بیان کښې)دې.

**تشریح**> **ألربط بما قبله**>روژه نې په اعتکاف باندې په دې وجه مقدم کړې ده.چه روژه د اعتکاف دپاره شرط دې.او شرط د شئ ، په شئ باندې مقدم وی.ځکه نې روژه په اعتکاف باندې مقدم کړه.
**معني الإعتكاف**>اعتکاف د ،باب افتعال،مصدر دې.د ،عکف، نه ماخوذ دې.او،عکف، متعدی دې.او ،عکوف،لازم دې.د شریعت په اصطلاح کښې اعتکاف په نیت سره جمات کښې ایساریدلو ته وائی.

**د اعتکاف حکم**

| الإِعْتِكَافُ مُسْتَحَبٌّ)اعتکاف مستحب دې. |
|---|

**حل اللغة** >①مواظبت: همیشه والې ]

**تشریح**> **نية الإعتكاف في العشر الأواخر من رمضان**> صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه د رمضان د آخری عشرې اعتکاف مستحب دې.خوصاحب د هدایه رحمه الله فرمائیلی دی چې صحیح خبره داده.چه د رمضان د آخری عشرې اعتکاف سنت مؤکده دې.

**دليله**> دلیل دا دې.چه نبی کریمﷺ په دې باندې مواظبت کړې دې.لکه ارشاد دې.چه**قالت عائشه** رضي الله عنها **أن رسول اللهﷺ كان يعتكف في العشر الأخير من رمضان حين قدم المدينة إلى أن توفاه الله تعالى**)حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.چه کله نبی کریمﷺ مدینې ته تشریف راوړلو.نود وفاته پورې نې د رمضان په آخری عشره کښې اعتکاف کولو
اود نبی کریمﷺ په یوځیز باندې مداومت کول،ددې د مسنون کیدلو دلیل دې.په دې وجه د رمضان په آخری عشره کښې اعتکاف سنت مؤکده دې.

**السوال** >خو دلته کښې دا اعتراض کیدلې شی.چه د رسول اللهﷺ مواظبت کول،د وجوب علامت دې. نو د رمضان د آخری عشرې اعتکاف واجبیدل پکار دی.

**ألجواب**>ددې جواب دادې.چه رسول اللهﷺ به کوم ځیز واجب ګرځول غوښتل،نو په هغې به نې مواظبت کولو.اود مواظبت نه پس به نې د هغې د کولوحکم فرمائیلو.او په پریخودونکی به نې نکیر فرمائیلو حالانکه نبی کریمﷺ خو نه ددې حکم فرمائیلې دې.اونه نې ددې په پریخودلو باندې نکیر فرمائیلې.

دي. نوکه د رمضان د اخرى عشرې اعتکاف واجب وي نو نبی کریمﷺ به خلقو ته ددې حکم فرمانیلې وې. او په پریخودونکی به نې نکیر فرمانیلې وې.نو ثابته شوه چه دا واجب نه دې.

**دلیل عدم وجوب الإعتکاف>** د اعتکاف د عدم وجوب دلیل دا هم دې.چه یو ځلې نبی کریمﷺ د اعتکاف کولو دپاره په مسجد کښې خیمې لګولویعنی د پرده اچولو حکم اوکړلو بیا جومات ته داخل شو. نو دوه خیمې نې نورې هم اولیدلې.ددې باره کښې نې تپوس اوکړو.نو معلومه شوه.چه یوه خیمه د عائشه رضی الله عنها ده. او یوه د حفصه رضی الله عنها ده.چه دا نې اولیدلې.نو نبی کریمﷺ په غصه شو نود خپلې خیمې لرې کولو حکم نې اوکړو.اودې کال نې اعتکاف پریخودلو.ددې نه هم معلومیږی.چه اعتکاف واجب نه دې. ځکه چه د وجوب دلیل بغیر د پریخودلو مواظبت کول دی.

## د اعتکاف تعریف، رکن او شرط

وَهُوَاللَّبْثُ فِي الْمَسْجِدِ مَعَ الصَّوْمِ اودغه پاتې کیدل دی په مسجد کښې سره دروژې وَنِيَّةِ الإعْتِكَافِ او دنیت داعتکاف نه.

**تشریح> ألإعتکاف لغة وشرعًا>** په لغت کښې اعتکاف مطلق ایساریدلو ته وائی.که هرځانې کښې وی. او چه د کوم مقصد دپاره وی.الله تعالی فرمانیلی دی.﴿مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيْلُ الَّتِيْٓ اَنْتُمْ لَهَا عٰكِفُوْنَ﴾ یعنی څه دی دا تماثیل (بوتان)چه دې سره خواکښې تاسو پراته نې.اود شریعت په اصطلاح کښې اعتکاف نوم دې.د اعتکاف په نیت،دروژې سره په جمات کښې قیام کول.ګویا د اعتکاف دپاره څلور څیزونه ضروری دی.① ایساریدل ② جومات ③ د اعتکاف نیت ④ روژه.

**رکنه>**علامه مرغینانی رحمه الله فرمانیلی دی.چه ایساریدل خود اعتکاف رکن دې.ځکه چه د اعتکاف لفظ په لغت کښې د ایساریدلو په معنیٰ باندې دلالت کوی.په دې وجه د ایساریدلو موجودیدل ضروری دی.

## په حالت د اعتکاف کښې د وطی حرمت

يَحْرُمُ عَلَى الْمُعْتَكِفِ الْوَطْئُ) اوپه معتکف وطی کول حرام دی.

**تشریح> حرمة الجماع علي المعتکف>**مسئله: معتکف که د انسانی حاجت دپاره د جومات نه بهر اووتلو. اودانسانی حاجت پوره کولونه پس نې د ښځې سره جماع هم اوکړه نو دده دا فعل حرام دې یعنی د اعتکاف په حالت کښې جماع کول حرام دی.

**دلیله>** ځکه چه د رسول اللهﷺ په زمانه کښې دخلقو عادت دا وو. چه دوی به د اعتکاف په حالت کښې د جمات نه وتل.اود خپلو ښځو سره به نې جماع کوله بیا به نې غسل اوکړو.او خپل معتکف ته به راتلل.نود الله تعالی دا قول﴿ وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَاَنْتُمْ عٰكِفُوْنَ ۙ فِي الْمَسٰجِدِ ﴾ نازل شو.په دې کښې د اعتکاف په حالت کښې دجماع کولو نه منع کړې شوې ده.

وَاللَّمْسُ وَالْقُبْلَةُ او اوګوتې اوړل اوښکلول دی

**تشریح> حرمة القبلة واللمس>**اود معتکف دپاره ښځې سره لاس لګول،او ښکلول هم حرام دی.

**دلیله>** ځکه چه دا دواړه خبرې د جماع دواعی (مقدمات یا اسباب) دی.او جماع چونکه د اعتکاف د ممنوعاتو څنې ده.په دې وجه به د دې دواعی هم د اعتکاف په ممنوعاتو کښې شامل وی.اوکوم څیز

چه ممنوع وی.هغه حرام وی.په دې وجه به دا دواړه خبرې په معتکف باندې حرامې وی.لکه څنګه چه د احرام په حالت کښې مباشرت حرام دې.دغه شان د مباشرت دواعی هم حرام دی.

**جواز القبلة في الصوم**> په خلاف د روژې چه د روژې په حالت کښې مباشرت حرام اومفسد د صوم دې.خو لاس لګول،او ښکلول د صوم مفسد نه دی.ځکه چه جماع د روژې د ممنوعاتو څنې نه ده.بلکه د جماع نه ځان ساتل د روژې رکن دې.او رکن د شئ غیر طرف ته نه متعدی کیږی. په دې وجه به جماع په روژه کښې،د روژې دواعی طرف ته نه متعدی کیږی. یعنی داسې به نه وی.چه څنګه د جماع نه ځان ساتل د روژې رکن دې.دغه شان د لاس لګول، اوښکلول نه بندیدل به هم د روژې رکن وی.اوهرکله چه ددې دواړو څیزونو نه ځان ساتل،د روژې رکن نه دې.نو ددې جرم په کولوبه روژه هم نه فاسدیږی.

| وان انزل او که انزال ئې اوشو بقبلة اولمس په ښکلولو سره یا په لاس اوړلو سره فسد اعتکافه نو د ده اعتکاف فاسد شو وعليه القضاء او په ده باندې قضاء لازمه ده |
|---|

**تشریح**> **فساد الاعتكاف بالانزال** > که معتکف ښځې سره لاس اولګولو.یا ئې ښکل کړه.او انزال اوشو .نو په دې صورتونوکښې به هم اعتکاف باطل وی.ځکه چه په دې طریقه شهوت پوره کول دجماع په معنی کښې دی.هم دغه وجه ده.چه په دې سره روژه فاسدیږی.او جماع کول اعتکاف فاسدوی.نوکوم څیز چه ددې په معنی کښې وی.هغه به هم اعتکاف فاسدوی.

**عدم فساد الإعتكاف بمقدمات الجماع من غير انزال**> اوکه په ذکر شوی صورتونوکښې انزال اونشو.نو اعتکاف به فاسد نه وی.اګرچه د اعتکاف په حالت کښې دا فعل حرام دې.ځکه چه بغیر د انزال نه دا فعل د جماع په معنی کښې نه دې.حالانکه د اعتکاف مفسد جماع ده.او بغیرد انزال نه په ،مادون الفرج،کښې مباشرت د جماع په معنی کښې نه دې.په دې وجه دې سره روژه نه فاسدیږی.

**.د جمات نه د معتکف دپاره د وتلو د اجازت عذرونه**

| وَلَا يَخْرُجُ المعتكف مِنَ الْمَسْجِدِ إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ أَوْالْجُمُعَةِ اومعتکف به نه اوځی دمسجد نه مګر د حاجت انسانی دپاره اویا دجمعې دمانځه دپاره. |
|---|

**حل اللغة** > ①**معتكف:اسم ظرف، باب افتعال**؛ دَ اعتکاف ځائ

**تشریح**> **جواز الخروج من المسجد للضرورة**>صورت د مسئلې دادې.چه د معتکف دپاره د اعتکاف د جمات نه وتل جائز نه دی.سوې د دوه ضرورتو نه،چه ①یو طبعی ضرورت دې.لکه د تش او ډك اودس ماتی ضرورت،②دویم دینی ضرورت لکه د جمعې اود جنابت د غسل ضرورت. .

**دلائله**>بهرحال د طبعی او انسانی ضرورت دپاره د وتلو په جواز باندې دلیل①د عائشه رضي الله عنها حدیث دې.یعنی(كان النبي ﷺ لايخرج من معتكفه إلا لحاجة الإنسان) ([1]) یعنی رسول الله ﷺ به د خپل معتکف نه

[1]) خرجه الزيلعي رحمة الله بهذا اللفظ ثم قال واخرج الأئمة الستة (أي البخاري في الإعتكاف باب ٣ ومسلم في الحيض رقم ٦ وأبوداود في الصوم باب ٧٩ رمق ٢٤٦٧ والترمذي في الصوم باب ٧٩ رقم ٨٠٥ والنسائي في السنن الكبرى (٢٦٦/٢) وابن ماجه في الصوم رقم ١٧٧٨ ومالك في ١ لإعتكاف رقم ١ واحمد في المسند (١٨١/٦) والبيهقي في السنن الكبرى (٥١٨/٤) رقم ٤٥٧٠) عن عائشة رضي الله عنها قال كان رسول الله ﷺ إذا إعتكف يدني إلى رأسه فأرجله وكان لا يدخل البيت إلا لحاجة الإنسان (نصب الراية ٥١٨/٢)_

بهرتشریف نه اوړلو.سوې د انسانی او طبعی ضرورت پوره کولو دپاره یعنی د وړوکی او غټ اودس ماتی دپاره،

② دویم دلیل دادې.چه د انسانی ضروریاتو واقع کیدل د مخکښې نه معلوم دی.اودا هم معلومه ده.چه ددې د پوره کولو دپاره وتل ضروری دی.ددې نه بغیر خلاصې نشته.نو ددې ضرورتونو دپاره به وتل پخپله مستثنی وی.ځکه چه دغیر اختیاری امورو انسان مکلف نه وی.خو دومره خبره ضرور ده.چه د انسانی ضرورت پوره کیدلو نه پس،د طهارت نهٔ د فارغیدلو نه فوراً پس خپل معتکف ته لاړشی.د طهارت نه د فارغیدلو نه پس دې په خپل کورکښې نه ایساریږی.ځکه چه د انسانی حاجتونو دپاره وتل ضرورةً ثابت دی.او کوم څیز چه ضرورةً ثابت وی.نو هغه د ضرورت په اندازه ثابت وی.په دې وجه د ضرورت په اندازه د اعتکاف د جمات نه د بهر پاتې کیدلو اجازت دې.ددې نه زیات اجازت نشته.

**الخروج لصلاة الجمعة**>او پاتی شو د جُمعې د مانځه دپاره وتل. نو دا زمونږ مذهب دې. [1]

**دليله** > دلیل دادې.چه په دلیل سره داخبره ثابته شوې ده.چه اعتکاف په هرجمات کښې مشروع دې.لکه چه د الله تعالی ارشاد دې.﴿وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ﴾ نو هرکله چه په هر جمات کښې اعتکاف مشروع دې.نود جمعې دپاره وتل به دده د نذر اعتکاف دپاره داسې مستثنی وی.لکه څنګه چه د انسانی ضرورت دپاره وتل مستثنی دی.ځکه چه د اعتکاف د حفاظت دپاره د جمعې مونځ پریخودل قطعًا جائز نه دی.ځکه چه د نذر په وجه د اعتکاف وجوب د جمعې د مانځه د وجوب نه کمتر دې.اود جمعې د مانځه د وجوب نه کمتر ځکه دې.چه د جمعې مونځ د الله تعالی په واجبولوسره واجب شوې دې.او اعتکاف د بنده په واجبولوسره واجبیږی.په دې طریقه چه ده د اعتکاف نذر کړې دې.اود بنده دپاره د الله تعالی واجب کړې وظیفه ساقطولو اجازت نشته.نو ثابته شوه.چه د اعتکاف په وجه د جمعې مونځ نشی پریخودلې.اوهرکله چه د جمعې مونځ نشی پریخودلې.نود جمعې د مانځه دپاره به د وتلو هم اجازت وی.

**وقت الخروج لصلاة الجمعة**>اوس پاتې شوه داخبره چه د جُمعې د مانځه دپاره کوم وخت وتلو اجازت دې.نو ددې حکم دادې.چه د اعتکاف ځائې که جامع جومات سره نیزدې وی.نود زوال نه پس دې اوځی .ځکه چه د جمعه اداکولو خطاب د زوال نه پس متوجه کیږی.اوهرکله چه دا خطاب متوجه شی.نو هله به ضرورت لاحق کیږی.او هرکله چه ضرورت لاحق شی.نو هله به د جمعې د مانځه دپاره وتل هم جائزوی.نو چونکه د جمعه اداکولو ضرورت د زوال نه پس متحقق شوې دې.ځکه به د زوال نه پس اوځی.

### د معتکف دپاره د بیع اوشراء حکم

| |
|---|
| وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَبِيعَ وَيَبْتَاعَ فِي الْمَسْجِدِاوخه باك نشته دې په اخستلو خرڅولو کښې په مسجدکښې دننه مِنْ غَيْرِأَنْ يُحْضِرَالسِّلْعَةَ)بغیر د راوړ د سامان نه مسجد ته دننه. |

**حل اللغة** >① **سلعة**: دَ تجارت سامان ]

[1] ) **مذهب الشافعي**رحمه الله:- د امام شافعی او امام مالك رحمه الله په نیزد جُمعې دپاره وتل جائز نه دی.تردې که د جمعې د مانځه دپاره او وتلو.نو اعتکاف به فاسد وی.

**تشریح> جواز البیع والشراء للمعتکف>** مسئله: د معتکف دپاره په جومات کښې دننه په اخستلو خرڅولو کښې هیڅ باك نشته.په دې شرط چه سامان جومات ته رانوړې.

**دلیله>** ځکه چه ډیر کرته معتکف دپاره د اخستلو خرڅولو ضرورت پیښیږي.اوهیڅ څوك داسې کس دده سره موجود نه وي.چه دده بندوبست اوکړي.نو د دې ضرورت په لحاظ سره معتکف ته ددې اجازت ورکړې شوې دې.

**کراهة أحضار المبیع>** خو فقهاوٌ د اخستلو خرڅولو دپاره په جومات کښې دننه سامان راوړل مکروه ګرځولي دي.ځکه چه جمات خالص د الله ﷻ دپاره وي. او د بنده ګانو دحقونو نه ئې دا محفوظ ساتلې دې. نوچونکه جمات ته دننه په سامان راوړلوکښې دا د بندګانو د حقونو اوسامان سره مشغولول لازمیږي. په دې وجه به جمات ته دننه د اخستلوخرڅولو سامان راوړلو،او ایخودلو اجازت نه وي.

**کراهة البیع والشراء لغیر المعتکف ودلائله>** علامه مرغیناني رحمه الله په هدایه کښې فرمائیلي دي.چه دغیر معتکف دپاره په جمات کښې دننه اخستل خرڅول هم مکروه دي.

**دلیله>** ① دلیل دادې چه ابن ماجه په خپل سنن کښې د واثله بن الاسقع نه روایت کړې دې.چه دهغې الفاظ دادي.ان النبي ﷺ قال جنبوا مساجدکم صبیانکم ومجانیکم وشرائکم وبیعکم وخصوماتکم ورفع اصواتکم واقامة حدودکم وسل سیوفکم..واتخذوا علی أبوابها المطاهر وجمروها في الجمع [1] یعنی رسول الله ﷺ اوفرمائیل.چه د خپلوجماتونو نه لرې ساتئ:خپل ماشومان،او لیوني،او اخستل خرڅول،او خپلې جګړې،او خپل آوازونه اوچتول،او سزاګانې قائمول،او توري بربنډې کول،(راوښکل)اود خپلو جماتونو په دروازوکښې د طهارت ځایونه جوړوئ.او په جمعو کښې دې له خوشبوئي ورکوئ.

## په اعتکاف کښې دخبرو چپ اوسیدل

وَلَا یَتَکَلَّمُ اِلَّا بِخَیْرٍ وَیُکْرَهُ لَهُ الصَّمْتُ او خبرې به نه کوي مګر ښې خبرې او مکروه دي دده دپاره چپ اوسیدل

**تشریح> کراهة الصمت للمعتکف>** معتکف له پکار دي.چه غلطې خبرې نه کوي.بلکه نیکې اوښې خبرې کوي.اود عبادت په خیال باندې بالکل خاموش اوسیدل،هم مکروه دي.

**ألمطالب الثلاثة للسکوت>** ① ددې یو مطلب خو دادې.چه بالکل د خبرو نه کولونذر اوکړي.لکه څنګه چه مخکینو شریعتونو کښې وو. ② او یومطلب دادې.چه بغیر د نذر نه خاموش اوسیږي. اوخبرې بالکل نه کوي. ③ او یومطلب دادې.چه د روژې نیت اوکړي.یعنی د ، مفطرات ثلاثه،نه د بندیدلو نیت اوکړي.اودې سره د کلام نه کولوهم نیت اوکړي.دلته کښې هم دا دریم صورت مناسب دې.

**دلیله>** علامه مرغیناني رحمه الله په هدایه کښې دلیل بیان کړې دې.چه د خاموش اوسیدلو روژه زمونږ په شریعت کښې عبادت نه دې.بلکه د مجوسیانو فعل دې.نود مجوسیانو دمشابهت نه د بچ کیدلو دپاره بالکل خاموش اوسیدل مکروه دي.خود ګناه خبرونه جدا اوسیږئ.

## په هیره یا په قصد په جماع کولو د اعتکاف فساد

فَاِنْ جَامَعَ المعتکف لَیْلًا اَوْنَهَارًا عَامِدًا اَوْنَاسِیًا بَطَلَ اعْتِکَافُهُ )اوکه جماع اوکړه معتکف دشپې یا

[1] من حدیث واثلة رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه في سننه في المساجد باب ٥ رقم ٧٥٠

ورځي په قصد سره يا په هيره سره نوباطل شو اعتکاف دده.

**تشريح** > **حرمة الجماع علي المعتکف** > که معتکف په شپه کښې يا په ورځ کښې،قصداً يا په هيره جماع اوکړه.نو دده اعتکاف باطل شو.که انزال شوی وی.اوکه نه وی شوی.ځکه چه شپه هم د اعتکاف محل دی.نوکوم ځيز چه د اعتکاف په وجه په ورځ کښې ممنوع وی.هغه په شپه کښې هم ممنوع وی.په خلاف د روژې،چه شپه د روژې محل نه دی.نود روژې په وجه چه کوم ځيز په ورځ کښې ممنوع وی. هغه به د روژې په وجه شپه کښې ممنوع نه وی.نود غير معتکف دپاره د رمضان په شپوکښې جماع کول حلال دی.خود معتکف دپاره حلال نه دی.

**السوال** > خوکه څوك دا اعتراض اوکړی.چه اعتکاف د روژې فرع ده.او فرع په حکم کښې اصل سره لاحق کيږی.نولکه څنګه چه د رمضان په ورځ کښې په هيره جماع کولو سره روژه نه فاسديږی.دغه شان په هيره جماع کولوسره اعتکاف هم فاسديدل نه پکار نه دی.حالانکه ستاسو په قول اعتکاف فاسديږی.

**الجواب** > نو جواب دادی.چه حالت د اعتکاف مذکر(يادونکی)دی.يعنی د اعتکاف حالت هروخت سړی ته دا ياد راولی.چه ته په اعتکاف کښې ئې.اود روژې حالت مذکر نه دی.ځکه چه په ښکاره روژه دار،او غير روژه دار دواړه برابر وی.نو څونکه د اعتکاف حالت مذکر دی.په دې وجه د اعتکاف په حالت کښې نسيان عذر اونه ګرځولې شو.اود روژې حالت چونکه غير مذکر دی.په دې وجه د روژې په حالت کښې نسيان عذر اوګرځولې شو.

**بغير عذر د جمات نه دوتلو حکم**

وَلَوْخَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ سَاعَةً بِغَيْرِ عُذْرٍ فَسَدَ اعْتِكَافُهُ) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالَى[1] که د مسجدنه اووتلويوساعت بغير دعذر نه نواعتکاف ئې فاسد شو په نيز د امام ابوحنيفه رحمه الله

**تشريح** > **فساد الإعتكاف بالخروج من غير عذر** > مسئله داده.که معتکف بغير د عذره د جومات نه اوو ځو.اګرچه د يو لمحه..دپاره وتلی وی.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دده اعتکاف فاسد شو.او قياس هم دا دی.

**دليله** > د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی.چه د اعتکاف رکن،لبث فی المسجد، (په جومات کښې ايساريدل) دی.اود جمات نه وتل ددې منافی دی.او شیٔ د خپل منافی اود ضد په موجود کيدلو سره فوت کيږی.په دې وجه اعتکاف په ،خروج من المسجد ،سره فوت کيږی.خروج که د لږ وخت دپاره وی.اوکه د زيات وخت دپاره وی.لکه د روژې په حالت کښې خوراك روژه فاسدوی.که لږه ئې خوړلې وی.اوکه زياته ئې خوړلې وی.دغه شان لکه څنګه چه مطلقاً حدث ناقض د اودس دی.حدث که لږ وی.اوکه زيات وی.

وَقَالَا: لَا يَفْسُدُ حَتّٰى يَكُونَ أَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ يَوْمٍ او قياس هم دادی.او صاحبين رحمهما الله فرمانی چه نه فاسديږی تر دې چه دنيمې ورځې نه زيات شی

**تشريح** > **مذهب الصاحبين** > صاحبين رحمهما الله فرمانی.چه اعتکاف به فاسد نه وی.خوکه د نيمې ورځې نه ئې زياته بغير د عذره د جمات نه بهر تيره کړه.نو اعتکاف به فاسد وی.او استحسان هم دا دی.

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٣١٠\٢) وردالمحتار(١٤٥\٢) والخانية (١٠٧\١) وشرح الوقاية (ص٤٥٥) والفقه الإسلامي وأدلته (٧١٩\٢) والهندية (٢١٢\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٠٦\١)

**دلیلهما** ﷫ ﴿دصاحبینو ﷫ دلیل دادي.چه د لږ وخت دپاره د جومات نه وتل.د حرج لرې کولو دپاره معاف دی.اود زیات وخت دپاره وتل معاف نه دی.اود قلیل او کثیر په مینځ کښې حد فاصل نیمه ورځ نه زیاتي ده.یعنی د نیمې ورځ نه زیات ته کثیر ونیلې شی.او نیمه او ددې نه کم ورځې ته به قلیل ونیلې شی.لکه څنګه چه په رمضان کښې د نیمې ورځ نه زیاتی کښې که نیت موجود شو.نو روژه به معتبر وی.ګنی معتبر به نه وی.

**د ورځو د اعتکاف په نذر سره د شپو شاملیدل**

| (وَمَنْ أَوْجَبَ عَلَى نَفْسِهِ اعْتِكَافَ أَيَّامٍ لَزِمَهُ اعْتِكَافُهَا بِلَيَالِيهَا اوچا چه واجب کړو په خان اعتکاف دورځو نولازم دي پده باندې اعتکاف دشپو سره |
|---|

**تشریح**﴿ **وجوب إعتكاف الليالي بنذر إعتكاف الأيام**﴿صورت د مسئلې دادي.که یوکس د څو ورځو اعتکاف په خپل خان باندې لازم کړو.په دې طریقه چه وې ونیل،د الله دپاره په ما باندې د لسو ورځو اعتکاف لازم دي،نود لسو ورځو اعتکاف به ددې د شپوسره لازم وی.او پرله پسې به لازم وی.اګرچه د پرله پسې والی شرط ئې نه وی کړې.

**القاعدة**﴿د ورځو په ذکر کولو سره به شپې څکه شامل وی.چه قاعده ده.چه د جمع په صیغه سره ،ایام، ذکرکول،ددې په مقابل کښې شپو ته هم شاملیږی. مثلاً که یوکس دا اووائی.(ما رأيتك منذ أيام)ماته د څوورځو داسې اونه لیدلې.نو مراد دادې.چه د څو ورځو،سره ددې د شپو ئې نه دې لیدلې.دا مطلب هیڅ کله نه دې.چه ماته د څو ورځو یعنی په ورځ کښې اونه لیدلې.البته د شپې مې کتلې وې.دغه شان که یوکس قسم اوکړی.چه زه به د فلانی کس سره یومیاشت خبرې نه کوم.نودا قسم به ،ایام او لیالی، دواړو ته شامل وی.

**دلیل شمولیة اللیالي في الأیام**﴿لکه تاسو د حضرت زکریا﷤ قصه اوګورئ.چه دوی ته یو خلې الله تعالی اوفرمائیل.﴿أَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ إِلَّا رَمْزًا﴾ او یوخلې ئې اوفرمائیل.﴿قَالَ آيَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلَاثَ لَيَالٍ سَوِيًّا﴾ په دې دواړو آیتونوکښې یوه قصه ذکر ده.خو په یو ځائې کښې د ایام،لفظ دې.او یوځائې د ،لیال، لفظ دې.نو ددې هم دادې.چه ،ایام مع لیالی، مراد دې. او، لیالی مع ایام، مراد دې. بهرحال ثابته شوه.چه د ، ایام، ذکر د جمع په صیغه ددې شپو ته هم شامل وی. نو هرکله چه څوک د څو ورځو د اعتکاف نذر اوکړی.نودا اعتکاف به سره د شپو واجب وی.

| وَكَانَتْ (مُتَتَابِعَةً وَإِنْ لَمْ يَشْتَرِطِ التَّتَابُعَ:)اودا د اعتکاف ورځې به پرله پسې وی اګر چه ټول وختونه ددې قابل دی |
|---|

**تشریح**﴿ **التتابع**﴿ او پرله پسې به په دې وجه لازم وی.چه د اعتکاف بنیاد په تتابع او تسلسل باندې دې.

**دلیله** ﴿ څکه چه د شپې ورځې ټول وختونه د اعتکاف قابل دی.

**د حج بیان**

# كِتَابُ الْحَجِّ

دا کتاب دحج په بیان کښې دې.

**تشریح> وجه تاخیرالحج عن الصوم>** ① چه روژه هرکال مکرر وی.اوحج مکرر نه وی.بلکه په عمر کښې صرف یو ځل فرض دې.د دې وجې روژې ته احتیاج زیات وی.په نسبت سره د حج،اوکوم څیز ته چه احتیاج زیات وی.هغه د تقدیم زیات لائق وی.دې وجې نې روژه په حج باندې مقدمه کړه.او روستو نې حج ذکر کړلو. ② دویمه وجه داده.

حج چونکه مرکب دې.دعبادت بدنی او عبادت مالی نه. ځکه نې د روژې نه روستو کړلو. کوم چه صرف عبادت بدنی دې.ځکه چه مرکب د مفرد نه روستو وی.

**معني الحج لغة وإصطلاحا>** لفظ دحج (بفتح الحاء وبکسر الحاء)دواړه شان استعمالیږی.بفتح الحاء لکه ﴿اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ فَمَنْ فَرَضَ﴾ ... الآية اوبکسر الحاء لکه ﴿وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا﴾ الآية دې.د حج لغوی معنی څه معظم او لوئې څیز ته اراده کول دی.اودشریعت په اصطلاح کښې د مخصوص ځائې مخصوص فعل سره په خاص وخت کښې اراده کول دی.

**تاریخ فرضیة الحج>** پاتې شوه دا خبره چه حج کله فرض شوې دې.نو په دې باره کښې په بذل المجحود کښې متعدد اقوال مذکور دی.① نهمه هجری ② پنځمه هجری③ شپږمه هجری ④ د هجرت نه وړاندې ملا علی قاری په شرح د ،نقایه،کښې لیکلی دی.چه رسول الله ﷺ د حج فریضه په لسمه هجریٔ کښې ادا کړې وه.کوم چه د حجة الوداع په نوم باندې یادولې شی.اوحضرت ابوبکر صدیق﷛ په نهم هجری کښې حج کړې وو.اوحج هم په دغه کال فرض شوې وو.او اتمه هجریٔ کښې د مکې د فتح په موقع باندې عتاب بن اسید خلقو ته حج کړې وو.نبی ﷺ د مکې د فتحې نه پس هم دوی امیر مقرر کړی وو.

**کم حج الرسول ﷺ قبل الهجرة؟>** په دې باره کښې ډیر اختلاف دې.①ابن الاثیر ﷫ فرمائی. چه د هجرت نه وړاندې نبی ﷺ به هر کال حج کولو.② جابربن عبدالله﷛ فرمائی.چه رسول الله ﷺ صرف درې حجونه کړی دی.دوه د هجرت نه وړاندې او یو د هجرت نه پس په لسمه هجریٔ کښې حجة الوداع ③ اوابن عباس ﷠ فرمائی.چه رسول الله ﷺ د هجرت نه وړاندې درې حجونه کړی وو④ ابن الجوزی ﷫ فرمائی.چه رسول الله ﷺ ډیر حجونه کړی وو.د هغې شمار مونږ ته معلوم نه دې.

**فرضیة الحج علی الأمم السابقة>** پاتې شوه دا چه حج په پخوانو امتونو فرض وو.اوکه نه،نو په دې کښې دوه اقوال دی.① په اولنو امتونو باندې هم حج فرض وو.حافظ ابن حجر ﷫ دې ته ترجیح ورکړې ده.

**دلیله>** حافظ ابن حجر ﷫ استدلال کوی.اوفرمائی.(ما من نبي إلا حج البیت) یعنی هیڅ یوپیغمبر نشته.مگر حج د بیت الله نې کړې دې.او دا خبره هم شوې ده.چه حضرت آدم ﷤ د هندوستان نه پیدل خلوېښت حجونه کړی دی.جبرئیل ﷤ آدم ﷤ ته اووئیل.ستا نه اووه زره کاله وړاندې به فرښتو د بیت الله طواف ته راتلې.دویم قول دادې چه د حج وجوب د امت محمدی سره خاص دې.په اولنو امتونو حج فرض نه وو.

**الجواب من مستدل القول الأول>** د دویم قول قائلینو حضراتو جواب ورکړې دې.چه د وړاندینی دلائلونه صرف دومره معلومیږی.چه دپخوانو پیغمبرانو په زمانه کښې حج مشروع وو.اود مشروعیت نه وجوب اوفرضیت نه لازمیږی.او دا هم ممکن دی.چه حج به پخوانو پیغمبرانو واجب وو.خو د هغوی په امتونو واجب نه وو.نو په دې صورت کښې حج د پیغمبرانو د خصوصیاتو ځنې دې.او امت محمدی ته دا

خصوصیت حاصل دي.

**دلائل فرضية الحج**> دحج فرضیت د کتاب سنت او اجماع درې وارو نه ثابت دي.

①کتاب الله خو د الله تعالی ارشاد دي. ﴿وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيْلًا﴾ په ،علی الناس، کښې کلمه د ،علی،دایجاب دپاره ده.② اوسنت د نبی ﷺ حدیث دي.چه «بني الإسلام على خمس..... الحديث»

**د حج شرعي حیثیت او د وجوب شرطونه**

| اَلْحَجُّ وَاجِبٌ حج واجب دي |
|---|

**تشریح**> صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه حج په هغه چا واجب دي.چه آزاد عاقل،بالغ صحیح وی.په دي شرط چه په توښي او سورلۍ قادر وی.اوتوښه او سورلۍ د اوسیدو دخاني نه، اود کور د ضروریاتو او خپل کور ته د واپس راتلو پورې د خرچې نه زیاتی وی.او لار په امن وی.

**وجه إطلاق الوجوب علي الحج**> صاحب د هدایه رحمه الله فرمائی.چه قدوری د حج دپاره د وجوب لفظ استعمال کړلو.حالانکه د حج فرضیت قطعی دي.ددې فرضیت په کتاب الله. ﴿وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيْلًا﴾ سره ثابت دي.

**الجواب**>ددې جواب دا دي.چه د قدوری په عبارت کښې وجوب اصطلاحی مراد نه دي.بلکه وجوب په معنی د ثبوت او لزوم سره مراد دي.یعنی حج ثابت او لازم دي.په آزاد عاقل بالغ اوصحیح باندې نو په دي صورت کښې دا لفظ فرض ته هم شامل دي.

**شرطیت د حریت بلوغ او صحت**

| عَلَى الْأَحْرَارِ الْبَالِغِيْنَ الْعُقَلَاءِ الْأَصِحَّاءِ په داسې کسانوچه آزاد ،بالغان عاقلان،تندرست وی. |
|---|

**تشریح**> **دلیل شرطیة الحریة**> ①د حریت د شرطیت دپاره نقلی دلیل دا دي «أيما عبد حج عشر حجج ثم عتق فعليه حجة الإسلام وأيما صبى حج عشر حجج ثم بلغ فعليه حجة الإسلام» [1] یعنی غلام که لس حجونه اوکړی.او بیا آزاد شی.نو په ده باندې د اسلام فرض حج لازم دي.یعنی د آزادئ نه وړاندې چه ئې کوم حجونه کړی وو.په هغې سره د حج فریضه نه اداکیږی. او د حدیث په دویم جزء کښې د بلوغ د شرطیت بیان دي یعنی کوم ماشوم چه لس حجوه اوکړل.بیا بالغ شو.نو په ده باندې فرض حج لازم دي.یعنی د بلوغ نه وړاندې چه ئې کوم حجونه کړی وو.په هغې سره فرض حج نه دي ساقط شوې.

② د حریت د شرطیت دپاره عقلی دلیل دا دي چه حج بغیر دمال نه نشی کیدي.ځکه چه د حج د فرضیت دپاره توښه او سورلۍ باندې قدرت شرط دي.او غلام د توښي او سورلۍ په ملکیت باندې قادر نه دي.نو ځکه دي د وجوب حج اهل هم نه دي.

**دلیل شرطیة البلوغ**> په ماشوم باندې د حج د عدم فرضیت یو نقلی دلیل خو د نبی کریم ﷺ هغه حدیث دي کوم چې مونږ د حریت د شرطیت دپاره ذکر کړو یعنی «ایما صبی الخ» او دویم نقلی دلیل دا دي.چه حج یو عبادت دي.اود ماشومانو نه ټول عبادتونه پورته شوی دی .نوځکه حج هم په ماشومانو

---

[1] ) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه الحاكم في المستدرك (١ /٤٧١) والبيهقي في السنن الكبرى (٥/٢٩١)رقم ٩٨٤٩)۔

فرض نه دي.

**دليل شرطية العقل** >اودعقل شرط دې وجې لګولې شوې دې چه د عقل نه بغير مکلف کول ټيک نه دی.

**دليل شرطية الصحة** >اودصحت شرط ددې وجې لګولې شوې دې.چه بغير د صحت نه عجز لازميږی.و عاجز د هيڅ يو عبادت مکلف نه دې.نو ځکه په ده حج فرض نه دې.

**شرطيت د قدرت د توښې او سورلۍ**

| إِذَاقَدَرُواعَلَى الزَّادِوَالرَّاحِلَةِچه قادر وی په توښې او سورلۍ |
|---|

**تشريح** > **شرط القدرة على الراحلة** > د حج د وجوب دپاره توښه او سورلۍ باندې قدرت شرط دې.

**قسمي القدرة** > ①اوس دا قدرت به يا په طريقه د ملکيت وی.په دې طريقه چه د سورلۍ مالك وی.②اويا به په طريقه د استيجار(کرايه)وی.يعنی چه ده سره دومره مال وی.چه دې د کجاوې يو طرف په کرايه اخستې شی.ځکه چه د کجاوې دوه طرفونه وی.او د يوې سورلۍ دپاره يو طرف کافی کيږی.او يا د زامله يوسر په کرايه باندې اخستې شی.زامله هغه اوښ ته وائی.چه مسافرخپل سامان وغيره په هغې بارکړی ددې تفصيل دا دې.که سړې کمزورې وی.او په خپله نې د کجاوې يو طرف په کرايه باندې د اخستلو قدرت وی.اوکه په خپله نې طاقتور وی.نود سامان بارولو دپاره د يوې زاملة په کرايه باندې د اخستلو قدرت نې وی.اود تګ راتګ په خرچه باندې نې هم قدرت وی.

**دليله** >ځکه چه د نبی ﷺ نه تپوس اوشو.د . ﴿مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيْلًا﴾ په باره کښې،نو نبی ﷺ اوفرمائيل. توښه او سورلۍ (١)

**د زاد او راحله، د ضرورياتو د ژوند نه زيادت**

| فَاضِلًاعَنِ الْمَسْكَنِ وَمَالَابُدَّمِنْهُچه زياتی وی د استونګنې او هغه څيزونو نه چه خلاصې ترې نه وی. |
|---|

**حل اللغة** >①**المسكن**: اسم ظرف دَ اوسيدوځائ يعنی کور

**تشريح** > **كون الزاد والراحلة زائدتان عن الحاجة الأصلية** >وړاندې تير شو.چه د حج د وجوب دپاره زاد او راحلة باندې قدرت شرط دې.خو په دې شرط کښې دا هم دی.چه هغه مال په کوم چه زاد او راحله حاصلوی.دده د اوسيدو د کور او ضروری سامان نه زياتی وی.ضروری سامان لکه خادم ،دکور سامان لکه بستره ،توشك،د اخلی پخلی سامان اودده د استعمال جامې د سورلۍ دپاره اس (او په موجوده وخت کښې سائيکل موټرسائيکل وغيره او وسلة وغيره

**دليله** > ځکه چه دا ټول څيزونه په حاجت اصلی کښې مشغول دی.اوکوم څيز چه په حاجت اصلی کښې مشغول وی.نو هغه دمعدوم پشان وی(لکه چه هغه هډو شته نه)

| وَعَنْ نَفَقَةِعِيَالِهِ إِلٰى حِيْنِ عَوْدِهِاو د خرچ د عيال نه تر واپس راتلو |
|---|

**كون الزاد والراحلة زائدتان عن نفقة العيال إلى العود** >اودا مال (په کوم چه زاد او راحله حاصلوی) دده د واپس راتلو پورې د اهل وعيال د نفقه نه زياتی وی.ځکه چه نفقه د ښځې واجب ده.اوحق د بنده په شريعت کښې مقدم وی.

---

(١) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الترمذي في الحج باب ٤ رقم ٨١٣ وابن ماجه في المناسك باب ٦ رقم ٢٨٩٦)_

**دليله**> لکه په قرآن پاك کښې ارشاد دې. ﴿وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ﴾ يعنی تاسو ته ئې هغه ټول څيزونه په تفصيل سره بيان کړل.کوم چه په تاسو حرام شوی دی.مګر دا چه تاسو ورته مجبوره شئ.اوګورئ په دې آيت کښې الله رب العزت د بنده د مجبورئ د وجې حرام څيز دده دپاره مباح ګرځولې دې.او دده حق ئې په خپل حق باندې مقدم کړې دې.

## شرطيت د لارې د امن

| وَكَانَ الطَّرِيقُ آمِنًا دده پورې او وی لاره په امن |
|---|

**تشريح**> **شرط أمن الطريق**> امام قدوری رحمه الله فرمانی.چه د وجوب حج دپاره د لارې امن هم شرط دې.يعنی په دغه لار کښې چه غالب ګمان د سلامتيا او د امن وی.ځکه چه د لارې امن نه وی.نو قدرت نه ثابتيږی.

## د ښځې دپاره د خاوند يا محرم شرطيت

| وَيُعْتَبَرُ فِي حَقِّ الْمَرْأَةِ أَنْ يَكُونَ لَهَا مَحْرَمٌ يَحُجُّ بِهِ صاحب د قدورې رحمه الله فرمانې.او معتبر دې په ښځه کښې چه وی ددې دپاره محرم چه حج کوی دا د هغه په ذريعه أَوْزَوْجٌ،وَلَا يَجُوزُ لَهَا أَنْ تَحُجَّ بِغَيْرِهِمَا او يا خاوند وی.او نه دې جائز ددې دپاره چه حج اوکړی بغير ددې دواړو خنې إِذَا كَانَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ مَكَّةَ مَسِيرَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا کله چه وی په مينځ د دې او د مکه کښې مسافت د درې ورځويا د دې نه زيات |
|---|

**تشريح**> **شرط وجود الزوج أو المحرم مع المرأة**>صورت د مسئلې دا دې.که د ښځې د ښار او د مکې مکرمې په مينځ کښې د درې ورځو يا ددې نه زيات مسافت وی.نو د ښځې دپاره د حج دپاره تلل په هغه وخت کښې جائز دی.چه ددې سره محرم وی.يا ددې خاوند وی.

**تعريف المحرم**>محرم هغه چا ته وانی.چا سره چه هميشه دپاره نکاح نه کيږی.که د خپلوئ په وجه وی اوکه د رضاعت په وجه وی.اوکه مصاهرت (سخرګنئ) په وجه وی.خو د محرم دپاره شرط دې.چه هغه عاقل بالغ آزاد يا غلام وی.که کافر وی اوکه مسلمان.

**دلائله**> ① دليل دا دې.چه نبی ﷺ فرمائيلی دی.بغير د محرم نه دې هيڅ يوه ښځه د حج دپاره نه خی.او د (مسلم او ابوداؤد) روايت دې. «لايحل لامرأة تؤمن بالله واليوم الآخر تسافر سفراً يكون ثلاثة أيام فصاعداً إلا ومعها أبوها أو ابنها أو زوجها أو أخوها أو محرم منها» ([1]) يعنی چه په الله او په ورځ د آخرت ايمان راوړی نو د هغه ښځې دپاره د درې ورځو يا ددې نه زيات سفر جائز نه دې.مګر دا چه دې سره ددې پلاريا خوئي يا ددې خاوند يا ددې رور يا ددې محرم وی.ددې حديث نه هم معلومه شوه.چه بغير د محرم د ښځې دپاره سفر کول جائز نه دی.اګرچه هغه سفر د حج وی

② دويم دليل دا دې.چه بغير د محرمه په ښځه باندې د فتنې ويره ده.اوکله چه دوی ګنړے شی.نودوی د عقل په اعتبار سره ناقصې هم دی.او د دين په اعتبار سره هم ناقصې دی.نو په فتنه کښې به نوره هم اضافه اوشی.هم دا وجه ده.چه د سړی دپاره د پردې ښځې سره خانله والې حرام دې.اګرچه دغه ښځې

[1] ) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه البزار في مسنده والدارقطني في سننه (۲/۲۲۲) رقم ۳۰)_

سره بله ښځه هم موجود وی.ځکه چه اول یوه فتنه وه.او اوس دوه فتنې شوې .نو حاصل دا شو.چه بغیر محرمه د درې ورځو په سفر د ښځې دپاره وتل جائز نه دی.

**جوازالخروج في أقل من مسافة السفر>** البته که د ښځې او مکې په مینځ کښې د درې ورځو نه کم مسافت وی.نو د ښځې دپاره بغیر محرمه او بغیر خاونده حج ته تلل جائز دی.ځکه چه شریعت اسلامی بغیر محرمه ښځې ته د سفر د مسافت نه په کمه اندازه د وتلو اجازت ورکړې دې.او په دومره لږه موده کښې د فتنې ویره هم نشته.

## د میقات تعریف اوځایونه

> وَالْمَوَاقِيتُ الَّتِي لَا يَجُوزُ أَنْ يُجَاوِزَهَا الْإِنْسَانُ إِلَّا مُحْرِمًا هغه (ځایونه) چه جائز نه دی چه تیر شی د هغې نه انسان مګر په حالت داحرام کښې

**حل اللغة >** ① **مواقیت جمع میقات:** معین وخت

**تشریح> الربط بما قبله>** تراوسه پورې ددې بیان اوشو.چه حج په چا فرض دې او په چا نه دې.اود حج د فرضیت کوم کوم شرطونه دی.اوس په دې فصل کښې ددې بیان کیږی.چه د حج شروع به د کوم ځائې نه کیږی.

**معنى المواقيت>** مواقیت جمع د میقات ده.اومیقات د مقرر وخت دپاره راځی.خو دلته مجازاً د ځائې دپاره استعمال شوې دې.اوس دلته د مواقیت نه هغه ځایونه مراد دی.د کومو نه چه بغیر داحرام نه تیریدل جائز نه دی.او مواقیت پنځه دی.

> لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ ذُو الْحُلَيْفَةِ، وَلِأَهْلِ الْعِرَاقِ ذَاتُ عِرْقٍ . وَلِأَهْلِ الشَّامِ الْجُحْفَةُ، وَلِأَهْلِ نَجْدٍ قَرْنٌ، وَلِأَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمُ د مدینې د خلقودپاره ذوالحلیفه اود عراق د خلقو دپاره ذات عرق، اودشام دخلقو دپاره جحفه اود نجد د خلقودپاره قرن اود یمن دخلقو دپاره یلملم

**تشریح> المواقيت الخمسة>** ① د مدینې د خلقو میقات ذوالحلیفه دې.حلیفه د حلفة تصغیر دې.دلته ورانده یوه ونه وه.او اوس پکښې جمات جوړ شوې دې.دا د مدینې منورې نه شپږ میله لرې دې.② د عراقیانو دپاره ذات عرق میقات دې.دا د مکې مکرمې نه په دوه ځلویښت میله کښې پروت دې.حضرت عمر رضی الله عنه د کوفې او بصره د فتح کولو نه پس هم دا ځائې میقات مقرر کړې وو.

**السوال>** خو په دې باندې اعتراض کیږی.چه (هکذا وقت رسول الله ﷺ هذه المواقيت) ځنګه تیک دی.حالانکه د نبی ﷺ په وخت کښې عراق فتح شوې نه وو.

**جوابه >** ددې جواب دا دې.چه نبی ﷺ ته د وحی په ذریعه دا خبر ورکړې شوې وو.چه شام او عراق به فتح کیږی.او عراق به د شام پشان دارالاسلام وی. ددې وجې نبی ﷺ د عراقیانو او شامیانو دپاره میقات مقرر کړې وو.③ د شامیانو میقات جحفه ده. هم دا د مصریانو میقات دې.ددې ځائې نه مکه ۸۲ میله لرې ده.او مدینه منوره درې منزله او ،بحر قلزم، شپږ میله لرې دې.④ د نجدیانو میقات،قرن، دې.⑤ د یمنیانو میقات یلملم دې.دا د مکې نه د جنوب په طرف دیرش میله لرې دې.

**دلائلها>** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی .چه مواقیت د احادیثو نه ثابت دی.د ذات عرق نه سوې د باقی څلورو میقاتونو ثبوت په صحیحینو کښې دې.اوذات عرق ثبوت په مسلم او ابوداود کښې دې. په صحیحینو کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حدیث دې.چه (أن رسول الله ﷺ وقت لأهل المدينة ذا الحليفة

ولأهل الشام الجحفة ولأهل نجد قرن المنازل ولأهل اليمن يلملم هن لهن ولمن أتى عليهن من غير أهلهن من أراد الحج والعمرة ومن كان دون ذالك فمن حيث شاء حتى أهل مكة من مكة) يعني رسول الله ﷺ مقرر کړی دی.د مدينې د خلقو دپاره ذوالحليفه اود شاميانو دپاره جحفه اود نجديانو دپاره قرن منازل اود يمنيانو دپاره يلملم دا د دوی دپاره دی اود هغه چا دپاره چه په دوی باندې راخی سوې د دوی نه څوك چه اراده د حج او د عمره لری.اود دوی نه علاوه چه څوك په دې راشی.نو د كوم ځائې نه چه ئې خوښه وی.تردې چه د مكې دخلقو دپاره مكه ده.چه ددې نه دې احرام تړی.

**فائدة التاقيت** علامه مرغيناني رحمه الله په هدايه کښې فرمائيلی دی.چه ددې ميقاتونود مقرر كولو فائده دا ده.چه چه ددې ميقاتونو نه د احرام تاخير منع دې.دا مطلب نه دې.چه ددې ميقاتونو نه وړاندې احرام نشی تړلې.ځکه چه د ميقات نه وړاندې احرام تړل په اتفاق سره جائزدې.

**په ميقاتونو باندې د احرام د تقديم حكم**

| فَإِنْ قَدَّمَ الْإِحْرَامَ عَلَىٰ هَٰذِهِ الْمَوَاقِيتِ جَازَ که وړاندې ئې کړلو احرام په دې ميقاتونو جائز دې. |
|---|

**تشريح** **جوازتقديم الإحرام علي الميقات** مسئله وړاندې بيان شوې ده.چه د آفاقي دپاره ميقات ته په رسيدو احرام تړل واجب دی.ددې دا مطلب هيڅ كله نه دې.چه د ميقات نه وړاندې احرام تړل جائز نه دی.كه يو كس د خپل كور نه احرام اوتړلو.نوجائزده.بلكه غوره ده.

**دليله** دليل دا دې.چه دالله تعالى د قول( وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ)کښې تفسيرونه شوی دی.يو تفسيردا شوې دې.چه د حج اوعمرې دپاره دخپل وطن نه احرام اوتړئ.اوپوره ئې كړئ.هم دا تفسيرد حضرت علي اوعبدالله بن مسعود نه منقول دې.ددې تفسير نه معلومه شوه.چه احرام په ميقاتونو باندې مقدم كول جائز دې.

**وجوه تقديم الاحرام على المواقيت** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلی دی چه په ميقاتونو باندې د احرام وړاندې كول افضل دی.① اول خو ددې وجې چه په آيت (وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ) كښې د آيت تفسير په دې سره شوې دې.② بله خبره دا ده.چه د كور نه احرام تړلو كښې مشقت زيات دې.اوچه په كوم عبادت كښې مشقت زيات وی.هغه افضل وی.لكه چه په حديث كښې راغلی دی.(أفضل العبادات أحمضها) عبادت هغه غوره دې.چه په كوم كښې مشقت زيات وی.③ دريمه خبره دا ده.چه په دې كښې د بيت الله تعظيم ډيرزيات دې.اود حج او عمرې مقصد تعظيم د بيت الله دې.نود احرام په تقديم كښې په دې تعظيم كښې زياتوالي دې.

**فضل تقديم الإحرام بشرط الإجتناب عن المحظورات** دامام ابوحنيفه رحمه الله نه يوروايت دا هم دې.چه په ميقات باندې د احرام تقديم په هغه صورت كښې افضل دې.چه د سړی په خپل نفس باندې قابووی.چه دې به څه ناجائز كار اونكړی.كه دا قابو ئې نه وی.نوبيا ميقات ته په راررسيدو د احرام تړل غوره دی.

**په ميقات كښې د دننه خلقو ميقات**

| وَمَنْ كَانَ بعد الْمواقيت فميقاته الحل ) اوڅوك چه وی دننه په ميقات كښې نو ميقات دده زمين حل دې. |
|---|

**تشريح** **إحرام المكي من الحل** كوم كس په ميقات كښې دننه اوسيدونكې وی.نودده د احرام تړلو

خائې زمين حل (بهرد حرم) دې.اود «حل» نه هغه حصه مراد ده.کومه چه د افاقي خلقو د ميقاتونو او حرم په مينځ کښې ده.

**دليله**> دليل دا دې.چه وراندې تير شوی دی.چه د حج يا عمرې اراده کونکو دپاره د خپل وطن نه احرام ...ې جائز دی.اودده وطن چونکه په ميقات کښې دننه دې.نوخکه دده دپاره په ميقات کښې دننه يعنی د زمين حل نه احرام ترل دی.اوچونکه دده دپاره د خپل وطن نه احرام ترل جائز وو.خکه چه په زمين حل کښې اوسيږی.نوچه د کوم خائې نه ئې خوښه وی.احرام ترلې شی.خکه چه د ميقات دننه نه واخله تر حرم مکې پورې چه کوم حدود دی.دا تول يو خائې دې.

**دمکې د حج او عمرې داحرام خائونه**

| وَمَنْ كَانَ بِمَكَّةَ اوخوك چه وی دننه په مکه کښې فَمِيقَاتُهُ فِي الْحَجِّ الْحَرَمُ نوميقات د ده په حج کښې حرم دې وَفِي الْعُمْرَةِ الْحِلُّ اوپه عمره کښې زمين حل دې |
|---|

**تشريح**> **ميقات المكي للحج الحرم وللعمرة الحل** > ① صورت د مسئلې دا دې.چه کوم کس په مکه کښې موجود وی.برابره ده که هغه د مکې اوسيدونکې وی.اوکه وختی طور پکښې ديره وی .نود حج کولو په صورت کښې د هغه د احرام ترلو ميقات حرم دې.يعنی د حرم په حدودو کښې چه د کوم خائې نه ئې خوښه وی.احرام دې اوترې. ②اوکه د عمرې احرام ترې.نود حرم د حدودو نه دې بهر شی.چه د زمين حل نه دې احرام اوترې.اود عمرې ارکان دې ادا کړی.

**دليل ميقات الحج**> دليل دا دې.چه نبی ﷺ د حجة الوداع په موقع صحابه کرامو ﷺ ته فرمائيلی وو.چه په تاسو کښې چا خان سره هدی نه وی راوستې.هغه دې عمره اوکړی.اوحلال دې شی.نوهغوی هم داسې اوکړلو.بيا چه کله د ترويه ورځ شوه.نونبی ﷺ صحابوﷺ ته حکم اوکړلو.چه په مکه کښې دننه احرام اوترې.هغوی ته ئې د مکې نه د وتلو حکم نه وو کړې. [1] ددې نه معلومه شوه.چه کوم کس په مکه کښې وی.د هغه دپاره په مکه کښې د حج دپاره احرام ترل جائز دی.

**دليل ميقات العمرة**> بيادې دا خبره ښکاره وی.چه حضرت عائشې ﷺ هم د نورو صحابوﷺ سره د عمرې دپاره احرام ترلې وو.خود هغې د حيض وينه راغله.نو نبی ﷺ ورته حکم اوکړلو.چه د عمرې احرام پرانيزه.بيا چه کله د ترويه ورځ راغله.نو د حج د احرام حکم ئې ورته ورکړلو.بيا چه کله د حج نه فارغ شول.نوحضرت عائشې ﷺ عرض اوکړلو.يا رسول الله ﷺ (**تنطلقون بحجة وعمرة وأنطلق بحج فأمر عبدالرحمن بن ابي بكر ﷺ أن يخرج معها إلى التنعيم فاعتمرت بعد الحج**) يعنی حضرت عائشې ﷺ عرض اوکړلو.يارسول الله ﷺ تاسو او ستاسو صحابۍ حج اوعمره دواړه اوکړل.او واپس کيږئ. او ما صرف حج اوکړلو.او خم.نو نبی ﷺ د ام المؤمنين ﷺ ارمان پوره کولو دپاره ددې رور حضرت عبدالرحمن بن ابی بکر ﷺ ته حکم اوکړلو.چه په خور باندې د مقام تنعيم نه عمره ادا کړه. [2] يعنی د عمرې دپاره د مقام تنعيم نه احرام اوتړه.اوتنعيم د حدود د حرم نه بهر زمين حل دې.ددې نه معلومه شوه. چه د عمرې دپاره به زمين حل ته خی.هلته نه به احرام ترې.اوبيا به حرم ته داخليږی.اوعمره به کوی.

[1] ) من حديث جابر ﷺ أخرجه مسلم في الحج رقم ۱۳۹ والبخاري في الحج باب ۸۲ وأحمد في المسند (۳/۳۱۸ ، ۳۷۸)_

[2] ) من حديث عائشة رضى الله عنها أخرجه البخاري في الحج باب ٦٣ ومسلم في الحج رقم ۱۳۲ وأبوداود في المناسك باب ۲۳ وأحمد في المسند (٦/۱۲٤)_

**الدليل الثاني العقلي للمسئلتين**< دویم دلیل دا دي.چه دحج او عمرې دپاره څه سفرمتحقق کول پکار دی.اوس مونږ اوکتل.چه حج په میدان عرفات کښې ادا کیږي.اومیدان عرفات په حل کښې دي.نوځکه د حج احرام د حرم نه تړل پکار دی.چه یو قسم سفر متحقق شي.یعنی چه احرام اوتړي.اود حرم نه زمین حل ته تلل متحقق شي.اوچونکه عمره ادا کولې شي په حرم کښې،نو ددې وجې د عمرې احرام دپاره دې زمین حل ته لاړ شي.چه یو قسم سفر متحقق شي.

**فضل الإحرام من التنعيم**< هسې خو د عمرې احرام په زمین حل کښې چه د کوم ځائې نه نې خوښه وی.تړلې شي.خو د مقام تنعیم نه د عمرې احرام تړل افضل دی.چه په پوره شان د نبی ﷺ د حدیث اتباع اوشي.ځکه چه حضرت عائشي ﷺ ته هم د مقام تنعیم نه د عمرې دپاره د احرام تړلو حکم شوې وو.والله اعلم بالصواب

## د احرام تړلو دپاره د غسل یا اودس کول

| وَإِذَا أَرَادَ الْإِحْرَامَ اغْتَسَلَ أَوْتَوَضَّأَ وَالْغُسْلُ أَفْضَلُ اوکله چه اراده اوکړی.د احرام نو غسل دې اوکړی،یا دې اودس اوکړي.اوغسل افضل دې. |
|---|

**تشريح**< **معني الإحرام لغةً واصطلاحاً**< دمواقیت د ذکر نه پس دهغه احرام تړلو طریقه بیانوی.کوم چه په میقاتونو باندې تړلې شي.احرام په لغت کښې په حرمت کښې داخلیدو ته وائی.اوپه اصطلاح دفقهاؤ کښې په خپل ځان باندې مباحات حرامول ددې دپاره چه په عبادت د حج یا په عبادت د صلاة کښې داخل شي. په عباداتو کښې حج او صلاة دواړه داسې عبادتونه دی.چه ددې دپاره تحریم او تحلیل دی.اوروژه او زکاة دواړه داسې عبادتونه دی.چه ددې دپاره تحریم او تحلیل نشته.

**الغسل أوالوضوء قبل الإحرام**< کله چه یو کس د احرام تړلو اراده اوکړي.نوهغه دې اول غسل اوکړی یا دې اودس اوکړي.خوغسل کول افضل دی.

**دليله**< ځکه چه رسول الله ﷺ د احرام دپاره غسل کړې وو. ([1])

**السوال**< که څوك دا سوال اوکړي.چه غسل افضل دې.نوبیا پکار ده چه اودس ددې قائم مقام نه وي.حالانکه امام قدوری رحمه الله فرمائی.که غسل نه کوی نو اودس دې اوکړی.

**الجواب**< ددې جواب دا دې.چه د احرام نه وړاندې د غسل کولو حکم د وجوب د وجې نه دې.بلکه د پاکۍ حاصلولو دپاره دې.

**تائيده في ضوء المسئلة**< هم دا وجه ده.چه د احرام تړلو نه وړاندې د ښځې دحیض یا نفاس وینه راغله. نو هغې ته به هم د غسل حکم کولې شي. اګرچه په دې غسل د ښځې فرض نه ادا کیږي.ځکه چه وینه نه وی اودریدلې.نوددې نه وړاندې داغسل هغه نشي پاکولې.نوچه د احرام نه وړاندې غسل کول د وجوب د وجې نه دې.بلکه د پاکۍ حاصلولو دپاره دې.نواودس ددې قائم مقام ګرځیدې شي.لکه په جمعه کښې که غسل اونکړي.نواودس ددې قائم مقام ګرځي.

**فضل الغسل ودلائله**< خوافضل هم غسل کول دی.① اول ددې وجې چه په غسل کښې د اودس په نسبت نظافت زیات دې.② دویم ددې وجې چه نبی ﷺ پخپله د احرام دپاره غسل کړې وو.

---

[1] ) من حديث زيد بن ثابت رضي الله عنه اخرجه الترمذي في الحج باب ١٦ رقم ٨٣٠ )۔

## د احرام دپاره د جامو بدلول

(وَلَبِسَ ثَوْبَيْنِ جَدِيدَيْنِ أَوْغَسِيلَيْنِ إِزَارًاوَرِدَاءً او وادې غوندی دوه جامې نوې يا وينځلې شوې يو لنگ اوبل څادر

**حل اللغة** > ① **غسيلين:** غسيل په معنی دَ **مغسول:** وينځلې شوې

**تشريح** > **لبس ثوبين جديدين أو غسيلين** > مسئله دا ده.چه دغسل نه پس دې دوه جامې لنګ اوڅادر واچوی.دواړه جامې که نوې وی اوکه وينځلې شوې وی.لنګ به د نامه نه واخله ترلاندې پنډو پورې وی. اوڅادربه داسې وی.چه په شا دواړو اوږو اوسينه باندې و .

**دلائله** > ①دليل دا دې.چه نبی ﷺ په احرام کښې هم دا دوه جامې اچولې وې. (١)

② عقلی دليل دا دې.چه د محرم دپاره ګنډلې شوې جامې اغوستل ممنوع دی.اودا هم معلومه ده.چه د ګرمۍ اويخنۍ لرې کول هم ضروری دی.نودا دواړه خبرې هم په دې صورت کښې حاصليدې شی.کوم چه مونږ بيان کړل.څکه چه لنګ اوڅادر اچولو سره د ګنډلې شوو جامو د اغوستلو نه هم بچ شو. اوډګرمۍ اويخنۍ نه هم محفوظ شو.

**أفضلية الثوبين الجديدين** > صاحب دهدايه رحمه الله په هدايه کښې فرمائی.چه وينځلې شوې جامې اګرچه کافی دی.خو نوې جامې اچول افضل دی څکه چه دا پاکۍ ته زياتې نزدې دې.څکه تراوسه پورې دې ته ظاهری پليتی نه ده لګيدلې.

## د احرام ترلو دپاره دخوشبو لګول

وَمَسَّ طِيبًا إِنْ كَانَ لَهُ صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.او اودې لګوی خوشبوئی که وی دده سره،

**حل اللغة** > ①**مس: باب (ن،س) مس يمس مسًا** : لاس لګول ②**طيبًا : تطيب باب تفعيل:** خوشبو لګول

**تشريح** > **مس الطيب ذات جرم** > امام قدوری رحمه الله فرمائی.که وی ورسره نو خوشبوئی دې اولګوی وراندې د احرام نه،

**دلائله** > دليل دا دې.چه په صحيحينوکښې دی.چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.ما به رسول الله ﷺ ته د احرام ترلو دپاره خوشبوئی لګوله.يعنی اول به د نبی ﷺ په بدن پورې خوشبوئی اولګولې شوه.اوبيا به نبی ﷺ احرام اوترلو. (٢)

**طريق الإستدلال** > صاحب دعنايه رحمه الله ليکلی دی.په حديث د عائشې رضي الله عنها کښې داسې خوشبوئی مراد ده.چه د هغې اثر به د احرام لګولونه پس هم باقی وو.څکه چه په بعضې رواياتو کښې دا الفاظ هم دی .(ولقد رأيت وبيص الطيب في مفارق رسول الله ﷺ بعد إحرامه) يعنی عائشه رضي الله عنها فرمائی.چه ما به د رسول الله ﷺ د ويختو په لاره کښې د خوشبوئی اثر ليدلو.پس د احرام ترلو نه،نو ددې حديث نه ثابته شوه. چه داحرام نه وراندې داسې خوشبوئی لګول چه د هغه ذات د احرام نه پس هم باقی وی.مکروه نه دی

(١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه البخاری في الحج باب ٢٣ .

(٢) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه البخاری في الحج باب ١٨ رقم ١٥٣٩ ومسلم في الحج رقم ٤٥ وابوداود في المناسك باب ١٠ رقم ١٧٤٤٦ والترمذی في الحج باب ٧٧ والنسائی في المناسك باب ٤١ وابن ماجه في المناسك باب ٧٠.

② دویم دلیل دا دي.چه منع شوي خو د احرام تړلو نه پس خوشبوئي لګول دي.کومه خوشبوئي چه د احرام نه وړاندي لګیدلي وی.دهغه نه فائده اخستل ممنوع نه دی.اوکومه خوشبوئي چه د احرام نه پس باقي وی.هغه خو د محرم تابع شوه.ځکه چه هغه د محرم په بدن پوري پیوسته وی.لکه چه خوشبوداري خپري وریږوري لګیدلي وی.بهرحال باقي خوشبوئي تابع ده.اود تابع دپاره څه حکم نه وی.نودا خوشبوئي په منزله د عدم شوه.

**مذهب محمد** ﴿ د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.چه د داسي خوشبوئي لګول چه د هغي ذات اوجوثه د احرام نه پس باقي وی مکروه دی.لکه مشك اوتینګك عطرلګول،هم دا د امام مالك اوامام شافعي رحمهما الله قول دي.

**دلیله** ﴿ دامام محمد رحمه الله دلیل دا دي.چه د داسي خوشبوئي لګولو په صورت کښي د احرام تړلو نه پس هم د هغي نه فائده اخستي شی.حالانکه د احرام تړلو نه پس د خوشبو استعمال منع دي.

## د احرام د دووه رکعتونوحکم

| وَصَلّى رَكْعَتَيْن اومونځ دي اوکړی دوه رکعته. |
|---|

**تشریح** ﴿ **الرکعتين بعد الاحرام** ﴿ مسئله دا ده.چه دوه رکعته مونځ دي اوکړی.خودا دوه رکعته به په مکروه وخت کښي نه کوی.او که د احرام تړلو نه وړاندي ئي فرض مونځ اوکړلو.نوهغه به ددي دوو رکعتونو نه کافي شی.

**دلیله** ﴿ دلیل دا دي.چه حضرت جابر رضي الله عنه فرمائی.رسول الله ﷺ د ذوالحلیفه په مقام د احرام تړلو نه وړاندي دوه رکعته نفل کړی وو.[1]

**عدم ذکر الرکعتين في حديث جابر رضي الله عنه** ﴿ علامه ابن همام رحمه الله فرمائی.چه په حدیث د جابر رضي الله عنه خو کښي دا مشهور دی.چه نبی ﷺ د ذوالحلیفه په جمات کښي مونځ کړي وو.خود رکعتونوتعداد ذکرنه دي.هم دا خبره ملاعلی قاری رحمه الله په شرح نقایه کښي فرمائیلي ده. لکه چه دنبی ﷺ دذوالحلیفه په جمات کښي مونځ کول ثابت دي.خودوه رکعته ذکر نه دی.

**ذکرالرکعتين في حديث إبن عباس رضي الله عنهما** ﴿ البته په ابوداود کښي د ابن عباس رضي الله عنهما په حدیث کښي د دوو رکعتونو ذکر هم شته.د ابن عباس رضي الله عنهما الفاظ دا دی.**(قال خرج رسول الله حاجاً فلما صلى في مسجد بذی الحليفة ركعتين فأوجب في مجلسه)** حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی.چه رسول الله د حج په اراده باندي اووتلو کله چه ئي د ذوالحلیفه په جمات کښي دوه رکعته اوکړل.نوهم په دغه ناسته کښي ئي حج واجب کړلو.(یعني احرام ئي اوتړلو.ددي نه دا ثابته شوه.چه د احرام نه وړاندي دوه رکعته کول سنت دي.

**مايقرأ في ركعتي الإحرام** ﴿ په دي دواړه رکعتونو کښي ورته د فاتحه لوستلو نه پس اختیار دي.چه د قرآن پاك کومه حصه وائی.البته افضل دا دی.چه په اول رکعت کښي د سورة فاتحه نه پس سورة الکافرون او په دویم رکعت کښي د سورة فاتحه نه پس سورة اخلاص اووائی.په دي طریقه به د نبی ﷺ د فعل برکت حاصل شی.

---

[1] غربه الزيلعي من حديث جابر رضي الله عنه في ذكرعدد الركعات ثم ذكرحديث ابن عمر رضي الله عنهما عند مسلم في الحج باب التلبية) قال كان رسول الله ﷺ يركع بذى الحليفة ركعتين ثم إذا استوت به الناقة قائمة عند مسجد ذى الحليفة أهل بهؤلاء الكلمات الحديث (نصب الراية (٣/٢٥)_

## د حج د نیت په وخت کښې دعا لوستل

قَالَ: اللّٰهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ فَيَسِّرْهُ لِي وَتَقَبَّلْهُ مِنِّي صاحب د قدوری رحمه الله فرمانی. اووائی دې اې الله زه حج د اراده کوم د حج ته ئې آسان کړې ماته او قبول ئې کړې زما نه

**تشریح: الدعاء عند الإحرام** صاحب دقدوری رحمه الله فرمانی. چه دوه رکعته اوکړی. اوکله د حج د احرام اراده اوکړی.نو دا دعا دې کوی.چه اې الله زه اراده کوم د حج ته ئې آسان کړې ماته او قبول نېکړې مانه،

**وجه دعاء تسهيل الحج** د آسانتیا دعا خو ددې وجې کوی.چه حج یو عظیم عبادت دې. اوپه دې کښې ډیر مشقت دې.مشقت خکه زیات دې.چه حج په یو وخت کښې نه ادا کیږی.بلکه د اتمې ذی الحجه نه واخله تر دیارلسمې خوارلسمې ذی الحجه پورې په مختلف وختونوکښې ادا کیږی.او په یوځائې کښې نه بلکه په مختلفو ځایونو او مقاماتو کښې ادا کیږی.کله په میدان عرفات کښې د کولې د آسمان لاندې قیام وی.اوکله د صفا مروه په غرونو چکرې لګول وی.شپه په مزدلفه کښې تیره شی.نو ورځ د منی په کانړیج خوړونو کښې تیره شی.کله په رش اوبیړه کښې د شیطانانو ویشتل وی اوکله په سخته ګرمی کښې د بیت الله نه طواف وی.هرکله چه په حج کولوکښې دومره سختیانې او مشقتونه دی.نو د حج فریضه په آسانتیا او سهولت سره ادا کولو دپاره دعا کول مستحب دی.

**وجه دعاء قبول الحج** اود قبولیت دعا دې خکه کوی.چه دهرعبادت قبلیدل ضروری نه دی.هم دا وجه ده.چه د خانه کعبه د جوړولو په وخت کښې حضرت ابراهیم او حضرت اسماعیل علیهما السلام به بار بار دا دعا کوله چه ﴿رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾

**وجه عدم دعاء التيسير في الصلاة** البته د فرض مونځونو ادا کولو په وخت کښې داسې دعا منقول نه ده.خکه چه عام طور د مونځ ادا کول آسان دی.نوچونکه د مونځ ادا کول آسان دی.نود آسانتیا دعا کولو ته څه ضرورت نشته.

## د تلبیه حکم

ثُمَّ يُلَبِّي عَقِيبَ صَلَاتِهِ صاحب د ،قدروی، رحمه الله فرمانی.چه بیا دې تلبیه اووائی.پس د مانځه خپل نه،

**التلبية عقيب الصلاة** چې کله دوه رکعته د احرام اوکړی نو د هغې نه پس به تلبیه اووائی دا تلبیه وئیل سنت دی

**دليله** دلیل دا دې چه نبی صلی الله علیه وسلم تلبیه وئیلې وه پس د مانځه خپل نه، (۱)

## د حاجی مفرد په تلبیه کښې نیت

فَإِنْ كَانَ مُفْرِدًا بِالْحَجِّ اوکه وی په حج خپل کښې مفرد نو نیت به کوی په تلبیه خپله کښې دحج نوی بِتَلْبِيَتِهِ الْحَجَّ

**حل اللغة** (۱) **مفرد:** حج افرادکونکې ]

---

(۱) من حديث ابن عباس رضي الله عنه اخرجه الترمذی في الحج باب ۹ رقم ۸۱۹ والنسائی في المناسك باب ۵۶)۔

**تشریح ﴿ نية المفرد بالحج ﴾** مسئله دا ده.که یوکس حاجی مفرد وی.یعنی صرف د حج ادا کولو اراده ئې وی.د عمرې اراده ئې نه وی.نودې به په خپله تلبیه کښې صرف دحج نیت کوی.
**دليله ﴾** دلیل دادې چه حج عبادت دې.اود اعمالو اوعباداتوصحت په نیت باندې موقوف دې.

**دتلبیه الفاظ اوپه دې کښې کمې زیادت**

وَالتَّلْبِيَةُ أَنْ يَقُولَ:اوتلبیه دا ده.چه اووائی، لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ،لَبَّيْكَ حاضر یم اې الله حاضر یم لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ تا سره څوك شريك نشته.حاضر یم إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ بیشکه حمد اونعمت ستا دپاره دې وَالْمُلْكَ «اوبادشاهی هم ستا دپاره ده.لَا شَرِيكَ لَكَ».. نشته څوك شريك ستا ،

**تشریح ﴿ ألفاظ التلبية وإعراب كلمة إن ﴾** د مسنون تلبیه الفاظ دا دی.«لبيك اللهم لبيك لبيك لا شريك لك لبيك إن الحمد والنعمة لك والملك لا شريك لك»

صاحب دهدایه رحمه الله فرمائی.چه په «إن الحمد» کښې په الف باندې کسره ده فتحه نه غوره ده.ځکه چه د کسره په صورت کښې به دا جمله مستقله شی.د ما قبل سره به ئې څه تعلق نه وی.اود فتحه په صورت کښې به دا د اولنۍ کلمې صفت شی.
**نداء إبراهيم عليه السلام لحج البيت ﴾** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه تلبیه د حضرت ابراهیم عليه السلام د نداء د قبولیت جواب دې.مشهوره واقعه ده.چه کله حضرت ابراهیم عليه السلام د خانه کعبه د جوړولو نه فارغ شو.نوالله تعالی ورته حکم اوکړلو.چه دحج اعلان اوکړه.ابراهیم عليه السلام عرض اوکړلو.اې زما معبوده زما آواز به څنګه «ټولوخلقوته» اورسی.الله تعالی ورته اوفرمائیل.ته آواز اوکړه.آواز رسول زما کار دې.حضرت ابراهیم عليه السلام عرض اوکړلو.اې ربه زه څه آواز اوکړم.الله تعالی اوفرمائیل.دا اووایه.
«ياأيها الناس كتب عليكم الحج فحجوا البيت العتيق» اې خلقو په تاسو باندې حج د بیت الله فرض شو.حج اوکړئ د کور پخوانی، د حضرت ابراهیم عليه السلام د خولې نه دا الفاظ وتل وو.چه دا آواز زمکې او آسمان په مینځ کښې چه څومره انسانان وو.ټولو ته اورسیدلو.تردې چه دپلارانو په شاګانو او د میندو په رحمونو کښې چه څوك وو. هغوی ته دا آواز اورسیدلو.چا یوځل جواب ورکړلو.چا دوه ځله اوچا ددې نه زیات،نو چا چه څو ځله جواب ورکړې وی.هغه ته به انشاءالله دهغه هومره حج کولو سعادت ملاویږی.«الله دې اوکړی.چه زما شمار هم په دې کسانو کښې شوې وی. آمین»
د قرآن پاك په دې آیت کښې هم دا واقعه ذکر ده﴿ وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ أَنْ لَا تُشْرِكْ بِي شَيْئًا وَطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْقَائِمِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ ۝ وَأَذِّنْ فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ ۝﴾
اوکله چه مونږ برابرکړلو.ابراهیم عليه السلام ته ځائې د ددې کور،چه مه شریکوه ما سره هیڅ څیز اوپاك کړه کور زما دپاره د طواف کونکو،اوقیام کونکواورکوع او سجده کونکو،اواعلان اوکړه په خلقو کښې د حج چه راځی ستا طرف ته پیدل اوپه هرکمزوری مانده اوښه د لرې لارو نه.(ترجمه شیخ الهند)

وَلَا يَنْبَغِي أَنْ يُخِلَّ بِشَيْءٍ مِنْ هَذِهِ الْكَلِمَاتِ او مناسب نه دی چه کمې اوکړی د څه څیز په دې کلماتو کښې،

**تشریح ﴿ كراهة النقصان في كلمات التلبية ﴾** فاضل مصنف رحمه الله فرمائی.چه د تلبیه په نقل شوو الفاظو کښې به کمې نه کوی.

**دليله** > ځکه چه دا الفاظ د ټولو راويانو په اتفاق سره نقل شوي دي.نوځکه په دې کښې کمې کول مناسب نه دي.

فَإِنْ زَادَ فِيهَا جَازَ او که زياتې ئې اوکړلو.نوجائز دي.
خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ خلاف ثابت دې د امام شافعي فِي رِوَايَةِ الرَّبِيعِ رَحِمَهُ اللَّهُ عَنْهُ په روايت د ربيع رحمه الله کښې د هغوی نه.

**تشريح** > **حكم الزيادة في كلمات التلبية** > اوکه څه کلمات ئې زياتي کړل.نوجائز دی.(1)

**دلائله** > ① نقلي دليل دا دې.چه جليل القدر صحابو رضي الله عنه لکه عبدالله بن مسعود،عبدالله بن عمراوابوهريره رضي الله عنه د تلبيه په الفاظو باندې زيادت کړې دې.دابن عمر رضي الله عنهما په حديث کښې ددې الفاظو زيادت منقول دې.(لبيك وسعديك والخير بيديك والرغباء إليك) دابن مسعود رضي الله عنه په حديث کښې دا الفاظ زياتي دی.(لبيك عدد التراب) او د ابوهريره رضي الله عنه په حديث کښې د (إله الحق لبيك) الفاظ راغلي دی.بهرحال د تلبيه په ذکرشوو الفاظو باندې زيادت منقول دې.

② دويم دليل دادې.چه د تلبيه مقصود د الله تعالى ثناء اودخپلې بندګئ اظهار دې.نوپه کلماتوکښې زيادت ددې مقصودنه مانع نه دې.بلکه په دې مقصد کښې يوقسم زيادت دې.

### د تلبيه په وئيلو سره محرم ګرځيدل

فَإِذَا لَبَّى فَقَدْ أَحْرَمَ صاحب د قدوری رحمه الله فرمائي.اوکله چه تلبيه اووائي.نويقيناً دې محرم شو.

**تشريح** > **التلبية والنية شرطان للإحرام** > مسئله دا ده.چه کوم کس د احرام ترلو اراده اوکړله.چه ده نيت اوکړلو.اوتلبيه ئې اووئيله.نو دې محرم شو.صرف په تلبيه بغير د نيته، دغه شان صرف په نيت بغير د تلبيه نه محرم نه ګرځي.بلکه د محرم کيدو دپاره نيت او تلبيه دواړه ضروري دی.ځکه چه هيڅ عبادت د نيت نه بغير نه ادا کيږي.

**سبب ترک القدوري رحمه الله النية** > پاتې شوه دا خبره چه په دې مقام کښې امام قدوري رحمه الله د نيت ذکر ولې اونکړلو.نو ددې جواب دا دې.چه چونکه وړاندې د نيت شرطيت نه ددې قول په ضمن کښې اشاره شوې وه.چه (إني أريد الحج)نوځکه د دوباره ذکرکولو څه ضرورت نشته.د دويم ځيزذکر په راروان عبارت کښې راځي.

### ممنوعات د احرام

فَلْيَتَّقِ مَا نَهَى اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ مِنَ الرَّفَثِ وَالْفُسُوقِ وَالْجِدَالِ نوځان به ساتی دهغه څه نه چه منع کړی دی الله تعالى د رفث،فسوق اوجدال نه.

**تشريح** > **ممنوعات الإحرام** > مسئله دا ده.چه احرام اوتړي.نود هغه خبرو نه دې پرهيزکوی.دکومو نه چه الله تعالى منع کړې ده.لکه رفث فسوق اوجدال.

---

(1) **مذهب الشافعي رحمه الله**:- خوپه دې کښې د امام شافعي رحمه الله خلاف دې.په هغه روايت کښې کوم چه ربيع رحمه الله د هغوی نه نقل کړې دې.چه د تلبيه په الفاظو کښې زيادت کول جائز نه دي.

**دليله** خکه چه د الله تعالى ارشاد دي. ﴿فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ﴾ يعنى چا چه د حج په ورخو کښې په خان باندې حج فرض کړلو .نوهغه دې نه رفث کوی.اونه دې د فسوق ارتکاب کوی.اونه دې جګړه کوی.صاحب دهدايه رحمه الله فرمانيلى دى.چه په آيت کښې صيغه د نفى ده.خو مراد ترې نهى ده. يعنى دا کارونه مه کوئ.

**الأقوال الثلاثة في المراد من الرفث** پاتې شوه دا خبره چه په آيت کښې د درې کارونو نه څه مراد دى. ①نوفرمائى چه د ،رفث، نه مراد يا خوجماع ده.خکه چه د الله تعالى په قول﴿أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ﴾ کښې د ،رفث، نه مراد جماع ده.يعنى د روژې په شپو کښې ستاسودپاره د خپلو بيبيانو سره جماع کول حلال کړې شو. ②يا د ،رفث، نه مراد د ژړے ګنده اوفضول خبرې دى. ③د ښخو په موجودګئ کښې دجماع اود هغه څيزونو خبرې کول دى.کوم چه د جماع اسباب وى.

**المراد من الفسوق** اود فسوق نه مراد مطلق ګناهونه اومعاصى دى.ګناهونه اګرچه په ټولوحالاتو کښې حرام دى.خود احرام په حالت کښې سخت حرام دى.لکه د سرو دپاره د ريښمو جامے اغوستل په عامو حالاتو کښې هم حرامې دى.خود مانځه په حالت کښې زياتې حرامې دى.

**القولان في المراد من الجدال** اوجدال دا دې.چه دخپل ملګرى يا خادم سره جګړه اوکړى. ②اويا چا ونيلى دى.چه د جدال نه مراد دا دې.چه د مشرکانو سره د حج د وخت په تقديم اوتاخير کښې جګړه وکړى

| وَلَا يَقْتُلُ صَيْدًا)اونه دې قتلوى ښکار |
|---|

**تشريح** په حالت د احرام کښې د وحشى خناور قتلول هم حرام دى.که قتل په ذبح سره وى اوکه په بله طريقه وى. البته د اوبو خناورو ښکار جائز دې.

**دليله** دليل دا دې چه الله تعالى فرمانيلى دى. ﴿لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ﴾ يعنى هيڅ يوښکار مه قتلوئ په داسې حال کښې چه تاسو په حالت داحرام کښې ئې.اود وچې د خناورو د ښکار قيد ئې ددې وجې نه لګولې دې.چه د الله تعالى ارشاد دې. ﴿وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا﴾ کښې د دې صراحت موجود دې.يعنى په تاسو باندې د وچې د خناور ښکار حرام دې.ترڅوچه تاسو په حالت د احرام کښې ئې.

### ښکار طرف ته اشاره اوخودنه

| وَلَا يُشِيرُ إِلَيْهِ وَلَا يَدُلُّ عَلَيْهِ اونه به اشاره کوى دې ته اونه به خودنه کوى. |
|---|

**تشريح** - **حرمة الإشارة والدلالة إلى الصيد** مسئله داده.چه محرم دپاره نه ښکارته اشاره جائز نه ده.اونه په معنى دلالت کول.اشاره تقاضا کوى چه ښکار مخامخ موجود وى.اودلالت تقاضا کوى چه ښکار مخامخ موجود نه وى.ددلالت مثال به دا وى.چه محرم غيرمحرم ته اووائى. چه په فلانى ځائې کښې ښکار موجود دې.نودا دواړه خبرې د محرم دپاره ممنوع دى.

**دلائله** ①ددې دليل دا دې.چه حضرت ابوقتاده رضي الله عنه يوځل ځنګلى خر ښکار کړلو.دې په خپله غيرمحرم وو.خوملګرى ئې محرم وو.هغوى د دې خرغوښه اوخوړله.بيا نبى ﷺ ته ذدې خبر ورکړې شو. نونبى ﷺ صحابو رضي الله عنهم ته اوفرمانيل.آياتاسوښکارته اشاره کړې وه.هغوى عرض اوکړلو نه، نبى

ﷺ ورته اوفرمائیل.تاسو ورته خودنه کړې وه.هغوی عرض اوکړلو نه،نبیﷺ ورته اوفرمائیل.آیا تاسو ورسره بل څه مدد کړې وو؟هغوی عرض اوکړلونه،نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل. اوس په خوراك کښې څه باك نشته.بلکه کومه غوښه چه پاتې ده.دا هم اوخورئ. (۱) ددې حدیث نه معلومه شوه.چه د محرم دپاره اشاره،خودنه او هر قسم مدد کول ممنوع دی.

②دویم دلیل دا دې.چه دښکارځناور د خپل نفرت اود خلقو د نظرونو نه د لرې والی په وجه په امن کښې وی.اوذکر شوی څیزونه اشاره وغیره دا امن زائله کوی.حالانکه د چا امن ختمول حرام دی.نودا ذکر شوی څیزونه ځکه حرام دی.

## په حالت د احرام کښې د ملبوساتو ممانعت

| وَلَا يَلْبَسُ قَمِيصًا اونه دې اغوندی قمیص وَلَا سَرَاوِيلَ وَلَا عِمَامَةً اونه پرتوګ اونه پټکې وَلَا قلنسوة وَلَا قبـاءًاو نه ټوپئ او نه قباء وَلَا خُفَّيْنِ او نه موزې، إِلَّا أَنْ لَا يَجِدَ نَعْلَيْنِ البته دا چه نه مومی پنړې فَيَقْطَعُهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ نو کټ دې کړی دا لاندې د کعبینو(د قدم د مینځ هډوکی) نه. |
|---|

**حل اللغة** > ①**يلبس لبسًا(س)**: کپړې اغوستل ② **سراويل**: پاجامه

**تشريح** > **حرمة لبس المخيط من الثياب** > مسئله دا ده.چه د محرم دپاره ګنډلې شوې جامه اغوستل جائز نه ده.مثلاً قمیص، لنګ، پټکې، ټوپئ اوموزه وغیره،البته دا چه محرم سره پنړې نه وی.نوده دپاره دداسې موزو اچول جائز دی.چه د هغې د کعبینو نه لاندې حصه کټ شوې وی اودکعب نه مراد ګیټې نه ده. بلکه د قدم د مینځ هډوکے مراد دې.

**دليله** > دلیل دادې.(عن ابن عمر رضي الله عنهما قال رجل یارسول الله ﷺ ماتأمرنا أن نلبس من الثياب في الإحرام...

لاتلبسوا القمص ولا السراويلات ولا العمائم ولا البرانس ولا الخفاف إلا أن يكون أحد ليس له نعلان فليلبس الخفين وليقطع الخفين أسفل من الكعبين ولا تلبسوا شيأ مسه زعفران ولا ورس) (۲)یعنی ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی.چه یو سړی عرض اوکړو.اې دالله پیغمبره! تاسومونږ ته څه حکم کوئ.چه مونږ نې اغوندو د جامو نه چه مونږ په احرام کښې یو.نونبی ﷺ اوفرمائیل تاسو مه اغوندئ قمیصونه اونه پرتوګونه اونه پټکی اونه سړی اونه موزې مګردا چه وی یوکس چه نه وی د ده سره دوه پنړے نو وادې چوی موزې اوکټ دې کړی موزې لاندې د کعبینو نه ،اوتاسو مه اچوئ هغه څیز چه رسیدلې وی ورته زعفران اونه ګل ورس.(دا یو قسم ګیاه ده.چه د رنګ کولو په کار راځی) د دې حدیث نه معلومه شوه.چه د محرم دپاره د هغه جامو اچول ممنوع دی.کوم چه په متن کښې ذکردی.اوپه مخصوص حالت کښې دخاص قسم موزو اچول جائز دی.

**المراد من الكعب في باب الإحرام** > صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه د کعب دوه تفسیرونه شوی دی.①ګیټه یعنی د قدم دواړوطرفونو ته راوچت شوی هډوکی② دقدم په مینځ کښې دتسمې تړلو

---

(۱) من حديث أبي قتادة رضي الله عنه أخرجه البخاري في الحج باب ٦١ ومسلم في الحج رقم ٦٠ والترمذي في الحج باب ٤٠ رقم ٨٤٧ والنسائي في الحج باب ١٦٠ رقم ٢٦٥٠ وابوداود في الحج رقم ١٨٥٢ وابن ماجه في الحج رقم ٣٠٩٣ والدارمي في المناسك باب ٣٠)

(۲) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاري في الحج باب ٢١ ومسلم في الحج رقم ١ وابوداود في الحج باب ٣١ رقم ١٨٢٣ والترمذي في الحج رقم ٨٣٣ والنسائي في المناسك رقم ٢٤٩٩ وابن ماجه في الحج باب ١٩ رقم ٢٩٢٩ وأحمد في المسند (٢٩/٢) والدارمي في المناسك باب ٩).

خاني چرته چه دګوتو هډوکي راجمع کیږي.هشام دامام محمد رحمه الله نه هم دا روایت کړی دی.نودلته د کعب دویم تفسیر مراد دې.اوپه کتاب الطهارة کښې په (أرجلکم إلى الکعبین) کښې اولنے تفسیر مراد دې.

**د محرم دپاره د سر اومخ پټول**

| وَلَا يُغَطِّي رَأْسَهُ وَلَا وَجْهَهُ اونه دې پټوی سر خپل او نه مخ خپل |
|---|

**حل اللغة** ﴿۱﴾ **يغطي، تغطية:** پټول

**تشریح** ﴿ **تغطية وجه الرجل** ﴾ ﴿۱﴾ د محرم سړی دپاره خپل مخ اوسر پټول جائز نه دی.[1]

**دلائله** ﴿۱﴾ دلیل د ابن عباس رضي الله عنهما حدیث دې.(أن رجلاً وقصته راحلته وهو محرم فمات فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم إغسلوه بماء وسدر، وكفنوه في ثوبيه ولا تمسوه طيباً ولا تخمروا رأسه ولا وجهه فإنه يبعث يوم القيامة ملبياً) [2]يعنی یوسړی چه په حالت د احرام کښې وو.دهغه سورلۍ دهغه څټ مات کړلو.اومړ شو.نو نبی صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل.ده ته په هغه اوبو باندې غسل ورکړئ.چه د بیرے پاڼړې پکښې جوش شوی وی.اودې په خپلودواړوجامو کښې دفن کړئ.اوخوشبوئی پرې مه لګوئ.اوددہ سر مه پټوئ.او مه ئې مخ پټوئ.ځکه چه دې به د قیامت په ورځ تلبیه ویونکې راپاسی.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه دمحرم سړی دپاره د خپل مخ پټول جائز نه دی.

﴿۲﴾ دویم دلیل دا دې.چه ښځه په حالت د احرام کښې خپل مخ نه پټوی.حالانکه د هغې په مخ ښکاره کولو کښې فتنه ده.نوسړې (چه دده په مخ ښکاره کولو کښې فتنه هم نشته)به په طریق اولی سره مخ نه پټوی.

**د محرم دپاره د ویښتواو نوکونو کټ کول**

| (وَلَا يَمَسُّ طِيبًا)اونه به لګوی خوشبوئی |
|---|

**حل اللغة** ﴿۱﴾ **شعث:** دوړو وهونکوویښتو والا

**تشریح** ﴿ **عدم مس الطيب** ﴾ محرم به خوشبوئی نه لګوی.

**دلیله** ﴿ ځکه چه نبی صلى الله عليه وسلم فرمائیلی دی.(الحاج الشعث التفل) [3] د شین په فتحه او د عین په کسره،چه ویخته بیراوګردآلوده وی.او(تفل)د تاء په فتحه او فاء په کسره خوشبوئی نه لګول.یعنی حاجی هغه دی.چه ویخته ئې بیر وی.

| لَا يَحْلِقُ رَأْسَهُ وَلَا شَعْرَ بَدَنِهِ اونه به خرائی سر خپل اونه ویخته خپل، |
|---|

**تشریح** ﴿ **عدم الحلق** ﴾ اود خپل سر اوبدن ویخته به هم نه کټ کوی.

---

([1] **مذهب الشافعي** رحمه الله:- اوامام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د محرم سړی دپاره د خپل مخ پټول جائز دی.هم دا د امام مالك اوامام احمد رحمهما الله قول دې.

[2]) من حدیث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه مسلم في الحج رقم ۹۴ والنسائي في الحج باب ۹۷ رقم ۲۵۴۴ وابن ماجه في المناسك باب ۸۹ باب ۳۰۸۴)۔

[3]) من حدیث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه الترمذي في تفسیرسورة ۳ باب ۶ رقم ۳۱۹۷ وابن ماجه في المناسك باب ۶ رقم ۲۸۹۶)۔

دلیله> ① ځکه چه الله تعالی فرمائیلی دی.((وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ)) او تاسو خپل سرونه مه خرائی

| (وَلَا يَقُصُّ مِنْ لِحْيَتِهِ)اونه به کټ کوی ږیره خپله ولامن ظفرهٖ اونه به کټ کوی نوکان خپل |
|---|

تشریح> عدم حلق اللحیة> اوخپله ږیره به هم نه کټ کوی.

دلائله> ① ځکه چه دا د خریلو په معنی کښې دې.② اوددې وجې چه د ویختو خریل اوکټ کولو سره منه بیرسری توب لرې کیږی.کوم چه دحاجی نه غوښتلې شی.نوددې وجې دې هم ویختـه نه کټ کوی اونه خرائی.

**درنګ شوې جامو اغوستل**

| (وَلَا يَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا اونه به اغوندی جامې رنګ شوې په ورس خوشبونی بِوَرْسٍ وَلَا زَعْفَرَانٍ وَلَا بِعُصْفُرٍ) او نه په زعفرانو،اونه په ګل عصفر |
|---|

حل اللغة> ①مصبوغ: رنګ شوې ②ورس:یوقسم خوشبودار واښه دکوم نه چه دَرنګ کاراخستې شی ③زعفران: کیسر ④ عصفر: زیړ رنګ

تشریح> حرمة إستعمال الثوب المصبوغ> د مسئلې دا دې.چه د رنګ شوې جامې اغوستل جائز نه دی. لکه ورس یا زعفران یا عصفر،

دلیله> ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه محرم دې داسې جامې نه اغوندی.چه په هغې پورې زعفران یا عصفر لګیدلې وی. ([1]) دصحاح په کتابونو کښې د محرم په باره کښې دا الفاظ راغلی دی.((لاتلبسوا شیأ مسه زعفران ولا ورس))

| (إِلَّا أَنْ يَكُونَ غَسِيلًا وَلَا يَنْفُضُ الصبغ البته دا چه وی وینځلې شوې چه خوشبونی نه کوی. |
|---|

تشریح> جوازما لا طیب له > البته که په دې ذکرشوی څیزونو سره رنګ شوې وی.اود رنګ نه پس بیا داسې وینځلې شوې وی.چه خوشبونی ترې نه خې.نودهغې استعمال جائز دې.اګرچه رنګ ئې باقی وی.ځکه چه د محرم دپاره د خوشبونې استعمال ناجائزدې د رنګ استعمال ناروې نه دې.([2])

دلیله>اواصل په دې کښې د طحاوی رحمه الله په حواله د ابن عمر رضی الله عنهما روایت شوې حدیث دې. ((قال قال رسول الله لا تلبسوی ثوبا مسه ورس أو زعفران إلا أن یکون غسیلا)) ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی.چه رسول الله ﷺ

[1] ) من حدیث ابن عمر رضی الله عنهما اخرجه البخاری فی الحج باب ۲۱ ومسلم فی الحج رقم ۱ وابوداود فی الحج باب ۳۱ رقم ۱۸۲۳ والترمذی فی الحج رقم ۸۳۳ والنسائی فی المناسك رقم ۲۶۹۹ وابن ماجه فی الحج باب ۱۹ رقم ۲۹۲۹ واحمد فی المسند (۲۹/۲) والدارمی فی المناسك باب ۹)_

( [2]مسلک الشافعی رحمه الله >امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د ورس رنګ شوې جامه اغوستل دمحرم دپاره جائز ده.او ورانديې تیر شوی دی.چه د احرام په ممنوعاتو کښې خوشبو لګول دی د رنګ شوې جامه منع نه ده.

دلیل ان العصفر طیب > خو زمونږ دلیل دا دې.چه په عصفر کښې هم یوقسم خوشبونی وی.زمونږ او د شوافعو رحمهم الله په مبنځ کښې بنیاد د اختلاف دا دې.چه د شوافعو رحمهم الله په نیز په عصفر کښې خوشبو نه وی. اوزمونږ په نیز په کښې وی.نوکه عصفرداسې وی.چه خوشبو په کښې وی.نوپه اتفاق سره د هغې استعمال جائزنه دې.اوکه نه وی.نو په اتفاق سره ئې استعمال جائزدې.

ارشاد فرمائيلې دې.تاسومه اغوندئ هغه جامې چه لګيدلے وی ورپورې ورس يا زعفران البته دا چه وی وينځلې شوې.

## غسل كول اوحمام ته داخليدل

| (وَلَابَأْسَ بِأَنْ يَغْتَسِلَ وَيَدْخُلَ الْحَمَّامَ فرمائي اونشته باك چه غسل اوكړي.او داخل شي حمام ته |
|---|

**حل اللغة** > ①**حمام**: دَغسل ځائ ]

**تشريح** > **جوازغسل المحرم ودخوله الحمام** > مسئله داده.چه په محرم باندې دجنابت غسل واجبيږي. اود ده مکې معظمې ته د داخليدو دپاره غسل کول مستحب دې.

**دليله** > ځکه چه رسول الله ﷺ د احرام دپاره غسل کړې وو.اود محرم دپاره حمام ته د ګرمو اوبود استعمال دپاره داخليدل جائزدی.ځکه چه حضرت عمر ﷺ د دې باوجود چه محرم وو.غسل کړې وو.

| وَيَسْتَظِلَّ بِالْبَيْتِ وَالْمَحْمَلِ اودا چې سورې اوکړی په کور يا په کجاوې سره |
|---|

**حل اللغة** > ①**يستظل، استظلالا**: سورې حاصلول ②**محمل**: کجاوه

**تشريح** > **جواز تظليل المحرم** > ① مسئله دا ده.چه زمونږ په نيز د محرم دپاره د چت يا کيجاوې د سورې حاصلول جائز دی.([1])

**دلائله** > ① دليل دا دې.چه عقبه بن حبان ﷺ فرمائي.چه ما حضرت عثمان ﷺ اوليدلو.چه دهغوی دپاره به غټه خيمه لګولې شوه.اودهغه توره به ونې ته اويزانده کولې شوه.حالاتکه هغوی به په حالت د احرام کښې وو.

② بل دليل دا دې.چه لويه خيمه د محرم په بدن پورې نه لګی.نودا د کور د چت سره مشابه شو.اود کور د چت لاندې د سورې نه فائده اخستل مکروه نه دی.نودغه شان د لوئې خيمې په بنخولو کښې اود سورې حاصلولو کښې به هم کراهت نه وی.

**جواز الإستظلال بأستار الكعبة** > محرم د کعبه د پردو لاندې ورننوتلو.تردې چه په هغې کښې پټ شو .نوددې دوه صورتونه دی.که پرده دده د سر اومخ سره نه لګی.نوپکښې څه باك نشته.

**دليله** > ځکه چه دا سورې حاصلول دی.اود سورې په حاصلولو کښې څه قباحت نشته.اوکه په سر يا په مخ پورې لګی.نومکروه به وی.ځکه چه په دې صورت کښې دا د سرپټولو سره مشابه شو.

## د محرم دپاره د هميانه تړلو حکم

| وَيَشُدَّ فِي وَسَطِهِ الْهِمْيَانَ اودا چې چه اوتړی په شا خپله پورې هميانه |
|---|

**حل اللغة** > ①**هميان**:هغه پيټنې چه دَ تهيلئی يا بټوې کار ورکوی

**تشريح** > **حکم شد الهميان** > د محرم دپاره د هميانه په تړلو کښې څه قباحت نشته.که د لنګ دپاسه ئې اوتړی اوکه لاندې،([2])

---

([1]) **مذهب مالک** ﷫:- اودامام مالك اواحمد ﷭ په نيز د غټې خيمې يا ددې پشان د بل څيز لاندې سيودې حاصلول مکروه دې.

([2]) **مذهب مالک** ﷫:- امام مالك ﷫ فرمائي.که په هميانه کښې خپله خرچه او نفقه وی. نو بغير کراهته ئې تړل جائز دی.اوکه د بل خرچه اوروپۍ پکښې وی.نومکروه ده.

**دليله** › دليل دا دې.چه هميانه چونکه د ګنډلو جامو پشان نه ده.نوځکه ددې تړل مکروه نه دی.که خپلې روپۍ پکښې وی اوکه د بل چا،دواړه حالتونه برابر دی.

**الاشكال عليه** › په دې دليل باندې يو اشکال دې. هغه دا چه د محرم دپاره د لنګ يا څادر په رسۍ تار وغيره باندې تړل په اجماع سره مکروه دی.حالانکه رسۍ او تار د ګنډلو جامو پشان نه دی.

**الجواب** › جواب دا دې چه په رسۍ وغيره تړلو کښې کراهت په نص سره ثابت دې.نقل دی چه (أن النبي ﷺ رأى رجلاً قد شد فوق إزاره حبلاً فقال ﷺ الق هذا الحبل ويلك) يعنی نبی کريم ﷺ يو محرم سړې اوليدلو.چه هغه د خپل لنګ دپاسه يوه رسۍ تړلې وه.نو نبی ﷺ ورته اوفرمائيل. هلاك شې دا رسۍ اوغورځوه.

**الاشكال الثاني** › دويم اشکال دا دې که محرم په خپل سرباندې پټۍ اولګوله .نودا هم مکروه ده.تردې چه د پوره يو ورځ تړلو په صورت کښې پرې صدقه واجبيږی.حالانکه د ګنډلو جامو په معنی کښې نه ده

**الجواب عنه** › د دې نه جواب دا دې.چه چونکه د سر يوه حصه پټه شوې وی.نوځکه پرې صدقه واجبيږی.ځکه چه په حالت داحرام کښې د سر پټول ممنوع دی.

**په خطمی (ګل) سره د سر او ږيرې وينځل**

| وَلَا يَغْسِلُ رَأْسَهُ وَلَا لِحْيَتَهُ بِالْخِطْمِيِّ اونه دې وينځی سرخپل اونه ږيره خپله په خطمی سره |
|---|

**حل اللغة** › ①**لحية**:ږيره ②**خطمي**: يوقسم بوټې چه په دوايانوکښې په کار راځی

**تشريح** › **إستعمال الخطمي للمحرم** › دمحرم دپاره خپل سر او ږيره په خطمی سره وينځل جائز نه دی.

**دلائله** › ①دليل دا دې.چه ګل خطمی يوقسم خوشبوئی ده.اود محرم دپاره د خوشبو لګول جائز نه دی.②دويم دليل دا دې.چه خطمی د سر سپګې وژنی.حالانکه د محرم دپاره د هيڅ قسم ځناور قتل جائز نه دې.

**د تلبيه په کثرت سره وئيل**

| وَيُكْثِرُ مِنَ التَّلْبِيَةِ عَقِيبَ الصَّلَوَاتِ اوزياته دې وائی تلبيه روستو د مونځونو نه، |
|---|

**تشريح** › **تكثير التلبية** › اوزياته دې وائی تلبيه روستو د مونځونو نه،اوهرکله چه خيژی اوچت ځائې ته اوکوزيږی ښکته ځائې ته،اوملاؤ شی د سورو(خلقو) سره او په وخت د پيشمنی کښې،

**الروايتان في التلبية بعد الصلاة** › صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه محرم دې تلبيه روسته د مونځونو نه زياته وائی.مونځونه که فرض وی اوکه نفل وی.که ادا وی اوکه قضا وی.②صاحب د طحاوی رحمه الله فرمائی .چه د فرض مونځونو نه پس به وئيلی شی.د نفلو او قضا مونځونو نه پس به نشی وئيلې.

| وَكُلَّمَا عَلَا شَرَفًا اوهرکله چه خيژی اوچت ځائې ته أَوْ هَبَطَ وَادِيًا اوکوزيږی ښکته ځائې ته أَوْ لَقِيَ رَكْبًا وَبِالْأَسْحَارِ ،اوملاؤ شی د سورو(خلقو)سره او په وخت د پيشمنی کښې، |
|---|

**تشريح** › **مواقع إكثار التلبية** › اوکله چه په موره خيژی يا کندې ته کوزيږی.يا نورو سورو(خلقو) سره ملاقات اوکړی.نو په دې حالتونو کښې به تلبيه زياته وائی.اود پيشمنی په وخت کښې دې هم زياته

وائي.

**دلائله**﴿ ① ځکه چه صحابوﷺ د رسول اللهﷺ به تلبیه ونیله په دې حالاتوکښې،اوتلبیه په احرام کښې په مانځه کښې د تکبیر ونیلو پشان ده.نوونیلې به شي دا په وخت د بدلیدلو د یوحال نه بل حال ته.

② دویم دلیل دا دې.چه په احرام کښې د تلبیه مثال داسې دې.لکه په مانځه کښې دتکبیرپشان،نولکه څنګه چه په مانځه کښې د یوحالت نه بل حالت ته اوړي.نو تکبیروائي.دغه شان په احرام کښې هم چه د یو حالت نه بل حالت ته اوړي.نوتلبیه دې وائي.

**رفع الصوت بالتلبية**﴿ زمونږ په نیز په تلبیه کښې آواز اوچتول مسنون دی.اګرچه په دعا اوذکر کښې افضله اخفاء ده.وجه دا ده.چه د قرآن پاك د آیت ﴿أُدْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً﴾ تقاضا هم دا ده.چه د دعا اوذکرونو په موقع باندې اخفاء اوکړې شي.

**دليله**﴿ دلیل دا دې.چه رسول اللهﷺ فرمائیلي دی.«أفضل الحج العج والثج»[1] عج وائي په اوچت آواز سره تلبیه ونیل او ثج وائي وینې تویولو ته.یعنی بهترین حج هغه دې.چه هغې کښې تلبیه په اوچت آواز وی.اودهدی وغیره قربانی په کښې اوکړې شي.اووینه تونې کړې شي.

**مکې ته د داخلیدو آداب**

| (فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ ابْتَدَأَ بِالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ فرمائي.کله چه داخل شي مکې ته نو شروع دې اوکړي د مسجد حرام نه، |
|---|

**تشريح**﴿ **أول ما يبدء به المحرم عند دخول مكة**﴿ فرمائي.محرم چه څنګه مکې ته داخل شي.نو د ټولو نه اول به جمات ته داخلیږي.

**دلائله**﴿ ① ځکه چه رسول اللهﷺ کله مکې ته داخل شو.نود ټولو نه اول جمات ته داخل شو. ① په صحیحینو کښې د حضرت عائشه ﷺ دا حدیث داسې دې.«إن أول شئ بدأ به رسول اللهﷺ حين قدم مكة أن توضأ ثم طاف بالبيت»[2] یعنی مکې مکرمې ته چه نبیﷺ تشریف راوړلو.نود ټولونه په اولنو کارونو کښې دا وو.چه اودس ئې اوکړلو.اود بیت الله نه ئې طواف اوکړلو.

② دویم دلیل دا دې.چه د سفرمقصود د بیت الله زیارت کول دی.اوبیت الله په جمات کښې دې.نود ټولو نه اول دې جمات ته داخل شي.اوبیا د مسجد حرام په دروازو کښې د باب السلام نه داخلیدل مستحب دی.ځکه چه نبیﷺ هم په دې دروازه مسجد حرام ته داخل شوې وو.اودا دعا ئې ونیله «اللهم أنت ربي وأنا عبدك جئت لأودي فرضك وأطلب رحمتك وألتمس رضاك متبعاً لأمرك راضياً بقضائك أسئلك مسئلة المضطرين المشفقين من عذابك أن تستقبلني اليوم بعفوك وتحفظني برحمتك وتجاوز عني بمغفرتك وتعينني على أداء فرائضك اللهم افتح لي أبواب رحمتك، وأدخلني فيها وأعذني من الشيطان الرجيم» اې الله ته زما رب اوزه ستا بنده یم.زه ستا د فرض ادا کولودپاره حاضرشوې یم.ستا د رحمت غوښتونکې یم.ستا دحکم تابعداری کوم.او ستا د رضا طلبګار یم.زه ستا په فیصله په سرسترګوراضی یم.زه ستا نه دهغه کسانو پشان

---

[1] ) من حديث ابن عمر ﷺ اخرجه الترمذى باب ٦ رقم ٣١٩٧ وابن ماجه في المناسك باب ٦ رقم ٢٨٩٦)

[2] ) من حديث عائشة اخرجه البخارى في الحج باب ٦٣ رقم ٧٨ ومسلم في صلاة المسافرين وقصرها رقم ٧٤)_

سوال کوم.چه محتاج وی اوستاد عذاب نه ویریږی.چه ته نن ما سره د معافۍ سلوك اوکړې.اوپه خپل رحمت زما حفاظت اوکړې.اوته په خپل مغفرت ما ته معافی اوکړې.اودخپلو فرائضو په ادا کولوکښې ماسره مدد اوکړې.اې الله زما دپاره دخپل رحمت دروازې پرانیزې.اوما ورته داخل کړه.اود شیطان رټلی شوی نه زما حفاظت اوکړې.

## د بیت الله د لیدو په وخت کښې مسنون عمل

| (وَإِذَا عَايَنَ الْبَيْتَ كَبَّرَ وَهَلَّلَ) اوکله چه اووینی بیت الله.نوتکبیر دې اووائی. اوتهلیل دې اووائی |
|---|

**حل اللغة** ﴿١﴾ **عاين،معاينة**:کتل

**تشریح** ﴿**الأفعال المسنون عند رؤية البيت**﴾ مسئله دا ده.چه کله نې په بیت الله نظراولګی.نو الله اکبر دې اووائی.اوپه زړه کښې دې ددې مقدس مقام عظمت حاضر کړی.اود توحید د تجدید دپاره دې ﴿لاإله إلا الله﴾ اووائی.او چه هغه وخت څه مناسب وی.نوهغه دعا دې اوکړی.ځکه چه د بیت الله د لیدو په وخت کښې دعا مستجابه اومقبوله وی.

**دليله** ﴿ په تکبیر اوتهلیل باندې دحضرت عبدالله ﷺ عمل مستدل دې.چه هغوی به کله هم د بیت الله زیارت کولو.نو ﴿بسم الله والله اكبر﴾ به نې ونیل. (١)

## د حجر اسود بنکلول

| (ثُمَّ ابْتَدَأَ بِالْحَجَرِ الْأَسْوَدِ فَاسْتَقْبَلَهُ) فرمائی.بیا دې شروع اوکړی د حجر اسود نه نومخ دې کړی دې ته (وَكَبَّرَ وَهَلَّلَ) اوتکبیر دې اووائی.اوتهلیل دې اووائی. |
|---|

**حل اللغة** ﴿١﴾ **هلل**: لا اله الاالله ونیل

**تشریح** ﴿ **إستقبال الحجر** ﴾ فقهاء کرام ﷺ فرمائی.چه مسجد حرام ته د داخلیدو نه پس دټولو نه اولنې کارطواف کول دی.که دا کس محرم وی اوکه غیرمحرم وی.اوپه طواف کښې به شروع د حجر اسود نه کوی.

**دليله** ﴿ ځکه چه نقل دی.کله چه نبی ﷺ مسجد حرام ته داخل شو.نود حجر اسود نه ئې د طواف شروع اوکړله.اوحجراسودته دې مخ کړی او،الله اکبر، او ،لااله الا الله، دې اووائی.(٢)

| (وَرَفَعَ يَدَيْهِ) صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی بیابه پورته کړی لاسونه خپل (مَعَ التَّكْبِيرِ) د تکبیر ونیلو سره |
|---|

---

(١) خرجه الزيلعي رحمه الله هذا اللفظ ثم نقل عن ابن عمر رضي الله عنهما برواية البيهقي في السنن الكبرى (١٢٨/٥) رقم ٩٢٥٠) أن كان يقول ذلك عند إستلام الحجر،كذا في نصب الراية (٤٢/٣)۔

(٢) يقول العبد الضعيف اما إبتداءه ﷺ بإستلام ا لحجر الأسود ففي حديث جابر ﷺ الطويل خرجته بالكمبيوتر من ،موصوعة الأحاديث النبوية، فهو في صحيح مسلم في الحج باب حجة النبي ﷺ رقم ٢١٣٧ ) و اما الإستقبال والتكبيروالتهليل فأيضا خرجته من الموصوعة فهو حديث عمر ﷺ اخرجه احمد في مسندالعشرة المبشرين بالجنة في مسند عمربن الخطاب ﷺ رقم ١٨٥ والفاظه عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ يَا عُمَرُ إِنَّكَ رَجُلٌ قَوِيٌّ لَا تُزَاحِمْ عَلَى الْحَجَرِ فَتُؤْذِيَ الضَّعِيفَ إِنْ وَجَدْتَ خَلْوَةً فَاسْتَلِمْهُ وَإِلَّا فَاسْتَقْبِلْهُ فَهَلِّلْ وَكَبِّرْ۔

**تشریح** رفع الأیدی عند إستلام الحجر شیخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه د طواف په شروع کښې به د تکبیر ونیلو په وخت کښې دواړه لاسونه تراوږو پورې پورته کړی.

**دلیله** ځکه چه نبی ﷺ فرمائیلی دی.((لاترفع الأیدی إلا فی سبع مواطن)) یعنی صرف په اووه ځایونو کښې به لاسونه پورته کولی شی.اومن جمله دهغې نه یوه موقع د حجر اسود ښکلول دی.([1])

| وَاسْتَلَمَهُ وقبله إِنْ اسْتَطَاعَ مِنْ غَيْرِ اَنْ يُؤْذِيَ مُسْلِمًا او استلام دې اوکړی د حجر اسود او ښکل دې کړی (حجراسود) که طاقت لری بغیرتکلیف ورکولو نه مسلمان ته. |
|---|

**تشریح** معنی الإستلام فرمائی چه دحجر اسود استلام دې کوی.استلام (سلمة) نه ماخوذ دې. ددې معنی د کانړی ده.اوس د استلام معنی دا ده.چه کانړی اخستل په لاس سره یا په بوسه سره،یا دې دا په لاس سره مس کړی.

**کیفیة الإستلام** د استلام کیفیت دا دې.که دحجر اسود استلام په خوله سره ممکن نه وی.نوپه دې باندې دې خپل لاس کیږدی.اوخپل لاس دې ښکل کړی.

**دلیله** نقل دی چه رسول الله ﷺ حجراسود ښکل کړلو.اوخپلې شونډې ئې په هغې باندې کیخودې.([2]) ②دا هم نقل دی.چه حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په خپل دور خلافت کښې حجراسود ته نزدې تشریف راوړلو .نو وې فرمائیل.ماته دا پته ده.چه ته یوکانړې ئې.نه ضرر رسولې شې اونه فائده، که ما رسول الله ﷺ نه وو لیدلې.چه ته ئې ښکل کړې وې. نوما به ته نه وې ښکل کړې.دحضرت عمر رضی الله عنه دا خبره چه حضرت علی رضی الله عنه ته اورسیدله .نو هغوی اوفرمائیل.کانړې نفع رسونکې دی.حضرت عمر رضی الله عنه ورته اوفرمائیل.اې دالله د پیغمبر زومه؛ څه فائده ده په کښې؟نوحضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل.ما د رسول الله ﷺ نه دا اوریدلی وو.چه کله الله تعالی د آدم علیه السلام د ټول اولاد نه وعده واخستله.اود ((اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوْا بَلٰى)) په ذریعه ئې اقرار اوکړلو.نوالله تعالی هغه اقرار په دې کانړی کښې امانت کیخودلو.نوکوم کس چه استلام کوی.نولکه چه هغه ددې ښکلولو سره د هغې وعدې تجدید کوی.اوکانړے به دقیامت په ورځ دده دپاره ګواهی ورکوی. ([3])

**فضل إستلام الحجر** بهرحال که مسلمان ته د تکلیف رسولو نه بغیر دحجر اسود ښکلول ممکن وی. نودحجراسود استلام دې خامخا اوکړی.

**دلیله** ځکه چه رسول الله ﷺ حجر اسود ښکل کړې وو.اوپه هغې ئې خپلې شونډې کیخودې وې.

**دلائل ترک الإستلام عندأذی المسلم** ①اونبی کریم ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه فرمائیلی وو.چه ته مضبوط سړې ئې.کمزوری ته به تکلیف اورسوې.نوپه حجراسود باندې خلقو سره چیر مکوه.یعنی ګنړه مه لرې کوه.ګنی کمزوری ته به ستا نه تکلیف اورسی.خوکه ځائې خالی وی.اورش نه وی.نواستلام کوه. یعنی په خوله یا لاس سره دې مس کړی.اوکه ګنجائش نه وی.بلکه بیړه وی.نودې ته دې مخامخ اودریږی.اوتکبیر اوتهلیل دې اووائی.

②دویم دلیل دا دې.چه استلام سنت دې.اود مسلمان د تکلیف رسولو نه ځان ساتل واجب دی.اود

---

[1] ) تقدم تخریجه مراراً۔

[2] ) من حدیث ابن عمر رضی الله عنهما اخرجه ابن ماجه فی الحج رقم ۲۹۴۵) والحاکم فی المستدرک (۱/۴۵۴)

[3] ) من حدیث عمر رضی الله عنه اخرجه أحمد فی مسندالعشرة المبشرین بالجنة فی مسند عمربن الخطاب رضی الله عنه رقم ۱۸۵)

سنت ادا کولو دپاره د واجب د پریخودو شریعت بیخی اجازت نه ورکوی. نو څکه مسلمان ته د ضرر رسولو نه بغیر که استلام ممکن وی.نواستلام دې اوکړی. ګنی په استقبال دې اکتفاء اوکړی.

**د اضطباع حکم**

| ثُمَّ اَخَذَ عَنْ يَمِيْنِهِ مِمَّا يَلِي الْبَابَ فرمائی.بیا دې شروع اوکړی دخپل ښی طرف نه دهغه خائې نه چه نزدې دې دروازې ته، وَقَدْ اضْطَبَعَ رِدَاءَهُ قَبْلَ ذٰلِكَ په داسې حال کښې چه اضطباع ئې کړې وی په څادرخپل، فَيَطُوْفُ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ اَشْوَاطٍ نوچکر دې اولګوی د بیت الله نه اووه چکرې، |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①**اضطبع،اضطباعًا**: دَ ښی ترخ نه څادرراویستل او په ګسه اوږه باندې اچول ②**اشواط جمع دَشوط**: چکر ③**ابط**: ترخ ]

**تشریح** ﴿ **إبتداء الأشواط من أيمن المستلم** ﴿مسئله:لکه څنګه چه د حجراسود نه شروع کول واجب دی.دغه شان د ښی طرف نه شروع کول هم واجب دی.یعنی د حجر اسود نه ښی طرف ته کوم خائې چه دروازې سره جخت دې.د هغه طرفه دې طواف شروع کړی.

**حكم الطواف المشروع من الجانب الأيسر** ﴿اوکه د ښی طرف په خائې ئې د ګس طرف نه ئې په طواف شروع اوکړله.اوداسې ئې اووه چکرې اولګولې.نودا طواف معکوس شو.زمونږ په نیز ددې حکم دا دې. چه ترڅو په مکه کښې وی.نود دې طواف به اعاده کوی.اوکه د اعاده نه وړاندې ئې مکه پریخودله.او خپل وطن ته واپس شو.نوپه ده به دم واجب وی.بهرحال طواف به د حجر اسود د ښی طرفه شروع کوی.اوپه دې طریقه به اووه چکرې پوره کوی.

**دلیله** ﴿ څکه چه رسول الله ﷺ هم داسې کړی وو.[1]

**معنى الإضطباع وسنيته** ﴿صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی .چه اضطباع د ،ضبع،نه ماخوذ دې.اوددې کیفیت دا دی.چه خپل څادر د خپلې ښیٔ اوږې دلاندې نه راوباسی.اوپه ګسه اوږه ئې واچوی.فرمائی دا درویشانه کیفیت مسنون دې.

**دلیله** ﴿ اود رسول الله ﷺ نه منقول دې. [2]

**طواف به حطیم نه بهر وی**

| (وَيَجْعَلُ طَوَافَهُ مِنْ وَرَاءِ الْحَطِيْمِ) فرمائی.اودې ګرځوی طواف خپل بهر دحطیم نه، |
|---|

**حل اللغة** ﴿① **حطیم**: دَ خانه کعبې هغه حصه چه رکن زمزم او دَ مقام ابراهیم په مینځ کښې ده.

**تشریح** ﴿ **توضيح الحطيم** ﴿حطیم دهغه خائې نوم دې.چه په هغې کښې میزاب رحمت دې.حطیم د حطم نه ماخوذ دې.اود حطم معنی ده ماتول.اودې ته حطیم څکه وائی.چه مشرکانو د بیت الله د جوړولو په وخت کښې دحلال مال د کمی د وجې د بیت الله نه مات کړې وو.اوپه نوې آبادیٔ کښې ئې نه وو داخل کړې. د حطیم دویم نوم حجر (بکسرالحاء) دې.چه ددې معنی منع کول دی.یعنی داحصه د بیت الله په نوی تعمیر کښې شاملولو نه منع کړې شوې وه.

**تاريخ إخراج الحطيم من البيت** ﴿ ﴿خویاد ساتئ چه حطیم د بیت الله یوه حصه ده.کوم احکام چه د بیت الله دی.هغه احکام به ددې هم وی.په دې باندې د حضرت عائشې رضي الله عنها حدیث ګواه دې.صاحب د

[1] ) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه مسلم في الحج باب حجة النبي ﷺ رقم ۲۱۳۷ )۔

[2] ) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه ابوداود في المناسك باب ٤٩ رقم ١٨٨٤)۔

عنایه رحمه الله چه کوم حدیث ذکر کړی دی.دهغې ترجمه دا ده.چه حضرت عائشې رضی الله عنها دا نذر منلی وو. که رسول الله ﷺ مکه فتح کړه.نوزه به په بیت الله کښې دوه رکعته مونځ کوم.د مکې دفتح نه پس رسول الله ﷺ د حضرت عائشې رضی الله عنها لاس اونیولو.او حطیم ته ئې داخله کړه.اووې فرمائیل ورته (صلی ههنا فان الحطیم من البیت) دلته مونځ اوکړه.ځکه حطیم د بیت الله حصه ده. خو چونکه ستا قوم قریشو سره خرچه کمه شوې وه.نوځکه هغوی دا د بیت الله نه بهر کړې وو.ګوره عائشې رضی الله عنها که ستا د قوم زمانه شرك ته نژدې نه وه.نومابه خانه کعبه شهیده کړې وه.اودا به مې د ابراهیم خلیل الله علیه السلام د آبادئ مطابق جوړه کړې وه.اوحطیم به مې په خانه کعبه کښې داخل کړې وو.اوچوکاټ به مې د زمکې سره ملاو کړې وو.اوددې دپاره به مې یوه دروازه مشرق طرف ته ویستې وه.اویوه مغرب طرف ته،که راروان کاله پورې ژوندې پاتې شوم.نودا کار به ضرور کوم. [1] حضرات خلفاء راشدینو رضی الله عنهم ته د نور اهمو کارونو د وجې دې ته فراغت ملاو نشو.

**بناء ابن زبیر**> ردې چه دحضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه زمانه راغله.اوهغوی د حضرت عائشې رضی الله عنها نه دا حدیث واوریدلو.نوهغه دواړه کارونه ئې اوکړل.کوم چه د نبی ﷺ ارمان وو.نودحضرت ابراهیم علیه السلام په بنیادونو ئې خانه کعبه جوړه کړه.اوحطیم ئې په بیت الله کښې شامل کړلو.

**بناء حجاج بن یوسف**>خوچه کله ابن زبیر رضی الله عنه شهید کړې شو.اوحجاج بن یوسف ثقفی برسراقتدې راغلو.نوهغه د حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه جوړه کړې کعبه ئې شهیده کړله.اودا ئې په هغه طریقه بیا جوړه کړه.په کومه طریقه چه قریشو جوړه کړې وه.اګرچه حجاج بن یوسف د حدیث اوریدو نه پس ډیر پښیمانه شو.بیاد بنوعباس په دور خلافت کښې حضرت هارون الرشید رحمه الله دا اراده اوکړله.چه دا د ابراهیم علیه السلام د آبادئ مطابق جوړه کړی.خو حضرت امام مالك اونورو بزرګانو ددې ویرې نه منع کړلو.چه روستو به د خانه کعبه د جوړولونه یوه لوبه جوړه شی.هرکس به د خپلې خوښې مطابق په دې کښې تغیر او تبدیل راولی

**الطواف خارج الحطیم**>بهرحال صورت د مسئلې دا دې.چه طواف به د حطیم نه بهر کوی.په حطیم کښې دننه به نه کوی.که طواف کونکې په حطیم کښې ورداخل شو.اوطواف ئې اوکړلو.نودا جائز نه دی.

**دلیله**>دلیل دا دې.چه حطیم د بیت الله حصه ده.لکه چه د حضرت عائشې رضی الله عنها دحدیث نه ثابته شوه.چه (ان الحطیم من البیت) اوحکم چه شوې دې.نوهغه د بیت الله نه بهر د طواف کولو دې په بیت الله کښې دننه د طواف حکم نه دې شوې .لکه چه د الله تعالی ارشاد دې.((وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ﴿﴾)) اوطواف دې اوکړی د بیت عتیق ګورئ د قدیم بیت د طواف حکم شوې دې.په قدیم بیت کښې دننه د طواف حکم نه دې شوې .اود قدیم بیت نه ټوله خانه کعبه مراد ده.نود ټول بیت طواف ضروری شو.اوپه ټول بیت کښې حطیم هم شامل دې.نوپه طواف کښې د حطیم راګیرول هم ضروری شو.

**په اولنو درې چکرولو کښې پهلوانی ګول**

| وَيَرْمُلُ فِي الْأَشْوَاطِ الثَّلَاثَةِ الْأُوَلِ او رمل به کوی په دریو اولنو کښې د چکرونوځنې، |
|---|

**حل اللغة** > ① **یرمل، رملا:** اوږو خوزولو سره منډه وهل

[1] ) من حدیث عائشة رضی الله عنها اخرجه البخاری فی الحج باب ٤٢ ومسلم فی الحج رقم ٤٠٥ وابوداود فی المناسك باب ٩٣ رقم ٢٠٢٨ والترمذی فی الحج باب ٤٨ رقم ٨٧٦ والنسائی فی المناسك باب ١٢٩ باب الصلاة فی الحجر)۔

**تشریح> سبب الرمل>** د رمل سبب دا دي.چه د حدیبیه په کال چه رسول الله ﷺ د عمرې دپاره مکې معظمې ته داخلیدل غوښتل،نومشرکانو د مکې د عمرې اود بیت الله د زیارت نه مسلمانان منع کړل.اوپه دې باندې صلح اوشوه.چه سږ کال به بغیرد عمرې نه واپس لاړ شي.اوراروان کال ته به بغیر د جنګي سازوسامان نه مکې ته داخل شي اوعمره به اوکړي.اودرې ورځې به په مکه کښې قیام اوکړي.په راروان کال چه کله نبي ﷺ د عمرې ادا کولو دپاره تشریف یوړلو.نود مکې خلقو درې ورځو دپاره خانه کعبه خالي کړې وه.اوپه خپله غر ته ختلي وو.نورسول الله ﷺ د صحابوؓ سره د خانه کعبې طواف کولو.نبي ﷺ په دغه دوران کښې د مشرکانو نه واوریدل.چه بعضې په کښې بعضو نورو ته وائي.مسلمانان د یثرب تبې کمزورې کړي دي.چه نبي دا واوریدل.نوخپل دواړه لاسونه ئې کهولاؤ کړل.او رمل ئې شروع کړلو.اوصحابوؓ ته ئې هم ددې حکم اوکړلو.چه د مسلمانانو د بهادرئ او طاقت مشرکان په خپلو سترګو مشاهده اوکړي.

**وجه بقاء حکم الرمل مع زوال سببه>** دا سبب اګرچه زائله شوې دي.خو حکم ئې باقي دې.ځکه چه د حضرت جابراو ابن عمرؓ نه نقل دي.چه په حجة الوداع کښې نبي ﷺ په یوم النحر کښې په اولنو درې چکرونوکښې رمل کولو.حالانکه د حجة الوداع په کال په مکه کښې مشرك پاتې نه وو.نوهرکله چه د سبب د زوال نه پس هم نبي ﷺ رمل کړې دې.نومونږ د نبي ﷺ په تابعدارئ کښې هم د رمل کولو زیات مستحق یو.

### باقي څلور چکرونه په اطمینان سره کول

| وَيَمْشِي فِي مَا بَقِيَ عَلَى هَيْئَتِهِ) اوځی به په باقي چکرونو کښې په خپل وقار سره، |
|---|

**حل اللغة >** ①**هیئة:** وقار

**تشریح> عدم الرمل في الأشواط الأربعة>** صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه په باقي څلورو چکرونو کښې به په خپل وقار او په اطمینان سره ځي.رمل به نه کوي.

**دلیله>** ځکه چه کومو صحابوؓ د نبي دحج افعال نقل کړي دي.د هغوی ټولو په دې باندې اتفاق دې.چه نبي په اولنو درې چکرونو کښې رمل کړې وو.اوپه باقي څلورو چکرونو کښې ئې رمل نه وو کړې.[1]

**محل إبتداء الرمل >** اود رمل یوچکر به د حجراسود نه شروع کیږي.اوهم په حجر اسود به ختمیږي.ځکه چه د رسول الله ﷺ د رمل په باره کښې هم دا منقول دي.[2]

**عدم سقوط الرمل لوجه الإزدحام>** وراندې تیر شوي دي.چه په اولنو چکرونو کښې رمل کول واجب دي.نوکه د ګڼې د وجې د رمل کول ممکن نه وي.نواودې دریږي تردې چه لار بیا مومي.نو رمل دې کوي.بغیرد رمل دې طواف نه کوي.

**دلیله>** دلیل دا دي.چه د رمل متبادل بل څه نشته.ددې وجې که د ګڼې د وجې په اولنودرې چکرونوکښې رمل کول ممکن نه وي.نو انتظار دې کوي.چه په سنت طریقه رمل اوکړي

**جواز ترک استلام الحجر>** په خلاف د حجر اسود دښکلولو ځکه چه هلته د حجر اسود استلام متعذر

---

[1] ) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه البخاري في الحج باب ۸۰ رقم ۱۶۴۴ ومسلم في الحج رقم ۲۳۰ واحمد في المسند (۹۸/۲)

[2] ) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه مسلم في الحج رقم ۲۳۳ وابوداود في المناسك باب ۵۰ رقم ۱۸۹۱ والنسائي في المناسك باب ۱۵٤ رقم ۲۷۵۱ وابن ماجه في المناسك باب ۲۹ رقم ۲۹۵۰ _

شي.نو انتظار دې نه کوي.بلکه حجر اسود ته دې مخ کړي.او وراندې دې تير شي.څکه چه استقبال د استيلام بدل دې.

## په هرچکر کښې د حجر اسود استيلام

| وَيَسْتَلِمُ الْحَجَرَ كُلَّمَا مَرَّبِهِ فرماني اواستيلام به کوي د حجراسود هرکله چه تيريږي په دې باندې، إِنِ اسْتَطَاعَ که طاقت لري. |
|---|

**تشريح> الإستيلام في كل شوط>** صاحب دقدوري رحمه الله فرماني.چه کله هم په طواف کښې د حجراسود نه تيريږي.نود قدرت په صورت کښې به ددې استيلام کوي.يعني ښکلوي به ئې.

**دليله>** څکه چه په طواف کښې چکرونه پشان د مونځ د رکعتونو دې.لکه څنګه چه د رسول الله ﷺ ارشاد دې.((الطواف بالبيت صلاة)) نولکه څنګه چه د مانځه هر رکعت د تکبير نه شروع کيږي.دغه شان به د طواف هريوچکر د استيلام د حجر اسود نه شروع کيږي.

**تائيده>** ددې تائيد د بخاري شريف د حديث نه هم کيږي.((أن النبي ﷺ طاف على بعير كلما أتى على الركن اليماني أشار إليه بشيء في يده)).

**إستقبال الحجر عند عدم القدرة>** اوکه د استيلام قدرت نه وي.نوحجراسودته دې مخ کوي.اوتکبير اولااله الا الله دې واني.

| وَيَخْتِمُ الطَّوَافَ بِالْإِسْتِلَامِ) اوختموي به طواف په استيلام |
|---|

**تشريح> إختتام الطواف بإستلام الحجر الأسود>** صاحب دقدوري رحمه الله فرماني.چه د طواف اختتام دې د حجراسود په استيلام سره کوي.د رکن يماني په استيلام سره دې نه کوي.

## په مقام ابراهيم کښې نفل کول

| ثُمَّ يَأْتِي الْمَقَامَ فَيُصَلِّي عِنْدَهُ رَكْعَتَيْنِ فرماني بيا به لاړ شي مقام (ابراهيم عليه السلام) ته،نومونځ به اوکړي دهغې سره دوه رکعته اوکړي أَوْحَيْثُ تَيَسَّرَ مِنَ الْمَسْجِدِ يا چه په کوم ځائې کښې ورته آسان وي د جمات (په حدودو) کښې، |
|---|

**تشريح> المراد من المقام>** دمقام ابراهيم نه هغه کاڼړې مراد دې.په کوم باندې چه حضرت ابراهيم عليه السلام د خانه کعبې جوړولو په وخت کښې ولاړ وو.د هغوي داودريدو په وجه په دې کاڼړي دهغوي د قدمونو نښې جوړې شوې دي.

**سنية ركعتي الطواف>** مسئله دا ده.چه د طواف نه اوزګار شي.نود مقام ابراهيم عليه السلام يا چه په مسجدحرام کښې ورته په کوم ځائې کښې آسانه وي.دوه رکعته دې کوي.دا مونځ واجب دې

**دلائله>** دليل دا دې. ① چه نبي ﷺ فرمائيلي دي.((وليصل الطائف لكل أسبوع ركعتين)) مونځ دې کوي طواف کونکې د هراووه چکرونو دپاره دوه رکعته، (1) په حديث کښې د ((ليصل)) د امر صيغه ده.او امردپاره د وجوب وي. ② اوبه يو بل حديث کښې دي.چه کله نبي ﷺ مقام ابراهيم ته اورسيدلو.نودا

---

[1] ) غربه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم قال واخرجه البخاري ومسلم عن نافع عن ابن عمر رضي الله عنهما ان رسول الله ﷺ كان إذا طاف بالحج والعمرة أول مايقدم فإنه يسعى ثلاثة أطواف ويمشي أربعاً ثم يصلي سجدتين كذا في نصب الراية (۵۳/۳)_

آیت ئې تلاوت کړلو.((وَاتَّخِذُوْامِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهِيْمَ مُصَلًّى)) اوبیا ئې دوه رکعته اوکړل.په دې آیت کښې هم ((وَاتَّخِذُوْا)) د امرصیغه ده.دکوم نه چه وجوب ثابتیږي.

**السوال** ﴿ څوک څوک دا سوال اوکړي.چه نبی ﷺ په کوم وخت کښې بانډیچی ته مونځ تعلیم ورکولو .نو هغه ونیلی وو.«هل علي غيرهن» نبی ﷺ په جواب کښې فرمائیلی وو.«الا أن تطوع» ددې حدیث نه معلومه شوه.چه د پنځو مونځونو نه سوې بل مونځ واجب او فرض نه دې.

**الجوابان** ﴿ ① نوددې جواب دا دې.چه حدیث د بانډیچی متروك الظاهر دې.ځکه چه په دې بانډې د تولو اتفاق دې.چه مونځ د جنازې او مونځ د اخترونو واجب دی.(د اخترونو د مونځ په باره کښې د اتفاق دعوی محل نظر دې.ځکه ددې په وجوب کښې د امامانو اختلاف دې.)حالانکه په دې حدیث کښې ددې مونځونو بیان نشته.②اودویم جواب دا دې.چه ممکن ده.حدیث د بانډیچی ددې نه وړاندې وی.

## د طواف قدوم شرعي حیثیت

| (وَهٰذَاالطَّوَافُ طَوَافُ الْقُدُوْمِ) صاحب د قدوری فرمائي.اودا طواف،طواف قدوم دې. |
|---|

**تشریح** ﴿ **أسماء طواف القدوم** ﴾مصنف د قدوری رحمه الله فرمائي.چه مکې معظمې ته په دې خلیدو چه کوم طواف کیږي.هغه ته طواف قدوم وائي.صاحب د هدایه فرمائیلی دی چې ددې دویم نوم طواف تحیه اودریم نوم طواف لقاء اوځلورم نوم طواف اول عهد دې.

...

| وَهُوَسُنَّةٌ وَلَيْسَ بِوَاجِبٍ اودا سنت دې.واجب نه دې. |
|---|

**تشریح** ﴿ **حکم طواف القدوم** ﴾ دا طواف د آفاقی دپاره سنت دې واجب نه دې.([1])

**دلیله** ﴿ دلیل دالله تعالی ارشاد دې.چه ((وَلْيَطَّوَّفُوْا بِالْبَيْتِ الْعَتِيْقِ)) په دې کښې دطواف حکم دې. او امر مطلق د تکرار تقاضا نه کوی.اود طواف زیارت فرضیت په اجماع سره متعین دې.نو هرکله چه طواف زیارت د فرضیت دپاره متعین شوې دې.نوبل طواف به واجب نه وی.ګنی په امرکښې به تکرار لازم شی.(اودا جائز نه ده) ([2])

## د صفا دپرۍ مسنون اعمال

| ثُمَّ يَخْرُجُ إِلَى الصَّفَا فَيَصْعَدُ عَلَيْهِ فرمائي بیا به اوځي طرف د صفا ته نواودې خیژی په هغې بانډې، وَيَسْتَقْبِلُ الْبَيْتَ وَيُكَبِّرُ وَيُهَلِّلُ وَيُصَلِّي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اومخ دې کړی قبله ته،او،لااله الا الله، دې اووائي.اودرود دې اووائي په نبی ﷺ وَيَدْعُوْاللّٰهَ لِحَاجَتِهٖ اوسوال دې اوکړی د الله نه، |
|---|

**حل اللغة** ﴿①**یصعد، صعودًا (س)**؛ ختل

**تشریح** ﴿ **کیفیة السعي من الصفا** ﴾مسئله دا ده.چه د طواف قدوم نه فارغ شی.نواول به د صفا مروه په مینځ کښې سعی اوکړی.نوصفا ته به اوخیژی.اوبیت الله ته به مخ کړی.اوتکبیر او،لااله الاالله، به

---

([1]) **مذهب مالك** ﴿ دامام مالك رحمه الله په نیز واجب دې.

([2]) **مذهب مالك** ﴿ دامام مالك رحمه الله په نیز واجب دې.

اووائي.اوپه نبي ﷺ به درود اووائي.او لاس دې اوچت کړي.دخپل حاجت دپاره دې د الله تعالى نه دعا اوغواړي.

**دلائله** ﴿ خکه نقل دي.① چه نبي ﷺ صفا ته اوختلو.ترد چه بيت الله نې په نظرشو.نوقبلې ته نې مخ کړلو.اودعا نې اوکړله. (١)

② اوددې وجې چه ثناء اودرود دواړه په دعا باندې مقدم وي.خکه چه په دې سره دعا قبليدو ته نزدې کيږي.لکه څنګه چه په نورو دعاګانو کښې دي.(لکه مونځ راواخله. چه اول درود دې.اوبيا ورپسے دعا ده.

**كيفية الصعود علي الصفا** ﴿ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلي دی .چه په صفاغونډئ به دومره خيجي. چه بيت الله دده نظر ته مخامخ راشي.خکه چه په صفا باندې د ختلونه مقصود د بيت الله استقبال دې. اودا مقصود به هم په دې صورت کښې حاصليږي.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلي دی.چه صفا طرف ته د تللو دپاره حاجی ته اختيار دې.چه دکومې دروازې نه غواړي.اودې خی.او نبی کريم ﷺ د باب بنی مخزوم نه وتلې وو.باب بنی مخزوم ته باب صفا هم وائی .ددې دروازې نه د نبی کريم ﷺ وتل په دې وجه وو.چه دا دروازه د صفا غونډئ ته ډيره نيزدې ده.نو ددې دروازې نه به وتل مستحب وي. سنت به نه وي.لکه چه امام شافعي رحمه الله د باب صفا نه وتلو ته سنت وائی.

## په مروه باندې مسنون اعمال

ثُمَّ يَنْحَطُّ نَحْوَ الْمَرْوَةِ وَيَمْشِي عَلَى هَيْنَتِهِ "فرمائی بيا دې راكوز شی طرف د مروه ته،اوروان دې وی په خپل وقار، فَإِذَا بَلَغَ إِلَى بَطْنِ الْوَادِي سَعَى بَيْنَ الْمِيلَيْنِ الْأَخْضَرَيْنِ سَعْيًا کله چه اورسيږی مينځ د وادئ ته،نو منډه دې وهی په مينځ د ميلين اخضرين کښې په منډې وهلو سره، وَيَمْشِي عَلَى هَيْنَتِهِ حَتَّى يَأْتِيَ الْمَرْوَةَ فَيَصْعَدُ عَلَيْهَا بيا دې روان وی په خپل وقار سره تردې چه اورسيږی مروه ته،اواوخيژی په هغې باندې، وَيَفْعَلُ كَمَا فَعَلَ عَلَى الصَّفَا اوکوی به هغه شان څنګه ئې چه کړی وو په صفا،

**حل اللغة** ﴿ ①**ينحط، انحطاطا**: راکوزيدل ②**هينة**: وقار ③**مشي، مشيا (ض)**: تلل ]

**تشريح** ﴿ **كيفية السعي إلي المروة** ﴿ امام قدوری رحمه الله فرمائی.چه د صفا نه دې مروه طرف ته راکوز شی.اوډيرپه آرام دې روان وی.بيا چه کله بطن وادی ته اورسی.نود ميلين اخضرين سره دې منډه اووهی.بيا دې په آرام سره روان وی.تردې چه مروه ته اورسی.اوپه هغې دې اوخيژی.اوهغه شان اعمال دې اوکړی.څنګه چه ئې په صفا کړی وو.

**دليله** ﴿ خکه چه نقل شوی دی.چه نبی ﷺ د صفا نه راکوز شو.او په آرام سره مروه طرف ته روان وو. اوپه بطن وادی کښې نې منډه اووهله.چه بيا کله د بطن وادی نه تير شو.نومروه ته اوختلو.اود دې دواړو په مينځ کښې نې اووه چکرې اولګولې. (٢)

(وَهٰذَا شَوْطٌ وَاحِدٌ اودا يوچکر دې.

**تشريح** ﴿ **عدد الأشواط** ﴿ ① صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه دصفا نه مروه ته تلل يو شوط دې.

**دليله** ﴿ خکه چه د نبی ﷺ دحج د ناقلينو ټولو راويانو په دې باندې اتفاق دې.چه نبی ﷺ د صفا

---

(١) تقدم تخريجه في حديث جابر رضي الله عنه الطويل۔

(٢) تقدم تخريجه في حديث جابر رضي الله عنه الطويل۔

اومروه په مینځ کښې اووه چکرې لګولې وې.

## د سعی د شروع اواختتام ځایونه

| (فَيَطُوفُ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ يَبْدَأُ بِالصَّفَا وَيَخْتِمُ بِالْمَرْوَةِ)نوکوي دې اووه شوطونه،شروع به کوي د صفا نه او ختموي به ئې په مروه باندې. (وَيَسْعَى فِي بَطْنِ الْوَادِي فِي كُلِّ شَوْطٍ) اومنډه به وهي په بطن الوادي کښې،په هريوشوط کښې، |
|---|

**تشریح> وجوب إبتداء السعي من الصفا>** صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه سعی اووه شوطونه (چکرې) دي. د شوط شروع به د صفا نه کيږي.اوپه مروه به ختميږي.اوپه هرشوط کښې به په بطن وادي کښې منډه وهي.

**دلائله>** ①دليل هغه حديث دې.کوم چه د تيرے شوې مسئلې په ضمن کښې تيرشوې دې.يعنی (أن النبي ﷺ نزل من الصفا وجعل يمشي نحوالمروة الحديث) ②اود صفا نه د سعی په شروع کولودا حديث دليل دې.(ابدأوا بما بدأ الله تعالى به) ([1]) يعنی دکوم ځائې نه چه الله تعالی په قرآن کښې شروع کړې ده.د هغه ځائې نه سعی شروع کوئ.اوالله تعالی د صفا نه شروع کړې ده.فرمائي. ((إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ)) په دې. حديث کښې لفظ د (اسعوا) صيغه د امر ده.نود صفا نه به شروع کول واجب وي.

## د سعی نه پس داحرام په حالت کښې په مکه کښې قيام

| (ثُمَّ يُقِيمُ بِمَكَّةَ حَرَامًا)بيا دې. اوسيږي په مکه کښې په حالت داحرام کښې، |
|---|

**تشریح> القيام في مكة محرماً بعد السعي>** صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه د طواف قدوم اوسعی نه فارغ شي.نودې نه پس دې. دا سړې په حالت د احرام کښې په مکه کښې اوسيږي.ځکه چه ده دحج ادا کولو دپاره احرام تړلې وو.نو اوس به د حج د افعالو ادا کولونه بغيرد احرام نه نۀ خارجيږي.يعنی داسې څه کار به نه کوي.چه په هغې باندې داحرام نه بهر شي.

| (فَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ كُلَّمَا بَدَا لَهُ)اوطواف دې. کوي د بيت الله نه چه کله ئې خوښه وي. |
|---|

**تشریح>** البته په دغه موده کښې چه ئې څومره خوښه وي.د بيت الله طوافونه دې کوي

**دليله>** ددې دليل دا دې.چه نبی ﷺ طواف د مانځه سره مشابه کړې دې.فرمائيلې ئې دي. (الطواف بالبيت صلاة إلا أن الله تعالى أحل فيه المنطق فمن نطق فيه فلاينطق إلا بخير) يعنی د خانه کعبې نه طواف کول د مانځه سره مشابه دې.نوڅوک چه طواف کوي.خبرې دې. نه کوي.مګر ښه خبرې،ددې حديث نه ښکاره کيږي.چه طواف د مانځه پشان دې.اومونځ يوکار دې.چه د مخصوص ځايونو نه سوي په هرځائې کښې په هروخت کښې ادا کولې شي.نودغه شان طواف هم هر وخت ادا کولې شي.

**عدم السعي بعدالطواف النفلي>** البته دومره خبره ضرور ده.چه ددې نفلي طوافونو نه پس دې. د صفا اومروه په مينځ کښې سعی نه کوي.ځکه چه سعی صرف يوځل واجب ده.اوهغه د طواف قدوم نه پس شوې ده.اوپه نفلي حيثيت سره سعی کول مشروع شوې نه ده.نود يوې سعی نه پس دې. سعی نه کوي.

[1] ) أخرجه النسائي باب القول بعد ركعتي الطواف رقم ۷۷۲ والدارقطني (۲/۲۵۵) والبيهقي (۵/۱۵۱) رقم ۹۳۳۷)_

**رکعتان بعد سبعة أشواط** > صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی .چه نفلی طواف کونکې دې. دهراووه شوطونو نه پس دوه رکعته کوی.دې. دوو رکعتونو ته صلاة الطواف وائی.

## په اوومه ذوالحجه خطبه وئیل

| |
|---|
| إِذَاكَانَ قَبْلَ يَوْمِ التَّرْوِيَةِ بِيَوْمٍ کله چه وراندې ورځ شی د ورځ د ترویه نه، خَطَبَ الْإِمَامُ خُطْبَةً بِيَوْمٍ خَطَبَ الْإِمَامُ خُطْبَةً يُعَلِّمُ النَّاسَ فِيهَا الْخُرُوجَ إِلَى مِنًى نوخطبه دې. اوکړی خطیب یوه خطبه،په دې. کښې به خودنه کوی خلقو ته، منی ته د تلو، وَالصَّلَاةَ بِعَرَفَاتٍ وَالْوُقُوفَ وَالْإِضَافَةِ)په عرفات کښې د مونځ کولو،وقوف عرفات اودهلته نه د روانیدو. |

**حل اللغة** > ①**وقوف:** اودریدل ②**افاضة:** واپس کیدل

**تشریح** > **الخطب الثلاث في الحج** > ① صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه په اوومه ذوالحجه به د ماسپخین دمانځه نه پس امام خلقو ته یوه خطبه اووائی.②اودویمه خطبه به نهمه ذوالحجه په ورځ دعرفه په میدان عرفات کښې د ماسپخین دمانځه نه وراندې اووائی.③اودریمه خطبه په منی کښې دماسپخین دمانځه نه پس

**عدم الجلوس في الخطبتين** > په اوله اودریمه خطبه کښې به د دوو خطبو په مینځ کښې نه کینی.بلکه صرف یوه خطبه به وائی.اوپه دویمه خطبه کښې یعنی د عرفات په خطبه کښې د دوو خطبو په مینځ کښې کیناستل ضروری دی.

## په یوم الترویه منی کښې اقامت

| |
|---|
| فَإِذَاصَلَّى الْفَجْرَيَوْمَ التَّرْوِيَةِ بِمَكَّةَ خَرَجَ إِلَى مِنًى کله چه مونځ اوکړی د صبا په ورځ ترویه په مکه کښې،نواوبه وُځی منی ته وَاقَامَ بِهَاحَتَّى يُصَلِّيَ الْفَجْرَيَوْمَ عَرَفَةَ اوقیام به اوکړی هلته تردې.چه اوکړی مونځ د صبا په ورځ د عرفې، |

**تشریح** > **الذهاب إلى منى يوم التروية** > دحج افعال بیانوی.امام قدوری رحمه الله فرمائی.چه په ورځ د ترویه چه په مکه کښې د صبا مونځ اوکړی.نو منی ته دې. روان شی.اوپه منی کښې به د نهمې ذوالحجې نه واخله ترلسمې ذوالحجې د صبا د مونځ پورې ایسار شی.تردې. چه د صبا مونځ به هم په منی کښې اوکړی.

**وقوع التسامح عبارة القدوری** > دقدوری د عبارت نه دا معلومیږی.چه په ورځ د ترویه چه څنګه د صبا مونځ اوکړی.نو منی ته به روانیږی.حالانکه دا د سنت نه خلاف ده.بلکه سنت دا ده.چه د ترویه په ورځ چه د صبا د مانځه نه پس نمر راوخیژی.نومنی ته به روانیږی. ارشاد دې.(أن النبي ﷺ صلى الفجريوم التروية بمكة فلما طلعت الشمس راح إلى منى فصلى بمنى الظهروالعصر والمغرب والعشاء والفجرثم راح إلى عرفات)[1]

**جوازترک القيام بمنى يوم الثامن مع الكراهة** > صاحب دهدایه رحمه الله په دې مقام کښې فرمائیلی دی که بالفرض په اتمه ذوالحجه منی ته اونه رسیدلو.اود اتمې ذوالحجې ورځ اود نهمې ذوالحجې شپه ئې په مکه کښې تیره کړه.اوپه نهمه ذوالحجه ئې په مکه کښې د صبا مونځ اوکړلو.اود منی په لاره تیرشو.اوعرفات ته اورسیدلو.نودا هم کافی ده.خکه چه په اتمه ذوالحجه په منی کښې د حج د

[1] ) تقدم تخريجه في حديث جابر الطويل )۔

افعالونه څه عمل نشته.البته دې. سړی چونکه د نبی ﷺ اقتداء پریخودله.نوددې وجې د یوې غلطۍ مرتکب شو.

| (ثُمَّ يَتَوَجَّهُ إِلٰى عَرَفَاتٍ فَيُقِيمُ بِهَا) بیا به روان شي عرفات ته،نو ایسار به شي دلته، |
|---|

**تشریح> الخروج إلي عرفات بعد طلوع الشمس>** صاحب د قدوری رَحِمَهُ الله اصل مسئلې ته واپس کیږي. اوفرمائی .چه په نهمه ذوالحجه چه د صبا مونځ په منی کښې اوکړی.نو د نمر راختو نه پس دې. عرفات ته روان شي.

**دلیله>** دلیل هغه حدیث دې کوم چې مونږ وړاندې بیان کړل

**جوازالخروج بعدصلاة الفجر>** صاحب د هدایه فرمائیلی دی خودا خیال ساتل پکار دی.چه د نمر راختو نه پس میدان عرفات ته روانیدل صرف مستحب خبره ده.که د صبا مونځ نه پس روان شي.نوهم جائز ده.خکه چه په اتمه ذوالحجه دمنی سره د حج افعالو نه څه عمل متعلق نه دې.نوکه د صبا مونځ نه پس عرفات ته روان شي.نوڅه قباحت په کښې نشته.

## په عرفات کښې جمع بین الصلاتین

| (فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ من يوم عرفة صَلَّى الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ)اوکله چه زائله شی نمر په ورځ د عرفې نومونځ دې اوکړی امام خلقو ته د ماسپخین اومازیګر، ثُمَّ يَبْتَدِىءُ بِالْخُطْبَةِ نو شروع دې اوکړی په خطبه فَيَخْطُبُ خطبتين قبل الصلاة نو خطبه دې اووائی دوه خطبې وړاندې د مانځه نه يُعَلِّمُ فِيهِمَا النَّاسَ الْوُقُوفَ بِعَرَفَةَ ښائی دې په هغې دواړو کښې خلقو ته طریقه د قیام په عرفات وَالْمُزْدَلِفَةِ وَرَمْيَ الْجِمَارِ وَالنَّحْرَ وَالْحَلْقَ وَطَوَافَ الزِّيَارَةِ اومزدلفه کښې،اوویشتل د شیطانانواوقربانی اوسرخرنیل اوطواف زیارت. |
|---|

**حل اللغة >** ①**یبتدی، ابتداء:** شروع کول

**تشریح> محل الخطبة>** صاحب دقدوری رَحِمَهُ الله فرمائی.چه په نهمه ذوالحجه دې. امام یا د هغه نائب خلقو ته د ماسپخین اومازیګردواړه مونځونه د ماسپخین په وخت کښې ادا کړی. ① ترتیب دا دې.چه اول دې. خطبه اووائی.چه په هغې کښې خلقو ته د افعالود حج تعلیم ورکړی.اود جمعې پشان به دوه خطبې وی.د هغې دواړو په مینځ کښې به کینی.هم دا درسول الله ﷺ معمول وو. [1]

**دلائله >** دلیل هغه روایت دې.کوم ته چه د حضرت جابر رضی الله عنه په حدیث کښې اشاره شوې ده.اوپه حدیث د حضرت جابر رضی الله عنه کښې دا ښکاره ذکر دې.چه نبی ﷺ خطبه د مانځه نه وړاندې وئیلې وه.②دویم دلیل دا دې.چه په عرفات کښې دخطبې وئیلو مقصود دا دې.چه خلقوته مناسك دحج اوښائی.اوجمع بین الصلاتین هم په مناسك حج کښې دی.اود تعلیم مقصد په دې. کښې حاصلیږی.چه خطبه : مانځه نه وړاندې وی روستو نه.ددې وجې زمونږ په نیزد مانځه نه وړاندې دخطبې وئیلوحکم ورکولې شي.

## په جمع بین الصلاتین کښې یواذان اودوه اقامتونه

| وَيُصَلِّي بِهِمُ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ فِي وَقْتِ الظُّهْرِ بِأَذَانٍ وَإِقَامَتَيْنِ اومونځ به ورکوی دوی ته امام د ماسپخین اومازیګر په وخت د ماسپخین کښې په یو اذان او دوو اقامتونو. |
|---|

[1] **مذهب مالك:** – امام مالك رَحِمَهُ الله فرمائی. چه د عرفې د ورځې خطبه د مانځه نه پس ده.وړاندې نه ده.

**تشريح﴾ الجمع بين الصلاتين﴿** په ميدان عرفات كښې به امام خلقوته د ماسپخين اوماښيگر دواړه مونځونه په يواذان او دوو اقامتونو سره ادا كړي.

**دليله﴾** د جمع بين الصلاتين باندې نقل مشهور دي.ځكه چه د نبي ﷺ نه چه كومو راويانو جمع بين الصلاتين نقل كړې ده.دهغې ټولوپرې اتفاق دې. (١)

**دليل الأذان والإقامتين﴾** اود يو اذان اودوو اقامتونو دليل هغه حديث دې.په كوم كښې چه ذكر دى.چه رسول الله ﷺ دا دواړه مونځونه په ميدان عرفات كښې په يو اذان او دوو اقامتونو سره كړى دى

**تفصيل المقام﴾** د دې. تفصيل دا دې.چه اول دې.د ماسپخين دپاره اذان اوكړى.بيا دې. اقامت اوكړى.اوبيا د ماښيگردپاره اقامت ځكه چه د ماښيگر مونځ دخپل مقرر وخت نه وړاندې ادا كولې شي.اوخلق ټول حاضر وى. نو حاضرينو ته دخبر وركولودپاره صرف اقامت كافى دې.اود اذان څه ضرورت نشته.

## د خطبې اوبيا د جمع بين الصلاتين د جماعت پريخودل

| (وَمَنْ صَلَّى الظُّهْرَ فِي رَحْلِهِ وَحْدَهُ (امام قدوري) فرمائي.چا چه مونځ كولو دماسپخين په خپله خيمه كښې خانله، صَلَّى كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا فِيْ وَقْتِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى (٢) نومونځ به كوى د دواړو نه په وخت خپل كښې په نيز د امام ابوحنيفه رحمه الله |
|---|

**تشريح﴾ حكم أداء العصر عند أداء الظهر منفرداً﴿** صورت د مسئلې دا دې.① كه يوحاجى د ماسپخين مونځ په خپله خيمه كښې اوكړلو.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزيه دا كس د ماښيگر مونځ په خپل وخت كښې كوى.يعنى ماسپخين اوماښيگر به د ماسپخين په وخت كښې نه جمع كوى.

**دليله﴾** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه په وخت كښې دننه د مونځ پابندى فرض ده.دالله تعالى ارشاد دې.(إِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا) اوكوم څيزچه په نصوص قرآنى سره ثابت وى.د هغې پريخودل جائز نه دى.مگردا چه د هغې خلاف شريعت وارد شوې وى.او د شريعت ورود په هغه صورت كښې دې.چه د امام سره په جماعت مونځ ادا كړې شي.نوثابته شوه چه په ورځ د عرفې يوحاجى د ماسپخين اوماښيگر مونځ په جماعت اوكړى.نوهله به د ماښيگرمونځ دهغې په وخت مقدم كوى. او جمع بين الصلاتين به كوى.اوكه داسې نه وى.(يعنى د ماسپخين مونځ ئې په جماعت سره نه وى كړې.نود ماښيگرمونځ به د خپل وقت نه وړاندې نه كوى.

| وَقَالَ ابويوسف ومحمد: يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا الْمُنْفَرِدُ اوفرمائى صاحبين رحمهما الله چه جمع به كوى په مينځ ددې دواړو كښې منفرد، |
|---|

**تشريح﴾ مذهب الصاحبين﴿** صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه خانله مونځ كونكې به هم جمع بين الصلاتين كوى.يعنى منفرد په جماعت سره د جمع بين الصلاتين سره برابر دې.

**دليلهما﴾** د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه په عرفات كښې حاجى ته د جمع بين الصلاتين اجازت ځكه ملاؤ شوې دې.چه وقوف د عرفات زيات نه زيات اوكړى.يعنى د وقوف عرفات د اوږدوالى دپاره

---

(١) تقدم تخريجه في حديث جابر رضي الله عنه الطويل ).

(٢) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٣٧١\٢) وردالمحتار(١٨٩\٢) والهندية (٢٢٨\١ ) نقلاً عن القول الراجح (٢١٠\١).

د جمع بين الصلاتين اجازت ورکړې شوې دې.اوهم دا وجه ده.چه په چا وقوف دعرفات فرض نه وي.نوهغه ته د جمع بين الصلاتين اجازت هم نشته.اوپه دې. ضرورت کښې منفرد او په جماعت سره مونځ کرا کونکی دواړه برابر دی.نوځکه به د جمع بين الصلاتين حکم د دواړو دپاره یوشان وي.

**الجواب عنه** > خو د دې دليل نه جواب دا دې. چه د عرفې په ورځ د مازيګر د مونځ تقديم د وقوف عرفات د اوږدوالی د وجې نه دې.لکه څنګه چه صاحبين ﷭ فرمائی.ځکه چه د مونځ اووقوف په مينځ کښې څه منافات نشته.دواړه يوځائې جمع کيدې. شی.بلکه د مازيګرورانديې کول د جماعت د حفاظت دپاره دې.(چه د جماعت مونځ فوت نشی)ځکه که د ماسپخين مونځ اوکړی.اوخلق په ميدان عرفات کښې خواره شی.نود مازيګردپاره به د :وی راجمع کول ډیرګران شی.نوددې ګرانوالی او د جماعت د فضيلت حاصلولو دپاره به د مازيګرمونځ په خپل وخت باندې وړاندې کوی.اود ماسپخين اومازيګردجمع کولو حکم شوې دې.

**جبل رحمت سره نزدې. اودريدل**

| ثُمَّ يَتَوَجَّهُ إِلَى الْمَوْقِفِ فَيَقِفُ بِقُرْبِ الْجَبَلِ بيا به روان شی خانې د اودريدو ته نو اوبه دريږی نزدې. د غرسره |
|---|

**تشريح** > **القيام بقرب جبل الرحمة** >مسئله دا ده.چه د جمع بين الصلاتين نه چه فارغ شی.نوامام اوخلق ټول به موقف طرف ته روان شی.اوغرته دې. نزدې. اودريږی.اود دې. خانې د اودريدو نوم موقف اعظم دې.

**دليله** > دلته به ځکه اودريږی.چه نبی ﷺ هم دلته اودريدلې وو. ([1])

**ميدان عرفات ټول موقف دې.**

| وَعَرَفَاتٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ إِلَّا بَطْنَ عُرَنَةَ اوعرفات ټول خانې د اودريدو دې.مګربطن ،وادی غرنه، |
|---|

**حل اللغة** > ①**موقف**: دَ اودريدو ځایْ ②**بطن عرنه**: په عرفات کښې يوه وادی ده

**تشريح** > **عدم القيام في وادی عرنة** >فرمائی چه د بطن عرنه نه سوې نور ټول ميدان عرفات د قيام خانې دې. يعنی په بطن عرنه کښې به نه اودريږی.اوباقی په ټول ميدان کښې اودريدې. شی.

**دليله** >بعضې حضراتو فرمائلی دی.چه نبی ﷺ په بطن عرنه کښې شيطان ليدلې وو.ځکه ئې په دې. مقام کښې د اودريدو نه منع کړې ده.دغه شان د وادی محسرنه سوې باقی ټوله علاقه په مزدلفه کښې موقف دې. ([2])

**دامام د قيام مستحب کيفيت**

| وَيَنْبَغِي لِلْإِمَامِ أَنْ يَقِفَ بِعَرَفَةَ عَلَى رَاحِلَتِهِ اومناسب دی دپاره د امام چه اودريږی په ميدان عرفات کښې په خپله سورلۍ باندې |
|---|

**حل اللغة** > ①**راحلة**: سورلی ②**وقف، وقوفاً (ض)**: حصاريدل ]

---

[1] ) تقدم تخريجه في حديث جابر ﷺ الطويل )_

[2] ) من حديث جابر ﷺ اخرجه ابن ماجه في المناسك باب ۵۵ رقم ۳۰۱۲)_

**تشریح ﴿ الوقوف علي الراحلة ﴾** مسئله دامام المسلمین دپاره په سورلئ باندې سور وقوف کول افضل دی.

**دلیله ﴿** ځکه چه د نبی ﷺ سنت هم دا دی. [1]

**جواز القیام علي القدمین ﴿** خوکه په خپلو پښو باندې اودریدلو.نوهم څه قباحت نشته.

### دامام دعا کول اوخلقو ته د مناسك حج تعليم ورکول

| وَيَدْعُوَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْمَنَاسِكَ او(امام دې.) دعا کوی.اوښانی دې. خلقو ته افعال دحج، |
|---|

**حل اللغة ﴿** ①**مناسک**: دحج افعال او ارکان

**تشریح ﴿ سنية الدعاء تعليم الناس المناسک ﴾** د کومو دعاګانو په باره کښې چه آثار راغلی دی.په هغې کښې یو اثرد علیؓ دې. (عن علی رضي الله عنه أنه ﷺ قال أكثر دعائي ودعاء الأنبياء من قبلي عشية عرفة لا إله إلا الله وحده لا شريك له،له الملك وله الحمد،يحي ويميت وهو حي لا يموت،بيده الخير،وهو على كل شئ قدير،اللهم اجعل في قلبي نوراً وفي سمعي نوراً وفي بصري نوراً اشرح لي صدري ويسر لي أمري وأعوذبك من وسواس الصدر وشتات الأمر وفتنة القبر اللهم إني أعوذبك من شر مايلج في الليل وشر ماتهب به الرياح)

### د وقوف عرفه نه وړاندې غسل کول

| (وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَغْتَسِلَ قَبْلَ الْوُقُوفِ بعرفة صاحب دقدوری رحمه الله فرمانی.اومستحب دی چه غسل اوکړی وړاندې دوقوف نه په عرفات وَيَجْتَهِدَ فِي الدُّعَاءِ اوکوشش اوکړی په دعا کښې، |
|---|

**حل اللغة ﴿** ①**يجتهد، اجتهادًا**: پوره کوشش کول

**تشریح ﴿ الغسل قبل الوقوف بعرفة ﴾** صاحب د قدوری رحمه الله فرمانی.چه د وقوف عرفات نه وړاندې غسل کول اوپه دعاکښې کوشش کول سنت دی.واجب نه دی.دمستحب وضاحت کوی.

**عدم وجوب الغسل ﴿** امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی.چه د وقوف عرفه نه وړاندې غسل کول سنت دې. واجب نه دې.نوکه په اودس نې اکتفاء اوکړله.هم جائز ده.لکه څنګه چه جمعه اخترونو اوداحرام تړلو نه وړاندې غسل کول سنت دی.خوکه په اودس نې اکتفا اوکړله. نوجائزده.

**وجه المبالغة في الدعا ﴿** اوپه دعا کښې کوشش کول مستحب دې.ځکه چه نبی ﷺ هم په دې. مقام کښې د خپل امت دپاره په دې. مقام کښې په دعا کښې ډیر کوشش کړې وو.اود قتل ناحق اوظلمونو نه سوې چه کوم حقوق العباد دی.نودهغې په باره کښې هم تولې دعاګانې قبولې شوې .

### مزدلفې ته تلل کول

| (فَإِذَاغَرَبَتِ الشَّمْسُ أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ مَعَهُ عَلَى هَيْئَتِهِمْ فرمانی اوکله چه ډوب شی نمر،نوراکوز به شی امام اوخلق دده سره په خپل وقار، حَتَّى يَأْتُوا الْمُزْدَلِفَةَ تردې چه راشی مزدلفې ته، فينزلون بها نو دلته به کوز شی |
|---|

**حل اللغة ﴿** ①**غرب، يغرب غروبًا (ن)**: ډوبیدل ②**افاض، افاضة**: واپس کیدل، روانیدل ③**هيئة**: وقار

---

[1] ) تقدیم تخریجه في حدیث جابر رضي الله عنه الطویل )_

**تشریح> الإفاضة من عرفات>** په نهمه ذوالحجه د نمر د ډوبیدو نه پس به د ماښام مونځ کولو نه بغیرخلق د عرفات نه راکوز شي.اومزدلفې ته به روان شي.

**دلائله>** ځکه چه نبی ﷺ د نمر ډوبیدو نه پس واپس شوې وو. (۱) ② بله دا چه په دې. کښې د مشرکانو د مخالفت اظهار دې.ځکه چه مشرکان به په جاهلیت کښې د نمر ډوبیدو نه وړاندې واپس کیدل.اونبی ﷺ په لار کښې په خپله اوښه قصواء باندې ډیرپه وقار اواطمینان سره روان وو. (۲)

**جواز الدفع قبل الإمام>** مسئله دا ده.که حاجی د ګڼړے د وجې د امام د روانیدو نه وړاندې د عرفات نه روان شو.اود عرفات د حدودو نه بهر نشو.نوجائزده.ځکه چه دې. ته د عرفات نه تګ نشي وئیلې.خوبیا هم خلاف اولی ده.بلکه افضل داده.چه په خپل ځائې قیام اوکړی.ددې دپاره چه د خپل وخت نه ادا مخکښې یعنی د عرفات نه روانیدل متحقق نشي.

**جوازالتاخیرعن الإمام>** دویمه مسئله دا ده.که حاجی د نمر ډبیدو نه پس اودامام د روانیدو نه پس لږ غوندې. تاخیر اوکړلو.نو په دې. کښې قباحت نشته.

**دلیله>** ځکه چه روایت شوې دې.چه حضرت عائشې ؓ د امام دتلو نه پس اوبه راوغوښتلې.او روژه ئې ماته کړله.اوبیا روانه شوه.اوښکاره خبره ده.چه په اوبو راغوښتلو او روژه ماتی کښې به څه وخت لګیدلے وی.نومعلومه شوه.چه د امام د تلو نه پس اود نمر ډبیدو نه پس لږ وخت روستو کیدل څه قباحت نه لري.

**په مزدلفه کښې جبل قزح سره نزدې. اودریدل**

| وَالْمُسْتَحَبُّ أَنْ يَّنْزِلُوْا بِقُرْبِ الْجَبَلِ اومستحب دا ده.چه کوز شی نزدې د غر سره الَّذِیْ عَلَيْهِ الْمُقِيْدَةُ يُقَالُ لَهٗ قُزَحُ)هغه چه په هغې باندې انګیټئ ده.اوونیلی شي ورته قزح، |
|---|

**حل اللغة >** ①**اتي، اتيانًا (ض)**: راتلل ②**ميقدة**:آتشدان ددې نوم قزح دې ③**يتحرز، تحرزًا**: بچ کیدل، احتراز کول ④ **ينزل،نزولاً (ض)** : راکوزیدل ⑤ **مارة** دَ مار جمع: دَتیریدو لار ]

**تشریح> الوقوف بقرب الجبل القزح>** دحاجی دپاره مستحب دی.چه په مزدلفه کښې د جبل قزح سره نزدې. اودریږي.

**دلیله>** ځکه چه نبی ﷺ دې. سره نزدې. اودریدلې وو. (۳) اودغه شان حضرت عمرفاروق ؓ هم دې. سره نزدې. اودریلې وو.

**ألتحرز في النزول عن الطريق>** اوحاجی ته پکار دی.چه لارې ته نه راکوزیږی.بلکه ښی یا ګس طرف ته دې. راکوزیږی.ځکه چه په لار کښې راکوزیدو کښې تیریدونکو ته تکلیف ملاویږی.

**القيام وراء الإمام>** اودحاجی دپاره پکار دی.چه د مزدلفې په قیام کښې د امام شا ته اودریږی. دلیل هغه دې.کوم چه مونږ. د عرفات په وقوف کښې د امام شا ته په اودریدو کښې بیان کړې دې.

---

[۱] ) من حدیث علي بن أبي طالب ؓ اخرجه أبوداود في المناسك باب ٦٣ رقم ١٩٢٢ مقطعاً والترمذی في الحج باب ٥٤ رقم ٨٨٥ وابن ماجه في المناسك باب ٥٥ رقم ٣٠١٠)

[۲] ) تقدم تخريجه في حديث جابر ؓ الطويل )

[۳] ) من حديث علي بن أبي طالب ؓ أخرجه أبوداود في المناسك باب ٦٣ رقم ١٩٢٢ مقطعاً والترمذی في الحج باب ٥٤ رقم ٨٨٥ وابن ماجه في المناسك باب ٥٥ رقم ٣٠١٠)_

قزح په ضمه د ،قاف، او ،د، په فتحه سره.دا لفظ د قزح په معنی د ارتفاع نه ماخوذ دی.د اوچتوالی دوجې دي. ته قزح وانی.په دې. غربانـدې انگیتی، وه.چه هغـه بـه د جاهلیت په وخت کښې خلقو بلوله.اود هارون الرشید په زمانه کښې به په مزدلفه باندې شمع بلولې شوه.اود هارون الرشید نه پس به لوئې لوئې ډیوې بلولې شوې .

## دامام مونځ په یو اذان اویو اقامت سره ادا کول

| وَيُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ فِي وقت العشاء بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ اومونځ دې ورکړی امام خلقو ته د ماښام اوماسخوتن په وخت د ماسخوتن کښې په یواذان او یو اقامت، |
|---|

**تشریح> إقامة العشاء بمزدلفة>** مسئله دا ده.① چه امام دې. په مزدلفه کښې د ماښام او ماسخوتن مونځونه په یو اذان او یو اقامت باندې جمع کړی (1)

**دلائله>** ① دلیل دحضرت جابر﷛ حدیث دې.چه نبی ﷺ په مزدلفه کښې د ماښام او ماسخوتن دواړه مونځونه په یواذان او یواقامت سره جمع کړی وو.

② دویم دلیل دا دې.چه ماسخوتن په خپل وخت کښې ادا کیږی.نوخلقو ته د وخت داخلیدو اعلان هڅو څه ضرورت نشته

## د مزدلفه په لار کښې د مونځ کولوحکم

| (وَمَنْ صَلَّى الْمَغْرِبَ فِي الطَّرِيقِ لَمْ يُجْزِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ،(2)اوچا چه مونځ اوکړلود ماښام په لار د مزدلفه کښې نونه جائز کیږی ورله په نیز د امام ابوحینفه اوامام محمد ﷮ |
|---|

**تشریح> عدم جواز المغرب في الطريق>** مسئله دا ده.① که حاجی د ماښام مونځ د مزدلفې په لار کښې اوکړلو.نود طرفینو ﷮ په نیزدا مونځ صحیح نه دې.بلکه په ده باندې د صبا راختو نه وړاندې وړاندې ددې راګرځول واجب دی.

**دلیلهما>** دطرفینو ﷮ دلیل دا دې.چه حضرت اسامه بن زید﷛ د مزدلفې په لار کښې نبی ﷺ ته عرض اوکړلو.اې دالله پیغمبره! مونځ اوکړئ.نونبی ﷺ ورته اوفرمائیل.«الصلاة أمامك»یعنی د مونځ وخت ستا وړاندې دې.یعنی په مزدلفه کښې،ددې نه معلومه شوه.چه د ماښام مونځ روستو کول واجب دی.

**وجه تاخیرها>** اوددې روستو کول صرف په دې. غرض واجب دی.چه په مزدلفه کښې جمع بین ا لصلاتین اوشی.نوددې جمع بین الصلاتین دپاره به د صبا راختو نه وړاندې وړاندې دماښام د مونځ اعاده کوی. خو چه کله صبا راوخیژی.نوچونکه اوس د دواړو مونځونوجمع کول ممکن پاتې نشو. نو ځکه د صبا راختو نه پس اعاده ساقطه شوه.

**مذهب ابي يوسف﷫>** امام ابویوسف ﷫ فرمانی.چه مونځ ټیک دې.البته د سنت په پریخودو سره ګناهګار شو.هم دا اختلاف په هغه صورت کښې دې.چه د ماښام مونځ په میدان عرفات کښې اوکړی.

---

1) **مذهب زفر:-** دامام زفر ﷫ مذهب دا دې.چه په یو اذان او دوو اقامتونو به ئې جمع کوی.

2) القول الراجح هو هذا قول الطرفين ﷮ كذا في الدري لمختار(۲\۱۹۲) والبحر(۲\۱۹۲) والهندية (۱\۲۳۰) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۱۲)۔

يعني په دي. صورت كښې هم د طرفينو رحمهما الله په نيز مابنام تيك نه دې.اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز مابنام صحيح دې.

**دليله** دامـام ابويوسـف رحمه الله دليـل دا دې.چـه دې.حـاجي دمابنـام مـونځ پـه خپـل وخـت كـښې اوكړلو.اوكوم مونځ چه په خپل وخت كښې اوشي.دهغې راګرځول واجب نه وى.نودغه شان ددې مونځ راګرځول هم واجب نه دى.لكه څنګه چه په هغه صورت كښې په ده باندې ددې راګرځول واجب نه دى.چه صبا راوخيژى.البته دومره خبره خامخا ده.چه د مابنام مونځ روستو كول سنت دى.نود سنت د پريخودو په وجه دا كس ګناهګار دې.

## په لسمه ذوالحجه دصبا مونځ په تياره كښې كول

(فَإِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ صَلَّى الْإِمَامُ بِالنَّاسِ الْفَجْرَ بِغَلَسٍ )فرمائى اوكله چه راوخيژى صبا مونځ دې. وركړى امام خلقو ته د صبا په تيارهٔ كښې،

**حل اللغة** ①**غلس:** تياره ]

**تشريح** **أداء صلاة الفجر بغلس** مسئله دا ده.چه كله د اختربه ورځ صبا شى.نوامام به خلقوته د صبا مونځ په تيارهٔ كښې كوى.

**دلائله** ①دليل دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دې.چه نبى ﷺ په دغه ورځ د صبا مونځ په تياره كښې كړې وو([1])

②دويم دليل دا دې.چه د صبا د مونځ په تيارهٔ كښې كول په مزدلفه باندې دوقوف دپاره دى.لكه څنګه چه په عرفات كښې دوقوف دپاره دمازيګرمونځ دخپل وخت نه وړاندې كولې شى. نو هركله چه د وقوف عرفات دپاره د مازيګرمونځ دخپل وخت نه وړاندې كولې شى.نوبه مزدلفه كښې د وقوف دپاره خويه د صبا مونځ دخپل معتاد وخت نه په طريق اولى سره مخكښې كولې شى.اودا به جائز وى.

## د صبا دمانځه نه پس دعا اووقوف كول

ثُمَّ وَقَفَ الْإِمَامُ وَوَقَفَ النَّاسُ مَعَهُ فَدَعَا بيا به اودريږى (امام) اوده سره خلق،اودعا به اوكړى.

**حل اللغة** ①**دعا، يدعوا، دعاءً(ن):** دعا كول، رابلل

**تشريح** **الدعاء بالمزدلفة** صاحب د قدورى رحمه الله فرمائى.چه امام جبل قزح ته اورسى.نووقوف به اوكړى اوده سره به خلق هم وقوف اوكړى.اوامام اوخلق دې. په دې. خاې كښې دعاګانې كوى.

**دليله** څكه چه دا خاې ددعا د قبليدو دې.هم دا وجه وه.چه نبى ﷺ كريم په دې. مقام كښې دعا كړې وه.اود حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما د روايت مطابق ټولې دعاګانې ئې قبولې شوې وې.ترډې. چه په ناحقه قتل كونكو اوظلم كونكو ته هم د معاف كولو دعانې قبوله شوې وه. ([2]) يعنى دقيامت په ورځ به الله تعالى ناحق مقتول اومظلوم ته دومره څه وركړى.چه هغه دالله تعالى نعمتونو اوانعاماتو ته اوګورى.نوخپل مدعيان عليهم به معاف كړى.نودغه قاتل اوظالم به د مغفرت مستحق شى.

**نوټ** نبى ﷺ د خپل امت د قاتلانواوظالمانو دپاره هم د عرفې په ورځ د مغفرت دعا كړې وه.خوهغه نه وه قبول شوې .بلكه په مزدلفه كښې د وقوف په دوران كښې پوره شوه.نواوس دا اعتراض نشى

---

[1] ) من حديث ابن مسعود رضي الله عنه اخرجه الشيخان )_

[2] ) تقدم من حديث جابر رضي الله عنه الطويل)_

کیدي.چه د عرفې په ورځ دي. دواړه قسمه خلقو ته د ګناه نه معاف کول بیان شوی وو.اودلته قبولوالې بیانیږی.

**وادی محسر موقف نه دی.**

| وَالْمُزْدَلِفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ إِلَّا بطن مُحَسِّرٍ)فرمائی اومزدلفه ټول ځائې د اودریدو دې.مګروادی محسر، |
|---|

**تشریح>** مسئله واضحه ده

**د نمرراختو نه پس منی ته روانیدل**

| (ثم أَفَاضَ الْإِمَامُ وَالنَّاسُ مَعَهُ بیا به روان شی امام اوخلق هغه سره قبل طلوع الشمس وړاندې د راختلو د نمر نه حَتّٰى يَأْتُوامِنٰی تردې چه اورسی منی ته، |
|---|

**تشریح> الإفاضة إلي مني >** صاحب دقدوری رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمائی.چه د یوم النحر نمر راوخیژی نو روان به شی امام اوخلق د مزدلفې نه منی ته به لاړ شی.

**الکلام علي عبارة القدوری >** صاحب دهدایه رَحِمَهُ اللّٰهُ په دې مقام کښې هغه نسخه نقل کړې ده په کوم کښې چې د « قبل طلوع الشمس » عبارت نشته او بیا ئې فرمائیلی دی .چه د قدوری په بعضې نسخوکښې دی. چه د نمر راختو نه وړاندې به منی ته روان شی.لکه څنګه چې زمونږ په پاکستانی نسخو کښې دی لکه چې صاحب د هدایه رَحِمَهُ اللّٰهُ د قبل طلوع الشمس واله نسخې غلطی بیان کړې ده خومونږ وایو.چه د قدوری دا عبارت هم ټیك دې. ځکه چه د ﴿إذا طلعت الشمس﴾ معنی به وی ﴿إذا قربت إلى الطلوع﴾ نو په دې. دواړو نسخو کښې څه تعارض نشته.

**د جمره عقبه رمی**

| فَيَبْتَدِئُ بِجَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فَيَرْمِيهَا مِنْ بَطْنِ الْوَادِي نوشروع به کوی په (رمی د) جمره عقبه نه،نو اوولی به ئې د بطن وادی نه، بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ مِثْلَ حَصَاةِ الْخَذْفِ په اووه ګیټکو پشان د کاڼو د ټیکرو، |
|---|

**حل اللغة >** ① **یرمي، رمیا (ض)** :غورزول ② **حصاة:** کاڼړی ③ **خذف:** ټیکری

**تشریح> مواضع أحکام الرمي>** د رمی په باره کښې په دولس ځایونو کښې کلام دې. ①وخت ئې یوم النحر اودرې ورځې ددې نه پس دی②د ویشتلو ځائې ئې بطن وادی دې. ③د رمی محل ئې درې ځایونه دی. جمره عقبه،مسجد خیف اوجمره وسطی. ④ دګیټکو شمار دهرې جمرې سره اووه دی.⑤ مقدار د ګوتې د بند هومره دې. ⑥د ویشتلو طریقه دا په کتاب کښې موجود ده.⑦ د رمی مقدارنودا هم په کتاب کښې ذکر ده.⑧ د ویشتونکی صفت دا دې.چه دې. به یا سور وی یا پیدل⑨د ګیټکو غورځیدو ځائې⑩ دکوم ځائې نه چه ګیټکی راخلی.⑪ ګیټکی به څنګه وی.هغه دا چه د زمکې د جنس څنې به وی.

⑫ په اوله ورځ به صرف د جمره عقبه رمی کولې شی.اوپه باقی ورځو کښې به د درې واړو جمراتو رمی کولې شی.

**رمي الجمرة العقبة >** صاحب دقدروی رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمائی.چه د رمی شروع به د جمره عقبه نه کیږی.نود وادی د ښکته حصې نه به اووه ګیټکی اولی.اودا ګیټکی به د ګوتود بندونو په برابر وی.اود مسواکې ګوتې په ډډه باندې ویشتلې شی.

**دليله** ① دليل دا دي چه نبی ﷺ کله منی ته تشريف يوړلو .نويغير د څه توقف نه ئې جمره عقبه ويشتې وه. [1]② اونبی ﷺ فرمائيلی دی.په تاسويانديکيتکی ويشتل لازم دی.په تاسوکښې دې. بعضې خلق بعضو نورو ته تکليف نه رسوی. [2]

**مقدارالحصاة** په اوړدوالی اوپلنوالی سره د ګيتکو اندازه ئې بيان کړله.چه د ګوتې د بند برابر به پلن اواوږد وی.خوکه ددې نه ئې په غټ ګټکی رمی اوکړله.نوهم جائز ده.ځکه چه مقصود د رمی حاصل شو.البته دومره ده چه په غټو کانړو دې. رمی نه کوی.ګنی خلقو ته به تکليف اورسی.

غوره خودا ده.چه رمی د بطن وادی نه اوکړی.خوکه د جمره عقبه دپاسه طرف نه ئې رمی اوکړله.نو هم جائز ده.ځکه چه د جمره نه څلورو طرفونو ځايونه د افعالو دحج دی.

| (وَيُكَبِّرُمَعَ كُلِّ حَصَاةٍ)اوتکبيربه وائی دهرګيتکی سره. |
|---|

**تشريح** **التكبيرعندالرمي** دهرګيتکی سره به الله اکبروائی ليله:

**دليله** لکه څنګه چه د ابن مسعود اوابن عمرو رضي الله عنه دحديث نه معلومه شوې ده. [3]

**التسبح مكان التكبير** خوکه د تکبير په ځائې تسبيح اووائی.نوهم صحيح ده.ځکه چه ذکرالله حاصل شو. او هم ذکرالله د رمی د آدابو څنې دې.

| (وَلَايَقِفُ عِنْدَهَا)اونه به اودريږی ددې (جمره عقبه) سره، |
|---|

**تشريح** **عدم الوقوف عندالجمرة** حاجی به د جمره عقبه سره نه اودريږی.

**دليله** ځکه چه رسول الله ﷺ هم نه وو اودريدلې. [4]

| (وَيَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ مَعَ أَوَّلِ حَصَاةٍ)اوختمه به کړی تلبيه د اول ګيتکی سره، |
|---|

**تشريح** **قطع التلبية** اوداولنی ګيتکی ويشتلو سره به تلبيه ونيل پريږدی.

**دلائله** ① ځکه چه دحضرت ابن مسعود ② او حضرت جابر رضي الله عنهما په حديث کښې هم دا ذکر دی. [5]

**كيفية رمي الحصاة** د رمی کيفيت دا دې چه ګيتکے به د ښې لاس د متې ګوتې په شا باندې کيږدی.اود مسواکې ګوتې په مدد سره به رمی اوکړی

**د ذبح،حلق،اوقصراحکام**

| (ثُمَّ يَذْبَحُ إِنْ أَحَبَّ ثُمَّ يَحْلِقُ أَوْيُقَصِّرُ)بيا دې ذبح اوکړی که زړه ئې غواړی بيا دې سراوخرائی يا دې قصر اوکړی. |
|---|

**حل اللغة** ①**يذبح، ذبحًا(ف)**: حلالول②**يقصر، تقصيرًا**:وروکې کول

[1]) تقدم تخريج من حديث جابر رضي الله عنه الطويل )ـ
[2]) هذا قريب من حديث عمروبن الأحوص عن امه اخرجه ابوداود في المناسك باب ٧٧ رقم ١٩٦٦ وابن ماجه في المناسك باب ٦٤ رقم ٣٠٣١ واحمد في المسند (٣/٥٠٣)ـ
[3]) أما حديث ابن مسعود رضي الله عنه فاخرجه البخارى في الحج باب ١٣٧ رقم ١٧٤٩ ومسلم في الحج رقم ٣٠٥ ، وأما حديث ابن عمر رضي الله عنهما فاخرجه البخارى في الحج باب ١٤٠ رقم ١٧٥١)ـ
[4]) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه البخارى في الحج باب ١٤٠ رقم ١٧٥١)ـ
[5]) تقدم ما في معناه في الحديث الطويل لجابر رضي الله عنه )ـ

**تشریح> الذبح والحلق>** صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه د رمی جمره عقبه نه پس که غواړي.نوقرباني دې اوکړي.او سردې اوخرائي يا دې قصر(د ويختوخه حصه کټ کول) اوکړي.

**دلائله>** ①دليل دا دې.چه نبي ﷺ فرمائيلي دی.په نن ورځ يعنی د نحر په ورځ اولنی نسك دا دې.چه مونږرمی اوکړو.بيا قرباني اوکړو.اوبيا حلق اوکړو. (١)

②دويم دليل دا دې.چه حلق داحرام نه د وتلو په اسبابوکښې دې.اوقرباني هم د احرام نه د وتلو په اسبابو کښې ده.ګورئ محصرپه قربانئ کولو سره حلاليږي.نوهرکله چه قرباني اوحلق دواړه د حلالوالی د اسبابوخنی دی.نورمی به په دواړو باندې مقدم کولې شي.

**د حلق افضليت**

| وَالْحَلْقُ أَفْضَلُ اوحلق غوره دې |
|---|

**تشريح> فضل الحلق>** صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه د سرخريل واجب دی.اوکه ديو کس په سرباندې هډو ويخته نه وي.نوپه هغه واجب دی چه په خپل سرچاړه راښکي.

**دليله>** ①د حلق د افضليت دليل د نبي ﷺ حديث دې.په صحيحينوکښې راغلي دی.چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی. (اللهم ارحم المحلقين قالوى والمقصرين يا رسول الله قال اللهم ارحم المحلقين قالوى والمقصرين يا رسول الله قال اللهم ارحم المحلقين قالوى والمقصرين يا رسول الله قال ﷺ والمقصرين) (٢) په حديث کښې سر خريونکو دپاره نبي ﷺ درې خله د رحمت دعا کړې ده.اود قصر کونکودپاره نې يوځل درحمت دعا کړې ده.نود رحمت دتکرار دعا د حلق په افضليت باندې ښکاره دليل دې.

②دويم دليل دا دې.چه مقصود ديدن پاکول دی.اويه دې.مقصود حاصلولو کښې حلق اکمل دې. د قصر نه.اوپه ويختو کټ کولو کښې د دې. مقصود په حاصلولوکښې کوتاهي ده.يعنی په ويختو کټ کولو کښې پوره پاکې نه حاصليږي.نودا دغسل او اودس سره مشابه شو.دغه شان حلق د قصر نه افضل دې.

**د حلق نه پس د جماع نه سوی ټول محظورات جائزکيدل**

| وَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ اويقيناً حلال شو ده دپاره هريوڅيزمګرزنانه، |
|---|

**حل اللغة >** ①**حل، حلالاً:** حلال کيدل

**تشريح> حل كل شئ الا النساء>** فرمائي چه د حلق يا قصر نه پس د محرم دپاره هرهغه څيزحلال شو.کوم چه د احرام په وجه ممنوع وو.سوې د ښځو سره د جماع اود اسبابو دجماع نه، (٣)

**دليله >** دليل د نبي ﷺ قول دې.چه (حل له كل شئ الا النساء) (١) يعنی د محرم دپاره (دحلق نه پس) هرڅيزحلال شو.اودا نص د امام مالك رحمه الله خلاف حجت دې.(ځکه چه قياس د نص په مقابله کښې مردود وي)

---

(١) غربه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم اخرج من حديث أنس بن مالك وعزاه إلى البخاري في الوضوء باب ٣٢ ومسلم في الحج رقم ٣٢٦ وابوداود في المناسك باب ٧٨ رقم ١٩٨١ والترمذي في الحج باب ٧٣ رقم ٩١٢)_

(٢) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه البخاري في الحج باب ١٢٧ رقم ١٧٢٧ ومسلم في الحج رقم ٣١٨)_

(٣) **مذهب مالك رحمه الله:-** امام مالك رحمه الله فرمائي.چه د جماع پشان خوشبولګول هم حلال نه دی.

## د اختر په ورځ مکې ته راتلل

(ثُمَّ يَأْتِي مَكَّةَ مِنْ يَوْمِهِ ذٰلِكَ أَوْمِنَ الْغَدِ أَوْمِنْ بَعْدِ الْغَدِ، فرمائي بيا به راشي هم په دغه ورځ (داختر) يا په صبا يا دصبا نه په بل صبا مکې ته، فَيَطُوفُ بِالْبَيْتِ طَوَافَ الزِّيَارَةِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ) نوطواف به اوکړي د بيت الله نه طواف زيارت،اووه چکرو

**حل اللغة >** ①**يطوف، طوافا(ن)**: طواف کول، راتاويدل ]

**تشريح > متي يذهب إلي مكة لطواف الزيارة >** فرمائي چه د اختر په ورځ به د رمي،حلق اوذبح نه پس هم په دغه ورځ مکې ته لاړ شي.يا په يو لسمه يا په دولسمه،بيا دې. د بيت الله طواف اوکړي.ددې طواف نوم طواف زيارت دې.اود حج په ارکانو کښې يو رکن دې.

**دليله >** دليل دا دې.چه نبي ﷺ هم حلق کړې وو.بيا مکې ته تلې وو.اوبيت الله طواف ئې کړې وو.اوبيا ئې منی ته واپس تشريف اوړې وو.اوپه منی کښې ئې د ماسپخين مونځ کړې وو. (٢)

**وقت طواف الزيارة >** امام قدوري رحمه الله فرمائي.چه د طواف زيارت وخت د قربانۍ ورځې دی.يعنی يوولسمه دولسمه او ديارلسمه د ذوالحجه،

**دليله >** خکه الله تعالی فرمائيلی دی.(( فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ)) په دې. کښې ئې طواف په قربانۍ باندې عطف کړې دې. او د معطوف او معطوف عليه دواړو وخت يو وی.ددې وجې د طواف اود قربانۍ وخت يو دې.البته دومره خامخا ده.چه قرباني ددې ورځو نه پس جائز نه ده.

طواف ددې ورځو نه پس هم سره د کراهته مشروع دې.اود طواف اول وخت ديوم النحر د صبا راختونه پس شروع کيږی.ځکه چه د صبا راختو نه وړاندې د شپې وخت خود عرفې د وقوف وخت دې.اوطواف په وقوف باندې مرتب دې.يعنی د وقوف د وخت نه پس د طواف وخت دې.

**فضل اليوم الأول للطواف >** البته په دې. ورځو کښې اولنۍ ورځ د طواف زيارت دپاره غوره ده.لکه ځنګه چه په دې. ورځو کښې اولنۍ ورځ د قربانۍ دپاره غوره ده.اوپه حديث کښې هم دا دی.چه په دې. ورځو کښې اولنۍ ورځ افضله ده.

## د طواف زيارت نه پس سعی کول

فَإِنْ كَانَ سَعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ پس که د صفا او مروه په مينځ کښې ئې سعی کوله عَقِيْبَ طَوَافِ الْقُدُومِ طواف قدوم نه پس لَمْ يَرْمُلْ فِي هٰذَا الطَّوَافِ وَلَا سَعْيَ عَلَيْهِ نو په دې طواف کښې دې رمل نه کوي اونشته سعی په ده بانديګ،

**حل اللغة >** ①**سعي، سعيا(ف)**: سعی کول،کوشش

**تشريح > القاعدة في الرمل في طواف الزيارة >** مسئله دا ده.که حاجی د طواف قدوم نه پس د صفا مروه په مينځ کښې سعی کړې وی.نو په طواف زيارت کښې به رمل نه کوی.او ددې نه پس سعی هم واجب نه ده.

---

(١) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه ابوداود في المناسك باب ٧٧ رقم ١٩٧٨ والدارقطني في سننه (٢٧٦/٢) _

(٢) قال الزيلعي رحمه الله اخرجه مسلم عن عبدالله بن عمر انه افاض يوم النحر ثم رجع فصلی الظهر بمنی (نصب الراية ٩٣/٣)_

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ قَدَّمَ السَّعْيَ رَمَلَ فِي هٰذَا الطَّوَافِ اوكه وي چه نه ئي وي كړي سعى مخكښي ،نورمل به كوي په دې. طواف كښي، وَيَسْعٰى بَعْدَهُ علي ماقدمناه) او سعى به كوي پس ددې نه، لكه څنګه چې مونږ وړاندې بيان اوكړو

**تشريح ﴿ الرمل في السعي ﴾** اوكه اول ئي سعى په مينځ د صفا مروه كښي نه وي كړې.نوبه دې. طواف كښي به رمل كوي.اوددې نه پس به سعى هم كوي.ځكه چه سعى هم يوځل مشروع شوې ده.اورمل هم يوځل په داسې طواف كښې مشروع شوې دې.چه دهغې نه پس سعى وي.

**د طواف نه پس دوه ركعته كول**

وَقَدْ حَلَّ لَهُ النِّسَاءُ اوحلالې شوې دده دپاره زنانه،خو په حلق وړاندينى سره،

**تشريح ﴿ تحليل الجماع ﴾** اوحلالې شوې دده دپاره زنانه،
دلته دا ياد ساتل پكار دي چې د زنانو حلاليدل په طواف سره نه دې بلكه زنانه دده دپاره د هغه وخت نه حلالې شوې وې كله چې ده حلق اوكړو.البته د حلق عمل چې د هر څيز حلاليدل دى هغه د زنانو په حق كښې روستو شوې وو.اوس چې كله ده طواف اوكړو نو د حلق عمل ښكاره شو چې جواز د وطى دې

**د طواف زيارت شرعى حيثيت**

(وَهٰذَا الطَّوَافُ هُوَ الْمَفْرُوضُ فِي الْحَجِّ)او دا طواف فرض دې. په حج كښي،

**تشريح ﴿ الطواف الركن في الحج ﴾**طواف زيارت په حج كښې فرض دې.اود ركن حيثيت لرى.

**دليله ﴿** ځكه چه د الله تعالى په قول ((وَلْيَطَّوَّفُوا)) كښې هم ددې امر شوې دې.ددې دويم نوم طواف الافاضه اودريم نوم طواف يوم النحر دې.

وَيُكْرَهُ تَأْخِيرُهُ عَنْ هٰذِهِ الْأَيَّامِ)اومكروه دې. روستو كول ددې د دې. ورځو نه، وَإِنْ أَخَّرَهُ عَنْهَا لَزِمَهُ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ)اوكه روستو ئي كړلو ددې (ورځو) نه نو لازميږي پرې وينه په نيزد امام ابوحنيفه وقالالاشئ عليه او صاحبين فرمائي چه په ده باندې هيڅ څيز نشته

**تشريح ﴿ وقت طواف الركن ﴾**امام قدورى رحمه الله فرمائى.چه دا طواف د ايام النحر نه روستو كول مكروه تحريمى دې.ددې دليل وړاندې تيرشوې دې.چه دا په ايام النحر پورې موقت دې.

**وجوب الدم بالتاخير عند ابي حنيفة رحمه الله ﴿** خوددې باوجود كه دا طواف ئي ددې ورځو نه روستو كړلو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز پرې دم لازميږى .

**دلائله ﴿** ①دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث دې. دوى فرمائى چه كوم سړي نسك دبل نه روميے اوكړو نوپده دم دې ([1]اوپه بعضې نسخو كښې د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما ذكر دې.حديث دا دې.چه چا يونسك په بل باندې وړاندې كړلو.نوپه هغه باندې دم دې.

[1] ) قال الزيلعى رحمه الله هكذا هو فى غالب النسخ ويوجد فى بعضها ابن عباس رضي الله عنهما وهو اصح رواه ابن ابى شيبة فى مصنفه عن ابن عباس رضي الله عنهما قال من قدم شيا من حجه او اخره فليهرق دما (كذا فى نصب الراية۳/۱۵۶)_

②دويم دليل دا دې.چه کوم نسك په يومکان پورې مخصوص وی.نوکه د هغې نه روستو شی.دم به واجب وی.لکه که يوکس د ميقات نه تيرشو.اوبيا ئې احرام اوتړلو .نوبه ده باندې دم واجبيږی.دغه شان چه کوم نسك په کومه زمانه پورې خاص وی.دهغې نه روستو شی.نودم به لازميږی.په دې دواړو کښې جامع د د تاخيرنقصان پيدا کيدل دی.

**د طواف زيارت نه پس منی ته تلل**

| (ثُمَّ يَعُودُ إِلىٰ مِنىً فَيُقِيمُ بِهَا بيا به واپس شی منی ته،نوديره به شی هلته، |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①**يعود، عودًا (ن)**:واپس کيدل ②**يقيم، اقامة**: اودريدل،حصاريدل

**تشريح** ﴿ **الرجوع إلي مني بعدطواف الزيارة** ﴿صاحب دقدوری رَحِمَهُ اللهُ فرمانی.چه حاجی دې. د طواف زيارت نه پس منی ته لاړ شی.اوهلته دې. قيام اوکړی.

**دلائله** ﴿ځکه چه وړاندې حديث تيرشوې دې.چه نبی ﷺ د طواف زيارت نه پس منی ته واپس شو. او هلته ئې د ماسپخين مونځ اوکړلو. ([1]) ② دويم دليل دا دې.چه په حاجی باندې لا رمی جمارباقی ده.اود رمی جمارمحل منی ده.ددې وجې هم منی ته تګ ضروری دی.

| (فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ مِنَ الْيَوْمِ الثَّانِي مِنْ أَيَّامِ النَّحْرِ رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ کله چه زائله شی.نمر په دويمه ورځ د ورځود نحرنه،نورمی به کوی د درې واړوجمراتو، يَبْدَأُ بِالَّتِي تَلِي الْمَسْجِدَ فَيَرْمِيهَا بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ شروع به کوی دهغې نه چه نزدې ده مسجد خيف ته،نو اولې به هغه په اووه ګيټکو، يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ ثُمَّ يَقِفُ عِنْدَهَا فيدعوتکبير به وائی دهرې ګيټکی سره، او اودريږی به دهغې سره، او دعابه کوی ثُمَّ يَرْمِي الَّتِي تَلِيهَا مِثْلَ ذَلِكَ وَيَقِفُ عِنْدَهَا بيا به اولی هغه چه نزدې. وی هغې ته،ددې نه اواودريږی به دهغې سره، ،ثُمَّ يَرْمِي جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ كَذَلِكَ وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا بيا به اولی جمره عقبه،هم دغه شان اوند به اودريږی دهغې سره، |
|---|

**تشريح** ﴿ **وقت رمي الجمرات الثلاث** ﴿بيا په يوولسمه ذوالحجه چه کله د نمر زوال اوشی.نود درې واړه جمراتو رمی به اوکړی.شروع به دهغه جمره نه اوکړی.کومه چه مسجدخيف سره متصل ده.دا به په اووه ګيټکو اوولی.اود هرويشتلو سره به تکبير وائی.اودې. جمره سره په اودريږی.بيا به دغه شان دهغه جمره رمی اوکړی.کومه چه دې. سره نزدې. ده.اودې. دويمې جمرې سره به هم اودريږی.بيا به دغه شان د جمره عقبه رمی کوی.البته هغې سره به نه اودريږی.

**دليله** ﴿هم داسې دحضرت جابر رضی الله عنه په حديث کښې نقل دی.([2])

**الوقوف عند الجمرتين** ﴿ په اولنې اودويمې جمره کښې به هغه ځائې کښې اودريږی.کوم ځائې کښې چه خلق اودريږی.هلته به دالله تعالی حمد اوثناء وائی.اوتکبير اوتهليل به وائی.اوبه نبی ﷺ به درود شريف وائی.اودعا به کوی.

---

[1] ) تقدم تخريجه قبل واحدة من الحاشية)_

[2] ) قال الزيلعي رَحِمَهُ اللهُ غريب عن جابر رضی الله عنه والذي في حديثه الطويل أنه ﷺ رمى الجمرة العقبة يوم النحر لاغير ثم نقل ما يثبت منه هذه الكيفية وعزاه إلى البخاري (نصب الراية ۳/۹۵)_

**رفع الأيدي في الدعاء>** صاحب د هدايه رحمه الله فرمائيلي دي چې د جمرتينو سره چه كله اودريږي.نودواړه لاسونه به پورته كوي .اودعا به كوي.خكه چه په مشهورحديث كښې نقل دي.چه د لاسونو پورته كولو نه مراد په دعا كښې لاسونه پورته كول دي.

**القاعدة>** صاحب دهدايه رحمه الله په هدايه كښې يوه قاعده ذكركړې ده.چه هرهغه رمي چه د هغې نه پس بله رمي وي. نو اودريږي به،خكه چه دا كس اوس د عبادت په مينځ كښې دې.نوځكه به ددې په مينځ كښې دعا هم كوي.او د كومې رمي نه پس چه بله رمي نه وي.نود هغې نه پس به نه اودريږي.خكه چه اوس عبادت ختم شوې دې.هم دا وجه ده.چه په يوم النحر كښې د جمره عقبه نه پس اودريدل نه كيږي.

## په دولسمه ورځ د رمي نه پس روانيدل

| (فَإِذَا كَانَ مِنَ الْغَدِ رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ بَعْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ كَذٰلِكَ اوكله چه شي صبا (دولسمه ورځ) نو رمي به اوكړي د جمراتو درې واړو پس د زوال د نمر نه،هم دغه شان، |
|---|

**تشريح> الخيار في النفر في الثالث والرابع من أيام النحر>** مسئله دا ده.چه حاجي به د نحر د ورځو په دريمه ورځ يعنې په دولسمه ذوالحجه هم د نمر د زوال نه پس د ورانـدې پشان د درې جَمراتو رمي اوكړي.اوس كه دده تلوار وي.نود رمي نه پس دې. هم په دولسمه ذوالحجه بانـدې مكې ته روان شي.اوكه د ايساريدو اراده ئې وي.نود نحر د ورځو په څلورمه ورځ يعنې په ديارلسمه ورځ دې. هم د نمر د زوال نه پس د درې واړو جمراتو رمي اوكړي.اوبيا دې. مكې ته روان شي.هم ددې وجې د دولسمې ذوالحجه تلو ته نفراول وائي.اود ديارلسمې ذوالحجه روانيدو ته نفر ثاني وائي.

**دليله>** دليل دالله تعالى ارشاد دې.((فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ)) اوغوره دا ده.يعنې كوم كس چه دولسم تاريخ باندې زر روان شي.نوپه ده باندې هم څه گناه نشته.اوڅوك چه ديارلسمې ورځې ته ايساريږي.نوده باندې هم څه گناه نشته.

**الأفضل في النفر>** صاحب د هدايه رحمه الله فرمائيلي دي خوغوره هم دا ده.چه د ديارلسمې ذوالحجه پورې په منى كښې ايسارشي.

**دليله>** خكه چه رسول الله ﷺ په منى كښې ايسار شوې وو.تردې. چه په څلورمه ورځ يعنې د ذوالحجه په ديارلسمه ورځ ئې د درې واړه جمراتو رمي اوكړله. (۱)

## په ديارلسمه ذوالحجه مكې ته روانيدل

| وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَتَعَجَّلَ النَّفَرَ نَفَرَ إِلَى مَكَّةَ او كله چې اراده اوكړي چې زر روان شي نو روان دې شي مكې ته وَإِنْ أَرَادَ أَنْ يُقِيمَ او كه اراده لرى چې ايسار شي رَمَى الْجِمَارَ الثَّلَاثَ فِي الْيَوْمِ الرَّابِعِ نو اورمي دې اوكړي د درې جمراتو په څلورمه ورځ بَعْدَ الزَّوَالِ كَذٰلِكَ پس د زوال نه |
|---|

**حل اللغة >** ①**ينفر،نفرًا (ض)**: تلل، واپس كيدل ②**طلع، طلوع (ن)**: راختل ]

**تشريح>** صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي.چه حاجي ته د ديارلسمې ذوالحجه د صبا راختو نه وراندې وراندې مكې ته د تلو اختياردې.اوكه په منى كښې ايساريږي نو هم ورته اختيار دې خو چې كله

---

(۱) من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه ابوداود في سننه وابن حبان والحاكم (نصب الراية (۳/۹۷)_

ایسار شی نو په خلورمه ورځ دې د زوال نه پس دې د درې واړه جمراتو رمې اوکړي او په منی کښې ایساریدو سره دا رمی واجب کرځی

**په دیارلسمه ذوالحجه د رمي وخت**

(فَإِنْ قَدَّمَ الرَّمْيَ فِي هَذَا الْيَوْمِ)اوکه وړاندې ئې کړه رمي په دې. ورځ (یعنی په خلورمه ورځ د ایام النحرځني) (قَبْلَ الزَّوَالِ بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (١)وړاندې د زوال نه اوپس د راختو د صبا نه،نوجائزده په نیز د امام ابوحنیفه

**حل اللغة** ⊲①**قدم، تقدیماً:** مقدم کول، وړاندې کول

**تشریح**⊲ **حکم السعي قبل الزوال عند ابي حنیفة** رحمه الله ⊲صورت د مسئلې دا دې.چه په دیارلسمه ذوالحجه د نمر د زوال نه وړاندې رمی جائز ده که نه ده؟①په دې. مسئله کښې دامام اعظم رحمه الله مذهب د جواز دې.اودا استحسان دې.

**دلائله**⊲دامام ابوحنیفه رحمه الله یودلیل دا دې.①چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه یو روایت دا مروی دې.چه په یوم النفر یعنی په دیارلسمه ورځ چه نمر اوچت وی.نورمی د جمراتو جائز ده.②دویم دلیل دا دې.چه هرکله په دیارلسم تاریخ باندې د رمی پریخودل جائز ده.نودا به په درجه اولی سره جائز وی.چه د دیارلسم تاریخ په ټولو وختونو کښې رمی جائز شی.

وَقَالَا لَا يَجُوزُ اوفرمانی صاحبین رحمهما الله چه جائز نه ده،

**تشریح**⊲ **مذهب الصاحبین**⊲اود صاحبینو رحمهما الله مذهب دعدم جواز دې.اوامام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دلیلهما** رحمهما الله⊲صاحبینو رحمهما الله د دریالسمې ذوالحجه رمی د نورو ورځو په رمی باندې قیاس کړې ده.یعنی لکه څنګه چه د یوولسمې اودولسمې ذوالحجې رمی د زوال نه وړاندې جائز نه ده.دغه شان په دیارلسمه ورځ هم د زوال نه وړاندې جائز نه ده.

**الفرق**⊲صرف دومره فرق دې.چه په دیارلسمه ذوالحجه باندې د رمی کولو نه بغیرتلل جائزدی.اوپه نورو ورځو کښې د رمی نه بغیر تلل جائز نه دی.بهرحال په دیارلسم تاریخ د رمی نه بغیر تلل جائزوو.خوچه ده د دې. رخصت نه فائده وانه خستله.نود دیارلسم تاریخ ورځ به هم د نورو ورځو سره لاحق شی.اودهغه ورځو حکم دا دې.چه د زوال نه وړاندې رمی کول جائز نه ده. نوهم دا حکم به د دیارلسم تاریخ هم وی.

**الجواب عنه**⊲ددې په خلاف د یوولسم او دولسم تاریخ رمی چه په هغې کښې د مشهور روایت مطابق د زوال نه پس رمی جائز ده وړاندې جائز نه ده.ځکه چه په دغه دواړو ورځو کښې رمی پریخودل جائز نه دی.نوحکم به په هغه اصل باقی وی.کوم چه روایت شوې دې.یعنی د زوال نه پس.

---

(١) القول الراجح هو هذا قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١\١٤١) وردالمحتار(٢\٢٠٠) والبحرالرائق (٢\٣٤٩) نقلاً عن القول الراجح (١\٢١٣)-

## مکې ته سامان لیږل اومنی کښې ایساریدل

(وَيُكْرَهُ أَنْ يُقَدِّمَ الانسان ثَقَلَهُ إِلَى مَكَّةَ) فرمائی اومکروه دی چه اولیږی سړی سامان خپل مکې ته (وَيُقِيمَ بِهَا حَتَّى يَرْمِيَ) او ایساریږی به په منی کښې تردې. چه رمی اوکړی

**حل اللغة** > ① **ثقل**: بوج، دَمسافرسامان ]

**تشریح** > تشریح واضح ده.

## مکې ته په واپسۍ کښې مقام محصب کښې ایساریدل

(فَإِذَا نَفَرَ إِلَى مَكَّةَ نَزَلَ بِالْمُحَصَّبِ) اوکله چه روان شی مکې ته نوایساریه شی مقام محصب کښې

**تشریح** > **النزول بالمحصب** > محصب دمکې اومنی په مینځ کښې د یو کانړیجن مقام نوم دې.دا مقام د مکې په نسبت منی ته زیات نزدې. دې.

**دلیله** > ددې مقام تاریخی حیثیت دا دې.چه کله نبی ﷺ د نبوت دعوی اوکړله.اود شرك د بطلان حکم اعلان نې اوکړلو.نودقریشو ټولې قبیلې په دې. مقام محصب کښې راجمع شوې . اوټولو په دې. خبره قسمونه اوخوړل اووعدې. نې اوکړلې.چه دخاندان نبوت یعنی بنوهاشم اوبنو مطلب سره بیخی تعلق پریږدئ.نه به دوی سره لین دین کولې شی.اونه به ورسره خوراك څکاك کولې شی.آخردا چه ابوطالب صاحب ټول مسلمانان او بنوهاشم واخستل اودې غر ته لاړو.اومشرکانو دغه معاهده اولیکله اوپه خانه کعبه کښې نې زوړنده کړه.درې کاله هم داسې تیر شو.او بنوهاشم ته ډیر تکلیفونه ملاؤ شول.د الله تعالی پیغمبر ﷺ د وحی په ذریعه خلقو ته خبر ورکړلو.چه د معاهدې. دغه لیکل وینو(یوقسم چینجی دی) خوړلې دې.صرف د الله تعالی نوم په کښې باقی دې.حضرت ابوطالب کافرانو ته ددې خبر ورکړلو.نوهغوی په غصه شو.او وې وئیل که دا خبره ریښتیا وی.نوموږ به تاسو سره تعلقات بحال کړو.ابوطالب صاحب ورته د نبی ﷺ په اشاره سره اووئیل.که داسې نه وی شوې .نوموږ به تاسو ته محمد حواله کړو.آخر دا چه د قریشوسرداران راجمع شو.اود خانه کعبې دروازه نې پرانسته.اوچه لوظ نامه نې اوکتله.نود نبی ﷺ خبره سل فیصده ټیك وه.مشرکان ډیرحیران شو.مشرکانو خپله وعده پوره کړه.اود بنوهاشم سره نې تعلقات شروع کړل. (۱) ددې واقعې نه څه موده پس مکه معظمه فتح شوه.اود حجاز په زمکه اسلامی حکومت قائم شو.نو نبی ﷺ د حج په موقع په منی کښې خپلو صحابوؓ ته اوفرمائیل.چه موږ به صباته خیف بنوکنانه کښې ایساریږو. (۲) نود فیصلې مطابق نبی ﷺ قصداً هلته کښې ایسار شو.اواوس دلته ایساریدل سنت شو.دا دلته ددې دپاره ایسارشو.چه مشرکانو ته دالله تعالی کارونه اوښائی.چه پرون په دې. مقام باندې ستاسو قبضه وه.اونن الله تعالی موږ ته غلبه راکړه.نن صبا اګرچه هلته مشرکان نشته.خود مشرکانو په مقابله کښې دخپل اوچت مقام اظهاردپاره دې. دلته خامخا ایساریږی.لکه څنګه چه په طواف کښې رمل نن هم موجود دې.(اګرچه د رمل کول د یوعارضی سبب د وجې وو.هغه سبب زائله شوې دې.خونن هم رمل باقی دې. د دې تفصیل وړاندې تیر

---

(۱) من حدیث اسامه بن زید ﷺ اخرجه البخاری فی الجهاد باب ۱۸۰ رقم ۳۰۵۸ ومسلم فی الحج رقم ۴۳۹ وأبوداود فی المناسك باب ۸۶ رقم ۲۰۱۰ وابن ماجه فی المناسك باب ۲۶ واحمد فی المسند (۲۰۲/۵)۔

(۲) من حدیث ابی هریرة ﷺ اخرجه البخاری فی المغازی باب ۴۸ ومسلم فی الحج رقم ۳۴۳ )۔

شوې دي.نودغه شان نن هم په مقام محصب کښې ایساریدل سنت دی) بهرحال کله چه حاجی دمنی نه مکې ته روانیږی.نوپه مقام محصب کښې به ایساریږی.

## د طواف صدر حکم

| |
|---|
| ثُمَّ طَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ بیا به داخل شی مکې ته اوطواف به اوکړی د بیت الله نه اووه ځله، لَا يَرْمُلُ فِيهَا وَهٰذَا طَوَافُ الصَّدْرِ رمل به نه کوی په دې. کښې،اودا طواف صدر دې. |

**حل اللغة** > ①**دخل، دخولاً (ض)**:داخلیدل ②**لایرمل، رمل رملاً (ن)**:اوږې خوزولوسره منډه وهل

**تشریح** > **طواف الصدر بعد الرمي** > په منی کښې د حج د ټولوافعالو ادا کولو نه پس چه حاجی مکې ته داخل شی.نود بیت الله نه به اووه چکرې اولګوی.اوپه دې. طواف کښې به رمل نه کوی.دې. طواف ته طواف صدر ،طواف وداع او(دحج په موسم کښې) د ټولونه آخری طواف دې.ددې طواف نوم طواف وداع ځکه دې.چه دا طواف د بیت الله نه د واپس کیدو په وخت کښې کیږی.

| |
|---|
| وَهُوَ وَاجِبٌ اودا طواف واجب دې |

**تشریح** > **وجوب طواف الصدر** > طواف صدر واجب دې ([1])

**دلیله** > دلیل دا دې.چاچه د بیت الله حج اوکړلو.نودده آخری عمل پکارده چه طواف د بیت الله وی.

**الإستدلال بحدیث رخصة الحیض** > ①او حائضوښځوته ئې رخصت ورکړې دې.یعنی د حائضو اونفاسو ښځوپاره د طواف صدر نه بغیر تلل جائز دی.په دې. حدیث کښې (فلیکن) امر دې.اوچه قرینه صارفه نه وی.نوامر دپاره د وجوب وی.نوثابته شوه چه طواف صدر واجب دې.② دویمه وجه دا ده.چه نبی ﷺ حائضو ښځو ته حکم ورکړې وو.چه دوی بغیرد طواف صدر نه لاړې شی. ([2]) دا هم د وجوب دلیل دې.ګنی د رخصت د تخصیص به بیا څه فائده وی.(که طواف صدر واجب نه وو.نونبی ﷺ به ورته ولې وئیل.چه زه خیردې. تاسو دا طواف مه کوئ.هغوی به په خپله د طواف کولو نه بغیر روانې شوې وې)

| |
|---|
| إِلَّا عَلَى أَهْلِ مَكَّةَ خوپه اهل مکه باندې دا طواف نشته. |

**تشریح** > **عدم وجوب طواف الصدر علی اهل مکة** > صاحب د قدوی فرمائی چه د مکې په خلقو طواف صدر واجب نه دې

**دلیله** > ځکه چه د مکې اوسیدونکی نه خو چرته روانیږی او نه بیت الله ته وداع وائی

| |
|---|
| ثُمَّ يَعُودُ إِلَى أَهْلِهِ بیا به واپس شی خپل اهل وعیال ته. |

**تشریح** > **العود الی اهله** > بیا خپل وطن ته واپس شی.

**دلیله** > ځکه چه په داسې کولو کښې د رسول هاشمی اتباع ده. ([3])

---

([1] **مذهب شافعي**:-اودامام شافعی رحمه الله په نیز سنت دې.

[2]) من حدیث إبن عباس رضي الله عنهما اخرجه البخاری في الحیض باب ٦ ومسلم في الحج رقم ٣٧٩ وأبوداود في المناسك باب ٨٣ والنسائی في الصیام باب ٦٤ وابن ماجه في المناسك باب ٨٢ )_

[3]) من حدیث عمروبن شعیب عن أبیه شعیب رضي الله عنه اخرجه ابوداود في سننه في المناسك باب ٥٤ رقم ١٨٩٩ وابن ماجه في المناسك رقم ٢٩٦٢)_

**كيفية الرجوع الي اهله** > دبعضي عالمانو ﷺ خيال دي.چه د بيت الله نه رخصتيږی.نو په شا دي. راخی.چه مخ ئې خانه كعبې ته وی.اود بيت الله په جدائی باندې د افسوس اظهار كوی.اوسترګې ئې داوښكو ډكې وی.هم په دي. طريقه دي. د مسجد حرام نه رابهر شی.تردې. ځانې پورې د حج پوره طريقه بيان شوه.

**د محرم مكي ته د داخليدو نه بغير عرفات ته تلل**

| |
|---|
| فَإِنْ لَمْ يَدْخُلِ الْمُحْرِمُ مَكَّةَ وَتَوَجَّهَ إِلَى عَرَفَاتٍ فصل اوكه داخل نشو محرم مكې ته او لاړو عرفات ته. وَوَقَفَ بِهَا عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ سَقَطَ عَنْهُ طَوَافُ الْقُدُومِ او وقوف ئې اوكړو په هغې كښې بنا په هغه طريقه چه مونږ بيان كړې ده.نوساقط شو دده نه طواف قدوم، |

**تشريح** > **جوازالتوجه إلي عرفات من غيردخول مكة** > په دي. فصل كښې دځو متفرقو مسئلو ذكر دي. .
اولنۍ مسئله دا ده.چه محرم مكې ته د داخليدو نه بغير نيغ عرفات ته لاړ شي.اوهلته په هغه طريقه وقوف اوكړی.كومه چه شريعت بيان كړې ده.نودده د ذمې نه طواف قدوم ساقط شو.
**دليله** > ځكه چه طواف قدوم په اول دحج كښې په داسې طريقه باندې مشروع دي.چه د حج نور ټول احكام په دي. باندې مرتب دی.نوددې طريقې نه علاوه په بله طريقه به طواف قدوم سنت نه وی.

| |
|---|
| وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ بِتَرْكِهِ اونشته څه څيز په ده باندې په پريخودو ددې (طواف قدوم) |

**تشريح** > **عدم وجوب شئ بترکه** > اود طواف قدوم په پريخودو په ده باندې دم وغيره نه واجبيږی.
**دليله** > ځكه چه طواف قدوم سنت دي.اود سنت په پريخودو نقصان پوره كونكې څيز نه واجبيږی.

**د وقوف عرفه وخت**

| |
|---|
| وَمَنْ أَدْرَكَ الْوُقُوفَ بِعَرَفَةَ مَا بَيْنَ زَوَالِ الشَّمْسِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ اوچاچه رالاندې. كړو وقوف په (ورځ) د عرفې په مينځ د زوال د نمر هم په دغه ورځ (چه نهمه د ذوالحجې ده) إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ فَقَدْ أَدْرَكَ الْحَجَّ ترصبا د ورځې د اختر پورې،نوده رالاندې كړلو حج، |

**تشريح** > **ادراك الوقوف بعرفة** > د وقوف عرفات وخت د عرفې په ورځ د نمر د زوال نه پس شروع كيږی.نوكه يو حاجی د نمرد زوال نه پس تر د يوم النحر د صبا راختلو پورې په كوم وخت كښې هم وقوف اوكړلو.نودده حج ادا شو.(١)
**دلائله** > دليل دادي. ① چه نبی ﷺ د زوال نه پس وقوف كړې وو.ددې حديث نه د وقوف اول وخت معلوم شو. (٢) ② دويم حديث كښې دی.چه نبی ﷺ فرمانيلی دی.چا چه په شپه كښې وقوف د عرفات رالاندې كړو.نوده حج رالاندې. كړلو.اوچا چه په شپه كښې هم وقوف عرفات لاندې. نكړلو.نوده نه حج فوت شو. (٣) په دې. حديث كښې د وقوف عرفات د آخری وخت بيان دې.ددې دواړو حديثونو نه

---

١) **مذهب مالك** رحمه الله:- دامام مالك رحمه الله قول دا دي.چه د وقوف عرفات وخت د عرفې په ورځ د صبا راختو نه د نمر راختو نه پس شروع كيږی.
٢) تقدم تخريجه في حديث جابر رضي الله عنه )
٣) من حديث عبدالرحمن بن يعمر الديلمي رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الحج باب ٦٨ رقم ١٩٣٩ والترمذی في الحج باب ٥٧ رقم ٨٨٩ والنسائي في المناسك باب فرض الوقوف بعرفة وابن ماجه في المناسك باب ٥٧ رقم ٣٠١٥)_

معلومه شوه.چه د وقوف عرفات وخت د عرفې په ورځ د زوال نه پس شروع کیږی.اود یوم النحر د صبا راختلو نه وړاندې پوره وی.

### دخوب یا بیهوشۍ په حالت کښې وقوف عرفات

| (وَمَنْ اِجْتَازَ بِعَرَفَةَ نَائِمًا اَوْمُغْمىٰ عَلَيْهِ اوخوك چه تیرشو د عرفات نه په حالت خوب یا بیهوشۍ کښې اَوْ لَمْ يَعْلَمْ اَنَّهَا عَرَفَةٌ یا دې نه پوهیدلو چه دا عرفات دې.اجزاه ذٰلك عَنْ الْوُقُوفِ)نوجائزدې. ورله د وقوف (عرفات) نه |
|---|

**حل اللغة** > ①**اجتاز، اجتیازًا:** تیریدل ②**مغمي عليه:** په چا چه بې هوشی راشی

**تشریح** > **صور الوقوف بعرفة** > صورت د مسئلې دا دې.چه حاجی په حالت د خوب یا بیهوشۍ کښې د عرفې په ورځ د عرفات نه تیرشی.یاده ته دا پته اونه لګی.چه د کوم ځائې نه زه تیریږم.دا عرفات دې.په دې. درې واړه صورتونو کښې وقوف عرفات ادا شو.ځکه چه وقوف عرفات د حج رکن دې.اوهغه موجود شو.باتې شوخوب اوبیهوشی نو دا د وقوف سره منافی نه دی.لکه څنګه چه یوکس د صبا نه د روژې نیت اوکړلو.اوبیا ټوله ورځ اوده یا بیهوشه وو.نودده روژه ادا شوه

**خلاف الصلاة** > په خلاف د مانځه ځکه چه مونځ د بیهوشۍ سره باقی نه پاتې کیږی.اوپاتې شوه داخبره چه عرفات نه پیژنی.نودا خبره په نیت کښې خلل پیدا کوی.یعنی چه دکوم ځیز نیت نه وی.نوهغه معتبر نه وی.خودا خبره ده.چه د هر رکن دپاره نیت شرط نه دې.نود وقوف دپاره هم نیت شرط نه دې.اوهرکله چه نیت شرط نشو.نوچه عرفات نه پیژنی.اوتیرشی.نودا هم څه ضرر نه رسوی.

### د ښځې اود سړی په احکامو کښې فرق

| (وَالْمَرْأَةُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ كَالرَّجُلِ)اوښځه په دې ټولو حکامو کښې پشان دسړی ده. |
|---|

**تشریح** > **تسوية الرجل والمرأة في أحكام الحج** > صاحب د قدوری رَحِمَهُ اللهُ فرمائی.چه ښځه دحج په ټولواحکامو کښې د سړو پشان ده.ځکه چه د الله تعالی خطاب ﴿وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ﴾ ښځو اوسړو ټولو ته شامل دې.نوکوم کارونه چه سړې کوی هغه به ښځه هم کوی.سوې د یو څو ځیزونو نه،

| غَيْرَ اَنَّهَا لَاتَكْشِفُ رَأْسَهَا البته دا چه دا به نه ښکاره کوی سرخپل، |
|---|

**تشریح** > **عدم تغطية وجهها** > مثلاً دښځې دپاره د سرښکاره کول جائز نه دی.

**دلیله:** ځکه چه دښځې سر هم عورت دې.یعنی واجب الستر دې.

| وَتَكْشِفُ وَجْهَهَا)اوښکاره کوی به مخ خپل |
|---|

**تشریح** > **كشف الوجه** > ښځه به خپل مخ ښکاره ساتی.

**دلائله** > ①ځکه چه په حدیث کښې دی.چه د ښځې احرام ددې په مخ کښې وی. [1] البته دا که ښځې په خپل مخ باندې کپړه یا بل څه ځیز زوړند کړلو.اوهغه ئې د مخ نه جدا اوساتلو.نوجائزده.

② دویم دلیل دا دې.چه دا جامه وغیره زوړندول په کجاوې سره سورې حاصلولو سره مشابه شو.اودکجاوې نه سورې حاصلول جائزدې.نودغه شان په دې سره هم سورې حاصلول جائز شو.

---

[1] ) تقدم تخریجه في باب الإحرام)_

| وَلَاتَرْفَعُ صَوْتَهَا بِالتَّلْبِيَةِ او نه به پورته کوي اواز خپل په تلبيه باندې |
|---|

**تشريح> عدم رفع الصوت بالتلبية والرمل والسعي>** اوښځه به د تلبيه ونيلو په دوران کښې آواز نه اوچتوي.
**دليله>** ځکه چه د آواز په اوچتولو کښې د فتنې ويره ده.

| (وَلَا تَرْمُلُ وَلَا تَسْعَى بَيْنَ الْمِيلَيْنِ او رمل به نه کوي او په منډه به نه وهي په مينځ د ميلين اخضرين کښې، |
|---|

**تشريح> عدم الرمل والسعي في الطواف >** اوپه طواف کښې به رمل نه کوي.اود ميلين اخضرين په مينځ کښې به منډه نه وهي.
**دليله>** ځکه چه دا دواړه ځيزونه د عورت په پټولو کښې خلل پيدا کوي.

| وَلَاتَحْلِقُ وَلَكِنْ تُقَصِّرُ)اوښځه به ويخته نه خروي البته قصر به کوي. |
|---|

**تشريح> عدم الحلق>** اوښځې به سرنه خروئې.بلکه قصربه کوي.
**دلائله>** ① ځکه چه دالله تعالى رسول ﷺ ښځې حلق نه منع کړې دی.اود قصرحکم ئې ورته کړې دې. ()[1]
②دويم دليل دا دې.چه دښځو په حق کښې حلق مثله يعنى ممنوع حده پورې د شکل خرابول دی.لکه څنګه چه د سړو دپاره د ږيرې خرائيل مثله ده.

**د (حج) قران بيان**

| بَابُ الْقِرَانِ |
|---|

دا باب د (حج) قران په بيان کښې دې.

**تشريح> الربط بما قبله>** مصنف رحمه الله د حج مفرد د احکامو نه فارغ شو.نواوس به د حج مرکب يعنى قران اوتمتع بيان کوي.خوچونکه زمونږ په نيزحج قران د حج تمتع نه افضل دې.ځکه دحج قران احکام وړاندې بيانولې شي.

**الأقسام الأربعة للمحرم>** دا ياد ساتئ چه د محرم څلور قسمونه دی.①مفرد بالحج دکوم بيان چه په وړاندې باب کښې تيرشوې دې.②مفرد بالعمره څوک چه په زړه کښې د عمرې نيت اوکړی.اوتلبيه د عمرې اووائى.اوبيا دعمرې افعال ادا کړی.③قران قارن هغه دې چه دحج اوعمرې دواړو دپاره نيت اوکړی.اوبيا بغيرد احرام پرانستلو نه حج اوکړی.④ تمتع حاجى متمتع هغه دی.چه هغه د عمرې احرام اوتړی.اوعمره ادا کړی.بيا هم په دغه کال دحج په موسم کښې دحج دپاره احرام اوتړی.اودحج افعال ادا کړی.

---

[1] ) خرجه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم قال كانه حديث مركب فنهى النساء عن الحلق يه احاديث منها ما رواه الترمذي (في الحج باب ٧٥ رقم ٩١٤ والنسائي في الزينة رقم ٣٧٦) ...عن علي رضي الله عنه قال نهى رسول الله ﷺ ان تحلق المراة راسها .....واما امرهن بالتقصير فاخرجه ابوداود في سننه (في المناسك باب ٧٨ رقم ١٩٨٤) ... ان ابن عباس رضي الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ ليس على النساء الحلق إنما على النساء التقصير،كذا في نصب الراية (١١١/٣)۔

## د حج قران افضلیت

| الْقِرَانُ أَفْضَلُ عِنْدَنَا مِنَ التَّمَتُّعِ وَالْإِفْرَادِ قران غوره دې د تمتع او افراد نه، زمونږ په نزد |
|---|

**حل اللغة** ⟵ ① **قران:** دَ حج يوقسم

**تشريح** ⟵ **الأقسام الثلاثة للحج** ⟵ د محرم بالحج درې قسمونه دی.

① مفرد بالحج ② قارن ③ متمتع

**فضل القران علي غيرها** ⟵ زمونږ په نيز قران افضل دې. [1]

**دلائله** ⟵ ① دليل دا دې.چه نبی ﷺ فرمائيلی دی.اې د محمد اولادهٔ تاسو حج اود عمرې احرام په يوځائې تړئ.

(غوراوکړئ د الله تعالی پيغمبر خپل اهل عيال ته د حج او عمرې دواړو په يوځائي د احرام تړلو حکم کړې دې.اودواړو دپاره په يوځائې احرام تړل قران دې.اودا هم ښکاره ده.چه پيغمبر ﷺ خپل اولاد ته د افضل څيز حکم کوی دمفضول څيز حکم نه کوی.نوثابته شوه چه قران افضل دې

② دويم دليل دا دې.چه د قران په صورت کښې حج او عمره دواړه عبادتونه جمع کيږی. نودا داسې شوه لکه چه يوکس په رمضان کښې روژه او اعتکاف دواړه جمع کړی،اويوکس دجهاد په ميدان کښې د تهجدو مونځ او داسلامی لښکرڅوکئ دواړه کوی.

## دحج قران طريقه

| (وَصِفَةُ الْقِرَانِ أَنْ يُهِلَّ بِالْعُمْرَةِ وَالْحَجِّ مَعًا مِنَ الْمِيقَاتِ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائي. او طريقه د قران دا ده.چه احرام اوتړی دحج او د عمرې په يوځل دميقات نه، وَيَقُولُ عَقِيبَ الصَّلَاةِ: اللّٰهُمَّ إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَيَسِّرْهُمَا لِي وَتَقَبَّلْهُمَا مِنِّي او اووائی پس د تلبيه نه اې الله زه اراده لرم دحج اود عمرې،او آسان کړې دا دواړه ماته او قبول ئې کړې زما نه، |
|---|

**تشريح** ⟵ **كيفية القران** ⟵ شيخ ابوالحسن رحمه الله فرمائی.چه د قران طريقه دا ده.چه د ميقات نه د حج اوعمرې دواړو دپاره احرام اوتړی.اوپه يوځائې تلبيه اووائی.اود احرام د مونځ نه پس دې دا دعا اوکړی.چه اې الله زه اراده لرم د حج او د عمرې ته ئې آسان کړې ماته او قبول ئې کړې زما نه،

**نية القران بعد أقل أشواط العمرة** ⟵ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.که يوکس صرف د عمرې احرام اوتړلو .اود طواف په اووه چکرونو کښې د څلورو نه کم اوکړی.مثلاً درې چکرې ئې وهلې وی.اوبيا د حج نيت اوکړی.نودا کس اوس هم قارن ګرځی.اودده حج به حج قران وی.څکه چه تراوسه پورې د طواف زيات چکرونه باقی دی.نواکثر د کل قائم مقام شو.اودا به وئيلې شی.چه تراوسه پورې ده د عمرې طواف نه دې کړې.اوهرکله چه د عمرې دپاره طواف نه دې شوې.نوحج اوعمره دواړه متحقق شول.

**دعاء التيسير** ⟵ اوکله چه د دواړو د ادا کولو قصد اوکړی.نوپه دواړو کښې د آسانيتا پيدا کولو دپاره به دعا اوکړی.اود عمرې افعال دې وړاندې ادا کړی.اود حج افعال دې بيا .اوپه تلبيه کښې دې داسې وائی.(لبيك بعمرة وحجة معا) څکه چه د قران په صورت کښې چه کله شروع د عمرې نه کيږی.نوپه تلبيه کښې به هم هغه مقدم کولې شی.خودې باوجود که په تلبيه کښې ئې عمره روستو اووئيله.نوڅه باك

---

[1] (اختلاف مذهب الشافعي)-دامام شافعی رحمه الله په نيزافراد افضل دې.اودامام مالك رحمه الله په نيزتمتع افضل دې.

په کښې نشته.ځکه چه په (حجة وعمرة) کښې واو دپاره د جمع راځي.البته عمره مقدم کول افضل دي.ځکه چه الله تعالى په خپل قول ﴿فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ﴾ کښې عمره مقدم کړې ده.

**عدم شرطية التلفظ بالحج والعمرة**> صاحب د هدايه رحمه الله فرمائیلي دي.که یو کس صرف په زړه سره نیت اوکړلو.اوحج اوعمره ئې په تلبیه کښې ذکر نکړه.نوجائزده.لکه څنګه چه په مانځه کښې په ژبې سره نیت کول شرط نه دي.دغه شان دلته (دحج په باب) کښې هم په ژبې سره نیت کول شرط نه دي.

## د قارن مکې ته داخلیدل

فَإِذَا دَخَلَ مَكَّةَ ابْتَدَأَ بِالطَّوَافِ فَطَافَ بِالْبَيْتِ سَبْعَةَ أَشْوَاطٍ کله چه داخل شي مکې ته نو شروع به کوي په طواف د بيت الله اووه چکرې يَرْمُلُ فِي الثَّلَاثِ الْأُوَلِ مِنْهَا رمل به کوي په دريو اولنوکښې ددې نه، وَيَمْشِي فِيمَا بَقِيَ عَلَى هَيْئَتِهِ او تګ به کوي په باقي چکرونو کښې په خپل وقار سره وَسَعَى بَعْدَهَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ اوسعي به کوي پس ددې نه په صفا اومروه کښې، «وَهَذِهِ أَفْعَالُ الْعُمْرَةِ»اودا افعال د عمرې دي. ثُمَّ يَطُوفُ بَعْدَ السَّعْيِ طَوَافَ الْقُدُومِ بيا طواف کوي پس د سعي نه طواف قدوم وَيَسْعَى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ اوسعي به کوي په مينځ د صبا او مروه کښې كَمَا بَيَّنَّا فِي حَقِّ الْمُفْرِدِ لکه څنګه چه مونږ بيان کړل په (بيان د حج) مفرد کښې،

**حل اللغة** > ① **دخل، دخولاً** (ن): داخليدل ② **يطوف، طوافًا** (ن): طواف کول، تاويدل ③ **جناية:** ګناه جرم]

**تشريح**> **إبتداء القارن بالعمرة**>صورت د مسئلې دا دې.چه حاجي قارن مکې ته داخل شي.نوطواف قدوم به نه کوي.بلکه د عمرې افعال به شروع کوي.نو اول دې طواف اوکړي.اود طواف په اولنو دريو چکرونو کښې دې رمل اوکړي.بيا دې د صفا مروه په مينځ کښې سعي اوکړي.دا خود عمرې افعال وو.اوبيا دې د حج په افعالو شروع اوکړي.نود مفرد بالحج پشان دې اول طواف قدوم اوکړي.بيا دې سعي اوکړي.

## د قارن دپاره د ذبح حکم

وَإِذَا رَمَى الْجَمْرَةَ يَوْمَ النَّحْرِ ذَبَحَ شَاةً أَوْ بَقَرَةً أَوْ بَدَنَةً أَوْ سُبْعَ بَدَنَةٍ أَوْ سُبْعَ بَقَرَةٍ کله چه رمي د جمرې اوکړي.(قارن) نوذبح دې کړي ګډه يا غوې يا بدنه يا اوومه حصه د بدنه،او يا اوومه حصه د غوا فَهَذَا دَمُ الْقِرَانِ نودا دم قران دې.

**حل اللغة** > ① **رمي، رميًا** (ض): رمي کول، ويشتل ② **شاة:** چيلئي ③ **بقرة:** غوې

**تشريح**> **وجوب دم القران**>فرمائي.کله چه قارن په يوم النحر باندې رمي د جمرې اوکړي.نوګډ يا غوې يا اوښ د بدنې اوومه حصه دې قرباني کړي.اوددې نوم دم قران دې.

**دليله**>اوددې قربانۍ د وجوب دليل دا دې.چه قران د حج اوعمرې په جمع کولو کښې د حج تمتع پشان دې.اوپه حج تمتع کښې د هدی قربانۍ باندې نص وارد شوې دې.ارشاد دې:

﴿فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ﴾ يعنی هرکله چه په حج تمتع کښې قرباني واجب ده.نوپه حج قران کښې به هم واجب وي .ځکه چه قران د تمتع پشان دې.

**المراد من الهدى والبدن** < صاحب دهدایه رحمه الله فرمائي.چه هدی د اوښ،غوې اوګډ درې وارو کيږي . او تفصيل به په باب الهدى کښې انشاء الله ذکر شي.اودلته د بدنه نه مراد اوښ دې.اګرچه د بدنه اطلاق په اوښ اوغوې دواړو باندې کيږي.نولکه څنګه چه د اوښ په اوومه حصه قرباني کيږي.نودغه شان به دغوې د اوومې حصې قرباني جائز وي.

## قارن دپاره د روژو حکم

| فَإِن لَّمْ يَكُنْ لَهُ مَا يَذْبَحُ صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ هرکله چه نه وي ده سره هغه څه چه ذبح اوکړي پرې،نوروژه دې اونيسي درې ورځې،په حج کښې آخِرُهَا يَوْمُ عَرَفَةَ چه آخرى ورځ ئې د عرفې وي. |
|---|

**حل اللغة** < ① **يذبح، ذبحًا (ف)**: حلالول ② **صام، صومًا (ن)** : روژه ساتل

**تشريح** < **وجوب الصيام عندالعجز عن الهدي** < مسئله دا ده.که قارن په قربانۍ باندې قادر نه وي.يا قادر وي.خوخاروى نه وي.نوبه دۀ باندې لس روژې واجب دى.په دې طريقه چه درې روژې به د يوم النحر نه وړاندې نيسي.

**دليله** < دليل داالله تعالى ارشاد دې. ﴿فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ﴾ دا آيت اګرچه د حج تمتع په باره کښې نازل شوې دې.خوچونکه قارن هم د متمتع پشان دې. ځکه چه دې هم د حاجى متمتع پشان د حج او عمرې دوه عبادتونه کوى.نوددې مماثلت اومشارکت د وجې چه کوم حکم د متمتع وى.هغه به د قارن هم وى.

**إستحباب تاخير الصيام إلي آخر الوقت** < صاحب دهدایه رحمه الله فرمائيلى دى.چه په آيت ﴿فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ﴾ کښې د حج نه مراد د حج وخت دې.ځکه چه نفس حج د ظرفيت صلاحيت نه لرى.دحج وخت چونکه د اولنى شوال نه شروع کيږي.نوچه کله غواړى درې روژې دې اونيسى.خوغوره دا ده.چه په اوومه،اتمه اونهمه ذوالحجه روژې اونيسى.ځکه چه روژې د هدى په بدل کښې واجب شوى دى.نوځکه آخرى وخت ته روستو کول مستحب دى.چه کيدې شى.چه آخرپه اصل يعنى قربانۍ کولو باندې قدرت بيامومى.لکه څنګه چه د هغه کس دپاره تيمم آخرى وخت ته روستو کول مستحب دى.چه په آخر وخت کښې د اوبو موندلو اميد لرى.

## ديوم ا لنحر نه وړاندې درې روژې نه نيول

| فَإِنْ فَاتَهُ الصَّوْمُ حَتَّى يدخل يَوْمُ النَّحْرِ لَمْ يُجْزِهِ إِلَّا الدَّمُ اوکه فوت شوې ددې نه روژې تردې چه راغله ورځ د قربانۍ جائز نه دى ده لره مګر صرف دم. |
|---|

**حل اللغة** < ① **فاته، فات فوتًا (ن)**: فوت کيدل، ورکيدل

**تشريح** < **حكم فوت الصيام قبل يوم النحر** < وړاندې ذکر اوشو.چه قارن که د قربانۍ طاقت نه لرى.نولس روژې دې اونيسى.درې د يوم النحر نه وړاندې او اووه دحج نه د فراغت نه پس،① خوکه دغه روژې ئې د يوم النحر نه وړاندې اونه نيوې شوې.تردې چه يوم النحر راغله.نواوس دم واجب شو. روژې نه کافى کيږي.[1]

[1] **مذهب الشافعي رحمه الله**:- امام شافعى رحمه الله فرمائي.چه دا روژې دې د ايام التشريق نه پس اونيسى.
**مذهب مالك رحمه الله**:- امام مالك رحمه الله فرمائي.چه هم په ايام تشريق کښې دې اونيسى.

**دليله**> دليل دا دي.چه په ايام التشريق کښې د روژو نيولو نه منع شوې ده.ځکه چه په حديث کښې دی.«لا تصوموا فی هذه الأيام» ([1]) اودا حديث مشهور دي.اود حديث مشهور په وجه کتاب الله مقيد کولې شي.نوځکه به نص يعنی «ثلاثة أيام في الحج» د ايام التشريق نه علاوه په نورو ورځو پورې مقيد کولې شي.يعنې د ايام التشريق نه علاوه په نورو دريو ورځوکښې ددې روژو نيولوحکم شوي دې.اوکه د کتاب الله نص په دې حديث سره مقيد نشی.نود نهی په وجه به ددې ورځو په روژو کښې په يقين سره نقصان پيدا شی.اوپه قارن چه د دم قران په وجه کومې درې روژې واجب شوي وې.هغه کاملې وې.اودا قاعده ده چه کامل په ناقص سره نشی ادا کولې.لکه څنګه چه پرونی د مازيګرقضا شوې مونځ نن د نمر ډوبيدو په وخت کښې نشی ادا کولې.بهرحال په ايام التشريق کښې دا روژې نشی نيولې.اودايام التشريق نه پس هم نشی ادا کولې.ځکه چه د دم په بدل کښې د روژو وجوب خلاف قياس ثابتې شوې وې.اودا قانون دې.چه کوم څيز خلاف قياس ثابت شی.هغه به مختص وی په خپل مورد پورې.اودهغې مورد د حج وخت دې.نوچه د حج وخت اوځی.ددې نه پس روژه نيول ټيك نه دی.بلکه حکم به خپل اصل يعنی د هدی ځاروی ته واپس کيږی.نوچه د هدی ځاروې کله هم حاصل شی.دهغې قربانی به کوی.

## اووه روژې پس د حج نه

| ثُمَّ يَصُوْمُ سَبْعَةَ أَيَّامٍ إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهٖ بيا به روژې اونيسی اووه روې کله چې راواپس شی خپل اهل ته |
|---|

**تشريح**> **سبعة صيام بعد الحج**> کله چې د حج د احکامو نه فارغ شی نو اووه روژې دې اونيسی

**دليله**> دليل دا آيت دې ﴿وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ﴾

او د ضروری نه ده چې خپل کور ته واپس لاړ شی نو هله به ئې نيسی بلکه د کور ته تلو نه وړاندې کښې يې اونيسی نو هم جائز ده لکه په راروان متن کښې چې ماتن فرمائی

## دحج د احکامونه پس په مکه کښې روژې نيول

| وَإِنْ صَامَهَا بِمَكَّةَ بَعْدَ فَرَاغِهٖ مِنَ الْحَجِّ جَازَ) اوکه وې نيولې دا (روژې) په مکه کښې پس د فراغت د احکامو د حج نه،نوجائزدی. |
|---|

**تشريح**> **محل الصيام**> ①وړاندې تيرشو.چه اووه روژې چه کله کورته واپس شی. اونيسی .خوکه قارن د حج د فراغت نه پس هم په مکه کښې روژې اونيسی.نوجائزدی.خوپه دې شرط چه د ايام التشريق د تيريدو نه پس روژې اونيسی.ځکه چه په ايام التشريق کښې د روژې نيولو نه منع شوې ده. ([2])

**دليله**> دليل دا دي.چه دالله تعالى د قول «اذا رجعتم» معنی«اذا فرغتم»ده. يعنی کله چه تاسو د حج نه فارغ شئ.نو روژې نيسئ.که په مکه کښې ئې اوکه په لار کښې ئې اوکه په وطن کښې ئې.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه د حج نه فراغت وطن ته د راتلو سبب دې.نوسبب په حقيقت کښې د حج نه فراغت دې.نوچه د حج د فراغت نه پس اووه روژې اونيسی.نود سبب نه پس روژې موجود شوې.اود سبب نه پس چه کوم څيز موجود شی.هغه ادا کيږی.نوځکه چه دحج نه پس دا اووه روژې اونيسی.نوادا کيږی به،اګرچه په مکه کښې ئې اونيسی.

---

[1] ) تقدم تخريجه في كتاب الصوم)ـ

( [2] مذهب الشافعي رحمه الله: امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د قارن دپاره ددې اووه روژو په مکه کښې نيول جائز نه دی.

| |
|---|
| قَالَ لَمْ يَدْخُلِ الْقَارِنُ مَكَّةَ وَتَوَجَّهَ إِلَى عَرَفَاتٍ كه داخل نشو قارن مكي ته بلكه روان شو عرفات ته، فَقَدْ صَارَ رَافِضًا لِعُمْرَتِهِ بِالْوُقُوفِ نو او گرځيدلو دې ماتونكې د عمرې خپلې په سبب د وقوف (په ميدان عرفات كښې) |

**تشريح> فساد العمرة بالذهاب إلي العرفات>** دويمه مسئله دا ده.چه قارن مكي ته د داخليدو په ځائې نيغ عرفات ته لاړ شي.نودده عمره ماته شوه.ځكه چه اوس ددې قارن دپاره عمره كول متعذر شو.عمره كول ورته

**دليله>** ځكه متعذرشو.كه دې دحج نه پس عمره اوكړي.نو په دې كښې دعمرې د افعالو ترتب په حج باندې راځلو . حالانكه دا د شريعت خلاف دې. مشروع دا دې.چه قارن اول عمره اوكړي.اوبيا حج اوكړي.

**الروايتان في ترك العمرة بالتوجه إلي عرفات>** ①مسئله دا ده.چه قارن صرف عرفات ته په روانيدو باندې دعمرې پريخودونكې نه گرځي.بلكه ماتونكې به هله گرځي.چه په نهمه ذوالحجه د زوال نه پس عرفات ته اورسي.اوهلته وقوف اوكړي.د امام ابوحنيفه رحمه الله صحيح مذهب هم دا دې.②البته دامام اعظم رحمه الله نه د حسن بن زياد رحمه الله په روايت كښې دا منقول دى.چه عرفات ته صرف په روانيدو سره دده عمره پاتې كيږي.اوقياس دا دې.چه لكه څنگه په جمعه كښې صرف جامع مسجد ته په روانيدو سره ماسپخين ترك كيږي.نودغه شان چه قارن صرف عرفات ته روان شي.نودعمرې پريخودونكې دې شي.

## د عمرې په پريخودو د دم قران ساقط كيدل

| |
|---|
| وَسَقَطَ عَنْهُ دَمُ الْقِرَانِ اوساقط شو دده نه دم قران، وَعَلَيْهِ دَمٌ لِرَفْضِ الْعُمْرَةِ اوپه ده باندې قرباني ده،د وجې د پريخودو د عمرې |

**حل اللغة >**①**سقط،سقوطاً (ن):** ساقط كيدل، پريوتل ②**رفض:** پريخودل ]

**تشريح> سقوط دم القران>** مسئله دا ده.چه قارن د عمرې د افعالو ادا كولو نه بغير نيغ عرفات ته لاړلو. نو دده د ذمې نه دم قران هم ساقط شو.ځكه چه دعمرې په پريخودو سره دې د دوو عبادتونو جمع كونكې نشو.اوهركله چه ده ته د دوو عبادتونو جمع كولو توفيق ملاؤ نشو.نو په ده باندې دم قران يعنې دم شكرهم واجب نشوه.البته په ده باندې د عمرې قضا واجب ده.اود عمرې پريخودو په وجه دم هم واجب دې.دم خو ددې وجې واجب دې.چه ده په عمره كښې د شروع كولو نه پس هغه ترك كړې ده.اوقضا د دې وجې واجب ده.چه ده په عمره كښې شروع صحيح شوې وه.اومسئله دا ده.چه نفل په شروع كولو سره لازميږي.كه هغه ترك كړي.نوقضا به ئې راوړي.

| |
|---|
| وَعَلَيْهِ قَضَاؤُهَا )اوپه ده باندې قضا ددې ده، |

**تشريح> وجوب الدم والقضاء>** دا كس دمحصر پشان شو.محصر هغه څوك دې.چه احرام ئې تړلې وى.خود دشمن د ويرې يا د بل څه د وجې د نسك د ادا كولونه بند شي.نودې به احرام پرانيزي.خوپه ده باندې يوه قرباني اوقضا شته.هم دغه شان دعمرې په پريخودو باندې هم قرباني سره د قضا شته.والله اعلم

د (حج) تمتع بيان

## بَابُ التَّمَتُّعِ

دا باب د تمتع په بيان کښې دې.

### د حج تمتع افضليت

| التَّمَتُّعُ أَفْضَلُ مِنَ الْإِفْرَادِ عِنْدَنَا تمتع افضل دې د افراد نه |
|---|

**حل اللغة** ۞ ①**التمتع**: نفع اوچتول ②**افراد**: ځان له

**تشريح** ۞ **الرواية الواحدة في فضل التمتع** ۞صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.①چه حج تمتع د حج افراد نه افضل دې.اوهم دا ظاهر روايت دې.

**دليله** ۞دظاهر روايت دليل دا دې.چه نبی ﷺ حج قران کړې وو.اونبی ﷺ چه کوم حج کړې وی.هغه به افضل وی.نوقران افضل شو.اوتمتع هم د قران پشان ده.ځکه چه په دې کښې دوه عبادتونه جمع کيږی.نوتمتع به هم افضل وی.②دويمه خبره دا چه په تمتع کښې يو نسك يعنی قربانی زياتی ده.اودا په افراد کښې نشته.نوددې وجې هم تمتع افضل دې د افراد نه،

**الرواية الثانية في فضل التمتع** ۞ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه په نادر روايت کښې دا منقول دی.چه افراد افضل دی.امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دليل نادرالرواية** ۞د نادر روايت دليل دا دې.چه د حج تمتع سفر د عمرې دپاره وی.ځکه چه د ميقات نه د عمرې دپاره احرام تړی.اود حج افراد سفر د حج دپاره وی.ځکه چه دميقات نه د حج دپاره احرام تړی.اوعمره سنت ده.اوحج فرض دې.اودا ښکاره خبره ده.چه فرض افضل دی د سنت نه،نوکوم سفر چه د فرض حج دپاره وی.هغه به بهتر وی د هغه سفر نه کوم چه د سنت يعنی عمرې دپاره وی.نوافراد افضل شو تمتع نه،

**الجواب عنه** ۞دنوادر د روايت جواب ورکوی اوصاحب دهدايه رحمه الله فرمائی.چه چه د متمتع سفرهم دحج دپاره دې.اوپه مينځ کښې د عمرې واقع کيدل ددې تابع دی.لکه څنګه چه د سعی الی الجمعه اوجمعې په مينځ کښې سنت واقع شی.نودا نشی ونيلې چه دا سعی د سنتو دپاره ده.بلکه سعی هم د جمعې دپاره وی.اوسنت د جمعې تابع وی.دغه شان دلته هم د متمتع سفرد حج دپاره وی.اګرچه په مينځ کښې عمره واقع شی.

### د متمتع قسمونه

| وَالْمُتَمَتِّعُ عَلٰى وَجْهَيْنِ مُتَمَتِّعٌ بِسَوْقِ الْهَدْيِ اومتمتع په دوه قسمه دې.هغه متمتع چه شرلې ئې وی هدی وَمُتَمَتِّعٌ لَايَسُوْقُ الْهَدْيَ اوبل هغه متمتع چه نه ئې وی شرلې هدی. |
|---|

**حل اللغة** ۞①**هدی**: دَ قربانئی ځناور

**تشريح** ۞ **قسمي التمتع** ۞ صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه دمتمتع دوه قسمونه دی.①يوهغه چه حرم طرف ته هدی اوشړی.②اوبل هغه چه هدی ئې نه وی شړلې.

**معني التمتع** ۞ علامه مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی.چه د تمتع معنی ده.دحج اوعمرې په مينځ کښې په خپل وطن کښې بغيرد المام صحيحه نه په يوسفرکښې د دوو عبادتونو نه نفع اخستل دی.

**معنى الإلمام وتسميه** ﴿د المام لغوي معنى ده.صفت د احرام باقي پريخودل بغيرددې نه چه په خپل وطن كښې ايسار شي.اودا دوه قسمه دي.① يوالمام صحيح ② اوبل المام فاسد .المام صحيح دا دې.چه حاجي متمتع خپل د هدى ځاروې نه وي ليږلي. ② اوالمام فاسد دا دې.چه د هدى ځاروى اوليږي.

**د تمتع طريقه**

| وَصِفَةُ التَّمَتُّعِ أَنْ يَبْتَدِءَ مِنَ الْمِيقَاتِ اوطريقه ددې (حج تمتع) دا ده.چه شروع به اوكړي د ميقات نه فَيُحْرِمَ بِالْعُمْرَةِ وَيَدْخُلَ مَكَّةَ فَيَطُوفَ لَهَا وَيَسْعَى وَيَحْلِقَ أَوْ يُقَصِّرَ نو احرام به اوتړي د عمرې اوداخل به شي مكې ته،نوطواف به اوكړي دې (عمرې) دپاره او سعى به اوكړي دې (عمرې) دپاره،اوحلق به اوكړي يا تصر وَقَدْ حَلَّ مِنْ عُمْرَتِهِ )اوحلال شو دې د عمرې خپلې نه |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **ان يبتدء، ابتداء، ابتداءً:** شروع كول ]

**تشريح**﴿ عبارت واضح دې د تشريح ضرورت نشته

**د طواف په شروع كښې تلبيه پريخودل**

| وَيَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ إِذَا ابْتَدَأَ بِالطَّوَافِ اوتلبيه به پريږدي كله چه شروع اوكړي په طواف، |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **يقطع، قطعًا(ف)** :ختم كول، ماتول

**تشريح**﴿ **وقت قطع التلبية**﴿صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي. چه عمره كونكې چه څنګه په طواف شروع اوكړي.نوتلبيه وئيل به پريږدي.([1])

**دلائله** ﴿ ① دليل دا دې.چه نبي ﷺ په عمرة القضا كښې چه كله په طواف كښې حجر اسود بنكل كړلو.نوتلبيه وئيل ئې پريخودلو.داسې نه چه د بيت الله په كتلو ئې تلبيه پريخودې وه. ([2]) نو معلومه شوه.چه د تلبيه د پريخودلو وخت طواف دې

② دويم دليل دا دې.چه د عمرې نه مقصود طواف دې.نوچه څنګه طواف شروع كړي.تلبيه دې پريږدي.لكه څنګه چه حاجي څنګه په رمى شروع اوكړي.نوتلبيه وئيل پريږدي.

**د متمتع د عمرې نه حلاليدل اودحج دپاره دوباره احرام تړل**

| وَيُقِيمُ بِمَكَّةَ حَلَالًا اوا وسيږي به په مكه كښې حلال فَإِذَا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ چه كله شي ورځ د ترويه نو احرام به اوتړي په حج سره د مسجد حرام نه، |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **يقيم، اقامة:** قيام كول، حصاريدل ② **احرم، احرامًا:** احرام تړل

**تشريح**﴿ **القيام في المكة ثم إحرام الحج**﴿مسئله دا ده.چه عمره كونكې كله د عمرې د احرام نه حلال شي.نودې به هم په دې حالت كښې په مكه كښې قيام كوي.(دا څه ضروري نه ده.چه د مكې نه به بهر ته نه اوځي.)چه كله د ذوالحجه اتم تاريخ شي.نودحج دپاره به احرام اوتړي.ددې احرام د حرم نه تړل شرط دې.اود مسجد حرام نه ئې تړل افضل دى.دغه شان د اتمې ذوالحجه نه وړاندې هم احرام تړل افضل دى.

[1]) **مذهب مالك** رحمه الله:- اوامام مالك رحمه الله فرمائي.چه څنګه ئې په بيت الله نظر پريوځي.نوتلبيه وئيل به پريږدي.

[2]) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه الترمذي في الحج باب ۷۹ رقم ۹۱۹ وابوداود في المناسك باب ۲۸ قم ۱۸۱۷ )_

**دليله**> دليل دا دې.چه دا سړی د مکی په حکم کښې دې.اومکی به په حرم کښې احرام تړی.لکه څنګه چه ددې تفصيل په باب المواقيت کښې تير شوې دې.

| وَفَعَلَ مَا يَفْعَلُهُ الْحَاجُّ الْمُفْرِدُ اوکوی به (مناسك دحج) لکه څنګه چه کوی حاجی مفرد ، |
|---|

**تشريح**> **إتحاد أفعال المتمتع والمفرد** >صاحب دقدوری رَحِمَهُ اللهُ فرمائی.دا متمتع به اوس هغه احکام کوی.کوم چه مفرد بالحج کوی.څکه چه دې اوس هم دحج د افعالوادا کونکې دې.

**الفرق في المسئلتين**> البته دومره فرق شته. چه دا کس به په طواف زيارت کښې رمل کوی.اوپه صفا مروه کښې به سعی کوی.څکه چه په حج کښې دا دده اولنې طواف دې.په خلاف د مفرد (هغه به رمل نه کوی.)څکه چه هغه د طواف قدوم نه پس سعی کړې ده.اوسعی صرف يوځل مشروع ده.

| وَعَلَيْهِ دَمُ الْمُتَمَتِّعِ)اوپه ده باندې دم تمتع دې. (فَإِنْ لَمْ يَجِدْ مَا يذبح صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةً إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ)که نه مومی هغه څه چې قربانی ئې کړی نو روژې به نيسی درې روژې په ورځو دحج کښې اواووه کله چه واپس شی (خپل وطن ته) |
|---|

**تشريح**> **وجوب الهدى على المتمتع** >صاحب د قدوری رَحِمَهُ اللهُ فرمائی.چه په حاجی متمتع باندې قربانی واجب ده.

**دليله**> دليل دالله تعالی ارشاد دې. ﴿فَمَنْ تَمَتَّعَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ﴾ اوکه متمتع د هدی د څاروی په حاصلولو قادر نه وی.نود قارن پشان دې د حج په زمانه کښې درې روژې اونيسی.اواووه روژې دې د حج د فراغت نه پس اونيسی.تفصيل اودليل په حج قران کښې تير شوې دې.

### د متمتع سائق الهدى طريقه د حج

| وَإِنْ أَرَادَ الْمُتَمَتِّعُ أَنْ يَسُوقَ الْهَدْيَ أَحْرَمَ اوکه اراده اوکړه تمتع کوونکی چه روانه کړی هدی نو احرام دې اوتړی وَسَاقَ هَدْيَهُ) |
|---|

**حل اللغة** > ①**يسوق، سوقًا (ن)**: څناور دَ روستونه شړل ②**هدى**: دَ قربانئی څناور

**تشريح**> **فضل سوق الهدى مع نفسه** >مسئله دا ده.که متمتع هدی ليږل غواړی.نود عمرې احرام دې اوتړی.اوخپل هدی دې اوليږی. صاحب د قدوری رَحِمَهُ اللهُ فرمائی.چه دمتمتع هدی څان سره بوتلل د نه بوتلو نه افضل دی.څکه چه د الله تعالی پيغمبر ﷺ خپل څان سره د قربانئ څاروی بوتلی وو.

**دلائله**> ①لکه څنګه چه په مسلم کښې د حضرت جابر رضي الله عنه دحديث نه ښکاره ده.②([1]) او دويم دليل دا چه هدی څان سره بوخی.نوپه دې کښې دنيکئ تياری اوپه واجب ادا کولو کښې تلوار دې.اودا دواړه خبرې خوښې شوی دی.څکه د هدی څان سره بوتلل د نه بوتلو نه افضل دی.

اوس که د هدی څاروې اوښ ياغوې وی.نودهغې په غاړه کښې دې د څرمنې توټه يا د څپلئ توټه واچوی.اوغاړکئ دې ترې جوړه کړی.لکه د حضرت عائشې رضي الله عنها حديث (کنت أفتل القلائد هدى رسول الله ﷺ) نه چه ښکاره ده.

---

[1] ) قال الزيلعی رحمه الله اخرجه البخاری ومسلم عن ابن عمر رضي الله عنهما قال تمتع رسول الله ﷺ في حجة الوداع بالعمرة إلى الحج وأهدى فساق معه الهدى من ذی الحليفة وبدأ رسول الله ﷺ فأهل بالعمرة ثم أهل بالحج وتمتع الناس معه (كذا في نصب الراية ۲/۱۳۳)_

**فضل القلائد من التجليل** ﴿صاحب د هدایه رحمه الله فرمائي. چه خاروی ته د (جول) اچولو په نسبت غاړکۍ اچول غوره دي.

**دلائله** ﴿ ① دلیل د افضلیت دا دې.چه د قلائدو ذکر په قرآن پاك کښې موجود دې.ارشاد دې﴿ جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا لِّلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ وَالْقَلَآئِدَ ﴾ ② دویم دلیل دا دې.چه تقلید صرف د دې خبر ورکولو دپاره دې .چه دا د هدی خاروې دی.ددې نه بله فائده په کښې نشته.او(جول) اچول د زینت دپاره هم وی.اود ګرمۍ او یخنۍ لرې کولو دپاره هم وی.نوتقلید بغیرد بل څیز د احتمال نه د هدی نښه ده.او(جول) اچول یقیني نښه نه ده.نوځکه غاړکۍ د (جول) اچولو نه غوره ده.

### د بدنه د تقلید حکم

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَتْ بَدَنَةً قَلَّدَهَا بِمَزَادٍ أَوْنَعْلٍ[1] اوکه اوښ وی نو غاړکۍ به ورته اچوی په په هډوکی سره او یا په پڼړې سره |

**تشریح** ﴿ **تقلید البدنة** ﴿ د دې ځائې نه د متمتع د اول قسم (کوم چې ځان سره هدی بوتلې وی) د هغې بیان شروع کیږی او د تمتع دا صورت افضل دې مسئله دا ده که متمتع د ځان سره هدی بوتلل غواړی نو د عمرې دپاره دې احرام اوتړی او د خپلې هدی څناور دې اوشړی اوس که د هدی خاروې اوښ یا غوا وی نو د دې په غاړه ښې دې د څرمنې ټکړه یا د خپلۍ ټکړه واچوی دې ته تقلید وائی او دا په اتفاق سره سنت دې او د غاړکۍ اچولو مطلب دا دې چې خلق اوپیژنی چې دا د حرم هدی ده د دې رواج د جاهلیت د وخت نه راروان دې ځکه چه په عربو کښې د قتل او ډاکو بازار ګرم وو خو چې د کوم څاروی په باره کښې به دا معلومه شوه چې دا د حرم هدی ده نو ډاکوانو به هم هغه نه لوټ کوله

### د بدنه د اشعار حکم

| |
|---|
| وَأَشْعَرَ الْبَدَنَةَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ[2] اواشعار به کوی داوښ د صاحبینو رحمهما الله په نزد. وهو أَنْ يَشُقَّ سَنَامَهَا بِأَنْ يَطْعَنَ فِي أَسْفَلِ السَّنَامِ او او اشعار دادې چه داوښ قب به څیرے کړی. په دې شان چه نیزه لاندې طرف ته وی مِنَ الْجَانِبِ الْأَيْمَنِ دښی طرف نه |

**حل اللغة** ﴿ ① **اشعر، اشعارًا:** زخمی کولوسره زخم په وینا ککړول

**تشریح** ﴿ **معني الأشعار** ﴿په لغت کښې اشعار زخمي کول او وینه راویستل دی.اوطریقه ئې دا ده.چه ښی طرف ته د قوب نه لاندې به نیزه اوهی.اودهغه ځائې به اوشلوی.متاخرین عالمان رحمهم الله فرمائی.چه صحت سره زیات مشابه کس طرف دې.یعنی ګس طرف ته اشعار کول زیات مناسب دی.

**اشعار البدنة** ﴿مسئله دا ده.① که دهدی خاروی چیلۍ یا ګډ وی.نوبه اتفاق سره به ددې اشعار نه کوی.اوکه بدنه وی.نود صاحبینو رحمهما الله په نیز به ددې اشعار کولې شی. اودا بغیرکراهته جائزدې.

**دليلهما** ﴿ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه د هدی خاروی ته غاړکۍ اچول ددې مقصد دپاره وی.که د هدی څاروې د اوبو یا فصل ته ورشی.چه هغوی ئې نه شړی .یا که هغه ورك شی.هغه واپس کولې شی.اودا خبره په اشعار کښې په کامله طریقه موجود ده.اولازمه هم ده.ځکه چه داسې زخم ډیرزر نه ښه

[1]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله وما نقل عن الإمام من الكراهة فمفهومها مذكور في التسهيل

[2]) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله وما نقل عن الإمام من الكراهة فمفهومها مذكور في التسهيل

کیږی.چه هرسړی دا وینی.نوپوهیږی به چه دا هدی ځاروی دی.بهرحال په دې اعتبار سره اشعار سنت دی.البته دا ده چه په اشعار کښې مثله هم موجودیږی.اومثله ممنوع ده.نوددې وجې مونږ مینځنۍ لار اختیار کړه.اوهغه دا چه اشعار نه مکروه دی.اونه سنت دی.بلکه مستحسن امر دی.

**الاشکال** >اوکه ته دا اووائې.چه اشعار د احادیثو نه ثابت دی.نوبیا څنګه مسنون نشو.

**الجواب عنه** > نوددې جواب دا دی.چه احادیث دواړه قسمه وارد شوی دی.حرامونکی هم او مباح ګرځونکی هم،نومحرم ته ترجیح ورکړې شوه اواشعار مکروه اوګرځولې شو.

| وَلَايُشْعِرُعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَرَحِمَهُ اللّٰهُ اونشته اشعار په نیز د امام ابوحنیفه |
|---|

**تشریح** > **مذهب ابي حنيفة** رحمه الله > اودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ددې اشعارکول مکروه دی.

صاحب دهدایه رحمه الله د مذاهبو په بیان کښې فرمانیلی دی.چه اشعار یعنی نیزه وهل او قوب زخمی کول دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مکروه عمل دی.(۱)

**دلیله** > دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې چه دا مثله ده او مثله کول ممنوع ده او که تعارض واقع شی نو ترجیح محرم ته وی

## دمتمتع سائق الهدی اوغیرسائق الهدی په تحلیل کښې فرق

| (فَإِذَادَخَلَ مَكَّةَطَافَ وَسَعَى)اوکله چه مکې ته دخول اوکړی نو طواف اوسعی به اوکړی. |
|---|

**حل اللغة** > ①دخل، دخولاً(ن): داخلیدل

**تشریح** > **الاعمال بعد دخول مکة** > مسئله دا ده.چه هغه متمتع چه خان سره نې هدی شړلې وی.چه مکې ته داخل شی.نود عمرې دپاره دې طواف اوسعی اوکړی.

**الفرق بین تحلیل ساق الهدی وغیرساق الهدی** > البته دومره فرق شته.چه کوم متمتع خان سره هدی شړلې وی.دې د عمرې نه پس نه حلالیږی.حالانکه دې به په یوم الترویه باندې دحج احرام تړی.حاصل دا چه هدی خان سره شړونکې او قارن دواړه یوشان دی. لکه څنګه چه قارن دحج اوعمرې په مینځ کښې نه حلالیږی.دغه شان دا متمتع هم د حج اوعمرې په مینځ کښې نه حلالیږی.فرق صرف دومره دې چه د قارن احرام د حج نه وړاندې موجود وی.اودا متمتع په یوم الترویه باندې دحج احرام تړی.ددې په خلاف هغه متمتع چه هغه خان سره هدی نه وی شړلې.هغه دعمرې ادا کولو نه پس حلالیږی.

**دلیله** > دلیل دا دی.چه نبی ﷺ د حجة الوداع په موقع چه کله مکې ته داخل شو.نوصحابه کرامو ﷺ ته نې حکم اوکړلو.چه د حج احرام فسخ کړئ.اودعمرې احرام اوتړئ.صحابو ﷺ ددې حکم تعمیل اوکړلو .اود عمرې احکام نې پوره کړل.ددې نه پس صحابه کرام ﷺ په دې انتظار کښې وو.چه نبی ﷺ حلق کوی اوخان حلالوی که نه،په دې باندې نبی ﷺ اوفرمانیل.که ماته د وړاندې نه دا معلومه وه.چه سوق د هدی د حلالیدو نه مانع ده.نوما به خان سره هدی نه راوستله.خوچونکه ما خان سره هدی راوستې ده.نوځکه نه حلالیږم.(۲) ددې حدیث نه معلومه شوه.چه د سوق هدی په صورت کښې متمتع چه د عمرې افعال اوکړی.نو نه حلالیږی.

---

(۱) **مذهب الشافعي:**- دامام شافعی رحمه الله په نیز مسنون دې.هم دا د حضرت امام مالك اوامام ا حمد اوجمهورد عالمانو رحمهم الله مذهب دې.

(۲) من حدیث انس ﷺ أخرجه البخاری في الحج باب ۸۱ ومسلم في الحج رقم ۲۱۱ ،۲۱۳)۔

## د عمري نه پس په ايام الحج کښې احرام تړل

(ولم يتحلل حتى يحرم بالحج يوم التروية) اونه دي حلاليږي تردې چه په ورځ د ترويه د حج احرام اوتړي ( فإن قدم الإحرام قبله جاز) اوکه احرام ئې د دې نه وړاندې اوتړلو ،نو جائزدي وعليه دم التمتع) او په ده باندې دم تمتع دې

**تشريح**> صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي.چه متمتع به د عمرې افعالو پوره کولو نه پس په اتمه ذوالحجه د حج دپاره احرام تړي.لکه څنګه چه مکی په اتمه ذوالحجه احرام تړي.څکه چه دې هم د مکی په حکم کښې دې.خوکه د يوم التروية نه وړاندې ئې احرام اوتړل.نوهم جائزده.بلکه افضله ده.څکه چه متمتع د حج احرام څومره وړاندې اوتړي.نودا افضله ده.

**دلائله**>اودليل دا دې.① چه د احرام په تړلو کښې جلتی کول مسارعت الی الخيرات دې.

② اوزيات مشقت دې.او عبادت د مشقت د زيادت په وجه افضل وی.په حديث کښې دی(أفضل العبادات أحمضها) علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلی دی.چه په دې افضليت کښې هغه کس چه هدی ئې شړلې وی اوهغه کس چه هدی ئې نه وی شړلې.دواړه برابر دی.يعنی د دواړو دپاره جلتی افضل ده.

**وجوب دم التمتع**> صاحب د قدوری رحمه الله فرمائي چه په حاجی متمتع باندې قربانی واجب ده متمتع چې کله په لسمه ذو الحجه بآندې ويخته اوخرائې يا ئې کټ کړل نو دې د حج او عمرې دواړو احرامو نو نه حلال شو.

(فإذا حلق يوم النحر فقد حل من الإحرامين)اوکله چه سراوخرئی د قربانئی په ورځ نوحلال شود دواړو احرامونونه.**تحليل المتمتع بالحلق**>صاحب د قدوری رحمه الله فرمائي.چه په متمتع حاجی باندې قربانی واجب ده.

**دليله**> څکه چه حلق په حج کښې حلالونکې دې.لکه څنګه چه په مانځه کښې سلام حلالونکې دې.نوپه حلق سره به د حج اوعمرې دواړو د احرامونو نه حلال شي.

## د اهل مکه دپاره د تمتع او قران حکم

(وليس لأهل مكة تمتع ولا قران) اود مکې والودپاره نه تمتع شته اونه قران. ،وإنما لهم الإفراد خاصة) د دوی دپاره خوصرف خانله حج دې

**تشريح**> **عدم التمتع والقران للمكي**>مسئله دا ده.چه د مکی اوميقاتی دپاره نه تمتع شته اونه قران.بلکه ددوی دپاره صرف حج افراد دې.خوکه ددې باوجود دوی تمتع يا قران اوکړلو .نو جائز دې. خو ګناهګار دې.او ددې په وجه به په ده دم جبر لازميږي.[1]

**دليله**>دليل دالله تعالی دا ارشاد دې.چه ﴿ذلك لمن لم يكن أهله حاضري المسجد الحرام﴾ يعنی تمتع د هغه چا دپاره دې.چه د ده کوروالہ د مسجد حرام سره نه اوسيږي.يعنی حج تمتع د غيرمکی آفاقی دپاره دې.نوثابته شوه چه تمتع د مکی دپاره نه دې.په دې آيت کښې د (ذلك)مشار اليه زمونږ په نيز تمتع ده.② دويم دليل دا دې.چه حج تمتع اوقران ددې دپاره مشروع شوې دې.چه دحج او عمرې د

[1]) **مذهب الشافعي رحمه الله**:- امام شافعی رحمه الله فرمائي.چه دمکی اوميقاتی دپاره تمتع اوقران جائزدې.اوپه دوی باندې دم جبر نه لازميږي.لکه څنګه چه په آفاقی باندې واجبيږي.

دوو سفرونو نه یو ساقط کړی. او اسانتیا پیدا شي.او دا اسانتیا د افاقی دپاره ده.د مکی دپاره نه ده.خکه چه مکی خود سفر محتاج نه دي.

**داخل الميقات في حكم المكي>** صاحب د هدایه رحمه الله فرمانیلی دی.چه په میقات کښې دننه ټول خلق د مکی په حکم کښې دی.نود میقاتی دپاره د مکی پشان تمتع او قران نشته.

البته دا که یو مکی د حج دمیاشتو نه وړاندې د میقات نه بهر تلې وی.اود هغه خاني نه احرام اوتړی. نو بغیر کراهته جائز دې.خکه چه دده حج اوعمره دواړه میقاتی دی.نوخکه دا کس د آفاقی په مرتبه کښې شو.اوآفاقی قران کولې شي.نودا کس هم قران کولې شی.البته دا خیال دې کولې شی.که یوکس د حج د میاشتو نه پس کوفې ته داخل شی.نودهغه دپاره قران ممنوع دې.

...

## د متمتع دعمرې نه پس خپل وطن ته واپس کیدل

| |
|---|
| وَإِذَا عَادَ الْمُتَمَتِّعُ إِلَى بَلَدِهِ بَعْدَ فَرَاغِهِ مِنَ الْعُمْرَةِ که واپس شو متمتع خپل ښارته دعمرې اداکولونه پس وَلَمْ يَكُنْ سَاقَ الْهَدْيَ بَطَلَ تَمَتُّعُهُ اونه ني وه بوتلې دخان سره قربانی نوباطل شودده متمتع |

**حل اللغة >** ①**عاد، عودًا (ن)**: واپس کول ②**فراغ**: فارغ کیدل ③**بطل، بطلانًا(ن)**:باطل کیدل

**تشريح>** آفاقی چه د حج په میاشتو کښې د عمرې افعال اوکړی.اوبیا خپل وطن ته واپس شی.اوبیا هم په دغه کال د حج دپاره احرام اوتړی.نودا کس متمتع دې که نه؟ نوددې دوه صورتونه دی.یودا چه دې کس خان سره هدې اوړی وی.اوبل صورت دا چه خان سره نې هدی نه وی اوړې.د اولنی صورت حکم په دویم عبارت کښې راخی.اوپه دویم صورت کښې د احنافو رحمهم الله په اتفاق سره دده تمتع باطل شو.

**دليله>** دلیل دا دې.چه د حج اوعمرې په مینځ کښې ددې کس المام صحیحه موجود شو.اوپه المام صحیحه سره تمتع باطلیږی.نوخکه د ده تمتع باطل شو.هم داسې د تابعینو رحمهم الله د یو جماعت نه نقل شوی دی.امام طحاوی رحمه الله د حضرت سعید بن مسیب،عطاء بن ابی رباح،مجاهد او ابراهیم نخعی رحمهم الله نه روایت کړې دې.

## په اشهر الحج کښې د عمرې د اکثر طوافونو په تمتع کړخولو کښې کردار

| |
|---|
| وَمَنْ أَحْرَمَ بِالْعُمْرَةِ قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ فَطَافَ لَهَا أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعَةِ أَشْوَاطٍ چا چه احرام اوتړلو دعمرې د حج دمیاشتونه مخکښې نوطواف نې اوکړو ددې دپاره کم د څلورو چکرو نه دَخَلَتْ أَشْهُرُ الْحَجِّ فَتَمَّمَهَا بیا دحج میاشتې شروع شوې اوده د طواف چکرې پوره کړې وَأَحْرَمَ بِالْحَجِّ كَانَ مُتَمَتِّعًا دحج احرام نې اوتړلونودې به متمتع وی. |

**حل اللغة >** ①**اقل**: کم ②**فتممها، تمم تتميمًا** پوره کول ③**اشواط**: چکرې ④ **اشهر**: میاشتې

**تشريح> حكم ثر اشواط العمرة في اشهر الحج>** که یوکس د حج د میاشتو نه وړاندې احرام اوتړلو. زمونږ مذهب دا دې.که دعمرې څلور چکرونه د طواف نې په اشهرالحج کښې ادا کړی وی.اودرې ددې نه وړاندې ،نودا کس متمتع دې.اوکه ددې په عکس وی.نومتمتع نه دې.

**دليله>** دې. چه احرام دعمرې دپاره شرط دې.نوپه اشهرالحج باندې ددې وړاندې والې داسې دې.لکه طهارت چه دمانځه دپاره شرط دې.اوهغه په وخت باندې وړاندې کړې شی.نو جائز دی.البته دا چه دا ...وری ده.چه په اشهرالحج کښې دعمرې افعال موجود شی.او په دې صورت کښې څلور چکرونه د طواف په اشهرالحج کښې موجود شوی دی.نو ګویا چه ټول طواف په اشهرالحج کښې موجود شوې دې

خکه چه اکثرلره حکم دکل وی.نو هرکله چه په اشهرالحج کښې حج اوعمره جمع شوه.نوددې جمع کیدو نوم تمتع ده.نودا کس متمتع دی.

| فَإِنْ طَافَ لِعُمْرَتِهِ قَبْلَ أَشْهُرِ الْحَجِّ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ فَصَاعِدًا اوکه دعمرې دپاره د طواف څلور یا دڅلورو نه زیات چکرې ئې دحج د میاشتو نه مخکښې اوکړې ثُمَّ حَجَّ مِنْ عَامِهِ ذَٰلِكَ لَمْ يَكُنْ مُتَمَتِّعًا )بیا ئې حج اوکړو په دغې کال نو متمتع به نه وی. |
|---|

**تشریح﴿ حکم اکثر اشواط العمرة قبل اشهر الحج﴾** اوکه د اشهرالحج نه ئې وړاندې څلور چکرونه کړی وی.اوبیا ئې هم په دې کال په اشهرالحج کښې حج اوکړی.نودې متمتع نه دې.

**دلیله﴾** خکه چه ده د حج د میاشتو نه وړاندې اکثر اشواط پوره کړل او اکثر لره حکم د کل وی نو لکه چه ده ټول طواف د حج د میاشتو نه وړاندې اوکړل او دا کس په دې صورت کښې خکه متمتع نه دې چه د طواف څلور چکرې اووهی نو ددې نه پس عمره د جماع په وجه نه فاسدیږی نو دا کس داسې شولکه چه د حج د میاشتې نه وړاندې حلال شوې وی اوچه د حج د میاشتې نه څوک وړاندې حلال شی نو هغه کس متمتع نشی کیدې.

## دحج میاشتې

| وَأَشْهُرُ الْحَجِّ شَوَّالٌ وَذُو الْقَعْدَةِ وَعَشْرٌ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ اودحج میاشتې شوال، ذوالقعده، اولس ورځې د ذی الحجه دی. |
|---|

**تشریح﴾ اشهرالحج﴾** صاحب دقدروی شیخ ابوالحسن رحمه الله فرمائی.چه دحج میاشتې شوال ذوالقعده اولس ورځې د ذوالحجه دی.[1]

**تشریح﴾ دلائل الأحناف رحمهم الله﴾** ① دلیل دا دې.چه د حضرت عبدالله بن مسعود،عبدالله بن عمر،عبدالله بن عباس اوعبدالله بن زبیر رضی الله عنهم نه هم دا نقل دی.چه د حج میاشتې شوال ذوالقعده او د ذوالحجه لس ورځې دی.

② دویم دلیل دا دې.چه ذوالحجه د لسو ورځو په تیریدو باندې حج فوت کیږی.یعنی که یوکس وقوف عرفات اونکړلو.اویوم النحر راغله.نودده نه حج فوت شو.که د ذوالحجه د آخره پورې د حج میاشتې وې.نود یوم النحر په تیریدو به حج نه فوت کیدو.خکه چه وخت باقی وی.نوفوت کیدل نه متحقق کیږی.

## د اشهرالحج نه وړاندې دحج احرام تړل

| فَإِنْ قَدَّمَ الْإِحْرَامَ بِالْحَجِّ عَلَيْهَا جَازَ إِحْرَامُهُ نوکه مقدم ئې کړو احرام دحج لره په اشهرحج باندې نو جائز شو احرام ئې وَانْعَقَدَ حَجُّهُ اود ده حج دپاره به منعقد شی |
|---|

**حل اللغة﴾** ①**قدم، تقدیما:** مقدم کول، وړاندې کول ②**انعقد، انعقادا:** منعقد کیدل ③ ایجاب: واجب کول ]

[1] **)مذهب مالک رحمه الله:**- امام مالک رحمه الله فرمائی.چه اشهرالحج شوال ذوالقعده اوذوالحجه یعنی پوره درې میاشتې دی.

**تشريح >** **تقديم إحرام الحج على أشهرها >** مسئله دا ده.که یوکس د اشهرالحج نه وړاندې د حج دپاره احرام اوتړلو. دا احرام هم دحج دپاره منعقد کیږی.[١]

**دلائل الأحناف >** ① مونږدلیل دا دې.چه احرام دحج دپاره شرط دې.نولکه څنګه چه طهارت د مانځه دپاره شرط دې.اود وخت نه وړاندې طهارت جائزدې.دغه شان د حج احرام هم په اشهرالحج باندې مقدم کول جائزدې.

② دویم دلیل دا دې.چه په احرام سره څوځیزونه حرامیږی.لکه ګنډلي شوې جامې اغوستل، ښکار کول وغیره اوڅه ځیزونه واجبیږی لکه سعی اورمی وغیره ،اوداسې کول په هره زمانه کښې صحیح دی.که د حج ایام وی اوکه نه وی.نوځکه احرام په هره زمانه کښې جائز دې.③ دریم دلیل دا دې. چه احرام لکه څنګه په میقات یعنی د احرام تړلو په ځائې باندې مقدم کول جائز دی.دغه شان په زمانه د حج یعنی په اشهرالحج باندې مقدم کول جائزدی.

## په حالت دحرام کښې د ښځې حیض راتلل

| وَإِذَا حَاضَتِ الْمَرْأَةُ عِنْدَ الْإِحْرَامِ اغْتَسَلَتْ کله چه حیض راشی ښځې ته داحرام په وخت کښې نوغسل دې اوکړی وَأَحْرَمَتْ وَصَنَعَتْ كَمَا يَصْنَعُهُ الْحَاجُّ احرام دې اوتړی اوکوی دې لکه چه کوی حاجیان غَيْرَ أَنَّهَا لَا تَطُوفُ بِالْبَيْتِ حَتَّى تَطْهُرَ بغیرددې نه چه طواف به نه کوی دبیت الله تردې چه پاکه شی. |
|---|

**حل اللغة >** ①**حاضت،حاض حيضًا (ض)** : دماهوارئی وینه جاری کیدل ②**اغتسلت،اغتسل اغتسل اغتسالاً:** غسل کول

**تشريح >** **أداء الحائض مناسك الحج غير الطواف >** مسئله دا ده.که یوه ښځه د احرام په وخت کښې حائضه شی.نودا دې داحرام دپاره غسل اوکړی.اود حج ټول افعال دې اوکړی.سوې د طواف نه،چه کله پاکه شی .نوبیا دې طواف اوکړی.

**دلائله >** ①ددې دلیل دحضرت عائشې رضي الله عنها حدیث دې.ځکه چه دا په مقام سرف کښې حائضه شوه.چه رسول الله ﷺ تشریف راوړلو.نودا ناسته وه.ژړل ئې.نبی ﷺ ترې په خپله تپوس اوکړلو.ولې ژاړې .حیض راغلې څه؟ حضرت عائشې رضي الله عنها ورته عرض اوکړلو.هم دا خبره ده.نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل.دا څوداسې څیز دې.چه د آدم عليه السلام په ټولو لونړو باندې دا بیماری راځی.نوحاجیان چه کوم افعال کوی.هغه کوه.خود بیت الله طواف مکوه.ترڅوچه پاکه شوې نه ئې. [٢]

②دویم دلیل دا دې.چه دحائضې دپاره جمات ته داخلیدل منع دی.اوطواف په مسجد حرام کښې کیږی.نوځکه به طواف نه کوی.اووقوف عرفات چونکه په عام میدان کښې وی.نود ښځې دپاره په دې مقام کښې وقوف څه قباحت نه لری.دغه شان چه د حج کوم نورافعال دی.دهغې او د حیض په مینځ کښې څه منافات نشته.نوحائضه به هغه ټول افعال کوی.

---

[١] **مذهب الشافعي رحمه الله:**- اوداامام شافعی رحمه الله په نیزدا احرام دعمرې دپاره معتبر کیږی دحج دپاره نه،

[٢] من حديث عائشة رضي الله عنها أخرجه البخاري في الحيض باب ١ ومسلم في الحج رقم ١١٩ والنسائي في الطهارة باب ١٧٨ وابن ماجه في الطهارة باب ١٢١ والدارمي في الوضوء باب ١٠٧ وأحمد في المسند (٦/٦٥)۔

وإذاحاضت بعد الوقوف بعرفة اوكه حيض ورته راغلوپه عرفات د وقوف نه پس نو، وبعد طواف الزيارة اوپس د طواف زيارت نه انصرفت من مكة ولا شيء عليها لترك طواف الصدر واپس دې شي دمكې نه او هيڅ نشته په دې باندې دطواف صدر(په پريخودو)

تشريح> حكمة الغسل عند الإحرام> كه څوك اعتراض اوكړي.چه حائضې ته غسل څه فائده نه وركوي.نوبيا دې ته دغسل حكم ولې كولې شي.نوددې جواب دا دې.چه د احرام په وخت كښې غسل د احرام يا دمانځه دپاره نه وي.بلكه د نظافت حاصلولو دپاره وي.اويقيني خبره ده.چه په دې غسل سره نظافت حاصليږي.

حكم اتيان الحيض بعد الوقوف وطواف الزيارة> اوكه يوه ښځه د وقوف عرفات او طواف زيارت نه پس حائضه شي.نودا دې د مكې نه روانه شي.اود طواف صدر په پريخودو په دې باندې څه واجب نه دې.
دليله> ځكه چه رسول الله ﷺ ښځو ته د طواف صدر پريخودو اجازت وركړې وو.[1]

د جناياتو بيان

## بَابُ الْجِنَايَاتِ

دا باب د جناياتو په بيان كښې دې.

تشريح> الربط بما قبله> د محرمينو د احرام اوقسمونو نه چه فارغ شو.نوددې نه پس د هغه عوارضو ذكر كوي.كوم چه احرام ته پيښيږي.جنايات جمع د جنايت ده.اوجنايت هغه فعل ته وائي.كوم چه شرعاً حرام وي.

د محرم دپاره د خوشبو د لګولو جنايت

إذا تطيب المحرم فعليه الكفارة كله چه خوشبو اولګوله محرم نوپه ده كفاره ده. فإن طيب عضوا كاملا فما زاد فعليه دم اوس كه خوشبو ئې اولګوله په پوره اندام يادې نه زياته نوپه ده دم دې

حل اللغة >① تطيب، تطيبا: خوشبو لګول

تشريح> حرمة إستعمال الطيب للمحرم> صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي.چه محرم په خپل بدن باندې هر قسم خوشبو اولګوله.نوپه ده باندې كفاره واجب شوه.لكه بنفشه، چامبيل، ريحان ګلاب اونور عطرونه

دليله> دليل دا دې.چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي.(الحاج الشعث التفل) يعني حاجي به بېرسرې اوخيرن وي.اوخوشبو لګول دا صفت لرې كوي.نوځكه خوشبوئي لګول جرم دې.نوكه په پوره اندام يا د دې نه په زيات باندې ئې خوشبوئي اولګوله.نوپه ده باندې دم واجب شو.د پوره اندام مثال لكه سر،پنډۍ،پټون اوددې پشان نور اندامونه.اوكه د پوره اندام نه كمې حصې پورې ئې خوشبوئي اولګوله.نوصدقه پرې واجب ده.دليل دا دې.چه جرم مكمل كيږي په پوره فائده اخستلو.اوپوره فائده اخستل حاصليږي په پوره اندام سره.نوځكه كامله سزا يعني دم به په پوره اندام خوشبو كولو باندې وي.

[1] ) من حديث ابن عباس رضي الله عنه أخرجه البخاري في الحج باب ١٤٤ ومسلم في الحج رقم ٣٨٠)

## د اندام نه په کمه حصه خوشبو لګول

وَإِنْ طَيَّبَ أَقَلَّ مِنْ عُضْوٍ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ اوکه خوشبو ئې اولګوله د اندام نه لږه نوېه ده صدقه ده.دجرم دکموالی د وجې.

**حل اللغة** ﴿ ① **اقل:** کم ② **جناية:** جرم، ګناه ③ **يجب، وجب، وجب وجوبًا(ض):** واجب کيدل ④ **ربع:** څلورمه حصه ⑤ **تذكر، ذكر ذكرًا (ن):** ذکر کول ]

**تشريح** ﴿ **حكم تطيب الأقل من عضو** ﴾ ① مسئله دا ده.که د يواندام په کمه حصه ئې خوشبوئی اولګوله.نوېه ده باندې صدقه واجب ده.

**دليله** ﴿ ځکه چه دده جرم کم دې

**مذهب محمد** ﴿ امام محمد رحمه الله فرمائی.چه دم به په اندازه د جرم وی.()مثلاً که په نيم اندام ئې خوشبوئی لګولې وی.نونيم دم به واجب وی.اوکه په دريمه حصه ئې خوشبوئی لګولې وی.نودريمه حصه دم به واجب وی.على هذا القياس،امام محمد رحمه الله جزء په کل باندې قياس کړې دې.يعنی چه په پوره اندام کښې پوره دم واجب دې.نود په يوجزء کښې به د هغې په اندازه دم واجب وی.

## پوره ورځ د ګنډلې جامې اچول اودسرپټول اود پوره ورځ نه د کم حکم

وَإِنْ لَبِسَ ثَوْبًا مَخِيطًا أَوْغَطَّى رَأْسَهُ يَوْمًا كَامِلًا فَعَلَيْهِ دَمٌ، که واچې غوستلې ګنډلې شوې جامې يا ئې پټ کړو سر خپل يوه ورځ پوره نوېده دم دې وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ ( )اوکه د دې نه کم وی نوېده صدقه واجب ده.

**حل اللغة** ﴿ ① **لبس، لبسًا (س):** اغوستل

**تشريح** ﴿ **حكم لبس الثوب المخيط** ﴾ صورت د مسئلې دا دې.که محرم يوه ورځ يا يوه شپه ګنډلې جامې واغوستلې.يا ئې سر پټ اوساتلو.نو په ده باندې دم واجب دې.اوکه ديوې ورځې يا د يوې شپې نه کم ئې دا اوساتلې نه صدقه واجب ده.( [3] )

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه په جامو اچولو کښې راحت حاصلول مقصود وی.يعنی د ګرمۍ اويخنۍ نه ځان ساتل،ځکه اغوستل هم ددې دپاره وی.دالله تعالى ارشاد دې. ﴿سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ﴾ اودا معنی اوږده ده.نودا معنی کامله هم کيدې شی.اوقاصره هم،اوپه کامل اوقاصر کښې حد فاصل ضروری دې.چه جزاء هم د هغې مطابق مقرر کړې شی.نوحد فاصل يوه ورځ پوره يا يوه شپه پوره مقرر کړې شوه.يعنی

---

[1]) القول الراجح قال المفتى غلام قادر مدظله العالى والصحيح ان يوفق ويقال إن كان الطيب قليلاً فالعبرة للعضو لا للطيب حتى لو طيب به عضوي كاملاً يكون كثيرا يلزم دم وفيما دونه صدقة وإن كان الطيب كثيرا فالعبرة للطيبْ لا للعضو حتى لو طيب به رب عضو يلزمه دم كذا يفهم من عبارات فتح القدير(٢٤٣٩) وردالمحتار(٢١٨\٢) والبحرالرائق (٣\٣) نقلاً عن القول الراجح (٢١٨\١)-

[2]) القول الراجح هو هذا قول الجمهور كذا في الدري لمختار(٢٢٠\٢) والهندية (٢٤٢\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٠\١)۔

[3]) **مذهب الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه څنګه ګنډلې شوې جامې واغوندی.نودم پرې واجب شو.(د وخت مقدار په کښې نشته)

یوه پوره ورځ اغوستل کامل جرم دی.نوددې په وجه به جزاء هم کامله وی.چه وجوب د دم دې.اود یو ورځ نه کم جرم قاصر دې.نوددې په ارتکاب به صدقه واجبيږی.

**مذهب ابي يوسف** ﴿ ① اوداامام ابویوسف رحمه الله نه روایت نقل دې.چه د ورځي یا د شپې اکثره حصه ګنډلې شوې جامې واغوندی.یا سرپټ کړی.نوپه ده باندې دم واجب دې.دامام ابوحنیفه رحمه الله اول قول هم دا وو.بیا نې ددې نه رجوع اوکړله.

**دليله** ﴿ اوامام ابویوسف رحمه الله چونکه اکثرد کل قائم مقام ګرځوی.نود هغوی په نیزکه په اکثره حصه د ورځي یا د شپې کښې نې ګنډلې جامې واچولې.یا نې سرپټ کړلو.نودم جزاء کامل یعنی دم به واجب وی.

## دڅلورمې حصې سریا ږیرې کټ کول اوددې نه کم

| وَإِنْ حَلَقَ رُبُعَ رَأْسِهِ فَصَاعِدًا فَعَلَيْهِ دَمٌ، که وې خرئيلو څلورمه حصه سر خپل یا زیات،نو پده دم دې. وَإِنْ حلق أَقَلَّ مِنَ الرُّبُعِ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ اوکه د څلورمې حصې نه کم وو. نوپده صدقه واجب ده. |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①**حلق، حلقًا(ض)**: خرول

**تشريح**﴿ مسئله دا ده.که محرم څلورمه حصه د سر یا د ږیرې یا ددې نه زیاته اوخرایله.نوپه ده باندې دم واجب دې.اوکه ددې نه کمه وی.نوصدقه پرې واجب ده.( ')

**دليله** ﴿ دلیل دا دې.چه د څلورمې حصې سرخریل هم پوره انتفاع ده.ځکه چه د بعضې خلقو دا عادت دې.د ترکیانوعادت دا دې.چه صرف د مینځ نه حلق کوی.اود بعضې علویانو صرف د تندې ویخته خریل دی.بهرحال کله چه د څلورمې حصې سرپه حلق سره انتفاع کامله ده.نوپه دې مقدار باندې حلق به هم د کامل جنایت موجب وی.اودڅلورمې حصې نه په کم مقدار کښې چونکه جنایت ناقص دې.اود جنایت کامله په صورت کښې دم واجبيږی.اودجنایت قاصره په صورت کښې صدقه واجبيږی.

**الجواب سوال التقديري**﴿ په خلاف دهغه صورت کښې که د یواندام څلورمې حصې باندې خوشبونی اولګوی.نودم نه واجبيږی.ځکه چه دخوشبولګولو په حق کښې به د کامل اندام حکم هغه وی.کوم چه په حلق کښې د څلورمې حصې وی.دغه شان د څه ږیرې خریل د عراقیانواو عربانو عادت پاتې شوې دې.

## د حجامت د ځائې د ویښتو حلق

| وَإِنْ حَلَقَ مَوْضِعَ الْمَحَاجِمِ من الرقبة فَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اوکه وې خرئیل ځائې دحجامت د څټ نه نوپه ده دم دې. دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد |
|---|

**حل اللغة** ﴿①**محاجم**: دښکر لګول ځائ

**تشريح**﴿ مسئله که محرم د حجامت د ځائې حلق اوکړلو. نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزپه ده باندې دم واجبيږی.

**دليله**﴿ دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه د ښکرلګولو د ځائې خریل مقصود دې.ځکه چه بغیرد حلق نه ښکر لګول ممکن نه دی.اود مقصود وسیله هم مقصود وی.نود ښکرلګولو وسیله ویخته خریل هم مقصود شو.اوچونکه دا ځائې د ښکرلګولو په حق کښې کامل اندام دې.نوځکه د کامل اندام نه د

( ' **مذهب مالكي**:- دامام مالك رحمه الله په نیزد وجوب دم دپاره د پوره سریا پوره ږیرې حلق ضروری دې.
**مذهب الشافعي**:- دامام شافعی رحمه الله په نیز د درې ویختو په حلق سره هم دم واجبيږی

خيرې لرې كول موجود يږي.اود كامل اندام نه په حالت د احرام كښې خيرې لرې كول موجب د دم دي نويه دې صورت كښې به هم دم واجبيږي.

| وَقَالَ ابويوسف ومحمد صَدَقَةٌ()او صاحبين ﷮ وائي چه صدقه ده |
|---|

**مذهب الصاحبين**﴾ اود صاحبينو ﷮ په نيزيږې صدقه واجبيږي.

**دليلهما**﴾دصاحبينو ﷮ دليل دا دې.چه ښكرلګولو د خائې حلق صرف د ښكر لګولو د وجې كيږي. او ښكر لګول د ممنوعات احرام څنې نه دي.نوكوم څيز چه د ښكرلګولو ذريعه وه.هغه به هم د ممنوعات احرام څنې نه وي .ددې دليل نه ثابته شوه.چه د ښكرلګولود خائې په حلق په محرم باندې څه نه واجبيږي.البته دومره ده چه د دې خائې نه د ويختو په لرې كولو سره خيرې لرې كيږي.اوپوره خيرنتوب نه موجود يږي.نودا ناقص جرم شو.اود ناقص جرم په صورت كښې صدقه واجبيږي.نوځكه به په دې صورت كښې هم صدقه واجب شي.

## د پښولاسونو نوكونه كټ كول

| وَإِنْ قَصَّ أَظَافِيرَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ فَعَلَيْهِ دَمٌ كه محرم دخپلو دواړو لاسونواوپښنو نوكونه پريكړل.نودم د دې پرې دې. |
|---|

**حل اللغة** ﴾①**اظافير: ظفرجمع**: نوكونه

**تشريح**﴾ **وجوب الدم باخذ الأظافير كلها**﴾محرم كه دخپل پښولاسونوټول نوكونه كټ كړي.نويه ده باندې دم لازم شو.

**دليله**﴾دم پرې ځكه لازميږي.چه په حالت داحرام كښې د نوكونوكټ كول د احرام دممنوعاتو څنې دي. اود احرام د ممنوعاتو څنې ځكه دي.چه په دې سره يوخو خيرې لرې كيږي.اوبله دا چه كوم څيز په بدن كښې پيدا كيږي.هغه څيز ختمولې شي.نوچه ده دا دواړو كارونه اوكړل.نوكامله فائده ئې واخستله.اود احرام په حالت كښې كامله نفع اخستل موجب د دم وي.نوځكه په دې صورت كښې دم واجبيږي.

## د يوپښې اويولاس نوكونه كټ كول

| وَإِنْ قَصَّ يَدًا أَوْرِجْلًا فَعَلَيْهِ دَمٌ)اوكه پريكړل ئې ديولاس يا يوې پښې نوكونه نويده دم دې |
|---|

**حل اللغة** ﴾①**اقامة**: قائم كول، قائمقام جوړول ]

**تشريح**﴾ **وجوب الدم بتقليم ظفراليد أوالرجل**﴾كه محرم د يولاس يا د يوې پښې د پنځو ګوتو نوكونه كټ كړل. نوهم به دم واجب وي.

**دليله**﴾ ځكه چه د يولاس يا يوې پښې نوكونه د ټولو نوكونو څلورمه حصه ده.اود وجوب دم په حق كښې څلورمه حصه د كل قائم مقام وي.لكه د څلورمې سر مسح د ټول سر مسحې برابر دې.

## دپنځو نوكونو نه د كم كټ كولوحكم

| وَإِنْ قَصَّ أَقَلَّ مِنْ خَمْسَةِ أَظَافِيرَ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ)اوكه دپنځونونه كم ئې پريكړل نوكونه،نو پده صدقه ده. |
|---|

---

[1] القول الراجح هو هذا قول الصاحبين ﷮ كذا في ردالمحتار(۲\۲۲۱) والبحر(۳\۱٤) والفقه الإسلامي ؛(۳\۲۵۸) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۲۲)-

**حل اللغة** > ① **ظفر جمع اظافیر**: نوکونه ②**قلم**: تراشل ]

**تشریح**> **وجوب الصدقة باقل من خمسة اظفار**> ① مسئله دا ده.که محرم د پنخونوکونو نه کم نوکونه کټ کړل.نوپه دې صورت کښې په ده باندې صدقه واجبیږی.یعنې د هرنوك په بدله کښې دې یوه صدقه اوکړی.

**دلیله**>اوکوم حکم چه په کتاب کښې ذکر دې.ددې دلیل دا دې.چه لکه څنګه دیو لاس یا د یوې پښې پنځه نوکونه د ټولو نوکونو قائم مقام دې.نواوس د یو لاس یا یوې پښې په نوکونو کښې اکثر د کل قائم مقام نشی ګرځیدې.ځکه چه داسې کولو سره به یوه نه ختمیدونکې سلسله شروع شی.ځکه که داسې اوشی.نوبیا به مونږ وایو.چه په دوو نوکونو کښې هم دم واجب دې.ځکه چه دا دریو اکثردې.اوپه یونیم کښې هم دم واجب دې.ځکه چه دا د دوو اکثر دې.اوپه یوم نوك کښې هم دم واجب دې.ځکه چه دا د یونیم اکثر دې.اوپه یوکم یوکښې هم دم واجب دې.ځکه چه دا د نیم اکثر دې.اوپه نیم کښې دم واجب دې.ځکه چه دا د پو اکثر دې.اودغه شان به یوه نه ختمیدونکې سلسله شروع شی.کوم چه ناممکنه ده.ددې وجې مونږ د یولاس یا د یوې پښې نوکونه د ټولونوکونوقائم مقام اوګرځول.اوپه دې مو دم واجب کړلو.اوددې نه مو داسې اونکړل.

**مذهب زفر** رحمه الله> امام زفر رحمه الله فرمائی.چه که درې نوکونه کټ کړی.نودم پرې واجب دې.اودامام ابوحنیفه رحمه الله اولنی قول هم دا وو.

**دلیله** > ځکه چه په پنځو ګوتوکښې درې اکثردی.اواکثرقائم مقام د کل وی.نوهرکله چه د یو لاس یا یوې پښې په نوکونو کټ کولوسره دم واجبیږی.نود دریو په کټ کولو به هم واجبیږی.

**د دواړو لاسونو یا پښو په نوکونوکښې د پنځونه د کمو کټ کول**

| وَإِنْ قَصَّ أَقَلَّ مِنْ خَمْسَةِ أَظَافِيرَ مُتَفَرِّقَةٍ مِنْ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ که ئې پریکړل پنځه نوکونه متفرق د دواړو لاسونه اود دواړو پښو نه فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ) رَحِمَهُمَا اللَّهُ تَعَالَى ([1] نوپه ده صدقه ده.دشیخینو په نزد. |
|---|

**حل اللغة** >①**قص، قصًا(ن)**: پریکول ②**متفرقة**: جدا، ځان له

**تشریح**> **حکم تقلیم الخمس متفرقة**> ①مسئله دا ده.که محرم د یولاس اویوې پښې نه جدا جدا پنځه نوکونه کټ کړل.(مثلاً دوه ئې د یو لاس اودرې د بلې پښې کټ کړل) نوپه دې صورت کښې د شیخینو رحمهما الله په نیزپه ده باندې صدقه واجب ده.یعنې د هرنوك په بدله کښې به یوه صدقه ورکړی.

**دلیله**> دشیخینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه دم واجبیږی په هغه صورت کښې چه زینت اوراحت حاصل شی.اوچه د مختلفو ځایونونوکونه کټ کړی.نوپه دې کښې تکلیف اوعیب دې.نوچونکه په دې صورت کښې زینت او راحت حاصل نشو.نوجنایت کامل نشو.اوچه جنایت کامل نه وی.نوصدقه واجب وی.نودلته هم صدقه واجبیږی.

| وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ دَمٌ اوامام محمد رحمه الله فرمائی چه دم دې |
|---|

**تشریح**> اوامام محمد رحمه الله فرمائی.چه په ده باندې دم واجب شو.

---

[1] القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا في البحرالرائق (۳\۲۱) والتاترخانية (۲\۵۰۳) والهندية (۱\۲۴۴) والخانية (۱\۲۳۷) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۲۴)-

**دليله** > دامام محمد رحمه الله دليل قياس دې.يعنې لکه څنګه چه د يولاس يا ديوې پښې د پنځو نوکونو په کټ کولو باندې دم واجبيږي.دغه شان که متفرق طور دا پنځو نوکونه کټ کړي.نوبه دې کښې به هم دم واجبيږي.بل که د سرد څلورمې حصې حلق د مختلفو ځايونو نه اوکړي.نوبه دې صورت کښې هم دم واجبيږي.نودغه شان دلته د نوکونو په صورت کښې به هم دم واجبيږي.

**الجواب منه** > پاتې شود سر د مختلفو ځايونو نه ويخته خريل.نودا د خلقو عادت دې.اوچه دخلقو عادت دې.نوبه دې کښې زينت حاصل شو.اوچه زينت اوراحت حاصل شو.نوجنايت کامل شو.اوچه جنايت کامل شو.نودم واجب وي.نوځکه د سر د مختلفوځايونونه ويخته خريل سبب د وجوب دم دې.

## د عذرپه وجه خوشبولګول جامې اغوستل اوحلق کول

| وَإِنْ تَطَيَّبَ اَوْحَلَقَ اَوْلَبِسَ مُخِيْطًا مِنْ عُذْرٍ فَهُوَ مُخَيَّرٌ اوکه خوشبو ئې اولګوله يا يې اوخرئيل (سر) يا ئې ګنډلې جامې ئې واغوستلې په څه عذر سره نودده اختياردې إِنْ شَاءَ ذَبَحَ وَإِنْ شَاءَ تَصَدَّقَ عَلٰى سِتَّةِ مَسَاكِيْنَ بِثَلَاثَةِ اَصْوُعٍ مِنَ الطَّعَامِ غواړي چيلۍ دې ذبح کړي اوکه غواړي صدقه دې ورکړي شپږو مسکينانوته درې صاع د طعام نه وَإِنْ شَاءَ صَامَ ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ که اوکه غواړي روژې دې اونيسي درې ورځې |
|---|

**حل اللغة** > ① لبس، لبسًا(س): اغوستل

**تشريح** > **وجوب ثلاثة أشياء بالتطييب واللبس والحلق من عذر** > که محرم د عذر د وجې خوشبو اولګوله .يا ئې ګنډلې جامې واغوستلې يا ئې سراوخرائيل.نوبه دې صورتونوکښې ده ته د دريو خبرو اختيار دې.يا دې يوه چيلۍ ذبح کړي.يا دې په شپږو مسکينانو درې صاع غنم صدقه کړي.اويا دې درې روژې اونيسي.

**دلائله** > ① دليل د الله تعالى ارشاد دې.﴿ وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ ۚ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْ بِهٖٓ اَذًى مِّنْ رَّاْسِهٖ فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ اَوْ صَدَقَةٍ اَوْ نُسُكٍ ۚ ﴾ په آيت کښې کلمه د (أو) په درې څيزونو کښې اختيار ورکوي.دا آيت ديومعذور په حق کښې نازل شوې وو.

② اونبي ﷺ ددې آيت تفصيل د ذکرشوي تفصيل مطابق بيان کړې وو.په حديث کښې دي.چه حضرت کعب بن عجره رضي الله عنه فرمائي.نبي ﷺ په ما باندې تيرشو.او سپګې زما په مخ باندې روانې وې.اوما خپلې کټوئ ته اور تازه کولو.نو نبي ﷺ راته اوفرمائيل .(أيؤذيك هوام رأسك) آيا تاته د خپل سر سپګي تکليف درکوي. نو ماورته عرض اوکړلو.چه آو ،نودا آيت نازل شو. ﴿ فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ اَوْ صَدَقَةٍ اَوْ نُسُكٍ ۚ ﴾ ما عرض اوکړلو.چه روژې څومره نو نبي ﷺ اوفرمائيل.درې ورځې.حضرت کعب بن عجره فرمائي.که نبي ﷺ تفصيل نه وو کړې.نومونږ خلقو به د شپږو مسکينانو په طعام باندې قياس کولو .اوشپږ روژې به مو نيولې. [1] نومعلومه شوه.چه ددې آيت تفسير رسول الله ﷺ په خپله کړې دې.

[1] من حديث كعب بن عجرة رضي الله عنه أخرجه البخاري في المحصر باب ٥ ومسلم في الحج رقم ٨٠ والترمذي في الحج باب ١٠٥ ومالك في ا لحج رقم ٢٣٨ وأحمد في المسند (٢٤١/٤)_

**جواز الصوم في اي موضع** ﴿ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي دي .د څلورو امامانو په دې باندې اتفاق دې.چه دا درې روژې په هرځائې کښې نيوې شي.حرم سره ددې څه تخصيص نشته.ځکه چه دا عبادت دې. او د عبادت دپاره د مکان تخصيص نشته.

| وَإِنْ قَبَّلَ أَوْلَمَسَ بِشَهْوَةٍ فَعَلَيْهِ دَمٌ)اوکه ښکل ئې کړه يا ئې مسه کړه په شهوت سره نوپه ده دم واجب دې. أَنْزَلَ أَوْلَمْ يُنْزِلْ که انزال ئې اوشي اوکه نه. |
|---|

**تشريح** ﴿ **الروايتان في وجوب الدم بالقبلة** ﴿ ①اوکه محرم د ښځه ښکل کړله.نوپه ده باندې دم واجب دې.که انزال شوې وی اوکه نه وی.دا په مبسوط کښې ذکر دی.②اود جامع صغير په عبارت کښې د انزال شرط لګولې شوې دې.فرمائی.که محرم په شهوت سره ښځه مسه کړه.اوانزال ئې اوشو.نوپه ده باندې دم واجب دې.دجامع صغيرد عبارت نه دا معلوميږي. که انزال نه وی شوې نو په محرم باندې دم نه واجبيږي.

## د وقوف عرفات نه وړاندې په احدالسبيلين کښې جماع کول

| وَمَنْ جَامَعَ فِي أَحَدِ السَّبِيلَيْنِ قَبْلَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ فَسَدَ حَجُّهُ،او که چا جماع اوکړه په يو د دوو لاروکښې د وقوف عرفې نه مخکښې نودده حج فاسد شو. وَعَلَيْهِ شَاةٌ،وَيَمْضِي فِي الْحَجِّ كَمَا يَمْضِي مَنْ لَمْ يُفْسِدْ حجه اوپه ده چيلۍ لازم ده.اودحج افعال دې کوی لکه چه هغه څوک ئې کوی د چا حج چې نه وی فاسد شوې وَعَلَيْهِ الْقَضَاءُ اوپه ده باندې قضا ده |
|---|

**حل اللغة** ﴿①**جامع، مجامعة**: جماع کول ②**فسد، فسادًا (ن)**: فاسدکيدل\

**تشريح** ﴿ **فسادالحج بالجماع قبل الوقوف بعرفة** ﴿مسئله دا ده.که محرم د وقوف عرفات نه وړاندې ښځې سره په قبل يا دبر کښې جماع اوکړه. نودده اود ښځې دواړو حج فاسد شو.اوپه دوی باندې د يوې چيلۍ (ياګډ) قرباني واجب ده.يا په اوښ يا غوې کښې اوومه حصه ،اودې به دحج افعال دهغه چا پشان پوره کوی.دچا حج نه وی فاسد شوې.البته په راروان کال کښې به ددې حج قضا راوړی.

**دليله** ﴿ددې مسئلې اصل هغه حديث دې.چه يوسړې د وقوف عرفات نه پس دخپلې بی بی سره جماع اوکړه.اوبيا نبی ﷺ ته ددې بيان اوکړلو.نونبی ﷺ ورته حکم اوکړلو.چه ستاسوحج فاسد شو.اوچيلۍ قرباني کړه.اوپه راروان کال کښې ددې حج قضا راوړی. [1] د صحابو د يوجماعت نه هم داسې نقل دی.

② دويم دليل دا دې.چه دحج د فساد د وجې چه قضا واجب شوه.نوجرم وړکوټې شو.اوپه وړکوټې جرم کښې چيلۍ هم کافی کيږي.اودحج قضا ځکه واجب کړې وه.چه کوم حج چه فاسد شوې دې.هغه صحيح شی.اود وقوف عرفه نه پس د جماع په صورت کښې چونکه قضا واجب نه ده.نوهغه جرم وړوکې نشو.بلکه لوئې جرم شو.اوپه لوئې جرم کښې بدنه واجب وی.نوځکه په هغه صورت کښې چه د وقوف عرفات نه پس جماع اوکړی.بدنه واجب ده.چيلۍ په کښې نه کافی کيږي.

**ملهب الشافعي رحمه الله** ﴿امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په دې صورت کښې په ده باندې بدنه واجب ده.ځکه چه ده يولوئې جرم اوکړلو .هغوی په هغه کس باندې قياس کوی.څوک چه هغه د وقوف عرفات

[1] ) من الريزيدبن نعيم اوزيد بن نعيم رحمه الله اخرجه ابوداود في مراسيله والبيهقي في السنن الكبرى (٥/٢٧٢) رقم ٩٧٧٨)

نه پس جماع اوکړی.نوهلته په هغه باندې دم واجبیږی.(حالانکه دهغه جرم دده د جرم نه کم دې.اودهغه حج هم نه دی فاسد شوی)نوپه دې صورت کښې به هم دم واجب وی.(بلکه په درجه اولی سره به دم واجب وی خکه چه دده جرم داولنی د جرم نه لوئې دې)

**الروایتان في فسادالحج بالجماع في الدبر** > صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی.امام قدوری د وقوف عرفات نه وړاندې په قبل یا دبرکښې دجماع حکم یوشان ذکر کړې دې.دا د صاحبینو رحمهما الله مذهب دې.اودامام ابوحنیفه رحمه الله نه دا یو روایت دې.② اودامام ابوحنیفه رحمه الله نه دویم روایت دا دې.که چه په قبل کښې په جماع کولو سره حج فاسدیږی.خوپه دبر کښې جماع کولو سره نه فاسدیږی.خکه چه کامله وطی په قبل کښې کیږی په دبر کښې نه ،په دبرکښې وطی ناقصه وی.نوخکه په دبرکښې په وطی کولوسره حج نه فاسدیږی.نودحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه په دبر کښې جماع کولو سره دوه روایتونه منقول دی.یود فساد حج اوبل دعدم فساد ،

### دجماع په وجه دفاسد شوی حج په قضا کښې د ښځې د جداوالی حکم

| وَلَيْسَ عَلَيْهِ أَنْ يُفَارِقَ امْرَأَتَهُ اذاحج بهافِي قَضَاءٍ عِنْدَنَا اولازم نه دی په ده جداکیدل دخپلې ښځې نه.کله چې حج کوی په هغې په قضا کښې |
|---|

**حل اللغة** > ① ان یفارق، فارق مفارقة: جدا کیدل

**عدم تفریق الزوجة في القضاء** > مسئله دا ده.چه کوم حج یا عمره د جماع په وجه فاسد شی.نو دهغې په قضا راوړلو کښې د ښځې نه جدا والې ضروری نه دې.چه قضا دې جدا جدا راوړی.([1])

**دلیله** > دلیل دا دې.چه ددې دواړو ښخه خاوند په مینځ کښې یوځائې کونکې څیزیعنی نکاح قائم ده.نونه د احرام نه وړاندې جدا کیدل څه معنی لری.خکه چه د احرام نه وړاندې خو جماع جائزده.اونه د احرام نه پس،خکه چه دوی ته به هروخت دا خبره یادیږی.چه دا دوباره حج چه مونږ ددې مشقت اوتکلیف برداشت کوو.نوپه سابقه حج کښې د کوتاهئ د وجې،نودا خل به ډیر زیات احتیاط کوی.چه هسې بیا رانه حج فاسد شی.اوبیا دا مشقت برداشت کول راپه غاړه شی.

### دوقوف عرفات نه پس په جماع کولو د حج عدم فساد

| وَمَنْ جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ لَمْ يَفْسُدْ حَجُّهُ وَعَلَيْهِ بَدَنَةٌ چا چه جماع اوکړه دوقوف عرفې نه پس نوفاسد به نه وی دده حج اوپه ده بدنه واجب ده. |
|---|

**حل اللغة** > ① وقف، وقوفا (ض): اودریدل، حصاریدل ② انواع: قسمونه ③ ارتفاق: نفع اوچتول ]

**تشریح** > **عدم فساد الحج بالجماع بعد الوقوف** > که محرم د وقوف عرفات نه پس جماع اوکړه.نودده حج فاسد نشو.اوپه ده باندې بدنه یعنی د اوښ یا غوې قربانی واجب ده. ([2])

---

([1]) **مذاهب العلماء**:- ① امام مالك رحمه الله فرمائی چه څنګه د کور نه راووځی نوجدا به شی.② امام زفر رحمه الله فرمائی. چه کله احرام اوتړی.نوجدا به شی.③ امام شافعی رحمه الله فرمائی چه کله هغه ځائې ته نزدې شی.په کوم کښې چه ئې تیرکال جماع کړې وه.نوجدا به شی.دا د امام احمد رحمه الله قول هم دې.

([2]) **مذهب الشافعی** رحمه الله > امام شافعی رحمه الله فرمائی که د جمره عقبه د رمی نه وړاندې ئې جماع اوکړه نو دده حج به فاسد شی.

**دلائله** ﴿١﴾ دليل دا دي چه نبي ﷺ فرمائيلي دي چاچه وقوف عرفات اوکړلو .نو دده حج پوره شو.
([1]) حديث مطلب دا نه دي چه د حج افعال پوره شو.ځکه چه دددي نه پورکن طواف زيارت اودغه شان نورافعال لاپاتې دي.بلکه مقصد دا دي چه د وقوف عرفات نه پس دده حج د فساد نه محفوظ شو.
﴿٢﴾ دويم دليل دا دي چه جماع د لذت حاصلولود ټولو نه اوچت څيز دي.نوچه کوم څيز په دې جنايت باندې واجبيږي.هغه به هم لوئې وي.اوهغه بدنه ده.نوځکه بدنه واجب ده.

## دحلق نه پس جماع کول

| وَمَنْ جَامَعَ بَعْدَ الْحَلْقِ فَعَلَيْهِ شَاةٌ اوچا چې دحلق نه پس ئې جماع اوکړه نوپده باندې چيلۍ ده. |
|---|

**تشريح** ﴿ **حكم الجماع بعد الحلق** ﴾ تشريح ښکاره ده.

## دعمرې د څلوروچکرونو نه وړاندې جماع کول

| وَمَنْ جَامَعَ فِي الْعُمْرَةِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ افسدها اوچا چه جماع اوکړه په عمره کښې مخکښې د څلوروچکرو دطواف نه نوده عمره فاسده کړه. وَمَضَى فِيهَا وَقَضَاهَا وَعَلَيْهِ شَاةٌ نو ددې افعال دې اوکړي او ددې قضا دې اوکړي اوپه ده باندې چيلۍ واجب ده |
|---|

**حل اللغة** ﴿١﴾ **يقضيها، قضى يقضي قضاءً (ض)**: پوره کول، اداکول ﴿٢﴾ **اشواط**: چکرې

**تشريح** ﴿ **فساد العمرة ووجوب الشاة بالجماع قبل أكثر الأشواط** ﴾ که يوکس د عمرې دڅلورو چکرونونه وړاندې جماع اوکړه.نو دده عمره فاسده شوه.خودې به د عمرې افعال پوره کوي.اوپه ده باندې ددې قضا ده.اودجماع د وجې به چيلۍ قرباني کوي.

| وَإِن وطئ بَعْدَ مَا طَافَ أَرْبَعَةَ أَشْوَاطٍ اوکه جماع ئې اوکړه پس دڅلورو چکرو دطواف کولونه فَعَلَيْهِ شَاةٌ وَلَا تَفْسُدُ عُمْرَتُهُ نوپده چيلۍ ده او عمره نه فاسديږي. ولايلزمه قضاؤها اونه لازميږي په ده باندې قضا د دې |
|---|

**تشريح** ﴿ **الجماع بعد أكثر الأشواط** ﴾ اوکه د څلورو يا ددې نه د زياتوچکرونو نه پس ئې جماع اوکړه.نوپه ده باندې به د چيلۍ قرباني واجب شي.خوعمره ئې نه فاسديږي. ([2])
**دليله** ﴿ دليل دا دي چه حج فرض دي.اوعمره سنت ده.اود فرضو مرتبه اوچته ده د سنت نه.نوپه دواړو کښې د فرق ښکاره کولو دپاره به د حج په باب کښې بدنه واجب وي.اود عمرې په باب کښې به چيلۍ واجب وي.
**عدم القضاء** ﴿ او د دې عمرې قضاء په ده باندې واجب نه ده ځکه چه عمره فاسده شوې نه ده نو قضاء به پرې څنګه واجبه شي

---

[1]) تقدم تخريجه)_
([2] **مذهب الشافعي** رحمه الله:- امام شافعي رحمه الله فرمائي چه په دواړو صورتونو کښې دده عمره فاسده شوه.اوپه ده باندې د بدنه قرباني واجب ده.

## په هيره جماع کول

| وَمَنْ جَامَعَ نَاسِيًا كَانَ كَمَنْ جَامَعَ عَامِدًا فِي الْحُكْمِ اوچا چه په هيره جماع اوكړه دي داسې دي لکه چه قصداً ئې اوکړي.په حکم کښې |
|---|

**حل اللغة** > ① **ناسيًا:** هيره

**تشريح** > **فساد الحج بالجماع ناسيا** > مسئله دا ده. چه په هيره باندې په جماع کولو سره داسې حج فاسديږي لکه څنګه چه په قصد جماع کولو سره حج فاسديږي.([1])

**دليله** > دليل دا دې.چه په خاص قسم خوند حاصلولوسره حج فاسديږي.يعنې په جماع سره حج فاسديږي.اود هيرې وغيره عوارضو د وجې نه معدوم کيږي.په هيره باندې اوپه زور باندې جماع کولو سره غسل واجبيږي.اوحرمت مصاهرت هم ثابتيږي.نودغه شان حج به هم په دې باندې فاسديږي.

## طواف قدوم په حالت د بې اودسۍ کښې

| وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الْقُدُومِ مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ چا چه طواف اوکړو طواف قدوم بې اودسه.نو پده صدقه واجب ده. |
|---|

**حل اللغة** > ① **محدثًا:** بې اودسه

**تشريح** > **مسئله** > د بې اودسه طواف قدوم زمونږ په نيز معتبر دې.اګرچه په ده باندې صدقه واجب ده ([2])

**دليله** > دليل دالله تعالى دا ارشاد {وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ} دې.په دې کښې د مطلق طواف حکم دې.د طهارت شرط په کښې نشته.نوځکه د کتاب الله نه د طهارت فرضيت نه ثابتيږي. او پاتې شو حديث نو دا خبر واحد دې.اوپه خبرواحد سره په کتاب الله باندې زيادت جائز نه دې. حاصل دا چه د طواف دپاره طهارت فرض نه دې.

**حکم الطهارة** > البته د بعضې عالمانو رحمهم الله په نيز سنت دې.لکه د عبدالله بن شجاع رحمه الله قول دادې او اصح دا ده چه طهارت واجب دې لکه څنګه چه د ابوبکر رازي رحمه الله قول دې.

**دلائل وجوبها** > ①د وجوب دليل دا دې.چه په طواف قدوم کښې د طهارت په پريخودو سره د نقصان پوره کونکې صدقه واجبيږي.اود کوم څيز په پريخودو چه کمې پوره کونکې واجب وي.نوهغه څيز به په خپله هم واجب وي. نوځکه به طهارت واجب وي.②دويم دليل دا دې.چه «الطواف بالبيت صلاة» خبرواحد باندې عمل کوي.نوځکه ددې حديث نه د طهارت وجوب ثابتيږي.

| وَإِنْ كَانَ جُنُبًا فَعَلَيْهِ شَاةٌ اوکه دې جنب وو نو په ده د چيلۍ قربانۍ ده |
|---|

---

[1] **مذهب الشافعي رحمه الله:**- امام شافعی رحمه الله فرمائي.چه په هيره سره په جماع کولو حج نه فاسديږي.دوی په روژه باندې قياس کوي.لکه څنګه چه روژه په هيره جماع کولو سره نه فاسديږي.دغه شان حج هم نه فاسديږي.دا اختلاف په هغه صورت کښې هم دې.چه د اوده محرمې ښځې سره جماع اوکړي.يا ورسره په زور باندې جماع اوکړي.نوزمونږ په نيزددې حج فاسد شو.اوامام شافعی رحمه الله په نيز ئې حج نه فاسديږي.

[2] **مذهب الشافعي رحمه الله:**- اوداامام شافعی رحمه الله په نيز معتبر نه دې.

**تشريح﴾ وجوب الشاة بالطواف جنبا﴿** اوكه طواف قدوم ئې په حالت د جنابت كښې اوكړو نوپه جرمانه كښې به پرې د چيلئ قرباني واجب وي او كه طواف ئې دوباره اوكړو نو جرمانه يعنى دم به ساقط شي

## طواف زيارت په بې اودسئ كښې كول

وَاِنْ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ شَاةٌ) اوكه طواف ئې اوكړو طواف زيارت بې اودسه نوپه ده چيلئ لازم ده.

**تشريح﴾ وجوب الشاة بطواف الزيارة محدثا﴿** كه محرم طواف زيارت د بې اودسئ په حالت كښې اوكړلو.نوپه ده باندې د چيلئ قرباني واجبيږي.

**دليله﴾** ځكه چه ركن يعنى طواف زيارت كښې نقصان پيدا شو.اوپه ركن كښې نقصان پيدا كيدل په واجب كښې د نقصان پيدا كيدو نه لوئې جرم دې.نوهركله چه په ركن كښې نقصان پيدا كول زيات جرم دې.نوددې تلافى چه په كوم څيزكيږي.هغه به هم پكار ده چه لوئې وي.چه چيلئ ده. اوپه واجب يعنى په طواف قدوم كښې نقصان پيدا كيدو پوره والې به په وركوټي څيز يعنى صدقه باندې كيږي.

وَاِنْ كَانَ جُنُبًا فَعَلَيْهِ بَدَنَةٌ اوكه دې جنب وو نو په ده بدنه ده

**تشريح﴾ وجوب البدنة بالطواف جنبا﴿** اوكه طواف زيارت په حالت د جنابت كښې اوكړي.نوپه ده باندې بدنه يعنى اوبښ يا غوې قرباني كول لازميږي.

**دلائله﴾** ① ددې روايت دابن عباس رضي الله عنهما نه شوې دې.② دويم دليل دا دې.چه جنابت په نسبت سره حدث ته زيات غليظ دې.نوپه دې دواړو كښې د فرق ښكاره كولودپاره كه په حالت د جنابت كښې طواف اوكړي.نود پيدا شوى نقصان تلافى به په بدنه سره كيږي.اوكه په بې اودسه سره نو د پيدا شوى نقصان تلافى به په چيلئ سره كولې شي.

**حكم اداء اكثر اشواط طواف الزيارة محدثا او جنبا﴿** دغه شان كه د طواف زيارت زياته حصه ئې په حالت د حدث كښې اوكړله .نو دم به واجب وي.اوكه اكثره حصه ئې په حالت د جنابت كښې اوكړله.نوبدنه به واجب وي.

**دليله﴾** ځكه چه د يوڅيزداكثر هغه حكم وي.كوم چه د هغې د كل وي. اومشهوره قاعده ده.چه ﴿للاكثر حكم الكل﴾

## په حالت د حدث يا جنابت كښې د شوې طواف اعاده كول

وَالْاَفْضَلُ اَنْ يُعِيدَ الطَّوَافَ مَادَامَ بِمَكَّةَ وَلَاذَبْحَ عَلَيْهِ او غوره داده چه طواف واپس كړى ترڅو چه په مكه معظمه كښې پاتې وي او حلاله به پرې پاتې نشي

**حل اللغة ﴾ ①ان يعيد،اعاد،اعادة:** واپس كول **②حدث:** ناپاكى ]

**تشريح﴾ استحباب إعادة الطواف﴿** صاحب دقدورى رحمه الله فرمائي.كوم طواف چه په حالت د حدث يا د جنابت كښې اوشي.نوپه دواړو صورتونوكښې افضل دا دى.چه ترڅوپه مكه كښې وي.ددې اعاده دې اوكړي. او د دې په اعاده كولو سره د ده نه د چيلئ اود بدنه د قرباني كولو حكم هم ساقطيږي.

**فائدة إختلاف نسخ القدوري رحمه الله ﴾** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلي دي چې د قدورى رحمه الله په بعضې نسخوكښې دا عبارت دې. ﴿وعليه ان يعيد﴾ دا دطواف د دوباره كولو په وجوب باندې دلالت كوي.

**القول الراجح** ﴿ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه زياته صحيح خبره دا ده .كه طواف زيارت ئي په حالت د بې اودسې كښې كړې وي.نواعاده مستحب ده.اوكه په حالت د جنابت كښې ئي كړې وي.نواعاده واجب ده.اود بې اودسې په صورت كښې طواف كول جنايت قاصره دې. نوځكه به اعاده مستحب وي

## طواف صدر په حالت د حدث كښې كول

| وَمَنْ طَافَ طَوَافَ الصَّدْرِ مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ)چا چه طواف صدر بې اودسه اوكړو نوپه ده صدقه ده وان كـان جنبافعليه شاة اوكه جنب وي نو په ده باندې د چيلئ قرباني ده |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①تجب، وجب وجوبًا (ض): واجب كيدل،لازم كيدل ]

**تشريح**﴿ **وجوب الصدقة بطواف الصدرمحدثا**﴿ كه محرم طواف صدر (د واپسئ طواف) په حالت د بې اودسې كښې اوكړلو.نوپه ده باندې صدقه واجب ده.ځكه چه طواف صدر اګرچه واجب دې.خود طواف زيارت نه په كمه درجه كښې دې.

**دليله**﴿ ځكه چه هغه ركن دې.نوددې دواړو په مينځ كښې د فرق ښكاره كولو دپاره ونيلې شوې دي.كه طواف زيارت په حالت د حدث كښې اوكړې.نوچيلئ واجب ده.اوكه طواف صدرپه حالت دحدث كښې اوكړې.نوصدقه واجب ده.

**الرواية الثانية عن ابي حنيفة** رحمه الله ﴿ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه يوروايت دا دې.چه طواف صدر په حالت د حدث كښې هم چيلئ واجبوي.خواولني روايت يعني وجوب د صدقې والا اصح دې.

**وجوب الشاة بالطواف جنبا**﴿ او كه طواف صدر ئې په حالت د جنابت كښې اوكړو نو په ده باندې د چيلئ قرباني واجب ده

**دليله**﴿ چونكه بې اودسى د جنابت نه حدث اصغر دې او د هغې په وجود كښې طواف صدر كولو باندې چيلئ واجبيږي نو چې په حالت د جنابت كښې ئې اوكړې نو جنابت حدث اكبر دې د دې وجې به د دې جزاء هم په حالت د حدث كښې د طواف صدر كولو د جزاء نه زياته وي نو ځكه مونږ په حالت د جنابت كښې په طواف كولو د چيلئ قرباني واجب شوه

## طواف صدر ټول يا اكثر چكرونه پريخودل

| وَاِنْ تَرَكَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ اوكه محرم پريخودل د طواف زيارت ثَلَاثَةَ اَشْوَاطٍ دري چكرونه فَمَادُوْنَهَا يا د دې نه كم فَعَلَيْهِ شَاةٌ نو په ده باندې چيلئ قرباني كول دي |
|---|

**تشريح**﴿ **حكم ترك ثلاثة اشواط اواقل من طواف الزيارة**﴿ كه محرم د طواف زيارت درې يا د درې نه كم چكرونه پريخودل نو په ده باندې دم واجب شوه

**دليله**﴿ ځكه چه د درې چكرونو په پريخودو چې كوم نقصان راغلې دې هغه كم دې نو دا د هغه نقصان سره مشابه شو كوم چې د بې اودسئ په حالت كښې طواف كولو سره راځي او چې څوك بې اودسه طواف اوكړي نو د هغې نقصان تلافى د چيلئ په قربانئ سره كولې شي نو ځكه به دلته هم قرباني لازمه وي

**عدم وجوب الدم اذا اعاد الطواف**﴿ خو دا د قربانئ حكم په هغه وخت كښې دې چې دې طواف زيارت دوباره اونكړي او كه طواف زيارت اوكړي نو په ده باندې څه نه لازميږي اوكه د ايام النحر نه پس ئې طواف

اوکړو نو په ده باندې صدقه پریخودل لازم ده اوکه د مکې نه واپس خپل وطن ته لاړل نو د ده دپاره دا جائز ده چې مکې ته واپس لاړ نشي بلکه هم د خپل وطن نه چیلئ حرم ته اولیږي

وان ترك اوكه پريخودل اربعة اشواط څلور چکرونه بقي محرما ابدا نو دې به همیشه دپاره محرم وی حتى يطوفها تردې چې دغه چکرونه اوکړي

**تشریح** ﴿ **حکم ترک اکثر اشواط طواف الزیارة** ﴾ اوکه محرم د طواف زیارت څلور چکرونه پریخودل نو هغه به ترهغه وخته پورې محرم وی چې ترڅو یې طواف زیارت نه وی کړې

**دلیله** ﴾ ځکه چه ده څلور طوافونه نه دی کړی او څلور طواف اکثر دی او د اکثر دپاره حکم د کل وی نو دا داسې شوه چې ده هډو طواف نه دې کړې اوچې طواف زیارت چا نه وی کړې نو هغه به همیشه دپاره محرم وی یعنی د ښځو په حق کښې به محرم وی چې کله هم صحبت کوی نو په هغه باندې به دم لازمیږی خو چې مجلس متعدد وی اوکه په یو مجلس کښې بار بار صحبت اوکړی نو بیا به پرې صرف یو دم لازمیږی.

ومن ترك ثلاثة اشواط اوچا چې درې چکرونه پريخودل من طواف الصدر د طواف صدر نه فعليه صدقة نو په ده باندې صدقه واجب ده وان ترك طواف الصدر اوكه طواف صدر یې ټول پريخودل اواربعة اشواط منه یا یې د دې څلور چکرونه پريخودل فعليه شاة نو په ده باندې چیلئ واجب ده

**تشریح** ﴾ **حکم ترک ثلاثة اشواط من طواف الصدر** ﴾ که محرم د طواف صدر نه درې طوافه پریخودل نو په ده باندې د هر چکر په بدله کښې یوه صدقه واجب ده

**حکم ترک طواف الصدر** ﴾ اوکه طواف صدر یې ټول پریخودل یا یې د دې څلور طوافه پریخودل تردې چې وطن ته واپس شو نو

**دلیله** ﴾ ځکه چه ده واجب یا په واجب کښې اکثره حصه پریخودله او په ترک د واجب باندې قربانی واجبیږی اوترڅو چې دې په مکه کښې وی نو ده ته به د طواف صدر کولو حکم کولې شی دې دپاره چې طواف په خپل وخت کښې ادا شی (اللباب ۱۸۵/۱)-

### د سعی په پریښودو د دم وجوب

وَمَنْ تَرَكَ السَّعْيَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَعَلَيْهِ شَاةٌ دَمٌ وَحَجُّهُ تَامٌّ اوچا چه دصفا مروه په درمیان کښې سعی پرینښوده نوپه ده چیلئ ده اوحج ئې پوره دې.

**حل اللغة** ﴾ ① **تام**: پوره ② **ترکه، ترک ترکًا (ن)**: پریخودل ]

**تشریح** ﴾ مسئله ښکاره ده.

### دامام نه وړاندې د عرفات نه تلل

وَمَنْ أَفَاضَ مِنْ عَرَفَاتٍ قَبْلَ الْإِمَامِ فَعَلَيْهِ دَمٌ څوك چه دعرفات نه روان شو مخکښې دامام نه، نوپه ده دم دې.

**حل اللغة** ﴾ ① **لاشئ**: هیڅ څیز نه ② **اطالة**: اوږدول ]

**تشریح** ﴾ **وجوب الدم بالذهاب قبل الغروب یوم العرفة** ﴾ ① که یوکس د نمرپریوتو نه مخکښې د امام نه وړاندې د میدان عرفات نه لاړلو.نوپه ده باندې دم واجب دا دې.هم دا دامام مالك اوامام احمد رحمهما الله یو

قول دي.اودامام شافعي رحمه الله هم دا يو قول دي. (١)

**دليله**﴾دليل دا دي.چه نمر پريوتو پورې ايسار يدل واجب دي.دنبي ﷺ ارشاد دي ﴿فادفعوابعدغروب الشمس﴾ يعنې تاسو د عرفات نه د نمر پريوتو نه پس روانيږئ.اوپه يو روايت کښې دی.چه نبی ﷺ په خطبه کښې اوفرمائيل. ﴿ان أهل الجاهلية كانوا يدفعون من هذا الموضع إذا كانت الشمس على رؤس الجبال مثل عمائم الرجال في وجوهها وإنا ندفع بعد أن تغيب﴾ (٢) يعنې مشرکانو به په زمانه دجاهليت کښې ددې (عرفات) نه په داسې وخت کښې تګ کولو.چه نمر به د غرونو په سوکو داسې وو.لکه څنګه چه د سړو پټکی د هغوی په مخونو باندې نزدې وی.اومونږ به د نمر پريوتو نه پس روانيږو.ددې دواړو احاديثو نه معلوميږی.چه د نمر پريوتو پورې وقوف اوږدول واجب دی.اودا کس چونکه د نمر پريوتو نه په وړاندې تلو سره د واجبو پريخودونکې شو.نود واجب په پريخودو پرې دم واجبيږی

**السوال التقديری**﴾ ﴿بخلاف ما إذا وقف..﴾ **إلخ** په دې عبارت سره د يو تقديری سوال جواب ورکوی سوال دا دې.که يو کس د نهمې ذوالحجه پسې چه کومه شپه راروانه وی.يعنې داختر شپه د هغې په يوه حصه کښې وقوف اوکړلو.نودې کس د نمر پريوتو پورې وقوف اوږد نکړلو.پکارده چه په ده هم دم واجب وی.حالانکه په ده دم نه واجبيږی.

**الجواب**﴾جواب دادې.چه د نمر پريوتو پورې د وقوف اوږدول په هغه چا باندې واجب دی.څوك چه په نهمه ذوالحجه باندې وقوف عرفات اوکړی.اوچونکه دې کس د نهمې ذوالحجه په ورځ وقوف نه دې کړې.بلکه په شپه کښې نې وقوف کړې دې.نوترك د ده په حق کښې ترك د واجب نه دې موجود شوې.نوځکه پرې دم هم نه واجبيږی.

**عدم سقوط الدم بالرجوع بعدالغروب**﴾صاحب دقدروی رحمه الله فرمائی.کوم کس چه دغروب نه وړاندې تلې وی.اوبيا د نمر پريوتو نه پس واپس راشي.اود امام سره د عرفات نه روان شي. نود ظاهرروايت مطابق دده نه وجوب د دم نه ساقطيږی.ځکه چه د غروب نه وړاندې چه په وقوف کښې کوم نقصان راغلې دې.دهغې پوره کول ممکن نه دی.نوځکه دم نه ساقطيږی.

**سقوط الدم بالرجوع قبل الغروب**﴾اوکه د غروب نه وړاندې وړاندې ميدان عرفات ته واپس راغلو. او بيا د امام سره روان شو.نوپه دې صورت کښې هم د امام زفر رحمه الله په نيز دده نه وجوب دم نه ساقطيږی. البته د امام ابوحنيفه اوصاحبينو رحمهم الله په نيز ترې دم ساقطيږی.

### د وقوف مزدلفه په ترك سره وجوب د دم

| مَنْ تَرَكَ الْوُقُوفَ بِمُزْدَلِفَةَ فَعَلَيْهِ دَمٌ اوچا چه پريخودو وقوف د مزدلفې نوپه ده دم دې |
|---|

**تشريح**﴾ مسئله ښکاره ده.

### د رمی په ټولو ورځو کښې ترك د رمی الجمارکول

| وَمَنْ تَرَكَ رَمْيَ الْجِمَارِ فِي الْأَيَّامِ كُلِّهَا فَعَلَيْهِ دَمٌ چا چه پرېښودله رمی دجمرو په ټولو ورځوکښې نو په ده دم دې. |
|---|

(١) **مذهب الشافعي** رحمه الله:- اود امام شافعی رحمه الله دويم قول دا دې.چه په ده باندې څه واجب نه دی.

(٢) غريبه الزيلعي رحمه الله ثم قال تقدم في حديث جابر الطويل فلم يزل واقفا حتى غربت الشمس كذا في نصب الراية (١٥٤/٣)

**تشریح** > **حکم ترک رمي الجمار** > د رمی څلور ورځې دی.لسمه یولسمه دولسمه اودیارلسمه که یوکس د رمي په دې ټولو ورځو کښې دشیطانانو ویشتل پریخودل.نوپه ده باندې دم لازم دې.ځکه چه رمی د شیطانانو واجب ده.اود واجب په پریخودو باندې دم لازمیږي.نوپه ده دم واجب شو.البته دا چه دټولوورځو د شیطانانو د رمی په پریخودو سره صرف یو دم کافی کیږي.د رمی ټول شمار اویا دي.

**دلیله** > دلیل دا دې.چه د ټولو ویشتلو جنس د ذات په اعتبار سره هم یو دې.اود محل په اعتبار سره هم یو دې. نودا ټول به یوه رمی حسابولې شي.اویودم به واجبولې شي.لکه څنګه چه یومحرم د ټول بدن ویخته اوخرائي.نوپه ده باندې صرف یو دم واجب دې.اګرچه په هغه صورت کښې هم صرف یو دم واجبیږي.چه ټول سر یا د سر د څلورمې حصې ویخته اوخرائي.دلته هم د یودم د وجوب علت اتحاد دجنس دي.نولکه څنګه چه د حلق په باب کښې یودم واجبیږي.دغه شان به دلته د رمی په باب کښې هم یو دم واجبیږي.

**وقت الرمي** > علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلي دی.چه د رمی پریخودل به په هغه وخت کښې متحقق کیږي.چه د رمی آخری ورځ یعنی د دیارلسمې ذوالحجه د نمر پریوتو پورې.ځکه چه رمی چه عبادت ګرځولې شوې دې.نوصرف په دې ورځو کښې،اود رمی اعاده ترهغه وخته پورې ممکن ده.چه دا ورځې باقی وی.مثلاً که په دیارلسمه ورځ نې د رمې د اعادهٔ کولو اراده اوکړله.نوپه دغه ورځ دې د ټولو ورځو رمی په هغه ترتیب سره اوکړی.څنګه ترتیب چه نې مقرر شوې دې.په دې صورت کښې چونکه رمی د خپل وخت نه روستو شوه.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز پرې دم واجب دې.ځکه چه دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز تاخیر د واجب موجب د دم دې.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز تاخیرد واجب موجب د دم نه دې.

## د پوره یوې ورځې رمی پریخودل

| وَاِنْ تَرَكَ رَمْيَ اِحْدَى الْجِمَارِ الثَّلَاثِ فَعَلَيْهِ صَدَقَةٌ اوکه پاتې نې کړه د دریو جمراتو نه د یوې جمرې رمی نوپه ده صدقه ده. |
|---|

**تشریح** > **وجوب الصدقة بترک الرمي الواحد** > که یوکس د رمی د ورځونه په یوه ورځ کښې د یوې جمرې رمی پریخوده.نوپه ده باندې د نیم صاع غنمو صدقه واجب ده.

**دلیله** > ځکه چه په یوه ورځ کښې درې واړه جمرات ویشتل یونسک دې.اوچه ده د یوې جمرې ویشتل پریخودل.نودا د یونسک د نیمې نه هم کم عمل پریخودې شو.اوچه دیو نسک د نیم نه هم کم پریخودې شي.نوپه دې صدقه واجبیږي.نودلته به هم د یوې جمرې د رمی په پریخودو به صرف صدقه واجبیږي.

**وجوب الدم عندترک اکثرالرمي** > صاحب د هدایه رحمه الله فرمائیلي دی البته دا ده.که د پریخودې شوی جمراتو رمی د نصف نه زیاته وی. مثلاً د ټولوجمراتو ویشتلو شمار یوویشت دې.اوس که ده د لسو ګیټکو ویشتل اوکړل.نوپه ده باندې دم لازم دې.ځکه چه د یوولسو ګیټکو ویشتل پاتې شو.او یوولس اکثر دی.اود اکثر دپاره حکم د کل وی. نو لکه چه ده د درې واړوجمراتو ویشتل پریخودې دی.اوپه هغه صورت کښې دم واجبیږي.نودغه شان به دلته هم دم واجبیږي.

| وَاِنْ تَرَكَ رَمْيَ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ فِي يَوْمِ النَّحْرِ فَعَلَيْهِ دَمٌ اوکه پریخوده نې د جمره عقبه رمی د قربانئی په ورځ نوپه ده دم دې. |
|---|

**تشریح> وجوب الدم بترک الجمرة العقبة>** اوکه یوکس په یوم النحر باندې د جمره عقبه رمی پریخودله.تردې چه دیارلسمه ذوالحجه باندې نمر ووب شو.نوپه ده باندې دم لازم دی.

**دلیله>** ځکه چه په یوم النحرصرف د جمره عقبه رمی پوره نسک دې.اوده په یوم النحر باندې رمی پریخودله.نویونسک ئې پریخودلو.اود یو نسک په پریخودو باندې دم واجبیږی.نوپه ده باندې هم دم واجبیږی.

دغه شان که په یوم النحر د جمره عقبه اکثره رمی یعنی څلور کيتکو باندې ویشتل پریخودل. نوهم پرې دم واجبیږی.ځکه چه مشهوره قاعده ده.چه (للأکثرحکم الکل)

## د ایام النحر نه حلق روستو کول

| وَمَنْ أَخَّرَ الْحَلْقَ حَتّٰى مَضَتْ أَيَّامُ النَّحْرِ فَعَلَيْهِ دَمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله،اوچا چه روستوکړو سرخرئیل تر دې چه تیر شوې ورځې دقربانئی نو پده دم دې په نزد دامام ابوحنیفه صاحب رحمه الله وَكَذٰلِكَ إِنْ أَخَّرَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله،اودا شان کله چه ورستو ئې کړو طواف زیارت په نزد دامام ابوحنیفه رحمه الله([1]) |
|---|

**حل اللغة >**① **اخر،تاخیراً**: روستوکول ②**مضت، مضیاً(ض)** :تیریدل ③**نحر، نحراً(ف)**: قربانی کول

**تشریح> وجوب الدم بتاخیرالنسک حتی مضي ایام النحر>** امام قدوری رحمه الله فرمانی.چې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ①که محرم د ایام النحریعنی لسمه یوولسمه اودولسمه ورځ کښې نه حلق اوکړلواونه ئې قصر اوکړلو.نوپه ده باندې دم واجب شو.②دغه شان که ده طواف زیارت روستو کړلو.نوپه ده دم واجب دی.

③ د یوم النحر رمی د جمره عقبه یعنی دلسمې ذوالحجه رمی یوولسمې ته روستو کړی.یا د یوولسمې رمی دولسمې ته روستو کړی.یا د دولسمې هغه دیارلسمې یا د دیارلسمې هغه څوارلسمې ته روستو کړی.نوپه دې صورتونوکښې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز پرې د تاخیر په وجه دم واجب دی.

**دلائله >** ①دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حدیث دې. دوی فرمانی چه کوم سړې نسک دبل نه رومبے اوکړو نوپده دم دې ([2])اوپه بعضې نسخو کښې د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ذکر دې.حدیث دا دې.چه چا یونسک په بل باندې وراندې کړلو.نوپه هغه باندې دم دې.

②دویم دلیل دا دې.چه کوم نسک په یومکان پورې مخصوص وی.نوکه د هغې نه روستو شی.دم به واجب وی.لکه که یوکس د میقات نه تیرشو.اوبیا ئې احرام اوتړلو .نوپه ده باندې دم واجبیږی.دغه شان چه کوم نسک په کومه زمانه پورې خاص وی.دهغې نه روستو شی.نودم به لازمیږی.په دې دواړو کښې جامع د د تاخیرنقصان پیدا کیدل دی.

**مذهب الصاحبین>** اوپه ذکرشوې دواړو صورتونوکښې د صاحبینو رحمهما الله په نیزقربانی نه ده واجب.

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٢\٢٢٦) والبحر(٣\٤٢) وتبيين الحقائق (٢\٦٢) وفتح القدير(٢\٤٦٩) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٢٨)_

[2] ) قال الزيلعي رحمه الله هكذا هو في غالب النسخ ويوجد في بعضها ابن عباس رضي الله عنهما وهو أصح رواه ابن ابي شيبة في مصنفه عن ابن عباس رضي الله عنهما قال من قدم شيأ من حجه أو اخره فليهرق دماً (كذا في نصب الراية٣/١٥٦)_

**دلیلهما** ﴿دصاحبینو ﷫ دلیل دا دي.چه کوم څیزد خپل وخت نه فوت شي.نودهغې پوره کیدل په قضا سره کیږي.اوچه د کوم څیز پوره والې په قضا سره کیږي.نوپه هغې کښې بیا بل څه نه واجبیږي.لکه څنګه چه د شریعت د احکامو په لټون سره دا خبره معلومیږي.مثلاً د مونځ په فوت کښې باندې د قضا نه سوې بل څه واجب نه دی.دغه شان د حج په مسائلو کښې هم چه کله په یو نسک کښې تاخیر اوشی.نوصرف په تاخیره د قضا نه علاوه دم وغیره بل څه نه واجبیږي.

## دمحرم ښکارکول یا بل چاته خودل

| |
|---|
| وَإِذَاقَتَلَ الْمُحْرِمُ صَيْدًاأَوْدَلَّ عَلَيْهِ مَنْ قَتَلَهُ فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ کله چه محرم ښکار قتل کړو یا نې ددې خودنه اوکړه هغه چاته چه دې نې قتل کړونو پده جزاء ده |

**حل اللغة** ﴿ ① قتل،قتلاً (ن): قتل کول، وژل

**تشریح** ﴿ **صورتیٔ الصید** ﴿مسئله، ① که محرم په خپله ښکارقتل کړلو. ② یا نې ښکاری ته.اوخودل.چه فلانی ځانې کښې ښکار دې.اوهغه مدلول دغه ښکارقتل کړلو.نوپه دې دواړو صورتونوکښې په محرم باندې دم واجب دې.

**دلیله** ﴿چه په خپله ښکارقتل کړی.نوپه دې صورت کښې د دم د وجوب دپاره د الله تعالی دا ارشاد دلیل دې. ﴿لَاتَقْتُلُواالصَّيْدَوَأَنْتُمْ حُرُمٌ﴾ یعنی تاسوښکار مه کوئ په داسې حال کښې چه تاسو په احرام کښې نې.اوچا چه په قصد سره قتل کړلو.نوپه ده باندې دهغه پشان په څناورو کښې جزاء واجب ده.

**الصورالعقلي للدلالة** ﴿ د دلالت په صورت کښې د عقل په اعتبارسره ټول څلور صورتونه جوړیږي. ① دال اومدلول دواړه حلال وی. ② دال اومدلول دواړه محرم وی. ③ دال حلال اومدلول محرم وی. ④ دال محرم اومدلول حلال وی.

**حکم کل واحدمنها** ﴿اولنې صورت زمونږد بحث نه بهردې.دویم کښې په دې ل اومدلول دواړو باندې جزاء ده.په دریم صورت کښې په مدلول باندې اوپه څلورم صورت کښې په دې ل باندې جزاء ده. (١)

**دلائله** ﴿ ① دلیل دحضرت ابوقتاده ﷜ حدیث دې.کوم چه د احرام په باب کښې تیرشوې دې.(أنه أصاب حمار وحش وهوحلال وأصحابه محرمون فقال النبی ﷺ هل أشرتم هل أدللتم هل أعنتم،فقالوا لا فقال ﷺ إذا فكلوا) د حدیث ترجمه اووجه د استدلال وړاندې تیره شوې ده.

② دویم دلیل دحضرت عبدالله بن عباس ﷠ د شاګرد رشید عطاء بن ابی رباح ﵀ قول دې.چه دخلقو په دې باندې اجماع ده.چه د حرم ښکار طرف ته اشاره کونکی باندې جزاء ده.اوامام طحاوی ﵀ فرمانیلی دی.دهیڅ صحابی ﷜ نه ددې خلاف قول نقل نه دې.نوپه دې باندې اجماع شوه.چه په دې ل باندې جزاء واجبیږي

③ دریم دلیل دا دې.چه په حالت داحرام کښې په ښکار باندې دلالت کول د احرام د ممنوعاتوڅخنې دې.نوچه د احرام په ممنوعاتوکښې د یوممنوع ارتکاب اوشی.په هغې به خامخا ترتب د جزاء وی.

④ څلورم دلیل دا دې.چه په دلالت کولو سره د ښکار امن زائله کیږي.څکه چه ښکار د خپل وحشت اود خلقو نه ځان ساتلو په وجه په امن وی.خوچه ده پرې دلالت اوکړلو.اومدلول هغه قتل کړلو.نوهغه

---

(١) **اختلاف الشافعي** ﵀ ﴿ دامام شافعی ﵀ مذهب دا دې.چه په ده باندې په هیڅ صورت کښې جزاء نشته.هم دا دامام مالك ﵀ قول دې.

امن ده ختم کړلو.نودا داسې شوه لکه چه دغه ځناور ده هلاك کړلو.اود ځناور په هلاکولو سره جزاء واجبيږی.نودغه شان به په دې صورت کښې هم جزاء واجبيږی.

⑤ پنځم دليل دا دې.چه محرم د احرام په تړلوکښې په ځان باندې دا لازمه کړې وه.چه زه به د ښکار ځناورو ته تعرض نه کوم.چه ده دلالت اوکړلو.نود هغه الزام خلاف ئې اوکړلو.اوچه د الزام خلاف اوشی.نوپه داسې صورت کښې ضمان واجبيږی.نوځکه په ده باندې ضمان يعنې جزاء واجبيږی.لکه څنګه چه يوکس د چا مال د ځان سره امانت ايخودې وی.اوده د هغې د حفاظت په ځان باندې التزام کړې دې.اوس که دې هغه التزام پريږدی.اوهغه مال هلاك شی.نودې به ضامن وی.

**د عامداوناسي په قتل اودلالت کښې برابرتيا**

| سَوَاءٌ فِي ذٰلِكَ الْعَامِدُ وَالنَّاسِي اوبرابردی په دې کښې قصداً کوونکې اوپه هيره کوونکې |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **سواء**: برابر ② **عامد**: په قصدسره کوونکې ③ **ناسي**: هيرونکې

**تشريح** ﴿ **إستواء العامد والنسيان في جزاء الصيد** ﴾ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه د ښکارپه قتل کښې دغه شان ددې په دلالت کښې په قصد سره قتل کونکې اودلالت کونکې اوپه هيره سره قتل کونکې او دلالت کونکې دواړه برابردی.يعنی لکه څنګه چه په قصد سره قتل کولو اودلالت کولوپه صورت کښې جزاء واجبيږی.دغه شان په هيره سره هم جزاء واجبيږی.چه دده هيروی.چه زه خومحرم يم.

**دليله** ﴾ ځکه چه جزاء داسې ضمان دې.چه دا په اتلاف يعنې هلاکت پورې متعلق کيږی.نوکه دغه اتلاف په قصد راغلې وی اوکه په هيره په دواړو صورتونوکښې به ضمان واجب وی.دا د مالی تاوان سره مشابه شو.لکه څنګه چه که د چا مال په قصد سره يا په هيره سره هلاك کړی.نوپه دواړو صورتونوکښې په ده هلاکونکی ضمان واجبيږی.دغه شان د ښکارپه صورت کښې هم.

| وَالْمُبْتَدِءُ وَالْعَائِدُ اواول ځل کوونکې اوپه دويم ځل کوونکې پکښې برابر دې |
|---|

**تشريح** ﴿ **إستواء البادی والعائد في الجزاء** ﴾ دويمه مسئله دا کوی.که په ښکارباندې اول حمله کونکې اودوباره پرې حمله کونکې دواړه په جزاء کښې برابر دی.يعنی که يوښکار وی اوله حمله پرې زيد اوکړی.اودويمه حمله پرې بکراوکړی.نوزيد اوبکردواړه په جزاء کښې برابردی.په هريوباندې به جزاء د ښکار وی.

**د شيخينو رحمهما الله په نيزپه جزاء کښې د قيمت وجوب**

| وَالْجَزَاءُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ أَنْ يُقَوَّمَ الصَّيْدُ فِي الْمَكَانِ الَّذِي قَتَلَهُ فِيهِ اوجزاء د شيخينو رحمهما الله په نزد داده چه قيمت دې اولګولې شی دښکار په هغه ځائې کښې کوم ځائې کښې چه ئې ښکار کړې دې أَوْفِي أَقْرَبِ الْمَوَاضِعِ مِنْهُ إِنْ كَانَ فِي بَرِّيَّةٍ يُقَوِّمُهُ ذَوَاعَدْلٍ يا ورته په نزدې ځائې کښې که په ځنګل کښې وی نو قيمت دې مقرر کړی ددې دوه انصاف کوونکی سړی |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **ان يقوم، قوم تقويمًا**: قيمت لګول ② **مواضع د موضع جمع**: ځايونه

**تشريح** ﴿ **صفة الجزاء عند الشيخين** ﴾ د امام ابوحنيفه اوامام ابويوسف رحمهما الله په نيزکه محرم په کوم ځائې کښې ښکارقتل کړې وی.نوپه هغه ځائې کښې به د دغه دوه عادلان (چه په قيمت لګولوپوهيږی) د هغې ښکارقيمت مقررکړی.اوکه په هغه ځائې کښې دغه ښکارنه وی.چه ورته نزدې کوم ځائې وی.چه په هغه ځائې کښې ئې څه قيمت وی.هغه دې اولګوی.

ثُمَّ هُوَ مُخَيَّرٌ فِي الْقِيمَةِ نوبيا دده اختيار دې په قيمت كښې إِنْ شَاءَ ابْتَاعَ بِهَا هَدْيًا فَذَبَحَهُ إِنْ بَلَغَتْ قِيمَتُهُ هَدْيًا كه غواړي قرباني دې پرې واخلي او ذبح دې كړي كه رسيږي قيمت ئې قرباني ته، وَإِنْ شَاءَ اشْتَرَى بِهَا طَعَامًا اوكه غواړي نو وادې خلي په دې غله فَتَصَدَّقَ بِهِ عَلَى كُلِّ مِسْكِينٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ صدقه دې كړي هر مسكين ته نيم صاع دغنمو او يا يو صاع د قجور اويا يو صاع د وربشو

**تشريح﴿ الاختيار في صورة دفع القيمة﴾** بيا كه دغه قيمت د قربانۍ خاروي ته رسيدلو. نو په هغې دې قرباني اوكړي. اوغوښه دې د حرم په مسكينانو باندې تقسيم كړي. اوكه قيمت ئې د خاروي برابرنه وو. نو په هغې دې غنم واخلي. اود صدقة الفطر پشان دې هريو مسكين ته صدقه وركړي. يعنې كه غنم واخلي نوهرمسكين ته دې نيمه نيمه صاع وركړي. اوكه كجهورې يا جوار پرې واخلي. نوهرمسكين ته دې يو يوصاع وركړي. اوكه خوښه ئې وي. نود هرمسكين د خوراك په ځائې دې روژه اونيسي.

فَإِنْ فَضَلَ مِنَ الطَّعَامِ أَقَلُّ مِنْ نِصْفِ صَاعٍ فَهُوَ مُخَيَّرٌ نوكه زياتي شوه په غله كښې دنيموصاع نه كم مقدار نوددۀ اختيار دې إِنْ شَاءَ تَصَدَّقَ بِهِ وَإِنْ شَاءَ صَامَ عَنْهُ يَوْمًا كَامِلًا كه غواړي هغه دې صدقه كړي اوكه غواړي دهغې دطرفه دې يوه روژه اونيسي.

**تشريح﴿ حكم الأقل من صدقة الفطر﴾** اوكه په آخركښې د نيم صاع غنمو نه كم طعام بچ شو. نو دۀ ته اختيار دې. كه خوښه ئې وي. نوهغه دې صدقه كړي. اوكه خوښه ئې وي. نودهغې په بدله كښې دې هم يوه روژه اونيسي.

**دليله﴿** ځكه چه د يوې ورځې نه كمه روژه نيول مشروع نه دي.

### د ښكار په جزاء كښې د امام محمد اوامام شافعي رحمهماالله مسلك

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَجِبُ فِي الصَّيْدِ النَّظِيرُ فِيمَا لَهُ نَظِيرٌ، امام محمد رحمه الله وائي چه په ښكار كښې نظير واجبيږي دكوم چه نظير موجود وي فَفِي الظَّبْيِ شَاةٌ، وَفِي الضَّبُعِ شَاةٌ، وَفِي الْأَرْنَبِ عَنَاقٌ، نو په هوسۍ كښې چيلۍ اوپه كوګ كښې چيلۍ اوپه سوۍ كښې د چيلۍ د شپږو مياشتو بچې دې. وَفِي النَّعَامَةِ بَدَنَةٌ په شترمرغ كښې اوښ وَفِي الْيَرْبُوعِ جَفْرَةٌ، اوپه ځنګلي منږك كښې د چيلۍ د ځلورو مياشتو بچې دې

**حل اللغة﴿** ①**الضبع**: كتمل ②**ارنب**: سوې ③**عناق**: د چيلۍ بچې د كال پوره كيدو نه وراندې ④**جفرة**: د چيلۍ بچې ⑤ **الظبي**: هوسۍ ⑥**نعامة**: شترمرغ

**تشريح﴿ وجوب الجزاء بحسب النظير﴾** په دې عبارت كښې د ښكار په جزا كښې دامام محمد اوامام شافعي رحمهما الله مسلك بيانوي. دوی فرمائي. چه د ښكار په جزاء كښې چه د كوم ځناور ښكارشوې وي. كه دهغې صورت يا نظيرموجود وي. هغه به واجبيږي. مثلاً د اوسۍ په جزا كښې به چيلۍ واجبيږي. او كوګ(خوښه خوړونكې دكانړو سترګو ځناور) په جزاء كښې چيلۍ اود سوني (خرګوش) په جزاء كښې د چيلۍ (ماده) بچې اود ځنګلي مګې پهجزاء كښې دچيلۍ څلورمياشتيزبچې واجبيږي. اودشترمرغ، اوښ اود ځنګلي خرپه جزاء كښې غوې واجبيږي.

**دلائله﴿** ①د دوی دليل دالله تعالى ارشاد ﴿فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ﴾ دې. ځكه چه په دې آيت كښې د ښكار په جزاء كښې هغه څيزواجب كړې دې. كوم چه په ځناورو كښې د ښكارپه شكل

وی.اوقیمت خود ځناورو پشان نشی کیدې.نوځکه قیمت نشی واجب کیدې.

**الجواب منه** ﴿ د دې نه جواب دا دې.چه لفظ د(نعم) لکه څنګه په کورنی ځناورو باندې صادقیږی.دغه شان په ځنګلی ځناورو باندې هم صادقیږی.لکه څنګه چه د لغت امامان ،ابوعبیده اواصمعی رحمهما الله فرمائیلی دی.اوپه آیت کښې د (مثل) نه مراد قیمت دې.اود(نعم) نه مراد ځنګلی ځناورمراد دی.اوس ترجمه دا شوه.چه د ښکار جزاء دهغه ځنګلی ځناور قیمت دې.کوم چه قتل شوې وی.

② اوصحابه کرامو رضی الله عنهم مثلاً عمر، علي ابن مسعوداوابن عباس رضی الله عنهم وغیره په شترمرغ ،اوسیٔ سوې په جزاء کښې هم هغه شان ځناور واجب کړی وو.کوم چه په خلقت اوصورت کښې د هغې پشان وو. ([1])

**المراد من الحديث وقول الصحابة** رضی الله عنهم ﴿اود نبی ﷺ د قول چه (الضبع صيد وفيه شاة) مطلب دا دې.چه د کوګ د قیمت اندازه به د چیلئ د قیمت نه لګولې شی.دا مطلب نه دې.چه نبي ﷺ د کوګ په بدله کښې چیلئ واجب کړې ده.هم دا جواب دصحابه کرامو رضی الله عنهم د فیصلې هم دې.مثلاً صحابه کرامو رضی الله عنهم په شترمرغ کښې دهغې خاص نظیرنه دې واجب کړې.بلکه دا نې ونیلی دی.چه دهغې نظیرته به کتلې شی. او د شترمرغ دقیمت به اندازه کولې شی.

**إتفاق الإحناف في جزاء ما لا مثله له** ﴿البته دا ده.که دیوښکارپشان ځناور موجود نه وی.نوداامام محمد رحمه الله په نیزبه هغې کښې قیمت واجبیږی.لکه چنچنړه او کونتره،چه ددې پشان ښکار په ځناورو کښې مثل نشته.نوپه داسې ځناورو کښې به قیمت واجب وی.نوپه دې صورت کښې د امام محمد رحمه الله قول د شیخینو رحمهما الله دقول پشان شو.

**المراد مثل المعنوى عند الشيخين** ﴿دشیخینو رحمهما الله دطرفه جواب دا دې.چه په آیت ﴿فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ﴾ مثل مطلق دې.اومثل هغه وی.چه په هغه د صورت اومعنی دواړو په اعتبارسره مماثل وی. خودلته دا معنی اخستل ممکن نه ده.یعنی په آیت کښې حقیقی مثل مراد نه دې.ځکه چه هغه ځنګلی ځناور چه دهغې مثل نه وی.لکه چنچنړه اوکونتره،نوداسې قسم د آیت د عموم نه خارجیږی.حالانکه د آیت حکم ټولوته شامل دې.نوپه دې آیت کښې به (مثل) په مثل معنوی باندې حمل کولې شی.اومثل معنوی قیمت دې.

**وجوه المراد المثل المعنوى** ﴿ ①اوله وجه دا ده.چه مثل معنی په شریعت کښې معروف اومشهور دې.مثلاً که یوکس د بل کس جامه هلاکه کړه.نوپه ده باندې د هغې جامې مثل معنوی یعنی قیمت لازم دې.

②دویمه وجه دا ده.چه په هغه ځناورو کښې چه د هغې صوری مثل نه وی.لکه چنچنړه او کونتره، نوپه هغې کښې په اجماع سره مثل معنوی مراد دې.لکه وراندې چه په دې باره کښې د امام محمد رحمه الله موقف تیرشو.چه هغوی هم په هغه ځناوروکښې چه نظیرنې نه وی.دمثل معنوی یعنی قیمت قائل دې. اوس په هغه ځناورو کښې چه د هغې مثل صوری موجود وی.دهغې پشان ځناور په

---

[1] ) أخرج مالك في موطاه (في الحج رقم ٢٣٠) ....أن عمر رضی الله عنه قضى في الضبع بكبش وفي الغزال بعنز وفي الأرنب بعناق وفي اليربوع بجفرة كذا في نصب الراية (٣/١٦١)_

جزاء کښې لازم کړې شي.نوددې نه عموم مشترك يا په نورو الفاظو کښې دحقيقت اومجاز په مينځ کښې جمع راځي.نوځکه به په آيت کښې د مثل نه صرف مثل معنوي يعني قيمت مراد واخستې شي.
③دريمه وجه دا ده.چه په مثل معنوي مراد کړې شي.نوپه دې کښې تعميم دې.ځکه چه په دغه وخت کښې آيت هغه ته هم شامليږي.چه نظيرنې وي اوهغې ته هم چه نظير نې نه وي.اوکه مثل صوري مراد واخستې شي.نوصرف هغه ښاوررو ته شامليږي.چه دهغې صوري نظيروي.اوچه د کوم صوري مثال نه وي.هغه ترې خارجيږي. حالاتکه په تعميم باندې عمل کول غوره دي.ځکه چه په دې صورت کښې د آيت فائده عامه ده.

**په ښکارکښې د عيب پيدا کولوتاوان**

| ومن جَرَحَ صَيْدًا أَوْنَتَفَ شَعْرَهٗ أَوْقَطَعَ عُضْوًا مِنْهُ اوچا چې ښکار زخمي کړو يانې ورنه ويخته ويستل يا نې ترې څه اندام پريکړو ضَمِنَ مَا نَقَصَ مِن قِيمَتِهٖ نود هغې په قيمت کښې چې يې کوم نقصان راوستې وی دهغې به ضمان وی |
|---|

**تشريح> ضمن ما نقص من القيمة>** كه محرم د ښكارښاور زخمي كړلو.يانې د هغې نه بنړې اويستلې.يانې دهغه يواندام ضائع كړلو. نو په دې ټولوصورتونوكښې چه دهغه په قيمت كښې څومره كمې راغلې وي.په محرم به د هغې ضمان وي. مثلاً ديوښكارقيمت لس روپۍ وو.دهغه د يواندام په ضائع كيدو د هغې قيمت پنځه روپۍ پاتې شو.نواوس به په محرم د پنځو روپو تاوان وي.
**دليله>** دلته جزء په كل باندې قياس كولې شي.لكه ځنګه چه په حقوق العباد كښې دي.كه يوكس د بل انسان پوره نقصان اوكړلو.نوپوره تاوان به پرې راځي.اوكه بعضې نقصان نې اوكړلو.نود بعضې دحصې مطابق به پرې تاوان راځي.

| وَاِن نَتَفَ رِيْشَ طَائِرٍ اوكه وې ويستل د مارغه نه وزرونه أَوْقَطَعَ قَوَائِمَ صَيْدٍ يا نې پريكړې پښې دښكار فَخَرَجَ مِنْ حَيِّزِ الاِمْتِنَاعِ بيا هغه دځپل تحفظ نه اووتلو فَعَلَيْهِ قِيمَتُهٗ كَامِلَةً. نوپه ده پوره قيمت دې. |
|---|

**تشريح> لزوم الضمان باخراج الطير عن الانتفاع>** اوكه يومحرم د يوپرندې وزرې ماتې كړې.يا نې د ښكارې ښاور پښې لاس مات كړل.تردې چه هغه پرنده او ښاوردځپل حفاظت نه عاجزه شو.اودخلقو نه د ځان ساتلوقابل پاتې نشي.نوپه دې صورت كښې به په محرم باندې دهغې پوره قيمت تاوان وي.
**دليله:** ځكه چه كله محرم دهغه د حفاظت ذريعه ختمه كړه.نولكه چه ده د هغه امن او امان ختم كړلو اوكله چه نې دهغه امن ختم كړلو.نولكه چه هغه نې هلاك كړلو.اود هلاكولو په صورت كښې د قتل شوي ښكار پوره قيمت واجبيږي.نودغه شان به په دې صورت كښې هم پوره قيمت واجبيږي.

**د شترمرغ د هګئ ماتولو جزاء**

| وَمَنْ كَسَرَ بَيْضَ صَيْدٍ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهٗ اوكوم محرم چه ښكاره هګئ ماتې كړې نوپه ده قيمت دې دهغه |
|---|

**حل اللغة >** ①كسر،كسرًا (ض): ماتول ②نعامة: شترمرغ

**تشريح> لزوم القيمة بكسر بيض النعامة>** مسئله كه محرم دشترمرغ هګئ ماته كړه.نوپه ده باندې به د هګئ قيمت واجب وي.

**دلائله** ⓵ دحضرت علي ()او ابن عباس رضي الله عنه (٢) نه هم دا نقل دی.⓶دويم دليل دا دي.چه په هګۍ د ښکار اصل دي.اوپه هګۍ کښې دا صلاحيت شته.چه ددې نه ښکار جوړ شي.اود ښکار هلاکولو باندې په محرم باندې ضمان واجبيږی .نو دغه شان به د هګۍ په ماتولوهم په ده ضمان واجبيږی.

| فَإِنْ خَرَجَ مِنَ الْبَيضَةِ فَرْخٌ مَيِّتٌ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ حَيًّا نوکه راووتلو د هګۍ نه بچې مړنوپه ده د ژوندی بچې قيمت دي |
|---|

**تشريح** **وجوب قيمة الفرخ بكسربيض النعامة** اوکه د ماتې شوې هګۍ نه مړ بچې راووتلو.نوپه دې صورت کښې به د هغه بچی قيمت اچولې شي.اوهغه به په ده واجب وی.

**دليله الاستحسان** خودا حکم استحسانی دې.ځکه چه د بچي ژوند معلوم نه دي.ځکه چه کيدې شی دا د وراندې نه مړشوی وی.دهګۍ په ماتولو سره نه وی مړې شوې.

**وجه القياس** اوقياس دا دي.چه صرف د هګۍ دي ضامن شي.اووجه داستحسان دا ده.چه هګۍ ددې دپاره ده.چه ددې نه بچې راوځي.اوس چه دا د خپل وخت نه وراندې ماته شوه.نوګويا چه ددې ماتول د بچې د مرګ سبب اوګرځيدو.نودا به د احتياط د وجې په دې حمل کولې شي.چه د هګۍ د ماتولو دوجې مړشوې دې.

**نظيره** اوهم د استحسان په بنياد دا مسئله هم ده.چه اوسۍ په خيټه باندې اووهی.اودهغې نه مړ بچې پيدا شي.اوپه خپله هم مړه شي.نوپه محرم باندې دوه ضمانه دی.يود اوسۍ اوبل د بچی.

**دکومو ځناورو په قتل څه نه واجبيږی؟**

| وَلَيْسَ فِي قَتْلِ الْغُرَابِ وَالْحِدَأَةِ وَالذِّئْبِ وَالْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ وَالْفَارَةِ وَالْكَلْبِ الْعَقُورِ جَزَاءٌ اونشته په قتل دکارغه اوتپوس او شرمخ اومار اولړم او مږه او چيچونکی سپی کښې جزاء. |
|---|

**حل اللغة** ⓵ **الغراب**: قارغه ⓶**الذئب**: شرمخ ⓷**الحية**: مار ⓸ **الفارة**: مږه ⓹ **الكلب العقور**: خوراکی سپې ]

**تشريح** **ماحل قتله للمحرم** شيخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائي.که محرم کارغه يا تپوس يا شرمخ يا مار يا لړم يا مګه يا چيچونکې سپې مړکړل.نوپه ده به څه جزاء واجب نه وی.

**دلائله** ⓵دليل د نبی ﷺ قول دي.چه هغوی د پنځوضروری ځناورو په زمين حل اوحرم دواړو کښې د قتلولواجازت ورکړې دی.(تپوس،مار،لړم مګه چيچونکې سپې)⓶دويم حديث دا دي.چه مګه، کارغه تپوس،لړم،مار اوچيچونکې سپې محرم قتلولې شي.

**السوال والجواب** دلته يواشکال دا کيږی.چه نبی ﷺ محرم د ځناورو د قتلولو نه منع کړې دې .خو د دې پنځو د قتلولو اجازت ئې ورکړې دې.اوپه بل حديث کښې ئې شپږ شمارلی دی.ددې جواب په اولنی فصل کښې ورکړې شوې دې.

---

[١] ) قال الزيلعي رحمه الله أما حديث علي رضي الله عنه فغريب وروى ابن ابي شيبة في مصنفه ...عن معاويه بن قرة أن رجلاً اوطا بعيره بيض النعام فسأل علياً رضي الله عنه فقال عليك لك بيضة ضراب ناقة أوجنين ناقة فانطلق الى رسول الله ﷺ فاخبره بما قال فقال قد قال ما سمعت وعليك في كل بيضة صيام يوم أو إطعام مسكين :ذا في نصب الراية (١٦٤/٣)_

[٢] ) أخرجه عبدالرزاق في مصنفه وكذا ابن ابي شيبة في مصنفه كذا في نصب الراية (١٦٥/٣)_

**السوال التقديري** ◄ دلته يو سوال دې.هغه دا چه د بخاري او مسلم په روايت كښې د(ذئب) ذكر نشته. صاحب د قدوري رَحِمَهُ الله د (ذئب) اضافه دخپل طرفه كړې ده.

**الجوابان** ◄ ①ددې سوال جواب دا دې.چه په بعضې نورو رواياتوكښې د (ذئب) اضافه شته. ②دويم جواب دا دې.چه د صحيحينو په روايت كښې چه د (كلب عقور) نه مراد (ذئب) دې.باداسې اويايه چه (ذئب) د(كلب عقور) په معنى كښې دى.

**المراد من الغراب في الحديث** ◄ علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله فرمائيلى دى.چه په حديث كښې د قارغه نه هغه قارغه مراد دې.چه كله پليتى خورى اوكله دانې خورى.چونكه هغه په خوراك كښې د نجاست نه شروع كوى.نودې هم د نجاست خور خناور پشان شو.اوپاتې شو هغه قارغه كوم چه تور اوسپين وى.اود هغې آواز د(عقعق)سره وى.په حديث كښې د هغې استثناء نشته. ځكه چه هغې ته قارغه نه وائى.نودهغې په قتل كولوبه جزاء واجبيږى.اودا عقعق د نجاست نه شروع هم نه كوى.بلكه دانه خورى.اوهم دې ته په خپل خوراك كښې ترجيح وركوى.

**رواية عدم الإستثناء عن الضب واليربوع** ◄ صاحب ده هدايه رَحِمَهُ الله فرمائيلى دى چې دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ الله نه يوروايت دا دى.چه د كوم سپى په قتل چه جزاء نه واجبيږى.په هغې كښې چيچونكي اوناچيچونكي اوكورنې اوځنګلى ټول سپى برابر دى.ځكه چه معتبر جنس دې.اوپه جنس كښې كلب اوحقيقت كلب ټول برابردى.اودغه شان كورنۍ اوځنګلى ټولې مكې برابردى.اوسمسره اوكربوړې په دې پنځوكښې نه دى.دكومو چه نبى ﷺ استثناء كړې ده.ځكه چه دواړه خناور په ضرر رسولوكښې وړاندې والې نه كوى. دے

د ماشى، ميګې وركې اوكتمل د قتل حكم

| وَلَيْسَ فِي قَتْلِ الْبَعُوضِ وَالْبَرَاغِيثِ وَالْقُرَادِ شَيْءٌ اونشته په وژلو د ماشى او وركې او كونى كښې څه څيز. |
|---|

**حل اللغة** ◄ ①**بعوض**: ماشې②**نمل**: ميږې ③**براغيث**: ورږه ④ **قراد**: كونې

**تشريح** ◄ **عدم لزوم شئ بقتل هذه الأشياء** ◄ كه محرم ماشې،ميګې وركه ياكتمل مر كړل.نوپه محرم باندې څه واجب نه دى.ځكه چه دا ښكارى خناور نه دى.

**دليله** ◄ ځكه چه ښكارى خناورهغه وى.چه د بنيادم نه ويريږى .او دا خناورد بنيادم ته رغبت كوى.او نه دا خناور د بنيادم د بدن نه پيدا كيږى.زيات نه زيات دا ونيلى شى. چه دا خناور ضررى دى.اوكه د خناور ځنګلى وى.نوچونكه دا ښكارى شو.ځكه چه د انسان نه ويريږى. اودښكارى په وژلو جزاء واجب كيږى.اوكه د بنيادم د بدن نه پيدا كيږى.نود انسان د بدن نه خيرې وغيره پاكوى.ددې وجې ددې په قتل جزاء واجبيږى.خوچه كله دواړه خبرې نه وى.نوجزاء نه واجبيږى.

د سپګې وژل

| وَمَنْ قَتَلَ قَمْلَةً تَصَدَّقَ بِمَا شَاءَ)او چا چه مړه كړه سپږه خيرات دې كوى څه چه غواړى |
|---|

**حل اللغة** ◄ ①**قملة**: سپګه

**تشريح** ◄ **الصدقة بقتل القمل** ◄ ①كه محرم د سريا د بدن د بلې حصې نه سپږه راوخسته.اومړه ئې كړه.يا

نې په زمکه اوغورخوله.نوېکار ده چه صدقه ورکړي.مثلا يوموټې غنم دې ورکړي.②اوبعضې حضراتو ونيلي دي.چه په دوه او دريوسپګوکښې دې يو موټې غنم ورکړي.اوددې نه په زياتوکښې نيم صاع غنم صدقه کړي

**دليله**> دليل دا دې.چه سپګې د هغه خيرونه پيدا کيږي.کوم چه په بدن باندې وي.اودخيرو په پاکولو صدقه واجبيږي.نودغه شان به د سپګو په وژلو يا په زمکه غورخولو هم څه غله واجبيږي.په جامع صغير کښې ئې فرمائيلي دي.چه ‹‹اطعم شيأ›› يعني څه دې ورکړي.د جامع صغيرد دې عبارت نه معلوميږي.چه مسکين باندې د اباحت په طور څه خوراك کول کافي دي.په مړه خيټه پرې خوراك کول شرط نه دې.

**د ملخ د قتل جزاء**

| وَمَنْ قَتَلَ جَرَادَةً تَصَدَّقَ بِمَا شَاءَ: او چاچه قتل کړو ملخ خيرات دې کړي څه چه غواړي |
|---|

**حل اللغة** >① **جرادة**: ملخ ]

**تشريح**> **الصدقة بقتل الجراد**> مسئله دا ده.که محرم ملخ قتل کړلو.نوچه څه ئې خوښ وي.هغه دې صدقه کړي.

**دليله**> دليل دا دې.چه ملخ د وچې ښکاردې.خکه چه ښکارهغه وي.چه بغيردحيلې نه نه دهغه نيول ممکن نه وي. او ښکارکونکې ئې اراده هم لري.

| وَتَمْرَةٌ خَيْرٌ مِنْ جَرَادَةٍ اويوچواره غوره ده د يو ملخ نه. |
|---|

**تشريح**> صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.چه يوه قجوره د ملخ نه بهتره ده.

**دليله**> دليل دحضرت عمر رضي الله عنه قول دې.واقعه دا ده.چه د حمص اوسيدونکي محرم خلقو به د ملخانو ښکار زيات کولو.اوبيا به ئې دهرملخ په بدله کښې يو درهم صدقه کولو.نوحضرت عمر رضي الله عنه ورته اوفرمائيل.چه يوه روپۍ د يوملخ په بدله کښې صدقه کول ډيره ده.ديوملخ په بدله کښې يوه قجوره صدقه کول هم کافي دي. (1)

**د غيرماکول اللحم ښکار د قتلولوجزاء**

| وَمَنْ قَتَلَ مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ السِّبَاعِ وَنَحْوِهَا فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ)اوچا چه قتل کړو داسې ښکار چه غوښه نې نشوه خوړلې لکه درندګان او ددې پشان نو پده جزاء ده |
|---|

**حل اللغة** > ①**لايوكل، اكل ياكل (ن)**: خوراك ②**سباع**: ماتونکي خناور

**وجوب جزاء قتل غيرماكول اللحم**> ①مسئله که محرم غيرماکول اللحم خناور قتل کړلو.لکه ماتونکي خناور زمکې شرمخ وغيره نوددې په قتلولو به هم جزاء واجب وي.البته دهغه خناورو په قتل جزاء نه واجبيږي.دکوموچه شريعت استثناء کړې ده.(2)

**دليله**> دليل دا دې.چه ماتونکي خناور وحشي.دخلقو نه تختي.اوخلق ددې د نيولو اراده هم کوي.يادډې دپاره چه د هغې د څرمن نه فائده واخلي.لکه زمرې يا ددې دپاره چه دهغې په ذريعه

---

(1) اخرجه مالك في مؤطاه كتاب الحج رقم ٢٣٦)_

(2) **مذهب الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه د غيرماکول اللحم خناورو په قتل به جزاء نه واجبيږي.

ښکار اوکړی.لکه باز، یا دهغې د ضررلرې کولودپاره لکه ځنګلی خنزیرملوپه کوموخناورو کښې چه دا صفات وی.نوهغه ښکاروی. نو ماتونکی ځناورهم ښکارشو.اود ښکارپه باره کښې دالله تعالی ارشاد دی.چه﴿لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ﴾نو ددې په قتل کولو به جزاء واجبيږی.

## د چیلۍ د قیمت نه د تجاوزپه صورت کښې اختلاف

| |
|---|
| وَلَا يُجَاوِزُ بِقِيمَتِهَا شَاةً)اوددې په قیمت کښې به دیوې چیلۍ نه زیاتې کولې نشی |

**حل اللغة** ﴿١﴾ **لايجاوز، تجاوز، يتجاوز تجاوزًا**: تیریدل، دَ حدنه زیاتې کول

**تشريح** ﴿ **قدرجزاء صیدغیرماکول اللحم**﴾مسئله دا ده.﴿١﴾که محرم غیرماکول اللحم ځناور قتل کړلو.نوپه هغه باندې د جزاء په حیثیت دومره قدر تاوان واجبيږی.چه د یوې چیلۍ قیمت ته نه رسی.

**دلائله** ﴿١﴾ دلیل د نبی ﷺ دا قول دی.(الضبع صيد وفيه شاة) [1] چه کوګ ښکار دی اوپه کښې چیلۍ ده ﴿٢﴾ اودویم دلیل دا دی.چه دغیرماکول اللحم د قیمت اعتباربه دهغې د څرمن مناسب وی.څکه چه دهغه غوښه نشی خوړلې . نوڅرمن پاتې شوه.اود څرمن قیمت چونکه د چیلۍ د قیمت نه نه زیاتیږی.دغه شان دا ځناور ضرری وی. نوځکه مونږ دا قول اختیارکړلو.چه د ماتونکی ځناور جزاء به د چیلۍ د قیمت نه زیات نه وی.

**مذهب زفر** ﴿ اودامام زفر په نیزچه دهغه قیمت هرڅومره ته رسی.هم هغه به واجبيږی.دوی غیرماکول اللحم په ماکول اللحم باندې قیاس کوی.

## د حملې کولوپه دوران کښې د ماتونکی ځناورد قتل د جزاء حکم

| |
|---|
| وَإِنْ صَالَ السَّبُعُ عَلَى مُحْرِمٍ فَقَتَلَهُ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ)اوکه درنده حمله اوکړی په محرم باندې اوده قتل کړو.نوپه ده څه نشته |

**حل اللغة** ﴿١﴾ **صال، صولاً (ن)**: حمله کول ﴿٢﴾**سبع**: ماتونکې ځناور

**تشريح** ﴿ **عدم الجزاء علی قتل الصيد الصائل**﴾مسئله دا ده. که ماتونکی ځناورپه محرم باندې حمله اوکړله اوده قتل کړلو.نوپه ده به جزاء نه وی

**دلائله** ﴿١﴾دلیل دحضرت عمر ؓ اثردې.هغوی په یوماتونکی ځناور باندې حمله اوکړله.اوهغه ئې قتل کړلو.نویوه چیلۍ ئې د هدې په طور اولیږله.اودا ئې اوفرمائیل.چه مونږ په هغه باندې حمله کړې وه.ځکه مونږ چیلۍ اولیږله.یعنی مونږ پرې وړاندې والې اوکړلو.که هغه حمله کړې وه.نوبیا به په مونږ څه واجب نه وو( [2] )

﴿٢﴾ دویم دلیل دا دی.چه محرم ځناورته د تعرض کولونه منع شوی دی.اوددې نه نه دی منع شوی.که په ده حمله اوکړی.نودې به خپله دفاع نه کوی.هم دا وجه ده.چه په فواسق کښې د ضرر وهم وو.نود هغوی د ضرر لرې کولوپه وجه دهغوی دقتل اجازت ورکړې شوې دې.اوپه دې صورت کښې چه ماتونکې ځناور حمله اوکړی.نوتکلیف رسیدل یقینی دی.نودلته خوپه په درجه اولی سره د هغې د لرې

[1] خرجه الزيلعي رحمه الله نصب الراية (۱۶۸/۳)۔

[2] خرجه الزيلعي رحمه الله (نصب الراية ۱۶۸/۳)۔

کولواجازت وی.اوچونکه د درنده د ضرر لرې کولواجازت د شارع ﷺ د طرفه دې.نوځکه به د ماتونکی ځناور د قتل په صورت کښې جزاء واجب نه وی.

**مذهب زفر رحمه الله** ﴿ اوامام زفر رحمه الله فرمائی.چه په ده باندې جزاء واجب ده.

**دلیله** ﴿ دامام زفر رحمه الله دلیل قیاس دې.که اوښ په انسان باندې حمله اوکړله.اوده هغه اوښ قتل کړلو. نوپه ده باندې د هغې قیمت واجب دې.اګرچه ده د ضرر لرې کولود وجې هغه قتل کړې وی.نودغه شان دلته د ماتونکی ځناورد قتل په صورت کښې هم جزاء واجب وی.

**الجواب عنه** ﴿ په خلاف د حمله کونکی اوښ،یعنی که اوښ په چا باندې حمله اوکړله . او ده هغه اوښ قتل کړلو.نوپه ده به د هغې قیمت واجب وی.ځکه چه په دې صورت کښې د مالك د طرفه ده ته د قتل کولواجازت نه دې ملاؤ شوې.اوهرکله چه د مالك د طرفه د قتل کولواجازت نشته.نودهغه حق به هم نشی ساقط کیدې.

## د اضطرار په حالت کښې دښکارپه قتلولو د جزاء وجوب

| وَإِنِ اضْطُرَّ الْمُحْرِمُ إِلَىٰ أَكْلِ لَحْمِ الصَّيْدِ فَقَتَلَهُ فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ که لاچاره شی محرم خوړلو دښکارته او قتل ئې کړو نو په ده جزاء ده |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①**اضطر، اضطرارًا:** مجبوره کیدل، لاچاره کیدل ]

**تشریح**﴿ **وجوب الجزاء عند الإضطرار إلي الصيد**﴾مسئله دا ده.که محرم د سختې لوږې یا بل څه وجې د ښکارقتلولو ته مجبورشو.اوښکار ئې قتل کړلو.نوپه دې صورت کښې به هم په ده باندې جزاء واجب وی.

**دلیله**﴿ځکه چه شریعت محرم د ممنوعاتود احرام نه منع کړې دې.اوپه کوم صورت کښې ئې د هغې د کولواجازت ورکړې دې،نود هغې جزاء ئې هم مقرر کړې ده.دالله تعالی ارشاد دې. ﴿فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مِنْ صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ﴾ کورئ الله تعالی د عذر په وجه محرم ته د سرخرئیلو اجازت ورکړې دې.خود کفاره ئې هم مقرر کړې ده.نودغه شان دلته هم که د ښکارخوراك ته مجبور شو.نود ښکاراجازت ورته ملاویږی.خوورسره به د ښکارجزاء هم واجبیږی.دکوم تفصیل چه وړاندې تیر شوې دې.

## د بعضې ځناورو د ذبحې جواز

| وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَذْبَحَ الْمُحْرِمُ الشَّاةَ وَالْبَقَرَةَ وَالْبَعِيرَ وَالدَّجَاجَةَ وَالْبَطَّ الْكَسْكَرِيَّ اونشته حرج په دې کښې چه ذبح کړی محرم چیلئ یا غوې یا اوښه یا چرګه یا ساتلې شوې بطحه |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ①**لاباس:** هیڅ باك نشته ②**شاة:** چیلئ ③**بقرة:** غوې ④ **بعير:** اوښ ⑤ **دجاجة:** چرګه ⑥**البط الكسكري:** کورنئ بطخ

**تشریح**﴿ صورت د مسئلې ښکاره دې.

**دلیله**﴿ ځکه چه دا څیزونه دښکار نه دی.د وحشی نه کیدو په وجه،اود بطحې نه مراد هغه ده کومه چه په کورونو اوحوضونوکښې اوسی ځکه چه دا په اصل خلقت کښې مانوس دی.

## د مسروله کونترې د ذبح کولوحکم

| وَإِنْ قَتَلَ حَمَامًا مُسَرْوَلًا أَوْ ظَبْيًا مُسْتَأْنَسًا فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ که قتل ئې کړه پاموز کونتره (پیکوروالا) اویا |
|---|

ساتلي هوسۍ نوېه ده باندې جزاء ده

**حل اللغة** ﴿ ① **مسرولا:** پاموزکونتره دَ کومې په پښوچه وېښته وي ② **ظبي:** هوسۍ ③ **مستانس:** خوزيدلې

**تشريح** ﴿ **تعريف السرولة** ﴾ مسروله هغه کونتره ده.د کومې په پښو چه وېختـه اووزرې ښه ډيرې وې.لکه چه دې سروايل يعنې پرتوګ اغوستې دې.دې ته پاموز وائي.

**قتل الحمامة السرولة** ﴾ مسئله دا ده. که محرم مسروله کونتره قتل کړه.نوېه ده باندې جزاء واجب ده.(١)

**دليله** ﴾ دليل دا دې.چه کونتره د خپل خلقت اوفطرت په اعتبارسره ځنګلي وي. او د الوتو په وجه خپل حفاظت هم کولې شي.اګرچه په الوتوکښې چالاکه نه وي.

**وجوب الجزاء بذبح الظبي المانوس** ﴾ مسئله دا ده.که محرم بلده اوسۍ ذبح کړله.نوېه ده به جزاء واجب وي.

**دليله** ﴾ ځکه چه اوسۍ د خپل خلقت په اعتبارسره صيد دې.اوددې د خلقو سره مانوس کيدل عارضي څيزدې.نوځکه دا مانوس کيدل ددې ښکاري کيدل نه باطلوي.

**نظيره** ﴾ لکه اوښ يوکورنې څناوردې.خوکه دا سرکشه شي.نوددې دا سرکشي د دې کورنې والې نه باطلوي.چه په دې د ځنګلي حکم اولګولې شي. او په محرم باندې لکه د ښکاري څناوردحرمت حکم نه اخلي.نودغه شان دلته د ساتلې شوې اوسۍ حکم هم حيثيت هم نه بدليږي.

## د محرم د ذبح حکم

وَإِن ذَبَحَ الْمُحْرِمُ صَيْدًا فَذَبِيحَتُهُ مَيْتَةٌ لَا يَحِلُّ أَكْلُهَا او کله چه محرم ښکار ذبح کړونودده ذبيحه مرداره ده خوراك ئې حلال نه دې.

**حل اللغة** ﴿ ① **ذبح،ذبحًا (ف):** حلالول ② **ميتة:** مرداره

**تشريح** ﴿ **حکم ذبيحة المحرم لغير المحرم** ﴾ مسئله دا ده. که محرم د ښکارڅناور ذبح کړلو. نودده ذبيحه مرداره ده.اوددې خوراك د حلال سړي دپاره هم جائز نه دې. (٢)

**دلائله** ﴾ ① دليل دا دې.چه ذبح يومشروع فعل دې.اود محرم ذبح غيرمشروع ده.ځکه چه الله تعالى فرمائيلي دي. ﴿لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ﴾ يعنې تاسومه قتل کوئ ښکارپه داسې حال کښې چه تاسو په احرام کښې ئې.ګورئ په دې آيت کښې الله تعالى د محرم فعل ته قتل وئيلې دې.ذبح ئې نه ده وئيلې.نوځکه به د محرم ذبيحه ذبح نه وي.لکه مجوسي ذبح اوکړي.نوهغې ته ذبح نشي وئيلې.ځکه چه مجوسي د ذبح اهل نه دې

② اوبله دا چه د څناور د بدن وينه پليته وي.نودا وينه لرې کول ځکه ضروري دي.چه دده غوښه د خوراك قابله شي.اود غوښې اووينې په مينځ کښې امتياز کول ډيرګران کاردې. نوددې امتياز پيدا کولودپاره ذبح مشروع ددې قائم مقام کړې شوه.اوداسې اووئيلي شو.که په مشروع طريقه ذبح اونشوه.نووينه د غوښې نه جدا نشو.اوددې غوښه حرامه شوه.نوهرکله چه په مشروع طريقه ذبح معدوم شوه.نود غوښې حلالوالې هم موجود نشو.حاصل دا چه هرکله د محرم ذبح مشروع نشوه.نودده ذبيحه

(١) **مذهب مالك في قتل الحمام:** - امام مالك رحمه الله فرمائي.چه په جزاء واجب نه ده.

(٢) **مذهب الشافعي رحمه الله:** - امام شافعي رحمه الله فرمائي.که محرم د غيرمحرم دپاره ذبح د ښکار اوکړله.نود دغه غيردپاره دده ذبيحه خورل حلال دي.

مرداره شوه.اود مرداري خوړل د هيڅا دپاره جائزنه وی.نودغه شان د محرم د ذبيحې خوراك هم د هيڅا دپاره جائزنه دي.

## دحلال د ذبح شوی ښكارد محرم دپاره خوراك

| وَلَابَأْسَ بِأَنْ يَأْكُلَ الْمُحْرِمُ لَحْمَ صَيْدٍ اصْطَادَهُ حَلَالٌ وَذَبَحَهُ اوخه باك نشته په دې كښې چه اوخوري محرم غوښه د هغې ښكار چه كړې وی حلال او هغه ئې ذبحه كړې وی. إِذَا لَمْ يَدُلَّهُ الْمُحْرِمُ عَلَيْهِ، وَلَا أَمَرَهُ بِصَيْدِهِ كله چه نه وی خودلې ورته محرم اونه ئې ورته دښكار حكم كړې وی. |
|---|

**حل اللغة** ﴿۱﴾ **لاباس**: هيڅ حرج نشته ﴿۲﴾ **اصطاد، اصطياداً**: ښكاركول ﴿۳﴾ **لم يدل، دل، دلالة (ن)**: لارخودنه كول ﴿۴﴾ **فيحمل، حمل، حملاً (ض)**: اوچتول، محمول كول ]

**تشريح** ﴿ **عدم وجوب الضمان بأكل صيدغيرالمحرم** ﴾ مسئله دا ده. كه غيرمحرم كس ښكار اوكړلو.اوهغه ئې ذبح كړلو.اوبيا ئې په محرم باندې اوخوړلو.نوپه محرم باندې څه ضمان نه واجبيږي.خوپه دې شرط چه نه ورته محرم دلالت كړې وی.اونه ئې ورته حكم كړې وی ([1])

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه يوځل صحابه كرامو رضي الله عنهم دهغه ښكارپه باره كښې بحث شروع شو.كوم چه د محرم دپاره شوې وی.په دې كښې د صحابو رضي الله عنهم آوازونه اوچت شول.نبی په خپله حجره مباركه كښې په خوب اوده وو.نو بيدار شو.اوبهرته راووتلو.تپوس ئې اوكړلو.چه تاسو په څه كښې بحث كوئ.صحابو رضي الله عنهم ورته توله واقعه بيان كړه.نونبی ﷺ اوفرمائيل.«لابأس به»([2]) يعني دې په خوراك كښې څه باك نشته.

**الروايتان في حكم الدلالة على الصيد** ﴿ صاحب هدايه رحمه الله فرمائيلی دی.چه امام قدوری رحمه الله د دلالت نه كولوشرط لګولې دې.ددې نه دا معلوميږي.كه محرم غيرمحرم ته د ښكاركولودلالت كړې وی.نوپه دې صورت كښې د محرم دپاره دهغه ښكار خوراك جائزنه دې.خومتاخرينومشائخو رحمهم الله فرمائيلی دی.چه د دلالت په صورت كښې دوه روايتونه دی.﴿۱﴾ يوروايت كښې د محرم دپاره دهغې غوښه خوړل حرام دی.دا روايت دامام طحاوی رحمه الله دی.﴿۲﴾ اوپه دويم روايت كښې ورله دهغه ښكارخوراك جائزدې.دا روايت د ابوعبدالله جرجانی رحمه الله دې.د حرمت د روايت دليل دحضرت ابوقتاده رضي الله عنه حديث دې.«هل أعنتم هل دللتم هل أشرتم»كوم چه ددې باب په اول كښې په تفصيل سره تيرشوې دې.

## د غيرمحرم دپاره د حرم دښكارذبح كولوحكم

| وَفِي صَيْدِ الْحَرَمِ إِذَا ذَبَحَهُ الْحَلَالُ الْجَزَاءُ او دحرم په ښكار كښې كله چه ذبح كړی دا حلال ددې جزاء ده |
|---|

**حل اللغة** ﴿۱﴾ **صيد**: ښكار ﴿۲﴾ **ذبحه، ذبح ذبحاً (ف)**: حلالول

**تشريح** ﴿ **وجوب الضمان على غيرالمحرم بصيدالحرم** ﴾ مسئله دا ده.كه غيرمحرم د حرم ښكارذبح كړلو.نوپه هغه باندې دهغې د جزاء ده صاحب د هدايه په هدايه كښې د هغې تفسير په قيمت سره كړې دې.اوهغه قيمت به د حرم په فقيرانوباندې صدقه كوی.ځكه چه په حرم كښې كوم كس اوځناور اوسيږي.هغه ته

([1]) **مذهب مالكية**:- امام مالك رحمه الله فرمائی.كه غيرمحرم په دې اراده ښكار اوكړلو.چه دا به په محرم باندې خورم.اومحرم د هغې نه خوراك اوكړلو.نوپه دې صورت كښې په محرم باندې دخوړلې شوې غوښې ضمان واجب دې.برابره ده كه محرم ورته د ښكارحكم كړې وی اوكه نه.

([2]) من أثرطلحة بن عبيدالله رحمه الله اخرجه محمد في كتاب الآثاركذا في نصب الراية (۳/۱۷۲)۔

امن ملاؤ شوي دي.اوده چه هغه ذبح کړلو.نودهغه په امن کښې ئې خلل راوستلو.نوضمان به پري واجب وی.

**دليله**>دليل د نبی ﷺ هغه اوړد حديث دې.په کوم کښې چه هغوی فرمانيلی دی.د حرم ګياه به نشی کټ کولی.اونه به ددې ښناورشړلې اونه غصه کولې شی.([1]) وجه د استدلال دا ده. چه هرکله د حرم د ښناور شړل اوغصه کول جرم دې.نوذبح خو به ئې په درجه اولی سره جرم وی.نوددې د حرمت باوجودکه غيرمحرم کس د حرم ښناور ذبح کړلو.نودحرم د تقدس اواحترام د وجې به په هغه باندې دهغې قيمت واجب وی.اوهغه به دحرم په فقيرانوباندې صدقه کولې شی.

**السوال**>په دې باندې يوسوال دا کيدې شی.چه ښکارلکه څنګه چه د حرم د وجې مستحق دامن دې.دغه شان د احرام د وجې هم مستحق د امن دې.نوکه يومحرم د حرم ښکارقتل کړی.پکارده چه په ده باندې دوه کفارې واجب وي.يود حرم د تقدس د پائمال کولود وجې اوبله د احرام دتقديم پائمال کولو د وجې.حالانکه داسې نه ده.څکه چه په ده باندې يوه کفاره لازميږی.

**الجواب**>ددې جواب دا دې.چه داحرام تقدس زيات قوی دې.په نسبت سره دحرم تقدس ته.هم دا وجه ده چه په محرم باندې د حرم اوغيرمحرم دواړو ښکارحرام دې.نوهرکله چه د احرام تقدس زيات قوی اودحرم د هغې په نسبت ضعيف.نودحرم تقدس د احرام تابع شو.اوپه ده باندې يوه کفاره هم د دې په وجه لازميږی.

## دحرم د ګياه يا وونې کټ کولوحکم

| وَإِنْ قَطَعَ حَشِيشَ الْحَرَمِ أَوْ شَجَرَةً الَّذِي لَيْسَ بِمَمْلُوكٍ که دحرم وابنه ئې پريکړو ياداسې ونه چه دچا ملك نه وه وَلَا هُوَ مِمَّا يُنْبِتُهُ النَّاسُ فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ اوهغه دداسې قسم نه وه چه څوك ئې کری نه نويده ئې قيمت واجب دې. |
|---|

**حل اللغة** >① **حشيش**: وابنه ② **ينبته**: راټوکول

**تشريح**> **وجوب القيمة بقطع الالحشيش والشجر**>که چا د حرم ګياه يا هغه وونه چه څوك ئې نه کری.بلکه په خپله راټوکيږی.کټ کړله.نوپه ده به د هغې د قيمت واجب وی.البته دا ده.که هغه ګياه يا وونه اوچه شوې وی.نوبيا د هغې په کټ کولوکښې قيمت نه واجبيږی.

**دليله**>دليل دا دې.چه کومه ګياه يا وونه په حرم کښې وی.نودحرم دحرمت د وجې دهغې حرمت ثابت شو.څکه چه د الله تعالی رسول الله ﷺ فرمانيلی دی.نه به شی کټ کولې شنه ګياه ددې اونه به ددې غنې ماتولې شی.([2])(**الخلاء**)شنې ګياه ته وائی.

---

[1] ) من حديث ابي هريرة اخرجه البخاری في العلم باب ۳۹ رقم ۱۱۲ ومسلم في الحج رقم ٤٤٧ وابوداود في المناسك باب ۸۹ رقم ۲۰۱۷ والنسائي في المناسك باب ۱۲۰ رقم ۲۶۹۲ وابن ماجه في المناسك ۱۰۳ رقم ۳۱۰۶ والدارمی في البيوع باب ۶۰ واحمد في المسند (۲۳۸/۲)۔

[2] ) من حديث ابي هريرة ﷺ اخرجه البخاری في العلم رقم ۱۰۹ ومسلم في الحج في الحج رقم ۲٤۱٤ وابوداود في المناسك رقم ۲٤۱۵ وابن ماجه في الديات رقم ۲۶۱٤ واحمد في مسندالمكثرين رقم ۶۹٤٤ والدارمی في البيوع ۲٤۸۷)۔

**په قارن د پوجنايت په کولو د دوو قربانو لزوم**

| وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلَهُ الْقَارِنُ مِمَّا ذَكَرْنَا أَنَّ فِيهِ عَلَى الْمُفْرِدِ فَعَلَيْهِ دَمَانِ هرهغه فعل کوم چه قارن اوکړی ددغونه په کوموکښې چه په مفرد يو دم دې.په قارن دوه دمونه دی دَمٌ لِحَجَّتِهِ وَدَمٌ لِعُمْرَتِهِ يو دم دحج دپاره اويو دم دعمرې دپاره. |
|---|

**حل اللغة** ‹ ①**فعله، فعل فعلاً (ف)**: کول، جوړول

**تشريح** ‹ **تعدد الدم علي القارن** ‹کوم جنايات چه ذکرشو. ددې په کولوپه مفردبالحج باندې که يوه قرباني واجبيږي.نوپه قارن به دوه قربانئ واجبيږي.يود حج د احرام د وجې اوبله د عمرې داحرام په وجه، (١)

| (إِلَّا أَنْ يَتَجَاوَزَ الْمِيقَاتَ مِنْ غَيْرِ إِحْرَامٍ بِالْعُمْرَةِ ثُمَّ يُحْرِمُ الْحَجَّ فَيَلْزَمُهُ دَمٌ وَاحِدٌ خو داچه تيرشي دميقات نه بغير د احرام دحج يا دعمرې نه. نوپده به يودم لازم وی. |
|---|

**تشريح** ‹ **صورة وجوب الدم الواحد علي القارن** ‹صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه البته يوصورت داسې دې.چه په هغې زمونږ په نيزهم په قارن باندې يودم واجبيږي.هغه دا چه قارن بغيراحرامه د ميقات نه تيرشي.

**دليله** ‹ دليل دا دې.چه د ميقات نه يواحرام واجبيږي.اود يواحرام په روستو کولو سره يودم واجبيږي دود نه واجبيږي.

**مذهب زفر** رحمه الله ‹اوامام زفر رحمه الله په دې صورت کښې په قارن باندې دوه قربانئ واجبوی.

**دليله** ‹ دامام زفر رحمه الله دليل دا دې.چه ده د ميقات نه د حج اوعمرې دواړه احرامونه روستوکړی دی.نود هر يوپه بدله کښې به پرې يودم واجبيږي.

**د دوو محرمانود ښکارپه قتل کښې د شرکت حکم**

| (وَإِذَا اشْتَرَكَ مُحْرِمَانِ فِي قَتْلِ صَيْدِ الْحَرَمِ فَعَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْجَزَاءُ كَامِلًا) هرکله چه شريك شو دوه محرمان ديو حرم ښکارپه قتل کښې نوپه هر يو ددې دواړو باندې پوره جزاء ده |
|---|

**حل اللغة** ‹ ①**اشترک، اشتراکاً**: شريکيدل ②**دلالة**: لارخودنه ③**جناية**: جرم، قصور ]

**تشريح** ‹ مسئله ښکاره ده.

**د دوو غير محرم کسانود پوښکار قتلولوحکم**

| وَإِذَا اشْتَرَكَ حَلَالَانِ فِي قَتْلِ صَيْدِ الْحَرَمِ فَعَلَيْهِمَا جَزَاءٌ وَاحِدٌ اوکله چه دوه حلال سړی په يوښکار دحرم کښې شريك شو قتل ئې کړو نوپه دواړو يو جزاء ده. |
|---|

**تشريح** ‹ **وجوب الجزاء الواحد علي غيرالمحرمين** ‹مسئله دا ده.که دوه غيرمحرموکسانود حرم يوښکار په شريکه قتل کړلو.نوپه دواړه باندې يوه جزاء واجب ده.

---

(١) **مذهب الشافعي** رحمه الله:- امام شافعی رحمه الله فرمائی چه په قارن به هم يوه قرباني واجبيږي.امام مالك اوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائلين دی.
بنياد د اختلاف دا دې.چه دهغوی په نيزقارن په يواحرام سره محرم دی.نوځکه پرې يودم واجبيږي. او زمونږ په نيزقارن په دوو احرامونومحرم دې.يودحج اوبل د عمرې نود جنايت په ارتکاب به قربانئ هم دوه واجبيږي.دلائل په باب القران کښې تيرشوی دی.

**دلیله>** ځکه چه په دې صورت کښې ضمان د محل یعنی د ښکاربدل دې.د جنایت جزاء نه ده.اومحل یعنی ښکاریودې.نوجزاء به هم یوه واجبیږی.

**نظیره>** لکه څنګه چه دوه کسان په شریکه یوکس په خطا باندې قتل کړی.نوپه دواړو باندې یودیت واجبیږی.اوکفاره په دواړوکښې په هریوواجبیږی.ځکه چه دیت جزاء د محل ده.اوکفاره جزاء د فعل ده.یعنی مقتول یودې.نودیت به یوواجبیږی.اوفعل د قتل د دووکسانودې.نوکفاره به په هریوباندې واجبیږی

## دمحرم د خرڅولو اواخستلوحکم

| وَإِذَابَاعَ الْمُحْرِمُ صَيْدًا أَوِابْتَاعَهُ فَالْبَيْعُ بَاطِلٌ اوکه محرم ښکار خرڅ کړو یانې واخستلو نوبیع به ئې باطله وی |
|---|

**حل اللغة >** ① **باع،بيعًا(ض):** خرڅول ② **ابتاع، ابتياعًا:** اخستل

**تشریح> بطلان بيع المحرم>** مسئله دا ده.چه دمحرم دپاره دښکارخرڅول اواخستل دواړه ناجائزاوباطل دی.

**دلیله>** ځکه چه محرم به یا ژوندې ښکارخرڅ کړې وی اویا به ئې د ذبح کولونه پس خرڅ کړې وی.که ژوندې ئې خرڅ کړې وی.نوده د ښکارامن ته تعرض کړې دې.اودهغه امن ئې زائله کړې دې.اودا جائزنه دی.اوکه د ذبح کولونه پس ئې خرڅ کړې وی.نود محرم ذبیحه مرداره ده.نودا د مردار بیع ده.اود مردار بیع باطله ده.ځکه مونږ وایو.چه په دواړو صورتونوکښې د محرم بیع باطل ده.داسې هم وئیلې شی.چه ښکارد محرم په حق کښې حرام لعینه دې.نودا مال متقوم نشو.اودداسې مال بیع چه متقوم نه وی.باطله ده.نودمحرم د ښکاربیع هم باطله شوه.

## د احصار بیان

| بَابُ الْإِحْصَارِ |
|---|

دا باب داحصارپه بیان کښې دې.

**تشریح> معنى الاحصار>** داحصارمعنی ده بندول اود شریعت په اصطلاح کښې احصار دا دې.چه محرم د ویرې یا دشمن یا بیمارئ په وجه د عمرې یا د حج د افعالو پوره کولونه ایسارشی.چونکه احصارپه احرام کښې جنایت دې.ځکه ئې دا د باب الجنایات نه په جدا باب کښې ذکرکړلو.

## دعذرد وجې د ایساریدوحکم

| إِذَاأُحْصِرَالْمُحْرِمُ بِعَدُوٍّ أَوْأَصَابَهُ مَرَضٌ يَمْنَعُهُ مِنَ الْمُضِيِّ کله چه منع کړې شو محرم په وجه د دښمن یا اخته شودې په بیمارئ کښې چه منع کړې شو د تیریدونه جَازَلَهُ التَّحَلُّلُ نوده دپاره جائز دی حلالیدل. |
|---|

**حل اللغة >** ① **احصر،احصارًا:** بندول ② **عدو:** دښمن ③ **مضى:** تیریدل

**تشریح** ﴿ **جوازالتحلل بسبب الإحصار** ﴾ ① که محرم د دشمن د ویرې یا د بیمارئ د وجې د حج یا عمرې دافعالو پوره کولونه ایسارکړې شي.نودده دپاره د حج یاعمرې د افعالوپوره کولونه بغیرحلالیدل جائز دي. (۱)

**دلائله** ﴾ دلیل دا دې.چه دا آیت دبیمارئ د وجې د ایساریدو په باره کښې نازل شوې دې.اوپه دې باندې د تولواهل لغت اجماع ده.د ژبې خاوندان وائي.چه احصار د مرض په وجه بندیدو او ایساریدو ته وائي.اود حصر لفظ د دشمن د وجې بندیدو ته وائي.نودمرض د وجې احصار دآیت نه ثابت شو.اود دشمن د وجې حصر د حدیث یعني واقعه حدیبیه نه ثابت شو.نواحصارددشمن سره خاص نشو. لکه څنګه چه امام شافعي فرمائي.بلکه ددشمن اومرض دوجې هم احصار کیدې شي.

② دا دویم دلیل دې.که مونږ دا اومنو.چه دا آیت د دشمن په باره کښې نازل شوې دې.نوبیا دا وایو.چه مرض د دشمن د ویرې په حکم کښې دې.اوعلت د اتحاد دحکم دا دې.چه د د حج اوعمرې د افعالو پوره کیدو نه وړاندې د حلالیدو اجازت د هغه تکلیف لرې کول دي.کوم چه د زیاتې زمانې پورې د احرام په پابندوکښې ایساریدل دي.نودغه علت لکه څنګه چه د دشمن د ویرې د وجې په ایساریدو کښې دې.نود بیمارئ په وجه د احرام په پابندوکښې ایساریدوکښې هم دې.بلکه د مرض په وجه د احرام په پابندو باندې صبر کول د دشمن د احصارنه زیات دې.څکه چه په مرض کښې د علاج اودوائي او دپښولاسوکمزوري ښکاره ده.نوچه د معمولي حرج لرې کولودپاره د دشمن ویره احصار معتبر ګنډلې شي.نودمرض په وجه به احصار خامخا معتبر ګنډلې شي.

**د حلاليدودپاره دحرم ته دقربانئ ليږل**

| وَقِيلَ لَهُ ابْعَثْ شَاةً تُذْبَحُ فِي الْحَرَمِ اوده ته به اوویلې شي چه یوه چیلئ اولیږه چه په حرم کښې ذبح کړې شي وَوَاعِدْ مَنْ يَحْمِلُهَا يَوْمًا بِعَيْنِهِ يَذْبَحُهَا فِيهِ ثُمَّ تَحَلَّلَ او وعده دې مقرر کړی دهغه چا سره د چا په لاس چه ئې لیږی د خاص ورځې چه په هغې کښې ئې ذبح کړی بیا دې حلال شي. |
|---|

**حل اللغة** ﴾ ① **جاز، جوازًا(ن)**: جائز کیدل ② **تحلل**: حلالیدل ③ **ابعث، بعث بعثًا(ف)**: لیګل

---

(۱ **مذهب الشافعي** رحمه الله:- امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه احصار صرف د دشمن د وجې معتبردې.د بیمارئ د وجې احصار معتبرنه دې.دا د امام مالک رحمه الله قول هم دې.

**دلائله** ﴾ ① دامام شافعي رحمه الله دلیل د الله تعالی ارشاد ﴿فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ﴾ دې.دا آیت د صحابه کرامو رضي الله عنهم په باره کښې د صلح حدیبیه د عمرې په موقع باندې نازل شوې وو.چه دوی د عمرې دپاره احرام تړلې وو.خود دشمن د وجې د عمرې پوره کولونه عاجز شو.نوالله تعالی دا آیت نازل کړلو.چه حاصل ئې دا دې.که تاسو بند شوئ.(دعمرې پوره کولونه)نو تاسوته چه کومه قرباني آسانه وي.نوهغه قرباني کړی.اوځان حلال کړئ.نبي ﷺ اوصحابه کرامو رضي الله عنهم ددې آیت مطابق قربانیانې اوکړلې.اوځانونه ئې حلال کړل.دا آیت د دشمن د ویرې د وجې نه د احصار په باره کښې نازل شوې دې.د بیمارئ وغیره د وجې نه دې نازل شوې. معلومه شوه.چه احصارصرف د دشمن د ویرې د وجې معتبردې.② دویم دلیل دا دې.چه د احصار په وجه که قرباني اوکړې شي.نود دشمن ویرې ختمیدې شي.خود قربانئ په وجه بیماري نه ختمیږي.نومعلومه شوه.چه احصار صرف د ویرې سره خاص دې.

**تشریح > بعث الهدي >** مسئله، که چه محصرته د حلالیدواجازت ملاؤ شو.نوهغه دې دهدی چیلی: د قربانۍ دپاره حرم ته اولیږی.اودکوم کس په لاس چه ئې لیږی.نوهغه سره دې د قربانۍ دپاره یوخاص وخت مقرر کړی.چه په فلانۍ ورځ به دا قربانی اوکړي.بیا که چه هغه وخت شی.کوم چه ورته ده یاد کړې وی.نوځان به حلال کړی.

**دلائل سوق الهدی إلي الحرم >** ① علامه مرغینانی رحمه الله فرمانیلی دی.چه دهدی څاروي به حرم ته خکه لیږی.چه قربانی وینه تویول دی.اودا په هغه وخت کښې عبادت ګنړلي شی.چه دده دپاره د وخت اوځائي تخصیص وی.نوکه په دې دواړو کښې بوهم نه وی.یعنې یا په خپل وخت کښې نه وی.یاپه خپل وخت کښې وی خوپه خپل محل یعنی حرم کښې نه وی.نودا قربانی عبادت نه دې.اوچه عبادت نشو.نومحرم پرې حلالیدې هم نشی

په قرآن پاك کښې هم د محل تعین ته اشاره موجود ده.الله تعالی فرمانیلی دی. ﴿ وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ ﴾ په آیت کښې دمحل تفسیر شوې دې. ﴿ ثُمَّ مَحِلُّهَا إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴾ اودلته د بیت نه مراد عین کعبه نه ده.خکه چه په عین کعبه کښې وینه نشی بیولې. بلکه حدود د حرم دی.اوس د آیت ترجمه دا شوه.چه سراوخرائي.نومه حلالیږئ.ترڅوچه هدی حرم ته نه وی رسیدلې.ددې نه هم معلومه شوه.چه د هدی څاروي په حرم کښې دننه ذبح کول ضروری دی.②بله د چه په قرآن کښې ورته هدی ونیلي شوی دی.اوهدی هغه څاروی ته ونیلی شی.چه په حرم کښې قربانی کولې شی.

**مذهبان في تعين وقت الذبح >** دا یاد ساتی: ①چه د هدی د ذبح کولودپاره د ورځ مقرر کول د امام ابوحنیفه رحمه الله نیز دې.خکه چه ددوی په نیزباندې د دم احصاردپاره د شریعت د طرفه وخت مقرر نه دې .نود ورځې تعین به کوی.چه محصرپه هغه ورځ ځان حلال کړی.

②اوصاحبینو رحمهما الله په نیزد ورځ مقرر کولوضرورت نشته.خکه چه ددوی په نیزدم احصاردپاره یوم النحرمقرر شوې ده.البته که د عمرې نه محصر وی.نوپه دې صورت کښې د صاحبینو رحمهما الله په نیزهم د ورځ مقررکول ضروری دی.خکه چه دعمرې د قربانۍ دپاره څه وخت مقرر نه دې. (1)

**متی يتحلل؟ >** هرکله چه محصرهدی اولیږله.نواوس ده ته اختیاردې.که هم په هغه ځائې کښې ایساریږی.په کوم ځائې کښې چه بند شوې وی.اوکه وطن ته واپس کیږی.البته ځان به هله حلالوی.کله چه هغه مقرره ورځ راشی.کومه چه ددوی متعین کړې وی.اود ده یقین اوشی.چه هدی ذبح شوې ده.

## دقارن دوه قربانۍ لیږل

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَ قَارِنًا بَعَثَ دَمَيْنِ اوکه محصر قارن وو.نو دوه هدی به لیږی |

**تشریح > بعث القارن دمین >** مسئله دا ده چه قارن به دوه دمه لیږی

**دلیله >** خکه چه د دوه احرامونو نه حلالیدو ته احتیاج دې.

## د احصارد قربانۍ دپاره دحرم تخصیص

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ دَمِ الْإِحْصَارِ إِلَّا فِي الْحَرَمِ اوجائز ندی ذبح کول د دم احصار مګر په حرم کښې وَيَجُوزُ ذَبْحُهُ |

---

(1) مذهب الشافعي رحمه الله:- امام شافعی رحمه الله فرمانی.چه د هدی د حرم پورې تخصیص نشته.

قَبْلَ يَوْمِ النَّحْرِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (۱) اوجائز دی ذبحه کول نې رومبې ديوم نحرنه په نزد امام ابوحنيفه صاحب. وَقَالَا لَا يَجُوزُ الذَّبْحُ لِلْمُحْصَرِ بِالْحَجِّ إِلَّا فِي يَوْمِ النَّحْرِ او صاحبين وائی چه جائزنه دې محصر بالحجر دپاره ذبح کول مګر د يوم النحر په ورځ باندې.

**حل اللغة** ﴿① **يجوز، جوازًا (ن)** : جائز کيدل ② **ذبح، ذبحًا**: ذبح کول

**تشريح** ﴿ **وقت دم المحصر بالحج** ﴿ د احصارقرباني دحرم پورې خاص ده.په بل خانې کښې د احصارقرباني کول جائزنه دی.البته د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدم احصارد يوم النحرنه وړاندې جائز ده. اوصاحبين رحمهما الله فرمائی.چه د محصربالحج دپاره دم احصارصرف په يوم النحرجائزده.د دې نه وړاندې جائزنه ده.خلاصه دا شوه.چه د محصربالحج دپاره د امام ابوحينفه اوصاحبينو رحمهم الله درې واړو په نيزد حرم تخصيص شته.البته د دم احصاردپاره دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد وخت تخصيص نشته

**مذهب الصاحبين** ﴿ .اود صاحبينو رحمهما الله په نيزورته يوم النحر خاص ده. اود محصربالعمرې دپاره په اتفاق سره د وخت تخصيص نشته.بلکه د صاحبينو رحمهما الله په نيزهم د يوم النحر نه وړاندې ذبح جائزده.

**دليله** ﴿ دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه دم احصاردم جنايت دې.هم دا وجه ده. چه لکه د دم جنايت په شان د محصردپاره ددې نه خوارك كول جائزنه دی.بلکه دا د فقيرانوحق دې. او کومې قربانۍ چه د جناياتود جزاء په شکل کښې وی.هغه په اتفاق سره په مکان يعنی حرم پورې خاص دی. خوپه يووخت پورې خاص نه وی.بلکه د جناياتوقربانۍ په هروخت کښې کولې شی.دغه شان د احصار دم هم د يوم النحر پورې خاص نه ده.

**دليلهما الاول** ﴿ ①دصاحبينو رحمهما الله دليل په دم تمتع اودم قران باندې قياس دې.لکه څنګه چه دم تمتع اودم قران په يوم النحر پورې خاص دې.دغه شان به دم احصارهم په يوم النحرپورې خاص وی.

**الجواب عنه** ﴿ په خلاف د دم قران اودم تمتع څکه چه دا دواړه دم نسك اودم شکر دی. نوپه يوم النحرپورې به خاص وی.

**دليلهما الثاني** ﴿ دويم دليل د صاحبينو رحمهما الله په حلق باندې قياس دې.يعنی لکه څنګه چه د قارن اومتمتع د حلق دپاره يوم النحر خاص ده.دغه شان به د دم الاحصاردپاره هم يوم النحرخاص وی.اوعلت مشترکه په دواړو کښې دا دې.چه لکه څنګه په حلق سره حلاليدل راځی.دغه شان د دم الاحصارپه ذبح سره هم.

**الجواب عنه** ﴿ اوپه خلاف د حلق څکه چه حلق داسې محلل دې.چه په خپل وخت پورې خاص دې.اود حج په افعالوکښې چه رکن اعظم يعنی وقوف عرفات دې.نوهغه په دې حلق باندې پوره کيږی.حاصل دا شو.چه تحلل په دوه قسمه دې.①يوهغه تحلل چه په خپل وخت کښې وی.②اوبل هغه تحلل چه د خپل وخت نه وړاندې وی.نوحلق تحلل دې په خپل وخت کښې.اود دم احصار تحلل دې د خپل وخت نه وړاندې.نوچه دا فرق موجود وی.د دم احصارپه حلق باندې قياس څنګه تيك كيدې شی.

وَيَجُوزُ لِلْمُحْصَرِ بِالْعُمْرَةِ أَنْ يَذْبَحَ شَاةً مَتَى شَاءَ اوجائزدی دمحصر بالعمره دپاره چې ذبح کړی چيلئ کله چې يې خوښه شي

(۱) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الدر المختار(۲\۲۵۳) والبحرالرائق (۳\۹۷) والهندية (۱\۲۵۶) نقلاً عن القول الراجح(۱\۲۳۸)_

**عدم تعين وقت الذبح للمحصر بالعمرة** ﴾ په شريعت کښې د عمرې دپاره وخت معين نه دې نو که معتمر د عمرې کولو نه د څه عذر په وجه بند شو.نو کله چې اوغواړي چيلئ دې ذبح کړي.د لسمې ذوالحجې سره خاص نه ده.

**دليله** ﴾ **کما اعتمر النبي صلى الله عليه وسلم قال اربع عمرة الحديبية في ذي القعدة حيث صده المشركون))** نبی کريم ﷺ په شپږم کال د هجرت په مقام حديبيه کښې د عمرې کولو نه بند شوي وو.نو نبی کريم ﷺ او صحابه کرامو هم په هغه موقع ذبح کړې وه حالانکه دغه د ذوالقعدې مياشت وه.نو معلومه شوه چې د محصر بالعمره د ذبحې دپاره د لسمې ذوالحجې تعين نشته.([1])

## په محصربالحج باندې دحج اوعمرې د قضا وجوب

| وَالْمُحْصَرُ بِالْحَجِّ إِذَا تَحَلَّلَ فَعَلَيْهِ حَجَّةٌ وَعُمْرَةٌ اومحصر بالحج کله چه احرام پرانيزی نوپده حج او عمره دی. |
|---|

**حل اللغة** ﴾ ① **تحلل، تحللاً**: حلاليدل ]

**تشريح** ﴾ **وجوب الحج والعمرة علي المحصربالحج** ﴾ مسئله،که يوکس دحج نه ايسارشو.اوهدی ئې اوليږله. او ان ئې حلال کړلو.نوپه ده باندې دحج اوعمرې دواړو قضا واجب ده.

**دلائله** ﴾ دغه شان ① دحضرت ابن عباس اوابن عمر رضي الله عنه نه نقل شوی دی.فرمائی (**قال رسول الله ﷺ من فاته العرفة بليل فقدفاته الحج فليحلل بعمرة وعليه الحج من قابل**) يعنی رسول الله ﷺ فرمائيلی دی. چه د چانه په ليلة النحر کښې هم وقوف عرفات فوت شو.نودده نه حج فوت شو.نوهغه دې دعمرې داحرام نه خان حلال کړي.اوپه دهٔ باندې په راړون کال کښې حج فرض دې.ددې حديث نه معلومه شوه.چه دچانه حج فوت شی.نوپه ده باندې حج اوعمره دواړه دی.اومحصرهم د فائت الحج په معنی کښې دې.نوپه ده به هم حج اوعمره دواړه وی.② دويم دليل دا دې.چه په محصرباندې حج څکه واجب دې.چه د ده په حج کښې شروع صحيح وه.خوچه هغه ئې فاسد کړلو.نودهغې قضا به پرې واجب وی.اوعمره پرې څکه واجب ده.چه دې د هغه چا پشان دې.چه دهغه نه حج فوت شوي وی.اوپه هغه باندې دحج د قضا سره عمره هم واجب ده.نودغه شان به په محصرباندې هم عمره واجب وی.

## د محصربالعمره باندې دعمرې قضا

| وَعَلَى الْمُحْصَرِ بِالْعُمْرَةِ الْقَضَاءُ اوکوم سړې چه دعمرې محصرشو پده قضا ده. |
|---|

**حل اللغة** ﴾ ① **يتحقق، تحققا**: ثابتيدل ]

**تشريح** ﴾ **تحقق الإحصارفي العمرة** ﴾ که يوکس د عمرې نه بندکړې شی.نوپه ده باندې قضا واجب ده.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلی دی.چه زمونږ په نيزپه عمره کښې احصارمتحقق کيږی.([2])

**دلائله** ﴾ ① دليل دادې.چه نبی ﷺ اوصحابه کرام رضي الله عنه دحديبيه په واقعه کښې د عمرې نه بند شوی وو.اوهغوی د هغې عمرې قضا راوړله.([1]) اوپه عمرة القضاء سره مشهوره شوه.نومعلومه شوه.چه په عمره کښې هم احصارمعتبردې

---

[1]) كذا في بخاری باب كم اعتمر النبي ﷺ )-

([2] **مذهب مالک** رحمه الله:- د امام مالك رحمه الله په نيزنه متحقق کيږی.

② دویم دلیل دا دي.چه حلالیدل مشروع شوی دی.دحج لرې کولودپاره،اودا خبره د عمرې په احرام کښې هم موجود ده.نوپه عمره کښې هم احصارمتحقق شو.اوچه احصارمتحقق شو.نود عمرې د احرام پرانستلوپه وجه به پرې قضا واجب وی.لکه دحج قضا چه لازم وی.

**په قارن دیوحج اودوو عمرو قضا وجوب**

| وَعَلَى الْقَارِنِ حَجَّةٌ وَعُمْرَتَانِ اوپه قارن یوحج او دوه عمرې دی. |
| --- |

**حل اللغة** ﴿ ①**قارن**: ملاوونکې ②**بنا، تبیینًا**: بیانول ]

**تشریح** ﴿ مسئله ښکاره ده.

**دلیله** ﴿ یوحج اویوه عمره په دې وجه دی چه کومه مونږ بیان کړه اودویمه عمره ځکه چه دې دصحت دشروع نه پس ددې نه بهر شوې دې.

**د هدی لیږلونه پس د احصار زائله کیدل**

| واذابَعَثَ الْمحصرهَدْيًا اوکله چې بند شوې کس هدی اولیږلی وَوَاعَدَهُمْ أَنْ يَذْبَحُوهُ فِي يَوْمٍ بِعَيْنِهِ ثُمَّ زَالَ الْإِحْصَارُ او وعده ئې واخستله دهغوی نه چه په فلانی معینه ورځ به ئې ذبح کړی بیا احصار ختم شو |
| --- |

**زوال الإحصاربعدسوق الهدی** ﴿مسئله دا ده.که محصرهدی حرم ته اولیږله. او خپلوملګروسره ئې وخت مقررکړلو.چه په فلانۍ ورځ به دا هدی قربانی کوئ.ددې نه پس احصارختم شو.نود دې څو صورتونه دی کوم چې په راروان متونونو کښې ذکر شوی دی

**دهدی اوحج لاندې کول**

| فَإِنْ قَدَرَ عَلَى إِدْرَاكِ الْهَدْيِ وَالْحَجِّ اوکه حج اوهدی په موندلو باندې قادر شو لَمْ يَجُزْ لَهُ التَّحَلُّلُ نو د ده دپاره ځان حلالول جائز نه دی وَلَزِمَهُ الْمُضِيُّ اوپه ده باندې تلل لازم دی |
| --- |

**تشریح** ﴿ **صورة ادراک الحج والهدی** ﴿ د احصار نه پس که عذر زائله شو او ده هدی لیږلې وه نو که دې د هدي او حج په رالاندې کولو باندې قادر وی.نود ده دپاره ځان حلالول جائز نه دی بلکه مکې ته به رونیدل ورباندې لازم دی

**دلیله** ﴿ ځکه چه په خلیفه باندې دقدرت موندلونه وړاندې په اصل قادر شو.اصل د حج اوعمرې پوره کول دی.اوخلیفه ئې هدی ده.نوهدی بیکاره شوه.دا داسې شوه.لکه چه یوکس د مانځه دپاره تیمم کړې وی.اودمونځ کولو نه وړاندې د اوبو په استعمال قادر شو.نودده تیمم باطل شو.

**صرف دهدی لاندې کولوصورت**

| وَإِنْ قدرعلی ادراک الْهَدْيِ دُونَ الْحَجِّ تَحَلَّلَ اوکه دې د هدی په موندلو قادر وو نه د حج نوحلال دې شي |
| --- |

**حل اللغة** ﴿①**عجز**: عاجز کیدل ]

**تشریح** ﴿ **صورة ادراک الهدی دون الحج** ﴿ اوکه دې د هدی په رالاندې کولو قادر وو او حج ترې فوت کیدو نو ځان دې حلال کړی.

---

[1]) (تقدم تخریجه)_

**دليله** خکه چه دې د اصل نه چه حج دې عاجز شو.نوپه ذبح به ځان حلال کړي.

## صرف دهدي لاندي کول

وَإِنْ قدرعلى ادراك الحج دُونَ الهَدْيِ جَازَلَهُ التَّحَلُّل اسْتِحْسَانًا اوکه ده د حج په رالاندې کولوقادر وو او د هدى په رالاندې کولو قادر نه وو نو ده دپاره حلاليدل جائزدى استحسانا

**تشريح** **صورة ادراك الحج دون الهدي** اوکه حج لاندي کولې شي.خوهدى نشي.استحاناً ده دپاره حلاليدل جائزدى.خوغوره دا ده.چه مکې ته لاړ شي.اودحج افعال ادا کړي.
**وجه الإستحسان** وجه د استحسان دا ده.چه دې کس چه هدى ليږلې وه.ددې دپاره چه دحج د احرام نه بدل شي.اوس چه هدى هم ذبح شي.اوپه ده باندې حج کول هم لازم شي.نوهدى بې فائدې اوبې کاره شوه.اويقيني خبره ده.چه هدى يوقسم مال دې.اود مال حفاظت اود ضائع کيدو نه بچ کول هم ضروري دي.نو استحسان دا وائي.چه ده ته دې په دې رو خبرو کښې اختياورکړې شي.که خوښه ني وي.نوهم په خپل ځائي دې ايسارشي.چه دده د هدى قرباني اوشي. نوځان دې حلال کړي.اوکه خوښه ني وي.نومکې ته دې لاړ شي.اود حج افعال دې ادا کړي.
**وجه القياس** وجه دقياس کومه چه دامام زفر رحمه الله قول دې.دا ده.چه دا کس دې د حج افعال پوره کړي.اګرچه هدى نشي لاندې کولې.خکه چه هدى بدل دې دحج نه.اودا کس قادرشو په حج باندې.اودا قانون دې.چه د يوځيزد ادا کولونه وړاندې په اصل حکم باندې قدرت حاصل شي.نوخليفه معتبرنه دي. (لکه د تيمم په صورت کښې چه وړاندې تيرشوى دى. اوس چونکه دې په اصل چه حج دې قادرشو.نوپه بدل يعنى څه فائده نه ورکوى.
**الافضل اداء الحج** هم دا ورله افضل اوغوره ده.خکه چه ده د احرام په وخت کښې دا وئيلي وو.چه (اللهم إني أريد الحج) يعنى دحج کولووعده ني کړې وه.نوچه دحج افعال اوکړي.دا وعدې پوره کولوته نزدې ده.

وَمَنْ أُحْصِرَ بِمَكَّةَ وَهُوَ مَمْنُوعٌ عَنْ الْوُقُوفِ وَالطَّوَافِ كَانَ مُحْصَرًا([1])اوڅوك چه په مکه کښې بندکړې شو.اودې دوقوف اود طواف نه منع کړې شوې وو نودے محصر دې

**تشريح** **العجز عن الطواف والوقوف يعد احصارا** کوم کس چه په حرم کښې د وقوف عرفات نه بندکړې شي.نودې محصردې.
**دليله** خکه چه ده دپاره دحج پوره کول متعذرشو.اودې داسې شو.لکه چه په زمين حل کښې بندشي.(اوڅوك چه په زمين حل کښې بند شي. نو هغه محصرګنډلې شي.دغه شان دې هم محصرګنډلې شي.

وان قدرعلى ادراك احدهما فليس بمحصراوکه په دې دواړو (طواف او وقوف عرفات کښې) په يو باندې قادر شو نو دې محصر نه دې

**تشريح** **حکم الإحصارعن الطواف أوالوقوف احدهما** که دا کس په طواف زيارت او په وقوف

---

[1] القول الراجح هو هذا أصح الروايات عن أصحابنا كذا في الكفاية في صدر فتح القدير وعلى هامش الفتح (۵۹\۳) والدر المختار(۲\۲۵۵) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۳۹)۔

عرفات کښي په يوباندې قادر شو.نودې محصرنه دې.يعني داسې محصرنه دې.چه هدی اوليږی.اوځان حلال کړی.①نوکه صرف په طواف زيارت باندې قادرشو.اوپه وقوف قادر نشو. تردې چه حج ترې فوت شو.نودا کس فائت الحج شو. او دې به په طواف حلاليږی.او هدی ليږل دده دپاره بدل دې.نوچه په اصل قادرشو.بدل په خپله بيکاره شو.②اوکه په وقوف عرفات باندې قادر شو.نومحصرنشو.ځکه چه په وقوف عرفات ورته حج ملاؤ شو.اود فوت کيدو ويره پاتې نشوه.ځکه چه طواف کله غواړی.کولې شی.آخری عمره پورې ئې وخت دې.

**د حج فوت کيدو بيان**

## بَابُ الْفَوَاتِ

دا باب د حج فوت کيدو په بيان کښي دې.

**تشريح**> الربط بماقبله>احصارپه منزله د مفرد دې.اوفوات په منزله د مرکب دې.ځکه احصارنوم دې د احرام بغيرد ارکانو،اوفوات نوم دې د احرام اواداً کولود ارکانو.

**وقوف عرفات فوت کيدل**

وَمَنْ أَحْرَمَ بِالْحَجِّ فَفَاتَهُ الْوُقُوفُ بِعَرَفَةَ حَتّٰى طَلَعَ الْفَجْرُ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ فَقَدْ فَاتَهُ الْحَجُّ اوچا چه احرام اوتړلو دحج اوفوت شو ترې وقوف دعرفات تر دې چه ديوم نحر صبا راوختلو .نودده حج فوت شو. وَعَلَيْهِ أَنْ يَطُوْفَ وَيَسْعٰى وَيَتَحَلَّلَ اوس په ده لازم دی چه طواف اوسعی اوکړی اوحلال شی وَيَقْضِيَ الْحَجَّ مِنْ قَابِلٍ اوقضا دې راوړی دحج په راتلونکی کال.

**حل اللغة** > ①**احرم، احرامًا**: احرام تړل ②**فاته، فات فوتًا(ن)**: فوت کيدل ③**طلع، طلوعًا(ف)**: راختل ④**يسعي، سعيًا(ف)**: منډې وهل،تلل، عمل کول

**تشريح**> **فوت الحج بفوت الوقوف**>که يوکس وقوف عرفات اونکړلو.تردې چه ديوم النحرصبا راوختلو .نودده نه حج فوت شو.ځکه چه مونږبيان کړې دی.چه د وقوف عرفات وخت د يوم النحرصبا راختو پورې دې.اوچه وقوف عرفات فوت شو.نوحج فوت شو.اوس په ده باندې لازم ده.چه عمره اوکړی.اوځان حلال کړی.اورارون کال ته د دې حج قضا راوړی.اوپه ده باندې د کفارې په حيثيت څه دم واجب نه دې.

**دلائله**> ①ځکه چه نبی ﷺ فرمائيلی دی.دچا نه چه وقوف عرفه د شپې هم فوت شو.نودده نه حج فوت شو.ده ته پکار دی.چه عمره اوکړی.اوځان حلال کړی.اوپه ده باندې د راروان کال حج فرض دې.[1] او عمره د طواف اوسعی نوم دې.

②دويم دليل دا دې.چه دده احرام خوپه صحيح طريقه منعقد شوې دې. اوس دهغې نه د وتلو دپاره بله څه لار نشته.سوی ددې نه چه دې عمره اوکړی.اودهغې د افعالونه پس ځان حلال کړی.دا حکم داسې دې.لکه چه يوکس مبهم احرام اوتړی.يعنی صرف احرام اوتړی.او ددې تعين اونکړی.چه دا د حج دې اوکه دعمرې.نوپه ده باندې د احرام نه د وتلودپاره دوه طريقې دی.يادا چه عمره اداً کړی.اوځان حلال

---

[1] من حديث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه الدارقطنی في سننه (۲/۲٤۱) رقم ۲۱)_

کړی.اویاداچه حج اداکړی.دغه په دې صورت کښې ده لره د احرام نه وتل دی.حج خوترې وقوف دفوت کیدو په وجه فوت شو.البته صرف عمره پاتې ده.نوعمره دې اوکړی.اوځان دې حلال کړی.

| وَلَادَمَ عَلَيْهِ اوپه ده دم نشته |
|---|

**تشریح** > **عدم وجوب الدم** > په ده باندې دم واجب نه دې.

**دلیله** > دلیل دا دې.چه فائت الحج د عمرې افعال ادا کوی.اوځان حلالوی.نود فائت الحج دپاره عمره داسې ده. لکه څنګه چه د محصردپاره دم دې.نودا دواړه چه عمره اودم دی.نشی جمع کولې.یعنی د حلالوالی دپاره خوپه اصل کښې عمره مقرر شوې ده.خوچونکه محصرد عمرې په ادا کولوقادر نه دې.نوځکه هدی هغه دپاره د عمرې بدل شو.اوفائت الحج په عمره قادر دې.نودې به ددې په ذریعه ځان حلالوی.نوپه دې دواړو کښې تبائن دې.ځکه فائت الحج په محصرباندې نشی قیاس کولې.

## د عمرې دپاره وخت عدم تعین

| وَالْعُمْرَةُ لَا تَفُوتُ وَهِيَ جَائِزَةٌ فِي جَمِيعِ السَّنَةِ إِلَّا خَمْسَةَ أَيَّامٍ يُكْرَهُ فِعْلُهَا فِيهَا او عمره نه فوت کیږی اودا په ټول کال کښې جائز ده علاوه د پنځو ورځو نه چه مکروه دی په دغو کښې عمره کول يَوْمَ عَرَفَةَ، وَيَوْمَ النَّحْرِ، وَأَيَّامَ التَّشْرِيقِ او دغه یوم عرفه، یوم نحر، اوایام تشریق دی |
|---|

**تشریح** > **حکم العمرة في الأيام الخمسة** > عمره چونکه غیرموقته ده.یعنی ددې دپاره وخت نشته. نوځکه دا نه فوت کیږی ټول کال ددې دپاره وخت دې.البته په پنځوورځوکښې ددې ادا کول مکروه دی.هغه پنځه ورځې دعرفې ورځ د لونې اخترورځ اودرې ورځې د تشریق.

**دلائله** > ① دلیل دحضرت عائشې رضي الله عنها حدیث دې. چه په دې پنځه ورځوکښې به نې عمره مکروه کوله.[1] ② اودویم دلیل دا دې.چه دا پنځه ورځودحج دپاره دی.نودا هم د حج دپاره متعین دی.

**رواية عدم الكراهة يوم عرفة قبل الزوال** > ① دامام ابویوسف رحمه الله نه د عرفې په ورځ د زوال نه وړاندې دعمرې د عدم کراهت قول هم مروی دې.ځکه چه د وقوف عرفات وخت د زوال نه پس شروع کیږی. ② خو په ظاهرمذهب کښې د عرفې په ټوله ورځ کښې عمره کول مکروه ده.اوددې کراهت باوجودکه چا عمره اوکړله.نوعمره نې صحیح کیږی.اومحرم باقی پاتې کیږی.

**صحة العمرة مع الكراهة** > صاحب د هدایه رحمه الله فرمائیلی دی که په دې ورځوکښې نې دعمرې احرام اوتړلو.نوعمره دې نه ادا کوی. ځکه چه کراهت د عمرې په ذات کښې نشته.بلکه دغیرد وجې پیدا شوې دې.اوهغه غیرد حج تعظیم اود ورځې دحج دپاره خاص کول دی.نوهرکله چه ذات کراهت نشته.بلکه د غیردوجې دې.نوعمره ترل په کښې صحیح شو.اواحرام به باقی وی.اوکه عمره نې ادا کړله.نوځکه چه نې لازمه کړې وه.هغه شان نې ادا کړل. اګرچه کراهت په کښې راغلو.لکه څنګه چه په مکروه وخت کښې دمازیګرمونځ اوکړی.یا نفل شروع کړی اوپه مکروه وخت کښې نې پوره کړی.نوسره د کراهته صحیح شو.دغه شان دلته عمره په دې ورځوکښې سره د کراهته مکروه ده.

**عدد عمراة النبي ﷺ** > نبی کریم ﷺ ټولې څلورعمرې کړی دی.دا څلور واړه نې دهجرت نه پس کړی دی.اودا څلورواړه نې د ذوالقعدې په میاشت کښې کړی دی. ① عمره حدیبیه کال ۶هـ ② عمره قضاء ۷هـ ③ دحجة الوداع په موقع کال ۱۰هـ عمره جعرانه

---

[1] اخرجه البیهقی في السنن الکبری (۵۶۵/۴) رقم (۸۷۴۱).

**دعمرې حکم**

| **وَالْعُمْرَةُ سُنَّةٌ** اوعمره سنت ده **وهي الاحرام والطواف والسعي** اوهغه احرام دې او طواف دې او سعي ده |
|---|

**حل اللغة** ◄ ① **امارة**: نښه علامت ② **لاتثبت، ثبت ثبوتًا (ن)**: ثابتيدل ]

**في حكم العمرة** ◄ عمره سنت ده.

**تشريح** ◄ **دلائله** ◄ ① دليل دا حديث دې. (**الحج فريضة والعمرة تطوع**) [1] ② دويم دليل دا دې. چه دعمرې دپاره وخت مقرر نه دې. په ټول کال کښې کيږي. اودغه شان د بل په نيت هم کيږي. لکه د کوم کس نه چه حج فوت شي. نوده نيت کړې وی. د حج خوځان حلالوی د عمرې په افعالوسره، اوچه د کوم څيزدپاره وخت مقرر نه وي. اودبل په نيت سره هم ادا کيږي. نودا د نفل نښه شوه. نومعلومه شوه. چه عمره نفل ده.

**مذهب الشافعي** رحمه الله ◄ دامام شافعي رحمه الله په نيزفرض ده. امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دليله** ◄ دامام شافعي رحمه الله دليل دا حديث دې. (**العمرة فريضة كفريضة الحج**) [2] يعني عمره دحج پشان فرض ده.

**الجوابان عنه** ◄ ① اوامام شافعي رحمه الله چه کوم حديث ذکرکړې دې. چه (**العمرة فريضة**) نوددې مطلب دا دې. چه دعمرې دپاره افعال مقرر دې. لکه څنګه چه د حج دپاره خپل مخصوص افعال مقرر دی. ② دويمه خبره دا ده. چه د عمرې په فرضيت اوعدم فرضيت کښې آثار متعارض دی. نوچه تعارض موجود شو. فرضيت نشي ثابت کيدې. ماتن اوفرمائيل. چه عمره دطواف اوسعي نوم دې. لکه څنګه چه د باب التمتع نه معلومه شوې ده. والله اعلم بالصواب

**د هدی بيان**

| **بَابُ الْهَدْيِ** |
|---|

دا باب دهدی په بيان کښې دې.

**دهدی ادنی درجه**

| **الْهَدْيُ أَدْنَاهُ شَاةٌ** کمتر هدی چيلئ ده. |
|---|

**حل اللغة** ◄ ① **هدی**: د قربانئ خاروې ② **شاة**: چيلئ ]

**تشريح** ◄ مسئله واضحه ده.

**دليله** ◄ [3] څکه چه روايت دې چې دنبی کريم ﷺ نه تپوس اوشودهدی په باره کښې. نو وې فرمائيل کمتر دهدی چيلئ ده.

---

[1] ) غربه الزيلعي رحمه الله رفعه وعزاه موقوفاً على ابن مسعود رضي الله عنه إلى مصنف ابن أبي شيبة واخرجه ابن ماجه في سننه في المناسك باب ٤٤ رقم ٢٩٨٩ برواية طلحة بن عبيدالله رضي الله عنه أنه سمع رسول الله ﷺ يقول الحج جهاد والعمرة تطوع )

[2] ) غربه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن زيد بن ثابت رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ إن الحج والعمرة فريضتان لا يضرك بأيهما بدأت اخرجه الحاكم في المستدرك (٤٨١/١)ـ

[3] ) قال الزيلعي رحمه الله غريب ولم أجده إلا من قول عطاء .... أدنى ما يهراق من الدماء في الحج وغيره شاة (نصب الراية ٢٠٠/٣)ـ

## دهدي درې قسمونه

وَهِيَ مِنْ ثَلَاثَةِ أَنْوَاعٍ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ فرمائی دغه په درې قسمه ده.اوښ دي، اوغوې ده اوګډچیلۍ ده.

**حل اللغة** ﴿١﴾ **ابل**: اوښ ﴿٢﴾ **بقر**: غوې ﴿٣﴾ **غنم**: چیلۍ ﴿٤﴾ **لابد**: ضروری ]

**تشریح** **انواع الهدي** د هدی اطلاق په درې قسمه څناوروباندې کیږي.چیلۍ،اوښ اوغوا.

**دلائله** ﴿١﴾ دلیل دا دې.چه نبی ﷺ چیلۍ ته د هدی ادنی درجه ورکړې ده.اود ادنی دپاره اعلی ضرور وی.نواعلی نې اوښ اوغوې شوه. ﴿٢﴾ دویم دلیل دا دې.چه هدی هغه څناورته وائی.کوم چه حرم ته ددې دپاره لیږلې شی.چه دهغې د قربانۍ په ذریعه تقرب الی الله حاصل شی.اوپه دې مقصد کښې دا درې واړه (چیلۍ غوې او اوښ) سره برابردی.نوپه دې درې واړو باندې د هدی اطلاق کیږي.

## دهدي اواضحیه د قربانۍ دځناورو برابری

يُجْزِئُ فِي ذٰلِكَ كُلِّهِ الثَّنِيُّ فَصَاعِدًا په دې ټولو هدایا کښې ثني یا چې د هغې عمر زیات وی جائز دې إِلَّا مِنَ الضَّأْنِ فَإِنَّ الْجَذَعَ مِنْهُ يُجْزِئُ فِيهِ البته ګډې خکه چې په دې کښې د شپږو میاشتو ګډ هم جائز ده

**حل اللغة** ﴿١﴾ **اراقة**: بهیول ﴿٢﴾ **الثني**: هغه څاروې چې د خوانۍ دوه غاښونه نې راختلی وی ﴿٣﴾ **الضان**: ګډ ،﴿٤﴾ **الجذع**: شپږ میاشتو والا ګډه یا چیلۍ

**تشریح** په هدی او قربانۍ کښې په د ټولو څناورو ثنی ذبح کول جائز دی.او د دې نه د کم عمر ذبح جائز نه دی خوپه خصوصیت سره که ګډه یا ګډه د شپږو میاشتو وی او څربه وی که د یوکال په ګډوکښې اودرولې شی نودکال ښکاری په داسې ګډ او ګډه باندې هم قربانی کیږي.

**دلیله** من جابر رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ لاتذبحوا الا مسنة الا ان یعسر علیکم فتذبحوا جذعة من الضان (١) د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی رسول الله ﷺ فرمائیلی دی تاسو صرف مسنه ذبح کوئ خوکه په تاسو باندې د مسنه ذبح کول او قربانی کول ګران وی نو بیا د ګډې شپږ میاشتو والا ګډ یا ګډه هم ذبح کولې شئ.

وَلَا يُجْزِئُ فِي الْهَدْيِ مَقْطُوعُ الْأُذُنِ او جائز نه ده په هدی کښې غوږ کټ شوې وَلَا أَكْثَرُهَا اونه چې زیات غوږ نې کټ شوې وی. وَلَا مَقْطُوعُ الذَّنَبِ اونه دې جائز چې لکۍ نې کټ شوې

**تشریح** په داسې څاروی باندې قربانی نه کیږي چې د هغې غوږ کټ شوې وی خکه چې د غوږ کټ کیدل عیب دې.

**دلیله** د غوږ سالمیت په باره کښې د نبی کریم ﷺ قول دې سْتَشْرِفُوا الْعَيْنَ وَالْأُذُنَ (٢) چې سترګه او غوږ ښه ګورئ یعنی ددې دواړو سلامتیا ګورئ اوچې لکۍ نې کټ شوې وی هغه په هدي کښې خکه جائز

---

(١) ابوداؤد باب ما یجوز فی الضحایا من السن کتاب الضحایا الجلد الثانی)۔

(٢) – من حدیث علی رضی الله عنه أخرجه ابوداود فی الأضاحی باب ٦ رقم ٢٨٠٤ والترمذی فی الأضاحی باب ٦ والنسائی فی الضحایا رقم ٤٣٧٢ وابن ماجه فی الأضاحی باب ٨ رقم ٣١٤٢)۔

نه دي چې لکۍ هم یو کامل اندام دې.او مقصود دې.نو د غوږ پشان شو.نو لکه څنګه چې مقطوع الاذن په هدی کښې جائز نه دې دغه شان به مقطوع الذنب هم جائز نه وی.

**حکم مقطوع اکثرالاذن>** په پاتې پاتیګ شوی او ختم شوی کې د اکثر حکم د کل پشان دیګ.چه که اکثره برخه پاتې ده.نو ګګویا کل پاتې دیګ.او قربانی جائز ده.اوکه اکثره برخه ختمه شوه.نو ګګویا کل ختم شو.او قربانی به جائز نه وی.اودا خبره چې اکثر څه ته وائی نو د دې تفصیل به انشاء الله په هدایه کښې راشی.انتظار اوکړئ

| وَلَامَقْطُوْعُ الْيَدِ وَلَا الرِّجْلِ اونه دې جائز په هدی کښې هغه چې لاس یا پښه ئې کټ شوې وی وَلَاذَاهِبَةُ الْعَيْنِ اونه هغه چې نظر ئې ختم شوې وی وَلَاالْعَجْفَاءِ اونه په هغه څاروی چې ډیر تپ وی وَلَاالْعَرْجَاءِ الَّتِيْ لَاتَمْشِيْ اِلَى الْمَنْسَكِ او نه په هغه ګوډ چې قربان ګاه ته نشی تلې |
|---|

**تشریح>** په متن کښې چې کوم څاروی ذکر شو په دې باندې قربانی نه کیږی اونه دا په هدی کښې قربانی کول جائز دی.

**دلیله>** د نبی کریم ﷺ ارشاد دی لَاتُجْزِءُفِي الضَّحَايَاأَرْبَعَةٌ: الْعَوْرَاءُالْبَيِّنُ عَوَرُهَا وَالْعَرْجَاءُالْبَيِّنُ عَرَجُهَا وَالْمَرِيضَةُالْبَيِّنُ مَرَضُهَا وَالْعَجْفَاءُالَّتِي لَاتُنْقِي[1]په قربانو کې څلور څاروی جائز نه دی هغه کانړا ( چغوت) چې دده کانړاتوب ښکاره وی او هغه ګوډ چې دده ګوډکیدل ښکاره وی او هغه بیمار چې دده مرض ښکاره وی دې ،

### د دووجنابانونه علاوه په نوروکښې د چیلۍ کفایت

| وَالشَّاةُجَائِزَةٌفِيْ كُلِّ شَيْءٍ اِلَّافِيْ مَوْضِعَيْنِ او چیلۍ په هره موقع کښې جائز ده سوې ددو ځایونونه مَنْ طَافَ طَوَافَ الزِّيَارَةِ جُنُبًا وَمَنْ جَامَعَ بَعْدَ الْوُقُوْفِ بِعَرَفَةَ چا چه طواف زیارت اوکړو په حالت د جنابت کښې اوچا چه جماع اوکړ د وقوف نه پس فَاِنَّهُ لَايَجُوْزُفِيْهِمَا اِلَّاالْبَدَنَةُ ځکه چې په دې دوارو صورتونو کښې نه جائز کیږی مګر بدنه |
|---|

**حل اللغة >** ① **جنبا**: دَ جنابت په حالت کښې ② **جامع، مجامعة**: جماع کول ③ **بدنة**: اوښ غوې

**تشریح>** مسئله ښکاره ده.

| وَالْبَدَنَةُوَالْبَقَرَةُيُجْزِءُكُلِّ وَاحِدٍمِنْهُمَا بدنه او غوا هره یو د دې دوارو نه جائز کیږی عَنْ سَبْعَةِاَنْفُسٍ د اووه کسانو نه اِذَاكَانَ كُلُّ وَاحِدٍمِنَ الشُّرَكَاءِ کله چې وی هر یو کس د شریکانو نه يُرِيْدُالْقُرْبَةَ چې اراده لری د ثواب فَاِذَااَرَادَاَحَدُهُمْ بِنَصِيْبِهِ اللَّحْمَ نوکه یو کس په دوی کښې په خپلې حصې سره د غوښې اراده وه لَمْ يُجْزِءْلِلْبَاقِيْنَ عَنِ الْقُرْبَةِ نو د نورو دپاره د عبادت په حیثیت سره نه صحیح کیږی. |
|---|

**تشریح>** په اوښ او غوا میښه کښې اووه کسان شریکیدې شی.او د دې نه زیات شریکیدل جائز نه دی کله چې دوی په شریکه قربانی اوکړه نو د ټولو قربانی اوشوه.

---

[1] – من حديث براء بن عازب رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الأضاحي باب ٦ رقم ٢٨٠٢ والترمذي في الأضاحي باب ٦٥ والنسائي في الضحايا باب ٥ وابن ماجه في الأضاحي باب ٨ رقم ٣١٤٤ ومالك في الضحايا رقم ١)_

**دلیله** د نبی کریم ارشاد دی.عن جابر رضی الله عنه قال نحرنا مع رسول الله ﷺ عام الحدیبیة البدنة عن سبعة والبقرة عن سبعة ([1]) دحضرت جابر ؓ نه روایت دی فرمائی مونږ د رسول الله ﷺ سره د حدیبیه په کال په اووه کسه بدنه ذبح کړې وه او غوا مو ذبح کړې وه.

**شرطیة الاخلاص فی النیة** البته دا شرط په کښې دی چې په دوی کښې د هریو نیت د الله رضا وی.که د یو کس نیت په کښې هم دغوښې وی.یا ریا وی نو د ټولو قربانی نه کیږی.

**دلیله** د ټولو قربانی ځکه نه قبلیږی.چې ځاروی یو دی.تقسیم نه قبلوی.نوچې تقسیم نه قبلوی.د یو په فساد نیت سره به د ټولو قربانی قبوله نشی.کله ځنګه په مانځه کښې یو رکن پاتې شی.نو ټول مونځ نه کیږی.

## د نفلی.تمتع اوقران د هدی نه د خوراك جواز

| وَيَجُوزُ الْأَكْلُ مِنْ هَدْيِ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ اوجائز دی خوړل پخپله د نفلی هدی اود تمتع هدی او دقران دهدی نه. |
| --- |

**تشریح** مسئله ښکاره ده.

**دلائله** ① ځکه چه دا د نسك دم دی نوجائزدی خوړل ددینه لکه د اضحیه پشان.② او صحیح ثابت دی چه نبی کریم ﷺ د خپلې غوښې نه اوخوړه او د خوروه نه اوڅکله. ([2])

**إستحباب الأكل والتوزيع من الهدايا الثلاثة** د ذکرشو هدایا نه یعنی د نفلی،تمتع اوقران نه په خپله خوراك کول مستحب دی.ځکه چه په حدیث کښې دی.چه نبی ﷺ دخپلې هدی غوښه اوخوړله .اوخوروې نې اوڅکله.اوبه کومه طریقه چه د قربانۍ غوښه تقسیمول مستحب دی.هغه دا د هدایا غوښه هم تقسیمول مستحب دی.یعنی د دریوحصو نه دې یوه حصه صدقه کړی.دویمه دې هدیه کړی. او دریمه دې په خپله اوخوری.اوذخیره دې کړی.

| وَلَا يَجُوزُ مِنْ بَقِيَّةِ الْهَدَايَا اونه دی جائزخوراك د باقی دمونو د هدایاونه. |
| --- |

**تشریح** **مصرف بقیة الهدایا** ددې نه علاوه چه کومې نورې هدایا دی.نودهغې نه به په خپله خوراك نه کوی. بلکه د حرم په فقیرانو به صدقه کولې شی.

**دلیله** ځکه چه دنبی ﷺ نه په صحیح سند سره ثابت دی.چه کله نبی ﷺ په مقام حدیبیه کښې محصرشو.اوهدایا ئې د ناجیه اسلمی په لاس بانـدې حرم تـه اولیږلې.نوناجیه اسلمی ؓ تـه ئې اوفرمائیل.چه ددې نه په خپله هم خوراك مه کوئ.اوخپلوملګروته هم مه ورکوه. ([3]) دوی ئې ځکه د خوراك کولونه منع کړی وو.چه هغوی مالدار وو.ددې نه هم معلومه شوه.چه دم احصاروغیره کومې چه دجنایاتو اوکفاراتو قربانایانې دی.هغه د فقیرانوحق دی.نه ترې په خپله خوراك جائزدې.اونه مالدارانوباندې خوراك جائزدی.

---

[1] ) مسلم باب جواز الاشتراك في الهدي واجزاء البدنة والبقرة كل واحد منهما عن سبعة كتاب الحج )-

[2] ) تقدم تخريجه في حديث طويل لجابر ؓ )_

[3] ) أخرجه أبوداود في الحج باب ۱۸ رقم ۱۷۶۲ والترمذي في الحج باب ۷۱ رقم ۹۱۰ وابن ماجه في المناسك باب ۱۰۱ رقم ۳۱۰۶ والنسائي في السنن الكبرى (۲/۴۵۴ ) رقم ۴۱۳۷ )_

### د نفلي،تمتع اوقران د هدى په يوم النحرباندې قرباني كول

وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ هَدْيِ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ إِلَّا فِي يَوْمِ النَّحْرِ او جائزنه دى ذبح كول د نفلي هدى اودتمتع اود قران دهدى مگر په ورځ د اختر (لسمي ذوالحجې)

**تشريح>** **رواية مبسوط>** اوپه مبسوط كښې دى چه د نفلي هدى يوم نحر نه مخكښې ذبح كول جائز دى اوغوره ئې په يوم نحر كښې ذبح كول دى.اودا صحيح ده

**دليله>** ځكه چه په نوافلو كښې قربت په دې اعتبارسره دې چه دغه هدى ده اوهدى كيدل دې لره حرم ته په رسولو سره متحقق كيږي

**فضل يوم النحر>** اوكله چه دا اومونډې شوه نو جائز ده ذبح ئې بغير د يوم نحر نه.اوپه ايام نحر كښې افضل ده.

**دليله>** ځكه چه معنى دقربت په تويولودوينې كښې په دې ورځو كښې ښه ظاهرېږي

**دلائل وقت دم التمتع والقران >** ① پاتې شوه هدى د تمتع اودقران نو په دليل دقول دالله ﷻ ده..خورئ د دې نه اوبدحال اومحتاج ته وركوئ بياپكار دى چه لرې كړى خپل خيرې. اوخيرې لرې كول ديوم نحر سره مخصوص دى ② اوځكه چه دا دم نسك دې نومختص به وى په يوم نحر پورې پشان داضحيه.

.....

### دباقي هدايا د ذبح كولود وخت حكم

وَيَجُوزُ ذَبْحُ بَقِيَّةِ الْهَدَايَا فِي أَيِّ وَقْتٍ شَاءَ او جائزدى باقي هدايا ذبح كول په هر وخت كښې چه غوارِ

**حل اللغة >** ① **اى وقت:** په كوم وخت كښې هم

**تشريح> عدم تعيين الوقت لبقية الهدايا>** مسئله آسانه ده.د وضاحت محتاجه نه ده. [1]

**دليله>** دليل دادې چه دا دكفارو قربانئ دى نومختص به نه وى په يوم نحر پورې ځكه چه كله دا د نقصان پوره كولودپاره واجب شوې نوپه دې كښې به تلواركول غوره وى چه لرې شي نقصان په دې سره بغير د تاخير نه۔

### د هدايا په حرم كښې د ذبح كولوحكم

وَلَا يَجُوزُ ذَبْحُ الْهَدَايَا إِلَّا فِي الْحَرَمِ او جائزنه دى هدى ذبح كول مگر په حرم كښې.

**تشريح> محل ذبح الهدايا>** مسئله دا ده.كه هدى نفلي وى اوكه غيرنفلي وى.صرف په حرم كښې ددې ذبح كول جائز دى.دحرم نه سوې په زمين حل كښې ئې هم ذبح جائزنه ده.

**دلائل كون الحرم محل الذبح>** دليل دا دې.① چه د ښكاردجزاء په باره كښې الله تعالى فرمائيلى دى. ﴿هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ﴾ اوپه آيت كښې د كعبې نه عين كعبه مراد نه ده.بلكه حرم مراد دې.نودا قول په هرهغه دم كښې يوبنياد اواصل شو.كوم چه د كفاره په حيثيت واجب وى.نوهغه حرم ته رسول ضرروى دى.اود دم احصارپه باره كښې الله تعالى فرمائيلى دى. ﴿وَلَا تَحْلِقُوا رُءُوسَكُمْ حَتَّى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ﴾ اودمطلق هدايا

---

[1] مذهب الشافعي رحمه الله: امام شافعى رحمه الله فرمائي چه د باقي هدايا قرباني هم جائز نه ده مگر په يوم نحر كښې.

په باره کښې ني فرمائيلی دی﴿ ثُمَّ مَحِلُّهَآ إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴾ دا ټول آياتونه په دي دلالت کوی.چه دهدايا د ذبح کولوځائي حرم دي

② دويم دليل دا دي.چه هدی هغې ته وائي.چه يوځائې ته هديه کړې شي.اودهغې محل حرم دي. دغه شان نبی ﷺ فرمائيلی دی.چه منی ټوله د ذبحې ځائي دي.اودمکې لارې ټولې د ذبحې ځايونه دی.(١) اودا دواړه مقامات په حرم کښې داخل دی.(نومعلومه شوه.چه د ذبحې ځائې صرف حرم دي.که بل ځائې وو.نبی ﷺ به نې وضاحت کړې وو.

| وَيَجُوزُ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِهَا عَلَى مَسَاكِينِ الْحَرَمِ وَغَيْرِهِمْ اوجائزدی چه تقسيم کړی غوښې دقربانۍ په مسکينانو دحرم اود دوی نه علاوه په نورو |
|---|

**تشريح﴾ عدم لزوم التصدق علي فقراء الحرم:﴾** د هدايا غوښه دحرم اوغيرحرم په فقيرانو باندې صدقه کول جائزدی.(٢)

**دليله﴾** د الله تعالى ارشاد دي.((فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ)) يعنى تاسو خوراك کوئ د دې هدې نه او خوراك کوئ په محتاجه فقير باندې. په دې آيت کښې الله تعالى د هدی د غوښې په باره کښې دا فرمائي چې تاسو په ضرورت مند فقير باندې دې غوښې خورویئ په دې کښې د مطلق فقير ذکر دې.د حرم د فقيرانو سره تخصيص نشته.نو معلومه شوه چې د حرم او غير حرم فقيران د غوښې په خوړلو کښې برابر دی.

### دهدايا د تعريف حکم

| وَلَا يَجِبُ التَّعْرِيفُ بِالْهَدَايَا اودهدايو تشهير واجب نه دي. |
|---|

**تشريح﴾ عدم وجوب التعريف﴾** بهرحال د دواړومعانيوپه اعتبارسره دهدی تعريف واجب نه دي.

**دليله﴾** څکه چه هدی نوم دې ددې چه حرم ته بوتلې شي.اوهلته ذبح کړې شي.اوغاړه کښ اچول دهدی نوم نه دي.نوځکه تعريف واجب نشو.حاصل دا چه د تعريف وجوب په دوو طريقوسره ثابتيدې شي.يوپه دې چه نص موجود وی. دويم دا چه د هدی په لفظ کښې د تعريف معنی پرته وی.اودلته دواړه خبرې نشته.نوځکه تعريف واجب نه دي.

### په بدنه کښې د نحراوپه غوې اوچيلئ کښې د ذبح فضيلت

| وَالْأَفْضَلُ بِالْبُدْنِ النَّحْرُ وَفِي الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ الذَّبْحُ اوپه اوبښ کښې افضل نحر دي اوپه غوااو چيلئ کښې ذبح ده |
|---|

**تشريح﴾ فضيلة الذبح في البدن﴾** مسئله ښکاره ده.

**دلائله﴾** ① قَالَ اللهُ تَعَالَى أَنْ تَذْبَحُوا بَقَرَةً يعنى تاسو يوه غوا ذبح کړئ ګورئ دلته الله تعالى د غوا دپاره د ذبحې کولو حکم کړې دي ② قَالَ اللهُ تَعَالَى {وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ} دالله ﷻ ارشاد د دي

(١) من حديث جابر ﷺ اخرجه ابوداود في المناسك باب ٦٤ رقم ١٩٣٧ وابن ماجه في المناسك باب ٧٣ رقم ٤٨ واحمد في المسند (٣٣٦/٣)_

(٢ مذهب الشافعي ﷫:- امام شافعی ﷫ فرمائی.چه صرف دحرم په فقيرانونې صدقه کول جائز دی.

اوددې اسماعیل علیه السلام بدله کښې مونږ يوخاروې د لوئې ذبحې دپاره ورکړ و،دلته هم د ګډ قربانۍ دپاره الله تعالی د ذبح تکې ياد کړې دې ③ .اوصحیح ثابت دی چه نبی ﷺ اوښان نحرکړل اوغوې او چیلۍ ئې ذبح کړل.(١)

## دهدی په خپله د ذبح کولواستحباب

| وَالْأَوْلَى أَنْ يَتَوَلَّى الْإِنْسَانُ ذَبْحَهَا بِنَفْسِهِ إِذَا كَانَ يُحْسِنُ ذَٰلِكَ اوغوره دا ده چه پخپله ئې ذبح کړی کله چه دې پخپله ښه کولې شی. |
|---|

**تشريح ◄ فضل تولي الذبح بنفسه ◄** مسئله واضحه ده.

**دلائله ◄** ① خکه چه روايت دې چه نبی کريم ﷺ سل بدنې روانې کړې په حجة الواع کښې نو نحر ئې کړې څه د پاسه شپېته پخپله. اودباقی دپاره ئې حضرت علی رضی الله عنه متولی کړو. (٢) ② دویم دلیل دا دې چه نحرکول قربت دې اوپه طاعاتو پخپله متولی کیدل غوره دی.خکه چه په دې کښې عاجزی زیاته ده.

**حکم من لم يحسن الذبح ◄** مګرکله چه بنده په دې پخپله نه پوهیږی اوښه نشی کولې نو مونږ په دې کار باندې بل لره متولی کول جائزکړل.

## قصاب ته په اجرت کښې د هدی نه څه څیزورکول

| وَيَتَصَدَّقُ بِجِلَالِهَا وَخِطَامِهَا وَلَا يُعْطِي أُجْرَةَ الْجَزَّارِ مِنْهَا اوخیرات دې کړی ددې خلونه مهارونه اونه دې ورکوی ددې نه اجرت دقصاب |
|---|

**حل اللغة ◄** ① **جلال**: د خناورو ځل ② **خطام**: رسئی ③ **جزار**: قصاب ]

**تشريح ◄ حكم جلالها وخطامها ◄** مسئله ښکاره ده.

**دليله ◄** خکه چه دنبی ﷺ ارشاد دې علی رضی الله عنه ته چه صدقه کړه د دې خلونه اومهارونه اومه ورکوه قصاب ته په مزدورۍ کښې ددې نه(٣)

## په بدنې باندې سوریدو ته احتیاج

| وَمَنْ سَاقَ بَدَنَةً فَاضْطُرَّ إِلَى رُكُوبِهَا رَكِبَهَا اوچا چه روانه کړه بدنه بيا حاجتمند شود دې سوريدو ته نوسوردې شی وَإِنِ اسْتَغْنَى عَنْ ذَٰلِكَ لَمْ يَرْكَبْهَا اوکه بې حاجته شود دې نه.نونه دې سوريږی. |
|---|

**حل اللغة ◄** ① **فاضطر،اضطرارًا**: مجبور کیدل

**تشريح ◄ عدم جواز الركوب للقادر-** کوم کس چه بدنه روانه کړې وی.اوحرم ته روان وی.په لارکښې ستړې شی.اود تګ طاقت نه لری.نوده ته په بدنه د سوريدو اجازت شته.خوکه د پیدل تګ طاقت ئې وی.نوسوريږی به پرې نه.

---

[١] ) تقدم تخريجه في حديث جابر رضی الله عنه )

[٢] ) تقدم تخريجه في حديث جابر رضی الله عنه )_

[٣] ) أخرجه البخاری في الحج باب ١١٣ رقم ١٧٠٧ ومسلم في الحج رقم ٣٤٩ وابوداود في المناسك باب ٢٠ رقم ١٧٦٩ وابن ماجه في المناسك باب ٩٧ رقم ٣٠٩٩ والدارمي في المناسك باب ٨٩ وأحمد في المسند (٧٩/١) وهوعندالنسائي في السنن الكبرى ٤٥٦/١) رقم ٤١٤٦)_

**دلیله**> ځکه چه بدنه خالص دالله تعالی حق دې.نوددې د ذات یا منافع نه فائده اخستل مناسب نه دی.تردې چه خپلې محل ته اورسولې شي.اوذبح کړې شي.

| (وَإِنْ كَانَ لَهَا لَبَنٌ لَمْ يَحْلُبْهَا)اوکه وو دهغې پئ نو نه به لوشی. |
|---|

**تشریح**> **عدم جوازحلب اللبن**>اوکه بدنه ښځه وی.اوهغه پئ کوی.نودهغې نه به پئ نه لوشلی.
**دلیله**> ځکه چه پئ هم د هغې نه پیدا کیږی.بلکه په یخواوبو به پرې چرګاؤ کوی.چه پئ ئې اوچ شي.
**رخصة حلب اللبن**>خودا حکم په هغه وخت کښې دې.چه د قربانئ وخت نزدې وی.اوکه د ذبح کولووخت لرې وی.نودهغې نه دې پئ لوشی.اوهغه پئ دې صدقه کوی.چه د پیوته نقصان اونه رسی.اوکه دغه پئ ئې په خپل استعمال کښې راوستل.نودهغې مثل دې صدقه کړی. ځکه چه پئ مثل دې.اوقیمت ئې صدقه ده.ځکه چه قیمت هم مثل معنوی دې.
**دلیله**> د دې دلیل دا دې.چه په ده باندې د پیو ضمان واجب دې.اوچه دکوم څیزضمان واجب وی.نودهغې حکم هم دا دې.چه دهغې مثل ورکړی.اوکه مثل نه پیدا کیږی.نوقیمت د هغې مثل معنوی دې.

| (وَلَكِنْ يَنْضَحُ ضَرْعَهَا بِالْمَاءِ الْبَارِدِ حَتَّى يَنْقَطِعَ اللَّبَنُ)بلکه د دې په غولانزې به یخې اوبه اوشیندی دې دپاره چې پئ یې اودریږی |
|---|

**تشریح**> **نضح الضرع**> مسئله هم دغه ده کومه چې تیره شوه یعنی د هدې نه به پئ نه لوشی خوکه پئ زیات وی او هغه اونشی لوشتلې نو په دې باندې خاروی ته د نقصان رسیدو خطره هم وی نو یخې اوبه به د خاروی په غولانزه باندې اوشیندی یعنی چرقاؤ به ئې کړی په دې سره به د هغې پئ کلك شی او د څه وخته پورې به بنده شی

## د هدی په هلاکت د ضمان وجوب

| (وَمَنْ سَاقَ هَدْيًا فَعَطِبَ، فَإِنْ كَانَ تَطَوُّعًا فَلَيْسَ عَلَيْهِ غَيْرُهُ)اوچاچه روانه کړه هدی اودسترې والی نه هلاکه شوه نوکه دا نفلی وه نو بله پرې واجب نده |
|---|

**تشریح**> **سقوط الهدی بهلاک الهدی التطوع**>که یوکس هدی روانه کړه.اوپه لارکښې هدی هلاکه شوه.نوددې دوه صورتونه دی.که نفلی هدیه وی.نوپه ده باندې څه واجب نه دی.
**دلیله**> ځکه چه قربت اوطاعت هم په دغه محل پورې متعلق وو.او هغه فوت شو.

| (وَإِنْ كَانَ عَنْ وَاجِبٍ فَعَلَيْهِ أَنْ يُقِيمَ غَيْرَهُ مَقَامَهُ)اوکه واجب وی نو په ځائې ددې به بله اودرول په ده واجب وی. |
|---|

**تشریح**> **وجوب الهدي الثانية في الواجب**>دویم صورت دا دې.چه هغه هدی واجب وی.نوپه دې صورت کښې پرې بله هدی واجب شوه.
**دلیله**> ځکه چه کومه هدی ده روانه کړې وه.هغه خپل محل ته اونه رسیدله.نودده ذمه فارغه نشوه.ځکه پرې دویمه هدی واجب ده.

| (وَإِنْ أَصَابَهُ عَيْبٌ كَثِيرٌ أَقَامَ غَيْرَهُ مَقَامَهُ)اوکه په دې کښې ډیرعیب راغلو نو د دې په ځائې به بله مقرر کوی. (وَصَنَعَ بِالْمَعِيبِ مَا شَاءَ)او د عیب دارې سره چه څه غواړی اودې کړی |
|---|

**تشریح> حکم صورة النقص الکثیرفي الهدی>** اوکه په هدی کښې داسې عیب پیدا شو.چه دهغه په وجه هغه د قربانۍ قابله پاتې نشوه.نوپه دې صورت کښې هم په ده باندې دویمه هدیه واجب شوه.اوچه کومه هدی عیبجنه وی.په هغې چه ئې څه خوښه وی.اودې کړی.

**دلیله>** څکه چه هغه دده د نورو مملوك څیزونوپشان شوه.نو څنګه چې دې په نورو مملوك څیزونوڅه کوی هغه شان په باندې هم کولی شی څرڅولې یې شی چا ته ئې هبه کولې شی وغیره

**د بدنه د هلاکت په صورت کښې نحرکول**

| وَإِذَاعَطِبَتِ الْبَدَنَةُ فِي الطَّرِيقِ، فَإِنْ كَانَ تَطَوُّعًا نَحَرَهَا اوکه هلاکه شوه بدنه په لاره کښې نوکه نفلی وه.نونحر دې کړی وَصَبَغَ نَعْلَهَا بِدَمِهَا وَضَرَبَ بِهَا صَفْحَتَهَا او قلاده دې ورلره په وینه رنګ کړی اودقب په دوه دې پرې چاپ اولګوی وَلَمْ يَأْكُلْ منها هُوَوَلَاغَيْرُهُ مِنَ الْأَغْنِيَاءِ)اونه به خوری د هغې نه هغه اونه بل څوك دمالدارو نه |
|---|

**حل اللغة>** ①**عطبت،عطبًا(س)**:هلاکیدل ②**طریق**: لار ③**صبغ، صبغًا(ف)**: رنګ کول

**تشریح> حکم هلاک البدنة التطوع>** که بدنه په لارکښې هلاکت ته نژدې شوه.نوددې دوه صورتونه دی.که نفلی وی.نودهغې نحر دې اوکړی.اودهغې په وینودې دهغې نعل اوقب رنګ کړی.اودهغې نه دې نه په خپله خوراك کوی.اونه دې په نوروماالدارانوباندې خوراك کوی.

**دلیله>** څکه چه نبی ﷺ حضرت ناجیه اسلمی رضی الله عنه ته ددې حکم کړې وو. [1] اود نعل نه مراد د هدی غاره کې ده.

**حکمة تصبیغ النعل والسنام>** اودنعل اوقب په رنګ کولوکښې فائده دا ده.چه خلق به پوهه شی.چه دا د هدی څاروې دې.نوفقیران به ترې خوراك اوکړی.اومالداران به ترې نه کوی.اوددې وجه دا ده.چه دهدی د غوښې نه په خپله خوراك کول په دې شرط پورې مشروط دې.چه هغه خپل محل ته اورسی. مناسب خودا وه.چه دا د چا دپاره هم جائزنه وه.نه د فقیرانواونه د مالدارانودپاره.خود درندګانوته د پریخودو په نسبت دا ښه ده.چه په فقیرانو صدقه شی.اوپه فقیرانوصدقه کولوکښې یوقسم تقرب دې.اوهم تقرب اصلی مقصد دې.

| وَإِنْ كَانَتْ وَاجِبَةً أَقَامَ غَيْرَهَا مَقَامَهَا وَصَنَعَ بِهَا مَا شَاءَ اوکه دغه هدی واجب وه.نود دې په ځائې دې بله اودروی اودمذبوحه سره چه څه غواړی اودې کړی |
|---|

**تشریح> حکم البدنة الواجبة>** اوکه هغه بدنه واجب وی.نودهغې په ځائې دې بله بدنه اولیږی.

**دلیله>** څکه چه د کوم مقصد دپاره ئې هغه روانه کړې وه.هغه مقصد ترې پوره نشو.اوپاتې شوه ددې غوښه.نوچه په هغې ئې څه خوښه وی هغه دې پرې اوکړی.څکه چه دا د ده دنورمملوك څیزونو پشان شوه.اوپه نوروکښې ده ته کلی اختیارحاصل دې.دغه شان ورته په دې کښې هم حاصل دې.

[1] اخرجه أبوداود في الحج باب ۱۸ رقم ۱۷۶۲ والترمذي في الحج باب ۱۷ رقم ۹۱۰ وابن ماجه في المناسك باب ۱۰۱ رقم ۳۱۰۶ والنسائي في السنن الكبرى (۲/۴۵٤) رقم ۴۱۳۷)قال الزيلعي رحمه الله ليس في حديث ناجية رضي الله عنه قوله ((ولاتأكل منه انت ولا احد من رفقتك)) ثم وجدناه في، المغازى ، للواقدى رحمه الله (نصب الراية ۲۰۹/۳)_

نفلی اوقران او تمتع بدنه ته غاړه کښ اچول

| وَيُقَلِّدُ هَدْيَ التَّطَوُّعِ وَالْمُتْعَةِ وَالْقِرَانِ اوقلاده دې واچوی نفلی اودتمتع اودقران هدی ته وَلَا يُقَلِّدُ دَمُ الْإِحْصَارِ وَلَا دَمُ الْجِنَايَاتِ او د دم الاحصار او دم جنایات هدایا ته به غاړکې نه اچوی |
|---|

**حل اللغة** ⟩ ① **تقليد**: پټه اچول یامنل ② **تشهير**: مشهورکول ③ **ستر**: پټول ④ **البق**: ډير مناسب]

**تشریح** ⟩ مسئله واضحه ده.

**دليل تقليد هدايا التطوع وغيره** ⟩ نفلی او د حج تمتع او حج قران هدایا ته غاړکې خکه اچول پکار دی چه دا دم د نسک دې او د نسك هدایا دپاره تشهیر پکار دې

**دليل تقليد دم الاحصار والجنايات** ⟩ او ددم احصاراو دغه شان د جنایاتو هدایا ته به غاړکې نه اچوی خکه چه د دوی سبب جنایت دې نوپرده اچول پرې لائق دی اودم احصار جابردنقصان دې نودخپل جنس سره پیوست کول شی.

د بیوع د احکامو بیان

# كِتَابُ الْبُيُوعِ

**ترجمه** ⟩(دا) کتاب د بیوع ( د احکامو په بیان کښې ) دې.

**تشریح** ⟩ صاحب دکتاب اول خالص عبادات یعنی مونځ ،وغیره بیان کړو. اوس خالص معاملات بیانوی یعنی بیع اوشفعه وغیره.

**السوال** ⟩ لفظ د بیع مصدر دې.اود مصدر تثنیه او جمع نه راخی.حالانکه دلته کښې بیوع د جمع په صیغه سره ذکر شوې دې.

**الجوابان** ⟩ ① بې شکه مصدر دې.خود بیع مختلف انواعو په وجه دا دجمع په صیغه سره ذکر شوې دې.

② ،،بیع ،، د مبیع اسم مفعول په معنی کښې دې.اود مبیعات ډیر قسمونه او انواع دی.په دې وجه دا د جمع په صیغه سره ذکر شوې دې.

**تشريح لفظ البيع** ⟩ لفظ د ،،بیع،، د اضدادو څخه دې. ① په لغت کښې د بیع لفظ د (ادخال الشئ في الملك بمال) دپاره ونیلې شی. ② اود (اخراج الشئ عن الملك بمال) یعنی د مال په عوض سره یوڅیز په ملك کښې د داخلودپاره هم ونیلې شی.او دمال په عوض څه څیز د ملك نه د ویستلو ته هم ونیلې شی.

**دليله** ⟩ په حدیث (لايبيع أحدكم على بيع أخيه) کښې اوله معنی(اخستل ) مراد ده.یعنی په تاسو کښې دې هیڅ یوکس د خپل رور د اخستلو په صورت کښې نه اخلی مطلب دادې.که یو مسلمان رور د یو څیز د اخستلو په اراده سره نرخ کوی.نو تاسو ددې د اخستلو په اراده سره په مینځ کښې مه راځئ.اوګورئ. دلته کښې بیع د اخستلو په معنی کښې استعمال شوې دې.(اذا اختلف النوعان فبيعوا كيف شئتم) کښې دویمه معنی (خرڅول) مراد دی

**تعريف البيع إصطلاحا** ⟩ د شریعت په اصطلاح کښې ،،بیع،، (مبادلة المال بالمال بالتراضي بطريق التجارة) ته

وائي.یعنی ،د یویل په رضامندئ سره د تجارت په طریقه باندې مال د مال په بدله کښې اخستل،،

**فائدة القیودات>** د (مبادلة المال بالمال) په قید سره اجاره او نکاح خارج شو.ځکه چه په اجاره کښې (مبادلة المال بالمنافع) وی.او په نکاح کښې (مبادلة المال بالبضع) وی.اود (بالتراضي) په قید سره د مکره بیع خارجه شوه.ځکه چه مقصود نافذه بیع بیانول دی.او ،،مبادلـة بلا تراضی،، شرعی بیـع نه ده. د (بطریق التجارة) په قید سره ،،هبه بشرط العوض ،،خارجه شوه.ځکه چه په،، هبه بشرط العوض،، کښې هم (مبادلة المال بالمال) وی.خو د تجارت په طریقه باندې نه وی.دا خیـال سـائل پکار دی.چه په تعریف کښې د مبادله نه مراد تملیك دې.یعنی د مـال په بدلـه کښـې د مـال مالك کول.د بیع مشروع کیدل د قرآن، حدیث ،او اجماع درې وارو نه ثابت دی.

**ثبوته من الکتاب>** د قرآن نه ددې ثبوت په دې آیت سره کیږی ﴿وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَیْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا﴾ ،،الله تعالی حلال کړې ده بیع ،او حرام کړې ئې دې سود،، دا آیت د بیع په جواز باندې دلالت کوی.

**ثبوته من السنة >** ① (عن ابی سعید عن النبی ﷺ قال التاجر الصدوق الأمین مع النبیین والصدیقین والشهداء) ابوسعید خدری رضی الله عنه فرمائی.چه رسول اکرم ﷺ فرمائیلی دی.چه رشتوني او امانت داره سوداګر به ( د قیامت په ورځ ) نبیانو ، صدیقینو، او شهیدانو سره وی. (ترمذی ج۱ص۲۲۹)

**ثبوته من الإجماع>** اجماع هم د بیع په جواز باندې دلالت کوی.ځکه چه د رسـول الله ﷺ د زمانې نه واخله، ترننه پورې ټول مسلمانان د بیع په جواز باندې متفق راروان دی.لکه چه سیرت نګارو لیکلی دی.چه د نبوت نـه پنځلس کاله وړانـدې نبی کـریم ﷺ د ام المـؤمنین حضرت خدیجة الکبری رضی الله عنها دپاره تجارت کړې وو.اواکابرو اصحابو،ټولو تجارت کړې دې.لکـه چـه حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د کپړو سوداګر وو.او حضرت عمر رضی الله عنه د غلې سـوداګر وو.حضرت عثمـان رضی الله عنه کپړو، اود کهجورو تجارت کولو. ملاعلی قاری رحمه الله په شرح نقایه کښې لیکلی دی.چه احنافو عالمانو فرمائیلی دی.چه د جهاد نـه پس د ټولو نـه بهتـره ګټـه تجارت دې.بیـا زمینداری ده.بیـا صـنعت وحرفت (هنراوفن) دې. ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی.چه زما په نیز افضل کسب کتابت ( خوشخطه لیکل ) دې.

**حکمه>** د بیع حکم ملك دې.یعنی مشتری ته د،، مبیع ،،په تصرف باندې قدرت ورکول.

**رکنه>** د بیع رکن ایجاب او قبول دې.ایجاب هغه کلام دې.کوم چه وړاندې اوونیلی شی.که د بائع د طرفه وی.او که د مشتری د طرفه وی.او ددې متعلق دویم کلام ته قبول وائی.

**په بیع کښې د ایجاب او قبول شرعی حیثیت**

| |
|---|
| اَلْبَیْعُ یَنْعَقِدُ بِالْاِیْجَابِ وَالْقَبُوْلِ فرمائی.چه بیع په ایجاب او قبـول سـره متحقق کیږی اِذَا کَانَا بِلَفْظِی الْمَاضِي.چه کله دواړه د ماضی په دوه لفظونو سره وی |

**حل اللغة >** **ینعقد،انعقاد**: منعقد کیدل. **قبول**: قبلول. **بیع** : خرڅول. **اشتراء** : اخستل

**تشریح>** ،انعقاد،، په عاقدینوکښې د یوکس کلام د بل کس کلام سره شرعاً په داسې طریقه متعلق کیدل،چه ددې اثر په محل، یعنی په مبیع کښې ښکاره شی.یعنی مبیع د بائع دملك نه اوځی.اود مشتری په ملك کښې داخل شی.

**معني الإيجاب والقبول** د ایجاب معنی اثبات ده.ځکه چه دا د بل کس دپاره خیارقبول ثابتوی.نو هرکله چه دویم عاقد دا قبول کړلو.نو دده د کلام نوم به قبول وی.حاصل داچه د عاقدینونه رومبی صادرکیدونکي کلام ته ایجاب، او ثانیاً صادریدونکي کلام ته قبول وائي.

**صورته** صورت د مسئلې دادې.چه ،،بیع،، د ایجاب او قبول نه متحقق کیږي.په دې شرط چه د دواړو نه د ماضی په صیغې سره تعبیر کړې شوي وي.مثلاً یوکس اووئیل.(بعت) یعنی ،،ما خرڅ کړو،، او دویم کس اووئیل.(اشتریت)،، ما واخستلو،،نو بیع منعقد کیږي.

**دليله** بیع د داسې تصرف نوم دې.چه د ،،انشاء،، د قبیلې ځنې وی.او انشاء کیدل په شریعت سره معلومیږي. اود ماضی صیغه اګرچه د اخبار دپاره موضوع ده. خو شریعت دا د انشاء په معنی کښې استعمال کړې ده.په دې وجه د ماضی په صیغې سره بیع منعقد کیږي.

**دليل كون البيع من قبيل الإنشاء** بیع د انشاء د قبیلې ځنې ځکه دې.چه انشاء وائی.(اثبات مالم یکن) ته. یعنی غیر موجود ثابتولو نوم انشاء ده.او دا تعریف په بیع باندې صادقیږي.ځکه چه د بیع په ذریعه هم غیر موجود اوغیر ثابت څیز ثابتیږي. یعنی په مبیع باندې د عقد بیع نه وړاندې دمشتری ملک ثابت نه وو.او په ثمن باندې د بائع ملك ثابت نه وو. خود بیع په ذریعه دا دواړه ثابتولې شی.نو د بیع په ذریعه چونکه یو غیر ثابت شوي څیز ثابتولې شی.په دې وجه به بیع د انشاء د قبیلې ځنې وی.

**د خیار قبول حکم**

| وَإِذَا أَوْجَبَ أَحَدُ الْمُتَعَاقِدَيْنِ الْبَيْعَ امام قدوری رحمه الله فرمائی.چه کله په متعاقدینوکښې یوکس د بیع ایجاب اوکړو. فَالْآخَرُ بِالْخِيَارِ نو دویم ته اختیار دې. إِنْ شَاءَ قَبِلَ فِي الْمَجْلِسِ که غواړی.نوهم په دې مجلس کښې دې قبول اوکړی وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ .اوکه (دې خیارقبول) غواړی.نو رد دې کړی. |
|---|

**حل اللغة** ① **اوجب**:واجب کول ② **المتعاقدين**: تثنيه د عاقد،معامله کونکې ③ **قبل**: وړاندې ④ **الخيار**: اختيار

**تشريح** **معني خيار القبول** صورت د مسئلې دادې.چه هرکله په متعاقدینوکښې یو کس د بیع ایجاب اوکړو.مثلاً بائع اووئیل. چه (بعتك هذا بكذا) ما دا سامان د دومره ثمن په عوض خرڅ کړلو.نو دویم کس یعنی مشتری ته په مجلس کښې دننه د قبلولو اود رد کولو اختیارشته دې.یعنی که غواړي.نو دا بیع دې قبول کړی.او که غواړی.نو رد دې کړی.د فقهاؤ په اصطلاح کښې ددې اختیار نوم خیارقبول دې.

**دليله** ددې خیار دلیل دادې.که د ایجاب کونکی نه علاوه بل چاته نه د قبلولو اود رد کولو اختیار نه وی.نو په دې دواړو کښې به یوکس مجبوره وی.او هرکله چه دې مجبوره شو.نو دده رضامندی فوت شوه.حالانکه د بیع انعقاد دپاره د بائع اومشتری دواړو رضامندی ضروری ده.په دې وجه به ده ته خیارقبول حاصل وی.

**وجه تخصيص الخيار بالمجلس** (وانما يمتد الى آخر المجلس....الخ) په دې جملې سره د یو تقدیری سوال جواب دې.سوال دادې.چه د مشتری د رد اوقبول اختیار مجلس سره ولې خاص کړې شوې دې.

**جواب** عقلی طور باندې درې صورتونه دی. ①یو خو داچه د ایجاب نه فوراً پس قبلول لازم اوګرځولې شی.که فوراً نې قبول نه کړی.نو ایجاب به باطل وی. ② دویم صورت دادې.چه قبلول په آخر د مجلس باندې موقوف کړې شی.یعنی مشتری ته دا اختیار ورکړې شی.چه په مجلس کښې قبول اوکړی.یا د

مجلس نه پس قبول اوکړي.په دواړو صورتونوکښې به بيع تام وي. ③ دريم صورت دادې.چه خيار آخر د مجلس پورې باقي اوساتلې شي.اود مجلس ختميدلو نه پس خيارقبول باقي پاتې نشي.

**اليسر في الصورة الثالثة** > په دې دريم صورت کښې د دواړو دپاره آساني ده.ځکه چه مشتري ته هم په مجلس کښې د غور اوفکر موقع ملاويږي.او بائع به هم ډير زيات انتظار نه کوي.

### د قبول نه وړاندې د احدالمتعاقدين د مجلس نه پاسيدل

| فَأَيُّهُمَا قَامَ عَنِ الْمَجْلِسِ قَبْلَ الْقَبُولِ اوپه ( بائع او مشتري ) دواړوکښې چه هريو د قبولولو نه وړاندې پاسيدلو بَطَلَ الْإِيجَابُ.نو ايجاب باطل شو |
|---|

**تشريح** > **صورته** > صورت د مسئلې دادې.چه د احدالمتعاقدين د ايجاب او قبول نه پس د آخر د قبلولو نه وړاندې په دواړوکښې که يوکس پاسيدلو.نوايجاب باطل شو.او دده دا اودريدل به د ايجاب نه د رجوع کولو دليل وي.او که عاقد آخر پاسيدلو.نو دده پاسيدل به د قبلولو نه د اعراض کولو دليل وي.اودا وړاندې تيرشوی دي.چه موجب ته دخپل ايجاب نه د رجوع کولو اختيار شته.او آخر ته د قبلولو يا د اعراض يعني د بيع د رد کولواختيار حاصل دې. او په دې دواړو صورتونوکښې ايجاب باطليږي.

### د خيار مجلس شرعي حيثيت

| فَإِذَا حَصَلَ الْإِيجَابُ وَالْقَبُولُ اوکله چه ايجاب او قبول حاصل شو لَزِمَ الْبَيْعُ نو بيع لازم شوه وَلَا خِيَارَ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا. او په دوی دواړوکښې هيڅ يوکس ته د رجوع کولو اختيار نشته إِلَّا مِنْ عَيْبٍ أَوْ عَدَمِ رُؤْيَةٍ.خود عيب په وجه يا دنه کتلو په وجه ( به خيارحاصل وي) |
|---|

**حل اللغة** > **العيب** : نقصان، **روية** : ليدل ، **خيار** : اختيار، **الثبوت** : ثابتيدل

**تشريح** > **المذهبان في المسئلة** > هرکله د عاقدينو د طرفه ايجاب او قبول حاصل شو.نو بيع لازمه شوه.او په بائع اومشتري کښې د هر يوکس دپاره ملك ثابت شو.يعني بائع د ثمن مالك شو.او مشتري د مبيع مالك شو.اوس به په دوی کښې د هيڅ يو کس دپاره د بيع فسخ کولو اختيار نه وي.

**صورتي جواز البيع** > خوکه په مبيع کښې څه عيب وي.يا ئې مبيع بغير د کتلو نه اخستې وي.نو په دې دواړو صورتونوکښې به مشتري ته خيار حاصل وي.په ړومبی صورت کښې خيار عيب،او په دويم صورت کښې به خيار روٴيت حاصل وي.

| وَلَنَا او زمونږ دليل دادې. أَنَّ فِي الْفَسْخِ چه په فسخ کولوکښې إِبْطَالَ حَقِّ الْآخَرِ د غير حق باطلول لازميږي فَلَا يَجُوزُ په دې وجه جائز نه دې. |
|---|

**تشريح** > داحنافو دليل د الله تعالی قول دې ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ ﴾ يعني که د يوبل په رضامندئ سره تجارت اوشو.نو الله تعالی مشتري دپاره په بيع کښې د خوړلو اجازت دې.اود ايجاب او قبول نه پس تجارت صادقيږي.نو معلومه شوه.چه دايجاب او قبول نه پس مشتري مبيع،او بائع ثمن استعمالولې شي.اودا استعمالول په خيار باندې موقوف نه دي.نو که عاقدينو ته د خيار مجلس حق ورکړې شو.نو دا نص به باطل شي.او بطلان د نص ټيك نه دې.په دې وجه به ددوی دپاره خيار مجلس نه ثابتيږي.

دویم دلیل د الله تعالی قول (واشهدوا اذاتبایعتم) دی. په دې آیت کښې د شهادت سره د بیع د توثیق حکم ورکړې شوې دې.چه احدالعاقدین د بیع انکار اونکړی.او،،بیع،، خیار نه ورانديې دایجاب او قبول نه پس صادقیږی.نو که خیار ثابت کړې شو.نو دا نص به باطل وی.او بطلان د نص درست نه دی.په دې وجه هم د عاقدینو دپاره خیار مجلس ثابت نه دې.

اوعقلي دلیل دادې.چه په ایجاب او قبول سره بیع تام اوشوه.او د مشتری ملك په مبیع کښې او د بائع حق په ثمن کښې ثابت شو.اوس که دوی ته خیار مجلس ورکړې شی. نود خپل خیار په وجه چه کوم کس هم بیع فسخ کړی.نو دده د ملګری د رضامندئ نه بغیر دده حق باطلول لازمیږی.مثلاً بائع که د خپل خیار په وجه بیع فسخ کړی.نو د مبیع نه به د مشتری ملك بغیر دده د رضامندئ نه زائل شی.او که مشتری فسخ کړی.نود بائع حق ثمن به باطل شی.په هر صورت کښې چه څوك نې هم فسخ کړی.نو دده د ملګری د رضامندئ نه بغیر دده حق باطلول لازمیږی. اود رضامندئ نه بغیر د غیر حق باطلول ناجائز دی.په دې

وجه د عاقدینو دپاره خیارمجلس ثابت نه دې.[1]

| وَالتَّفَرُّقُ فِيهِ تَفَرُّقُ الْأَقْوَالِ او په حدیث کښې د تفرق نه تفرق د اقوالو مراد دې. |
|---|

**تشریح>** او د تفرق نه مراد تفرق اقوال دې.یعنی خیارقبول ثابت دې.چه ترکومه پورې عاقدین قولاً متفرق نشی.او که دواړه قولاً متفرق شی.په دې طریقه چه په دوی کښې یو،، بعت ،،اوبل ،،اشتریت،، اووائی.نو ددې نه پس به خیار باقی نه وی.

| وَالْأَعْوَاضُ الْمُشَارُ إِلَيْهَا لَا يُحْتَاجُ إِلَى مَعْرِفَةِ مِقْدَارِهَا فِي جَوَازِ الْبَيْعِ اود بدلې څیز کوم ته چه اشاره شوې وی نوپه جواز د بیع کښې دهغې اندازه معلومولو ته حاجت نشته.وَالْأَثْمَانُ الْمُطْلَقَةُ لَا تَصِحُّ اوکوم ثمن چه مطلق دی.( په دې سره به) عقد صحیح نه وی إِلَّا أَنْ تَكُونَ مَعْرُوفَةَ الْقَدْرِ وَالصِّفَةِ مګر داچه مقدار او صفت معلوم وی. |
|---|

**حل اللغة> الأثمان** : جمع د ثمن، **المطلقة** : غیرمقید، **معروفة** : معلوم، **القدر** : مقدار

**تشریح> عدم جواز البیع في الأموال الربویة >** واضحه دې وی.چه عوض که د اموال ربویه څنې وی.مثلاً درهم ، دنانیر، غنم،اوربشې،چه دا دخپل جنس په عوض خرڅ کړې شی.او ددې مقدار معلوم نه وی.نودا جائز نه دی. اګرچه دې طرف ته اشاره شوې وی.مثلا درهم د درهمو په عوض کښې خرڅول.یا غنم د غنمو په عوض کښې خرڅول.اود دواړو مقدار معلوم نه وی.نودا بیع ناجائز ده.اګرچه دواړو عوضونو طرف ته اشاره شوې وی.څکه چه په دې صورت کښې د ربوا احتمال موجود دې.او تاسو ته معلومه ده.چه څنګه ربوا حرام ده.دغه شان احتمال د ربوا هم حرام ده.

---

[1]) **اختلاف الشافعي**:- په زیربحث مسئله کښې دامام شافعی رحمه الله په نیز اود امام احمد رحمه الله په یو قول کښې دا دی چه په عاقدینو کښې د هریو کس دپاره خیارمجلس ثابت دې.یعنی د ایجاب او قبول نه پس هر یو کس ته د ملګری د رضامندئ نه بغیر په مجلس کښې دننه د بیع فسخ کولو حق حاصل دې.خو د مجلس نه پس به دا اختیار باقی نه وی.

**فائدة قيد البيع** > په متن كښې د بيع په قيد لګولو سره د ،، سلم،، احتراز شوې دې.ځکه چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په بيع سلم كښې د راس المال ( ثمن ) مقدار معلومول شرط دی.اګرچه دې طرف ته اشاره شوې وی.

**وجوب معرفة القدر والصفة في الأثمان** > ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.كه ثمن طرف ته اشاره اونكړې شوه.نو په دې سره به عقد هغه وخت صحيح وی.چه ددې مقدار او وصف دواړه معلوم وی.او كه مقدار او وصف دواړه معلوم نه وی.مثلا دا ئې اوونيل.چه ما دا څيز د سروزرو په عوض كښې واخستلو.او نه ئې ددې مقدار بيان كړلو.او نه ئې ددې صفت بيان كړلو.نو دا بيع به جائز نه وی.اود مقدار د بيان صورت دادې.چه اووائی.ما دا څيز د لسو درهمو په عوض واخستلو.اود صفت د بيان صورت دادې.چه داسې اووائی.چه دا دينار بخاری دې.يا سمرقندی دې.يا اعلي دې.يا ردی دې.

**دليله** >نوكه د ثمن مقدار او وصف معلوم نه وی.او ثمن مشاراليه هم نه وی.نو بيع ځكه ناجائز ده.چه د عقدبيع په وجه تسليم او تسلم، يعنی وركول او اخستل واجبيږی.اودا جهالت يعنی د مقدار او وصف جهالت د انجام په اعتبار سره جګړه پيدا كوی.مثلا د مقدار مجهول كيدلو په صورت كښې به بائع د زيات ثمن مطالبه كوی.او مشتری به ردی وركوی.نود داسې جهالت په وجه تسليم او تسلم ناممكن دې.حالانكه تسليم او تسلم د عقد بيع په وجه واجبيږی.نو هركله چه تسليم او تسلم ناممكن شو.نو بيع به هم درست نه وی.

**القاعدة** > دا يوه قاعدې ده لكه څنګه چه علامه مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی.چه كوم جهالت جګړه پيدا كوی.هغه د بيع جائز كولو نه مانع دې.او كوم جهالت چه ،، مفضی الى المنازعه،، نه وی.هغه د بيع د جواز دپاره مانع نه دې.مثلا يو كس په دوه غلامانوكښې يو غلام خرڅ كړلو.او مشتری ته ئې د تعين اختيار وركړلو.نو د مبيع مجهول كيدلو باوجود بيع درست ده.ځكه چه په دې صورت كښې جهالت اګرچه موجود دې.خو مشتری ته د تعين اختيار وركولو په وجه ،، مفضی الى المنازعه،، نه دې.

## په قرض ثمن سره د بيع حكم

| وَيَجُوزُ الْبَيْعُ بِثَمَنٍ حَالٍّ وَمُؤَجَّلٍ قدوری رحمه الله فرمائی.او بيع د نغد ثمن په عوض اود قرض ثمن په عوض جائز ده إِذَا كَانَ الْأَجَلُ مَعْلُومًا په دې شرط چه ميعاد معلوم وی |
|---|

**حل اللغة** > **المؤجل** : نيته

**تشريح** > **جوازالبيع نقداً ونسيا** > بيع په نغدو او قرضو دواړه شان جائز ده.په دې شرط چه د قرضو موده معلومه وی.كه د قرضو موده معلومه نه وی.نو بيع به فاسد وی.

**دلائله** > ① دليل دادې.چه الله تعالى ﴿وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ﴾ مطلق فرمائيلی دی.يعنی بيع مطلقا حلال ده.ثمن كه نغد وی.او كه قرض وی.په دې آيت كښې دواړه داخل دی.

② د رسول الله ﷺ حديث دې.حديث دادې.چه رسول اكرم ﷺ د ابوشحم نومې يهودی نه څه غله د يوې مودې په وعده باندې قرض واخستله.او خپله زغره ئې دده سره رهن كيخودله.اود بخاری په حديث كښې د (ثلاثين صاعا من شعير) لفظ دې.يعنی نبی كريم ﷺ ديرش صاع اوربشې واخستلې.

## د مطلق ثمن نه به كوم نقديت مراد وی؟

| وَمَنْ أَطْلَقَ الثَّمَنَ فِي الْبَيْعِ قدوری رحمه الله فرمائی.اوكوم كس چه په بيع كښې ثمن مطلق اوساتلو |
|---|

كَانَ عَلٰى غَالِبِ نَقْدِ الْبَلَدِ نوكوم ثمن چه دغه ښار كښې د ټولو نه زيات رائج وى.هم په دې به محمول كولې شى.

**تشريح> صورة المسئلة>** په يوښار كښې كه مختلف قسمه سكې رائج وى.او په ماليت كښې ټول برابر وى. مثلا په يو ښار كښې بخارى او سمرقندى دواړه سكې رائج وى.او ماليت د دواړو برابر دې.نو په داسې صورت كښې كه ثمن مطلق ذكر كړې شو.يعنى صرف مقدار ذكر كړې شو.خو صفت ئې ذكر نكړو.مثلا دانې اوونيل.چه ما داخيز په لس درهمو واخستلو.خودا ئې اونه وئيل.چه دا درهم به بخارى وى.او كه سمرقندى به وى.نودا به د ښار په غالب نقديت باندې محمول كولې شى.

**دليله>** دليل دا دې چه د كومې سكې رواج او چلن زيات وى.متعارف هم هغه وى.او قاعده ده.چه ( **المعروف كالمشروط**) يعنى معروف او متعارف ته هم هغه درجه حاصل وى.كومه چه مشروط ته حاصله وى .نو د يوې سكې د شرط كولو په وجه چه څنګه په مشترى باندې مشروط ثمن واجبيږى.دغه شان د عدم شرط په صورت كښې هم متعارف سكه واجبيږى.او متعارف به هم هغه وى.د كوم چلن چه زيات وى.په دې وجه مونږ اووئيل.چه په ښار كښې دكومې سكې چلن زيات وى.د مطلق ثمن وئيلو په صورت كښې به هم دا واجب وى. د ښار په غالب نقديت باندې دمحمول كولو په صورت كښې د بيع جواز طلب كول دى.په دې وجه به هم دا د ښار غالب نقديت طرف ته ګرځولې شى.

**د مختلف نقديت رائج كيدلو په وخت د تعين نه بغير د بيع د نفاذ حكم**

فَإِنْ كَانَتِ النُّقُوْدُ مُخْتَلِفَةً بيا كه ددې نقود ماليت مختلف وى فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده إِلَّا أَنْ يُبَيِّنَ أَحَدُهَا مګردا چه په دې كښې يو بيان كړى

**تشريح>** ددې مسئلې عقلاً څلور صورتونه دى.څكه چه① يا به په ماليت او رواج دواړو كښې اختلاف نه وى. ② يا به په دواړو كښې اختلاف وى.③ يا به په ماليت كښې اختلاف نه وى.او په رواج كښې به اختلاف وى. ④يا به په رواج كښې اختلاف نه وى.بلكه په ماليت كښې به اختلاف وى.د دريم صورت بيان په تيره شوې مسئله كښې ذكرشوې دې.

دڅلورم صورت بيان په دې عبارت كښې دې.فرمائى.چه په ښار كښې د ننه كه د ټولو مروجه نقودو ماليت مختلف وى.او په رواج كښې ټول برابر وى.نو بيع به فاسد وى.خو كه په دې كښې يوه سكه بيان كړى.( نو بيع به جائز وى)

**دليله>** د ,,اختلاف فى الماليت ,, په صورت كښې د سكې مجهول كيدل جګړه پيدا كوى.په دې طريقه چه بائع به د هغه سكې مطالبه كوى.د كومې ماليت چه زيات دې.او مشترى به د هغه سكې وركولو كوشش كوى.د كومې ماليت چه كم دې.او داسې جهالت د بيع مفيد نه وى.په دې وجه به په دې صورت كښې بيع فاسد وى.خو كه د يوې سكې په بيانولو سره ددې جهالت لرې كړې شو.نو بيع به درست وى.

د دويم صورت بيان دې.يعنى كه نقود په ماليت او رواج دواړو كښې مختلف وى.په دې طريقه چه په ماليت كښې هم تفاوت ( كمې زياتې ) وى.او په چلن كښې هم تفاوت وى.يعنى د يوې سكې چلن كم وى.او دبلې زيات وى.نو په دې صورت كښې به بيع درست وى.او په مشترى به هغه سكه واجبه وى.د كومې چلن چه زيات وى.څكه چه په داسې كولوكښې، يعنى په اغلب او په اروج باندې په محمول

کولو کنبې د بیع جواز طلب کول دی.اود عاقل بالغ فعل او قول حتی الامکان په جواز باندې محمول کول پکار دی.

| وَاِنْ وَجَدَهَا اَكْثَرَ مِنَ الذِّرَاعِ الَّذِيْ سَمَّاهُ اوکه مشتری دا ددې گزونو نه زیاته اوموندله.کوم نې چه بیان کړی وو فَهِيَ لِلْمُشْتَرِيْ نودا زیاتی به د مشتری دپاره وی وَلَاخِيَارَ لِلْبَائِعِ.او بائع ته هیڅ اختیار نشته |
|---|

**حل اللغة**> **تسمية**:نامدار کول_ **الخيار**:اختیار

**تشريح**> **ان وجد الثوب اكثر من القدر المعقود عليه**> او که زمکه یا کپړه د مقرر گزونو نه زیاته اوختله.نودا زیاتوالې به د مشتری دپاره وی.او بائع ته به هیڅ اختیار نه وی.

**دليله**> ځکه چه ذراع (گز) یو وصف دې.او د وصف په مقابله کښې د ثمن هیڅ حصه نه راځی.په دې وجه د گزونو په زیاتیدلو سره په ثمن کښې اضافه نشی کیدلې.اودا داسې ده.لکه مثلا یو غلام نې په دې خیال واخستلو.چه دا نابینا دې.او هم په دې حساب سره نې ثمن مقرر کړو.بیا روسته معلومه شوه.چه دې خو بینا دې.( یعنی روند نه دې) نو د بصارت ددې وصف په زیاتیدلو سره په ثمن کښې اضافه نه کیږی.او بائع ته به هیڅ اختیار نه وی.

**یو معین مقدار کپړه د معین درهمو په بدله کښې د کمی زیاتی حکم**

| وَاِنْ قَالَ بِعْتُكَهَا عَلٰى اَنَّهَا مِائَةُ ذِرَاعٍ بِمِائَةِ دِرْهَمٍ اوکه بائع اوونیل.ما په تا دا کپړه په دې شرط خرڅه کړله.چه سل گزه د سل درهمو په عوض كُلُّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ په دې حساب چه هرگز د یو درهم په عوض دې فَوَجَدَهَا نَاقِصَةً مشتری دا کم اوموندلو فَهُوَ بِالْخِيَارِ.نو مشتری ته اختیار دې. اِنْ شَاءَ اَخَذَهَا بِحِصَّتِهَا مِنَ الثَّمَنِ که غواړی.نو موجود( کپړه) ددې حصې د ثمن په عوض واخلی وَاِنْ شَاءَ تَرَكَهَا.اوکه غواړی.ترک دې کړی. |
|---|

**حل اللغة**> **المائة**:سل_ **الذراع**:گز_ **الترک**: پریخودل_ **ناقصة**:نقصانی،

**تشريح**> **حكم وجدان الذراع ناقصة**>صورت د مسئلې دادې.چه یو سړی په دې شرط یوه کپړه واخستله.چه سل گزه تان به د سلو درهمو په عوض کښې وی.په دې حساب چه یو گز به د یو درهم په عوض کښې وی.بیا نې چه دا تان ناپ کړو.نودا د سلو گزو نه کم اوختلو.نو په داسې صورت کښې مشتری ته اختیار دې.که غواړی.نو موجوده کپړه ددې د حصې د ثمن په عوض کښې واخلی.او که غواړی.نو نه دې اخلی.

**دليله**> د حصې د ثمن په عوض کښې د اخستلو دلیل دادې.چه ذراع اگرچه تابع او وصف دې.خود ،،کل ذراع بدرهم ،، په ذریعه، چونکه د هر ذراع ثمن جدا جدا ذکرشوې دې.ځکه ذراع اصل شو.ځکه چه د ثمن د څه څیز په مقابله کښې راتلل ددې څیز د اصل کیدلو علامت دې.نود هر ذراع په مقابله کښې د ،،بدرهم،، په ذریعه د ثمن بیانولو وجه، هر ذراع په منزله د کپړې اصل دې.اودا داسې ده.لکه چه ده سل کپړې خرڅ کړی دی.او کپړې چونکه اصل دی.په دې وجه ددې په مقابله کښې ثمن راځی.او هرکله چه ددې په مقابله کښې ثمن راځی.نو په څومره اندازه چه گزونه کم شی.هم په دومره اندازه به ثمن هم کمیږی.

اِنْ وَجَدَهَا زَائِدَةً او که مشتری دا زیاته اوموندله كَانَ الْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ نومشتری ته اختیار دې اِنْ شَاءَ اَخَذَ الْجَمِيعَ كُلَّ ذِرَاعٍ بِدِرْهَمٍ که غواړی.نو پوره کپړه په حساب د هر گز د یودرهم په عوض واخلی وَاِنْ شَاءَ فَسَخَ الْبَيْعَ او که غواړی.نو بیع دې فسخ کړی

**تشریح>** **حکم وجدان الثوب زائدا من القدر المعقود علیه:** اوکه مشتری دا گزونه د سلو نه زیات اوموندل.نو بیا هم مشتری ته اختیار دې.که غواړی نو ټول گزونه دې په حساب د هرگز د هر درهم په عوض واخلی.او که غواړی. نو بیع دې فسخ کړی.اودا اختیار په دې وجه دې.چه مشتری ته که څه گزونه د سلو نه زیات ملاویږی.نو په ده باندې د ثمن زیاتوالي هم لازمیږی.نو دا داسې نفع شوه.چه په دې کښې ضرر هم ملاؤ دې.او په داسې صورت کښې خیار حاصل وی.په دې وجه مشتری ته په دې صورت کښې هم خیار حاصل وی.

**دلیله>** اوپه مشتری باندې د سلو درهمو نه زیاتی ثمن په دې وجه واجب شوې دې.چه د ذراع په مقابله کښې چونکه ثمن ذکر شوې دې.په دې وجه ذراع به منزله د اصل شو.اود اصل مبیع په زیاتوالی سره ثمن زیاتیږی.په دې وجه که مشتری د ټولو گزونو کپړه اخستلو فیصله اوکړی.نو په ده به د زیاتی ثمن هم واجب وی.که بالفرض مشتری د سلو گزو نه زیاتی تان د سلو درهمو په عوض واخلی.نو په دې صورت کښې به دا د(كل ذراع بدرهم) شرط موافق اخستونکې نه وی.حالاتکه بائع په دې شرط سره خرخ کړې دې.نود (كل ذراع بدرهم) شرط پوره کولو دپاره هم په مشتری باندې هم په دې اندازه به زیات ثمن واجب وی.په څومره اندازه چه ذراع د سلو نه زیاتی وی.

ولوقال بعت منك هذه الرزمة اوکه وې وئیل چې ما خرخ کړل په تا باندې دا پنډ علی انها عشرة اثواب په دې شرط چې دا لس تهانه دی بمائة درهم په سل روپئ كل ثوب بعشرة هر یو تهان په لس روپئ فان وجدها ناقصة نو که وې موندله هغه کمه جاز البيع بحصته نو جائز ده بیع په خپل حساب سره

**تشریح>** صورت د مسئله دا دې چې بائع مشتری ته اووئیل دا پنډ دې په دې کښې لس تهانه او هر یو تهان د لسو روپو دې کله چې یې پنډ اوسپړدل نو په هغې کښې نښه تهانونه راوختل نو مشتری به په لس کم سل روپئ باندې نهه تهانونه واخلی

**دلیله>** ځکه چې د نهو تهانونو چې یو تهان په لس روپئ وی لس کم سل روپئ جوړیږی نو خبره مفضی الی النزاع نه ده.عقد صحیح دې.

وان وجدها زائدة فالبيع فاسد او که وې موندله زیاته نو بیع فاسده ده

**تشریح>** په ذکر شوی صورت کښې که تهانونه زیات وو مثلاً یولس وو نو په دې صورت کښې بیع فاسده ده

**دلیله>** ځکه چې په دې صورت کښې د اختلاف پیدا کیدو ویره ده.په دغه یولسو تهانونو کښې به مشتری چاڼ کوی اونښه به په کښې گوری او بائع به ورسره په هغې کښې اختلاف کوی.نو ددې وجې دا عقد مفضی الی النزاع دې نو فاسد به وی

**بغير د نوم ذکر کولو نه په بيع کښې داخليدونکې څيزونه**

| |
|---|
| **وَمَنْ بَاعَ دَارًا** او چاچه يو دار (کور) خرڅ کړو **دَخَلَ بِنَاؤُهَا فِي الْبَيْعِ** نوددې عمارت به په بيع کښې داخل وى **وَإِنْ لَمْ يُسَمِّهِ.** اګرچه دا ئې نه وى بيا کړې |

**تشريح> دخول ابناء في بيع الدار>** په اردو ژبه کښې د ،، دار،، لفظ مطلقاً د کور دپاره ونيلې شى.او هم په دې معنى کښې ،،منزل،،او،، بيت،، هم دې.خو په عربئ ژبه کښې فرق دې.چه ،،دار،، **هغه** (کور) ته وائى.چه په هغې کښې صحن وى.ورې ورې کمرې وى.مخې ته برانډه وى.باورچى خانه وى.اود څاروو باړ( شپول ) وى. او،، منزل،، هغه دې.چه په هغې کښې ورې ورې کمرې، باورچى خانه.او بيت الخلاء( ليټرين) وى.او صحن نه وى.او،، بيت ،، هغه مسقف کوټې ته ونيلې شى.چه په هغې کښې يوه دروازه وى.

ددې بحث مسئلو بنياد په دوه قاعدو باندې دې. ① هر هغه څيز چه هغې ته په عرف کښې لفظ د بيع شامله وى.هغه په بيع کښې داخليږى.اګرچه په صراحت سره ئې دا بيان کړې نه وى. ② هرهغه څيز چه هغه د مبيع سره د برقرار ساتلو دپاره متصل وى.هغه د مبيع تابع وى.او په بيع کښې داخل وى.
اوس صورت د مسئلې دادې.چه يو سړى کور خرڅ کړو.نو ددې عمارت به په بيع کښې داخل وى.اګرچه عمارت ئې په بيع کښې صراحت سره نه وى ذکر کړې.

**دلائله>** ① ځکه چه په عرف کښې لفظ د،، دار،، ميدان او عمارت دواړو ته شامل وى.

② دويم دليل دادې. چه د عمارت اتصال د زمکې سره برقرار او باقى پاتې کيدلو دپاره دې.په دې وجه به عمارت د ميدان تابع وى.او په بيع کښې به داخل وى.

**د زمکې په بيع کښې وُنې داخل دي**

| |
|---|
| **وَمَنْ بَاعَ أَرْضًا** اوکوم کس چه يوه زمکه خرڅه کړله **دَخَلَ مَا فِيهَا مِنَ النَّخْلِ وَالشَّجَرِ فِي الْبَيْعِ** نو په بيع کښې به ددې زمکې د کجورو وُنې او نورې وُنې داخل وى **وَإِنْ لَمْ يُسَمِّهِ.** اګرچه دانې ذکرکړې نه وى **وَلَا يَدْخُلُ الزَّرْعُ فِي بَيْعِ الْأَرْضِ إِلَّا بِالتَّسْمِيَةِ** اود زمکې په بيع کښې فصل نه داخليږى مګر په ذکر کولو سره (په بيع کښې داخليږى) |

**حل اللغة> نخل:** د قجورې ونه _ **زرع:** پټې \ فصل

**تشريح> دخول الشجر والثمر في بيع الارض>** مسئله داده.چه يوکس زمکه خرڅه کړله.اوپه دې زمکه کښې وُنې دى.نودا وُنې به د زمکې په بيع کښې داخلې وى.وُنې که غټې وى.او که ورې وى.ميوه دارې وى.او که ميوه دارې نه وى.په صراحت سره ئې ددې ذکر کړې وى.او که نه وى کړې.
**دليله>** دليل دادې.چه د وُنو اتصال زمکې سره د قرار او باقى ساتلو دپاره دې.دجدا کولو دپاره نه دې.نو وُنې د عمارت مشابه شوې.نو لکه څنګه چه د،، دار،، په بيع کښې عمارت داخل وى.دغه شان به د زمکې په بيع کښې وُنې هم داخل وى.اګرچه د عقد بيع په وخت ئې ددې ذکر نه وى کړې.
**د زمکې په بيع کښې د فصل حکم:** او که په زمکه کښې فصل ولاړ وو.نود زمکې په بيع کښې به فصل داخل نه وى.خود عقد بيع په وخت ئې د زمکې سره د فصل ذکر کړې وو.نو فصل به هم داخل وى.دليل دادې.چه فصل زمکې سره متصل وى.د جدا کولو دپاره.د باقى ساتلو دپاره نه وى.نو فصل د هغې سامان مشابه شو.کوم ئې چه په کور کښې ايخولې وى.نو لکه څنګه چه د کور په بيع کښې

سامان داخل نه وي.دغه شان د زمکې په بيع کښې فصل هم داخل نه وي.

**السوال>** که دا سوال اوکړې شي.چه حمل، مورسره د جداکيدلو دپاره متصل دې.خو ددې باوجود حمل د مور په بيع کښې داخليږي.حالانکه د قاعدې مطابق داخليدل نه دي پکار.

**الجواب>** ددې جواب دادې.چه د حمل جدا کول، د انسان په قدرت کښې نه دي.بلکه دا د الله تعالى کار دې.اود فصل اود سامان جدا کول د سړي په طاقت کښې وي.په دې وجه حمل په فصل اود کور په سامان باندې قياس کول ټيک نه دي.

## د ونو په بيع کښې د ميوو حکم

| |
|---|
| وَمَنْ بَاعَ نَخْلًا أَوْشَجَرًا فِيهِ ثَمَرَةٌ اوکوم کس چه د کجورو ونه، ياځه ميوه داره ونه چه په دې کښې ميوه وي.خرڅه کړله فَثَمَرَتُهُ لِلْبَائِعِ نو ددې ميوې به بائع دپاره وي إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَهَا الْمُبْتَاعُ مکر دا چه مشتري د دې شرط اولګوي |

**حل اللغة>** **نخل**: د قجورې ونه _ **ثمر**: ميوه _ **اشتراء**: اخستل _ **المبتاع**: اخستونکې

**تشريح>** **دخودل الثمر في بيع النخل والشجر>** صورت د مسئلې دادې.که يو کس يوه ميوه داره ونه خرڅه کړله.نو ددې ميوې به د بائع دپاره وي.خو که مشتري د ونو سره ميوې هم واخستلې.نو ميوې به هم د مشتري دپاره وي.

**دلائله>** ① دليل دا حديث دې.(من اشترى أرضاً فيها نخل فالثمرة للبائع إلا أن يشترط المبتاع)[1] يعنى که يو کس د ميوه دارو ونو زمکه واخستله.نو ميوې به د بائع دپاره وي.خو که مشتري د ميووشرط هم اولګوي.نو ميوې به د مشتري دپاره وي. ② دويم دليل د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حديث دې.د حديث الفاظ دادي.(ومن باع عبداً وله مال فماله للبائع إلا أن يشترط المبتاع ومن باع نخلاً مئبراً فالثمرة للبائع إلا أن يشترط المبتاع) يعنى کوم سړي چه غلام خرڅ کړلو.حالانکه د غلام سره مال دې.نودا مال به د بائع وي.البته که مشتري شرط اولګوي چه دا غلام سره دده د مال نه ما واخستلو.نو بيا به غلام سره د مال نه د مشتري وي اوچا چه د کجه قلم شوي قجوره خرڅه کړله.(يعنى چه په زنانه قجوره کښې د نارينه قجورې ښاخ اولګوي) نو ميوې به د بائع دپاره وي.خودا چه مشتري شرط اولګوي.(نو بيا به ميوې د مشتري دپاره وي) ددې حديث نه هم ثابتيږي.چه د ونې ميوې به د بائع دپاره وي. ③ عقلي دليل دادې.چه د ميوو اتصال د ونې سره اګرچه پيدائشي دې.خودا د شوکولو دپاره دی.د باقي ساتلو دپاره نه دی.نود ونې ميوې د فصل مشابه شوې.نو لکه څنګه چه د زمکې فصل د زمکې په بيع کښې نه داخليږي.دغه شان د ونو ميوې هم د ونو په بيع که نه داخليږي.

---

1) خرجه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل حديث عبدالله بن عمر عن أبيه عن النبي ﷺ من باع عبداً وله مال فماله للبائع إلا أن يشترط المبتاع ومن باع نخلاً مؤبراً فالثمرة للبائع إلا أن يشترط المبتاع أخرجه البخاري في البيوع باب ۹۰ وأبوداود في البيوع باب ۴۲ رقم ۳۴۳۳ والترمذي في البيوع باب ۲۵ رقم ۱۲۴۴ والنسائي في البيوع باب رقم ۴۶۳۶ وابن ماجه في التجارات باب ۳۱ رقم ۲۲۱۱ وأحمد في المسند ۲/۶ كذا في نصب الراية ۳/۱۰_

## د بدوصلاح نه وړاندې او روسته د میوو د بیع حکم

وَمَنْ بَاعَ ثَمَرَةً چاچه داسې میوې خرڅې کړلې لَمْ يَبْدُ صَلَاحُهَا چه ددې صلاح ښکاره شوې نه ده. أَوْقَدْ بَدَا یا ښکاره شوې ده جَازَالْبَيْعُ.نو بیع جائز ده

**حل اللغة** ﴿ **یبدو**: ښکاره کیږی ـ **صلاح**: پوخوالې

**تشریح** ﴿ **جواز بیع الثمر لم یبد صلاحها** ﴿ ①په وونو کښې د میوو ښکاره کیدو نه وړاندې د هغې خرڅول په اتفاق سره ناجائز دی ② اوچه په وونو کښې میوې وی اود هغې صلاح ښکاره شی نو په اتفاق سره ئې خرڅول جائز دی.اوکه صلاح ئې نه وی ښکاره شوې نو بیا هم د احنافو په نیز د هغې خرڅول جائز دی بیا داحنافو ﷺ په نیز صلاح ښکاره کیدل دادی.چه میوې د طوفان ( سیلۍ ) وغیره آفت نه.اود کلۍ وغیره د فساد نه محفوظ شی.

**دلیله** ﴿میوې مال متقوم دې.څکه که صلاح ښکاره شو.نو ددې نه فورا فائده اخستلې شی.او که صلاح ښکاره نشو.نو په راروان وخت کښې به دا فائده مند کیږی.او کوم څیز چه د فائده اخستلو قابل وی.هغه متقوم وی.په دې وجه میوې د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې هم متقوم دی.اود صلاح ښکاره کیدلو نه پس هم متقوم دی.اود مال متقوم بیع جائز ده.په دې وجه په ذکر شوی دواړو صورتونوکښې به د میوو بیع جائز وی.

**المذهب الثاني** ﴿په ذکر شوې مسئله کښې د صلاح ښکاره کیدو نه وړاندې د امام مالك، امام شافعی، اود امام احمد ﷺ په نیز د هغې خرڅول ناجائز دی.

**دلیلهم** ﴿رسول الله ﷺ د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې د میوو د بیع خرڅولو نه منع فرمائیلې ده. ② دویم دلیل دادې.چه بیع د مال متقوم سره مخصوص دې.اود صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې میوې متقوم نه وی.په دې وجه صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې د میوو خرڅول ناجائز دی.

**الجواب منه** ﴿ خود دې حدیث جواب دادې.چه نبی کریم ﷺ د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې د میوو د بیع نه په هغه صورت کښې منع فرمائیلې ده.چه کله د میوو په ونه باندې د پریخودلو شرط اولګولی شی.او په ونه باندې د پریخودلو په شرط سره بیع ناجائز ده.لکه چه په راروانه مسئله کښې به راشی.یا مراد دادې.چه نبی کریم ﷺ د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې د بیع سلم کولو نه منع فرمائیلې ده.او قرینه داده.

چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی.(أرأيت لوأذهب الله الثمرة لم يستحل أحدكم مال أخيه) یعنی ستاخه خیال دې که الله تعالی میوې ضائع کړی نو ته د خپل رور مال په څه وجه حلال ګنړې.اودا خبره د بیع سلم په صورت کښې کیدلې شی.څکه چه په بیع سلم کښې مسلم فیه، یعنی د مبیع سپارل فوراً نه کیږی.بلکه روستو کیږی.بهرحال ددې نه معلومه شوه.چه د الله رسول ﷺ د میوو صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې د سلم کولو نه منع فرمائیلې ده.ددې جواب نه پس دا حدیث د امام شافعی ﷺ وغیره مستدل نه جوړیږی

وَوجب عَلَى الْمُشْتَرِي قَطْعُهَا فِي الْحَالِ په مشتری باندې فی الحال ددې میوو شوکول واجب دی

**تشریح** ﴿ **وجوب القطع علي المشتری** ﴿ صاحب دقدوری ﷺ فرمائی. چونکه د میوو بیع د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې هم جائز ده.اود صلاح ښکاره کیدلونه پس هم.په دې وجه به په مشتری باندې فورا د

میوو شوکول واجب وی.

**دلیله>** چه د خپل ملك نه د بائع ملك، یعنی ونې فارغ کړی.صاحب دهدایه رحمه الله په هدایه کښې فرمائی.چه په ونو باندې د میوو بیع جواز هغه وخت دې.چه کله میوې د څه شرط نه بغیر واخلی.یعنی نه ئې د میوو شوکولو شرط لګولې وی.او نه ئې د پریخودلو شرط لګولې وی.یا ئې د شوکولو په شرط سره اخستې وی.

**دغچه میوو په ونو کښې د پخیدلو په شرط باندې د اخستلو حکم**

| وَإِنْ شَرَطَ تَرْكَهَا عَلَى النَّخِلِ اوکه مشتری دا شرط کړې وی.چه دا په ونو باندې پریږدی فَسَدَ الْبَيْعُ او بیع فاسد ده |
|---|

**تشریح>** **حکم اشتراط ترک الثمر علی النخل>** صورت د مسئلې دادې.که یو کس اووئیل.چه ما ددې ونې میوې په دې شرط باندې واخستلې.چه ددې د پخیدلو پورې به دا په ونه باندې پریږدمه.نودا بیع فاسد ده.

**دلیلاه>** ① دلیل دادې.چه دا شرط د عقد مقتضی نه خلاف دې.څکه چه د عقد تقاضا داده.چه معقود علیه مشتری ته اوسپارلې شی.او مشتری د بائع د ملك نه معقود علیه جدا کړی.او په دې شرط سره داسې نه ده.بلکه مشتری خپل ملك یعنی میوو سره د بائع ملك یعنی ونې مشغول کړې دې.نود عقد د مقتضاء په خلاف شرط لګولو په وجه بیع فاسد ده.② دویم دلیل دا دې چه میوې په ونه باندې د پریخودلو شرط لګولو په صورت کښې یوه صفقه د بل په صفقه کښې کیدل لازمیږی.څکه که چرې ونه باندې د میوو پریخودلو اجرت مقرر کړې وې.نو په بیع کښې به اجاره داخله وی.او که بغیر د عوضه وی.یعنی مشتری هیڅ عوض مقرر کړې نه وی.نو په بیع کښې به اعاره ( عاریة ورکول ) داخل وی.حالانکه ، ، صفقة فی صفقة ، ، نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده.په دې وجه به دې شرط سره بیع فاسد وی.دغه شان به په دې صورت کښې هم بیع فاسد وی.چه څوك ولاړ فصل واخلی.اود پخیدلو د وخته پورې د فصل په زمکه کښې دپریخودلو شرط اولګوی. دلیل وړاندې تیرشوې دې.چه دا شرط د عقد د مقتضاء خلاف دې.او ، ،صفقة فی صفقة ، ، هم لازمیږی.

**د میوو د یو معین مقدار مستثنی کولو حکم**

| وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَبِيعَ ثَمَرَةً وَيَسْتَثْنِيَ مِنْهَا أَرْطَالًا مَعْلُومَةً میوې خرخول او په دې کښې د معلومو رطلونو استثناء کول جائز نه دی |
|---|

**حل اللغة>** **ارطال:** جمع درطل ،یوه پیمانه _ **یستثنی:** مستثنی کړی _ **نخل:** د قجورې ونه

**تشریح>** **عدم جواز استثناء ارطال فی بیع الثمر>** داحنافو رحمهم الله په نیزیه ونو کښې د لګیدلو شوو میوو خرخول،او څو متعین رطلونه مستثنی کول جائز نه دی.مثلاً داسې اووائی.چه ما ددې باغ میوې خرڅې کړې.سوا د یو من نه.یا مې د دې باغ آمونه خرڅ کړل.سوا د زرو امونو نه نه.نودا جائز نه دی.([1])

**دلیله>** دمعلوموړطلونواستثناء کولونه پس چه کوم مقدار باقی پاتې کیږی.هغه مجهول دې. په دې طریقه چه بائع به په جنس کښې د اعلی میوو مطالبه کوی.او مشتری به ده ته ادنی معمولې قسم میوې ورکوی.نودا جهالت به، ،مفضی الی المنازعه، ، وی.اود داسې جهالت په موجودګئ کښې بیع

([1]) **مذهب مالک رحمه الله>** اودحضرت امام مالك رحمه الله په نیز جائز دی.

جائز نه وی.په دې وجه به په دې صورت کښې بیع هم جائز نه وی.

**په وګوکښې دغنمو او اوریژو.او په پلوکښې د لوبیا اود کونځلو د بیع حکم**

| وَيَجُوزُبَيْعُ الْحِنْطَةِ فِي سُنْبُلِهَا وَالْبَاقِلَاءِ فِي قِشْرِهِ اود غنمو ددې په بمبلو( وګو) کښې،اود لوبیا ددې په پلو کښې خرڅول جائز دی |
|---|

**حل اللغة >** **حنطة** : غنم ـ **سنبل** : وګې ـ **باقلي** : لوبیا

**تشریح > جواز بیع الحنطة في السنبل >** صورت د مسئلې دادې.چه په وګوکښې د غنمواو په پلو یعنی پوستکی کښې د لوبیا خرڅول جائز دی. دغه شان په وګی کښې د اوریژو،او په پوستکی کښې د کونځلو خرڅول جائز دی. (۱)

**دلائله >** ① نبی کریم ﷺ په کجوره کښې دلګیدلې شوو کجورو بیع نه منع فرمائیلې ده. تردې چه په دې کښې رنګ پیدا شی.یعنی که په کجوروکښې رنګ پیدا شی.او پخې شی. نو ددې بیع جائز ده.اود غنمو د وګو بیع نه نې منع فرمائیلې ده.تردې چه دا سپین شی.اود آفت نه محفوظ شی.یعنی که پاخه شی.نو ددې بیع جائز ده.دا حدیث په وګو کښې د غنمو د بیع جائز کیدلو باندې دلالت کوی.خود وګو د پخیدلو نه پس.نو هرکله چه د غنمو بیع ددې په پوستکوکښې جائز کیدل ثابت شو.نود باقی نورو خیزونو بیع به هم ددې په پوستکوکښې دننه جائز وی. (۲)

② دویم عقلی دلیل دادې.چه غنم داسې غله ده.چه ددې نه نفع اوچتولې شی.نو په وګوکښې دننه به ددې بیع جائز وی.لکه چه د اوربشو بیع ددې په وګو کښې بالاتفاق جائز ده.اود قیاس علت جامعه دادې.چه په غنمو او اوربشو دواړو کښې هریو قیمتی مال دې.د دواړو نه نفع اوچتولې شی.نو هرکله چه د اوربشو بیع ددې په وګوکښې جائز ده.نود غنمو بیع به هم ددې په وګو کښې جائز وی.او پاتې شو دا ونیل.چه ددې پوستکې یعنی بهوس غیرمنتفع به دې.نودا غلطه ده.ځکه چه په وګوکښې دننه غنم ذخیره کولې،او محفوظ کولې شی.لکه چه د الله تعالی ارشاد دې.﴿فَذَرُوهُ فِي سُنْبُلِهِ﴾ اودا بلاشبه نفع ده.په دې وجه به په وګوکښې دننه د غنمو بیع جائز وی.

**د کور په بیع کښې ددې د چابیانو حکم**

| وَمَنْ بَاعَ دَارًا او چاچه یو کور خرڅ کړو دَخَلَ فِي الْبَيْعِ مَفَاتِيحُ إِغْلَاقِهَا نو ددې د تالو چابیانې به هم په بیع کښې داخل وی. |
|---|

**حل اللغة > دار** : کور **مفاتیح** : جمع د مفتاح ،کنجی ـ **اغلاق** : جمع د غلق ،تاله ـ **باع** :خرڅ کړو

---

(۱) **مذهب الشافعي رحمه الله >** حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.د شنې لوبیا خرڅول جائز نه دی.یعنی که ددې پلې شنه او کچه وی.نو ددې بیع جائز نه ده.دغه شان د غوزانو.د بادامو.اود پستې خرڅول ددې په رومبی پوستکی کښې جائز نه دی.د رومبی پوستکی نه مراد دادې.چه کوم مغز سره د متصل پوستکی دپاسه کومه پیرشان پوستکې وی.اود غنمو د وګو د بیع په سلسله کښې د امام شافعی رحمه الله دوه قوله دی.یود جواز او دویم د عدم جواز دې.او زمونږ په نیز ددې ټولو بیع جائز ده.

(۲) من حدیث ابن عمر رضی الله عنهما أخرجه المسلم في البيوع رقم ۵۰ وأبوداود في البيوع باب ۲۳ رقم ۳۳۶۷ والترمذي في البيوع باب ۱۵ والنسائي في البيوع باب ۳۰ رقم ۲۲۱۳ وابن ماجه في التجارات باب ۳۲ رقم ۲۲۱۴ وأحمد في المسند ۲/۵ـ

**تشریح> دخول المفاتیح في بیع الدار>** او تالي ( جرنده) په دوه قسمه وي. ① یو هغه قسم چه ورته قفل واني.دا په کندوکښې اچولې شی.او بندولې شي. ② دویم هغه کومې چه په دروازو کښې پیوست لګیدلې وي.چه دې ته دننه پیوسته تالې واني. دلته کښې هم دا دویم قسم تالې مراد ده.
اوس مسئله داده.که یوکس کور واخستلو.او په دې کښې دننه پیوسته تالې لګیدلې وي.او په المارو کښې کهونډې لګیدلې وي.نو په دې بیع کښې به کهنډې هضمی تالې او ددې ګنجیانې داخلې وي.اودا ټولې به د مشتری دپاره وي.که ددې ذکرئې کړې وي.اوکه نه وي کړې.

**دلیله>**هضمی تالې اود المارو کهونډې خو به خکه داخل وي.چه دا دکور سره د بقاء اود قرار دپاره متصلې وي.او وراندې تیرشوی دی.چه کوم څیز د مبیع سره د بقاء او قرار دپاره متصل وي.هغه د ذکرکولو نه بغیر په بیع کښې داخل وي.په دې وجه دننه پیوسته تالې اود الماروکهونډې د کو. په بیع کښې داخل وي.
اوچونکه دګنجیانو نه بغیردتالو نه نفع نشي اخستلې.په دې وجه به ګنجیانې د تالو د جزء په مرتبه کښې وي.اود ،،کل شئ،، په بیع کښې چونکه ددې ټول اجزاء داخل وي.په دې وجه به د تالو په بیع کښې ګنجیانې د بیانولو نه بغیر داخل وي.نوحاصل داشو.چه ګنجیانې خو به د تالو په بیع کښې داخل وي.او تاله د کور په بیع کښې داخل شوه.نود نتیجه په طور به ګنجیانې هم د کور په بیع کښې داخل وي.

## د ناپ کونکي اود ناقد ثمن د اجرت حکم

| |
|---|
| وَأُجْرَةُ الْكَيَّالِ وَنَاقِدِ الثَّمَنِ عَلَى الْبَائِعِ قدوری ﷫ فرماني.چه د ناپ کونکي اود ثمن ( کره کهوټه) معلومونکي اجرت په بائع باندې واجب دې. أَمَّا الْكَيْلُ فَلَابُدَّ مِنْهُ لِلتَّسْلِيمِ د ناپ کولو اجرت خکه واجب دې.چه مشتری ته د مبیع سپارلو دپاره مبیع ناپ کول ضروری دی وَهُوَعَلَى الْبَائِعِ او سپارل په بائع باندې واجب دی وَمَعْنَى هٰذَا إِذَا بِيعَ مُكَايَلَةً، او ددې معنی داده.چه هرکله دا څیز د پیمانه په حساب سره خرڅ کړې شوې وي وَكَذَا أُجْرَةُ الْوَزَّانِ وَالزَّرَّاعِ وَالْعَدَّادِ اوهم دغه شان د وزن کونکي او په ګزونو سره د ناپ کونکي اود شمارکونکي اجرت هم ( په بائع باندې واجب دې) |

**حل اللغة> الأجرة :** مزدوری **الكيال:** تول کونکې **ناقد :** کرا کوټه معلومونکې

**تشریح> اجرة الكيال علي البائع>** صورت د مسئلې دادې.که یوکس کیلی ( ناپ کونکې ) څیز د کیل په ذریعه خرڅ کړلو.یا ئې موزون څیز د وزن په ذریعه خرڅ کړلو.یا ئې په مذروعاتو کښې په ګز سره یو څیز خرڅ کړلو.معدود ئې په شمار سره خرڅ کړلو.نود کیل کونکي، او وزن کونکي، په ګزونو سره دناپ کونکي،اود شمارکونکي اجرت به په بائع باندې واجب وي.دغه شان چه مشتری کوم ثمن ورکوی.ددې د کهره کوټه ( اصلي دیسی ) معلومونکي اجرت به هم په بائع باندې واجب وي.

**دلیله>** دکیل یا وزن وغیره کونکي اجرت خو به په بائع باندې خکه واجب وي.چه د مبیع سپارل په بائع باندې واجب دی.اود مبیع سپارل په کیل وغیره باندې موقوف دی.او قاعده ده.چه د واجب موقوف علیه هم واجب وي.په دې وجه کیل کول او وزن کول به په بائع باندې واجب وي.او هرکله چه کیل کول په بائع باندې واجب دی.نو که ده په بل باندې کیل اوکړلو.نو ددې اجرت به هم په بائع باندې واجب وي.
او پاتې شو د ثمن اصلي دیسی او کهره کهوټه معلوموّل،نود امام محمد ﷫ نه د ابن رستم ﷫

روایت هم دادي.کوم چه قدوری ذکر کړي دي.چه د ثمن کتلو اجرت په بائع باندي واجب ده.اود امام محمد رحمه الله نه د ابن سماعه روایت دادي.چه د ثمن کتلو اجرت په مشتری باندي واجب ده.د ابن رستم روایت دلیل دادي.چه ثمن معلومول،او ددي کهره کهوټه کتل،هغه وخت کیږي.چه کله مشتری ثمن بائع ته ورکړي.لکه تاسو اوګورئ.چه د ثمن کتل د وزن کولو نه پس کیږي.اود ثمن په وزن کولو سره تسلیم متحقق کیږي.نو ثابته شوه.چه د ثمن کتلو ضرورت د تسلیم نه پس راپیښیږي.اود ثمن سپارلو نه پس د کهره کهوټه معلومولو ضرورت بائع ته وي.چه بائع اصلی د کوم سره چه دده حق متعلق دي.د دیسی نه جدا کړي.یا په دي وجه چه عیب داره معلوم کړي.او مشتری ته ئي واپس کړي.

**روایة ابن سماعة**> اود ابن سماعه روایت دلیل دادي.چه په مشتری باندي چونکه اصلی ثمن ( کوم چه په عقد بیع کښي متعین شوي وي ) سپارل واجب دي.او اصلی کیدل په کتلو سره معلومیږي.لکه څنګه چه د ثمن مقدار په وزن کولو سره معلومیږي.په دي وجه د ثمن معلومولو اجرت به په مشتری باندي واجب وي.(۱)

## د ثمن وزن کونکی اجرت به په چا وي؟

| |
|---|
| وَأُجْرَةُ وَزَّانِ الثَّمَنِ عَلَى الْمُشْتَرِي قدوری رحمه الله فرمائی.اود ثمن تول کونکی اجرت په مشتری باندي واجب دي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چه مونږ بیان کړو. أَنَّهُ هُوَ الْمُحْتَاجُ إِلَى تَسْلِيمِ الثَّمَنِ چه هغه د ثمن سپارلو ته محتاج دي. |

**تشریح**> په مسئله کښي څه خفا نشته .

**دلیله**> دلیل دا دي چه د ثمن سپارلو ضرورت مشتری ته دي او سپارل په تول کولو سره متحقق کیږي.

## په بیع کښي به ثمن وړاندي او مبیع روسته حواله کوي

| |
|---|
| وَمَنْ بَاعَ سِلْعَةً بِثَمَنٍ قدوری رحمه الله فرمائی.او چاچه څه سامان د ثمن په عوض خرڅ کړو قِيلَ لِلْمُشْتَرِي ادْفَعْ الثَّمَنَ أَوَّلًا نو مشتری ته به وئیلي شی.چه ته وړاندي ثمن اداکړه. فَإِذَا دَفَعَ قِيلَ لِلْبَائِعِ ادْفَعْ الْمَبِيعَ او کله چي مشتری ثمن ورکړی نو بائع ته به اووئیلی شي چي مبیع اوسپاره |

**حل اللغة**> **سلعة** : سامان، **ادفع** : ورکړه ، **الدفع** : ورکول، **المساواة** : برابری

**تشریح**> **تسلیم الثمن الي البائع اولا** > صورت د مسئلي دادي.که یوکس خپل سامان، د ثمن یعنی د درهم یا دنانیرو په عوض خرڅ کړلو .اوسامان هم دلته کښي موجود دي.او په دواړو کښي اختلاف شو.بائع وائی.چه ړومبي مشتری ثمن ماته حواله کړی.بیا به زه مبیع سپارم.او مشتری وائی.چه ړومبي دي ماته مبیع اوسپارلي شي.نو هله به زه ثمن ورکوم.نو په داسي صورت کښي به مشتری ته وئیلي شي.چه مخکښي ته ثمن ورکړه.

**دلیله**> دلیل دادي.چه په عقد د بیع کښي مساوات ضروری دي.اود بیع په انعقاد سره د مشتری حق په مبیع کښي متعین کیږي. خو چونکه ثمن په متعین کولو سره نه متعین کیږي.په دي وجه صرف د بیع په انعقاد سره د بائع حق په ثمن کښي نه متعین کیږي.او هرکله چه په انعقاد د بیع سره د بائع حق په

---

۱ ) القول الراجح هو روایة ابن سماعة رحمه الله كذا في فتح القدير(۴۹۶\۵) والعناية (۴۹۶\۵) والخانية (۲۹۸\۲) والبحر الرائق(۳۰۶\۵) وردالمحتار(۴۶\۴) وخلاصة الفتاوى (۹۱\۲) والهندية (۲۸\۳) نقلاً عن القول الراجح (۱۱\۲)–

ثمن کښې نه متعین کیږی.نود بائع حق په ثمن کښې د متعین کولو دپاره ضروری دی.چه رومبې مشتری ثمن بائع ته ورکړی.چه د حق په تعیین کښې دواړه برابر شی.

| وَمَنْ بَاعَ سِلْعَةً بِسِلْعَةٍ أَوْ ثَمَنًا بِثَمَنٍ قدوری رحمه الله فرمائی. اوچاچه سامان دسامان په عوض یا ثمن دثمن په عوض خرڅ کړو قِيلَ لَهُمَا سَلِّمَا مَعًا نودواړوته به ونیلی شی.چه دواړه یوځائې اوسپاری |
|---|

**تشریح﴾ تسليم السلعة والثمن معا﴾** اوکه سامان د سامان په عوض،یا ثمن د ثمن په عوض، خرڅ کړی.نو دواړو ته به ونیلی شی.چه په یو وخت کښې بائع او مشتری دواړه یو بل ته اوسپاری.

**دليله﴾** دلیل دا دې که د سامان بیع د سامان په عوض کښې ده.نو دواړه عوض په متعین کولوکښې برابر دی.او که د ثمن بیع د ثمن په عوض کښې ده.نو دواړه په نه متعین کولوکښې برابر دی.نو هرکله چه په تعیین یا په عدم تعیین کښې مساوات اوموندې شو.نو اوس د یوکس په سپارلو سره متعین کول به ترجیح بلا مرجح وی.په دې وجه به بائع او مشتری دواړه یو ځائې سپاری.چه د ترجیح بلامرجح قباحت پیدا نشی.

## بَابُ خِيَارِ الشَّرْطِ

**ترجمه﴾** ( دا) باب د خیارشرط ( په بیان کښې) دې.

**تشریح﴾ اقسام البيع﴾** اقسام بیع د بیع دوه قسمونه دی. ① لازم ② غیر لازم، لازم هغه ده.چه په دې کښې هیڅ قسمه څه خیار نه وی.غیر لازم هغه ده.چه په دې کښې خیار وی.بیع لازم چونکه اصل ده.په دې وجه دا مقدم کړې شوه.او بیع غیر لازم خلاف اصل ده.په دې وجه دا مؤخر کړې شوه.

**اقسام خيارالشرط﴾** دخیارشرط درې قسمونه دی. ① بالاتفاق جائز،مثلا درې ورځې یاد درې ورځو نه د کم خیار نې واخستلو. ② بالاتفاق فاسد، مثلا مشتری اووئیل.چه ما دا څیز په دې شرط باندې واخستلو .چه ماته به خیارحاصل وی.یا به د څو ورځو خیار وی.یا د همیشه خیار دې.③مختلف فیه، مثلا د یومیاشت، یا دوه میاشتې خیار نې واخستلو. نو دا د امام ابوحنیفه،امام زفر،اود امام شافعی رحمه الله په نیز فاسد دې.اود صاحبینو رحمهما الله په نیزجائز دې.په خیار شرط کښې د خیار اضافت شرط طرف ته د ،،اضافت مسبب الی السبب،، د قبیلې څخې دې.ځکه چه ددې خیارسبب شرط دې.فاضل مصنف رحمه الله خیارشرط په ټولو خیاراتو باندې په دې وجه مقدم کړلو.چه خیارشرط د ابتدائې حکم دپاره مانع دې.بیا نې خیارروئیت ذکرکړلو.ځکه چه خیار روئیت د حکم تمامیدلو دپاره مانع دې.بیا نې خیارعیب ذکرکړلو. چه دا د لزوم حکم دپاره مانع دې.

**د خیار شرط حکم او موده**

| خِيَارُ الشَّرْطِ جَائِزٌ فِي الْبَيْعِ لِلْبَائِعِ وَالْمُشْتَرِي په بیع کښې خیار شرط بائع او مشتری ( دواړو) دپاره جائز دې وَلَهُمَا الْخِيَارُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَمَا دُونَهَا او ددې دواړو دپاره به درې ورځې یا ددې نه کم خیار وی. |
|---|

**تشریح﴾ جواز الخيار للمتعاقدين﴾** خیارشرط صرف د بائع دپاره صرف د مشتری دپاره اوددواړو دپاره هم جائز دې.اود خیار شرط مودهٔ که درې ورځې وی نو دا هم په اتفاق سره جائز دې

**دليله﴾** دخیاردثبوت دلیل دحبان بن منقذبن عمروالانصاری رضی الله عنه حدیث دې.هغه داچه حبان بن منقذبن عمرو الانصاری رضی الله عنه کمزورې سړې وو.ددوی په سر کښې په زخم لګیدلو سره ددوی دماغ هم کمزوری شوی وو. نونبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل.چه کله ته اخستل خرڅول کوې.نو ته وایه.چه هیڅ دهوکه

نشته.ماله د درې ورځو خیاردې.یعنی مادپاره درې ورځو پورې د غوراو فکر موقع ده.که مناسب وی.نو عقد به جائز وی.کنی فسخ کوم به نې.(۱) ددې روایت نه د خیارشرط،اود خیارموده دواړه ثابتیږي.

| وَلَا يَجُوزُأَكْثَرُمِنْهَاعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ(۲) اود امام ابوحنیفه ﷫ په نیز د درې ورځو نه زیات جائز نه دې وَقَالَ ابويوسف ومحمد يَجُوزُإِذَاسَمَّى مُدَّةً مَعْلُومَةً او صاحبینو ﷮ فرمانیلی دی.چه جائز دې.چه کله څه معلومه موده ذکر کړې شی |
|---|

**تشریح** > **عدم جواز الخیار اکثر من ثلاثة** > که د درې ورځو نه زیات وی نو دحضرت امام ابوحنیفه، په نیز دغه شان د امام زفر،اود امام شافعی ﷮ په نیزد خیارجائز نه دې.

**دلائله** > ① یو دلیل خو منقد بن عمروانصاری ﷺ حدیث دې کوم چه وړاندې تیرشو په هغې کښې د دریو ورځو ذکر دې که د دریو ورځو نه د زیاتو خیارجائز وې نو نبی ﷺ به د زیاتې مودې ذکر کړې وې (۳)② دخیارشرط لګول،د عقد د مقتضی خلاف دې.څکه چه عقد د بیع د لزوم تقاضا کوی.اود خیارشرط لګول د بیع د عدم لزوم تقاضا کوی.بهرحال د خیارشرط لګول د عقد د مقتضی خلاف دې.اود عقد د مقتضی خلاف شرط، عقد فاسد کوی.په دې وجه د قیاس تقاضا خودا وه.چه دا عقد فاسد وی.خو مونږ د حبان بن منقذ ﷺ د حدیث په وجه خلاف قیاس دا عقد جائزګرځولې دې.او قاعده ده.چه کوم څیز په نص سره خلاف قیاس ثابت شی.هغه پخپل مورد نص باندې منحصر وی.او په نص یعنی په حدیث کښې چونکه د خیارموده درې ورځې ذکر ده.په دې وجه درې ورځې خیار خویه جائز وی.او ددې نه زیات خیار به منتفی وی.

**مذهب الصاحبین** > صاحبین ﷮ فرمانی.چه په شریعت کښې د خیارشرط هیڅ موده مقرر نه ده.بلکه کومه موده هم چه ذکرشی.جائز ده.په دې شرط چه معلومه وی.

**دلائلهما** > ①د ابن عمر ﷺ حدیث دې.یعنی رسول اکرم ﷺ دوه میاشتو پورې خیار جائز ساتلې دې. دې نه معلومه شوه.چه د خیار موده د درې ورځو پورې خاص نه ده.بلکه ددې نه زیاته هم کیدلې شی.

② خیارشرط څکه مشروع شوې دې.چه (من له الخیار) ،،دچا دپاره چه خیار وی،، په معامله کښې غور او فکراوکړی.اود نفع په صورت کښې بیع نافذ کړی.اود نقصان په صورت کښې بیع رد کړی.اود غور او فکرضرورت کله د دریو ورځو نه زیاته هم وی.په دې وجه به دې کښې قلیل او کثیر دواړه برابر وی.اودا داسې ده.لکه مثلا که ثمن قرض وی.نو درې ورځې یا ددې نه زیات د څومره قدرې مودې چه ضرورت وی.مقررول جائز دی.دغه شان په بیع کښې هم چه د څومره قدر ورځو د غور اوفکر دپاره ضرورت وی. پخپل مینځ کښې رضامندئ سره جائز ده.

**د بائع په خیار سره د مبیع حکم**

| وَخِيَارُالْبَائِعِ يَمْنَعُ خُرُوجَ الْمَبِيعِ عَنْ مِلْكِهِ اود بائع خیار( دا امر) منع کوی.چه مبیع د بائع د ملك نه |
|---|

۱) من حدیث ابن عمر ﷺ اخرجه الحاکم فی المستدرك (۲/۲۲ _
۲) القول الراجح هوهذا قول أبی حنیفة ﷫ کذا فی الدرالمنتقی (۲\۲٤) وردالمحتار(٤\۵۲) والخانیة (۲\۳۵۸) والهندیة (۳\۳۸) وجامع الرموز (۳\۱۳) وفتح القدیر(۵\۵۰۱) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱۲)_
۳) قال الزیلعی ﷫ قلت غریب جداً نصب الرایة (٤/۱٦ _

اوخی.

**حل اللغة** ﴿ **خروج**: وتل . **يمنع**: منع كوى

**تشريح** ﴿ **عدم خروج المبيع عن ملك البائع بخياره** ﴾ ورانديږ تير شوى دى.چه خيارشرط كله صرف د بائع دپاره وى.او كله صرف د مشترى دپاره وى.او كله د دوارو دپاره هم وى.كه خيارشرط صرف د بائع دپاره وى.نو مبيع به د بائع د ملك نه نه خارجيږى.

**دليله** ﴾ دليل داديږ.چه د عقدبيع پوره كيدل د بائع او مشترى په رضامندئ باندې موقوف وى.لكه چه د الله تعالىٰ ﷻ ارشاد دې.﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَأْكُلُوٓاْ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ﴾ او په خيارشرط سره رضامندى نه پوره كيږى.په دې وجه مبيع د بائع د ملك نه نه اوخى.او چونكه د بائع د خيار په صورت كښې مبيع د بائع دملك نه نه خارجيږى.په دې وجه اوونيلى شو.كه مبيع غلام يا وينځه وى.نو د خيار په موده كښې د بائع په آزادولو سره آزاديږى.

| فَإِنْ قَبَضَهُ الْمُشْتَرِي بيا كه مشترى په مبيع باندې قبضه اوكړله فَهَلَكَ فِي يَدِهِ فِي مُدَّةِ الْخِيَارِ اود خيار په موده كښې دننه هغه مال د مشترى په قبضه كښې هلاك شو ضَمِنَهُ بِالْقِيمَةِ نو مشترى به قيمت سره ددې ضمان اداكوى. |
|---|

**تشريح** ﴿ **هلاكة المبيع سبب لضمان المشترى** ﴾ خو كه مشترى په مبيع باندې قبضه اوكړله.اود خيار په موده كښې د مشترى د قبضه نه مبيع هلاك شو.نو په مشترى به د تاوان په طورددې قيمت واجب وى.ثمن به واجب نه وى.او كه د خيار د مودې نه پس هلاك شو.نو ثمن به واجب وى.قيمت به واجب نه وى.ځكه چه د خيار موده تيريدلو په وجه د بائع خيار باطل شو.او بيع پوره شوه.اود بيع پوره كيدلو په صورت كښې په مشترى باندې ثمن واجبيږى. قيمت نه واجبيږى.په دې وجه د خيارمودې نه پس د مبيع هلاكيدلو په صورت كښې په مشترى باندې ثمن واجب وى.قيمت به واجب نه وى.

**دليله** ﴾ اود خيار په موده كښې دننه د مبيع هلاكيدلو په صورت كښې قيمت ځكه واجبيږى.چه د مبيع په هلاكيدلو سره بيع فسخ شوه.او بيع ځكه فسخ شوه.چه د خيار د وجود په وجه دا بيع موقوف وه.او بيع بغيرد محل، يعنى بغير د مبيع نه نه نافذ كيږى.اودا خبره هم تاسو ته معلومه ده.چه دمشترى قبضه په مبيع باندې دعقد په وجه ده.او قاعده ده.چه ، ،مقبوض بجهت العقد مضمون بالقيمة، ، وى.يعنى كه په يوڅيز باندې د عقد كولو په غرض قبضه اوشى.اودا څيز هلاك شى.نو په قابض باندې ددې قيمت واجب وى.لكه څنګه چه په ، ،مقبوض على سوم الشراء، ، كښې كيږى.يعنى كه يوكس د نرخ كولو دپاره د دوكان نه يوڅيز كورته راوړى.اودا څيز هلاك شى.نو په ده باندې ددې قيمت واجب وى.ثمن واجب نه وى.

**د مشترى په خيار سره د مبيع حكم**

| وَخِيَارُ الْمُشْتَرِي لَا يَمْنَعُ خُرُوجَ الْمَبِيعِ مِنْ مِلْكِ الْبَائِعِ اود مشترى خيار، مبيع د بائع د ملك نه د وتلو نه نه منع كوى |
|---|

**تشريح** ﴿ **عدم خروج المبيع عن ملك البائع عندخيار المشترى** ﴾ صورت د مسئلې دادې.كه خيارشرط د مشترى دپاره وى.نو مبيع د بائع د ملك نه خارجيږى.دليل دا دې.چه بيع د هغه سړى په حق كښې غير لازم وى.دكوم كس دپاره چه خيار وى.خود كوم كس دپاره چه خيار نه وى.دده په حق كښې بيع لازم وى.تردې چه دې په بيع فسخ كولو باندې هم قدرت نه لرى.

**دلیله** ددې وجه داده.چه خیارشرط د هغه کس د خیر خواهئ دپاره مشروع شوې دې.د کوم کس دپاره چه خیارثابت دې.اود کوم کس دپاره چه خیار نه وی.د هغه کس خیرخواهی مطلوب نه وی.نوهم ددې مقصد په خاطر ونیلی شوی دی.چه خیار دهغه کس د ملك نه عوض اوبنکل منع کوی.دکوم کس دپاره چه خیار وی.اود کوم کس دپاره چه خیار نه وی.دهغه د ملك نه عوض خارجیږی.نود مشتری د خیار په صورت کښې خو ثمن د مشتری د ملك نه نه اوخی.البته بیع د بائع دملك نه اُوخی.

| إِلَّاأَنَّ الْمُشْتَرِيَ لَايَمْلِكُهُ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ(١) قدوری ﷫ فرمانیلی دی.خو مشتری به د ابوحنیفه ﷫ په نیز ددې مبیع مالك نه جوړیږی وَقَالَ ابویوسف ومحمد: يَمْلِكُهُ؛ او صاحبین ﷫ فرمائی.چه مشتری به ددې مالك وی |
|---|

**تشریح** عدم ملك المشتری عند خیار البائع اوکله چه مبیع د بائع د ملك نه اووتله.نود مشتری په ملك کښې داخلیږی که نه نو حضرت امام ابوحنیفه﷫ فرمائی.چه مبیع به مشتری په ملك کښې نه داخلیږی. یعنی مشتری به ددې مالك نه وی.

**دلائله** ① دامام ابوحنیفه﷫ دلائل دا دی چه دمشتری دخیار په صورت کښې ثمن د مشتری د ملك نه نه اوخی.نو که مبیع هم دده په ملك کښې داخل شی.نو په عقدمعاوضه کښې به دواړه عوضونه ( ثمن او مبیع ) د یوسړی په ملك کښې جمع شی.حالانکه په شریعت کښې ددې هیڅ مثال نشته.خکه چه عقدمعاوضه مساوات غواړی.که د یوکس مال پخپل ملك کښې راشی.نو ددې عوض به د بل په ملك کښې خی.او دلته کښې دواړه عوضونه د مشتری په ملك کښې دی.نودا عقد معاوضه څنګه کیدلې شی.

**السوال** په دې دلیل اعتراض دې.هغه داچه یوسړی که د چا مدبر غصب کړلو.بیا مدبر د غاصب د قبضه نه اوتختیدلو.نو په غاصب به د مالك دپاره ضمان واجب وی.حالانکه مدبر د مولا د ملك نه نه اوخی.خکه چه مدبر انتقال د ملك نه قبلوی.اوګورئ.دلته کښې مدبر او دده بدل دواړه دمولا په ملك کښې جمع شوی دی.نودا ونیل.چه د یو سړی په ملك کښې د دواړه عوضونو جمع کیدلو په شریعت کښې هیڅ مثال نشته.غلط دی؟

**الجواب** دادې. چه تادجنایت د ضمان مثال بیان کړې دې.حالانکه زمونږه خبره د معاوضه په ضمان کښې دې.په دې وجه دې مثال سره نقض د واردول درست نه دی.

② دویم دلیل دادې.چه دمشتری دپاره دده د خیرخواهئ په لحاظ خیارشرط مشروع شوې دې.چه مشتری غور اوفکر اوکړی.او په خپل مصلحت باندې خبر شی.چه اخستل مناسب دی.او که نه اخستل.نو که د مشتری د خیار باوجود ، مشتری د مبیع مالك شو.نو ډیر کرته مبیع د مشتری د طرفه بغیر دده د اختیاره آزادیږی.په دې طریقه چه مبیع د مشتری ذی رحم محرم غلام وی.اود خیار باوجود دې د مشتری په ملك کښې داخل شو.نودا غلام به دده د طرفه آزاد وی.خکه چه د مدنی آقا ﷺ ارشاد دې.(من ملك ذارحم محرم منه عتق علیه) نو هرکله چه غلام د مشتری د اختیاره بغیر آزاد شو.نودمشتری په حق کښې چه کومه خیرخواهی مطلوب وه.هغه فوت شوه.په دې وجه مونږ اوونیل.چه د مشتری د خیار په صورت کښې به مشتری د مبیع مالك نه وی.

---

(١) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة ﷫ كذا في الخانية (٢\٢٥٨) والهندية (٣\٤٠) نقلاً عن القول الراجح(٢\١٥)-

**مذهب الصاحبين**> صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه مشتری ددې مالك كيږی.هم دا قول د امام مالك،امام شافعی،اود امام احمد رحمه الله دی.

**دليلهما**> دصاحبينو رحمهما الله دليل دادی.چه مبيع خو د بائع د ملك نه اووتلو.اوس كه د مشتری په ملك كښې داخل نشی.نودا مبيع به د مالك نه بغير فضول وی.حالانكه په شريعت د اسلام كښې ددې هيڅ مثال نشته.چه يو مملوك څيز د يوكس د ملك نه اوځی.اود مالك نه بغير موجود وی.په دې وجه ددې مبيع د مشتری په ملك كښې داخليدل ضروری دی.

**السوال**> په دې دا اعتراض شوې دې.كه د جُمات متولی د جُمات د خدمت دپاره يوغلام واخستلو .نودا غلام د بائع د ملك نه خو اووتلو.خود مشتری په ملك كښې داخل نشو.ځكه چه متولی د اوقاف مالك نه وی.نو هركله چه د مملوك څيز د مالك د ملك نه وتل،بغير د مالك نه موجود كيدل ثابت شو.نودا ونيل به څنګه ټيك وی. چه په شريعت كښې ددې هيڅ مثال نشته.

**الجواب**> زمونږ بحث په تجارت كښې دې.اوتا چه كوم مثال بيان كړلو.ددې تعلق د اوقاف سره دې.نو په دې مثال سره نقص واردول ټيك نه دی.

### د مشتری په قبضه كښې د مبيع هلاكيدلو حكم

| فَإِنْ هَلَكَ بِيَدِهِ كه د مشتری په قبضه كښې مبيع هلاك شو. هَلَكَ بِالثَّمَنِ،نود ثمن په عوض به هلاك وی وَكَذَا إِنْ دَخَلَهُ عَيْبٌ اوهم دغه شان كه په دې كښې څه عيب داخل شو |
|---|

**تشريح**> **حكم هلاك المبيع في يد المشتري**> صورت دمسئلې دادې.كه خيارد مشتری دپاره وی.اود مشتری په قبضه كښې مبيع هلاك شو.نو عقدبيع به لازم وی.او په مشتری به ثمن واجب وی.دغه شان كه د خيار په موده كښې د مشتری په قبضه كښې په مبيع كښې يو داسې څه عيب پيدا شو.چه دا ختميدونكې نه وی.نو بيا به هم بيع لازم وی.او په مشتری به ثمن واجب وی.خو كه خيار د بائع دپاره وی.او مبيع د مشتری د قبضې نه د خيار په موده كښې هلاك شو.نو په دې صورت كښې به په مشتری باندې قيمت واجب وی.ثمن به واجب نه وی.ددې دواړو صورتونو په مينځمې صورت ( يعنی د مشتری د خيار په صورت ) كښې كه د خيار په موده كښې مبيع د مشتری د قبضې نه هلاك شو.نو په مشتری به ثمن واجب وی.اود بائع د خيار په صورت كښې كه د خيار په موده كښې د مشتری د قبضې نه مبيع هلاك شو.نو په ده به قيمت واجب وی.

**وجه الفرق**> وجه د فرق داده.چه مبيع هركله د مشتری په قبضه كښې عيب دار شو.اوخيارهم د مشتری دپاره وی.نو ځنګه نې چه په مبيع باندې قبضه كړې وه.هم هغه شان د هغې واپس كول متعذر شو.او هركله چه د مشتری دپاره مبيع واپس كول متعذر شو.نو خيار باطل شو.او بيع لازم شوه.اود بيع لازم كيدلو په صورت كښې په مشتری باندې ثمن واجب وی. قيمت واجب نه وی.په دې وجه به دې صورت كښې په مشتری باندې ثمن واجب وی.هم دا حكم هغه وخت دې.چه كله مبيع د مشترې په قبضه كښې هلاك شی.ځكه د الله تعالی قانون دې.چه هركس د مرګ نه وړاندې بيماريږی. اګرچه ددې بيماری احساس نه وی.اود يوڅيز د هلاكيدلو نه وړاندې په دې كښې څه ناڅه عيب ضرور پيدا كيږی.نو هركله چه مبيع هلاك شو.نو ددې نه وړاندې به په دې كښې څه عيب ضرور پيدا شوې وی.او هركله چه عيب پيدا شو.نو په مشتری باندې ددې واپس كول متعذر شو.او هركله چه په مشتری باندې مبيع واپس كول متعذر شو.نود مشتری خيار باطل شو.او بيع لازم شوه.اود نافذ كولو په صورت كښې مشتری باندې ثمن واجبيږی.په دې وجه په دې صورت كښې هم مشتری باندې ثمن واجبيږی.قيمت نه

واجبيږي.

## په موده د خيار کښې د ،،من له الخيار،، قبلول او ردول

| وَمَنْ شُرِطَ لَهُ الْخِيَارُ د کوم کس دپاره د خيار شرط وی فَلَهُ أَنْ يَفْسَخَ فِي الْمُدَّةِ نوده ته اختيار دې چه دې د خيار په موده کښې بيع فسخ کړی وَلَهُ أَنْ يُجِيْزَهُ اوده ته د اجازت ورکولو هم اختيار دې. فَإِنْ أَجَازَهُ بِغَيْرِ حَضْرَةِ صَاحِبِهَا نوکه ده دخپل ملګری په غير موجودګئ کښې اجازت ورکړو جَازَ نو جائز دی وَإِنْ فَسَخَ لَمْ يَجُزْ اوکه فسخ نې کړه.نوجائز نه دی إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ الْآخَرُ حَاضِرًا مګر دا چه دويم کس موجود وی |
|---|

**حل اللغة ﴿ يفسخ** : فسخ کوی **أجاز**: اجازت ورکړو، **حضرة**: موجودګی، **صاحب** : ملګرې

**تشريح﴿ حکم فسخ من له الخيار﴾** په متن کښې د(حضرة)،،موجود کيدلو،،نه کناية علم ( پوهيدل)مراد دی.صورت د مسئلې دادې. چه کوم کس ته خيار حاصل وی.( که هغه بائع وی.اوکه مشتری وی) دخيار په موده کښې ده ته د بيع فسخ کولوهم اختيارشته.اود جائز کولو اختيار هم شته.نوکه ده د خپل ملګری د علم نه بغير بيع جائز کړله.د کوم دپاره چه خيارنشته.نودا اجازت ورکول بالاتفاق صحيح دې.يعنی بيع به جائز اولازم وی.خوکه د خپل ملګری د علم نه بغير نې بيع فسخ کړله.نود طرفينو رحمهما الله په نيز دا بيع فسخ کول جائز نه دی.

**دليلهما﴾** دطرفينو رحمهما الله دليل دادې.چه د،، من له الخيار،، خپل اختيار لاندې بيع فسخ کول،د،،من لا له الخيار،، په حق کښې تصرف دی.او هغه حق عقدبيع دې.يعنی د کوم دپاره چه شرط خيارنشته.په هغې کښې عقد بيع لازم دې.او بيع فسخ کول دا حق ختمول،او باطلول دی.اودا د ضرر نه هم خالی نه دې.يعنی په فسخ کولوکښې د،،من لا له الخيار،، دپاره ضرردې.په دې طريقه چه خيار که د بائع دپاره وی.نو ډير کرته دده ملګرې يعنی مشتری د بيع تمام کيدل،او نافذ کولو باندې اعتماد کوی.او په مبيع کښې تصرف کوی.او ددې تصرف په نتيجه کښې مبيع هلاکيږی.نو په دې صورت کښې په مشتری باندې قيمت واجبيږی.او قيمت کله د ثمن نه زيات وی.او په مشتری باندې د ثمن نه زيات واجبول د مشتری په حق کښې ښکاره ضرر دې.او که خيار د مشتری دپاره وی.نو بائع د عقدبيع تماميدلو باندې اعتماد کوی.اود خپل دې سامان دپاره بل خوك مشتری نه تلاش کوی.حالانکه کله هم چه دا موده د سامان د خرڅولو وی.نودا د بائع په حق کښې ضرر دې.بهرحال د،، من له الخيار،، د خپل ملګری د علم نه بغير بيع فسخ کول،دده د ملګری په حق کښې ضرراود نقصان سبب دې. او داسې کار کول،چه په هغې کښې د بل نقصان وی.بغير د هغه د علم نه جائز نه دې.په دې وجه د،، من له الخيار،، بيع فسخ کول،د،، من لا له الخيار،، په علم باندې موقوف دې.يعنی که پخپل اختيار سره نې د بيع فسخ کولو اراده اوکړله.نو خپل ملګرې به خبروی.او بيع به فسخ کوی.چه دې د پيښيدونکی ضرر نه خپل ځان بچ کړی.او ددې مثال داسې دې.لکه مثلا وکيل معزول کول.يعنی که يوکس څوك سړې په اخستلو خرڅولو باندې وکيل کړی.بيا دې معزول کول اوغواړی.نود وکيل معزول کولو دپاره ضروری دی.چه موکل دې خبر کړی.ګنی ډير کرته به موکل دې معزول کړی.حالانکه د معزول کيدلو د علم نه کيدلو په وجه به دې اخستل خرڅول کوی.نو په وکيل به هسې بيسه تاوان لازم شی.يعنی که وکيل بالشراء وی.نو ده له به ثمن ورکول ضروری وی.نو لکه څنګه چه د وکيل معزول کولو دپاره وکيل ته اطلاع ورکول ضروری دی.دغه شان د بيع فسخ کولو دپاره هم دويم ملګری، يعنی ،،من لا له الخيار،، خبرول هم ضروری دی.

**مذهب ابي يوسف** > په ذکر شوي صورت کښې امام ابويوسف رحمه الله فرماني.چه فسخ کول هم جائز دی.هم دا قول د امام شافعی، امام مالك،اود امام احمد رحمه الله دي. (۱)

**دليله** > دحضرت امام ابويوسف رحمه الله دليل دادي.چه ده ته خيارحاصل دي.ده ته د خپل ملګری يعنی د ،،من لا خيارله،، د طرفه د بيع فسخ کولو قدرت حاصل دي.او هرهغه کس چه ده ته د خپل ملګری د طرفه قدرت حاصل وی.دده فعل دده د ملګری په علم باندې موقوف نه وی.لکه څنګه چه د ،، من له الخيار،،اجازت دده د ملګری يعنی د ،،من لاخيار له،،په علم باندې موقوف نه دي.نو هم دغه شان د ،، من له الخيار،،فسخ کول هم دده د ملګری په علم باندې موقوف نه دي.اود ،، من له الخيار،، فعل چونکه دده د ملګری په علم باندې موقوف نه وی.په دې وجه په فسخ کښې د ،، من لا خيارله،، رضامندی شرط نه ده.اودا د وکيل بالبيع پشان شو.يعنی کوم کس چه د بيع دپاره وکيل شو.دې په دې څيز کښې هرقسمه تصرف کولې شی.په کوم څيزکښې چه وکيل شوې وی.اګرچه مؤکل موجود نه وی.او ده ته علم نه وی.څکه چه وکيل ته د مؤکل دطرفه پوره پوره قدرت حاصل دي.دغه شان ،، من له الخيار،، ته د ،، من لا خيارله،، د طرفه چونکه د بيع فسخ کولو،اود نافذ کولو قدرت حاصل دي.په دې وجه ده ته هم د ،، من لا خيارله،، خبرولو هيڅ ضرورت نشته.که بيع نافذ کړی.او که فسخ کړی.

**الجواب عنه** > دامام ابويوسف رحمه الله ددليل په جواب کښې صاحب دهدايه رحمه الله په هدايه کښې فرماني.چه د امام ابويوسف رحمه الله دا ونيل.چه،،من له الخيار،، ته د بيع فسخ کولو قدرت د ،، من لا له الخيار،، د طرفه حاصل دي.غلط دی. څکه چه،، من لا له الخيار،، دبيع فسخ کولو پخپله هم مالك نه دي.او سړي چه دکوم څيز پخپله مالك نه وی.هغه بل کس ددې څنګه مالك جوړولې شی.نو ثابته شوه.چه ،، من له الخيار،، ته د،، من لا له الخيار،، دطرفه د فسخ وغيره کولو هيڅ قدرت حاصل شوې نه دي.

**په وفات سره د ،،من له الخيار،، د خيار حکم**

| وَإِذَامَاتَ مَنْ لَهُ الْخِيَارُ فرماني.چه کله هغه کس مرشو.چا دپاره چه خيار شرط وو بَطَلَ خِيَارُهُ نو دده خيار باطل شو وَلَمْ يَنْتَقِلْ إِلَى وَرَثَتِهِ او دده وارثانو طرف ته نه منتقل کيږی. |
|---|

**حل اللغة** > **مات**: مرشو، **ينتقل**: منتقل کيږی، **ورثة**: جمع د وارث ، **خيار**: اختيار

**تشريح** > **عدم انتقال الخيار الي الورثة** > زمونږ په نيز په خيارشرط کښې وراثت نه جاری کيږی.مثلاً که هغه کس مرشو.د کوم کس دپاره چه خيار وو.نودده خيار باطل شو. وارثانو طرف ته نه منتقل کيږی.خيارکه د بائع دپاره وی.او که د مشتری دپاره وی.يا ددې دواړو نه د علاوه دپاره وي.اوکه دده ملګري يعنی که،، من لا له الخيار،،مرشو.نود ،، من له الخيار،، خيارشرط به باقي وی. (۲)

**دليله** > دليل دادي.چه خيار د مشيت او ارادې نوم دي.او دا دواړه عرض دی.اوکوم څيز چه د عرض د قبيلې څنې وی.هغه انتقال نه قبلوی.حالانکه ميراث په هغه څيزونوکښې جاری کيږی.کوم چه انتقال

---

۱) القول الراجح هو هذا قول ابي يوسف رحمه الله كذا في فتح القدير(۵\۱۲۵) وردالمختار(۴\۶۱۱) وتبيين (۴\۱۸) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱۷)-

(۲) **مذهب الشافعي رحمه الله** > دامام شافعي رحمه الله په نيز په ذکر شوی صورت کښې وراثت جاری کيږی. يعنی د،، من له الخيار ، د مرګ نه پس دده وراثانو طرف ته خيارمنتقل کيږی.اودوی په خيارعيب باندې قياس کړې دي. حضرت امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دي.

قبلوی.نو ثابته شوه.چه په خیارکښې دننه میراث نه جاري کیږي.په خلاف د خیارعیب.

**یو غلام د نان پز یا د کاتب په حیثیت سره اخستلو نه پس**

**ددې په خلاف ختلوکښې د بیع حکم**

| وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا چا چې یو کس په دې شرط باندې غلام خرڅ کړو عَلٰى أَنَّهُ خَبَّازٌ أَوْ كَاتِبٌ چه دې نان پز یا خطاط دې فَوَجَدَهُ بِخِلَافِ ذٰلِكَ نو هغه یې د دې په خلاف بیا موندل فَالْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ نو مشتری ته اختیار دې.که غواړي.نودا دې د پوره ثمن په عوض واخلی وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُ اوکه غواړي.نو ترك دې کړي. |
|---|

**حل اللغة** ﴿ **خباز**:نانبائی ، **کاتب**،لیکونکې: **الثمن**:قیمت ، **الترک**:پریښودل

**تشریح** ﴿ **حکم خلاف الوصف في العبد** ﴿صورت د مسئلې دادې.که یوکس یو غلام په دې شرط باندې واخستلو.چه دې د روټئ پخولو د فن نه خبردې.یا په کتابت باندې پوهیږي.خو معلومه شوه.چه نه خودې په روټئ پخولو پوهیږي.اونه دکتابت د فن نه خبر دې.نو مشتری ته به اختیار وی.که غلام اخستل غواړي.نو د پوره ثمن په عوض به ئې اخلی.اوکه رد کول ئې اوغواړي.نو بیع دې پریږدی.

**دلیله** ﴿ دلیل دادې.چه د روټئ پخولو فن،او فن کتابت یو داسې وصف دې.چه دې طرف ته شوق کیږي.اوداسې وصف شرط لګول.چه هغې طرف ته شوق کیږي.دعقدبیع مناسب دی.په دې وجه د داسې مرغوب فیه وصف په فوت کیدلو سره مشتری دپاره اختیار ثابتیږي.ځکه چه ددې وصف نه بغیر مشتری په مبیع باندې راضی نه دې.خود مرغوب فیه وصف په فوت کیدلوسره عقد نه فاسدیږي.اوپه قیمت کښې به کمی هم نه کیږي ځکه چه دا وصف دې اود وصف په مقابله کښې قیمت نه وی.

# بَابُ خِيَارِ الرُّؤْيَةِ

**ترجمه** ﴿ ( دا) باب د خیار رؤیت ( په بیان کښې ) دې.

**تشریح** ﴿ **وجه تقدیم خیار العیب** ﴿ چونکه خیار رؤیت د خیارعیب نه زیات قوی دې ځکه چه خیار رؤیت بیع مکمل کیدلو نه منع کوی.اود خیارعیب په صورت کښې بیع مکمل کیږي.خو حکم د بیع یعنی ملکیت نه لازمیږي. اومعلومه ده چه کوم څیز د بیع تمامیدلو نه مانع وی.دا د هغې نه اقوی وی.کوم چه دحکم د لزوم دپاره مانع وی.

**دخیار رویت شرعی حیثیت**

| وَمَنِ اشْتَرَى مَا لَمْ يَرَهُ اوکه یوکس د کتلو نه بغیر څه څیز واخستلو فَالْبَيْعُ جَائِزٌ نو بیع جائز ده وَلَهُ الْخِيَارُ إِذَا رَآهُ اوکله چه دا اوګوری.نو دده دپاره خیار ثابت دې إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ که غواړي.نو دا دې واخلی (وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ اوکه غواړي.نو واپس دې کړي. |
|---|

**حل اللغة** ﴿ **اشتری**:واخستلو ، **یر**:وینی

**تشریح** ﴿ **جواز اشتراء ما لم یره** ﴿صورت دمسئلې دادې.که یوسړی د کتلو نه بغیرڅه څیز واخستلو.نودا بیع زمونږ په نیز جائز ده.خو مشتری چه کله دا څیز اوګوری.نوده ته به اختیار وی.که غواړي.نودا به د

پوره ثمن په عوض اخلي.اوکه غواړي.نو واپس دې کړي. (١)

دلائله> ① دليل دا حديث دې.(من إشترى شيئاً لم يره فله الخيار إذا رآه) (٢) يعنى که د کتلو نه بغير ني څه ځيز واخستلو.نود کتلو نه پس به مشترى ته خيارحاصل وي.داحديث په دې باب کښې چونکه نص دې.په دې وجه به د معارض نه بغير دا نشي پريخودلې.اودا حديث د ناليدلي مبيع د بيع په جواز باندې دلالت کوي.په دې وجه به زمونږ په نيز بيع جائز وي.اګرچه مبيع ني نه وي کتلې.

السوال> دلته کښې يوسوال دې.هغه داچه د حکيم بن حزام رضی الله عنه حديث (لاتبع ماليس عندك) د ذکر شوي حديث معارض دې.ځکه چه د (لاتبع ماليس عندك) نه مراد دادې.چه کوم ځيز تاسره موجود نه وي.يعنى مشترى دا نه وي کتلې.نودا مه خرڅوه.ددې حديث نه معلوميږي.که مشترى مبيع نه وي کتلې.نو ددې خرڅول جائز نه دي.\

الجواب> ددې جواب دادې.چه دا حديث د غيرمملوکه ځيز د بيع په عدم جواز باندې دلالت کوي.د هغه ځيز د بيع په عدم جواز باندې دلالت نه کوي.کوم چه ( د بائع مملوك وي خو) مشترى نه وي کتلې.او ددې مراد په تعين باندې قرينه پوره حديث دې. پوره حديث دادې.(أن حکيم بن حزام رضی الله عنه قال يارسول الله صلى الله عليه وسلم أن الرجل يطلب منى سلعة ليس عندى فأبيعها منه ثم أدخل السوق فاستجيدها فاشتريها فأسلمها إليه فقال صلى الله عليه وسلم لاتبع ماليس عندك) يعنى ،،حکيم بن حزام رضی الله عنه اووئيل.اې د الله رسوله صلى الله عليه وسلم! يوکس مانه داسې سامان غواړي.کوم چه ماسره نه وي.نو آيا زه يه ده خرڅ کړم.چه بيا بازارته داخل شم.اعلى سامان واخلم.او ده ته ني حواله کړم.په دې باندې نبى کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل.کوم ځيز چه تاسره نه وي.ته هغه مه خرڅوه،،دې پوره واقعې نه معلوميږي.چه حکيم بن حزام رضی الله عنه د داسې ځيز د خرڅولو په باره کښې تپوس کړې وو.کوم چه دده په ملك کښې نه وو.نود رسول الله صلى الله عليه وسلم د طرفه جواب هم د سوال مطابق به د داسې ځيز په باره کښې وي.کوم چه د حکيم بن حزام رضی الله عنه په ملك کښې نه وي. ددې خبرې متعين کولو نه پس دحکيم بن حزام حديث (لاتبع ماليس عندك) د ذکرشوي حديث (من إشترى شيئاً لم يره) معارض نه جوړيږي.

② عقلى دليل دادې.چه مشترى چونکه د خپل اختيار لاندې بيع واپس کوي.په دې وجه د نه کتلو جهالت ،، مفضى الى المنازعه،، نه دې.اوکوم جهالت چه،، مفضى الى المنازعه،، نه وي.هغه مفسد د بيع نه وي.په دې وجه د مشترى مبيع په نه کتلوسره بيبع نه فاسديږي.اودا داسې ده.لکه مثلاً يوکس د غنمو يو ډيرې واخستلو.کوم چه د سترګو اوراندې دې.او مشاراليه دې.خودا معلومه نه ده.چه ټول غنم څومره دي.نود غنمو مقدار اګرچه مجهول دې.خوچونکه دا جهالت،، مفضى الى المنازعه،، نه دې.په دې وجه به په دې صورت کښې بيع فاسد نه وي.دغه شان د ناليدلي ځيزبيع اګرچه د مجهول بيع ده.خو،، مفضى الى المنازعه،، نه کيدلو په وجه جائز ده.

## د يوځيزصرف په ظاهرى شکل کتلوسره د خيارحکم

| وَمَنْ نَظَرَ إِلَى وَجْهِ الصُّبْرَةِ، اوکوم کس چه يو ډيرې د بره نه ( سرسرى) اوکتلو أَوْإِلَى ظَاهِرِالثَّوْبِ مَطْوِيًّا يا ني راغوند تهان د پاسنى حصې نه اوکتلو أَوْإِلَى وَجْهِ الْجَارِيَةِ أَوْإِلَى وَجْهِ الدَّابَّةِ يا ني د وينځې مخ يا د |
|---|

---

( [١] مذهب الشافعي رحمه الله:- حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائيلى دي.چه په دې صورت کښې دسره بيع جائز نه ده.

١) من حديث أبي هريرة رضی الله عنه مسنداً أخرجه الدارقطنى فى سننه (٤/٣) رقم ١٠_

خاروی مخ او پتونان لنده (کوناتی) اوکتل وَكَفَلَهَا فَلَا خِيَارَ لَهُ نو دده دپاره به خیار رؤیت نه وی.

**حل اللغة** ﴿ **وجه** : مخ\پورته ارخ ، **مطوی** : راغونده شوی ، **جارية** : وینځه، **الدابة** :خاروی

**تشریح** ﴿ **حکم النظر الی ظاهر بعض الاشیاء** ﴿ دخیار رؤیت اثبات اود اسقاط په سلسله کښې قاعده داده. که مبیع شئ واحد دی. نود خیار رؤیت ساقطولو دپاره د پوره مبیع کتل شرط نه دی.

**دلیله** ﴿ خکه چه ډیر کرته د پوره مبیع کتل ناممکن وی.لکه مبیع که غلام یا وینځه وی.نو ددوی پوره بدن کتلو دپاره ددوی شرمګاهونه او ددوی ستر عورت کتل هم ضروری وی.حالانکه دا شرعاً حرام دی.نو ثابته شوه.چه د پوره مبیع کتل متعذر دی.دغه شان راټول شوی او راغونډ تان کولاوولو سره بائع ته ضرر وی.چه د پوره تان تهې به کلاؤ شی.او ټول تان به خراب شی.دغه شان د ډیری هره دانه کتل متعذر دی.نو هرکله چه د پوره مبیع کتل متعذر دی.نود بیع دومره څیز کتل به کافی وی.چه په دې سره د مقصود علم حاصل شی.

**د کور صحن، یا د بهرنه کتل،یا د بهر نه په باغ کتلو سره د خیاررؤیت حکم**

وَإِنْ رَأَى صَحْنَ الدَّارِ فَلَا خِيَارَ لَهُ اوکه د کور صحن ئې اوکتلو.نود مشتری دپاره خیار رؤیت پاتې نشو وَإِنْ لَمْ يُشَاهِدْ بُيُوتَهَا کرچه ددې کمرې ئې نه وی کتلې

**تشریح** ﴿ **حکم روية صحن الدار** ﴿ صورت د مسئلې دادې.که یوسړی د کورصحن اوکتلو.خو ددې کوټې ئې اونه کتلې.یا کور ئې د بهر نه اوکتلو.یا ئې د باغ ونې د بهرنه اوکتلې.او بیا ئې واخستلو.نود مشتری دپاره به خیار رؤیت نه وی.

**دلیله** ﴿ خکه چه د مکان یا باغ هرهر جزء کتل متعذر دی.په دې وجه د مقصود رؤیت د کُل قائم مقام کرخی.او خیار رؤیت ساقطیږی.

**مذهب زفر رحمه الله** ﴿ حضرت امام زفر رحمه الله فرمائی.چه د کور اخستلو په صورت کښې د خیار رؤیت ساقطولو دپاره په ټولو کمرو او کوټوکښې داخلیدل ضروری دی.[1]

علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی. صحیح خبره داده.چه په قدوری کښې کوم حکم ذکر دې.دا د عمارتو( کورونو) په سلسله کښې د کوفې اود بغداد د خلقو د عادت مطابق ورکړې شوې دې.خکه چه په هغه زمانه کښې د هغوی کورونه متفاوت نه وو.لکه څنګه به چه د بهرطرف نه وو.هم هغه شان به دننه هم وو.

خو نن صبا چه کوم کورونه جوړولې شی.ددې د بهر او دننه په حصه کښې د مالیت په اعتبار سره ډیر لوې تفاوت وی.په دې وجه د بهر حصه کتلو سره د دننه طرف علم نه کیږی.او هرکله چه د بهر حصه په کتلوسره د دننه طرف علم نه کیږی.نو په کمروکښې دننه داخلیدل،او هره کمره به کتل ضروری وی. حاصل داچه نن صبا د امام زفر رحمه الله په قول باندې فتوی ده.

**د نابینا دپاره د خیار رؤیت طریقه**

وَبَيْعُ الْأَعْمَى وَشِرَاؤُهُ جَائِزٌ اود نابینا ( ړوند) اخستل خرخول جائز دی

---

[1] القول الراجح هو هذا قول زفر رحمه الله كذا في الدرالمختار(٤\٧٤) وفتح القدير(٥\٥٣٨) و درالمنتقى (٢\٣٧) والدرالمختار (٤\٧٤) وردالمحتار(٤\٧٤) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٢)-

**تشریح ﴿ جواز بیع الاعمی ﴾** امام قدوري رحمه الله فرماني.چه د نابینا (روند) اخستل خرخول جائز دی.او که روند مشتري وي.نو دده دپاره خیار رؤیت هم ثابت دي. (۱)

**دلیله ﴾** ځکه چه ده داسې څیز اخستې دې.چه ده نه دې لیدلې.او مونږه وړاندې ثابت کړې دی.چه د کتلو نه بغیر څه څیز اخستل جائز دی.او دده دپاره خیار رؤیت ثابت وي.او روند سړې د هغه بینا سړی پشان دې.کوم چه د کتلو نه بغیر څه څیز واخلی.نو ددې نابینا د کتلو نه بغیر څه څیز اخستل.او دده دپاره خیار رؤیت ثابتیدل جائز دی.لکه څنګه چه د بینا په حق کښې جائز دی.

| |
|---|
| **وَيَسْقُطُ خِيَارُهُ بِأَنْ يَجِسَّ الْمَبِيعَ** بیا د روند خیار رؤیت د مبیع په لاس سره معلوملو سره ساقطیږی **إِذَا كَانَ يُعْرَفُ بِالْجَسِّ**، چه کله دا دلاس په معلوملو سره پیژندلې شي **أَوْيَشُمُّهُ** او یا په بویولو سره ساقطیږی **إِذَا كَانَ يُعْرَفُ بِالشَّمِّ**،چه په بویولو سره پیژندلې شي **أَوْيَذُوقُهُ**او یا په څکلو سره ساقطیږی **إِذَا كَانَ يُعْرَفُ بِالذَّوْقِ**چه کله په څکلو سره پیژندلې شي |

**حل اللغة ﴾ حس** : محسوسیدل ، **الشم** : بویول ، **ذوق** : څکل

**تشریح ﴿ سقوط خیار الاعمی ﴾** پاتې شوه داخبره چه د نابینا خیار رؤیت به کله ساقطیږی.نوددې حکم دادې.چه مبیع که داسې څیز وی.کوم چه د لاس په معلوملو سره پیژندلې شی.نود مبیع په لاس سره معلوملو باندې د نابینا خیار رؤیت ساقطیږی.اوکه مبیع په بوئی کولو سره پیژندلې شی.نو په بویولو سره دده خیار رؤیت ساقطیږی.او که په څکلو سره پیژندلې شي.نو په څکلوسره دده خیار رؤیت ساقطیږی.لکه څنګه چه په دې څیزونو کښې د بینا هم دا حکم دې.

| |
|---|
| **وَلَايَسْقُطُ خِيَارُهُ فِي الْعَقَارِ**اود غیر منقوله جائیداد اخستلو په صورت کښې دده خیار نه ساقطیږی **حَتّٰى يُوصَفَ لَهُ** (۲)تردې چې صفت بیان کړې شی ده ته |

**حل اللغة ﴾ العقار**: زمکه، **الروية** :لیدل

**تشریح ﴿ متی یسقط في العقار خیار الاعمی ﴾** اوکه نابینا سړی څه غیرمنقوله جائیداد واخستلو.مثلاً ونه نې واخستله.یا نې کور واخستلو.یا نې زمکه واخستله.نو دده خیار رؤیت به نه ساقطیږی.چه تر کوم وخته پورې به ښه شان تول وصف بیان نکړې شی.

**دلیله ﴾** ځکه چه وصف بیانول د رؤیت قائم مقام وی.لکه څنګه چه په بیع سلم کښې،مسلم فیه اګرچه معدوم وی.خود وصف بیانول،د مسلم فیه قائم مقام وی.نو لکه څنګه چه په بیع سلم کښې د مسلم فیه اوصاف بیانول د مسلم فیه قائم مقام ګرځولی شوی دی.دغه شان د نابینا په حق کښې هم د مبیع اوصاف بیانول د رؤیت قائم مقام منلی شوی دی.اود مبیع د رؤیت نه پس په بیع باندې راضی کیدلو سره چونکه خیار رؤیت ساقطیږی.په دې وجه که نابینا ته د مبیع اوصاف بیان کړې شو.اودې په دې باندې راضی شو.نو دده خیار رؤیت ساقطیږی.

---

(۱ **مذهب الشافعي رحمه الله ﴾** حضرت امام شافعي رحمه الله فرماني.که یوسړې د وړاندې نه بینا وو.او روسته نابینا شو.نو دده اخستل خرخول خو بلا شبه جائز دی.خو که څوك مادرزاد( پیدائشي) نابینا وی.نو دده اخستل خرخول بالکل جائز نه دی.

۲) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في العناية (۵\۴۲۵) والخانية (۲\۳۶۵) نقلاً عن القول الراجح (۲\۲۴)۔

**مذهب ابي یوسف رحمه الله**> د حضرت امام ابویوسف رحمه الله روایت دادې.چه کله نابینا په داسې خائې کښې ولاړ وی.چه که دې بینا وو.نو مبیع به ئې کتلې وو.نو په داسې خائې کښې که اودریدلو.او نابینا خپله رضامندی ښکاره کړله.نو دده خیار رؤیت به ساقط وی.اګرچه د مبیع اوصاف ذکر نکړې شو.

**دليله**> دلیل دا دې چه د عجز په صورت کښې تشبیه، د حقیقت قائم مقام وی.لکه څنګه چه په مانځه کښې د ګونګی په حق کښې شونډې رقول د قرات قائم مقام وی.او په حج کښې په سر باندې پترې (بلیډ) راښکل د حلق ( سرخرئیلو) قائم مقام دی.دغه شان د نابینا په داسې خائې کښې اودریدل، چه د هغه خائې نه بینا سړی ته مبیع په نظر راتللې شی.دده د کتلو قائم مقام دی.

| وَمَنْ بَاعَ مِلْكَ غَيْرِهٖ او چا چې خرڅ کړل ملک د بل چا بِغَيْرِ اَمْرِهٖ بغیر د هغه د اجازت نه |
|---|

**تشريح**> صورت د مسئلې دا دې چې زید د عمرو یو څیز مثلاً کتاب د هغه د جازت نه بغیر خرڅ کړل نو دا بیع جائز ده

**دليله**> څکه چې دلته بائع عاقل بالغ دې او خرڅول ئې هم د خپل څان دپاره نه دی کړی بلکه د مالک دپاره یې کړی دی.

| فَالْمَالِكُ بِالْخِيَارِ نو مالک ته اختیار دې اِنْ شَآءَ اَجَازَ الْبَيْعَ که غواړی نو بیع دې جائز کړی وَاِنْ شَآءَ فَسَخَ او که غواړی نو بیع دې ختمه کړی |
|---|

**تشريح**> البته په مذکوره صورت کښې مالک ته اختیار دې که غواړی بیع دې نافذه کړی او که غواړی نو بیع دې فسخ کړی.دې بیعې ته بیع د فضولی وائی یعنی بیع د داسې کس چې مالک نه وی.

**دليله**> په بخاری کښې دی چې نبی کریم ﷺ عروه ته یو دینار ورکړو چې په دې باندې یوه چیلئ واخله هغه چې بازار ته لاړل نو په یو دینار ئې دوه چیلئ واخستې او بیا ئې د هغې دوو نه یوه په یو دینار باندې خرڅه کړه اوبیا نبی کریم ﷺ ته راغلو یوه چیلئ ئې ورته پیش کړه اوچې کوم دینار ئې ترې اوړې وو هغه ئې ورته هم واپس ورکړو.نبی کریم ﷺ د دوی د دې هوښیارتیا نه متاثره شو او ده ته ئې د برکت دعا اوکړه.

**الاستدلال**> د دې حدیث نه معلومه شوه چې بیع د فضولی صحیح ده څکه چې عروه د نبی کریم ﷺ د اجازت نه بغیر خرڅول او اخستل اوکړو.اودا ترې هم معلومه شوه چې نبی کریم ﷺ پرې څه انکار اونکړو بلکه دعا ئې ورته اوکړه چې د مالک په اجازت سره بیع منعقده کیږی.

| وَلَهُ الْاِجَازَةُ اِذَا كَانَ الْمَعْقُوْدُ عَلَيْهِ بَاقِيًا او دې مالک سره د اجازت اختیار شته که معقود علیه موجود وی |
|---|

**تشريح**> صاحب د قدوری فرمائی چې مالک ته د بیع نافذ کولو اوفسخ کولو اجازت ترهغه وخته پورې دې چې معقود علیه موجود وی.

**دليله**> څکه که معقود علیه چې مبیع ده هغه ختمه شوې وی نو بیا اجازت څه معنی نه لری ؟

| وَالْمُتَعَاقِدَانِ بِحَالِهِمَا او دواړه متعاقدین په خپل حالت باندې دی |
|---|

**تشريح**> دغه شان دا هم ضروری ده چې په معاقدینو کښې هریو کس د بیع اهل وی که یو په کښې هم د بیع اهل پاتې نشو.نوبیا د بیع د نفاذ او فسخ څه ضرورت نشته..

**دلیله>** دلیل که بالفرض بائع یا مشتری که یو کس مړ شو.نو د اجازت نه پس که مشتری مړ وی نو قبول د بیع به څوک کوی اوکه بائع مړ وی نو ایجاب د بیعې به څوک کوی. یا که لیونې شو.نو هم دا حکم دې.چې اجازت ئې نه صحیح کیږی.

**د یوې کېږي په کتلو سره د دویمې کېږي په اخستلوکښې د رویت حکم**

| وَمَنْ رَأَى أَحَدَ الثَّوْبَيْنِ اوچاچه په دوه تهانونوکښې یو( تهان) اوکتلو فَاشْتَرَاهُمَا او دواړه نې واخستل. ثُمَّ رَأَى الْآخَرَ بیا ده دویم اوکتلو جَازَلَهُ أَنْ يَرُدَّهُمَا نوده ته دواړو تهانونو واپس کولو اختیار دې. |
|---|

**حل اللغة> ثوبین** :تثنیه د ثوب،جامه، **اشترا** :واخستې ، **روية** :لیدل

**تشریح> حکم روية احدالثوبين: >** صورت د مسئلې دادې.که یوکس په دوه تانوو کښې یو تان اوکتلو.او دواړه نې واخستل.بیا ئې دویم تان اوکتلو.نو مشتری ته به د خیار رؤیت لاندې د دواړو تانونو واپس کولو اختیار حاصل وی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه وړاندې تیرشوی دی.چه په متفاوت الآحاد څیزونوکښې د یوڅیز کتل،د ټولو دپاره کافی نه وی.بلکه د هر یوجدا جدا کتل ضروری دی.نو ددې اصولو په رڼاکښې د یوتان په کتلو سره د دویم تان کتل نشی شمارلې.ځکه چه په کپړوکښې د مالیت په اعتبارسره ډیر تفاوت وی.په دې وجه مشتری چه کوم تان نه دې کتلې.په هغې کښې به خیار رؤیت حاصل وی.

**په مرګ سره د خیار رؤیت باطلیدل**

| وَمَنْ مَاتَ وَلَهُ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ او( که) هغه کس مړشو.دچا دپاره چه خیار رؤیت وو بَطَلَ خِيَارُهُ نو دده خیار رؤیت باطل شو |
|---|

**تشریح> بطلان خیار الرؤیة بالموت>** په خیارکښې د وراثت جاری کیدلو،اود نه جاری کیدلو په سلسله کښې دخیار شرط لاندې تفصیلی بحث تیرشوې دې.هلته کښې ئې اوګورئ.

**د کتلو نه څه موده پس اخستلوکښې د رویت حکم**

| وَمَنْ رَأَى شَيْئًا اوچا چه څه څیز اوکتلو ثُمَّ اشْتَرَاهُ بَعْدَ مُدَّةٍ،بیا څه موده پس ئې دا واخستلو فَإِنْ كَانَ عَلَى الصِّفَةِ الَّتِي رَآهُ نوکه دا هم په هغه صفت وو.په کوم ئې چه دا کتلې وو فَلَا خِيَارَ لَهُ نو دده دپاره خیار نشته. **حل اللغة> مدة** :موده ، **الصفة** :حالت |
|---|

**تشریح> اشتراء شئ بعدروية سابقة>** صورت دمسئلې دادې.چه یوسړی یوڅیز اوکتلو.بیا ئې د یوې مودې نه پس دا واخستلو.اوس که دا څیز په هم هغه صفت باندې وی.په کوم صفت سره ئې چه کتلې وو.نود مشتری دپاره به خیار رؤیت حاصل نه وی.

**دلیله>** دلیل دا دې چه په تیر شوی رؤیت سره مشتری ته د مبیع د اوصافو علم حاصل دې.اوخیار رؤیت هم هغه وخت ثابتیږی.چه کله مشتری ته د مبیع د اوصافو علم نه وی.نو هرکله چه مشتری ته په تیرشوی رؤیت سره د مبیع د اوصافو علم اوشو.نو اوس به ده ته خیاررؤیت حاصل نه وی.حاصل داچه د مبیع د اوصافو علم،اود ثبوت خیار په مینځ کښې منافات دې.اود احدالمتنافیین په ثابتیدلو سره آخر منتفی کیږی.په دې وجه په تیر شوی رؤیت سره د مبیع په اوصافو باندې د علم د ثبوت په صورت کښې آخر یعنی ثبوت خیار منتفی کیږی.خو که مشتری ته دا علم نه وی.چه داڅیز هم هغه دې.کوم چه

ما کتلې وو.نو په دې صورت کښې به مشتری ته خیار رؤیت حاصل وی.ځکه چه په دې څیز باندې دده رضامندی اونه موندې شوه.اود رضامندئ فوت کیدلو په صورت کښې خیارحاصلیږی.په دې وجه به په دې صورت کښې مشتری ته خیار رؤیت حاصل وی.

| وَإِنْ وَجَدَهُ مُتَغَيِّرًا اوکه مشتری دا بدل اوموندلو فَلَهُ الْخِيَارُ نو دده دپاره خیار دې |
|---|

**حل اللغة** ﴿ **متغیر**: بدل شوې . **أوصاف** : صفتونه

**تشریح** ﴿ **وجود الخیار عند تغیر** ﴾ او که مشتری مبیع د تیرشوی صفاتو نه مختلف بیا موندلو.نو مشتری ته به خیار رؤیت حاصل وی.

**دلیله** ﴾ ځکه چه تیرشوې رؤیت د مبیع د موجوده اوصافو د علم ذریعه نه وه جوړه شوې اونه وه واقع شوې.نودا داسې شوه.لکه چه مشتری دا دسره لیدلې نه وی.ګنی د کتلو نه پس د اخستلو په صورت کښې مشتری ته خیاررؤیت حاصل وی.

| بَابُ خِيَارِ الْعَيْبِ |
|---|

**ترجمه** ﴾ ( دا ) باب د خیار عیب ( په بیان کښې ) دې.

**تشریح** ﴾ **وجه تاخیرهذا الباب عن الباب السابق** ﴾ په خیار رؤیت او خیارشرط کښې عقد نه تمامیږی بلکه رؤیت او شرط د صفقه د تمامیدو نه مانع دی نو دا مانعیت زیات قوی دی او په خیارعیب کښې یوځل صفقه پوره شوې وی خو د دعیب په وجه د لزوم صفقه نه مانع وی اوددې مانعیت کمزورې دې.نو ددې وجه خیارعیب دخیاررؤیت او خیار شرط نه اضعف شو او قانون دا دې چه اقوی د اضعف نه وړاندې وی ځکه د خیاررؤیت او خیارشرط بیان وړاندې اوشو او وروستو اوس د خیارعیب بیان کیږی.

**وجه إضافة الخیار إلی العیب** ﴾ په خیارعیب کښې د خیاراضافت،عیب طرف ته د ،،اضافة الشئ الی السبب،،د قبیلې څنې دې.ځکه چه په خیارعیب کښې،عیب د خیار حاصلولو سبب دې.عیب هغه ته وائی.چه د هغې نه د شی اصل فطرت سلیمه خالی وی.او ددې په وجه هغه څیز ناقص شمارلې شی.

**مشتری ته د عیب ښکاره کیدلو نه پس د بیع حکم**

| إِذَا اطَّلَعَ الْمُشْتَرِي عَلَى عَيْبٍ فِي الْمَبِيعِ که مشتری په مبیع کښې په څه عیب باندې خبرشو ) فَهُوَ بِالْخِيَارِ نو ده ته اختیار دې إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ ،که غواړی.نو مبیع دې د پوره ثمن په عوض واخلی وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ اوکه غواړی.نو واپس دې کړی. |
|---|

**حل اللغة** ﴾ **اطلاع** : خبریدل ، **المشتری**: اخستونکې، **الأخذ**: اخستل ، **جمیع** : ټول

**تشریح** ﴾ **اطلاع المشتری علی عیب** ﴾ صورت د مسئلې دادې.که مشتری په مبیع کښې په څه عیب باندې خبرشو.نو مشتری ته اختیار دې.که زړه ئې غواړی.نود پوره ثمن په عوض دې واخلی.او که زړه ئې غواړی.نو مبیع دې واپس کړی.

**دلیله** ﴾ دلیل دادې.چه مطلق عقد تقاضاکوی.چه معقودعلیه او بیع د عیبونو نه صحیح سالم وی.یعنی د مطلق عقد تقاضا داده.چه بیع د عیبونونه صحیح سالم وی.لکه څنګه چه د رسول ﷺ حدیث ددې شاهد دې.ارشاد دې.چه (أن رسول الله ﷺ إشتری من عداء بن خالد بن هوذة عبدا او کتب لي مهدته هذا ما إشتری

محمد رسول الله ﷺ من عداء بن خالد بن هوذة عبدا ألأداء ولا غائلة ولا خبثة بيع المسلم من المسلم) په حديث کښې د داء نه مراد هغه بيماري ده.کومه چه په خيته يا زړه وغيره کښې وي.اود غائله نه مراد هغه عيبونه دي.کوم چه د افعالو د قبيلې څخه وي.لکه د غلام بهګوړه کيدل (يعنی تختيدل)،غل کيدل،اود خبثة نه مراد په غلام کښې د بل کس استحقاق ښکاره کيدل دی.او بعضو ونيلی دی.چه د خبثة نه جنون مراد دی.اوس به د حديث ترجمه دا وی.چه ،، رسول الله ﷺ د عداء بن خالد بن هوذة ﷺ نه يو غلام واخستلو.او يو تحرير ني اوليکلو.چه محمد رسول الله ﷺ د خالدبن هوذه ﷺ نه کوم غلام واخستلو.چه په دې کښې نه څه جسماني بيماري وی.او نه څه باطني عيب وی.او نه دده بل څوك مستحق وی.( دا) د مسلمان بيع مسلمان سره ده،، ددې حديث نه هم معلوميږی.چه عقد د بيع د بيع د سلامتيا تقاضا کوی.اود عيب موجود کيدلو په صورت کښې سلامت وصف فوت کيږی.نود سلامت وصف د فوت کيدلو په وجه مشتری ته اختيار حاصل وی.چه مشتری په دې ضرر کښې مبتلا نشی.په کوم چه دې راضی نه دې.حالانکه رضامندی په حقيقت د بيع کښې داخل ده.نود رضامندئ د فوت کيدلو په وجه ده ته اختيار حاصل وی.

| وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُمْسِكَهُ اود مشتری دپاره دا جائز نه دی.چه مبيع خان سره اوساتی وَيَأْخُذَ النُّقْصَانَ (او د بائع نه ) دنقصان په اندازه واخلی |
|---|

**حل اللغة**< **الإمساك**: ايسار يدل

**تشريح**< **عدم جواز اخذ النقصان**< اومشتری ته به دا اختيار نه وی.چه دې عيب داره مبيع خان سره اوساتی.اود بائع نه د ثمن هغه مقدار واپس واخلی.کوم چه د عيب په وجه کم شوې دې.مثلا هغه مبيع چه عيب داره نه وی.د هغې قيمت زر روپئ دې.اود عيب داره قيمت اته سوه روپئ دې.نو دوه سوه روپو ته به د نقصان مقدار ونيلې شی.

**دلائله**< ① دليل دادې.چه دعيب په وجه د بيع وصف فوت کيدل اوپه عقد محض کښې د اوصافو په مقابله کښې د ثمن هيڅ حصه نه راځی.او هرکله چه د اوصافو په مقابله کښې ثمن نه راځی.نود اوصافو په کميدلو سره د ثمن هيڅ حصه نه راځی.او هرکله چه د اوصافو په مقابله کښې ثمن نه راځی.نود اوصافو په کميدلو سره به ثمن نه کميږی.په دې وجه ونيلی شوی دی.چه مشتری به عيب دار مبيع خان سره ساتی.اوده ته به دا اختيار نه وی.چه د ثمن نه د نقصان مقدار واپس واخلی.

② دويم دليل دا دې چه بائع د مقررشوی ثمن نه د کم په عوض باندې په دې نه راضی کيږی. چه مبيع د خپل ملك نه اوباسی.نو که مشتری مبيع خپل خان سره اوساتلو.اود بائع نه نې د نقصان مقدار واپس واخستلو.نود ثمن د مقرر مقدار نه د کم عوض ورکول لازميږی.او په دې کښې ښکاره د بائع ضرر دې.نود بائع ددې ضرر نه د بچ کيدلو دپاره مشتری ته عيب داره مبيع د خان سره د ساتلو،اود نقصان مقدار اختيار ورنکړې شو.پاتې شو دا سوال چه د عيب داره مبيع د پوره ثمن په عوض اخستلوکښې دمشتری نقصان دې. نو ددې جواب دادې.چه بائع ته د ضرر رسولو نه بغير مشتری له د ضرر لرې کول ممکن دی.په دې طريقه چه مشتری عيب داره مبيع بائع ته واپس کړی.او خپل پوره ثمن واپس واخلی. په دې صورت کښې به مشتری ته هم نقصان اونه رسی.او بائع به هم د ضرر نه بچ شی.

**المراد من العيب**< علامه مرغيناني ﷫ فرمائيلی دی .چه د خيارعيب ثابتيدلو دپاره شرط دادې.چه عيب د بائع په قبضه کښې پيدا شوې دې.اومشتری نه دا د عقدبيع په وخت کتلې وو.اونه نې د قبضه

په وخت کتلي وو.څکه که کتلي ني وو.او قبضه ئي کړې وی.نودا به په دې عیب باندې رضامندی وی.اودرضامندی ښکاره کیدلو نه پس خیارعیب باقی نه پاتې کیږی.

### د عیب تعریف

وَكُلُّ مَا أَوْجَبَ نُقْصَانَ الثَّمَنِ فِي عَادَةِ التُّجَّارِ قدوری ﷫ فرمائی.اوهر هغه څیز کوم چه د سوداګرو په عادت کښې د ثمن دنقصان سبب وی فَهُوَعَيْبٌ هغه عیب دې.

**حل اللغة﴾ عادة**: عرف ، **أوجب**: پیدا کوی ، **التجار**: جمع دتاجر،سوداګر، **عيب**: نقص

**تشريح﴾ تعريف العيب﴾** د کومو عیبونو په وجه چه مشتری ته خیار عیب حاصل وی.ابو الحسن قدوری ﷫ د هغې په باره کښې یوه قاعده ذکرکړې ده.قاعده داده.چه د سوداګرو په عادت کښې چه کوم څیز په ثمن کښې نقصان پیدا کوی.هغه عیب شمارلې شی.

**دليله**-دلیل دا دې چه سړی ته د شی په مالیت کمولو سره ضرر رسیږی.نو ثابته شوه.چه ضرر د شی دقیمت په کمیدلوسره لاحق کیږی.او په کوم څیز سره چه ضرر لاحق کیږی.هغه عیب دې.په دې وجه چه کوم څیز د شی د ثمن اوقیمت د نقصان سبب وی.هغه عیب دې.خو ددې معلومات د تاجرانو عادت او ددوی په عرف سره کیږی.

### د غلام اود صغير بعض عيبونه

وَالْإِبَاقُ اود غلام تختیدل ( بهکوره کیدل وَالْبَوْلُ فِي الْفِرَاشِ او په بستره باندې متیازې کول وَالسَّرِقَةُ فِي الصَّغِيرِعَيْبٌ او غلاکول په ماشوموالی کښې عیب دې مَالَمْ يَبْلُغْ،ترڅو چه بالغ نه شی فَإِذَا بَلَغَ بیا چه کله بالغ شی فَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِعَيْبٍ،نودا عیب نه دې حَتَّى يُعَاوِدَهُ بَعْدَ الْبُلُوغِ تردې چه د بالغ کیدلو نه پس داسې دوباره اوکړی.

**حل اللغة﴾ الإباق**: دغلام تختیدل ، **الفراش**، بستره: **السرقة**: غلا ، **الصغر**: ماشومتوب، **يبلغ**: بلوغ ته رسی، **عيب**: نقصان، **يعاود**: دوباره کیدل، **بعد**: پس

**تشريح﴾ المراد من الاباق﴾** د غلام بهکوره کیدل ( تختیدل).اباق،د سفر په موده هم عیب دې.اود سفر د مودې نه کم هم عیب دې.څکه چه د اباق په وجه د مولا منافع فوت کیږی.او په دې کښې چونکه د سفر موده اود سفر نه کمه موده دواړه برابردی.په دې وجه به په دواړه صورتونوکښې اباق عیب شمارلې شی.

**المراد من السرقة﴾** غلا کول.که لس درهمه وی.او که د لسو درهمو نه کم وی.په دواړه صورتونوکښې عیب دې.که غلا د مولا وی.او که د مولا نه د علاوه وی.دواړو صورتونو کښې عیب دې.خو که د خوراك څه څیز ئي خوړلو دپاره د مولا د ملك نه اخستې وی.نودا سرقه به عیب نه وی.او که د مولا نه د علاوه د ملك نه ئي اخستې وی.نودا به عیب شمارلې شی.اوکه د مولا د ملك نه یو څیز دخرڅولو دپاره خرڅ کړی.نودا هم عیب شمارلې شی.

**المراد من بول الصبي على الفراش﴾** د ماشوم په بستره باندې واړه بول ( وړوکې اودس ماتې) کول، عیب شمارلې شی.چه کله ماشوم دومره سمجداره( پوهه ) وی.چه دې خانله خوراك څکاك کولې شی.او که دومره سمجداره نه وی.نو دده په بستره باندې واړه بول کول عیب نشی شمارلې.د صاحب د کفایه﷫ په مطابق پنځه کاله یا ددې نه د زیات عمر ماشوم په بستره باندې وړوکې اودس ماتې کول عیب دې.اوددې نه د کم عمر ماشوم په بستره باندې وړوکې اودس ماتې کول عیب نه دې.

**صورة المسئله**> چه په ماشوموالی کښې د یوغلام تختیدل، یا په بستره باندې متیازې کول، یا غلا کول، د بالغ کیدلو نه وړاندې عیب دې. د بالغ کیدلو نه پس دا څیزونه عیب نه شماریږي. خوکه د بالغ کیدلو نه پس هم ددې څیزونه اعاده اوشوه. نود بالغ کیدلو نه پس به هم عیب شمارلې شي. **تفصیل** ددې دادې. چه غلام په ماشوم والی کښې خپل مولا سره په ذکرشوی څیزونوکښې د کوم یوڅیز ارتکاب (جرم) اوکړلو. بیا د بالغ کیدو نه پس ئې هم مولا سره ددې څیز ارتکاب اوکړلو. بیا مولا دا غلام خرڅ کړلو. نو که غلام مشتری سره هم ددې څیز اعاده اوکړله. نومشتری ته به ددې عیب په وجه د غلام واپس کولواختیار وی. اوکه مشتری سره غلام ددې عیب اعاده اونکړله. نو مشتری ته به د غلام واپس کولو اختیار نه وی. د قدوری عبارت (حتی یعاوده بعدالبلوغ) هم دا مطلب دې. کوم چه خادم بیان کړلو.

**التشریح الاضافي**> ددې مسئلې په نور وضاحت کښې صاحب دهدایهؒ فرمائیلی دی. که په ذکر شوی عیبونوکښې کوم عیب په ماشوموالی کښې بائع سره ښکاره شو. بیا هم په ماشوموالی کښې دا عیب مشتری سره ښکاره شو. نو مشتری ته د خپل خیارعیب لاندې ددې غلام واپس کولو اختیار شته. ځکه کوم عیب چه مشتری سره ښکاره شوې دې. دا هم هغه عیب دې. کوم چه بائع سره ښکاره شوې وو. اوکه عیب بائع سره د غلام په ماشوموالی کښې پیدا شو. او بائع په ماشوموالی کښې دا غلام خرڅ کړلو. خو مشتری سره ددې عیب اعاده د بالغ کیدلو نه پس اوشوه. نو مشتری ته به خیارعیب حاصل نه وی. او ددې غلام واپس کولو اختیار به نه وی. ځکه چه د غلام بالغ کیدلو نه پس کوم عیب مشتری سره ښکاره شوې دې. دا د هغه عیب نه علاوه دې. کوم چه په ماشوموالی کښې بائع سره ښکاره شوې وو. اوکه مشتری سره په مبیع کښې څه نوې عیب پیدا شي. نو ددې په وجه مشتری ته خیارعیب نه حاصلیږی. په دې وجه په دې صورت کښې مشتری ته د غلام واپس کولو اختیار نشته.

**الفرق بین عیب السرقة قبل البلوغ وبعده**> صاحب دهدایهؒ فرمائیلی دی. چه د بالغ کیدلو نه پس ښکاره شوې عیب، د ماشوموالی د عیب نه بدل ځکه دې. چه د ذکرشوی عیبونو سببونه د ماشوموالی اود بالغ کیدلو په وجه مختلف دی. چه په ماشوموالی کښې په بستره باندې متیازې کول د مثانه د کمزورئ په وجه کیږی. اود بالغ کیدلو نه پس ددې سبب څه بله اندرونی بیماری وی.

اودغه شان د غلام په ماشوموالی کښې تختیدل، د لوبو سره د مینې په وجه وی. اود غلا سبب بې پرواهی اوناپوهی وی. خود بالغ کیدلو نه پس ددې سبب باطنی خباثت دې.

**المراد من الصغر**> علامه مرغینانیؒ فرمائیلی دی. چه په متن کښې د صغیر نه مراد پوهې ماشوم دې. ګنی بالکل ناپوهه ماشوم که چرته لاړشی. نو ده ته بې لارې (نافرمانه) ونیلې شی. خوتختیدلې نشی ونیلې. او بې لاره کیدل عیب نه وی. په دې وجه ده باندې د اباق حکم نه جاری کیږی.

**په وینځه یا غلام کښې د ترخ یا د خولې بدبوئی**

| وَالْبَخَرُ وَالدَّفَرُ عَيْبٌ فِي الْجَارِيَةِ فرمائی. او په وینځه کښې د خولې بدبوئی اود ترخ بدبوئی عیب دې |
|---|

**حل اللغة**> **البخر**: د خولې بدبوئی. **الدفر**: د ترخ بدبوئی

**تشریح**> **حکم البخر والدفر في الجارية**> ابو الحسن قدوریؒ فرمائی. چه دخولې بدبوئی، اود ترخ بدبوئی په وینځه کښې عیب شمارلې شي. خو په غلام کښې عیب نشی شمارلې.

**دلیله**> دلیل دادې. چه کله کله وینځه ښکلول، غاړه غټې کیدل، او جماع کول مقصود وی. اودا دواړه په دې مقصد کښې رکاوټ دی. په دې وجه وینځه کښې داسې قسمه بدبوئی عیب شمارلې شوې دې.

وَلَيْسَ بِعَيْبٍ فِي الْغُلَامِ او په غلام کښې دا بدبوئی عیب نه دې اَلَّا اَنْ يَّكُوْنَ مِنْ دَاءٍ مګر داچه بدبوئی د بیمارئ په وجه وی

**حل اللغة** ﴿ **الإستخدام**: خدمت اخستل ، **داء**: مرض، **الجارية**: وینځه ، **الولد**: بچی

**تشریح** ﴿ **حكم البخر والدفر في الغلام** ﴾ اود غلام نه چونکه خدمت اخستل مقصود وی.اودا بدبوئی په دې مقصد کښې مخل نه وی.په دې وجه غلام کښې دا عیب نه دې شمارلې شوې.خوکه د بیمارئ په وجه دا بدبوئی پیدا شوې وی.نو په غلام کښې به هم عیب شمارلې شی.ځکه چه بیماری بلاشبه عیب دې.

**په وینځه یا غلام کښې د زنا یا د ولدالزناء عیب**

وَالزِّنَا وَوَلَدُ الزِّنَا عَيْبٌ فِي الْجَارِيَةِ او زناکول او ولدالزنا کیدل په وینځه کښې عیب دې دُوْنَ الْغُلَامِ په غلام کښې نه دې

**تشریح** ﴿ **حكم الزنا وولد الزنا في الجارية والغلام** ﴾ مسئله داده.چه د وینځې زناکاره کیدل.او ددې د زنا د نطفې نه پیداکیدل،دواړه خبرې په وینځه کښې عیب دې.او په غلام کښې دواړه خبرې عیب نه دې.په وینځه کښې عیب **دليله:في الجارية**-ځکه دې.چه هم دا دواړه خبرې په هغه مقصودکښې خلل اچوی.کوم چه وینځې سره متعلق دې. چه د وینځې زناکاره کیدل، ددې په فراش جوړولو کښې مخل دی.ځکه چه طبیعت سلیمه د داسې ښځې فراش جوړولو نه نفرت کوی.اود وینځې ولدالزناء کیدل د ولدپه طلب کښې مخل دی.په دې طریقه چه مولا به د بچی پیدا کیدلونه په دې وجه ځان ساتی.چه خلق به دده بچی ته شرم ورکوی.اودا به وائی.چه دا د ولدالزناء بچې دې.

**دليله:في الغلام**-اوذکر شوې دواړه خبرې په غلام کښې په دې وجه عیب نه دی.چه د غلام نه مقصود خدمت اخستل دی.او په خدمت اخستلوکښې دا دواړه خبرې قطعا مخل نه دی.خو که زناکول د غلام عادت وی.یعنی باربار دده نه ددې فعل جرم شوې وی.نود غلام زانی کیدل هم شمارلې کیږی.لکه څنګه چه د مشائخو رائې ده.ځکه چه ددې عادت په وجه کله دا غلام د ښځو په چکرکښې پریوځی.نو خاورې به د مولا خدمت اوکړی.نو معلومه شوه.چه د غلام د زنا عادت کیدل هم عیب دې.

**د عیب په ښکاره کیدلوسره مشتری دپاره د مبیع حکم**

وَاِذَا حَدَثَ عِنْدَ الْمُشْتَرِيْ عَيْبٌ کله چې (په مبیع کښې) مشتری سره څه عیب پیدا شو ثُمَّ اطَّلَعَ عَلٰى عَيْبٍ عِنْدَ الْبَائِعِ بیا مشتری د بائع سره په عیب خبر شو فَلَهٗ اَنْ يَّرْجِعَ بِنُقْصَانِ الْعَيْبِ نو مشتری ته د عیب نقصان اخستلو اختیار دې وَلَا يَرُدُّهُ الْمَبِيْعَ او مبیع به هغه ته نشی واپس کولې.

**حل اللغة** ﴿ **حدث**: پیدا شی ، **اطلع**: خبرشی ، **يرجع**: واپس اخلی ، **يرده**: واپس کوی

**تشریح** ﴿ **حكم حدوث العيب عند البائع** ﴾ صورت د مسئلې دادې.که په مبیع کښې د مشتری په قبضه کښې څه نوې عیب پیدا شو.بیا مشتری په هغه قدیم (زوړ) عیب بائندې هم خبرشو.کوم چه د بائع په قبضه کښې په مبیع کښې موجود وو.نومشتری ته د بائع نه د عیب نقصان اخستلو اختیار دې.او ددې صورت دادې.چه د قدیم(زوړ) عیب نه د سلامتیا په صورت کښې به د مبیع د قیمت اندازه اوکړې شی.او بیا به د نوی عیب سره ددې مبیع اندازه اوکړې شی.ددې دواړو قیمتونو په مینځ کښې چه کوم تفاوت وی.هغې ته به دعیب نقصان ونیلې شی.مثلاً د قدیم عیب نه د سلامتیا په صورت کښې د مبیع قیمت لس روپئ وو.اود عیب جدید سره اته روپئ قیمت دې.نودا دوه روپئ به نقصان د عیب

وي.اود عيب قديم په وجه به مشتري ته د بائع نه ددې دوه روپو اخستلو اختيار وي. البته مشتري ته به د عيب قديم په وجه د مبيع واپس كولو اختيار نه وي.

**دليله>** ځكه چه په مبيع واپس كولو كښې د بائع نقصان دې.په دې طريقه چه كله مبيع د بائع د لاس نه وتلې وو.نو په دې كښې دا عيب جديد موجود نه وو.كوم چه د مشتري په قبضه كښې پيدا شوې دې.او ددې عيب جديد سره په واپس كولو كښې سراسر د بائع ضرر دې.په دې وجه د مبيع واپس كول خو ممتنع شو.

| إِلَّا أَنْ يَرْضَى الْبَائِعُ أَنْ يَأْخُذَهُ بِعَيْبِهِ امګر داچه بائع ددې جديد عيب سره د مبيع په واپس اخستلو باندې راضي شي |
|---|

**تشريح> رضي البائع بالرد معيبا>** خو چونكه دعيب قديم په وجه دمشتري هم نقصان دې.په دې وجه ددې ضرر لرې كولو دپاره د بائع نه د عيب نقصان واپس اخستلو اختيار وركړې شوې دې.خو كه بائع د عيب جديد سره په مبيع واپس اخستلو باندې راضي شي.نو مونږ ته هيڅ اشكال نشته.ځكه چه بائع پخپل ضرر باندې رضامندي ښكاره كړله.او پخپله ئې خپل حق ساقط كړې دې.

**السوال>** دلته كښې يو سوال دې.هغه داچه وړاندې تيرشوي دي.چه د اوصافو په مقابله كښې ثمن نه وي.حالانكه دلته كښې تاسو مشتري ته نقصان عيب وركړې دې.اود اوصافو په مقابله كښې دې ثمن مقرركړې دې.نودا د تيرشوي بيان خلاف شو.

**الجواب>** ددې جواب دې.چه د اوصافو په مقابله كښې ثمن هغه وخت وي.چه كله اوصاف حقيقتاً يا حكماً مقصود نه وي.خو كه په اخستلوكښې اوصاف حقيقتاً يا حكماً مقصود وي.نو په دې صورت كښې د ثمن يوه حصه د اوصافو په مقابله كښې راځي.او په ذكرشوې مسئله كښې هم دا خبره ده.په دې وجه دعيب قديم په وجه د فوت شوي صفت په مقابله كښې چه څومره قدرې ثمن راځي.مشتري ته ددې د واپس اخستلو اختيار وركړې شوې دې.كوم چه په نقصان عيب سره تعبير شوې دې.

## په مبيع كښې د تصرف كولو نه پس عيب ښكاره كيدل

| وَإِنْ قَطَعَ الْمُشْتَرِي الثَّوْبَ بيا كه مشتري كپړه كټ كړله وَخَاطَهُ او وې ګنډله أَوْصَبَغَهُ يا ئې دا رنګ كړله أَوْلَتَّ السَّوِيقَ بِسَمْنٍ يائې ستوان غوړو سره ملاؤ كړل ثُمَّ اطَّلَعَ عَلَى عَيْبٍ بيا په څه عيب باندې خبرشو. رَجَعَ بِنُقْصَانِهِ نوددې نقصان دې واپس واخلي |
|---|

**حل اللغة> خاط** : اوګنډل، **صبغ**: رنګ كړل، **احمر**: سور رنګ، **سويق**: ستوان، **قطع**: كټ كړل، **الثوب**: جامه، **سمن**: غوړي، **اطلع**: خبرشو

**تشريح> وجود العيب بعد التصرف في المبيع>** كه مشتري كپړه كټ كړله.او وې ګنډله.يا ئې دا كپړه په سور رنګ كښې رنګ كړله.يائې ستوان واخستل.اوبه دې كښې ئې غوړي يا ګيځ ملاؤ كړل.بيا په هغه عيب باندې خبرشو.كوم چه بائع سره پيدا شوې وو. نومشتري د عيب نقصان واپس اخستلې شي

**دليله>** ځكه چه مبيع سره د يو زياتي خيز مخلوط كيدلو په وجه د مبيع واپس كول ممتنع شو.ځكه كه په اصل مبيع كښې بيع د زياتوالي د وجې فسخ كوي نو دا ممكن نه دی ځكه چه زياتې شئ د اصل مبيع نه نشي جدا كيدلې.نود زياتوالي نه بغير په اصل مبيع كښې بيع فسخ كول څنګه ممكن كيدلې شي.

## د بائع مبیع واپس اخستل

| وَلَيْسَ لِلْبَائِعِ أَنْ يَأْخُذَهُ بعينه او بائع ته د زياتوالي سره د عين مبيع اخستلو اختيار نشته |
|---|

**تشریح>** ماتن فرمائي.چه بائع ته دا اختيار نشته.چه ګندلې شوې کپړه،يا رنګ شوې کپړه، يا غوړې ګډ شوې ستوان د مشتري نه واخلي.اوهغه ته ثمن واپس کړي.ځکه چه د مبيع په زياتوالي سره د بائع طرف ته واپس کول ممتنع کيدل د بائع د حق په وجه نه دي.بلکه د شريعت د حق په وجه دي.
**دليله>** ځکه چه مبيع سره ګډشوې زياتوالي د ربوا په معنی کښې دې.اود ربوا حرمت د شريعت حق دي. نو هرکله چه مبيع سره ملاؤ شوې زياتوالي واپس کول د شريعت د حق په وجه ممنوع دې.نو بائع ته په زياتوالي سره د مبيع واپس اخستلو اختيار نشته.

## د غلام آزادولو،يا د مرګ نه پس عيب ښکاره کيدل

| وَمَنْ اشْتَرَى عَبْدًا.او چاچه غلام واخستلو فَأَعْتَقَهُ اودا نې آزاد کړو. أَوْمَاتَ عِنْدَهُ يا غلام دده سره مړشو ثُمَّ اطَّلَعَ عَلَى عَيْبٍ بيا دې په عيب باندې خبرشو رَجَعَ بِنُقْصَانِهِ نو مشتري د عيب نقصان واپس اخستلې شي. |
|---|

**حل اللغة>** **إعتاق:** آزادول، **ينتهي:** ختميږي، **موت:** مرګ، **الإطلاع:** خبريدل

**تشریح> الاطلاع علي عيب بعد اعتاق العبد او موته>** صورت د مسئلې دادې.که يوکس غلام واخستلو.او آزاد نې کړلو.يا غلام مشتري په قبضه کښې مړشو.بيا مشتري په هغه عيب خبرشو.کوم چه د بائع په قبضه کښې پيدا شوې وو.نو په دې صورت کښې مشتري د خپل بائع نه نقصان عيب اخستلې شي.
**الدليل في صورة الموت>** د غلام د مرګ په صورت کښې خو حکم( نقصان عيب اخستلې شي) چه دمرګ په وجه ملك خپل انتهاء ته رسيږي.او چه کله شئ خپل انتهاء ته اورسي.نو متقرر او ثابتيږي.نو ګويا چه ملك موجود دې.خو حکم د مرګ يعنی د غير اختياری امر په وجه غلام کوم چه مبيع دې.دده واپس کول متعذر شو.اود واپسئ په ممتنع کيدلو کښې دمشتري فعل ته هيڅ دخل نه وی.او هرکله چه د مبيع واپسی د يو غيراختياری امر په وجه متعذر شي.نود عيب قديم په وجه مشتري ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار وی.په دې وجه مشتري سره د غلام د مرګ په صورت کښې ده ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار وی.
**الدليل في صورة الاعتاق>** اوچه غلام واخلي.او آزاد نې کړي.نو په دې صورت کښې د قياس تقاضا داده.چه مشتري ته د نقصان عيب اخستلو اختيار ورنکړې شي.ځکه چه په دې صورت کښې غلام يعنی د مبيع واپسی متعذر کيدلو کښې پخپله د مشتري فعل ته دخل دې.نو مشتري حابس للمبيع شو.اوحابس للمبيع ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار نه وی.په دې وجه په دې صورت کښې مشتري ته د نقصان عيب اختيار نه وی.اودا داسې شوه.لکه چه يوکس غلام واخلي.او قتل نې کړي.بيا نې په عيب باندې خبرشي.نو په دې صورت کښې مشتري ته د نقصان عيب اخستلو اختيار نه وی.نوهم دغه شان د آزادولو په صورت کښې هم مشتري ته دنقصان عيب اخستلو اختيار نه وی.

## د غلام قتلولو يا د خوراك خوړلونه پس په عيب خبريدل

| فَإِنْ قَتَلَ الْمُشْتَرِي الْعَبْدَ نو که مشتري غلام قتل کړو أَوْكَانَ طَعَامًا فَأَكَلَهُ يا خوراك وو.وې |
|---|

خورلو لَمْ يَرْجِعْ بِشَيْءٍ[1] عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز هيڅ هم واپس نشي اخستلې وَقَالَا يَرْجِعُ بنقصان العيب او صاحبين فرمائي چې د عيب نقصان به ترې اخلي

**تشريح> مسئلة اهلاك المشترى العبد**- په دې عبارت کښې دوه مسئلې ذکر دي. ① رومبۍ: مسئله داده.چه يوسړي يو غلام واخستلو،او قتل ني کړلو.بيا په غلام کښې په داسې عيب باندې خبرشو.کوم چه د بائع سره پيدا شوې وو.په دې مسئله کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د بائع نه دمشتري نقصان عيب واپس اخستلو اختيارنشته.هم دا ظاهرالرواية دې.

**دليله>** د ظاهرالرواية يعنى د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه څوك په ناحقه قتلول داسې نه دي.چه دده په قاتل باندې ضمان نه واجبيږي.د نبى کريم صلى الله عليه وسلم ارشاد دې.(ليس في الاسلام دم مفرج أي مبطل ومهدر) يعنى په اسلام کښې د هيڅ چا وينه فضول نه ده.اوس پاتې شوه داخبره، چه د مولا خپل غلام قتلولو په صورت کښې په مولا باندې ضمان د قتل ولې واجب نشو؟ نو ددې جواب دادې.چه په مولا باندې ضمان دده د مالك کيدلو په وجه ساقط شوې دې.لکه مثلاً که دې مولا د بل چا مملوك قتل کړې وې.نو په هغه به د قصاص يا ديت ضمان باليقين واجبيدلو،نو هرکله چه د مولا نه ضمان ساقط شو.نو ګويا چه مولا د خپل ملك عوض حاصل کړې دې.په دې طريقه که قتل عمد وو.نو د مولا ځان بچ شو.او که قتل خطاء وې.نو د مولا دپاره ديت سالم پاتې شو.نودا داسې شوه.لکه چه مولا غلام واخستلو.اودا نې خرڅ کړلو.اود غلام خرڅولو په صورت کښې مشتري ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار اجازت نه وي.په دې وجه په دې صورت کښې هم د نقصان عيب واپس اخستلو اجازت نه وي.

**مذهب الصاحبين>** اود حضرت امام ابويوسف رحمه الله په نيز نقصان عيب واپس اخستلې شي.د بيع د بنياد مطابق امام محمد رحمه الله هم د ابويوسف رحمه الله سره دې.

**دليلهما>** په رومبۍ مسئله کښې دامام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه د مولا خپل غلام قتلولوسره څه دنيوي حکم نه متعلق کيږي.نه په مولا باندې قصاص واجبيږي.او نه ديت واجبيږي.نودا قتلول داسې شو.لکه د غلام پخپل طبعي مرګ باندې مره کيدل.او ورانديې تيرشوي دي.چه د غلام په بيع کښې طبعي مرګ باندې مرکيدلو په صورت کښې مشتري ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار وي.نو په دې صورت کښې هم مشتري د خپل بائع نه نقصان عيب واپس اخستلې شي.اود طبعي مرګ په صورت کښې د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار په دې وجه وي.چه په طبعي مرګ مرکيدل په غلام کښې د مولا ملك خپل انتهائي حد ته رسول دي.نو ګويا چه ملك موجود دې.خو بيع واپس کول متعذر دي.او په داسې صورت کښې مشتري ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار وي.په دې وجه په ذکر شوي صورت کښې هم مشتري ته د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار وي.

**مسئلة اکل الطعام>** دويمه مسئله داده.که يوسړي دخوراك څه څيز واخستلو.او وې خوړلو.يا نې کپړه واخستله.اود اغوستلو نه پس نې اوشلوله.بيا په عيب باندې خبرشو. نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د طعام په مسئله کښې استحساناً رجوع نشي کولې.

**دليله>** دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه هرکله مشتري مبيع اوخوړلو،يا نې واغوستلو،اووې

---

[1] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(١٦\٦) والعناية (١٥٠\٦) وردالمختار(٩٤\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٨\٢)_

شلولو. نود مبيع بائع طرف ته واپس كول، مشتری د پاره په داسې فعل سره متعذر شو.چه ددې ضمان واجبيږي.كه مشتری د بل چا مملوكه څيز خوړلې وو.يا ئې اغوستې وو.او شلولې ئې وو.نو په ده به د مالك دپاره يقيناً ضمان واجب وو.خو دلته كښې مشتری پخپله مالك دې.په دې وجه دده نه ضمان ساقط شو.نو ګويا مشتری خپل ملك يعنی د مبيع عوض حاصل كړې دې.او هركله چه مشتری عوض حاصلونكې شو.نودا صورت هم د مبيع خرڅولو،اود قتلولو مشابه شو.او په دې دواړه صورتونوكښې نقصان عيب واپس نشی اخستلې.په دې وجه د مبيع په خوړلو،ياد اغوستلو اوشلولو په صورت كښې هم د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار نه وی.

**مذهب الصاحبين**> اود صاحبينو رحمهما الله په نيز مشتری په نقصان عيب رجوع كولې شی.امام شافعی او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.اوهم دا دامام طحاوی رحمه الله مختار مذهب دې.

**دليلها**> په دويمه مسئله كښې د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه مشتری بيع يعنی ماكول اوملبوس هم په هغه مقصدكښې صرف كړې دی.دكوم مقصد دپاره چه دا اخستلې شوی دی.او په خلق كښې دا فعل يعنی د خوراك څيز خوړل،اود كپړو اغوستل معتاد( عام ) هم دی.نو چه ماكول ئې اوخوړلو،او كپړې ئې واغوستلې.او وې شلولې.نو ګويا په دې څيزونوكښې د مشتری ملك كمال ته اورسيدلو.او هركله چه په دې څيزونوكښې د مشتری ملك حد د كمال ته اورسيدلو.نودا ماكول خوړل،او كپړه اغوستل اوشلول. دغلام آزادولو پشان شو.اود غلام آزادولو په صورت كښې مشتری ته په نقصان عيب سره د رجوع كولو اختيار وی.په دې وجه ذكرشوی صورت كښې هم د نقصان عيب واپس اخستلو اختيار وی.

**الجواب عنه**> د دې دليل جواب دادې.چه دا ونيل، چه د ماكول اخستلو نه خوراك،اود كپړې اخستلو نه اغوستل مقصود دی.ددې هيڅ اعتبارنشته.خكه چه كله دا هم مقصود وی.خوكله د اخستلو نه مقصد د تجارت په طور خرڅول هم وی.اود مبيع خرڅولو په صورت كښې نقصان عيب قطعاً واپس نشی اخستلې.

## د دويم مشتری غلام خرڅولو نه پس د عيب په وجه ردكول

| وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا چه يوكس غلام خرڅ كړو فَبَاعَهُ بيا دا مشتری خرڅ كړو ثُمَّ رُدَّ عَلَيْهِ بِعَيْبٍ بيا مشتری طرف ته د عيب په وجه واپس كړې شو. فَإِنْ قَبِلَهُ بِقَضَاءِ الْقَاضِي نوكه مشتری اول دا د قاضی په حكم سره دا قبول كړې وی فَلَهُ أَنْ يَرُدَّهُ عَلَى بَائِعِهِ الاول، نو مشتری اول دا پخپل بائع باندې واپس كولې شی. |
|---|

**تشريح**> **صورة المسئلة**-صورت د مسئلې دادې.چه يوكس خپل غلام خرڅ كړلو.بيا مشتری په غلام باندې قبضه اوكړله.او په بل يوكس ئې خرڅ كړلو.بيا دويم مشتری په غلام كښې د موجود عيب په وجه دا مشتری اول ته واپس كړلو.خومشتری اول دا د قاضی په حكم قبول كړلو.

**صور قضاء القاضي**> د قاضی دفيصلې درې بنياده كيدلې شی. ① يودا چه دويم مشتری دعوه اوكړله.چه مشتری اوله په مبيع كښې د عيب اقرار كړې دې.نومشتری اول دعيب اقرار كولو نه انكار اوكړلو.نو دويم مشتری د مدعی كيدلو په حيثيت سره د مشتری اول د عيب په اقرار باندې ګواهان پيش كړل.نود ګواهانو په ګواهئ سره به د مشتری اول د عيب اقرار ثابت شی.اوهر كله چه د عيب موجودكيدلو نه د مشتری اقرار كول ثابت شو.نو ددې اقرار په بنياد باندې قاضی مشتری اول طرف ته مبيع غلام واپس كولوحكم اوكړلو. ② دويم بنياد دادې.چه دويم مشتری دعوه كوی.چه كوم غلام

اخستې شوې دې.په دې کښې د مشتري اول سره عيب وو.او مشتري اول دسره د عيب انکار کوی.نو دويم مشتري د قاضي په عدالت کښې د عيب په ثبوت باندې ګواهان پيش کړل.قاضي ددې عيب په وجه مشتري اول طرف ته د غلام واپس کولو حکم اوکړلو④ او دريم بنياد دادې.چه په ذکرشوي صورت کښې دويم مشتري د عيب په ثبوت باندې د ګواهانو پيش کولو نه عاجز شو.قاضي د شريعت مطابق د مشتري اول نه د قسم مطالبه اوکړله.مشتري اول د قسم خوړلو نه انکار اوکړلو.نود مشتري اول د قسم نه د انکار کولو په وجه عيب ثابت اومنلو.اومشتري اول طرف ته نې د غلام واپس کولوحکم اوکړلو. بهرحال دې درې وارو صورتونوکښې چه په کوم صورت کښې هم مشتري اول طرف ته غلام واپس کړې شو.مشتري اول ته دا حق دې.چه دې دا غلام خپل بائع طرف ته واپس کړی.يعنی د کوم کس نه چه مشتري اول اخستې دې.مشتري اول نې هم هغه ته واپس کړی.

**دليله**> دليل دادې.چه د دويم مشتري د قاضي په حکم مشتري اول طرف ته غلام واپس کول،دا د بيع ثانی فسخ کول دی.نو بيع ثانی ګويا چه واقع شوې هم نه ده.او بيع اول موجود ده.نو مشتري اول ته به د عيب په وجه د غلام واپس کولو اختيار وی.

### په دې شرط باندې غلام خرڅول چه زه د هرڅه نه بری يم

| :وَمَنْ اشتَرٰی عَبْدًااو چاچه غلام واخستلو وَشَرَطَ البَائِعُ الْبَرَاءَةَمِنْ کُلِّ عَیْبٍاوبائع د هرعيب نه د بری کيدلو شرط اولګولو فَلَیْسَ لَهٗ اَنْ یَرُدَّهٗ بِعَیْبٍنومشتري ته به دعيب په وجه د مبيع واپس کولو حق نه وی بِجملةِ الْعُیُوْبِ ولم یعدهااګرچه ده د ټولو عيبونو نه وی اخستې او نه نې هغه شمارلې وی |
|---|

**حل اللغة**> **البراءة**:بری کيدل ، **عيب**:نقصان ، **عدد**:شمار

**تشريح**> **صورة المسئلة**>صورت د مسئلې دادې.که يوکس غلام واخستلوکړلو.اوبائع د هرعيب نه نې د بری کيدلو شرط اولګولو.يعنی بائع اوونيل.چه زه د غلام د هرعيب نه بری يم.مشتري دا شرط منظور کړلو.نواوس به مشتري ته د هيڅ يو عيب په وجه د غلام واپس کولو حق نه وی.که دا عيبونه نې جداجدا په نوم سره شمارلې وی.او که نه وی شمارلې.او بائع ته ددې عيبونو علم وی.او که نه وی. (1)

**دليله**> دليل دادې.چه بری کول د اسقاط د قبيلې څنې دی.د تمليك د قبيلې څنې نه دی.ځکه چه لفظ د ،،ابراء،، سره تمليك عين ټيك نه دې.نو هرکله چه په لفظ د ابراء سره د عين شئ مالك کيدل ټيك نه دی.نو معلومه شوه.چه ابراء تمليك نه دې.بلکه اسقاط دې.او په جهالت د اسقاط کښې مفضي الی المنازعه نه وی.ځکه چه جهالت هغه وخت،،مفضي الی المنازعه،، وی.چه کله د څه څيز سپارلو ضرورت وی.او په اسقاطاتوکښې چونکه د سپارلو ضرورت نه وی.په دې وجه په اسقاطاتو کښې جهالت،،مفضي الی المنازعه،، هم نه وی.او هرکله چه په اسقاطاتوکښې جهالت،،مفضي الی المنازعه،، نه دې.نودا به مفسد د بيع هم نه وی.په دې وجه مونږ اوونيل.چه د مجهول عيبونو نه بری کول ټيك دی.

اول جلد ختم شو.

(1) **مذهب الشافعي**رحمه الله:- امام شافعي رحمه الله فرمانی.چه دا برائت صحيح نه دې.يعنی د هر عيب نه د بری کيدلو په شرط سره بيع فاسد ده.اود امام شافعي رحمه الله نه يو روايت دادې.چه په دې صورت کښې بيع صحيح ده.خو شرط باطل دې.